


# Maktaba Tul Ishaat



تمام فنون کے کتب ہمارے ویب سائٹ اور پلے سٹور سے فری ڈاون لوڈ کریں۔ ہم روزانہ کی بنیاد پر اس میں مزید نئے کتب شامل کر رہے ہیں نئے شامل شدہ کتب لیے روزانہ ہمارے پلے سٹور اور ویب سائٹ کو باقاعدگی سے چیک کیا کریں۔

## اپنی کتاب کو ہمارے ویب سائٹ پر شائع کرنے کے لیے رابطہ کریں

| | | |
|---|---|---|
| تفاسیر | خطبات | منطق |
| احادیث | سیرت | معانی |
| فقہ | تاریخ | تصوف |
| سوانح حیات | صرف | تقابل ادیان |
| درس نظامی | نحو | تجوید |
| لغت | فلسفہ | نعت |
| فتاوی | حکمت | تراجم |
| اصلاحی | بلاغت | تبلیغ و دعوت |
| آڈیو دروس | مناظرے | تمام فنون |

Contact Us: maktaba.tul.ishaatofficial.com

# الدر المنضود

## فی حل

# سنن أبي داؤد

**افادات**:- حضرت مولانا محمد عاقل صيب
صدر مدرّس مظاهر العلوم سهارنپور (هند)

**مترجمين**:
[ رفقاء ] دار التصنيف والتحقيق

**زير نگرانی**
**مولانا شاه فيصل فاضل وفاق المدارس**

**پښتو............................ څلورم جلد**

**خصوصيات**

① دکتاب په اول کښې د اصول حديث مفيده مقدمه.
② د بذل المجهود شرح أبي داود عربي شرحې خلاصه اونجوړ
③ د متن ټولو احاديث ته اعراب ورکول
④ د هر کتاب په اول کښې هغې سره متعلقه ضروری مباحث.
⑤ د هر حديث تخريج د مصدر، کتاب او رقم په حوالې سره.
⑥ د مشکلو لغاتو حل.
⑦ په فقهي مباحثو کښې د مذاهبو بيان.
⑧ دفريق مخالف دلائل
⑨ د فريق مخالف د دلائلو ښخه جوابونه.
⑩ د مذهب حنفی دلائل او وجوه ترجيح.

**خورونکی**
**فيصل کتب خانه محله جنگی پيښور**

د کتاب نوم: الدر المنضود فی حل سنن أبی داؤد

مؤلف: حضرت مولانا محمد عاقل صاحب دامت برکاتهم

زیرنګراني:- مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس

خورونکي: فیصل کتب خانه محله جنگی پیښور

## د ملاویدو پتې

- مکتبه فخر الدین رازی هرات [نمائنده فیصل کتبخانه در هرات]
- جدید اسلامی کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانیوال کتب خانه جلال آباد
- رحیمی کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- فلاح کتب خانه جلال آباد
- موئ مبارک کتب خانه غزنی
- مکتبه خواجه عبدالله انصاری غزنی
- واحدی کتب خانه خوست
- مکتبه رحمانیه قندهار
- دعوت کتب خانه جلال آباد
- تقوی کتب خانه جلال آباد
- نعمت کتب خانه کابل
- شریف الله کتب خانه کابل
- حقانیه کتب خانه گردیز
- مسلم کتب خانه جلال آباد
- مکتبه نعمانیه غزنی
- گودر کتب خانه جلال آباد
- مسلم کتب خانه خوست
- حاجی سردار کتب خانه کابل
- مکتبه رشیدیه کابل

خپرونکي

# فیصل کتب خانه

مدینه تاور محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور

موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

# فهرست ابواب جلد چهارم

| شمار | مضمون | صفحه |
| --- | --- | --- |

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

| شمار | مضمون | صفحه |
|---|---|---|

بسم الله الرحمن الرحيم
الحمدلله رب العٰلمين والصلوة والسلام على سيدنا
وسيد المرسلين محمد وآله واصحابه اجمعين
اللهم انی احمدک و استعينک

.....................

# كتاب الزكاة

## دزکوة احکام او مسائل

## باب وُجُوبِ الزَّكَاةِ

### باب: ۱- دَزکات دَواجب کیدو بیان

### ابحاث خمسه مفیده :

په شروع کښې يو څو څيزونه قابل ذکر دی،
(۱)المناسبة بما قبله و ترتيب الكتب، (۲)المعنى اللغوى والشرعى
(۳)بدء الشروعية، (۴) هل تجب الزكوة على الانبياء،
(۵) دمشروعية زکوة حکمت، فهذه خمسة ابحاث.

**بحث اول : (المناسبة بما قبله وترتيب الكتب)**

هرکله چه مصنف رحمه الله د اسلام د رکن ثانی يعنی صلوة نه فارغ شو، نو اوس رکن ثالث شروع کوی، حديث بنى الاسلام على خمس کښې هم دا ترتيب دې، په شروع کښې شهادتين بيا صلوة، دهغې نه پس زکوة، او د قرآن مجيد ترتيب هم دا دې، ددې وجې نه اکثر فقهاؤ او محدثينو هم داسې کړی دی، لکه په صحيحين او سنن ترمذی کښې هم دا ترتيب دې، ليکن سنن نسائي او ابن ماجه دواړو کښې په زکوة باندې د صوم تقديم کړې دې، او دمؤطا امام مالک نسخې مختلفې دی، په نسخ هنديه کښې زکوة باندې د صوم تقديم دې، او بعضې نورو نسخو کښې زکوة مقدم دې، په صوم باندې.

د قياس تقاضا خو داده، چه صوم مقدم وې په زکوة باندې، ځکه چه صلوة او صوم دواړه عبادت بدنيه دی، او زکوة عبادت ماليه دی، او د اصح قول په بنياد باندې د صوم فرضيت مقدم دې، په زکوة باندې کما سياتی.

او د تقديم زکوة وجه داده، چه څرنګه مخکښې تير شو، چه د اکثر احاديثو او قرآن مجيد ترتيب دادې، حتی چه قرآن مجيد کښې دوه ديرش ځله [1] د صلوة سره د زکوة ذکر کړې شوې دې،چه په هغې کښې اتۀ آيتونه د مکی سورتونو دی، او باقی دمدنی سورتونو، په درمختار کښې دی، چه د صلوة او زکوة دا اقتران دليل دې، ددې خبرې چه په دې دواړو کښې کمال اتصال او تعلق دې.

[1] دلته په درمختار کښې د دوه ديرشو په ځاې دوه اتيا (۸۲) مذکور دی، په دې علامه شامی تنبيه کړې ده، چه د اثنين او ثمانين په ځاې اثنين او ثلاثين کيدل پکار دی. (الحل المفهم)

او دویمه وجه تقدیم د زکوة دا کیدي شي، چه بعضو علماؤ ددې خبرې تصریح کړې ده، چه په ارکان اربعه کښې د صلوة نه پس د زکوة مرتبه ده، ثم الصيام ثم الحج. لیکن دا ترتیب د احنافو په نزد دې، لکه علامه ابن عابدین دا ترتیب لیکلي دې، او په کتب شافعیه شرح اقناع وغیره کښې ددې خلاف دی، دهغوی په نزد صوم او حج افضل دی د زکوة نه لکه په روضة المحتاجين ص۲۲۷ کښې دی، وقدم العلماء بيانها على بيان الصوم والحج مع انهما افضل منها نظرا لحديث بنى الاسلام الخ او بیا مخکښې هغوی په حدیث کښې د تقدیم زکوة حکمت بیان کړې دې[1]

دویم بحث : (د زکوة لغوی معنی)

زکوة لغة په دواؤ معانیو کښې مستعمل دې:

(۱) نما او زیاتوالې، وئیلې شي زكا الزرع چه کله فصل لوئیدل شروع شي

(۲) طهارت او تزکیه لکه په دې آیت کریمه کښې قد افلح من زكها، يتلوا عليهم آياته و يزكيهم، او چونکه معنی لغوی په معنی اصطلاحی کښې ملحوظه وی، ددې وجه نه علماؤ لیکلي دی، چه دا دواړه لغوی معنی په زکوة شرعی کښې موندلې شی. اول په دې وجه چه اخراج زکوة په مال کښې د برکت او زیاتوالی سبب دې، په حدیث کښې دی ما نقص مال من صدقة او یا داسې اوایئ، چه د زکوة په وجه په ثواب کښې زیاتوالې راځی، او یا ددې لحاظ نه چه د زکوة تعلق د مال نامی سره دې. او ثانی معنی په دې وجه موندلې شی، چه زکوة د رذیل اخلاقو او بخل نه د پاکئ سبب دې،یا د طهارت من الذنوب سبب دې بعضو علماؤ د زکوة یوه دریمه معنی هم لیکلې ده، مدح كما في قوله تعالى : فلا تزكوا انفسكم

د زکوة اصطلاحی تعریف

او معنی شرعی د زکوة داده[2] دنصاب حولی نه د یو خاص جزء(ربع العشر) داسې یو مسلمان مالک کول چه فقیر وی، او هاشمی یا مولی الهاشمی نه وی، په نیت د امتثال امر خداوندی. آتو الزكوة( یا داسې اوایه چه په نیت د زکوة) بشرط قطع المنفعة عن المملک( یعنی دا ملک په داسې طریقې وی، چه دهغې نه پس په هغې مال دزکوة کښې د مزکی څه منفعت باقې پاتې نشی) ددې اخری قید په وجه د د مزکی اصول او فروع د مصرف دزکوة نه اوتل

[1] هغه داچه د انسان په طبعیت کښې بخل او حب مال دې، چه دهغې په وجه د زکوة ادا کول مشکل وی، ددې وجه د زکوة اهمیت او تاکید ظاهرولو دپاره حدیث کښې زکوة مقدم ذکر کړې شوی دې، او د زکوة یوه نوعه یعنی صدقه فطر داسې ده، چه تقریبا په ټولو واجبه ده، که صغیر وی او که کبیر، غنی وی او که فقیر، په خلاف د حج او صوم نه الخ د غنی او فقیر عموم په صدقة الفطر کښې عند الجمهور دې خلافا للحنفية كما سياتي)_

[2] هغه داچه چونکه د انسان په طبیعت کښې بخل اود مال محبت پروت دې، چه ددې په وجه زکوة اداکول مشکل وی، په دې وجه د زکوة اهمیت او تاکید ښکاره کولو دپاره په حدیث کښې دا مقدم کړې شوې دې، اود زکوة یو نوع یعنی صدقة الفطر داسې ده چه دا تقریبا په ټولو باندې واجب ده، که هغه ماشوم وی اوکه لوئې وی، که مالدرا وی که غریب وی، په خلاف دحج او روژې الخ. د مالدار اوغریب عموم په صدقة الفطر کښې د جمهورو په نزدې، خلافا للحنفية كما سياتي.

پس زکوة هغوی ته ورکول صحیح نه دی، ځکه چه ددې رشتو په خپلو کښې منافع مشترک وی، لهذ د مملک او مملک په مینځ کښې دمنفعت قطع تحقق اونشو (زیلعی) د زکوة اطلاق څرنگه چه په اخراج دمال باندې کیږی، چه فعل دمکلف دې دغه شان په هغې مال هم کیږی، چه په زکوة کښې ادا کړې شی.[۱]

**تنبیه** : په بذل المجهود کښې د زکوة په تعریف کښې غیر هاشمی ولا مطلبی لیکلې دې، د هاشمی سره د مطلبی نفی د شافعیه مسلک دې، او په بذل کښې دا عبارت د حافظ نه اخستلې شوې دې، چه شافعی دې، د حنابله نه هم یو روایت داسې دې.

زکوة ئې په خمس غنیمت باندې قیاس کړې دې، مالکیه په دې مسئله کښې د احنافو سره دی، کما هو مصرح فی کتبهم.

د حنفیه او مالکیه په نزد په دې مسئله کښې بنو المطلب د بنو هاشم سره نه دی، البته په خمس غنیمت کښې بنو المطلب هم زمونږ په نزد د بنو هاشم په حکم کښې دی،[۲] لکه چه آئنده به انشاءالله د کتاب الجهاد دتقسیم الغنیمت په باب کښې راشی.

**فائده** : د زکوة د تعریف نه معلومه شوه، چه ددې حقیقت تملیک دې، لهذا کوم ځائې چه د تملیک معنی نه موندلې کیږی، هغه به زکوة شرعی نه وی، مثلا په جمات کښې خرچ کول، د مړې په کفن کښې ورکول، د عام ښیګړې په کارونو کښې لګول لکه مهمان خانه یا مسافر خانه وغیره جوړول.

## بحث ثالث : د زکوة فرضیت کله اوشو؟

په دې کښې درې اقواله دی(۱) د هجرت نه پس سنه ۲هـ کښې، او هم دا کال د صوم د فرضیت هم دې، لیکن په دې دواړو کښې کوم یو مقدم دې، زکوة یا صوم؟ په دې کښې دواړه اقواله دی، مال النووی فی الروضة الی الاول او د اکثرو رائې ددې برعکس ده، چه د صوم فرضیت مخکښې دې د زکوة نه،(ددې تائید مخکښې د حدیث نه هم کیږی) د صوم مشروعیت په شعبان سنه ۲هـ کښې اوشو، او د زکوة مشروعیت په شوال سنه ۲هـ کښې اوشو، البته د صدقة الفطر مشروعیت د زکوة نه مخکښې صوم سره شوې دې، لکه چه په مسند احمد او د نسائي په یو روایت کښې[۳] ددې تصریح ده، چه دهغې راوی قیس بن

---

[۱] علامه قسطلانی ددې تعریف په بله طریقې سره کړې دې، هغوی لیکلې دی، وفي الشرع اسم لما يخرج عن مال او بدن علي وجه مخصوص الخ دا تعریف هغوی ددې وجه نه کړی دې، چه په اصل کښې د زکوة دوه قسمه دی، زکوة مالیه او زکوة بدنیه، د زکوة بدنیه نه مراد صدقة الفطر دې، د صدقة الفطر د وجوب تعلق د مال او نصاب سره نه دې، بلکه د انسان د ذات او بدن سره دې، ددې وجه نه دې ته زکوة الراس والبدن ونیلې شی، کما سیاتي في محله او دا تعریف مبنی دې، په دې باندې چه د زکوة اطلاق څرنګه په تملیک دمال او په اخراج دمال باندې کیږی، دغه شان په مال مخرج باندې هم کیږی، هم ددې وجه نه صاحب منهل لیکلې دی، وفي عرف الشرع اسم للقدر المخرج من المال حقا لله تعالي، یعني د مال هغه مخصوص مقدار چه ویستلې شی د حق الله کیدلو په حیثیت سره.)

[۲] یعنی په خمس دغنیمت کښې څرنګه چه د بنو هاشم حصه ده، دغه شان د بنو المطلب هم ده، ځکه په حدیث کښې ددې تصریح ده)

[۳] امام نسائي خو په دې حدیث باندې مستقل باب تړلې دې، باب فرض صدقة الفطر قبل نزول الزکوة)

سعد دي، هغه فرمائي امرنا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بصدقة الفطر قبل ان تنزل الزکوة ثم نزلت فریضة الزکاة. په دې حدیث کښې ددې خبرې تصریح ده، چه نبی کریم ﷺ د صدقة الفطر حکم د فریضه زکوة نه مخکښې اوفرمائیلو، د زکوة نزول دهغې نه پس اوشو، او ددې نه دا خبره هم ثابته شوه، چه د صوم فرضیت هم د زکوة نه مخکښې دې، څکه چه صدقة الفطر د صوم سره متعلق دې، نو هرکله چه صدقة الفطر د زکوة نه مقدم دې، نو صوم هم د زکوة نه مقدم شو، (قاله الحافظ)

(۲) دویم قوم د ابن الاثیر الجزری رحمه الله دې، چه د زکوة نزول په سنه ۹ھ کښې اوشو، لیکن دا قول مردود دې، څکه چه ډیر داسې احادیث دی، چه یقینا د سنه ۹ھ نه مخکښې والا دی، په هغې کښې د زکوة ذکر موجود دې، مثلا حدیث دضمام بن ثعلبة چه د سنه ۵ھ واقعه ده، هم داسې حدیث دهرقل چه د سنه ۷ھ واقع ده، البته د تحصیل زکوة دپاره بعث دعمال په سنه ۹ھ کښې اوشو، کما قال الشراح.

(۳) دریم قول د محدث شهیر ابن خزیمه دې، چه د زکوة فرضیت قبل الهجرة دې، هغه دې لره د حدیث ام سلمه رضي الله عنها نه ثابت کړې دې، چه د هجرة الی الحبشة سره متعلق دې، چه د نجاشي د سوال په جواب کښې حضرت جعفر ابن ابی طالب رضي الله عنه اوفرمائیل : و یامرنا بالصلوة والزکوة والصیام. چه محمد ﷺ مونږ ته د صلوة، زکوة او صیام حکم فرمائی، او دا قصه د هجرت مدینه نه مخکښې ده. د ابن خزیمه په استدلال باندې حافظ اشکال کړې دې، هغه فرمائي و فی استدلاله بذلک نظر. څکه چه دغه وخت پورې خو صلوات خمسه او صیام هم فرض نه وو، نو کیدې شی، چه د دې دواړو په مینځ کښې دا سوال او جواب د حضرت جعفر رضي الله عنه حبشې ته رسیدلو سره سمدستی نه وو. بلکه څه موده پس شوې وی، او په هغې موده کښې دا څیزونه فرض کړې شوې وی، چه دهغې اطلاع حضرت جعفر رضي الله عنه ته په حبشه کښې اورسیدله،حافظ فرمائي و لکنه بعید او بیا مخکښې لیکي: او بهتره داده، چه داسې اوئیلې شی، چه په دې حدیث کښې د صلوة او صیام او زکوة نه مطلق صلوة او روژه اوصدقه مراددی، نه صلوات خمسه،اوصیام رمضان اوزکوة معهود

لیکن د ابن خزیمه نه علاوه نور هم د ډیرو علماؤ رائي هم داده، چه د زکوة فرضیت قبل الهجرة اوشو، البته دهغې تفصیلات او د نصاب مقررتیا د هجرت نه پس اوشو، څکه چه ډیر آیات قرآنیه چه مکی دی، په هغې کښې د زکوة ذکر دې، لکه چه په شروع کښې تیر شوې دی، چه داسې قسمه آیتونه تقریبا اته(۸) دی، د ملا علی قاری تحقیق هم دادې، او د مولانا انورشاه رحمه الله تحقیق هم دادې کما فی فیض الباری.

**بحث رابع : (ایا په انبیاء علیهم السلام باندې زکوة واجب وو؟**

په بعضو کتابونو د حنفیه او مالکیه کښې تصریح ده، کما فی الاوجز) چه زکوة په انبیاء علیهم السلام باندې واجب نه دې، او په درمختار کښې ئې خوپه دې باندې اجماع نقل کړې ده، لیکن په ظاهر کښې د اجماع نه د علماء احناف اجماع مراد ده، څکه چه مطلقا په دې اجماع کیدل ماته په بل یو کتاب کښې هم ملاؤ نشوه بلکه صاحب روح المعانی د

واوصاني بالصلوة والزكوة مادمت حيا په تفسير کښې په دې سلسله کښې د تردد اظهار کړې دې، بلکه بعض کتب شافعيه لکه انوار ساطعه کښې احقر ته ددې خبرې تصريح ملاؤ شوه، چه د شوافع په نزد د انبياء کرامو دپاره ملک هم ثابتيږي، او که هغوی صاحب نصاب وي، نو زکوة هم په هغوی واجب دې.

د کوم علماؤ په نزد چه واجب نه دې، نو د عدم وجوب مقصد څه دې؟ په دې کښې څو اقوال دی، بعضې وائي: ځکه چه الله تعالى انبياء کرامو لره د دنيا د مال او متاع نه پاک ساتلې دي، هغوی سره چه څه وو هغه په حقيقت کښې دامانت او وديعة په طور باندې وو، ملک د الله تعالى وو.

بعض داسې وائي چه زکوة ذريعه ده، د تطهيرد مال، او کسب دانبياء د مخکښې نه پاک او طيب دې، د تطهير ضرورت نشته، او وئيلې شوې دي، چه زکوة د بخل او رذيل عاداتو د ازالې ذريعه ده، او انبياء کرام ددې نه پاک دی.

**بحث خامس** : (**د زکوة بعضې فوائد اوحکمتونه**)

علماؤ په دې کښې ډير مصالح او حکم ليکلې دی:

(۱) خپل ځان لره د ګناهونو او دبخل د ګندګۍ نه پاکول

(۲) په فقيرانو او مسکينانو باندې احسان کول او دهغوی سره همدردی کول

(۳) په آخرت کښې ددې په وجه د درجو اوچتوالې

(۴) مال چونکه انسان ته طبعا محبوب دې، ددې وجه نه ددې په کثرت کښې قوی خطره ده، چه سړې په دې کښې مشغول شي او د الله تعالى او دار اخرت نه غافل شي، نو دې محبت او غفلت لره کمولو دپاره زکوة لره واجب کړې شو، دې دپاره چه تعلق مع الله او تقرب حاصل شي

(۵) په دې کښې امتحان او تميز دې، د مطيع او غير مطيع په مينځ کښې، چه کوم يو بنده داسې دې، چه خپل محبوب او مرغوب څيز د الله تعالى دپاره خرچ کوی، او کوم بنده داسې نه کوی،

(۶) يوه فائده داده، چه کله فقيرانو ته هر کال د مالدارانو د مال نه يوه حصه ملاويږي، نو هغوی نه به يوقسم تسلی ملاويږي، ددې په نتيجه کښې به د مالدارانو مالونه د فقراؤ د ناجائز تصرف او قهر نه محفوظ وي، ګنې هغه خلق به په زور يا خيانت او غلا باندې مجبور شي، دې سره ظاهره ده چه فساد في الارض به وي،

بنداني مباحث پوره شو، اوس حديث الباب ته راشئ.

[۱۵۵۶]( )حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَمَّا تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاسْتُخْلِفَ أَبُو بَكْرٍ بَعْدَهُ، وَكَفَرَ مَنْ كَفَرَ مِنَ الْعَرَبِ، قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِأَبِي بَكْرٍ: كَيْفَ تُقَاتِلُ النَّاسَ، وَقَدْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أُمِرْتُ

[1] ): صحيح البخاري/الزكاة ۱(۱۳۹۹)، ۴۰(۱۴۵۶)، المرتدين ۳(۶۹۲۴)، الاعتصام ۲(۷۲۸۴)، صحيح مسلم/الإيمان ۸(۲۱)، سنن الترمذي/الإيمان ۱(۲۶۰۷)، سنن النسائي/الزكاة ۳(۲۴۴۵)، الجهاد ۱(۳۰۹۴)، المحاربة ۱(۳۹۷۵، ۳۹۷۶، ۳۹۷۸، ۳۹۸۰)، (تحفة الأشراف: ۱۰۶۶۶)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الفتن ۱(۳۹۲۷)، مسند احمد(۵۲۸/۲)(صحيح)

أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَقُولُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، فَمَنْ قَالَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ عَصَمَ مِنِّي مَالَهُ وَنَفْسَهُ إِلَّا بِحَقِّهِ وَحِسَابُهُ عَلَى اللَّهِ عَزَّوَجَلَّ"، فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: وَاللَّهِ لَأُقَاتِلَنَّ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ، فَإِنَّ الزَّكَاةَ حَقُّ الْمَالِ، وَاللَّهِ لَوْ مَنَعُونِي عِقَالًا كَانُوا يُؤَدُّونَهُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَاتَلْتُهُمْ عَلَى مَنْعِهِ، فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: فَوَاللَّهِ مَا هُوَ إِلَّا أَنْ رَأَيْتُ اللَّهَ عَزَّوَجَلَّ قَدْ شَرَحَ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ لِلْقِتَالِ، قَالَ: فَعَرَفْتُ أَنَّهُ الْحَقُّ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ أَبُو عُبَيْدَةَ مَعْمَرُ بْنُ الْمُثَنَّى: الْعِقَالُ صَدَقَةُ سَنَةٍ، وَالْعِقَالَانِ صَدَقَةُ سَنَتَيْنِ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَرَوَاهُ رَبَاحُ بْنُ زَيْدٍ، وَرَوَاهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِإِسْنَادِهِ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: عِقَالًا. وَرَوَاهُ ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ يُونُسَ، قَالَ: عَنَاقًا. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: قَالَ شُعَيْبُ بْنُ أَبِي حَمْزَةَ، وَمَعْمَرٌ، وَالزُّبَيْدِيُّ: عَنِ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، لَوْ مَنَعُونِي عَنَاقًا. وَرَوَى عَنْبَسَةُ، عَنْ يُونُسَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: عَنَاقًا.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دي چه کله د رسول الله ﷺ وفات اوشو او د هغه نه پس حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه خلیفه جوړ کړې شو او د قبائل عرب نه چه د چا کفر اختیارول وو، هغوی کفر اختیار کړو، نو حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه حضرت ابوبکر رضي الله عنه ته اوفرمائیل : تاسو د خلقو سره په کومه بناء باندې قتال( جنګ) کوئ؟ حالانکه رسول الله ﷺ فرمائیلي دي :" ماته حکم راکړې شوې دې چه د خلقو سره قتال اوکړم تردې پورې چه هغوی لا اله الا الله اووائي - نو چا چه لا اله الا الله اووې هغه زما نه خپل جان او مال محفوظ کړل، مګر دا کۀ د اسلام څۀ حق وی، او د هغې حساب د الله په ذمه باندې دې -" په دې باندې حضرت ابوبکر رضي الله عنه جواب ورکړو : قسم په الله باندې ! زۀ د هر هغه کس سره لازماً جنګ کووم څوک چه د مونځ او د زکات په مابین کښې فرق کوی ځکه چه زکات د مال( شرعی) حق دې، قسم په الله باندې ! کۀ چرې دې خلقو زما نه هغه رسئ هم منع کړه کومه چه به دوی رسول الله ﷺ ته ورکوله نو زۀ به ددوی سره ددې په منع کیدو باندې هم قتال کووم - نو حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه اوفرمائیل : قسم په الله باندې ! ما اوکتل چه الله تعالیٰ د جنګ د پاره د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه سینه کولاؤ کړې ده او آخر زما په پوهه کښې هم دا خبره راغله چه هم دا خبره حق ده - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې حدیث لره رباح بن زید او عبد الرزاق د معمر نه، هغوی د زهری نه د هغه په سند سره روایت کړې دې - بعضو د عقالاً " رسئ " ذکر کړې دې، او ابن وهب د یونس نه [ عناقاً ] " د چیلۍ بچې " روایت کړې دې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه شعیب بن ابی همزه، معمر او زبیدی هم د زهری نه په دې حدیث کښې دغه شان وئیلي دی( چه ابوبکر اووې :) [ لو منعونی عناقاً ] " کۀ چرې دې خلقو زما نه د چیلۍ یو بچې هم منع کړو نو ...... او هم داشان عنبسه د یونس نه، هغوی د زهری نه، لفظ د :" عناقا " د چیلۍ بچې " روایت کړې دې -

**تشریح: قوله:** حدثنا قتیبة بن سعید عن ابی هریرة رضي الله عنه قال لما توفی رسول الله(صلی الله علیه وسلم) واستخلف ابوبکر بعده و کفر من کفر من العرب الخ.

دا حدیث د ابوداؤد نه علاوه صحیحین، ترمذی او مسند احمد کښې هم دې، د ترمذی جلد ثانی کتاب الایمان اول حدیث هم دادې، او حضرت امام بخاری رحمه الله دا حدیث په څو ځایونو کښې ذکر کړې دې، اول په کتاب الایمان کښې، بیا په کتاب الزکوة کښې چه په هغې ئې ترجمه قائمه کړې ده باب وجوب الزکوة. دهغې نه پس د جلد ثانی په آخر کښې،

استتابة المرتدين کښې، او هلته ئې په دې ترجمه قائمه کړې ده باب قتل من ابى قبول الفرائض.
ليکن امام ابوداؤد دا حديث دلته په کتاب الزکوة کښې بغير د تبويب او ترجمه نه ذکر کړې دې، ددې په ظاهر کښې وجه دا په پوهه کښې راځي، چه د مصنف غرض دې حديث راوړلو سره صرف د زکوة اهميت بيانول دی، او نور د څه خاص مسئلې استنباط مقصود نه دې، دې دپاره چه څوک په دې باندې څه خاص ترجمه قائمه کړي.
دا حديث ډير د تشريح او توضيح محتاج دې، شارحينو په دې باندې ډير ليکل کړې دی،مونږ کوشش کوؤ،چه د ضرورت مطابق خلاصه دلته بيان کړې شی والله المستعان

## د مناظره شيخين والا حديث تشريح :

په دې حديث کښې دوه اجزاء دی، يو کفر من کفر من العرب دا خو تاريخي خبره ده، او ددې جزء ثاني مناظره شيخين ده.
دحضرت عمر رضی الله عنه اشکال په حضرت ابوبکرصديق رضی الله عنه باندې چه کيف تقاتل الناس دا اصولي او فقهي مسئله ده، په جزء اول باندې بعضې شارحينو تفصيلي کلام کړې دې، او بعضو مختصر،علامه قسطلانی په شرح بخاری کښې مختصرا ليکلې دی، مونږ اول هغه بيانوؤ.
حضرت ابوهريره رضی الله عنه (راوی حديث) د مناظرهٔ شيخين تمهيد بيانوی، چه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د وصال نه پس چه کله صديق اکبر رضی الله عنه خليفه جوړ کړې شو، او د عرب بعضې قبائل مرتد شول،(په دې حضرت ابو بکر رضی الله عنه هغوی سره د قتال اراده اوفرمائيله) نو حضرت عمر رضی الله عنه عرض اوکړو کيف تقاتل الناس الخ

## د حديث جزء اول، د مرتدينو تعيين :

علامه قسطلانی کفر من کفر باندې ليکلې دی، چه بعضې خو په هغوی کښې کافران شول، د عبادت اوثان د وجې نه، او بعضې د مسيلمه کذاب د اتباع د وجې نه اهل يمامه وغيره، او بعضې په خپل ايمان باندې قائم پاتې شو، ليکن هغوی د زکوة ورکولو نه انکار اوکړو،(ددې تاويل باطل په ذريعه) چه زکوة خو عهد نبوی صلی الله عليه وسلم سره خاص وو، لقوله تعالى خذ من اموالهم صدقة تطهرهم و تزکيهم بها الآية په دې آيت کښې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته خطاب دې، چه ته د دوی نه زکوة واخله. او زکوة اخستلو سره دوی د ګناهونو د اثراتو نه پاک کړه، او دهغوی په حق کښې دعا هم اوکړه، بيشکه ستا دعا دهغوی دپاره د سکون او اطمينان سبب دې او دا اوچت شان د نبی کريم صلی الله عليه وسلم وو، چه د هغوی دعا د سکون باعث وه، د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه علاوه بل هيڅانه دا صفت حاصل نه دې، چه هغه زکوة واخلی. اهـ
او امام نووی په شرح مسلم کښې د خطابی نه په دې تفصيلی کلام نقل کړې دې، دهغې خلاصه داده، چه د مرتدينو دوه قسمه وو، اول قسم هغه خلق وو، چه بالکل د اسلام نه واوښتل، په دې قسم کښې دوه قسمه خلق وو، بعضې هغه وو چه د دروغژن مدعيان نبوت(مسليمه او اسود عنسی وغيره) په ملګرو کښې شامل شو، او بعضې هغه وو، چه خپل سابقه جهالت طرف ته واوښتل، يعنی د بتانو عبادت او کفر وشرک ئې شروع کړو،( او په دې ارتداد کښې دومره عموم او ابتلاء اوشوه چه) په مخ د زمکې صرف درې جماتونه

داسې پاتې شو، چه په هغې کښې به د الله تعالى عبادت کيدو، مسجد مکه، مسجد مدينه، او د بحرين په کلي جواثي کښې مسجد عبد القيس.

او دويم قسم هغه خلق وو، چه صلوٰة او نور شرائع د اسلام ئې منل، ليکن د زکوٰة د فرضيت او دهغې اداء الى الامام نه منکر وو، دا خلق په حقيقت کښې مرتد او کافر نه وو، بلکه باغيان وو، د مرتدينو د کثرت په وجه په هغوى کښې خلط ملط شو، اهـ

ددې خلاصه داشوه، چه په هغه زمانه کښې د نيغې لارې نه اوختونکې خلق دوه قسمه وو، (۱) مرتدين چه په هغوى کښې دوه قسمه خلق وو کما سبق (۲) فارقين بين الصلوٰة والزکوٰة چه دوى ته باغيان وئيل پکار دى.

د خطابى د کلام نه معلوميږى، چه د فتنه ارتداد وباء په ټول عرب کښې خوره شوه، او د يو عموم او شيوع شکل ئې اختيار کړو، په دې باندې حضرت شيخ په حاشيه د بذل کښې اشارة او شاه صاحب په فيض البارى کښې صراحة تنقيد کړې دې، چه داسې نقل کولو سره د دينى ضرر نه علاوه دا هم دى، چه دا خبره خلاف واقع ده، و قد مر منى عن ابن حزم (فى کتاب الملل والنحل) انه لم يرتد الا شرذمة قليلة (فيض البارى)

د حضرت مولانا حبيب الرحمن صاحب سابق مهتمم دارا العلوم ديوبند مضمون " اشاعت اسلام"[1] ددې ارتداد باره کښې د مطالعې قابل دې.

او صاحب دمنهل و کفر من کفر من العرب په شرح کښې ليکلې دى : يعنى د دين نه واؤختل، بيا هغه خلق د کومو باره کښې چه الله تعالى د کفر اراده کړې وه، او د شرائع اسلام نه منکر شول، صلوٰة او زکوٰة ټول ئې پريخودل، او خپل مخکښنى حالت چه جاهليت وو، هغې ته واؤختل، او بعضې دروغژن مدعيان نبوت هم پيدا شو، لکه مسيلمه کذاب د بنو حنيفه نه، او طليحة الاسدى او سجاح بنت الحارث او اسود عنسى په يمن کښې.

په هغې مرتدينو کښې دا قبائل وو، اسد، [2] غطفان، بنو حنيفه په يمامه کښې، او اهل بحرين، ازدعمان، قضاعه او اکثر بنو تميم او بعضې بنو سليم. او بيا مخکښې ئې ليکلې دى، و ثبت على الاسلام اهل المدينة، الله تعالى دوى لره په اسلام مضبوط اوساتل، د

---

[1] په دې کښې حضرت مولانا صاحب ليکلې دى، چه د فتح مکې او د رسول الله ﷺ د وفات په مينځ کښې تقريبا د يونيم کال زمانه ده، (کذا فى الاصل والصواب على الظاهر دوه نيم کاله) په دومره موده کښې په ټول ملک عرب کښې اسلام خور شو، او غالبا په عربو کښې هيڅ يوه قبيله هم ظاهرا د اسلام نه منحرف پاتې نشوه، ليکن په دې نوې مسلمانانو کښې ډير داسې هم وو، چه فى الواقع مسلمانان شوى نه وو، بلکه د خپل قوم په تقليد کښې ئې احکام اسلام ادا کول، او د مسلمانانو په جماعت کښې داخل شوې وو، (بيا مخکښې دې لره مولانا صاحب په شواهد سره ثابته کړې ده) او ډير داسې وو، چه ايمان په هغوى کښې راسخ شوې نه وو، هم د داسې خلقو باره کښې ارشاد دې، قالت الاعراب آمنا قل لم تؤمنوا ولكن قولوا اسلمنا ولما يدخل الايمان فى قلوبكم الآية په دې خلقو کښې ايمان راسخ شوې نه وو، هغوى د اسلام خوند څکلې نه وو، چه د رسول الله ﷺ د وفات سانحه پيښه شوه، ددې وجه نه په دې دوارو ډلو کښې سمدستى يو تحريک پيدا شو، او د ارتداد يوه داسې تيزه هوا راوالوتله، چه اکثر قبائل دهغې نه متاثره شوه (بيا مخکښې ددې تفصيل دې، چه په دې کښې کتاب کښې کتلې شى)

[2] او علامه طيبى رحمه الله ليکى: لکه څنګه چه قبيله غطفان، فزاره او بنو سليم وغيره.

ابوبکر صدیق ﷺ په برکت سره، او دغه شان باقي پاتې شو اهل مکه، د سهیل بن عمرو په وجه، ځکه چه سهیل هم اهل مکې ته هغسې خطبه ورکړه، څرنګه چه صدیق اکبر د نبی کریم ﷺ د وفات په وخت کښې ورکړې وه. او په طائف کښې بنوثقیف هم په اسلام قائم پاتې شو، د عثمان بن ابی العاص په وجه، عثمان هم هغوی ته هغسې خطبه ورکولو سره پوهه کړل، څرنګه چه اهل مکې ته سهیل ورکړې وه. او په اسلام باندې قائم پاتې کیدونکو کښې داقبائل هم دی،اسلم،غفار،جهینة،مزینة،أشجع، هوازن، جشم، او اهل صنعاء وغیره.

او بعضې هغه وو، چه صلوة وغیره امور د دین ئې منل، لیکن د زکوة ورکولو نه ئې انکار کولو، د یوې شبهې په وجه، او دا خلق په اصل کښې باغیان وو، په دوی باندې د کفر اطلاق تغلیظ دې، او څه خلق داسې هم وو، چه د فرضیت زکوة نه منکر شوې وو، او بعضې خلق داسې وو، چه خپله خو ئې زکوة ورکولو، لیکن دهغوی مشران به هغوی لره منع کول، لکه بنی یربوع، لکه هغوی خپل صدقات جمع کړل او صدیق اکبر ﷺ ته ئې د لیګلو اراده اوکړه، نو هغوی لره مالک بن نویره منع کړل، او هغه دغه صدقات په خپلې قبیلې والو باندې تقسیم کړو، دا صورت حال په مسلمانانو باندې ډیر سخت تیر شو، نو ابوبکر صدیق ﷺ ډیر په تلوار سره یوولس جنډې(لواء) تیارې کړې، او دهغې دپاره ئې یوولس قائدین مقرر کړل، په هغوی کښې خالد بن ولید ﷺ عکرمه بن ابوجهل ﷺ او عمروبن العاص ﷺ هم وو،

فقاتلوا اهل الردة حتی رجعوا الی الاسلام وقاتلوا المتنبین حتی قتل مسیلمة بالیمامة والاسود العنسی([1]) بصنعاء و هرب طلیعة الاسدی و سجاح بنت الحارث و اسلما بعد ذالک، و قاتلوا مانعی الزکوة حتی ادوها وقطع دابر القوم الذین ظلموا والحمد لله رب العالمین. ا هـ

## د حدیث جزء ثانی، د فاروق اعظم ﷺ اشکال:

کیف تقاتل الناس و قد قال رسول الله(صلی الله علیه وسلم) امرت ان اقاتل الناس حتی یقولوا لا اله الا الله فمن قال لا اله الا الله عصم منی ماله و نفسه الا بحقه و حسابه علی الله. صدیق اکبر ﷺ چه کله د مانعین زکوة سره د قتال اراده اوکړه، نو په هغې فاروق اعظم ﷺ اشکال اوکړو، چه دا خلق کلمه وائي، مسلمانان دی، او د نبی کریم ﷺ ارشاد دې، چه ماته د خلقو سره د قتال حکم راکړې شوې دې، تردې پورې چه هغوی د شهادتین اقرار اوکړی.

---

[1]) د اسود عنسی قتل د نبی کریم ﷺ په حیات کښې شوې وو، فیروز نومې صحابی هغه لره د نبی کریم ﷺ په حکم قتل کړې وو، په دې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: فاز فیروز دهغه د قتل اطلاع نبی کریم ﷺ ته د وحی په ذریعې شوې وه، حضرت فیروز ﷺ دهغه د قتل نه پس دهغه د قتل اطلاع د کوم قاصد په ذریعه چه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې رالیږلې وه، د هغه مدینې منورې ته رارسیدو نه یوه ورځ مخکښې د نبی کریم ﷺ وفات شوې وو، البته د وحی په ذریعه نبی کریم ﷺ ته خبر شوې وو، چه دهغې تذکره رسول الله ﷺ صحابه کرام ته فرمائیلې وه، صحابؤ عرض اوکړو چه چا قتل کړې دې، نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه یو مبارک سړې، فاز فیروز. د اسوعنسی او مسیلمه کذاب د دواړو د قتل واقعه مؤرخینو د سنه ۱۱ هـ په واقعو کښې ذکر کړې دی، د اسود قتل د نبی کریم ﷺ د وفات نه مخکښې او د مسلیمه قتل د وفات نه پس د صدیق اکبر ﷺ په زمانه کښې د مرتدینو سره په جنګ یمامه کښې شوې وو)

په دې حديث کښې اقرار دشهادتين لره د قتال غاية مقرر کړې شوې ده، او داچه د شهادت نه پس سړې معصوم الدم والمال کيږي، او دهغه جان او مال سره تعرض جائز نه دې، بيا تاسو دهغوی سره د قتال اراده څرنګه فرمايئ ؟

په دې صديق اکبر رضي الله عنه اوفرمائيل : و الله لاقاتلن من فرق بين الصلوة والزكوة فان الزكوة حق المال ترجمه : والله زۀ به ضرور قتال کوم، دهغې خلقو سره چه د صلوة او زکوة په مينځ کښې فرق کوی، چه د صلوة خو قائل دی او د زکوة قائل نه دی، او په دليل کښې ئې دا اوفرمائيل : چه زکوة په حقوق اسلام کښې حق المال دې، ددې مقابل د قرينې د مقام سره په پوهه کښې راځی يعنی کما ان الصلوة حق البدن يعنی څرنګه چه د حق البدن تارک سره قتال کولې شی، دغه شان د حق المال تارک سره هم قتال کول پکار دی، ددې نه په ظاهر کښې دا معلوميږي، چه د تارک صلوة باره کښې د ټولو صحابه کرامو په ذهن کښې داوه، چه دهغه سره قتال کول پکار دی.

## د صديق اکبر رضي الله عنه د جواب خلاصه :

د صديق اکبر رضي الله عنه د جواب خلاصه دا شوه، چه خپله دا حديث کوم چه تاسو پيش کوئ، دلالت کوی، چه مقاتله بحق الاسلام او بحق الکلمة جائز دې، يعنی چه کوم سړې سره د کلمې وئيلو په حقوق اسلام کښې يو حق پريږدی، نو دهغه سره د قتال اوکړې شی، شارحينو ليکلې دی، چه خليفه ثانی خو يا الا بحقه دې استثناء طرف ته التفات اونه فرمائيلو، د څه په وجه ئې چه اشکال اوکړو، او يا دهغوی د اشکال وجه دا وه، چه هغوی دا ګڼړل، چه صديق اکبر دا قتال هغوی سره د هغوی دکفر په وجه کوی، د صديق اکبر د جواب نه معلومه شوه، چه دا ارادهٔ دقتال د کفر په وجه نه وه، بلکه دفرق بين الصلوة والزکوة په وجه ده، او ددې فرق دوه صورتونه کيدې شی، يو داچه د فرضيت دزکوة نه انکار وی، دويم داچه انکار صرف د اداء الی الامام نه وی، اول صورت اګر چه کفر دې، ليکن د شرک پشان کفر صريح نه دې، او قتال څرنګه چه د کفر صريح په وجه کيږي، دغه شان د کفر غير صريح په وجه هم کيږي، او دويم صورت يعنی اداء الی الامام نه انکار، دا کفر نه دې، بلکه بغاوت دې، او د باغيانو سره هم قتال مشروع دې.

## د شيخينو اختلاف او مناظره د کومې ډلې باره کښې وه :

د بعضو مصنفينو د کلام نه معلوميږي، چه دا مناظره د مرتدينو او مانعين زکوة ټولو باره کښې وه، دا خو غلطه ده.[1] لکه اکثر شارحينو دا مناظره صرف فارقين بين الصلوة

[1] دلته سوال پيدا کيږي، چه راوی خو ددې مناظرې په تمهيد کښې په خپله وائي و کفر من کفر من العرب ددې په ظاهر کښې تقاضا داده، چه دا اختلاف او مناظره د ټولو باره کښې وه؟ جواب دادې، چه په ظاهر کښې غلط فهمی هم ددې لفظ نه کيږي، حالانکه د راوی غرض په دې جملې سره دهغې وخت عام حالت او فضا بيانول دی، نه دا خبره بيانول، چه مناظره دهغې خلقو باره کښې وه، او که ددې تعلق دهغې خلقو سره اومنلې شی، دکومو باره کښې چه مناظره وه، نو دا هم کيدې شی، ځکه چه په دې مانعين زکوة کښې بعضې جاحدين زکوة هم وو، او بعضې صرف منکرين اداء وو، نو قسم اول خو واقعة کافر وو، او قسم ثانی چه باغيان وو، په هغوی د کفر اطلاق تغليبا دې

والزکوة باندې محمول کړې ده، که هغه فارقین جاحدین زکوة وی، یا مانعین زکوة، لیکن زمونږ مشائخ فرمائي چه دا مناظره او اختلاف د جاحدینو باره کښې هم نه وه، څکه چه هغوی خو کافر دی،(څکه چه په ضروریات دین کښې د یو څیز نه انکار کفر دی) دهغوی سره قتال کښې څه اشکال کیدې شی، بلکه مناظره صرف دمانعین اداء الی الامام باره کښې وه، چه باغیان وو، او ددې تائید د حدیث ددې جملې نه هم کیږی، والله لو منعونی عقالا کانوا یؤدونه الی رسول الله(صلی الله علیه وسلم) لقاتلتهم علی منعه، هم دا خبره حضرت په بذل کښې هم لیکلې ده، و تبعه صاحب المنهل.

**د اشکال منشاء :**

شارحینو لیکلې دی، چه داسې معلومیږی، چه حضرت عمر رضی الله عنه ته دا حدیث صرف دومره رسیدلې وو، یا دغه وخت کښې هغه ته صرف دومره یاد وو، حتی یقولوا لا اله الا الله ګنی په صحیح بخاری کښې خپله د حضرت عمر رضی الله عنه د ځوی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه په حدیث کښې حتی یشهدوا ان لا اله الا الله وان محمد رسول الله ویقیموا الصلوة و یؤتوا الزکوة موجود دې، بلکه د صحیح مسلم په یو حدیث کښې چه د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې، دادې، حتی یشهدوا ان لا اله الا الله ویؤمنوا بی و بما جئت به که هغوی ته دا ټول حدیث مستحضر وو، نو بیا اشکال هم نه واردیږی، دغه شان حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته هم غالبا دومره یاد وو، ګنی زکوة لره په صلوة باندې قیاس کولو یا د الابحقه نه استنباط کولو هیڅ ضرورت به پیش نه راتلو، او دا هم ممکن ده، چه د صدیق اکبر رضی الله عنه په علم کښې پوره حدیث وو، لیکن په دلیل نظری سره ئې ثابتول غوختل، او ګویا تنبیه وه، عمر فاروق رضی الله عنه ته چه که تا په خپل بیان کړې شوې حدیث کښې غور کړې وې، نو اشکال به پیښ شوې نه وو.

**فقهی مسئله :**

دلته سوال پیدا کیږی، چه د مانع زکوة باره کښې فقهاء څه فرمائي؟

جواب دادې، چه امام بخاری په صحیح بخاری ص۱۰۲۳ کتاب استتابة المرتدین کښې یو مستقل باب ددې مسئلې باره کښې قائم کړې دې، باب قتل من ابی قبول الفرائض او په هغې کښې امام بخاری رحمه الله دا د مناظره شیخین والا حدیث ذکر کړې دې، ددې باب په ذیل کښې علامه عینی او نورو شارحینو لیکلې دی، چه که یو سړې په فرائض اسلام کښې د یو فرض نه انکار اوکړې، نو که د نفس فرضیت نه ئې انکار کړې وی، نو هغه په مرتد وی، د مرتد احکام به په هغه جاری کولې شی، یعنی قتل بعد الاستتابة او که د فرضیت قائل وی، لیکن د اداء نه انکار کوی، نو بیا د احنافو مذهب دادې، چه هغه لره به قتلولې نشی، او نه به دهغه سره جنګ کولې شی، بلکه په زور به ترې زکوة اخستلې شی، په شرط ددې چه هغه ډلې والا نه وی، او مقابله نه کوی، او که هغه ډلې والا وی، او د محاربې دپاره تیار وی، نو بیا به امام المسلمین دهغه سره قتال کوی، پس صدیق اکبر رضی الله عنه چه دهغې مانعینو سره قتال کړې وو، هغه ددې نصب قتال د وجې نه وو،(چه دا مانعین د قتال دپاره خپله تیار وو) د تارک صلوة حکم په جلد ثانی کښې د کتاب الصلوة په شروع کښې په تفصیل سره تیر

شوې دې، هغې لره هم کتل پکار دی.
په دې حدیث کښې دی، الا بحقه دا ضمیر اسلام طرف ته راجع دې، چه د مقام د قرینې نه پوهه کښې راځی، او د بخاری شریف په یو روایت کښې ددې تصریح هم ده، او علامه طیبی ضمیر راجع کړې دې، قول طرف ته، چه په هغې باندې فمن قال دال دې، یعنی بحق هذا القول ای قول لا اله الا الله. وحسابه علی الله یعنی چه کوم سړې کلمه توحید یعنی لا اله الا الله اووائي، او خپل اسلام ظاهر کړی، نو مونږ به هغه سره مقاتله پرېږدو، او دهغه د باطن حال تفتیش به نه کوؤ، چه آیا هغه مخلص دې، یا منافق، د باطن معامله الله تعالی ته حواله ده، البته د اسلام د حق دپاره به قتال ضرور کوؤ، مثلا حدود، قصاص او منع عن الصلوة والزکوة وغیره.
والله لو منعونی عقالا : زیاتی صدیق اکبر رضی الله عنه دا هم اوفرمائیل : چه که هغې خلقو د زکوة یوه رسئ هم ماته د راکولو نه انکار اوکړو، نو زۀ به په هغې هم قتال کوم، د عقال په تفسیر کښې څو اقوال دی:
(۱) بعضو دې لره په خپل ظاهر باندې ایخودلې دې، یعنی د رسئ یوه ټکړه، اوس دا چه رسئ په زکوة کښې چرته اوړلې شی، نو هغوی وئیلې دی، چه دا د مبالغې په طور باندې دې، چه که یو سړې په زکوة کښې قدر قلیل (چه په قیمت کښې د رسئ برابر وی) هم ادا کوی نه، پوره زکوة خو جدا خبره ده.
(۲) د عقال اطلاق په صدقه عام (د یو کال زکوة) باندې کیږی، او د دواؤ کالو زکوة ته عقالان وئیلې شی، دا قول د بعضې اکابر اهل لغت نضر بن شمیل، ابوعبید مبرد وغیره نه منقول دې،
(۳) ددې نه مراد هغه رسئ ده، چه په هغې څاروی لره تړی او ساعی ته ئې ورکوی، ځکه چه د څاروی په زکوة کښې د تسلیم تحقق عادة ددې نه بغیر نه کیږی،
(۴) یو قول دادې، چه عقال وئیلې شی، قلوص ته (یعنی ځوانه اوښه) مطلب داشو، چه که یوه اوښه ورکولو نه انکار کوی، نو په دې به هم قتال کوم، ددې نه زیات باندې خو به طریقه اولی قتال کوم.
(۵) ددې نه د زکوة رسئ مراد ده، لکه یو سړې درسو تجارت کوی، نو ظاهر ده، چه دهغه په زکوة کښې به رسئ واجبه وی، ځکه چه په عروض تجارت کښې زکوة واجب وی، لیکن دا قول بس هسې دې، ځکه چه په دې کښې د رسئ د تخصیص وجه څه ده؟
فعرفت ان الحق : فاروق اعظم رضی الله عنه فرمائي چه ماته یقین اوشو، چه د صدیق اکبر رائي حق ده، دا یقین څرنګه اوشو؟ ظاهره ده، چه په هغې دلیل سره چه دهغه په کلام او په دې مناظره کښې مذکور دې، د کوم چه تشریح تیره شوه، او دا مطلب نه دې، چه ما دهغه په مخکښې وسله اوغورزوله، او دهغه خبره مې تقلیدا تسلیم کړه، ځکه د یو مجتهد دپاره د بل مجتهد تقلید جائز نه دې.

قال بعضهم عقالا..... قال عناقا : عقال خو د عين په کسرې سره دې، د هغې تشريح تيره شوې ده، او عناق د عين په فتحې سره دې، د بزې بچې، چه د يو کال نه کم وی، په دې لفظ کښې د راويانو اختلاف دې، بعضو عقالا وئيلې دې، او بعضو عناقا، زيات تر شارحين د شوافعو نه عناق ته ترجيح ورکوی، پس امام بخاری تصريح فرمائيلې ده، هو الاصح ددې يوه وجه دا هم کيدې شی، چه دې سره يوه اختلافی مسئله متعلق ده، چه دهغې تعلق د زکوة سوائم سره دې، او د عناق کيدو په صورت کښې په ظاهر کښې د شوافعو په هغې سره تائيد کيږی، هغه مسئله داده، چه که ديو سړې په ملک کښې صرف صغار څاروی وی، نو په هغې کښې به زکوة واجب وی او که نه، په دې کښې درې مذهبه دی،

۱. امام مالک او امام زفر رحمه الله فرمائي يجب فيها ما يجب فی الکبار

۲. امام ابو يوسف او امام شافعی رحمه الله فرمائي يحب واحد منها يعنی بچې به په زکوة کښې واجبيږی.

۳. طرفين(امام ابو حنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله) فرمائي لا يجب فيها شیء. د دې دواړو په نزد په سائمه کښې د وجوب زکوة دپاره مخصوص عمر شرط دې، هغه داچه يا خو ټول په ټوله مسنه وی، يا کم از کم بعضې په هغې کښې مسنه وی، او بعضې صغار وی، که هغه ټول په ټوله صغار وی، يعنی فصلان،[۱] حملان او عجاجيل وی، نو بيا په هغې کښې زکوة واجب نه دې.

په جوهره نيره کښې ليکلې دی، چه کم نه کم عمر په اوښانو کښې چه په هغې کښې زکوة واجبيږی، بنت مخاض دې، او په بقر کښې تبيع او په غنم کښې ثنی(دا ټول په ټوله د يو کال وی، د دې نه کم نه) لهذا د دې دواړو په نزد به په صغار سوائم کښې زکوة بالکل وی نه،او که د صغار سره کبار هم وو، اگر که صرف يو وی، نو بيا به په صغار کښې زکوة واجب وی، تبعا للکبير ،[۲] گويا په صغار سره د نصاب تکميل خو کيږی، ليکن انعقاد نه کيږی، او په زکوة کښې به بچې په دې صورت کښې هم اخستلې کيږی نه، مثلا د يو سړې په ملکيت کښې د غنم نصاب يعنی څلويښت بزې وې، د کال دوران کښې هغوی څلويښت بچی راوړل، بيا هغه بزې د کال پوره کيدو نه مخکښې مړې شوې، او په هغې صغار باندې کال پوره شو،( يعنی حول الامهات) نو په دې صورت کښې د طرفينو په نزد په دې صغار کښې به زکوة واجب نه وی، او د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد د حول الامهات پوره کيدو باندې به زکوة واجب وی، دهغه په نزد حول الامهات هم حول الاولاد دې. [۳]

---

[۱] ) فصلان جمع فصيل ولد الناقة اذا فصل عن امه، حملان جمع حمل(بفتحتين) ولد الشاة عجاجيل جمع عجول، بروزن سنور بمعني العجل ولد البقر)

[۲] ) وفي القدوري وليس في الفصلان والعجاجيل والحملان صدقة عند ابي حنيفة و محمد الا ان يکون فيها کبار ا هـ)

[۳] ) ددې مسئلې فقهاؤ څو مثالونه او صورتونه بيان کړې دی، او د بيانولو وجه داده، چه دا مسئله مشکله ده، خکه چه دا ونيل چه په صغار کښې زکوة واجب نه دی، په ظاهر کښې د ......←

د دې اختلاف نه معلومه شوه، چه د امام ابو يوسف او امام شافعي رحمه الله په نزد د صغار په زکوة کښې صغير واجب دې، لهذا د عناق والا روايت د دواړو حضراتو موافق او مويد شو، او د احنافو وغيره خلاف.

جواب دادې، چه د صديق اکبر رضي الله عنه دا کلام تعليقا دې، چه که بالفرض داسې وی نو زۀ به داسې کوم، لهذا دې لره دليل ګرځول څرنګه صحيح دی، او دهغوی دا کلام په طريقې د مبالغې دې، لکه په بل روايت کښې لفظ عقال دې، عقال په زکوة کښې کله واجبيږی؟ اوکه بالفرض هم دا مرادوی کوم چه تاسو وايئ، نوددې جواب دادې، چه داحديث دهغې حديث مرفوع خلاف دې، چه مخکښې په باب زکوة السوائم کښې راروان دې. (بذل ۳ ص ۲۰)

يعنی د سويد بن غفله حديث چه دهغې الفاظ دادی: ان لا تاخذ من راضع لبن قال صاحب المنهل ای لا تاخذ صغيرا يرضع اللبن او هم دا معنی شيخ ابن الهمام هم بيان کړې ده، کمافی البذل ۳ص ٤) اګر چه شوافع شارحينو ددې دويمه معنی اخستلې ده، هغه داچه دلته مضاف مخذوف دې، ای ذات راضع لبن يعنی پئ ورکونکې بزه به په زکوة کښې نه اخستلې کيږی، ځکه چه هغه خيار مال دې، او زکوة اخستلې کيږی د اوساط مال نه. والله سبحانه و تعالی اعلم الحمد الله د حديث شرح پوره شوه.

[۱۵۵۷] (۱) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّ حَقَّهُ أَدَاءُ الزَّكَاةِ، وَقَالَ: عِقَالًا.

يونس د زهری نه دا حديث روايت کړې دې او فرمائيلي ئې دی چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه اوفرمائيل: دَ مال حق دې چه زکات ادا کړې شی - او په دې روايت کښې لفظ دَ [عقالاً] ''رسئ'' دې -

## بَابُ مَا تَجِبُ فِيهِ الزَّكَاةُ

### باب: ۲ - په کومو څيزونو کښې زکات واجب دې؟

د ترجمې الفاظ د دواؤ معانيو احتمال لری:

(۱) دهغې څيزونو بيان په کومو کښې چه زکوة واجب وی.

(۲) د مال هغه مقدار په کوم کښې چه زکوة واجب وی، يعنی نصاب دزکوة د حضرت شيخ ميلان په حاشيه د بذل کښې اول طرف ته دې، او صاحب بذل او منهل دويمه معنی اخستلې ده، وهو الظاهر عندی.

---

ﻟـه ......اشکال باعث دې، ځکه چه زکوة واجب کيږی د حولان حول نه پس، او د کال پوره کيدو نه پس په هغوی باندې د فصلان يا حملان اطلاق صحيح نه دې، په نور الفاظو کښې داسې اوايئ، چه هغه صغار صغار نه پاتې کيږی، بيا ددې څه مطلب دې، چه په صغار کښې زکوة واجب نه دې؟ ددې وجه نه فقهاء ددې په توجيه کښې مختلف صورتونه بيانوی، (زيلعی) د توجيه حاصل دادې، چه په کال کښې بچو لره د ميندو تابع ساتلې شوی دی، او بيا د اصولو کال لره د فصولو کال اوګنړلې شو.

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ١٠٦٦٦) (صحيح)

## زکوة په کومو کومو څیزونو کښې واجب دې؟

مشهوره ده، چه زکوة په دریو څیزونو کښې واجب دې:
(۱) نقدین (ذهب او فضه) (۲) عروض تجارت (۳) سوائم (ابل، بقر، غنم)
په زروع او ثمار کښې چونکه عشر یا نصف عشر واجب وی، ددې وجې نه هغه جدا ذکر کوی، ځکه چه شرعی زکوة خو ربع العشر یعنی د څلویښتمې حصې نوم دې.

### (د زکوة اقسام)

صاحب بدائع فرمائي چه د زکوة دوه قسمه دی، فرض او واجب، فرض خو زکوة المال دې، او واجب زکوة الراس یعنی صدقة الفطر، او د زکوة المال دوه قسمه دی:
(۱) زکوة الذهب والفضة، و اموال التجارة والسوائم.
(۲) زکوة الزروع والثمار (غله اود اونو میوې) اوهغه عشر دې یانصف عشر. (اوجز ۳ص ۱۴۱)
او پیژندل پکار دی، چه د نقدین او سوائم نصاب خو مقرر دې، او په مال تجارت کښې د قیمت اعتبار دې، او په زروع او ثمار کښې اختلاف دې، چه دهغې دپاره نصاب شرط دې او که نه کما سیاتی او بعضې څیزونه داسې دی، چه په هغې کښې وجوب زکوة مختلف فیه دې، لکه بقول او حضراوات. ([1])

[۱۵۵۸]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُاللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَ: قَرَأْتُ عَلَى مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ يَحْيَى الْمَازِنِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ ذَوْدٍ صَدَقَةٌ، وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسِ أَوَاقٍ صَدَقَةٌ، وَلَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ صَدَقَةٌ".

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د پنځهٔ اوښانو نه په کمو کښې زکات نشته دې - او د پنځهٔ اوقیو (سپینو زرو) نه په کمو کښې زکات نشته دې او د پنځهٔ وسقو (غلې) نه په کمو کښې زکات نشته دې -

**حدثنا عبدالله بن مسلمة...... سمعت ابا سعید الخدری یقول قال رسول الله (صلی الله علیه وسلم) لیس فیما دون خمس ذود صدقة ولیس فی ما دون خمس اواق صدقة و لیس فی ما دون خمسة اوسق صدقة.**

دا حدیث متفق علیه دې، (په صحیح مسلم او بخاری دواړو کښې دې) په دې کښې د دریو څیزونو د نصاب بیان دې، نصاب ابل، نصاب ورق (فضة) او نصاب الزرع والحبوب، یعنی د زمکې د پیداوار نصاب، چه په هغې کښې عشر یا نصف عشر واجبیږی، اوس د هر یو

---

[1] ) د احنافو په نزد په کومو څیزونو کښې چه زکوة واجب دې، که هغې تولو لره تفصیلا شمار کړې شي، نو هغه تول نهه دی، ذهب، فضة، مال تجارت، سوائم، چه درې دی، ابل بقر او غنم، زروع، ثمار، عسل، ددې نه علاوه په دواؤ کښې اختلاف دې د امام صاحب او صاحبینو، او د حضروات امام صاحب قائل دې، صاحبین نه.

[2] ): صحیح البخاري/الزکاة ٤(١٤٠٥)، ٣٢(١٤٤٧)، ٤٢(١٤٥٩)، ٥٦(١٤٨٤)، صحیح مسلم/الزکاة ١(٩٧٩)، سنن الترمذي/الزکاة ٧(٦٢٦)، سنن النسائي/الزکاة ٥(٢٤٤٧)، ١٨(٢٤٧٥)، ٢١(٢٤٧٨)، ٢٤(٢٤٨٥، ٢٤٨٦، ٢٤٨٩)، سنن ابن ماجه/الزکاة ٦(١٧٩٣)، (تحفة الأشراف: ٤٤٠٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزکاة ١(١)، مسند احمد(٦/٣، ٣٠، ٤٥، ٥٩، ٦٠، ٧٣، ٧٤، ٧٩)، سنن الدارمي/الزکاة ١١(١٦٧٣)(صحیح)

باره کښې ترتیب وار واؤرئ.

(۱) نصاب ابل خمس ذود بیان کړې شوې دې، د ذود اطلاق په جماعت دابل باندې کیږی، د دریو نه لسو پورې، او وئیلې شوې دی، چه د دواؤ نه نهو پورې، ددې مفرد من لفظه نه راځی، لکه لفظ قوم او رهط.

**(د خمس ذود تلفظ)**

خمس ذود لره دواؤ طریقو سره وئیلې شی، په اضافت سره خمس ذود، او د خمس په تنوین سره خمس ذود په دې صورت کښې به ذود بدل وی، د خمس نه، او دخمس ذود نه مراد به خمس ابل من الذود وی، (د اوښانو نه پنځه) او متبادره معنی یعنی خمسة اذواد مراد نه دې، ځکه چه پنځه ذود خو کم نه کم پنځلس اوښان به شی، چه مراد نه دی، (۱) دا مسئله اجماعی ده، چه نصاب دابل پنځه اوښان دی.

(۲) نصاب فضه خمس اواق دی، اواق د اوقیة جمع ده، یعنی څلویښت درهمه، د پنځو اوقیو دوه سوه درهمه کیږی، په حساب د وزن سبعة، (۲) یعنی داسې چه هر لس درهمه د اووه مثقالو برابر وی، په دې اعتبار سره دوه سوره درهمه (۳) به د یو سل څلویښت مثقالو برابر وی، په نصاب فضه کښې د علماؤ په دې اجماع ده، قاله الحافظ.

**(د اوقیه وجه تسمیه)**

لفظ اوقیة د وقایة نه ماخوذ دې، او وجه تسمیه داده، چه دومره مقدار دراهم سړې لره د محتاجئ نه بچ ساتی.

(۳) اوسق، د وسق جمع ده، یو وسق د شپیتو صاعو برابر وی، او پنځه وسق د درې سوه صاع برابر وی، تقریبا پنځویشت من.

د زمکې دپیداوار (زرعی پیداوار) نصاب په دې حدیث کښې پنځه وسق مقرر کړې شوې دې، په زروع او ثمار کښې بالاتفاق په یو صورت کښې نصف العشر واجب دې، (د صدقة الزرع مستقل باب مخکښې راروان دې) لیکن په دې کښې اختلاف دې، چه معشرات یعنی په کومو څیزونو کښې چه عشر واجب دې، دهغې دپاره څه خاص مقدار او نصاب شرط دې، ځرنګه چه د زکوة دپاره دې، او که نه؟ ائمه ثلاثة او صاحبین په دې کښې هم د نصاب قائل دی، او هغه نصاب هم دادې، چه په دې حدیث کښې ذکر دې، یعنی پنځه وسق، او یو جماعت د علماؤ لکه ابن عباس، عمربن عبدالعزیز، ابراهیم نخعی، مجاهد، او امام ابوحنیفة د وجوب عشر دپاره د نصاب قائل نه دی، بلکه قلیل او کثیر تولو کښې واجب منی.

---

[۱] ) یا دې داسې اونیلې شی، چه دلته کښې د ذود استعمال دمطلق ابل دپاره دې، په خپل اصلی معنی کښې نه دې.

[۲] ) دراهم به د وزن په اعتبار سره مختلف وو، وزن سبعة، وزن ستة او وزن خمسة وغیره.

[۳] ) او د جدید وزن یعنی ګرام په اعتبار سره دواؤ سوو درهمو باره کښې د حساب کونکو اقوال مختلف دی (۱) ۵۹۵ ګرام (۲) ۶۰۹ ګرام (۳) ۸۱۲ ګرام، او نصاب د ذهب چه شل مثقاله دی، دې باره کښې هم درې اقوال دی، (۱) ۸۵ ګرام (۲) ۸۷ ګرام (۳) ۹۰ ګرام (التسهیل الضروری)

**امام صاحب او څوک چه ددوی سره موافق دی، هغوی دپاره دلیل :**

د بعضو آیاتونو او احادیثو په بناء مثلا وآتوا حقه یوم حصاده، انفقوا من طیبات ما کسبتم و مما اخرجنا لکم من الارض، او احادیث صحیحه چه په کتب صحاح کښې موجود دی، دهغې نه حدیث د ابن عمر رضی الله عنه چه په صحیح بخاری کښې مرفوعا روایت دې، فیما سقت السماء والعیون العشر و ما سقي بالنضح نصف العشر او ددې مضمون بل حدیث چه په صحیح مسلم کښې د حضرت جابر رضی الله عنه نه مرفوعا روایت دې، فیما سقت الانهار والغیم العشور و فیما سقی بالسانية نصف العشر او دا دواړه احادیث په دې کتاب کښې په باب صدقة الزرع کښې راروان دی، دا آیتونه او احادیث عام او مطلق دی، ددې نه معلومیږی، چه په زرعی پیداوار کښې بغیر د نصاب د قید نه په یو صورت کښې (چه په هغې کښې د اوبو مشقت برداشت کړې شوې وی) نصف عشر واجب دې، او که هغه زمکې بارانی وغیره وې، چه په هغې کښې د اوبو راویستلو مشقت برداشت کول نه وی، په هغې کښې عشر واجب دې، قاضی ابوبکر ابن العربی مالکی فرمائي اقوی المذهب مذهب ابی حنیفة رحمه الله دلیلا واحوطها للمساکین واولاها قیاما شکر النعمة.

**د جمهورو د طرف نه تنقید او زمونږ د طرف نه جواب :**

د جمهورو د طرف نه حافظ ابن حجر تبعا للحافظ ابن القیم ددې حدیث جواب دا ورکړې دې، چه ددې نه مقصود صرف په دې دواړو زمکو کښې فرق بیانول دی، چه په هغې کښې د یوې په پیداوار کښې عشر او د بلې په پیداوار کښې نصف عشر واجب دې، نصاب او عدم نصاب ته په کښې هیڅ مداخلت نشته، بلکه په دې لحاظ سره دا حدیث (ابن عمر، وجابر) مجمل دې، او حدیث د ابوسعید خدری رضی الله عنه یعنی حدیث الباب مفسر دې، او مفسر قاضی وی په مجمل باندې، [1]

زمونږ د طرف ته په جواب کښې وئیلې شوې دی، چه په حدیث کښې اجمال نشته، بلکه اثبات دعموم دې، ځکه چه لفظ دما دعموم دپاره دې، او دا وئیل چه مقصود صرف تمیز دې، بین العشر و نصف العشر، دا د حدیث افادیت کمول دی، بلکه د حدیث مطلب دا دې، چه د زمکې په پیداوار کښې مطلقا په یو صورت کښې عشر او په بل صورت کښې نصف العشر دې، او د مفسر دپاره ضروری ده، چه د مفسر ټولو افرادو ته شامل وی، او دلته داسې نه دی، ځکه چه په حدیث دابن عمر و جابر کښې د هر قسم پیداوار ذکر دې، که هغه مکیلې او موسوقی وی، او که نه وی، لکه زعفران وغیره، او حدیث دابو سعید خدری رضی الله عنه چه هغې لره تاسو مفسر وئیل غواړئ، دهغې تعلق صرف موسوق او مکیل سره دې، د غیر موسوق حال په هغې کښې بیان شوې نه دې، ددې وجه نه داؤد ظاهری دا مسلک اختیار

[1] ) هغوی داسې هم وائي چه حدیث دابوسعید رضی الله عنه خاص دی، او حدیث دابن عمر رضی الله عنه عام دې، او خاص ته تقدم حاصل دې، په عام باندې، زمونږ د طرف نه وئیلې شوې دی، چه اول خو د احنافو په نزد عام او خاص دواړه په قوت کښې برابر وی، دویمه داچه مونږ سره هم خاص حدیث موجود دې، روي عن الطحاوي عن جابر بن عبدالله مرفوعا في کل عشرة اقناء قنو يوضع في المساجد للمساکین (اوجز عن العرف الشذی)

کړې دې، چه د زمکې په پیداوار کښې کوم څیزونه موسوق یعنی مکیلی دی، لکه تمام اجناس او غلې، دهغې دپاره خو نصاب شرط دې، کوم چه په دې حدیث کښې مذکور دې، او کوم څیزونه چه غیر موسوق دی، مثلا زعفران او مالوچ وغیره په هغې کښې د نصاب قید نشته، کما فی حدیث ابن عمر ګویا هغه د جمع بین الحدیثین دا شکل اختیار کړې دې.

## د امام صاحب د طرف نه د حدیث الباب توجیه :

اوس پاتې شوه دا مسئله چه د حدیث الباب څه حل دې، نو دې باره کښې د امام صاحب نه مختلف توجیهات منقول دی، چه هغې لره حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې یوځائي جمع کړې دی، په هغې کښې مونږ یوڅو دلته ذکر کوؤ.

(۱) تاسو دا اوګنړئ، چه د صدقې اطلاق په زکوة او عشر دواړو باندې کیږی، په دې حدیث کښې د دریو څیزونو نصاب بیان شوې دې، ابل، فضه، حبوب او ثمار، په دریو واړو ځایونو کښې لفظ صدقه مذکور دې، په اولنی دواؤ ځایونو کښې د صدقې نه بالاتفاق زکوة مراد دې، په دریم ځائي کښې جمهورو د صدقې نه عشر مراد اخستلې دې، ددې وجه نه دا حضرات په عشر کښې هم د نصاب قائل دی، او د امام صاحب د طرف نه وئیلې شوې دی، چه په دریم ځائي کښې هم د صدقې نه زکوة مراد دې، او د خمسة اوسق نه مراد هغه غله نه ده، چه په خپلې کروندې سره حاصله کړې شوې وی، لکه چه جمهور څرنګه ګنړی، بلکه ددې نه هغه غله مراد ده، چه تجارتی وی، چه هغې لره سړې په څه ذریعې سره تجارت دپاره حاصله کړې وی، او په مال تجارت کښې د وجوب زکوة دپاره نصاب بالاتفاق شرط دې، چه په هغې کښې د قیمت اعتبار دې، کوم مال تجارت چه په قیمت کښې د دواؤ سوو درهمو برابر وی، په هغې کښې زکوة واجب دې، او د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې د یو وسق غلې قیمت عام طور باندې د یوې اوقیئ برابر وو، لهذا پنځه وسق غله د پنځو اوقیو چانديئ برابر شو، چه نصاب دفضه دې، د حضرت ګنګوهی رحمه الله رائي ئې په الکوکب الدری کښې داسې لیکلې ده، چه خلق (د غلې تاجران) د اجناسو د قیمتونو تفتیش او تحقیق کوی، دې دپاره چه هغوی ته دا معلومه شی، چه مونږ سره کومه غله ده، هغه د نصاب برابر ده او که نه، دې دپاره چه په هغې اعتبار سره دهغې زکوة ادا کړې شی، په دې نبی کریم ﷺ په هغې زمانه کښې د اجناسو د قیمت مطابق یو تقریبی تحدید تجویز کړو، اوس داچه د ټولو غلو قیمت خو برابر نه وی، نو بیا پنځو وسقو لره معیار څرنګه جوړولې شی؟ حضرت په خپله دا اشکال ذکر کولو نه پس لیکلې دی، چه ممکن ده، چه نبی کریم ﷺ د خلقو د آسانتیا او دفع دحرج دپاره توسعا دامقدار تجویز فرمائیلې وی، والله تعالی اعلم.

په دې توجیه کښې هیڅ لرې والې نشته، د اکابر قدماء نه منقول ده، او ددې نظیر هم په باب الزکوة کښې موجود دې، مسئلة الخرص، چه دهغې جمهور قائل دی، او بیا لسان شارع، اګر که هغه د اندازې د قبیلې نه وی، په هر حال کښې حجت شرعیه دی.

(۲) یوه توجیه دا کړې شوې ده، چه ددې حدیث تعلق د عاشر سره دې، او مطلب دادې، چه عاشر ته دهغې د عشر اخستلو حق کومو زمیندارو سره چه معمولی شان کرونده شوې وی،

نشته، بلکه هغوی په خپله هغه ادا کولې شي، البته کومو زمیندارو سره چه ډیر پیداوار شوې دې، کم از کم پنځه وسق، دهغوی نه زکوة اخستل د عاشر حق دې، زمونږ حضرت شیخ به دې جواب لره زیات خوښولو.

(۳) دا حدیث په عریه باندې محمول دې، او عریه لکه څرنګه چه په احادیثو کښې وارد دی، په مادون خمسة اوسق کښې وی، (کما سیجيء فی کتاب البیوع) عریه د هبې یوه خاصه طریقه ده، یعنی د احنافو او د جمهورو په نزد ددې حقیقت بیع ده، بهر حال چه کله مالک یو څیز هبه کړو، یا ئې خرچ کړو، نو بیا په هغې کښې زکوة څرنګه واجب دې، دا جواب د ابو عبید قاسم بن سلام نه په کتاب الاموال کښې منقول دې، چه د غریب الحدیث لوئې امام دې، دا جواب د شاه صاحب نه په عرف الشذی کښې منقول دې، د هلته نه حضرت شیخ په اوجز کښې نقل کړې دې،......دا ټول درې جوابونه شو، څوک چه زیات جوابونه غواړی هغه دې اوجز المسالک ته رجوع اوکړی.

[۱۵۵۹](۱) حَدَّثَنَا أَيُّوبُ بْنُ مُحَمَّدٍ الرَّقِّيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا إِدْرِيسُ بْنُ يَزِيدَ الْأَوْدِيُّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ الْجَمَلِيِّ، عَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ الطَّائِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، يَرْفَعُهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ فِيمَا دُونَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ زَكَاةٌ وَالْوَسْقُ سِتُّونَ مَخْتُومًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْبَخْتَرِيِّ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ أَبِي سَعِيدٍ.

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه بیان کوی او حضور ﷺ ته نسبت کوی چه د پنځو وسقو نه په کم (غله) کښې زکات نشته دې -" او یو وسق دَ شپیتو معیاری صاعونو وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه ابو البختری دَ حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه نه براه راست اوریدل نهٔ دی کړی -

**تشریح: قوله:** والوسق ستون مختوما : مختوم د صاع دپاره صفت دې، یعنی ستون صاعا مختوما، ختم بمعنی مهر هغه صاع چه په هغې باندې سرکاری مهر لګیدلې وی، او مخکښې راروان دی، مختوما بالحجاج یعنی په کوم باندې چه د امیر کوفه حجاج بن یوسف مهر لګیدلې وی، هغې ته صاع حجاجی وئیلې شی، او هم دا صاع عراقی هم نومیږی، او د شوافعو صاع په صاع حجازی سره مشهور دې، ددې تفصیل په جلد اول کښې باب مقدار ماء الوضوء کښې تیر شوې دې.

[۱۵۶۰](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ الْمُغِيرَةِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: الْوَسْقُ سِتُّونَ صَاعًا مَخْتُومًا بِالْحَجَّاجِيِّ.

د حضرت ابراهیم نخعی رحمه الله بیان دې چه یو وسق د شپیتو حجاجی صاعو برابر دې په کومو باندې چه مهر لګولې شوې وی -

(۱): سنن النسائي/الزكاة ٢٤(٢٤٨٨)، سنن ابن ماجه/الزكاة(١٨٣٢)،(تحفة الأشراف: ٤٠٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(٥٩/٣، ٨٣، ٩٧)(ضعيف)

(۲): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ١٨٤٠١)(صحيح)

[١٥٦١]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللّٰهِ الْأَنْصَارِيُّ، حَدَّثَنَا صُرَدُ بْنُ أَبِي الْمَنَازِلِ، قَالَ: سَمِعْتُ حَبِيبًا الْمَالِكِيَّ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ لِعِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ: يَا أَبَا نُجَيْدٍ، إِنَّكُمْ لَتُحَدِّثُونَنَا بِأَحَادِيثَ مَا نَجِدُ لَهَا أَصْلًا فِي الْقُرْآنِ، فَغَضِبَ عِمْرَانُ، وَقَالَ لِلرَّجُلِ: أَوَجَدْتُمْ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ، وَمِنْ كُلِّ كَذَا وَكَذَا شَاةً شَاةٌ، وَمِنْ كُلِّ كَذَا وَكَذَا بَعِيرًا كَذَا وَكَذَا أَوَجَدْتُمْ هٰذَا فِي الْقُرْآنِ، قَالَ: لَا، قَالَ: فَعَنْ مَنْ أَخَذْتُمْ هٰذَا؟ أَخَذْتُمُوهُ عَنَّا وَأَخَذْنَاهُ عَنْ نَبِيِّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَذَكَرَ أَشْيَاءَ نَحْوَ هٰذَا.

د حبیب مالکی بیان دي چه یو کس حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه ته اوفرمائیل : اې ابو نُجید ! تاسو مونږ ته داسې احادیث بیانوئ چه د هغې څۀ اصل مونږ ته په قرآن کښې نۀ ملاویږی - په دې باندې حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه په غصه کښې راغې او ورته ئې اوفرمائیل آیا تاسو ته په قرآن مجید کښې ملاویږی چه په هر څلویښت درهمو کښې یو درهم زکات دې؟ په هر دومره تعداد د چیلو بکرو کښې یوه بکرئ ده؟ په دومره دومره اوښانو کښې دومره (زکات) دې؟ آیا تاسو ته په قرآن کښې دا ټول هر څۀ ملاویږی؟ هغوی اووې نه - حضرت عمران بن حصین رضی الله عنه اوفرمائیل : نو بیا تاسو دا (احکام او مسائل) د چا نه حاصل کړې دی؟ بې شکه دا تاسو زمونږ (صحابۀ کرامو رضی الله عنهم) نه اخلئ - (حضرت عمران بن حصین دارنګه نور څیزونه هم ذکر کړل -

د حدثنا محمد بن بشار........ قال رجل لعمران بن حصين يَا أَبَا نُجَيْدٍ إِنَّكُمْ لَتُحَدِّثُونَنَا بِأَحَادِيثَ مَا نَجِدُ لَهَا أَصْلًا فِي الْقُرْآنِ فَغَضِبَ عِمْرَانُ وَقَالَ لِلرَّجُلِ أَوَجَدْتُمْ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ الخ دا حدیث په صحاح کښې صرف ابوداؤد کښې دې، او په منهل کښې ئې لیکلې دی، اخرجه البيهقي ايضا في البعث.

## شرح حدیث :

حافظ په فتح الباری ۱۱ ص۳۲۷ کښې دا روایت د بیهقی په حوالې سره نقل کړې دې، په هغې کښې دا هم دی، چه د عمران بن حصین په مجلس کښې بعضو صحابؤ د شفاعت ذکر اوکړو، نو په هغې یو سړې اعتراض اوکړو، چه دلته په روایت کښې ذکر دې، د حافظ د کلام نه معلومیږی، چه دا معترض د خوارجو نه وو، چه دا فرقه د شفاعت نه انکار کوی، او صحابه کرامو په هغه باندې رد کولو.

د حدیث مضمون خو واضح دې، چه یو سړې عمران بن حصین ته اوئیل چه تۀ مونږ ته داسې داسې احادیث بیانوې، چه دهغې څه اصل مونږ په کتاب الله کښې نه مومو، په دې هغوی ته غصه راغله، او وې فرمائیل، د زکوة ذکر په قرآن مجید کښې شته، او تاسو هم هغه منئ، ښه دا راته اوښایه چه قرآن مجید کښې دا هم شته، چه په دومره مال کښې زکوة واجب دې، او دهغې نه په کم کښې نه دې واجب، او په دومره مال کښې دومره مقدار واجب دې، وغیره وغیره، دا ټول تفصیلونه په قرآن مجید کښې کوم ځائې دی، ظاهر ده چه دا ټول څیزونه تا زمونږ نه زده کړې دی، او مونږ د جناب رسول الله ﷺ نه، مطلب دا چه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٧٩١) (ضعيف)

زمونږ د دین او شریعت مدار صرف په قرآن مجید باندې نه دې، بلکه د رسول اللهﷺ په بیاناتو اوتشریحاتو باندې هم دې، قرآن مجید خو متن دې، او احادیث د رسول اللهﷺ دهغې تشریح ده، دا حدیث د حجیة حدیث دپاره صریح دلیل دې.

## بَابُ الْعُرُوضِ إِذَا كَانَتْ لِلتِّجَارَةِ هَلْ فِيهَا مِنْ زَكَاةٍ

**باب: ٣- آیا دَ تجارت په سامان کښې زکات شته دې؟**

عروض بضم العین د عرض جمع ده، لکه فلوس د فلس، سامان و متاع و کل شیء سوی النقدین(قاموس) او بعضو لیکلې دی، چه عروض هغه سامان دې، چه مکیلی او موزونی نه وی، او نه حیوان وی، او نه عقار وی،( المصباح المنیر)

[١٥٦٢]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ بْنِ سُفْيَانَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ حَسَّانَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ مُوسَى أَبُو دَاوُدَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ سَعْدِ بْنِ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، حَدَّثَنِي خُبَيْبُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنْ أَبِيهِ سُلَيْمَانَ، عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ، قَالَ: أَمَّا بَعْدُ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "يَأْمُرُنَا أَنْ نُخْرِجَ الصَّدَقَةَ مِنَ الَّذِي نُعِدُّ لِلْبَيْعِ".

حضرت سمره بن جندب رضی الله عنه اوفرمائیل اما بعد ! بې شکه رسول اللهﷺ به مونږ ته حکم فرمائیلو چه کوم مال مونږ دَ تجارت دپاره تیار کړو چه ددې نه صدقه( زکات) ورکړو ."

حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ دَاوُدَ.......عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُنَا أَنْ نُخْرِجَ الصَّدَقَةَ مِنَ الَّذِي نُعِدُّ لِلْبَيْعِ

ددې باب نه د مصنف رحمه الله غرض په مال تجارت کښې زکوة ثابتول دی، دهغې دپاره امام بخاری دا باب تړلې دې، باب صدقة الکسب والتجارة. لیکن ددې باب لاندې امام بخاری هیڅ حدیث ذکر کړې نه دې، ځکه په دې مسئله کښې دهغه د شرط مطابق هیڅ حدیث نه وو، بلکه صرف ئې په آیت ذکر کولو باندې اکتفاء کړې ده، انفقوا من طیباب ما کسبتم، او امام ابوداؤد په دې باب کښې مکتوب سمرة والا حدیث ذکر کړې دې، مخکښې دا خبره تیره شوې وه، چه حضرت سمرة رضی الله عنه د خپلو ځامنو په نوم یوه مجموعه د احادیثو لیکلې وه، چه دهغې په ابتداء کښې دا وو، السلام علیکم اما بعد، دا حدیث په معجم طبرانی کښې هم داسې دې، دهغې نه علاوه په دار قطنی کښې هم دې، لیکن دا حدیث په صحاح سته کښې صرف سنن ابوداؤد کښې دې، ددې مضمون دادې، چه نبی کریمﷺ به په هغې مال کښې د اخراج زکوة حکم فرمائیلو، کوم لره چه مونږ حاصل او تیار کړو د بیع او تجارت دپاره، په دې حدیث باندې مصنف سکوت فرمائیلې دې، او منذری هم لهذا حجة دې، او ابن عبد البر فرمائي اسناده حسن .١هـ (عون)

په مال تجارت کښې د جمهور علماؤ او ائمه اربعه په اتفاق سره زکوة واجب دې،( حسب شرائط حولان حول ونصاب وغیره) که ددې نه مخکښې زکوة واجب وو، لکه ابل، بقر وغیره او که نه وو، لکه بغال او حمیر، په قسم اول کښې زکوة هسې هم واجب دې، اګر که هغه د تجارت دپاره نه وی، دهغې مستقل یو نصاب دزکوة دې، او د تجارت په صورت کښې به

(): تفرد به أبوداود،(تحفة الأشراف: ٤٦١٨)(ضعیف)

زکوة واجب وی د قیمت په اعتبار سره، هغه داچه دهغې قیمت د دواؤ سوؤ درهمو برابر وی، او په قسم ثانی کښې فی نفسه زکوة واجب نه دې، او که د تجارت دپاره وی، نو بې شکه زکوة په کښې واجب دې(منهل)

**(د تجارت په مال کښې د داؤد ظاهری اختلاف مع الدلائل)**

د داؤد ظاهری په دې مسئله کښې اختلاف دې، هغه په مال تجارت کښې د زکوة قائل نه دې،لحدیث لیس علی المسلم فی فرسه ولا عبده صدقة الحدیث ولم یقل الا ان ینوی بهما التجارة بیا نور باقی اموال د تجارت ئې په دې دواړو قیاس کړې دی، او حدیث الباب چه دې سره په مال تجارت کښې زکوة ثابتیږی، هغه دې نه وائې چه دا ضعیف دې، د جعفر ابن سعد د وجې نه،

**(د جمهورو د طرفه جواب)**

او د جمهورو د طرف نه ددې جواب دادې، چه دې حدیث د اجماع صحابه وغیره د وجه نه تقویت حاصل کړې دې، او آیت کریمه انفقوا من طیبات ما کسبتم د جمهور دپاره مؤید دې، قال مجاهد نزلت فی التجارة ابن المنذر وائې لیکن ددې منکر به کافر نه وی لاجل الاختلاف.

**د تاجر دوه قسمونه،مدیر، محتکر او د امام مالک مذهب :**

ددې نه پس په دې خبره ځان پوهه کړئ، چه دلته یوه اختلافی مسئله ده، هغه داچه د ائمه ثلاثه په نزد په هر تاجر باندې هر کال زکوة واجب دې، لیکن امام مالک رحمه الله فرمائې چه د تاجر دوه قسمه دی، مدیر او محتکر، د مدیر حکم خو دادې، چه په هغه باندې په مال کښې هر کال زکوة واجب دې، او په محتکر هر کال واجب نه دې، بلکه په کوم کال او کوم وخت کښې چه هغه مال خرڅ کړی، هغه وخت به صرف د یو کال زکوة ورکول وی، مدیر هغه تاجر دې، چه مال اخلی او خرڅوی، لکه چه عام طور باندې کیږی، او محتکر هغه تاجر دې، چه مال تجارت ځان سره په ګودام کښې محفوظ اوساتی، او د قیمت د زیاتیدو انتظار کوی، اوس که هغه څومره کلونو پورې هم مال محفوظ ساتی، ، دهغې کلونو زکوة به واجب نه وی، امام مالک ددې په دلیل کښې داهل مدینه عمل پیش کوی، چه دهغه په نزد مستقل حجت دې.

یوه مسئله اختلافی داده، چه د مالکیه او شافعیه په نزد د وجوب زکوة دپاره دکال پوره کیدو په وخت کښې نصاب پوره کیدل ضروری دی، او احناف وائې چه د کال په اول او آخر کښې د نصاب موجود کیدل ضروری دی، که په مینځ کښې کم شی، نو نقصان نه کوی، او د حنابله په نزد د اول نه آخره پورې کمال نصاب ضروری دې(منهل)

## بَابُ الْكَنْزِ مَا هُوَ وَزَكَاةِ الْحُلِيِّ

**باب: ۴- دکنز تعریف او دکالو دزکات مسئله:**

په ترجمة الباب کښې دوه جزئونه دی، او د دواړو متعلق مصنف په باب کښې احادیث راؤړلې دی، د کنز لغوی معنی ادخار(ذخیره کول) دی، او په شریعت کښې هغې مال ته وئیلې شی، په کوم کښې چه زکوة واجب وی، او ادا کړې شوې نه وی، او حلی بالفتح مفرد دې، ددې جمع حلی راځی، لکه ثدی و ثدی په معنی د کالو. که د سرو زرو یا سپینو زرو

وی، یا یو قیمتی کاڼړې او ملغلره وغیره وی، لیکن دلته سرۀ او سپین زر مراد دی، ځکه چه مسئله زکوة دهغې سره متعلق ده، او کوم کالی چه د جواهراتو نه جوړ کړې شوې وی، د قیمتی کاڼړی، لؤلؤ، مرجان وغیره نه، په هغې کښې بالاتفاق زکوة نشته، ددې دپاره مؤطا امام محمد اوګورئ.

[۱۵۶۳](١) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ، الْمَعْنَى أَنَّ خَالِدَ بْنَ الْحَارِثِ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا حُسَيْنٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهَا ابْنَةٌ لَهَا وَفِي يَدِ ابْنَتِهَا مَسَكَتَانِ غَلِيظَتَانِ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ لَهَا: "أَتُعْطِينَ زَكَاةَ هَذَا؟" قَالَتْ: لَا، قَالَ: "أَيَسُرُّكِ أَنْ يُسَوِّرَكِ اللَّهُ بِهِمَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ سِوَارَيْنِ مِنْ نَارٍ؟" قَالَ: فَخَلَعَتْهُمَا، فَأَلْقَتْهُمَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَتْ: هُمَا لِلَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَلِرَسُولِهِ.

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه او هغه د خپل نیکۀ (عبد الله بن عمرو ﷺ) نه روایت کوی چه یوه ښځه دَ نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضره شوه دَ هغې لور هم وه او دَ هغه لور په لاس کښې ئې دوه غټې غټې دَ سرو بنګړی هم وو - حضور ﷺ دَ ښځې نه پوښتنه اوکړه چه : آیا تاسو ددې زکات ورکوئ؟ هغې اووې نه - حضور ﷺ اوفرمائیل : آیا تاسو ته دا خبره خوښه ده چه دَ قیامت په ورځ باندې الله تعالیٰ تاسو ته ددې په بدله کښې دَ اور دوه بنګړی واچوی؟ چنانچه هغه ښځې دې بنګړو لره اویستل او دَ نبی ﷺ مخې ته ئې ګزار کړل اووې وئیل : دا دَ الله او دَ هغه دَ رسول دَ پاره دی -

حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ وَحُمَيْدُ بْنُ مَسْعَدَةَ........ أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَهَا ابْنَةٌ لَهَا وَفِي يَدِ ابْنَتِهَا مَسَكَتَانِ الخ،، د امرأة نوم اسماء بنت یزید بن السکن ښودلې شوې دې، دا حدیث په ترمذی کښې هم دې، دغه شان په نسائي کښې مسندا او مرسلا په دواړو طریقو سره روایت دې، علامه زیلعی رحمه الله فرمائي اسناده صحیح او هم دا خبره منذری کړې ده، بلکه هغه ددې حدیث د هرهر راوی نشاندهی کولو نه پس توثیق نقل کړې دې،

عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَلْبَسُ أَوْضَاحًا مِنْ ذَهَبٍ اوضاح د وضح جمع ده، د چاندې د یو کالی نوم دې، چونکه هغه سپین او چمکدار وی، ددې وجې نه هغې ته وضح وئیلې شی، بعضو ددې ترجمه په خلخال سره کړې ده، یعنی پانزیب، فارسئ کښې ورته پائے برنجن وئیلې شی، اکنزٌ هُو،، یعنی د کالو استعمالؤل، آیا دا هغه کنز دې، په کوم چه قرآن مجید کښې وعید راغلې دې، یوم یحمی علیها فی نار جهنم فتکوی بها جباههم و جنوبهم و ظهورهم الآیة نو نبی کریم ﷺ ارشاد اوفرمائیلو، چه کوم مال په قدر د نصاب وی، او دهغې زکوة ادا نه کړې شی، هغه د کنز مصداق دې، او د کوم چه زکوة ادا کړې شی، هغه کنز نه دې.

[۱۵۶۴](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا عَتَّابٌ يَعْنِي ابْنَ بَشِيرٍ، عَنْ ثَابِتِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ،

---

١ ): سنن النسائي/الزكاة ١٩(٢٤٨١، ٢٤٨٢)؛(تحفة الأشراف: ٨٦٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٧٨/٢، ٢٠٤، ٢٠٨)(حسن)

٢ ): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ١٨١٩٩)(حسن)

قَالَتْ: كُنْتُ أَلْبَسُ أَوْضَاحًا مِنْ ذَهَبٍ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَكَنْزٌ هُوَ؟ فَقَالَ: "مَا بَلَغَ أَنْ تُؤَدَّى زَكَاتُهُ، فَزُكِّيَ فَلَيْسَ بِكَنْزٍ".

حضرت ام سلمه رضي الله عنها بيان کوي چه ما به دَ سرو زرو هار اچولو - ما دَ رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو : اې دَ الله رسوله ! آيا دا کنز دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل : کوم چه دَ زکات مقدار ته اورسي او دَ هغې زکات ورکړې شي نو هغه کنز نهٔ دې -"

ددې حديث ام سلمه رضي الله عنها تخريج دارقطني بيهقي او حاکم هم کړې دې، و صححه الحاکم، بيهقي فرمائي تفرد به ثابت بن عجلان ليکن په دې کښې هيڅ نقصان نشته، ځکه چه ددې ډير امامانو توثيق کړې دې، البته ددې په سند کښې عتاب بن بشير دې، په دهٔ کښې مقال دې (منهل)

[۱۵۶۵] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِدْرِيسَ الرَّازِيُّ، حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ الرَّبِيعِ بْنِ طَارِقٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي جَعْفَرٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ شَدَّادِ بْنِ الْهَادِ، أَنَّهُ قَالَ: دَخَلْنَا عَلَى عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى فِي يَدَيَّ فَتَخَاتٍ مِنْ وَرِقٍ، فَقَالَ: "مَا هَذَا يَا عَائِشَةُ؟" فَقُلْتُ: صَنَعْتُهُنَّ أَتَزَيَّنُ لَكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "أَتُؤَدِّينَ زَكَاتَهُنَّ؟" قُلْتُ: لَا، أَوْ مَا شَاءَ اللَّهُ، قَالَ: "هُوَ حَسْبُكِ مِنَ النَّارِ".

عبد الله بن شداد بن هاد فرمائي چه مونږ حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورغلو نو هغې اوفرمائيل : چه رسول الله ﷺ ماته تشريف راوړو - هغوی ﷺ اوکتل چه زما په لاسونو کښې دَ چاندۍ انګوټۍ (ګوتې) دي نو حضور ﷺ اوفرمائيل : عائشه ! دا څهٔ دي؟ ما عرض اوکړو : دا ما ستاسو له خاطره دَ زينت دپاره اچولې دي اې دَ الله رسوله ! - هغوی ﷺ تپوس اوکړو آيا تهٔ ددې زکات ورکوې؟ ماأووې نهٔ - يا څهٔ ددې په شان مې أووې - حضور ﷺ اوفرمائيل : تالره دَ اور نه دا کافي دی -"

## د زنانو د کالو د زکوة په باره کښې د علماؤ مذاهب :

دريم حديث د حضرت عائشې رضي الله عنها دې: قالت دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَأَى فِي يَدَيَّ فَتَخَاتٍ،، (٢)

فتخات د فتخة جمع ده، د فتخه په تاء باندې فتح او سکون دواړه وئيلې شوې دی، خاتم کبير د چاندۍ لويه ګوتمه يا بنګړې چه زنانه ئې اکثر په لاسونو کښې او کله په پښو کښې هم اچوی

ددې احاديث ثلثة نه معلوميږی، چه په حلی نساء کښې زکوة واجب دې، مسئله مختلف فيه ده، امام خطابی فرمائي چه د صحابه کرامو يو جماعت عمربن الخطاب رضي الله عنه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه عبدالله بن عمر رضي الله عنه عبدالله بن عباس رضي الله عنه په کالو کښې زکوة منی، هم دا مذهب په تابعينو کښې هم د يو جماعت دې، سعيد بن المسيب، سعيد بن جبير، عطاء،

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٢٠٠) (صحيح)

(٢) والحديث اخرجه الدارقطني في سننه عن محمد بن عطاء فنسبه الي جده دون ابيه ثم قال ومحمد بن عطاء مجهول قال البيهقي في المعرفة هو محمد بن عمرو بن عطاء لكنه لما نسبه الي جده ظن الدار قطني انه مجهول وليس كذلك..اهـ وقال ابن دقيق العيد في الامام الحديث علي شرط مسلم..اهـ (عون)

ابن سيرين، او هم دې لره سفيان ثوری او احنافو اختيار کړې دې، او يو جماعت د صحابه کرامو او تابعينو لکه ابن عمر، جابر بن عبدالله، حضرت عائشه قاسم بن محمد، شعبی په کالو کښې د زکوة قائل نه دی، هم دې لره امام مالک، احمد، او اسحاق بن راهويه اختيار کړې دې، او په اظهر القولين کښې د امام شافعی رحمه الله هم دا مذهب دې، په بذل کښې د علامه عينی نه نقل دی، چه امام شافعی رحمه الله به په عراق کښې هم دا فرمائيل، چه زکوة نشته، ليکن مصر ته تللو نه پس هغوی په دې مسئله کښې توقف اوفرمائيلو، وقال هذا مما استخير الله فيه، چه زهٔ به دې باره کښې د الله تعالى سره استخاره اوکړم ۱هـ، خطابی فرمائي چه د ظاهر قرآن او دآثارو نه د قائلين وجوب تائيد کيږی، او کوم خلق چه قائل نه دی، هغوی د قياس لحاظ ساتلې دې، او بعضې آثار هم شته، بهرحال احتياط په ادا کولو کښې دې، د قياس نه مراد په ظاهر کښې دادی، چه کالی د استعمال په څيزونو کښې دی، او د ضرورت او استعمال څيزونو کښې زکوة واجب نه دې، صاحب سبل السلام فرمائي بعضې آثار چه د سلفو نه منقول دی، د عدم وجوب تقاضا کوی، ولكن بعد صحة الحديث لا اثر للآثار،(۱) يو قول په دې مسئله کښې دادې، چه دکالو زکوة هغې لره په عاريت ورکول دی، او يو قول دادې، چه په ټول عمر کښې صرف يوځل ورکول واجب دی،دا دواړه اقوال دحضرت انس رضی الله عنه نه منقول دی(منهل)

علامه عينی رحمه الله فرمائي چه د ليث بن سعد مذهب دادې، چه کوم کالی اچولې شی، او په عاريت ورکولې شی، په هغې کښې زکوة نشته، او کوم کالی چه د زکوة نه دبچ کيدو دپاره جوړ کړې شوې وی، په هغې کښې زکوة واجب دې.

ددې نه پس پوهه شئ، چه ددې حديث ثالث نه په ظاهر کښې دا معلوميږی، چه په کالو کښې زکوة واجب کيدو دپاره نصاب شرط نه دې، ځکه چه فتخات د نصاب هومره چرته کيدې شی، ليکن علماؤ د احاديث النقدين په ظاهر( چه په کښې نصاب ذکر دې) باندې عمل کړې دې، او دې لره ئې هم نصاب سره مقيد کړې دی،( سبل السلام) دا اشکال خپله مخکښې په دې کتاب کښې هم راروان دې.

[۱۵۶۶](۲) حَدَّثَنَا صَفْوَانُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُمَرَ بْنِ يَعْلَى، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ نَحْوَ حَدِيثِ الْخَاتَمِ، قِيلَ لِسُفْيَانَ: كَيْفَ تُزَكِّيهِ؟ قَالَ: تَضُمُّهُ إِلَى غَيْرِهِ.

سفيان د عمر بن يعلى نه روايت کړې دې او د انګوټئ والا د حديث هم مثل ئې بيان کړې دې ...... دَ سفيان نه پوښتنه اوکړې شوه چه ددې زکات به څنګه ورکوی؟( يعنی دَ ګوتې وغيره) نو هغوی اوفرمائيل: دَ نورو زيوراتو سره دې ملاؤ کړی -( او دَ نصاب مطابق دې زکات ادا کړی -")

---

(۱) ليکن امام ترمذی د سوارين من نار والا حديث تضعيف کوی فرمائي ولا يصح في هذا الباب عن النبي (صلي الله عليه وسلم) شيء)

(۲): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ۱۹۱۵۷)(ضعيف)

### د نصاب د تکمیل دپاره د دواؤ مختلفو مالونو یوځائي کول:

قیل لسفیان کیف تزکیه قال تضمه الی غیره، یعنی دهغې نه علاوه هغه سره چه کوم کالی وی، هغه کالی دې دهغې سره یوځائي کړی او نصاب پوره کیدو باندې دې زکوة ادا کړی، د ضم مسئله تفصیل طلب ده، او ددې څو صورتونه دی،(۱) ضم العروض الی احد النقدین،(۲) ضم احد النقدین بالآخر، که عروض دتجارت د نصاب هومره نه وی، لیکن هغه سره سرهٔ زر یا سپین زر دی، نو دلته کښې ضم بالاتفاق شته، او که سرهٔ زر او چاندی، د هر یو بیل بیل نصاب پوره نه وی، یا د یو پوره وی، او د بل ناقص، نو په دې صورت کښې اختلاف دې، د ابن ابی لیلی حسن بن صالح او امام شافعي په نزد به ضم نه وی، وهو روایة عن احمد او دویم روایت د امام احمد، امام مالک، او امام ابو حنیفه په نزد ضم به وی، او د ضم په ذریعه به د نصاب پوره والي کولې شی.

د ضم صورت به څه وی؟ په دې کښې اختلاف دې، په هدایه کښې دی، په ضم کښې به د امام صاحب رحمه الله په نزد د قیمت لحاظ کولې شی، او د صاحبینو په نزد د اجزاؤ، یعنی د وزن لحاظ به کولې شی.

## باب فِي زَكَاةِ السَّائِمَةِ

### باب: ۵- په ځنګل کښې د څریدونکو څناورو زکات

دا باب ډیر اوږد دې، مصنف په دې کښې تقریبا شل احادیث راوړلې دی، ددې تعلق د څاروؤ د زکوة سره دې.

### د نصاب ذهب ثبوت او د محدثینو دې باره کښې طرز عمل:

ددې نه مخکښې په باب فیما تجب فیه الزکوة کښې دهغې څیزونو تعین تیر شوې دې، په کومو کښې چه زکوة واجب دې، په هغې کښې نقدین یعنی ذهب او فضه هم دی، لیکن په تبویب کښې د محدثینو طرز او طریقه مختلفه ده، امام بخاری باب زکوة الورق قائم کړې دې، لیکن په ذهب ئې هیڅ باب نه دې قائم کړې، او هم داسې امام نسائي هم کړې دی، او امام ترمذی په دې دواړو باندې مشترک باب زکوة الذهب والورق قائم کړې دې، لیکن د باب لاندې امام ترمذی چه کوم حدیث ذکر کړې دې،[۱] په هغې کښې صرف ورق مذکور دې، د ذهب ذکر په کښې نشته، دغه شان ابن ماجه کښې هم باب زکوة الورق والذهب دې، او په هغې کښې هغوی د ذهب او فضه دواړو نصاب باره کښې حدیث ذکر کړې دې، دذهب باره کښې ئې د ابن عمر او عائشه رضی الله عنها حدیث په یو سند سره ذکر کړې دې، ان النبی(صلی الله علیه وسلم) کان یاخذ من کل عشرین دینارا فصاعدا نصف دینار ومن الاربعین دینارا.

---

[۱] په هغې کښې امام ترمذی وهې حدیث علي ذکر فرمائیلې دې، چه دهغې مخکښې ذذکر راروان دې، په اصل کښې دهغې په بعضو طرقو کښې نصاب ذهب مذکور دې، او په بعضو کښې نسته، امام ابوداؤد په دواړو طریقو سره حدیث اخستلې دې، لیکن امام ترمذی هغې لره صرف په هغې طریقې ذکر کړې دې، په کومې کښې چه نصاب ذهب نشته، نو ګویا هغه په ترجمة الباب کښې ذهب ذکر کولو سره هغې طریق ثانی طرف ته اشاره کړې ده والله اعلم)

لیکن امام ابو داؤد رحمه الله مستقل باب نه خو په ورق باندې قائم کړې دې، او نه په ذهب باندې، حالانکه د نصاب ذهب حدیث په دې کښې موجود دې، لیکن هغې لره مصنف د اختلاف رواة او اختلاف طریق لاندې ذکر کړې دې، نه قصدا، ددې وجې نه شاید په دې باندې ئې باب نه دې قائم کړې، باقی د نصاب ورق حدیث خو صحیح او متفق علیه دې، چه په دې کتاب کښې هم په باب فیما تجب فیه الزکوة کښې تیر شوې دې، غالبا مصنف هم په دې باندې اکتفاء کولو په وجه مستقل باب نه دې قائم کړې. والله اعلم

### د نصاب ذهب ثبوت :

علامه قسطلانی ٢ص٣٣٩ د بخاری دباب زکوة الورق لاندې لیکلې دی :
واما الذهب ففی عشرین مثقالا منه ربع العشر لحدیث ابی داؤد باسناد صحیح او حسن عن علی عن النبی(صلی الله علیه وسلم) لیس فی اقل من عشرین دینارا شیء وفی عشرین نصف دینار١ھ او ددې په مقابله کښې ابن عبدالبر فرمائي لم یثبت عن النبی(صلی الله علیه وسلم) فی نصاب الذهب شیء، او په حدیث علی رضی الله عنه باندې تنقید کولو سره هغوی اوفرمائیل : ورواه الحفاظ موقوفا علی علی١ھ. زۀ وایم، د نصاب ذهب والا حدیث صحت اگر چه مختلف فیه دې، لیکن دهغې باوجود مسئله تقریبا اجماعی ده، چه نصاب ذهب عشرین مثقال دې، او په دې کښې چه کوم اختلاف دې، هغې لره شاذ مقرر کړې شوې دې، لکه د حسن بصری رحمه الله قول دې، چه ددې نصاب اربعین مثقال دې، علامه باجی فرمائي چه د حسن نه پس د علماؤ اجماع اوشوه په عشرین مثقال باندې، دغه شان ابن قدامه هم په عشرین مثقال باندې اجماع نقل کړې ده. (1)
دویمه اجماع دلته کښې داده، چه په نصاب ذهب کښې د مثقال اعتبار دې، د قیمت نه، لیکن عطاء، طاؤس او زهری فرمائي په دې کښې د قیمت فضه اعتبار دې، لهذا کوم ذهب چه په قیمت کښې د دواؤ سوؤ درهمو برابر وی، په هغې کښې به زکوة واجب وی، ددې نه پس تاسو د موجوده باب باره کښې واؤرئ.

### د سائمه تعریف :

سائمه د سؤم نه مشتق دې، په معنی د څریدلو، وئیلې شی سامت الماشية سوما ای رعت او اسامة متعدی دې، اسامها صاحبها، څاروی لره دهغې مالک په ځنګل کښې یا په مرعی کښې د څریدلو دپاره پریخودو، کوم څاروی چه په ځنګل کښې د کال په اکثره حصه کښې څریږی، او دهغې د ګیا او دانې مشقت مالک نه برداشت کوی، هغې څاروؤ ته سائمه وئیلې شی، په دې کښې دا قید هم دې، چه په صحراء کښې دا پریخودل د نسل دپاره وی، چه دهغې مال نامی ګیدل ثابت شی، لیکن چونکه څاروی داسې په صحراء کښې پریخودلې شی، چه دهغې نه مقصود نسل وی، ددې وجه دې قید لره د سائمه په تعریف کښې اکثر ذکر کولې نشی، په اصل کښې ددې وصف اسامة للدر والنسل په وجه د نماء

(1) د شل مثقال نه څومره ګرام جوړیږی ددې بیان د فضه په نصاب کښې تیر شوې دې.

معنی پیدا کیږی،([1]) او زکوة په مال نامی کښې واجب دې، او هم دا ددې دپاره یوه وجه عقلی ده، چه په بغال کښې زکوة واجب نه دی، د عدم تناسل په وجه، او په علوفه کښې د گیا د مشقت په وجه. لکه چه د جمهور علماؤ او ائمه ثلاثه مذهب دې، خلافا للامام مالک، فانه اوجب الزکوة فی العلوفة ایضا، علوفه چه معلوفه ورته هم وئیلې شی، دا د سائمه ضد دې، هغه څاروی چه هغې لره مالک د کال په اکثر حصه کښې د حمل یا رکوب (بار برداری) دپاره په کور کښې ساتی، په علوفه کښې د گیا او دانې مشقت چونکه مالک برداشت کوی، ددې وجې نه په هغې کښې د نماء صفت مغلوب کیږی، چه هغې ته شریعت اعتبار نه دې ورکړې، ددې وجې نه په دې کښې زکوة واجب نه دی.

[۱۵۶۷]([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، قَالَ: أَخَذْتُ مِنْ ثُمَامَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَنَسٍ كِتَابًا زَعَمَ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ كَتَبَهُ لِأَنَسٍ وَعَلَيْهِ خَاتِمُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَعَثَهُ مُصَدِّقًا وَكَتَبَهُ لَهُ، "فَإِذَا فِيهِ هَذِهِ فَرِيضَةُ الصَّدَقَةِ الَّتِي فَرَضَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ الَّتِي أَمَرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ بِهَا نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَمَنْ سُئِلَهَا مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى وَجْهِهَا فَلْيُعْطِهَا، وَمَنْ سُئِلَ فَوْقَهَا فَلَا يُعْطِهِ فِيمَا دُونَ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ مِنَ الْإِبِلِ الْغَنَمُ فِي كُلِّ خَمْسِ ذَوْدٍ شَاةٌ، فَإِذَا بَلَغَتْ خَمْسًا وَعِشْرِينَ فَفِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ إِلَى أَنْ تَبْلُغَ خَمْسًا وَثَلَاثِينَ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهَا بِنْتُ مَخَاضٍ فَابْنُ لَبُونٍ ذَكَرٌ، فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَثَلَاثِينَ فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ، فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَأَرْبَعِينَ فَفِيهَا حِقَّةٌ طَرُوقَةُ الْفَحْلِ إِلَى سِتِّينَ، فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَسِتِّينَ فَفِيهَا جَذَعَةٌ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ، فَإِذَا بَلَغَتْ سِتًّا وَسَبْعِينَ فَفِيهَا ابْنَتَا لَبُونٍ إِلَى تِسْعِينَ، فَإِذَا بَلَغَتْ إِحْدَى وَتِسْعِينَ فَفِيهَا حِقَّتَانِ طَرُوقَتَا الْفَحْلِ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ وَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ، فَإِذَا تَبَايَنَ أَسْنَانُ الْإِبِلِ فِي فَرَائِضِ الصَّدَقَاتِ فَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ الْجَذَعَةِ وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ جَذَعَةٌ وَعِنْدَهُ حِقَّةٌ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ، وَأَنْ يَجْعَلَ مَعَهَا شَاتَيْنِ إِنِ اسْتَيْسَرَتَا لَهُ أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ الْحِقَّةِ وَلَيْسَتْ عِنْدَهُ حِقَّةٌ وَعِنْدَهُ جَذَعَةٌ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ وَيُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ، وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ الْحِقَّةِ وَلَيْسَ عِنْدَهُ حِقَّةٌ وَعِنْدَهُ ابْنَةُ لَبُونٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: مِنْ هَاهُنَا لَمْ أَضْبِطْهُ عَنْ مُوسَى كَمَا أُحِبُّ، وَيَجْعَلُ مَعَهَا شَاتَيْنِ إِنِ اسْتَيْسَرَتَا لَهُ أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ بِنْتِ لَبُونٍ وَلَيْسَ عِنْدَهُ إِلَّا حِقَّةٌ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: إِلَى هَاهُنَا، ثُمَّ أَتْقَنْتُهُ، وَيُعْطِيهِ الْمُصَدِّقُ عِشْرِينَ دِرْهَمًا أَوْ شَاتَيْنِ، وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ ابْنَةِ لَبُونٍ وَلَيْسَ عِنْدَهُ إِلَّا بِنْتُ مَخَاضٍ فَإِنَّهَا تُقْبَلُ مِنْهُ وَشَاتَيْنِ أَوْ عِشْرِينَ دِرْهَمًا، وَمَنْ بَلَغَتْ عِنْدَهُ صَدَقَةُ ابْنَةِ مَخَاضٍ وَلَيْسَ عِنْدَهُ إِلَّا ابْنُ لَبُونٍ ذَكَرٌ فَإِنَّهُ يُقْبَلُ مِنْهُ وَلَيْسَ مَعَهُ شَيْءٌ، وَمَنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ إِلَّا أَرْبَعٌ فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا، وَفِي سَائِمَةِ الْغَنَمِ إِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ فَفِيهَا شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِذَا زَادَتْ عَلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ فَفِيهَا شَاتَانِ إِلَى أَنْ تَبْلُغَ مِائَتَيْنِ، فَإِذَا زَادَتْ عَلَى مِائَتَيْنِ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى أَنْ تَبْلُغَ ثَلَاثَ مِائَةٍ، فَإِذَا زَادَتْ عَلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ فَفِي كُلِّ مِائَةِ شَاةٍ شَاةٌ وَلَا يُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَلَا ذَاتُ عَوَارٍ مِنَ الْغَنَمِ وَلَا تَيْسُ الْغَنَمِ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْمُصَدِّقُ، وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُفْتَرِقٍ وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ، وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ، فَإِنْ لَمْ تَبْلُغْ

---

[1]) فقهاؤ لیکلی دی، چه که بالفرض د اسامة نه مقصود در او نسل نه وی، بلکه حمل یا رکوب وی، نو بیا د سائمه کیدلو باوجود به په هغې کښې زکوة واجب نه وی. (زیلعی وغیره)

[2]): صحيح البخاري/الزكاة ٣٣(١٤٤٨)، ٣٩(١٤٥٥)، الشركة ٢(٢٤٨٧)، فرض الخمس ٥(٣٠١٦)، الحيل ٣(٦٩٥٥)، سنن النسائي/الزكاة ٥(٢٤٤٩)، ١٠(٢٤٥٧)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١٠(١٨٠٠)، (تحفة الأشراف: ٦٥٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/١١، ١٣)(صحيح)

سَائِمَةُ الرَّجُلِ أَرْبَعِينَ فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا، وَفِي الرِّقَةِ رُبْعُ الْعُشْرِ فَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْمَالُ إِلَّا تِسْعِينَ وَمِائَةً فَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ رَبُّهَا".

حماد بیان کوی چه ما دا تحریر دَ حضرت ثمامه بن عبد الله بن انس نه حاصل کړې دې - هغه وئیل چه دا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دَ حضرت انس رضی الله عنه دَ پاره لیکلې وو او هغه لره ئې دَ صدقې( زکات) دپاره تحصیلدار جوړ کړې وو او لیږلې ئې وو او په دې باندې دَ رسول الله ﷺ مهر وو ... په دې کښې لیکلې شوې وو : دا دَ فریضهٔ زکات تفصیل دې کوم چه رسول الله ﷺ په مسلمانانو باندې فرض کړې وو، دَ کومې چه الله تعالیٰ خپل پیغمبر ﷺ ته حکم فرمائیلې وو - لهذا دَ کوم مسلمان نه چه هم ددې مطابق مطالبه اوکړې شی، هغه دې ادا کړی او دَ چا نه دَ هغې نه علاوه مزید اوغوستلې شی، نو هغه دې نهٔ ورکوی- دَ پنځیشتو نه په کمو اوښانو کښې( زکات دَ بکرو په صورت کښې دې) په هر پنځهٔ اوښانو باندې یوه چیلۍ ده - کله چې پنځیش شی نو په هغې کښې یو بنت مخاض ده( یو کلیزی مؤنث اوښه)، پنځهٔ دیرشو پورې - کهٔ چرې په دې کښې یو کلیزی نهٔ وی نو دَ دوو کالو نَر اوښ دې ورکړی( چه هغې ته ابن لبون وائی) او کله چه شپږ دیرش شی نو په دې کښې دوه کلیزی مؤنث اوښه ده( بنت لبون) تر دَ پنځهٔ څلویښت پورې - او کله چه شپږ پنځوس شی نو په هغې کښې حقّه ده( درې کلیزی مؤنث اوښه) کومه چه دَ تیریدو لائقه وی - تر دَ شپیتو پورې - کله چه یو شپیتهٔ شی نو په هغې کښې جذعه ده( څلور کلیزی مؤنث اوښه) تر دَ پنځه اویا پورې - او کله چه شپږ اویا شی نو په دې کښې دوه بنت لبون( دوه کلیزی دوه مؤنث اوښې) دی، تر دَ نوی پورې - او کله چه یو نوی شی نو په هغې کښې دوه حقې( درې کلیزی دوه مؤنث اوښې) دی، کوم چه به دَ تیریدو لائقې وی، تر دَ شپږ شلې پورې او کله چه دَ شپږ شلو نه واوړی نو په هر څلویښتو کښې بنت لبون او په پنځوسو کښې حقه ده - کهٔ چرې په زکات کښې دَ واجب کیدونکو څناورو په عمر کښې فرق وو، نو په چا باندې چه جذعه واجب وی مگر دَ هغه سره جذعه نهٔ وی بلکې(ددې دَ کم عمروالا) حقه( درې کلیزی اوښه) وی نو ددهٔ نه دې حقه واخستلې شی او ددې سره دې دوه بکرۍ ملاؤ کړی کهٔ چرې دهٔ ته آسانه وی یا شل درهمه( دَ چاندۍ)، او په چا باندې چه په زکات کښې حقه واجب شوې وی، مگر دَ هغه سره حقه نهٔ وی بلکې جذعه وی( څلور کلیزی اوښه) نو ددهٔ نه دې جذعه واخستلې شی او تحصیلدار دې دهٔ ته شل درهمه ورکړی یا دوه بکرۍ - او په چاباندې چه حقه لازمه شوه مگر موجود نهٔ وی بلکې بنت لبون وی نو ددهٔ نه دې بنت لبون واخستې شی ... امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه دَ حدیث ددې حصې نه پس ما دَ خپل شیخ موسیٰ بن اسماعیل نه کما حقه ضبط نهٔ دې کړې ... او صاحبِ مال دې ددې سره دوه بکرۍ ورکړی کهٔ چه میسره وی، یا شل درهمه - او په چاباندې چه په زکات کښې بنت لبون واجب شوله مگر دَ هغه سره حقه وه نو ددهٔ نه دې دا حقه واخستې شی ... امام ابوداود رحمه الله فرمائی ددې حصې نه پس ماته ښهٔ ضبط دې ... او تحصیلدار دې هغه ته شل درهمه ورکړی یا دوه بکرۍ، او په چا

باندې چه بنت لبون واجب شوې وی مګر دَ هغه سره يو کليزی (بنت مخاض) وی نو ددهٔ نه به هم دا قبلولې شی او ددې سره به ترينه دوه بکرئ يا شل درهمه اخستلې شي - او په چا باندې چه بنت مخاض (يو کليزی) لازمه شوی وی مګر دَ هغه سره دوکليزی نَر (ابن لبون) موجود وی نو ددهٔ نه دې هم دا واخستلې شی مګر ددې سره به څهٔ (واپس) کولې نهٔ شي- او دَ کوم کس سره چه صرف څلور اوښان وی نو په هغه باندې څهٔ زکات واجب نهٔ دې مګر دا کهٔ دَ هغې مالک اوغواړی - او دَ سائمه بکرو (هغه چيلئ بکری چه هغه اکثر دَ کور نه بهر څرن کوی) دَ زکات (تفصيل) دادې : دَ څلويښتو نه واخله تر دَ شپږ شلو پورې يوه چيلئ ده - کهٔ چرې ددې نه زيات شی نو بيا دوه بکرئ دی تر دَ دوو سوو پورې - دَ دوو سوو نه په زياتو کښې درې بکرئ دی، دريو سوو پورې - کهٔ چرې چيلئ دَ دريو سوو نه واوړيدلې نو په هر سلو کښې يوه چيلئ ده - په زکات کښې به بوډا يا عيب داره بکرئ نهٔ شی اخستې او نهٔ دې نَر بکرې (کوم چی په مؤنث باندې خيږی) واخستلې شی مګر داکهٔ دَ زکات دَ تحصيلدار خواهش وی - او دَ زکات دَ يرې نه دې دوه جُدا جُدا کنډکونه جمع نهٔ کړې شی او نهٔ دې يوځائي مال جُدا جُدا کړې شی - او دَ کومو دوو مشترکو مالکانو مال چه يوځائي وی او زکات ترينه هم يوځائي اخستلې شوې وی نو هغوی دې په خپل مابين کښې برابر برابر لين دين کوی - کهٔ چرې دَ چا په څنګل کښې څريدونکئ چيلئ څلويښتو ته نهٔ وی رسيدلې نو په هغې کښې هيڅ زکات نشته دې مګر دا کهٔ مالک اوغواړی - په سپينو زرو کښې څلويښتمه حصه ده - کهٔ چرې مال صرف دَ يوسل او نوی درهمو وو نو په دې کښې هيڅ زکات نشته دې مګر دا کهٔ دَ هغې مالک اوغواړی -

په کومو سوائمو کښې چه زکوٰة واجب دې، هغه درې دی، ابل، بقر، او غنم، (غنم معز يعنی بزه او ضان يعنی ګډه دواړو ته شامل دې) په بغال او حمير کښې زکوٰة بالاتفاق نشته، [1] په حديث کښې ددې تصريح ده، **لم ينزل على فيهما شىء الا هذه الآية الجامعة الفاذة فمن يعمل مثقال ذرة خيرا يره الخ**

**حدثنا موسى بن اسماعيل نا حماد قال اخذت من ثمامة بن عبدالله بن انس كتابا زعم ان ابابكر كتبه لانس وعليه خاتم رسول الله(صلى الله عليه وسلم) حين بعثه مصدقا و كتبه له فاذا فيه هذه فريضة الصدقة التى فرضها رسول الله(صلى الله عليه وسلم) على المسلمين.**

په دې حديث کښې د کتاب الصدقه ذکر دې، چه هغې لره رسول الله ﷺ د وفات نه مخکښې ليکلې وو، په هغې کښې د زکوٰة احکام او تفاصيل ذکر دی، خصوصا د سوائمو زکوٰة، چه زيات تفصيلی دې، ابل، بقر او غنم، د هر يو نصاب، او مقدار واجب، دې دپاره

---

[1] مګر دا که د تجارت دپاره وی، په دې صورت کښې د مال تجارت په اعتبار سره هغې کښې زکوٰة واجب دې، په حساب د قيمت نصاب، دغه شان سوائم هم که د در او نسل دپاره نه وی، بلکه د تجارت دپاره وی، نو په هغې کښې به د مال تجارت زکوٰة د قيمت په اعتبار سره واجب وی، نه د سائمه کيدلو په اعتبار سره)

چه عمال ددې کتاب مطابق زکوة وصول کړي، په هغې د نبی کریم ﷺ مهر هم وو، ددې نه پس راتلونکې روایت کښې دی فلم یخرجه الی عماله حتی قبض فقرنه بسیفه فعمل به ابوبکر حتی قبض ثم عمل به عمر حتی قبض، یعنی نبی کریم ﷺ د لیکلو نه پس هغه کتاب د خپلې تورې په تیکې کښې محفوظ کړو، او عاملانو ته ئې حواله نه کړو، تردې پورې چه نبی کریم ﷺ وفات شو، دهغوی نه پس خلیفه اول حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه دهغې مطابق عمل اوکړو، دهغوی نه پس دغه شان حضرت عمر فاروق رضی الله عنه. نبی کریم ﷺ هغې لره عاملانو ته په ظاهر کښې ددې وجه نه حواله نه کړو،[1] چه هغوی ته خوږ نبی کریم ﷺ د زکوة تفصیل زبانی بالمشافه تعلیم ورکولو، بلکه هغې لره ئې محفوظ ځائي کښې کیخودو، دې دپاره چه روستو راتلونکې خلفاء هغې طرف ته رجوع اوکړي، نو هم داسې اوشوه، چه حضرات شیخینو په خپلو خپلو زمانو کښې دهغې مطابق زکوة وصول کړو.

ددې نه د زکوة د مسائلو اهمیت معلومیږي، ځکه د نبی کریم ﷺ عادت د احکامو او احادیثو لیکلو نه وو، بلکه د هغوی تعلیم به قولا او فعلا وو، لیکن د زکوة احکام هغوی باقاعده اولیکل، دا ګویا د زکوة خصوصیت دې، او ددې وجه هم ظاهره ده، چه زکوة، ددې نصاب، او په هر نصاب کښې څه څه واجبیږي، دا ټول حسابی امور دی، ددې زبانی یادول مشکل دی.

فقرنه بسیفه شارحینو لیکلې دی، چه د تورې په تیکی کښې هغه ایخودل، دې کښې یوه لطیف اشاره ده، چه په هغې صدیق اکبر رضی الله عنه پوهه شوې وو، که یو جماعت د زکوة نه انکار اوکړي، نو دهغې حل او علاج توره ده، نو صدیق اکبر د مانعین زکوة سره قتال اوکړو.

**مضمون حدیث :**

حماد بن سلمه وائي چه ما د حضرت انس رضی الله عنه د نمسی ثمامة بن عبدالله نه دا کتاب اخستلې دې، چه دهغې باره کښې ثمامة دا وائي چه دا کتاب صدیق اکبر رضی الله عنه زما نیکهٔ حضرت انس رضی الله عنه ته لیکلې ورکړې وو، چه په هغې د نبی کریم ﷺ مهر هم وو، هرکله چه صدیق اکبر رضی الله عنه هغه لره(انس رضی الله عنه لره) د بحرین عامل جوړکړو، او د صدقاتو وصولولو دپاره ئې لیږلو، فاذا فیه هذه فریضة الصدقة او د صحیح بخاری په یو روایت کښې داسې دی، کتب له هذا الکتاب لما وجهه الی بالبحرین، بسم الله الرحمن الرحیم، هذه فریضة الصدقة دلته کښې مضاف محذوف دې، ای نسخة فریضة الصدقة، لکه د دواړ حدیثونو نه پس یو

---

[1] ) کذافي المنهل لیکن په ظاهر کښې د روایت دسیاق او دهغې د الفاظو نه دا معلومیږي، چه عاملانو ته نه ورکول قصدا نه وو، بلکه چونکه دا کتاب نبی کریم ﷺ بالکل په آخری ورځو د ژوند کښې لیکلې وو، اوسه پورې عاملانو ته د حواله کولو نوبت راغلې نه وو، چه سانحهٔ ارتحال دنبی کریم ﷺ پیښنه شوه، بلکه د بعضې روایاتو نه خو دا معلومیږي، چه د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې مصدقینو سره هم داسې تحریر لیدلې شوې وو، لهذا داسې ونیل پکار دی، چه په ابتداء کښې چه کوم کتاب نبی کریم ﷺ اولیکلو، یعنی اصل تحریر، هغې لره خو هغوی د تورې په تیکی کښې محفوظ کړو، لیکن دهغې نقول ئې عاملانو ته حواله کړل، والله تعالی اعلم بالصواب، دې باره کښې نور زیات د تحقیق او تفتیش ضرورت شته.)

حدیث راروان دي، په هغې کښې داسې دی، هذه نسخة کتاب رسول الله(صلی الله علیه وسلم)، نسخة یعنی لیک، او نوشته یعنی هغه لیک دې چه هغې کښې دهغې صدقې او زکوة بیان دې کوم لره چه رسول اللهﷺ په مسلمانانو باندې معین کړې دې، او هغه فریضه ده. د کوم چه الله تعالی خپل نبی ته حکم ورکړې دې، یعنی د کوم د تبلیغ حکم ئې چه ورکړې دې، التی امر الله بها، دا جمله د ماقبل نه بدل واقع شوې ده، په دې کښې د فرض نسبت نبی کریمﷺ ته شوې دې، اګر چه فرض د الله تعالی د طرف نه دې، لیکن چونکه رسول اللهﷺ د الله تعالی د طرف نه داعی دې، په دې اعتبار سره د فرض نسبت نبی کریمﷺ ته اوشو، او یا دا فرض بمعنی دقدر دې، تقدیر یعنی تعین دنصاب، او په دې صورت کښې به کلام په خپل ظاهر باندې وی، د تاویل حاجت نشته، ځکه اګرچه اصل ایجاب خو د الله تعالی د طرف نه دې، لیکن هغه مجمل دې، نبی کریمﷺ دهغې تقدیر او تعین د بیان نصاب په ذریعه فرمائیلې دې.

دا حدیث په صحیح بخاری کښې هم دې، په هغې کښې د ثمامة نه روایت کونکې دهغه اورارهٔ عبدالله بن المثنی دې، علامه عینی فرمائي، دې حدیث لره امام بخاری په خپل صحیح کښې لس کرته په سندواحد سره ذکر کړې دې، چرته مقطعا او چرته مطولا، په هغې کښې په شپږو ځایونو کښې په کتاب الزکوة کښې ذکر کړې دې، ابن حزم فرمائي هذا حدیث فی نهایة الصحة عمل به الصدیق فی حضرة العلماء ولم یخالفه احد ۱ هـ( منهل)[1]

دا حدیث د حضرت ابن عمرؓ په روایت سره مخکښې راروان دې، په هغې کښې یو زیاتوالې شته، فلم یخرجه الی عماله حتی قبض فقرنه بسیفه(و قد تقدمت الحوالة)

علی المسلمین: ددې قید نه مستفاد کیږی، چه کافران د زکوة مخاطب او مکلف نه دی، وعلی هذا القیاس نور فروع،(دا یوه مشهوره اختلافی مسئله ده، دلته به په دې باندې کلام انشاء الله د حدیث بعث معاذؓ الی الیمن په ذیل کښې راشی) او چونکه شوافع د کافرانو د مکلف کیدو قائل دی، ددې وجه نه حافظ ددې تاویل په فتح الباری ۴ص ۲۵۲ کښې داسې کړې دې، چه د مسلمانانو قید د صحة اداء په اعتبار سره دې، ځکه چه د کافرانو زکوة ادا کول معتبر نه دی،[2] او په دې حثیت سره نه، چه هغوی ددې مکلف نه دی، او هغوی ته به په آخرت کښې په دې عذاب نه وی.

فمن سئلها من المسلمین علی وجهها فلیعطها یعنی د کوم مسلمان نه چه ددې کتاب مطابق د زکوة مطالبه اوکړې شی، نو هغه لره پکار دی، چه هغه خپل زکوة ساعی ته ورکړی، او د

---

[1] لیکن علامه عینی دې حدیث باره کښې د بعضو علماؤ نه تضعیف نقل کړې دی، په اصل کښې خبره داده، چه ددې حدیث یو جزء په ظاهر کښې د احنافو خلاف دې، احنافو په خپل تائید کښې یو بل حدیث پیش کړو، دهغې بیهقی تضعیف اوکړو، نو دهغې په جواب کښې علامه عینی ددې حدیث تضعیف هم د ډیرو امامانو نه نقل کړو، دعلم خو دغې حضراتو سره ماشاء الله کمی نه وه.

[2] پس د شوافع په نزد د کافر د زکوة مکلف کیدو مطلب داذې، چه په هغه واجب دی، چه اول ایمان راؤړی، او بیا زکوة وغیره فرائض ادا کړی.

چا نه چه مطالبه ددي د خلاف اوکړي شي، يعنې د ما وجب نه زيات، نو نه دې ورکوي، يا خو مطلب دادې، چه بالکل دې هغه ساعي ته نه ورکوي، او خپل زکوة دې په خپله ادا کړي، يا مطلب دادې، چه هغه مقدار زائد دې نه ورکوي، دلته کښې دا سوال پيدا کيږي، چه مخکښې په باب رضا المصدق کښې راروان دی، ارضوا مصدقيکم وان ظلمتم يعنې عامل له راضي واپس کړئ، او څومره زکوة چه هغه غواړي ورته ورکړئ، اګر که په تاسو باندې ظلم کولې شي، ددې دوه جوابه کيدې شي(١) په دې راتلونکې حديث کښې دهغې مصدقينو ذکر دې، چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې وو، چه صحابه دی، او ظاهر ده، چه داسې مصدقين ظلم هرګز نه شي کولې، دا امر آخر دې، چه مزکی دا ګڼړي چه په ما ظلم کيږي، او دا حديث چه دلته دې، په دې کښې عام ضابطه تر قيامته پورې بيان کړې شوې ده، او په دې کښې هر قسمه مصدق کيدې شي، عادل هم او ظالم هم، لهذا د دواړو احاديثو محمل مختلف شو.

دويم جواب دادې، چه په دې دواؤ مختلفو حکمونو کښې احدهما د بيان جواز او رخصت دپاره دې، او دويم حکم د استحباب او ترغيب دپاره دې. (بذل)

**تشريح: قوله:** فيما دون خمس و عشرين من الابل الغنم فی کل خمس ذود شاة.

## د نصاب ابل بيان:

اوس دلته نه د نصاب بيان شروع کيږي، دا د باب په شروع کښې تير شوې دی، چه نصاب ابل پنځه اوښان دی، دلته کښې داده، چه څليريشتو پورې هم دا حکم دې، په هر پنځو کښې يوه بزه واجبه ده، او هرکله چه اوښان پنځويشت شي، نو بيا به زکوة بدل شي، او په ځائې د بزو د اوښانو بچی به واجب وی، د يو خاص عمر، چه هغې ته بنت مخاض وئيلې شي. په دې خبره پوهيدل پکار دی، چه اصل داده، چه د مال زکوة دهغې مال د جنس نه ادا کړې شی، او د زکوة بالقيمة مسئله مختلف فيه ده،[1] د احنافو په نزد جائز ده، او د جمهورو په نزد ناجائز ده، ليکن شريعت مطهره دا قاعده په زکوة الابل کښې جاری کړې نه ده، نو په پنځو اوښانو کښې يوه بزه ده، او په لسو کښې دوه بزې دی، دغه شان څليريشتو پورې په هر پنځو کښې يوه بزه ده، وجه ددې داده، چه که پنځو اوښانو کښې اوښ ورکړې شی، نوپه دې کښې دمالک لوئې نقصان دې،اوکه دپنځويشتو نه کم کښې هيڅ واجب نه کړې شی، نو ظاهر ده چه په دې کښې د فقيرانو نقصان دې، ددې وجه نه شريعت د جانبينو په رعايت کښې دا اوکړل، چه د زکوة الابل ابتداء ئې په بزې سره اوکړه، او هرکله چه اوښان کافی او زيات مقدار کښې شی، يعنې پنځويشت نو په هغې کښې ئې يو اوښ کم عمر والا واجب کړو، بيا دهغې نه پس دهغې نه زيات عمر والا، بيا دغه شان بتدريج اضافه اوشوه، سبحان الله څومره قدرې درعايت خيال ئې ساتلې دې.

---

[1] يعنې چه کوم څيز په زکوة کښې اصالة واجب دې، دهغې په ځائې دهغې د قيمت برابر بل يو څيز ادا کول.

## د نصاب ابل تفصیل :

ددې نه پس پوهه شئ، چه په دې حدیث یعنی کتاب الصدقه کښې د اوښانو کوم نصاب بیان کړې شوې دې، هغه داسې دې، د پنځو نه څلیریشتو پورې په هر پنځو کښې یوه بزه، نو څلیریشتو پورې څلور بزې واجب شوې، او په پنځو کښې بنت مخاض، پنځه دیرشو پورې، بیا په شپږ دیرشو کښې بنت لبون پنځه څلویښتو پورې، بیا شپږ څلویښتو کښې یوه حقه، شپیتو پورې، بیا یو شپیتۀ نه پنځه اویا پورې یوه جذع، مابین النصابین په هر ځائي کښې عفو دې، چه دهغې نه فقهاء په وقص سره تعبیر کوی، یعنی څرنگه چه په پنځو کښې یوه بزه واجبیږی، نو په نهو کښې هم یوه واجبه ده، نو د پنځو نه مخکښې نهو پورې وقص شو، بیا مخکښې په دې عفو کښې زیاتوالې اوشو، لکه د بنت مخاض ابتداء چه د کوم ځائي نه اوشوه، یعنی پنځویشت، دلته نه وقص تقریبا دوچند شو، یعنی لس، او بیا مخکښې په دې کښې نور هم زیاتوالې اوشو، او وقص د لسو په ځائي پنځلس شو، لکه چه د دې تفصیل نه معلومیږی.

د جذع نه زیات عمر والا اوښه په زکوة کښې واجب نه ده، بلکه دهغې نه پس ئې داسې اوکړل، چه د جذع نه کم عمر والا د یو په ځائي دوه واجب دی، لکن د شپږ اویا نه نوی پورې زکوة دوه بنت لبون دې، (۱) بیا یونوی نه یوسل شلو پورې دوه حقې واجبې دی، دلته نه وقص د مخکښې نه هم دوچند شو، د پنځلسو په ځائي دیرش شو، دا ټول تفصیل په دې حدیث کښې ذکر دې، او د پنځو نه یو سل شلو پورې چه کوم تفصیل په دې حدیث کښې ذکر دې، هغه د ائمه اربعه په نزد متفق علیه دې، صرف په یو جزء کښې اختلاف دې، هغه دا فاذا بلغت خمسا و عشرین ففیها بنت مخاض، د جمهور علماؤ او ائمه اربعه مذهب هم دادې، چه په پنځویشتو کښې یو بنت مخاض دې، لیکن د حضرت علی رضی الله عنه د یو روایت چه ددې باب شپږم حدیث دې، هغې کښې داسې دی، چه په پنځویشتو کښې پنځه بزې، او په شپږویشتو کښې بنت مخاض، د حضرت علی رضی الله عنه دا روایت په بذل المجهود کښې د فتح الباری په حوالې سره صرف مصنف ابن ابی شیبه ته منسوب کړې شوې دې، او دا روایت دلته ابوداؤد کښې هم مخکښې راروان دې، سفیان ثوری رحمه الله فرمائي چه په دې روایت کښې په رجال علی رضی الله عنه کښې چانه غلطي واقع شوې ده، ځکه چه د حضرت علی رضی الله عنه نه دا خبره بعیده ده، چه هغه ددې قائل وی، ځکه په دې صورت کښې موالات بین الواجبین لازم راځي، یعنی د دواؤ واجبو په مینځ کښې وقص نشته، چه د اصول زکوة خلاف ده، (منهل) په دې حدیث کښې د مختلفو اوښانو نومونه راغلې دی، دهغې تشریح په حاشیه کښې شوې ده. (۲)

---

(۱) ځکه چه بنت لبون د شپږ دیر ۳۶، نه شروع کیږی او په شپږ اویا ۷۶ کښې دوه شپږدیرش ۳۶ وی، دغسې د پنځه څلویښت ۴۵ نه پس حقه شروع کیږی او یونوی ۹۱ د دوه خله پخه څلویښت ۴۵ نه زیاتیږی اگرچه په دوه خله شپږڅلویښت ۴۶ باندې مشتمل نه دی.

(۲) بنت مخاض د اوښې هغه بچې چه پوره د یو کال وی، اوپه دویم کال کښې داخل شوې وی، د مخاض نه مراد حامله اوښه ده، هسې خو اصل معنی د مخاض حمل دې، ځکه چه اوښه ...... لـه

فان لم يكن فيها بنت مخاض فابن لبون په اوښانو کښې د نر او مادې فرق شرعا معتبر دې، ماده زياته قيمتي وي، د نر نه. او دا ظاهره ده، چه په زکوة کښې د کوم عمر والا بچې واجب وي، ضروري نه ده چه هغه په رمه کښې موجود وي، ددې نه وجې دې باره کښې هدايت فرمائي چه که بنت مخاض موجود نه وي، نو دهغې په ځائي نر يعنى ابن لبون دې ورکړي، بنت مخاض خو د يو کال وي، او ابن لبون د دواؤ کالو وي، نو ګويا د وصف انوثة د انتفاء په وجه چه کوم نقصان اوشو، دهغې پوره والې د عمر په زياتوالې سره اوشو، دا خبره د امام ابويوسف او امام شافعي په نزد خو ختمي او معياري ده، ليکن د احنافو په نزد دا خبره معياري نه ده، بلکه زمونږ په نزد به د قيمت اعتبار وي، پس که ابن لبون په قيمت کښې د بنت مخاض برابر وي، نو بيا خو هغسې به کولې شي، کوم چه حديث کښې دی، ګنې د قيمت په اعتبار سره به پوره والې کولې شي، او دا حديث په دې محمول دې، چه ممکن ده، چه دا دواړه په دغه وخت کښې قيمت کښې برابر وو، نو داسې کولو سره معادله فى المالية حاصليدله، اوهم دا مقصود دې.

فاذا زادت على عشرين و مائة ففى كل اربعين بنت لبون و فى كل خمسين حقة، دا ستيشن راغلو، يو سل او شلو پورې چه څه تير شو، هغه ټول اجماعي وو.

### د شپږ شلو نه پس په نصاب ابل کښې د امامانو اختلاف:

اوس دلته نه مخکښې په رواياتو کښې هم اختلاف دې، او د عالمانو په مينځ کښې هم، ددې روايت په وجه، کوم چه دلته ذکر دې، شافعيه او حنابله فرمائي چه د شپږ شلو نه پس به حساب دائر وي، په اربعينات او خمسينات باندې، په هر څلويښتو کښې يو بنت لبون او په پنځوسو کښې يوه حقه، او دا حساب ددې دواړو په نزد د شپږو شلو نه پس سمدستي شروع کيږي، نو په ۱۲۱ کښې درې اربعينات دی، ددې وجه نه په دې کښې به درې بنات لبون وي، او په ۱۳۰ کښې دوه اربعينات او خمسين دې، لهذا دوه بنت لبون او يوه حقه به واجبه وي.

او مالکيه فرمائي چه د ۱۲۰ نه پس به حساب خو په اربعينات او خمسينات باندې دائر وي، ليکن ددې حساب ابتداء به د ۱۲۰ نه پس سمدستي د ۱۲۱ نه نه کيږي، بلکه د ۱۳۰ نه به کيږي، هغوی فرمائي چه په دې حديث کښې د زياتوالې نه مراد د دهائئ زياتوالې دې، مطلق زياتوالې مراد نه دې، ځکه چه په ۱۲۰ کښې هم درې اربعين دی، او هلته کښې

---

۶..... بچې راؤړلو نه يو کال پس عام طور باندې حا مله کيږي، ددې وجه نه ددې عمر بچې ته بنت مخاض وئيلې شي، بنت لبون د اوښې هغه بچې چه د دواؤ کالو وي، او په دريم کښې داخل شوې وي، ځکه چه اوس يو کال مخکښې ددۀ مور حامله وه، اوس نور يو کال تيريدو نه پس وضع حمل اوشو، او هغه اوښه پيئ ورکونکې شوه، حقه د اوښې هغه بچې چه د دريو کالو وي، او په څلورم کښې داخل شي، ځکه چه دې اوس ددې مستحق شو، چه نر پرې اوخيژي، او ددې معنى په لحاظ سره د حقې صفت طروقة الفحل راوړي، طروقة په معنى د مطروقة او فحل نر، يعنى چه نر په هغې اوخيژي، (هغې سره يوځائي والې اوکړي) مخکښې يو مستقل باب راروان دې، باب تفسير اسنان الابل، په هغې کښې مصنف دا ټول ځيزونه، د اوښانو نومونه او دهغې مصاديق بيان کړي دی.

بالاتفاق حقتين واجب دی، لهذا په دې اجماعی حکم کښې تغير به د يوې دهائی نه پس شروع کيږی، لهذا د ١٢٠ نه پس ١٢٩ پورې خو به حقتين واجب وی[1]، او ١٣٠ ته رسيدلو نه پس به دوه بنت لبون او يوه حقه واجبه وی.

او احناف فرمائي چه د ١٢٠ نه پس به فريضه دوباره شروع کړې شی، يعنی استيناف به اوکړې شی، يعنی په پنځو کښې يوه بزه، لهذا په ١٢٥ کښې حقتين او يوه بزه، او په ١٣٠ کښې حقتين او دوه بزې به واجبې وی، او په ١٣٥ کښې به حقتين او درې بزې او په ١٤٠ کښې به حقتين او څلور بزې، او په ١٤٥ کښې به حقتين او يو بنت مخاض او په ١٥٠ کښې به درې حقې واجبې وی.

يونيم سل نه پس به بيا استيناف اوکړې شی، نو په ١٥٥ کښې درې حقې او يوه بزه، او په ١٦٠ کښې به درې حقې او دوه بزې، او په ١٦٥ کښې به درې حقې او درې بزې، او په ١٧٠ کښې به درې حقې او څلور بزې، او په ١٧٥ کښې به درې حقې او يو بنت لبون او په ١٨٦ کښې به درې حقې او يو بنت لبون او په ١٩٦ کښې به څلور حقې واجبې وی دواؤ سوؤ پورې، اوپه دواؤ سوؤ کښې اختيار دې، که د اربعينات په اعتبار سره پنځۀ بنات لبون ورکوی، او که د خمسينات په اعتبار سره څلور حقې ورکوی، ثم تستانف کما بينا(بذل عن السرخسی)

د جمهورو استدلال د حديث الباب نه دې، چه يقينا صحيح او قوی دې، او دا حديث د ابوداؤد نه علاوه په صحيح بخاری کښې په ډيرو ځايونو کښې شته، او هم داسې سنن نسائي او سنن ابن ماجه کښې هم ذکر دې.

## د شپږو شلو ١٢٠ نه پس استيناف کښې د احنافو مستدل:

او د احنافو استدلال د عمروبن حزم د کتاب الصدقة نه دې، په هغې کښې داسې دی، حماد بن سلمه وائي چه ما قيس بن سعد ته اوئيل چه ما دپاره د محمد بن عمرو بن حزم کتاب الصدقة حاصل کړه، هغه ماته هغه کتاب راکړو، او وې وئيل، چه ما د ابوبکر بن محمد بن عمرو بن حزم نه اخستلې دې، او دا ئې هم اوئيل چه رسول اللهﷺ دا کتاب دهغوی نيکۀ عمروبن حزم دپاره ليکلې وو.

حماد وائي ما هغې لره اولوستلو، نو په هغې کښې د نصاب ابل باره کښې داسې وو، فاذا کانت اکثر من عشرين ومائة فانه يعاد الى اول فريضة الابل علامه عينی ٩ص ٢٠ شرح بخاری کښې فرمائي رواه ابوداؤد فی المراسيل واسحاق بن راهويه فی مسنده والطحاوی فی مشکله، په اصل کښې کتب الصدقات د نبی کريمﷺ نه متعدد منقول دی، بعضې امامانو يو اختيار

[1] ) علامه عينی په (ص ٢٠ ج ٩) د اما احمد مذهب هم دا ګرځولې دې او پورته چه د شافعيه کوم مسلک تيرشوې دې دغه ئې دامام احمد يو روايت ګرځولې دې خو زه وائم چه د حنابله په کتابونو کښې په مثل د نيل المآرب وغيره دامام احمد مسلک همدغه ليکلې شوې دې کوم چه د شافعيه ؤ دې اوعلامه عينی دمالکيه نه درې روايات نقل کړی دی يودغه کوم چه ذکرشو دويم داچه هغه ته اختيار دې، درې بنت لبون دې ورکړی که غواړی نو دوه حقه دې ورکړی، او دريم داچه درې بنات لبون مقرردی، څنګه چه د شافعيه ؤ په نزد دی، ابن عبدالبر همدې ته صحيح وئيلی دی.

کړې دې، بعضو بل لره، ددې تفصیل په عینی شرح بخاری کښې موجود دې،[1] او په دې روایت باندې بیهقی وغیره د شوافعو شارحینو څه اعتراضونه هم کړې دی، هغه اعتراضات او دهغې جوابونه پوره په تفصیل سره عمدة القاری کښې موجود دی،[2] دلته کښې دهغې تفصیل ګنجائش نشته.
د استیناف فریضه قول د حضرت علی،ابن مسعود، ابراهیم نخعی او سفیان ثوری نه هم منقول دې،

**د احنافو د طرف نه د حدیث الباب توجیه :**

او دحدیث الباب په باره کښې د احنافو طرف نه جواب دادې، چه دا حدیث زمونږ خلاف نه دې، بلکه زمونږ هم په دې عمل دې، هغه دا چه داسې اوئیلې شی، فاذا زادت کښې زیادت نه زیادت کبیره مراد دې، لکه چه مالکیه وائی، چه ددې زیادت نه مطلق زیادت مراد نه دې، بلکه د دهائی زیاتوالې مراد دې، نو په ۱۵۰ اوښانو کښې زمونږ په نزد هم درې حقې دی، او په ۲۰۰ کښې مالک ته اختیار دې، که څلور حقې د خمسیناتو په اعتبار سره ورکوی، او که پنځه بنات لبون ورکوی، د اربعیناتو په اعتبار سره، دویمه خبره داده، چه په ۱۲۰ کښې باتفاق آثار و باتفاق علماء حقتین واجب دی، او د ۱۲۰ نه پس آثار مختلف دی، پس د مختلف فیه په وجه متفق علیه پریخودل مناسب نه دی، لهذا د ۱۲۰ نه پس احنافو حقتینو لره باقی اوساتل او استیناف والا روایت باندې ئې عمل اوکړو، په دې صورت کښې جمع بین الروایتین راځی، او د یو روایت اهمال لازم نه راځی،(قاله شمس الائمه السرخسی)

**یو اشکال او جواب :**

لیکن دلته کښې یو اشکال دې، هغه داچه ددې باب په څلورم حدیث کښې چه دهغې ابتداء په حدثنا محمد بن العلاء سره ده، په هغې کښې د ۱۲۰ نه پس صراحة هم هغه مذکور دې، کوم چه شوافعو اختیار کړې دې، یعنی ۱۲۱ په دې کښې درې بنات لبون واجب دی، ددې جواب دادې، چه دا د مشهور روایت نه خلاف دې، په عرف الشذی کښې لیکلې دی، چه د امام دارقطنی د ظاهر کلام نه معلومیږی،، چه دا زیاتوالې په هغې حدیث کښې بطور تفسیر د یو راوی د طرف نه دې، یعنی د حدیث دا جمله مدرج ده، مرفوعا ثابت نه ده، او هسی ددې یوه توجیه هم کیدې شی، چه د علامه سرخسی نه منقول ده، هغه داچه ۱۲۰ اوښان د دریو سرو په مینځ کښې مشترک دی، په داسې طریقې چه د یو سرې **۳۵** دی او د یو ۴۰ دی، او د یو **۴۵**.

---

[1] ) چه ابن العربی په المسالك شرح مؤطا مالك کښې لیکلې دی، چه د نبی کریم ﷺ نه د زکوة ماشیه باره کښې درې کتابونه ثابت دی، کتاب ابوبکر، کتاب ال عمروبن حزم، کتاب عمر بن خطاب، او هم په دې د امام مالک اعتماد دې، مخکښې ئې لیکلې دی، قال ابو الحارث قال احمد بن حنبل کتاب عمروبن حزم في الصدقات صحيح، واليه اذهب ١هـ من العيني ٩ص١٦، زهٔ وایم، کتاب د عمر بن الخطاب رضی الله عنه په ابوداؤد کښې مخکښې راروان دې، او کتاب ابی بکر خو په دې حدیث الباب کښې مذکور دې، او د کتاب عمروبن حزم حواله مخکښې تیره شوه)

[2] ) په هغې کښې بعضې په درس ترمذی(از مولانا مفتی تقی عثمانی) کښې هم لیکلې دی)

په ۴۰ او ۴۵ کښې خو یو یو بنت لبون شو، او د کوم شریک چه اوښان ۳۵ وو، هغه ته یو بل حاصل شو، مخکښې د هغه په ذمه بنت مخاض وو، اوس ددې یو زیاتوالی سره په هغه بنت لبون واجب شو، په دې صورت کښې مجموعی طور باندې په ۱۲۱ کښې درې بنات لبون شو، په دې تاویل کښې اګر چه ظاهرا بعد دې، لیکن د تطبیق بین الروایات عذر ددې دپاره کافی دی.

**فاذا تباین اسنان الابل فی فرائض الصدقات فمن بلغت عنده صدقة الجذعة ولیست عنده جذعة وعنده حقة فانها تقبل منه وان یجعل منها شاتین او عشرین درهما.**

## د حدیث شرح او دتفاوت ما بین السنین پوره کولو طریقه:

ددې تشریح داده، چه دا ضروری نه ده، چه په چا زکوة کښې د کوم عمر اوښ واجب شوې وی، هغه اوښ دهغه سره موجود وی، که موجود وو، نو فبها، او که نه وو، نو دهغې حل په حدیث کښې بیان کړې شوې دې، چه کوم واجب دې، یا دهغې نه یو کال زیات عمر والا دې واخلی، که هغه وی، یا یو کال کم عمر والا دې واخلی، او ددې تفاوت ما بین السنین د پوره والی صورت دادې، چه په یو شکل کښې به مالک ساعی ته عشرین درهم یا شاتین ورکړی، او په یو صورت کښې به دساعی نه واخلی، د تلافۍ دا شکل د امام شافعی، احمد، او داؤد ظاهری په نزد اصولی او معیاری دې، او د احنافو په نزد په‌دې کښې اصل قیمت دې، د قیمت په اعتبار سره چه کوم کموالې یا زیاتوالې دې، دهغې اعتبار به وی، لکه څرنګ چه قیاس تقاضا کوی، او د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې، چه هغوی ددې تفاوت تلافی په یو شاة یا لس درهم سره فرمائیلې ده، او ددې حدیث توجیه داده، چه ممکن ده هغه وخت کښ (د کوم وخت چه دا حدیث دې) د قیمت په اعتبار سره ددې دواړو په مینځ کښې دومره فرق وو، والله تعالی اعلم،

او د امام مالک رحمه الله مسلک په منهل کښې داسې لیکلې دې، چه دهغه په نزد د کوم عمر چه واجب دې، هم هغه ورکول ضروری دې، اګر که مالک هغه په بیع واخلی او ورکړی.

**ومن بلغت عنده صدقة ابنة مخاض ولیس عنده الا ابن لبون ذکر فانه یقبل منه ولیس معه شیء،** بره د تفاوت والا حدیث کښې چه څومره شکلونه مذکور دی، هغه ټول د یو قسم وو، یعنی د عمر په اعتبار سره، او دلته کښې هغه تفاوت بیانولې شی، چه د ذکورت او انوثت په اعتبار سره وی، پس زده کول پکار دی، چه په ابل کښې د ذکر او انثی فرق شرعا معتبر دې، د دواړو په قیمت کښې فرق وی، د انثی قیمت زیات دې، د ذکر نه، په خلاف د بقر او غنم نه، چه په هغې کښې د نر او ښځې فرق معتبر نه دې، خصوصا د احنافو په نزد، او دا هم واضحه ده، چه د ابل په زکوة کښې اصالة انثی واجبه وی، لیکن که چا سره انثی نه وه، بلکه ورسره ذکر وو، لکه چه په مذکوره حدیث کښې دی، چه په یو سړی بنت مخاض واجب شو، لیکن بنت مخاض دهغه سره نه وو، البته دهغې نه دیو کال د زیات عمر ذکر دې، یعنی ابن لبون، نو په دې صورت کښې د ائمه ثلاثه په نزد دا خبره متعین ده، (وهو روایة عن ابی یوسف) چه د بنت مخاض به ځائې په ابن لبون اخستلې شی، کمافی الحدیث، ګویا

د انوثت تلافي به زيات عمر سره اوکړې شي،[1] او د حضرت امام ابوحنيفة رحمه الله او حضرت امام محمد رحمه الله په نزد د بنت مخاض په ځائي ابن لبون اخستل متعين نه دى، بلکه دهغوى په نزد دلته کښې هم د قيمت اعتبار دې.

**وفي سائمة الغنم اذا كانت اربعين ففيها شاة الى عشرين ومائة الخ**

## د نصاب غنم تفصيل:

ددې ځائي نه د بزو نصاب شروع کيږى، چه څلويښت دې، او شپږ شلو پورې بالاتفاق هم دا دى، ددې نه پس د ۱۲۱ نه تر دواؤ سوؤ پورې دوه بزې دى.

**فاذا زادت على مائتين ففيها ثلاث شياه الى ان تبلغ ثلاثمائة فاذا زادت على ثلاثمائة ففى كل مائة شاة شاة.**

او هر کله چه د دواؤ سوؤ نه زياتې شى، نو په هغې کښې درې بزې دى، تردې پورې چه درې سوؤ پورې اورسيږى، او هرکله چه د درې سوؤ نه زياتې شى، نو بيا په هر سلو کښې يوه بزه ده، يعنى چه کله په درې سوؤ باندې سل زياتې شى، يعنى څلور سوه شى، نو بيا به په دريو بزو يوه زياته شى، لهذا درې بزې به د ۲۰۱ نه شروع شى، او ۳۹۹ پورې به وى،(دا نه دى ګنړل پکار چه درې بزې به صرف ۳۰۰ پورې وى، لکه چه د ظاهرى الفاظو نه شبه کيږى) او هرکله چه دريو سوؤ باندې پوره سل زياتې شى، يعنى څلور سوه شى، نو بيا به يوه بزه زياته شى، او په هر سلو کښې به يوه بزه زياتيږى، لهذا په څلورو سوؤ کښې څلور، ۴۹۹ پورې، او هرکله چه يوه زياته شى، او پوره پنځه سوه شى، نو په هغې کښې به پنځه شى.

دلته کښې يو اختلاف دې، هغه دا چه فاذا زادت على ثلاثمائة کښې د جمهورو په نزد خو د سلو زياتوالې مراد دې، لهذا ۳۹۹ پورې به درې بزې واجبې وى، او د حسن بن صالح په نزد مطلق زياتوالې مراد دې، لهذا دهغه په نزد به ۳۰۱ کښې څلور بزې واجبې وى، ۳۹۹ پورې، او بيا به مخکښې څلورو سوؤ کښې پنځه بزې واجبې شى.

**قوله: ولا يؤخذ فى الصدقة هرمة ولا ذات عوار.**

## د حديث شرح:

د نصاب د بيان نه پس دا بيان فرمائي چه کوم قسم بزه يا څاروې په زکوة کښې اخستل پکار دى، نو فرمائي چه په زکوة کښې به زړه(بوډۍ) نه اخلى، او نه عيب دار، څرنګه عيب مراد دې؟ بعضې وائي هغه عيب چه دهغې په وجه بيع کښې خيار رد حاصليږى، چه د تاجرانو په نزد د نقصان سبب وى، او بعضې وائي هغه عيب مراد دې، چه د جواز اضحيه نه مانع وى،

**ولا تيس انعم الا ان يشاء المصدق،** او نه به اخستلې کيږى په زکوة الغنم کښې نر، په زکوة البقر کښې نر اخستلې شى بالاتفاق، دلته کښې منع دې، مصدق په دواؤ طريقو سره

---

[1] ليکن دهغوى په نزد دا په هر ځائي کښې نه دى، لکه د بنت لبون په ځائي به حقه ذکر(هغه نر چه د بنت لبون نه يو کال لوئي وى) نشى اخستلې، خو هغې لره د بنت مخاض په ځائي اخستلې شى، هکذا عند الشافعيه والمالکية ليکن د حنابله په نزد جائز ده،(کذا فى هامش البذل)

لوستلې شوې دي،مصدق په تخفيف دصاد سره، صدقه وصولونکې، يعنی ساعی، او مصدق د صاد په تشديد سره، صدقه ادا کونکې يعنی مالک،(١) په اول صورت کښې د استثناء تعلق به دريو وارو سره وی، لهذا که ساعی د څه مصلحت د وجې نه بوډئ بزه(مثلا د کثرت لحم وغيره، چه په هغې کښې د فقيرانو فائده زياته وی) يا عيب دار يا نر اخستل غواړی، نو اخستلې شی، او په دويم کښې صورت کښې به د استثناء تعلق صرف آخری يعنی تيس سره وی، يعنی مالک که تيس په خپله ورکول غواړی، نو ورکولې شی، ساعی ته په خپله د اخستلو حق نشته،(٢) او دا ددې وجه نه چه د بزو په رمه کښې نر يو يا دوه وی، چه د مالک د ضرورت څيز دې، د جفتی وغيره دپاره، ددې وجې نه که هغه خپله غواړی نو ورکولې شی، ولا يجمع بين مفترق ولا يفرق بين مجتمع خشية الصدقة، دا جمله د توضيح او تشريح محتاجه ده، او ددې په شرح کښې د ائمه فقه اختلاف هم دې، ددې وجې نه په دې پوهيدل هغه اختلاف پيژندلو باندې موقوف دی.

## خلطهٔ جوار مؤثر دې که نه؟

د اختلاف صورت دادې، چه د شافعيه او حنابله په نزد د سوائمو د زکوة تعلق د څاروو د اختلاط په صورت کښې په قطائع(٣) باندې دې، په ملک باندې نه دې، بلکه ملک د خليطين په منزله د ملک رجل واحد دې،او هم دا مسلک د امام مالک هم دې، ليکن ددوی او د امام شافعی رحمه الله په مسلک کښې لږ شان فرق دې، چه مخکښې به معلوم شی، لهذا په رمه کښې چه څومره څاروی وی، هغې ته به کتلې شی، که هغه د يو سړې ملک وی، يا د څو سړو ملک وی، ملک دخليطين په منزله د ملک رجل واحد دې، الحاصل خلطة الجوار مؤثر دې،(٤) د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد خو په نصاب او مقدار واجب دواړو کښې، او د امام مالک رحمه الله په نزد صرف په مقدار کښې واجب دې، په نصاب کښې واجب نه دې، بلکه دهغه په نزد د هر خليط صاحب نصاب کيدل ضروری دی، دې لره په

---

(١) قال الحافظ ٣ص ٢٥٤ اختلف في ضبطه الاكثر علي انه بالتشديد والمراد المالك وهذا اختيار ابي عبيد و منهم من ضبطه بتخفيف الصاد وهو الساعي اهـ او په دې کښې نور هم اقوال دی، مونږ د خپلو استاذانو نه دا دوه اوريدلې دی)

(٢) دلته کښې دا سوال پيدا کيږی، چه بيا په اول صورت کښې د استثناء تعلق دريو وارو سره منلو کښې د اخذتيس اختيار ساعی ته ولې ورکړې شو، ددې جواب دبعضې شارحينو دکلام نه دا معلوميږی، چه په تيس کښې يو حيثيت بل هم شته، هغه داچه ددې غوښه د ښځې په مقابله کښې نظيفه او خوندوره نه وی،(د غير خصی کيدو په صورت کښې) ددې وجې نه ونيلې شوې دی، چه که ساعی اخستل غواړی نو اخستلې شی)

(٣) جمع قطيعه معنی رمه)

(٤) دې ته خلطة الاوصاف هم ونيلې شی، د جمهورو په نزدې ددې تحقق په څو څيزونو کښې اشتراک او اتحاد باندې موقوف دې، اتحاد في المراح(مبيت) والمسرح(هغه ځائې چه کوم ځائې کښې مخکښې نه څاروی جمع کيږی، بيا دهغې ځائې نه صحرا ته ځی) والمرعي(د څريدلو ځائې) والفحل(نر جفتی کونکې) والمشرب( تالاب يا نهر) والراعي ددې نه علاوه نور هم بعضې شرائط دی، او بعضې وائې چه د خلطه دپاره صرف اتحاد في الراعي والمرعي کافی دې)

مثال سره زده کړئ، په نصاب کښې د مؤثر کیدلو شکل دادې، په یوه رمه کښې مثلا څلویښت بزې دی،(١) چه د دواؤ سړو ملک دې، نو د شافعیه(٢) او دحنابله په نزد په دې کښې یوه بزه واجبه ده(٣) لکه چه که دا بزې د یو سړي وې، نو بیا هم په هغې کښې یوه بزه واجبه وه، او د امام مالک رحمه الله په نزد په دې کښې به زکوٰة واجب نه وی، ځکه چه هر خلیط صاحب نصاب نه دې.

او که یو خلیط صاحب نصاب وی، او بل نه وی، نو زکوٰة به صرف په صاحب نصاب واجب وی، په دویم شریک به واجب نه وی، مثلا یوه رمه کښې شپیتۀ بزې دی، څلویښت د یو سړي او شل د بل سړي، نو په دې صورت کښې زکوٰة صرف څلویښتو والا باندې واجب دې.

او په مقدارواجب کښې د مؤثر کیدو مثال دادې، چه په یوه رمه کښې مثلاً د دواؤ سړو اتیا بزې دی، د هر یو څلویښت څلویښت نو په دې صورت کښې د ائمه ثلاثه په نزد(٤) په زکوٰة کښې صرف یوه بزه واجبه ده، یعنی نیمه نیمه.

او د احنافو په نزد خلطۀ جوار مطلقا معتبر نه دې،(٥) نه په نصاب کښې او نه په مقدار واجب کښې، بلکه په ملک باندې مدار دې، لکه چه په نورو مالونو مثلا سرۀ زر، او سپین زر وغیره کښې زکوٰة ادا کولې شي.

---

(١) یا ددې نه زیاتې، تردې پورې که په رمه کښې څلویښت بزې د څلویښتو مالکانو وې نو بیا هم.

(٢) د بعضې کتابونو د شوافعو نه معلومیږی، چه په خلیطینو کښې کم از کم د یو صاحب نصاب کیدل ضروری دی، مثلا دوه سړی په شلو بزو کښې شریک دی، نصفا نصف، او په هغې دوارو کښې صرف د یو سړي دیرش بزې نورې دی، نو اوس دا صاحب الثلاثین صاحب نصاب شو، نو په دې صورت کښې زکوٰة یعنی یوه بزه به واجبه وی، چه دهغې به پنځۀ حصې کولې شي، ځکه چه مجموعه د مالونو خمسین ده، پس په دغې پنځو حصو کښې به یو خمس د لسو بزو والا په حصه کښې وی، او باقي څلور اخماس به د بل شریک په حصه کښې وی.

(٣) د هر خلیط په ذمه نیمه بزه واجبه شوه.

(٤) علامه عیني رحمه الله فرمائي د جمهورو په نزد د خلطه اثر په ایجاب زکوٰة کښې هم کیږی، او هم ذ...نګې په تکثیر زکوٰة کښې هم، او په تقلیل زکوٰة کښې هم، مثال الاول : په یوه رمه کښې د خلیطینو پنځه اوښان یا څلویښت بزې وې، نو په دې کښې زکوٰة واجب دې، او که خلطه نه وې، نو زکوٰة به واجب نه وو، مثال الثانی : په یوه رمه کښې خلیطینو کښې د هر یو یو سل یو(١٠١) بزې دی، تولې دوه سوه دوه(٢٠٢) دی، نو په دې صورت کښې درې بزې واجبې دی، په هر سړي باندې شاة او نصف شاة(یوه نیمه بزه) او که خلطه نه وې، نو په هر یو به یوه یوه بزه واجبه وه، نو دلته کښې په مقدار زکوٰة کښې زیاتوالې د خلطې په وجه راغلو، مثال الثالث: په یوه رمه کښې یوسل شل(١٢٠) بزې د دریو سړو شریکې دی، یعنی د هر یو څلویښت څلویښت بزې دی، نو دلته کښې صرف یوه بزه واجبه ده، د هر یو په ذمه ثلث شاة( دریمه حصه بزه) او که خلطه نه وې، نو بیا درې بزې واجب کیدلې، دا د تقلیل مثال شو.

(٥) د خلطې په اصل کښې دوه قسمه دی، خلطة الشیوع چه هغې ته خلطة الاشتراک هم وئیلې شي، او خلطة الجوار چه ورته خلطة الاوصاف هم وئیلې شي، په قسم اول کښې د هر شریک ملک د بل د ملک نه ممتاز نه وی، لکه مثلا دواؤ سړو ته په میراث کښې مشترک طور باندې بزې ملاؤ شوې، چه هغې لره هغوی لاتقسیمې کړې نه دی، یا دوه سړی مشترک طور باندې بزې واخلی، او په قسم ثانی کښې د هر یو ملک د بل نه ممتاز وی، صرف په خارجي څیزونو کښې اتحاد وی، یعنی په راعی او مرعی وغیره کښې.

### خلطة الشيوع :

او هم داسې دهغوی په نزد خلطة الشيوع هم غير معتبر دې، اود طاؤس، او عطاء بن ابی رباح په نزد [١] خلطة الجوار خو معتبر نه دې، او خلطة الشيوع معتبر دې، او د ائمه ثلاثه په نزد دواړه معتبر دی.

### په خلطة الجوار کښې د جمهورو دپاره دليل :

خلطة الجوار مؤثر کيدلو دپاره د جمهورو استدلال د حديث الباب نه دې،[٢] هغه داسې، چه که د اجتماع او افتراق په حالت کښې شرعا فرق نه وی، نو دهغې نه د منع کولو څه فائده ده، هرکله چه د دواړو حالتونو حکم يو دې، لهذا معلومه شوه، چه د څارووْ د اختلاط او انفراد حکم مختلف دې، احناف وائي په نورو احاديثو سره د زکوة دپاره ملک نصاب شرط کيدل ثابت دی، او دلته کښې ددې حديث نه جمع او تفريق ملک په اعتبار سره مراد دې، چه ساعی د دواؤ سړو ملکيت د يو سړی ملکيت او نه ګڼړی، او هم داسې د يو سړی ملکيت د دواؤ سړو ملکيت اونه ګڼړی.

### شرح حديث :

ددې نه پس پوهه شئ، چه دا جمع متفرق او تفريق مجتمع، د کوم نه چه حديث کښې منع راغلې ده، دهغې تعلق د مالک او ساعی دواړو سره کيدې شی، دغه شان د خشية الصدقة تعلق هم د دواړو سره دې، د مالک خشية يا وجوب زکوة وی، يا زيادت زکوة او د ساعی خطره ددې مناسب وی، يعنی عدم وجوب زکوة يا قلت زکوة، چه د جمع او تفريق ګړ بړ يا په دې نيت وی، چه مابانديې زکوة واجب نشی، يا په دې نيت وی، چه کم واجب شی، او د ساعی د طرف نه ګړ بړ ددې وجې نه وی، چه زکوة واجب شی، يا زيات واجب شی، لهذا دلته کښې د څلورو مثالونو ضرورت دې، دوه مثالونه د جمع و تفريق من المالک، او دوه مثالونه جمع و تفريق من الساعی، چه لاندې ليکلې شوې دی.

١. ( جمع المفترق من المالک) څلويښت څلويښت بزې فی الواقع دوه څايونو کښې وې،(علی مسلک الجمهور) يا د دواؤ سړو ملکيت کښې وې،(علی مسلک الحنفية) لهذا په دې کښې دوه بزې واجبې وې، ليکن د ساعی په راتلو مالک هغه يو څائي کړې او ورته ئې اوښودلې،( که من حيث الملک وی او که من حيث المرعی) دې دپاره چه په هغې کښې صرف يوه بزه واجبه شی.

٢. (تفريق المجتمع من المالک) څلويښت بزې يو څائي وې، د ساعی په راتلو ئې هغه شل شل په دواؤ څايونو کښې تقسيم کړې، دې دپاره چه زکوة واجب نه شی.

٣. (جمع المفترق من الساعی) شل شل بزې متفرقې وې، په هغې کښې هيڅ زکوة واجب نه

---

[١] ) فقد حکي الامام البخاري في صحيحه عنهما اذا علم الخليطان اموالهما فلا يجمع مالهما اهـ او د ائمه ثلاثه په نزد دا دواړه قسمونه معتبر دی، والله تعالي اعلم)

[٢] ) په هغې کښې دی، لا يجمع بين متفرق ولا يفرق بين مجتمع)

وو، ليکن ساعي راغلو او هغه ئې مجتمع حساب کړې، دې دپاره چه يوه بزه په زکوة کښې واجبه شي.

۴. تفريق المجتمع من الساعي) اتيا بزې مجتمع وې، په هغې کښې د قاعدې مطابق يوه بزه واجبه وه، ليکن ساعي راغلو، او هغه ئې د څلويښتو څلويښتو دوه رمې حساب کړې، دې دپاره چه د يو په ځائې دوه بزې واجبې شي.

ددې ټولو دهوکو ورکولو نه په دې حديث کښې منع کړې شوې ده، وما کان من خليطين فانهما يتراجعان بينهما بالسوية، دا د کتاب الصدقة والا حديث يو جزء دې، حضرت امام بخاري خو په دې باندې مستقل ترجمة الباب قائم کړې دې.

**د حديث په شرح کښې د جمهورو او احنافو اختلاف:**

د خليطين نه څه مراد دې، په دې کښې اختلاف دې، جمهور ددې نه دوه سړي مراد اخلي، چه دهغوی په څاروؤ کښې خلطه جوار وی، يعنی د هر يو څاروی د بل نه ممتاز وی، هر يو خپل خپل څاروی پيژنی، بس صرف په راعی او مرعی وغيره اوصافو کښې اتحاد وی، عرض داچه د جمهورو په نزد په دې حديث کښې خلطة الجوار مذکور دې، ددې وجې نه هغوی ددې اعتبار کوی، او مؤثر ئې منی، اوپه دليل کښې دا حديث او ددې نه مخکښې چه کوم تير شوې دې، لا يجمع بين متفرق و لا يفرق بين مجتمع پيش کوی.

او احناف فرمائي چه خلطة الجوار څه معتبر څيز نه دې، او نه په حديث کښې دا مراد دې، بلکه خليط په لغت کښې وئيلې شی، شريک ته، او هم دا دلته کښې مراد دې، او د شريکانو چه کوم ملک وی، هغه غير مميز وی، لکه چه په خلطة الشيوع کښې وی، اګر چه دلته کښې خلطة الشيوع مراد دې، ليکن په دې معنی نه، چه هغه په ايجاب دزکوة يا په تقليل يا په تکثير د زکوة کښې مؤثر دې، په دې اعتبار سره خو زمونږ په نزد دواړه غير معتبر دی، بلکه په دې کښې د يو حسابی امر بيان دې، هغه داچه د مال مشترک زکوة د حصو مطابق واجب دې، لهذا کله چه ساعی د مال مشترک زکوة مشترک طور سره واخلي او لاړ شی، نو بيا به هغه شريکان(که دهغوی حصې متفاوتې وی) خپلو کښې خپل حساب ورکړه راکړې سره صفا کړی. او که شرکت برابرئ والا وو، نو ظاهره ده، چه زکوة به هم برابر واجب وی، نو بياد هيڅ تراجع حاجت نشته.[1] مثلا شپږ شلې ۱۲۰ بزې د دواؤ سړو په مينځ کښې مشترک وې، د يو دوه ثلثه يعنی اتيا وې، او د بل شريک يو ثلث يعنی څلويښت وې، اوس زکوة خو د دواړو برابر دې، د هر يو په ذمه يوه يوه بزه ده، ليکن بزې خو د يو بل نه جدا نه دی، بلکه په هره بزه کښې شرکت دې، نو په دې صورت کښې به ساعي په زکوة کښې دوه بزې واخلي، ليکن په دې دواؤ بزو کښې د صاحب الثلثين څلور ثلثه لاړل،(يعنی يوه بزه پوره او بلې کښې يو ثلث) او د صاحب الثلث صرف دوه ثلثه لاړل، اوس صاحب الثلثين لره پکار دی، چه د صاحب الثلث نه د يو ثلث بزې قيمت وصول

---

[1] مثلا دوه سړی په اتيا بزو کښې برابر شريک دی، اوس په دې کښې دوه بزې د زکوة واجب دی، نو ساعي دوه بزې واخستلې او لاړو، په هره بزه کښې نيمه د يو شريک ده او نيمه د بل شريک،

کړي، دې دپاره چه د دواړو په حصه کښې د زکوة يوه يوه بزه پاتې شي.
دا تشريح او مثال خو د احنافو د مسلک مطابق دې، او جمهور ددې تشريح او تمثيل داسې کوي، په يوه رمه کښې څلويښت بزې د دواؤ سړو دي، د هر يو شل شل، په هغې کښې صرف د يوې بزې زکوة دې، نيمه د يو شريک د حصې نه او نيمه دبل د حصې نه، او س ساعی چه د چا د حصې نه هم اخستلې وي، هغه لره پکار دي، چه د نيمې بزې قيمت د بل شريک نه وصول کړي،( دادې هغه تراجع بالسوية چه په حديث کښې ذکر دي) يو بل مثال واخلئ، هغه داچه په يوه رمه کښې يونيم سل ١٥٠ بزې وي، سل د يو او پنځوس د بل، په هغې کښې دوه بزې واجب وې، اثلاثا يعنی په هره بزه کښې يو ثلث د صاحب الخمسين او دوه ثلثه د صاحب المائة، ددې مطلب دا شو، چه د صاحب المائة په ذمه يوه بزه او دريمه حصه د بزې ده، او د صاحب الخمسين په ذمه د يوې بزې دوه ثلثه دي، اوس که ساعی دوه بزې د صاحب المائة د بزو نه يوړې، نو دا صاحب المائة به د بل شريک نه ديوې بزې ثلث قيمت واخلی، او که ساعی دوه بزې د صاحب الخمسين د بزو نه يوړې، نو دا صاحب الخمسين به د بل شريک نه د هرې بزې د دواؤ ثلثو قيمت واخلی،( ذكره العلامة القسطلانی ٣ص٤٤)

**فائده** : خلطة الجوار چه د هغې جمهور علماء قائل دی، په هغې کښې اختلاف دې، چه دا په کومو کومو څيزونو کښې معتبر دې، د حنابله او مالکيه په نزد صرف د څاروؤ په زکوة کښې معتبر دې، او د شوافعو په نزد د څاروؤ سره خاص نه دې، بلکه په زروع، ثمار او نقدين ټولو کښې معتبر دې.

وفی الرقة ربع العشر : رقه د راء په کسرې سره، او د قاف په تخفيف سره دې، الفضة الخالصة که مضروبه وي، يعنی سکه وي، يا غير مضروب، په اصل کښې ورق وو، واؤ حذف کړې شو، او دهغې په عوض کښې آخره کښې تاء راوړلې شوه، لکه وَعْدٌ و عِدَةٌ دې.

[١٥٦٨](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ الْحُسَيْنِ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: كَتَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كِتَابَ الصَّدَقَةِ، فَلَمْ يُخْرِجْهُ إِلَى عُمَّالِهِ حَتَّى قُبِضَ فَقَرَنَهُ بِسَيْفِهِ، فَعَمِلَ بِهِ أَبُو بَكْرٍ حَتَّى قُبِضَ، ثُمَّ عَمِلَ بِهِ عُمَرُ حَتَّى قُبِضَ فَكَانَ فِيهِ "فِي خَمْسٍ مِنَ الْإِبِلِ شَاةٌ، وَفِي عَشْرٍ شَاتَانِ، وَفِي خَمْسَ عَشْرَةَ ثَلَاثُ شِيَاهٍ، وَفِي عِشْرِينَ أَرْبَعُ شِيَاهٍ، وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ ابْنَةُ مَخَاضٍ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ، فَإِنْ زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا ابْنَةُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا حِقَّةٌ إِلَى سِتِّينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا جَذَعَةٌ إِلَى خَمْسٍ وَسَبْعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا ابْنَتَا لَبُونٍ إِلَى تِسْعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَفِيهَا حِقَّتَانِ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِنْ كَانَتِ الْإِبِلُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ فَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ، وَفِي كُلِّ أَرْبَعِينَ ابْنَةُ لَبُونٍ، وَفِي الْغَنَمِ فِي كُلِّ أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِنْ زَادَتْ وَاحِدَةٌ فَشَاتَانِ إِلَى مِائَتَيْنِ، فَإِنْ زَادَتْ وَاحِدَةٌ عَلَى الْمِائَتَيْنِ فَفِيهَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ إِلَى ثَلَاثِ مِائَةٍ، فَإِنْ كَانَتِ الْغَنَمُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ فَفِي كُلِّ مِائَةِ شَاةٍ شَاةٌ وَلَيْسَ فِيهَا شَيْءٌ حَتَّى تَبْلُغَ الْمِائَةَ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ مَخَافَةَ الصَّدَقَةِ، وَمَا كَانَ مِنْ خَلِيطَيْنِ فَإِنَّهُمَا يَتَرَاجَعَانِ

(1): سنن الترمذي/الزكاة ٤(٦٢١)،(تحفة الأشراف: ٦٨١٣)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الزكاة ٩(١٧٩٨)، موطا امام مالك/الزكاة ١١(٢٣)(وجادة)، سنن الدارمي/الزكاة ٦(١٦٦٦)، مسند احمد(١٤/٢، ١٥)(صحيح)

بَيْنَهُمَا بِالسَّوِيَّةِ وَلَا يُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَلَا ذَاتُ عَيْبٍ، قَالَ: وَقَالَ الزُّهْرِيُّ: إِذَا جَاءَ الْمُصَدِّقُ قُسِّمَتِ الشَّاءُ أَثْلَاثًا ثُلُثًا شِرَارًا، وَثُلُثًا خِيَارًا، وَثُلُثًا وَسَطًا، فَأَخَذَ الْمُصَدِّقُ مِنَ الْوَسَطِ" وَلَمْ يَذْكُرِ الزُّهْرِيُّ الْبَقَرَ.

سالم دَ خپل پلار (حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه) نه نقل کوی چه رسول الله ﷺ دَ زکات تفصیل لیکلې وو مګر هغې لره ئې خپلو عاملانو ته لا لیږلې نهٔ وو چه دَ هغوی ﷺ وفات اوشو او دې لره حضور ﷺ دَ خپلې تورې سره (په نیام کښې) ایخودلې وو - چنانچه حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه په دې باندې عمل اوکړو تردې پورې چه وفات شو بیا حضرت عمر رضی الله عنه په دې باندې عمل اوکړو تردې پورې چه وفات شو - په دې کښې دا لیکلې شوې وو :" په پنځو اوښانو کښې یوه چیلۍ، په لسو کښې دوه چیلۍ، په پنځلسو کښې درې چیلۍ او په شلو کښې څلور چیلۍ - په پنځیشتو اوښانو کښې یو کلیزی مؤنث اوښه (بنت مخاض) ده - ترڅ پنځهٔ دیرشو پورې - کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو په دې کښې بنت لبون (دوه کلیزی مؤنث اوښه) ده، تر دَ پنځه څلویښتو پورې - کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو په دې کښې حقه (درې کلیزی مؤنث اوښه) ده تر دَ شپیتو پورې - کهٔ چرې په دې باندې یوه هم زیاتی شی نو په هغې کښې جذعه (څلور کلیزی مؤنث اوښه) ده تر دَ پنځهٔ اویا (۷۵) پورې، کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو په دې کښې دوه بنت لبون (دوه کلیزی دوه مؤنث اوښې) دی، تر دَ نوی (۹۰) پورې کهٔ چرې یوه هم زتاته شی نو په هغې کښې دوه حقې (درې کلیزی درې مؤنث اوښې) دی تر دَ شپږ شلو پورې - کهٔ چرې اوښان ددې نه زیات وی نو په هر پنځوسو کښې یوه حقه او په هر څلویښتو کښې یوه بنت لبون ده - او په چیلو (بکرو) کښې په هر څلویښتو کښې یوه چیلۍ ده، تر دَ شپږ شلو پورې - کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو بیا دوه بکرۍ دی تر دَ دوو سوو پورې، کهٔ چرې په دوو سوو باندې یوه (چیلۍ) هم زیاته شی نو په هغې کښې درې بکرۍ دی تر دَ درې سوو پورې - کهٔ چرې بکرۍ ددې نه زیاتې وی نو په هر سلو کښې یوه بکرۍ ده - او دَ سلو نه په کمو کښې هیڅ نشته دې تردې پورې چه سل پوره شی - یوځائې څناور دې دَ زکات دَ یرې نه جُدا جُدا نهٔ کړې شی او جُدا جُدا دې جمع نهٔ کړې شی - او دَ چا څاروی چه یوځائې وی نو هغوی دې په خپل مابین کښې برابر برابر لین دین کوی - او په زکات کښې دې هیڅ بوډا یو عیب دار څاروې وانهٔ خستلې شی - امام زهری وائی چه کله دَ زکات دَ وصولو والا راشی نو چیلۍ دې په دریو حصو باندې تقسیم کړې شی یعنی مانده، عمده او درمیانه درجه کښې او تحصیلدار دې زکات دَ درمیانه درجې نه وصول کړی - امام زهری دَ غواګانو ذکر نهٔ دې کړې -

**تشریح: قوله**: حدثنا عبدالله بن محمد النفیلی......... فلم یخرجه الی عماله حتی قبض فقرنه بسیفه.

په دې جمله کښې تقدیم تاخیر دې، **فقرنه بسیفه** مقدم کول پکار وو، او **حتی قبض** مؤخر کول، کما هو ظاهر، ددې نه مستفاد کیږی، چه دا کتاب الصدقة نبی کریم ﷺ لیکلې وو، عاملانو او ساعیانو ته دورکولو په نیت سره، دې دپاره چه ددې نقلونه اویستلې شی، او هغوی ته حواله کړې شی، نو صدیق اکبر رضی الله عنه او فاروق اعظم رضی الله عنه هم داسې اوکړل، او نبی کریم ﷺ ته ددې نوبت رانغلو ،د (دې په باره کښې څه ددې نه مخکښې هم تیر شوې دی)

قال الزهري اذا جاء المصدق يعني د ساعي په راتلو چه كله هغه د زكوة اخستلو د پاره راشي، نود كومو خاروؤ زكوة چه اخستل وى، هغې لره په دريو قسمونو كښې تقسيم كړې شي، اعلى او افضل، اوسط، ادنى، بيا مصدق لره پكار دي، چه د اوسط نه واخلي.

[۱۵۶۹]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَزِيدَ الْوَاسِطِيُّ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ بْنُ حُسَيْنٍ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "فَإِنْ لَمْ تَكُنْ ابْنَةُ مَخَاضٍ فَابْنُ لَبُونٍ" وَلَمْ يَذْكُرْ كَلَامَ الزُّهْرِيِّ.

سفيان بن حسين په خپل سند سره د مذكوره بالا هم معنىٰ بيان كړې دي ... او وئيلي ئې دى كۀ چرې بنت مخاض (يو كليزى) نۀ وى نو بنت لبون (دوه كليزى) دې پيش كړى -" او د زهرى كلام ئې ذكر كړې نۀ دې -

[۱۵۷۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: هَذِهِ نُسْخَةُ كِتَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِي كَتَبَهُ فِي الصَّدَقَةِ، وَهِيَ عِنْدَ آلِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ، قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: أَقْرَأَنِيهَا سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ فَوَعَيْتُهَا عَلَى وَجْهِهَا، وَهِيَ الَّتِي انْتَسَخَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ مِنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، وَسَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، فَذَكَرَ الْحَدِيثَ، قَالَ: "فَإِذَا كَانَتْ إِحْدَى وَعِشْرِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ بَنَاتِ لَبُونٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَعِشْرِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ ثَلَاثِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا بِنْتَا لَبُونٍ وَحِقَّةٌ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَثَلَاثِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ أَرْبَعِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا حِقَّتَانِ وَبِنْتُ لَبُونٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَأَرْبَعِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ خَمْسِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ حِقَاقٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَخَمْسِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ سِتِّينَ وَمِائَةً فَفِيهَا أَرْبَعُ بَنَاتِ لَبُونٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَسِتِّينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ سَبْعِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ بَنَاتِ لَبُونٍ وَحِقَّةٌ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَسَبْعِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ ثَمَانِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا حِقَّتَانِ وَابْنَتَا لَبُونٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَثَمَانِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ تِسْعِينَ وَمِائَةً فَفِيهَا ثَلَاثُ حِقَاقٍ وَبِنْتُ لَبُونٍ حَتَّى تَبْلُغَ تِسْعًا وَتِسْعِينَ وَمِائَةً، فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا أَرْبَعُ حِقَاقٍ أَوْ خَمْسُ بَنَاتِ لَبُونٍ أَيُّ السِّنَّيْنِ وُجِدَتْ أُخِذَتْ وَفِي سَائِمَةِ الْغَنَمِ"، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، وَفِيهِ: "وَلَا يُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ، وَلَا ذَاتُ عَوَارٍ مِنَ الْغَنَمِ، وَلَا تَيْسُ الْغَنَمِ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْمُصَدِّقُ".

حضرت ابن شهاب فرمائيلي دى: دا نقل دې د هغه تحرير كوم چه رسول الله ﷺ د صدقې (زكات) په باره كښې ليكلې وو - او دا د آل عمر بن خطاب سره محفوظ وو - ابن شهاب فرمائيلي دى چه دا ماته سالم بن عبد الله بن عمر رضی الله عنہ اولوستو او ما هغې لره هم هغه شان ياد كړو او هم دا هغه تحرير دې كوم چه عمر بن عبد العزيز رحمہ اللہ د حضرت عبد الله بن عبد الله بن عمر رضی الله عنہ او د سالم بن عبد الله بن عمر رضی الله عنہ نه نقل كړې وو ... او حديث ئې بيان كړو - فرمائى: كله (چه د اوښانو تعداد) يو سل يويشت شى نو په دې كښې درې بنت لبون دى، تر د يو سل يو كم ديرشو (۱۲۹) پورې - كله چه يو سل ديرش شى نو په دې كښې به دوه بنت لبون او يوه حقه وى، تر د يوسل يو كم څلويښتو پورې او كله چه يو سل څلويښت شى نو په دې كښې به دوه حقې او يو بنت لبون وى تر د يو سل يو كم پنځوسو پورې، كله چه يو

(): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۶۸۱۳) (صحيح)
(): انظر حديث رقم: (۱۵۶۸)، (تحفة الأشراف: ۶۸۱۳، ۱۸۶۷۰) (صحيح)

سل پنځوس شي نو په دې کښې به درې حقې وی تر دَ یوسل یو کم شپیتو پورې او کله چه یو سل شپیتهٔ شي نو په دې کښې به څلور بنت لبون وی تر دَ یوسل یو کم اویا(۱۶۹) پورې او کله چې یو سل اویا شي نو په دې کښې به درې بنت لبون او یوه حقه وی، تر دَ یوسل یو کم اتیا پورې کله چه یوسل اتیا شي نو په دې کښې به دوه حقې او دوه بنت لبون وی تر دَ یو سل یوکم نوی پورې - کله چه یوسل نوی(۱۹۰) شي نو په دې کښې به درې حقې او یو بنت لبون وی، تر دَ یو کم دوو سوو(۱۹۹) پورې - او کله چه دوه سوه شي نو په دې کښې به څلور حقې یا پنځهٔ بنت لبون وی، دَ کوم عمر چې هم څاروې وی نو وادې خستلې شي - او په بهر څریدونکو چیلو کښې ئې حدیث دَ سفیان ابن حسین په مثل باندې ذکر کړو - په دې کښې دی په صدقه کښې دې بوډا یا عیب دار څارې وانهٔ خستلې شي اونهٔ نَر بکرې - مګر دا کهٔ دَ زکات تحصیلدار اوغواړی.

**تشریح: قوله:** الذی کتبه فی الصدقة وهی عند آل عمر بن الخطاب قال ابن شهاب اقرءنیها سالم بن عبدالله بن عمر فوعیتها علی وجهها وهی التی انتسخ عمر بن عبدالعزیز من عبدالله ابن عبدالله بن عمر و سالم بن عبدالله بن عمر.

دا مخکښې تیر شوې دی، چه کتب الصدقات متعدد دی، په هغې کښې یو کتاب عمربن الخطاب رضی الله عنه ته منسوب دې، په دې حدیث کښې دهغې کتاب ذکر دې، دهغې باره کښې راوی وائی، چه دا نسخه د حضرت عمر رضی الله عنه آل او اولاد سره محفوظ وه. او عمر ثانی عمربن عبد العزیز رحمه الله چه کله هغه د مدینې منورې امیر وو،( کما فی روایة الدارقطنی والحاکم) دا کتاب نقل کړو او خپلو عاملانو ته ئې ددې مطابق عمل کولو هدایت اوفرمائیلو، او دهغې یو نقل ئې ولید بن عبدالملک ته هم اولیږلو، ولید هم خپلو عاملانو ته ددې مطابق عمل کولو هدایت اوکړو، او بیا دا سلسله دغه شان روانه وه. روستو خلفاؤ کښې هم هغوی ددې کتاب مطابق عمل کولو، بره په روایت کښې دی، امام زهری رحمه الله فرمائي چه حضرت سالم بن عبدالله بن عمر دا کتاب ماته اورولې وو، چه هغې لره بعینه ما زبانی یاد کړې وو،(حفظ کول خو هغې حضراتو ته ډیر آسان وو، په زړګونو نه بلکه په لکهونو احادیث هغوی ته زبانی یاد وو) فجزاهم الله تعالی عن الاسلام والمسلمین خیرا.

قال فاذا کانت احدی و عشرین و مائة ففیها ثلاث بنات لبون.

## د شوافع او حنابله دپاره صریح دلیل:

ددې کتاب الصدقه خاص په دې طریق کښې دا زیاتوالې دې، چه په طریق سابق کښې نشته، بلکه هلته خو داسې وو، الی عشرین و مائة فان کانت الابل اکثر من ذالک ففی کل خمسین حقة وفی کل اربعین ابنة لبون او په دې روایت کښې چه کوم دی، د شوافعو او حنابله د مسلک عین مطابق دی، ددې جواب او توجیه مخکښې تیره شوې ده، هغه یاد اوساتئ.

[۱۵۷۱] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَ: قَالَ مَالِكٌ: وَقَوْلُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: لَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُتَفَرِّقٍ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ، هُوَ أَنْ يَكُونَ لِكُلِّ رَجُلٍ أَرْبَعُونَ شَاةً، فَإِذَا أَظَلَّهُمُ الْمُصَدِّقُ جَمَعُوهَا لِئَلَّا يَكُونَ فِيهَا إِلَّا شَاةٌ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ أَنَّ الْخَلِيطَيْنِ إِذَا كَانَ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِائَةُ شَاةٍ وَشَاةٌ فَيَكُونُ عَلَيْهِمَا فِيهِمَا ثَلَاثُ شِيَاهٍ، فَإِذَا أَظَلَّهُمَا الْمُصَدِّقُ فَرَّقَا غَنَمَهُمَا فَلَمْ يَكُنْ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا إِلَّا شَاةٌ، فَهَذَا الَّذِي سَمِعْتُ فِي ذَلِكَ.

امام مالک رحمه الله فرمائي چه د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه فرمان دي: متفرق (جُدا جُدا) مال لره جمع کول یا جُدا جُدا مال لره دي یوځائي نهٔ کړې شي - هغه داچه مثلاً دَ هر یو کس څلویښت څلویښت چیلۍ وی کله چه دَ زکات حاصلونکی راشي نو دوی خپل مال لره جمع کړي او هغه ته ئې پیش کړی، ددې دپاره چه په دې کښې صرف یوه چیلۍ زکات راشي - او یوځائي مال دې جُدا جُدا نهٔ کړې شي - یعنی چه دوه کسان شریک وی او دَ یو یو کس سل سل چیلۍ وی (مجموعه دوه سوه وی) نو په دې کښې درې چیلۍ زکات دې مګر دَ زکات دَ اخستونکی په راتلو باندې دوی خپل خپل مال لره جدا کړی نو په هر یو کس باندې به یوه یوه چیلۍ زکات راشي - (په دې شان سره به یوه چیلۍ دَ زکات نه بچ کړی) ددې ما هم دغه تفصیل اوریدلې دې -

**تشریح: قوله:** حدثنا عبدالله بن مسلمة قال قال مالک و قول عمر بن الخطاب رضي الله عنه لا یجمع بین مفترق و لا یفرق بین مجتمع هوان یکون الخ

## د امام مالک رحمه الله د بیان کړې شوې جمع او تفریق مثال:

په دې باندې کلام مخکښې تیر شوې دې، چه حضرت امام مالک رحمه الله دې جمع او تفریق کښې د هر یو یو مثال (چه هغوی د خپل مشائخو نه اوریدلې دې) نقل فرمائي، د جمع مثال دادې، د دریو سړو څان څانله څلویښت څلویښت بزې وې، په هغې کښې درې بزې واجبې وې، لیکن هغې خلقو داسې اوکړل، چه کله د ساعی د راتلو وخت راغلو، نو دریوواړو خپلې بزې په یو ځائي کښې جمع کړې او ورته ئې اوښودلې، دې دپاره چه د شپږو شلو په رمه کښې صرف یوه بزه واجبه شی، ځکه چه ملک خلطاء په منزله د ملک رجل واحد دې، او که د یو سړې په ملک کښې شپږ شلې بزې وې، نو په هغې کښې یوه واجبیږی. د تفریق مثال ئې داسې ورکړې دې، چه په یوه رمه کښې په دواؤ سړو کښې د هر یو ۱۰۱ بزې وې، یعنی ټولې دوه سوه دوه ۲۰۲ بزې وې، په هغې کښې درې بزې واجبې شوې، (کما لو کانت لشخص واحد) لیکن کله چه د ساعی د راتلو وخت شو، نو هغې دواړو خپلې خپلې بزې په دواؤ ځایونو کښې جدا کړې، (یعنی د یوې رمې نه ئې دوه رمې جوړې کړې) دې دپاره چه په هر یو یوه یوه بزه واجبه شی.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۹۲۵٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالک/الزکاة ۱۱ (۲۳) (صحیح)

[١٥٧٢]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، وَعَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ زُهَيْرٌ: أَحْسَبُهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "هَاتُوا رُبْعَ الْعُشُورِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمٌ، وَلَيْسَ عَلَيْكُمْ شَيْءٌ حَتَّى تَتِمَّ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ، فَإِذَا كَانَتْ مِائَتَيْ دِرْهَمٍ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ، فَمَا زَادَ فَعَلَى حِسَابِ ذَلِكَ، وَفِي الْغَنَمِ فِي أَرْبَعِينَ شَاةً شَاةٌ، فَإِنْ لَمْ يَكُنْ إِلَّا تِسْعٌ وَثَلَاثُونَ فَلَيْسَ عَلَيْكَ فِيهَا شَيْءٌ" وَسَاقَ صَدَقَةَ الْغَنَمِ مِثْلَ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: "وَفِي الْبَقَرِ فِي كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعٌ وَفِي الْأَرْبَعِينَ مُسِنَّةٌ، وَلَيْسَ عَلَى الْعَوَامِلِ شَيْءٌ، وَفِي الْإِبِلِ" فَذَكَرَ صَدَقَتَهَا كَمَا ذَكَرَ الزُّهْرِيُّ، قَالَ: "وَفِي خَمْسٍ وَعِشْرِينَ خَمْسَةٌ مِنَ الْغَنَمِ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً فَفِيهَا ابْنَةُ مَخَاضٍ، فَإِنْ لَمْ تَكُنْ بِنْتُ مَخَاضٍ فَابْنُ لَبُونٍ ذَكَرٌ إِلَى خَمْسٍ وَثَلَاثِينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً فَفِيهَا بِنْتُ لَبُونٍ إِلَى خَمْسٍ وَأَرْبَعِينَ، فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً فَفِيهَا حِقَّةٌ طَرُوقَةُ الْجَمَلِ إِلَى سِتِّينَ" ثُمَّ سَاقَ مِثْلَ حَدِيثِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: "فَإِذَا زَادَتْ وَاحِدَةً، يَعْنِي وَاحِدَةً وَتِسْعِينَ، فَفِيهَا حِقَّتَانِ طَرُوقَتَا الْجَمَلِ إِلَى عِشْرِينَ وَمِائَةٍ، فَإِنْ كَانَتِ الْإِبِلُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ فَفِي كُلِّ خَمْسِينَ حِقَّةٌ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ وَلَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُفْتَرِقٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ، وَلَا تُؤْخَذُ فِي الصَّدَقَةِ هَرِمَةٌ وَلَا ذَاتُ عَوَارٍ وَلَا تَيْسٌ إِلَّا أَنْ يَشَاءَ الْمُصَدِّقُ، وَفِي النَّبَاتِ مَا سَقَتْهُ الْأَنْهَارُ أَوْ سَقَتِ السَّمَاءُ الْعُشْرُ، وَمَا سَقَى الْغَرْبُ فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ"، وَفِي حَدِيثِ عَاصِمٍ، وَالْحَارِثِ: الصَّدَقَةُ فِي كُلِّ عَامٍ، قَالَ زُهَيْرٌ: أَحْسَبُهُ قَالَ: مَرَّةً، وَفِي حَدِيثِ عَاصِمٍ: "إِذَا لَمْ يَكُنْ فِي الْإِبِلِ ابْنَةُ مَخَاضٍ وَلَا ابْنُ لَبُونٍ فَعَشَرَةُ دَرَاهِمَ أَوْ شَاتَانِ".

د حضرت علی رضی الله عنه نه مروی دی( د حدیث راوی) زهیر وائی چه زما په خیال کښې هغوی د رسول الله ﷺ نه بیان کړې دي، هغوی اوفرمائیل : څلویښتمه حصه ادا کوئ، په هر څلویښت درهمه کښې یو درهم - او تر څو پورې چه دوه سوه درهمه پوره نهٔ شی نو په تاسو باندې هیڅ لازم نهٔ دی - کله چه دوه سوه درهمه شو نو په دې کښې پنځهٔ درهمه( زکات) دي - او کوم چه ددې نه زیات وی نو دَ هغې په حساب سره دې( یعنی دَ هغې نه دې څلویښتمه حصه ادا کړی -) او په بکرو کښې په هر څلویښت بکرو کښې یوه بکرئ ده - دا کهٔ چرې یو کم څلویښت وی نو په دې کښې په تاسو باندې هیڅ نشته دې -'' او ددې تفصیل ئې داسې بیان کړو لکه څنګه چه دَ زهری په روایت کښې بیان شوې دې - او دَ غواګانو( غوایانو) په زکات کښې ئې اوفرمائیل :'' په هر دیرشو کښې یو کلیزی سخئ ده او په څلویښتو کښې دوه کلیزی - او داسې څاروې چه دَ هغې نه کار اخستلې شی په هغې باندې هیڅ زکات نشته دې - او دَ اوښانو زکات ...... '' دَ زهری دَ سابقه حدیث په مثل ئې بیان کړو - وائی : په پنځیشتو اوښانو کښې پنځهٔ چیلئ دی - کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو په دې کښې یو بنت مخاض( یو کلیزی مؤنث) ده کهٔ چرې بنت مخاض نهٔ وی نو ابن لبون( دوه کلیزی اوښه)، تر دَ پنځهٔ دیرشو پورې -'' کهٔ چرې یوه هم زیاته شی نو په دې کښې یو بنت لبون ده تر دَ پنځهٔ څلویښتو پورې - کله چه یوه هم زیاته شی نو په دې کښې یوه حقّه ده کومه چه دَ تیریدو( مال کیدو) قابله وی تر دَ شپیتو پورې - بیا ئې دَ زهری په مثل باندې روایت بیان کړو - اووې وئیل چه یوه هم زیاته شی یعنی یونوی( ٩١ ) شی نو په دې کښې دوه حقې دی کومې

[1]): سنن ابن ماجه/الزكاة ٤(١٧٩٠)، سنن الدارمي/الزكاة ٧(١٦٦٩)،( تحفة الأشراف :١٠٠٣٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الزكاة ٣(٦٢٠)، سنن النسائي/الزكاة ١٨(٢٤٧٩)، مسند احمد(١٢١/١، ١٣٢، ١٤٦)(صحيح)(د شواهدو په بنا صحيح دی، ملاحظه هو:صحيح ابي داؤد٢٩١/٥)

چه دَ مال کیدو قابلې وی - تر دَ شپږ شلو پورې - کله چه دَ اوښانو تعداد ددې نه سوا شی نو په هر پنځوسو کښې یوه حقّه ( درې کلیزی اوښه ) ده - دَ زکات دَ ویرې نه دې یوځائې څاروی جُدا نهٔ کړې شی او نهٔ دې جُدا جُدا څاروی یوځائې کړې شی - او په زکات کښې دې څه بوډا څاروې یا عیب دار یا نَر څناور وانهٔ خستلې شی، مګر دا کهٔ تحصیل دار اوغواړی ( نو نَر څاروې اخستلې شی ) او په زرعی اجناسو کښې چه کومې زمکې په دریاب یا په باران سره سیرابه کیږی نو په هغې کښې لسمه حصه ده او کومه چه په بوقې ( رَټ، ټیوب ویل وغیره ) سره سیرابه کیږی نو په هغې کښې شلمه حصه ده -" دَ عاصم او دَ حارث په روایت کښې دی چه زکات هر کال دې -" زهیر وئیلې دی : زما خیال دې چه هغوی وئیلې دی ( هر کال ) یو ځل دې -" دَ عاصم په روایت کښې دی : " کهٔ چرې په اوښانو کښې بنت مخاض یا ابن لبون نهٔ وو نو لس درهمه یا دوه چیلئ دې ورکړی -"

**تشریح: قوله**:حدثنا عبدالله بن محمد النفیلی....... عن علی رضی الله عنه.... فاذا کانت مائتی درهم ففیها خمسة دراهم فما زاد فعلی حساب ذالک.

## ایا د نقدینو د زکوة په نصاب کښې وقص شته؟

یعنی د چاندی نصاب دوه سوه درهمه دې، په هغې کښې پنځه درهمه واجب دی، او د دواؤ سوؤ درهمو نه چه څومره زیات وی، په هغې کښې به دهغې په حساب سره زکوة واجب وی، که د مائتین نه یو درهم هم زیات وی، نو دهغې زکوة به پنځه درهمه او د یو درهم څلویښتمه حصه وی، ددې مطلب دا شو، چه په سرؤ او سپینو زرو کښې د زکوة نصاب پوره کیدو نه پس وقص یعنی عفو نشته، بلکه مازاد علی النصاب که قلیل وی او که کثیر، دهغې په مقدار به زکوة واجب وی، په خلاف د څاروؤ د زکوة نه، چه هلته کښې د هر دواؤ نصابونو په مینځ کښې وقص وی، دا د حضرت علی رضی الله عنه حدیث دې، د صاحبینو او ائمه ثلاثه رحمهم الله هم دا مذهب دې، په دې کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله اختلاف دې، هغه فرمائي په دواؤ سوؤ باندې چه کله څلویښت درهمه او په شل مثقال ذهب باندې چه کله څلور مثقال یعنی خمس نصاب زیاتې نشی.، په هغې کښې هیڅ واجب نه دی، هم دا مسلک د سعید بن المسیب،طاؤس او حسن بصری او شعبی وغیرهم دې، د امام صاحب استدلال د عمرو بن حزم د حدیث نه دې، دغه شان د حضرت معاذ رضی الله عنه د حدیث نه چه دهغې الفاظ په بذل المجهود کښې مذکور دی، لیکن په دې دواؤ حدیثونو باندې د محدثینو سخت تنقید دې، چه هغې لره علامه عینی په شرح بخاری ۸ص۲۵۹ کښې نقل کړې دې، او بیا دهغې نه پس ئې د احنافو نور دلائل بیان کړې دی، او بیا په آخره کښې ئې لیکلې دی، والعجب من النووی مع وقوفه علی هذه الاحادیث الصحیحة کیف یقول ولابی حنیفة حدیث ضعیف و یذکر الحدیث المتکلم فیه ولم یذکر غیره من الاحادیث الصحیحة، او ددې حدیث جواب دا کیدې شی، چه مخکښې په روایت کښې راروان دی، قال فلا ادری اعلی یقول فبحساب ذالک او رفعه الی النبی(صلی الله علیه وسلم) یعنی د حدیث ددې جملې متعلق راوی د تردد اظهار

کوی، چه زهٔ نشم وئیلې، چه دا خبره حضرت علی رضی الله عنه د خپل طرف نه فرمائیلې ده، یا هغې لره ئې مرفوعا بیان کړې ده.

**تشریح: قوله: وفی البقر فی کل ثلاثین تبیع وفی الاربعین مسنة**

## نصاب بقر:

دا نصاب بقر دې، یعنی دیرش، په دې کښې یو تبیع دې، یا تبیعه، یعنی مذکر او مؤنث دواړه برابر دی، لکه چه مخکښې په حدیث دمعاذ رضی الله عنه کښې راروان دې، تبیعا او تبیعة د اکثر رائې هم داده، البته د بقر په مسنة کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد خو ټول انواع د بقر کښې نر او ښځه برابر دی، او عند الاکثر په بقر کښې چه په کومو صورتونو کښې مسنة واجبه ده، هلته کښې د انوثت موجود کیدل ضروری دی، لکه چه د حدیث معاذ رضی الله عنه د ظاهر نه معلومیږی، دهغې الفاظ کتل پکار دی، او د احنافو دلیل د طبرانی روایت دې، په هغې کښې داسې دی، وفی کل اربعین مسنة او مسن، البته په زکوة الغنم کښې بالاتفاق انثی او ذکر برابر دی،(المنهل) تبیع د غوا یا میښې هغه بچې چه د یو کال وی، او په دویم کال کښې داخل وی، او په څلویښتو کښې مسنة واجبه ده، چه د دواؤ کالو وی، او په دریم کښې داخل وی، د جمهورو مسلک هم دادې، په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې، هغوی وائې چه تبیع هغه دې، چه د دواؤ کالو وی، او په دریم کښې داخل وی، او مسنة هغه ده، چه د دریو کالو وی، او په څلورم کښې داخل وی.(المنهل)

[۱۵۷۳]([1]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، وَسَمَّى آخَرَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، وَالْحَارِثِ الْأَعْوَرِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعْضِ أَوَّلِ هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ: "فَإِذَا كَانَتْ لَكَ مِائَتَا دِرْهَمٍ وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ وَلَيْسَ عَلَيْكَ شَيْءٌ، يَعْنِي فِي الذَّهَبِ، حَتَّى يَكُونَ لَكَ عِشْرُونَ دِينَارًا، فَإِذَا كَانَ لَكَ عِشْرُونَ دِينَارًا وَحَالَ عَلَيْهَا الْحَوْلُ فَفِيهَا نِصْفُ دِينَارٍ فَمَا زَادَ فَبِحِسَابِ ذَلِكَ، قَالَ: فَلَا أَدْرِي، أَعَلِيٌّ يَقُولُ: فَبِحِسَابِ ذَلِكَ؟ أَوْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَيْسَ فِي مَالٍ زَكَاةٌ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ"، إِلَّا أَنَّ جَرِيرًا، قَالَ: ابْنُ وَهْبٍ يَزِيدُ فِي الْحَدِيثِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ فِي مَالٍ زَكَاةٌ حَتَّى يَحُولَ عَلَيْهِ الْحَوْلُ".

سیدنا حضرت علی رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی ... ددې څهٔ ابتدائی حصه هم هغه ده کومه چه په مذکوره بالا حدیث کښې ذکر شوله ... کله چه له تاسو سره دوه سوه درهمه وی او په هغې باندې یو کال تیر شی نو په هغې باندې پنځه درهمه( زکات) دې - او د سونې( سروزرو) په باره کښې په تاسو باندې هیڅ نشته دې تردې پورې چه تاسو سره شل دیناره وی، پس کله چه له تاسو سره شل دیناره وی او په هغې باندې یو کال تیر شی نو په هغې باندې نیم دینار( زکات) دې او کوم چه زیات وی نو هم په هغه حساب سره به وی ؟" ( ابو اسحاق) وئیلې دی : ماته معلومه نهٔ ده چه دا خبره " د هغې په حساب سره -" حضرت

---

[1] ): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف :۱۰۰۳۹)(صحیح)( د شواهدو په بنا صحیح دې ملاحظه : صحیح ابی داود ۵/۲۹٤)

علی ﷺ خپله فرمائیلي ده یا دَ نبی کریم ﷺ دَ جانب نه - او په هیڅ مال باندې زکات نشته دې تردې پورې چه په هغې باندې کال تیر شی -" (دَ حدیث دَ راوی) جریر بیان دې چه ابن وهب به په حدیث کښې دا اضافه کوله چه نبی کریم ﷺ فرمائیلي دی : په هیڅ مال باندې زکات نشته دې تردې پورې چه په هغې باندې کال تیر شی -"

مسنة ته مسنة د طلوع اسنان د وجې نه وائي یعنی چه دهغې مخښې ته دوه غاښونه راختلي وی، په خلاف د رجل مسن، په انسانانو کښې مسن معمر او بوډا ته وئیلې شی، دلته کښې دا مراد نه دې، (منهل) .

وليس على العوامل شيء : عوامل هغه څاروی دی، چه دهغوی نه مالک کار اخلی، د بار اوچتولو یا زمیداره کولو، د علی العلوامل نه مراد صاحب العوامل دی، په دې صورت کښې به علی په خپله معنی وی، او که مضاف لره محذوف اونه منلي شی، نو علی به د فی په معنی کښې وی، د جمهور عالمانو سلفا و خلفا هم دا مذهب دې، چه په عوامل کښې دغه شان په علوفة [1] زکوة واجب نه دې، په قدوری کښې دی، وليس في العوامل والمعلوفة صدقة صاحب د جوهره نیره فرمائي څکه چه د وجوب زکوة سبب مال نامی دې، او دلیل نماء اسامة دې، یا اعداد للتجارة او دلته کښې هغه نشته، او په معلوفه کښې مشقت کم دې، چه دهغې په وجه نماء معنی باقی نه پاتې کیږی.

وفي خمس وعشرين خمسة من الغنم، یعنی په پنځویشتو اوښانو کښې پنځه بزې دی، دا خبره د اجماع خلاف ده، څکه په پنځویشتو اوښانو کښې بالاتفاق بنت مخاض دې، لهذا د حدیث داقطعه خلاف اجماع ده، په دې باندې کلام د نصاب ابل په بیان کښې تیر شوې دې.

وفي النبات ماسقته الانهار الخ ددې تعلق د زمکې پیداوار او عشر سره دې، ددې باب مخکښې په باب الصدقة الزرع کښې مستقل راروان دې.

فعشرة دراهم او شاتان ددې نه مخکښې په کتاب ابی بکر کښې شاتان و عشرين درهما تیر شوې دې، هغه زیات صحیح دې ددې حدیث علی ﷺ نه، څکه چه ددې حدیث په سند کښې عاصم بن ضمره او حارث اعور دی، وهما ضعيفان (منهل)

۶: حدثنا سليمان بن داؤد المهری.......... عن عاصم بن ضمرة والحارث الاعور عن علی عن النبی(صلی الله علیه وسلم)...... وليس عليك شيء يعنی فی الذهب حتی يكون لك عشرون دينارا.

## نصاب ذهب :

په نصاب ذهب باندې تفصیلی کلام د باب فی زکوة السائمة په شروع کښې تیر شوې دې.

وليس في مال زكوة حتى يحول عليه الحول، د مال نه هغه مال مراد دې، چه په هغې کښې زکوة یعنی ربع العشر (څلویښتمه حصه واجبه وی، یعنی څاروی او نقدین په دې کښې د زکوة وجوب بغیر د حولان حول نه نه کیږی، څکه چه په دې اموالو کښې د نماء ظهور او تحقق په کال تیریدلو سره کیږی، په خلاف د زروع او ثمار نه، ددې باره کښې اجماع ده، چه په دې

[1] علوفة په (فتحې د عین سره) او معلوفه دواړو طریقو سره مستعمل دې.

کښې حولان حول شرط نه دې، بلکه نفس ادراک (یعنی قابل د انتفاع کیدل) یا حصاد سره عشر واجبیږی، لقوله تعالی وآتوا حقه یوم حصاده.

**په مال مستفاد کښې د زکوة مسئله او اختلاف د علماء :**

ددې نه پس زده کړئ، چه د حدیث د ظاهر نه معلومیږی، چه دا حکم (یعنی د وجوب زکوة دپاره حولان حول) مال مستفاد ته هم شامل دې، لیکن د مال مستفاد مسئله مختلف فیه ده، امام ترمذی خو په دې باندې مستقل ترجمة الباب قائم کړې دې، او دې باره کښې صریح حدیث هم ذکر کړې دې، عن ابن عمر عن النبی (صلی الله علیه وسلم) من استفاد مالا فلا زکوة علیه حتی یحول علیه الحول لیکن امام ابوداؤد په دې مسئله نه مستقل باب قائم کړې دې، او نه ئې صریح حدیث ذکر کړې دې.

مسئله داده : مال مستفاد یعنی د کال په مینځ کښې زیاتې حاصلیدونکې مال، په دې باندې مستقل کال تیریدل د وجوب زکوة دپاره شرط دې او که نه بلکه اصل نصاب باندې کال تیریدل کافی دی، (او دا مال مستفاد په حولان حول کښې د نصاب سابق تابع دې) نو په بعضو صورتونو کښې خو دا مال مستفاد بالاتفاق د اصل نصاب سره ضم کیږی، یعنی دا مال مستفاد په کال کښې د مال سابق تابع وی، او په بعضو صورتونو کښې بالاتفاق ضم کیږی نه، او یو صورت مختلف فیه دې، زمونږ په نزد ضم کیږی، (یعنی مستقل کال تیریدل ضروری نه دی) او د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد ضم کیږی نه، اوس ددې اجمال تفصیل هم واورئ.

هغه داچه مال مستفاد د دواؤ حالتونو نه به خالی نه وی، یا به هغه د مال سابق د جنس نه وی، یا د خلاف جنس نه، پس که د خلاف جنس نه دې، مثلا مال اول خو ابل دی، او مال مستفاد غنم دی، نو دلته به بالاتفاق ضم نه وی، د دواړو حول به ځان ځانله منلې شی، او که مال مستفاد د مال سابق جنس وی، نو بیا دوه صورتونه دی، یو داچه هغه مال به د مال اول نه حاصل شوې وی، (لکه ربح چه په مال تجارت کښې د کال په مینځ کښې حاصل شوې وی یا د سوائمو په نصاب کښې دهغوی اولاد د کال په مینځ کښې زیات شوې وی) او دویم صورت دادې، چه هغه مال مستفاد د سبب مستقل په ذریعې حاصل شوې وی، مثلا د هبې په ذریعې سره، یا د میراث وغیره په ذریعې سره، په قسم اول (یعنی اولاد او ارباح) کښې به بالاتفاق ضم وی، او کوم کال چه د اصل نصاب دې، هغه به د مال مستفاد هم وی، او په قسم ثانی کښې اختلاف دې، د شوافعو او حنابله په نزد په دې کښې به ضم نه وی، د هر یو حول به ځان ځانله منلې شی، او د هر یو زکوة به ځان ځانله وخت کښې ورکولې شی، او د احنافو او مالکیه په نزد په دې صورت کښې به ضم وی، الحاصل زمونږ په نزد مال مستفاد لره ضم کولو دپاره اتحاد فی الجنس کافی دې،[1] او د شوافعو وغیره په نزد

[1] (جزئیه) د احنافو په نزد دلته کښې د مال مستفاد ضم یو صورت مختلف فیه هم دی، هغه داچه یو سړی د نصاب سوائم زکوة حولان حول باندې ادا کړو، او دهغې نه پس ئې هغه خرڅ کړل، او دهغې ثمن ئې حاصل کړو، او حال دادې چه هغه سره د دارهم او دنانیرو نصاب هم دی، چه په ......۹۶

کافي نه دي، بلکه دهغوی په نزد د ضم دپاره دا هم ضروري ده، چه مال مستفاد د مال سابق نه حاصل شوې وی، که په طریقې د ربحې وی او که په طریقې د ولادت، او د اختلاف جنس په صورت کښې به بالاتفاق ضم نه وی، او په یو روایت کښې مالکیه په سوائم کښې د احنافو سره دي، چه ضم به وی، او په نقدین(ذهب او فضه) کښې د امام شافعي رحمه الله سره دي، چه ضم به نه وی.

## د احنافو دليل :

اوس د دليل باره کښې واورئ، احناف په دليل سمعي کښې خو دا وائي، چه ګورئ! په حديث کښې دی، چه په پنځويشت اوښانو کښې پنځه ديرشو پورې بنت مخاض دې، فان زادت واحدة ففيها ابنة لبون، چه که په پنځو ديرشو يو زياتې شی، نو بيا به د بنت مخاض په ځائې بنت لبون واجب وی، اوس دا زياتوالي په حديث کښې مطلق بيان شوي دي، چه کله هم وی، که د کال په مينځ کښې ولې نه وی، او په دليل عقلي کښې دا پيش کوی، چه ګورئ! د اتحاد جنس په صورت کښې د مال مستفاد ضم مال سابق سره د نصاب په حق کښې بالاتفاق دې،[1] ستاسو په نزد هم او زمونږ په نزد هم، نو هرکله چه د نصاب په اعتبار سره ضم کيږي چه سبب د وجوب دزکوة دپاره دې، نو د حولان حول په اعتبار سره دا ضم په طريق اولي کيدل پکار دي، ځکه چه د حول درجه خو د اصل نصاب نه کمه ده.

## د شوافعو د دليل نه جواب :

او حديث ترمذی چه د جمهورو مستدل دې، دهغې جواب دادې، چه په هغې کښې د راويانو اختلاف دې، په رفع او وقف کښې، بعضې راويانو هغه مرفوعا او بعضو موقوفا روايت کړې دې، خپله امام ترمذی دهغې موقوف کيدلو ته اصح وئيلې دی، ځکه چه هغې لره مرفوع روايت کونکې عبدالرحمن بن زيد بن اسلم دې، وهو ضعيف، او دويم جواب دادې، چه دا حديث په خپل عموم باندې د هيچا په نزد هم نه دې، بعضې صورتونه ددې حکم نه بالاتفاق مستثنی دی، لهذا دې لره به په هغه صورت محمولولې شی، کوم چه اتفاقي دې، يعنی مختلف الجنس باندې، او يا به دا وئيلې شی، چه دا حديث د احنافو خلاف نه دې، په دې کښې د حولان حول نه مراد عام دې، که اصالة وی، (لکه په اصل

---

ـه ......هغې اوسه پورې نيم کال تير شوې دی، نو اوس په دې صورت کښې د ثمن سوائم نصاب به نقود کښې ضم کيږي او که نه، د امام صاحب رحمه الله په نزد به نه ضم کيږي، بلکه د ثمن کال به مستقل منلې شي، دهغې نه پس به په هغې زکوة واجبيږي، او د صاحبينو په نزد به ضم کيږي، او نيم کال تيريدلو نه پس به د نقودو سره ددې ثمن زکوة هم ادا کولې شي، د امام صاحب دليل په کتابونو د فقه کښې مذکور دې، يعنی حديث مرفوع لا ثني في الصدقة يعنی زکوة کښې تکرار نشته، په کال کښې به دوه ځله نه اخستلې کيږي، (زيلعی علی الکنز) ليکن دا اختلاف په هغه وخت کښې دې، هرکله چه ثمن سوائم د نصاب هومره وی، که دهغې نه کم وی، نو بيا بالاتفاق ددې ضم به نصاب سره کيږي، او د نصاب سره به ددې زکوة هم واجب وی)

[1] ، مثلا د يو سړي سره د کال په ابتداء کښې د بقر نصاب يعنی ديرش غواګانې موجود وې، بيا د کال په مينځ کښې لس غواګانې هغه ته نورې په څه ذريعې سره ملاؤ شوې، نو په دې لسو کښې هم (د اصل نصاب تابع کولو سره) زکوة واجبولې شی، ګنی صرف په لسو کښې زکوة چرته واجبيږي)

نصاب کښي) یا تبعا للغیر، لکه چه په مال مستفاد کښي دي، والله تعالی اعلم.

[۱۵۷۴]() حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ ضَمْرَةَ، عَنْ عَلِيٍّ عَلَيْهِ السَّلَام، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ عَفَوْتُ عَنِ الْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ فَهَاتُوا صَدَقَةَ الرِّقَةِ مِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا دِرْهَمًا، وَلَيْسَ فِي تِسْعِينَ وَمِائَةٍ شَيْءٌ، فَإِذَا بَلَغَتْ مِائَتَيْنِ فَفِيهَا خَمْسَةُ دَرَاهِمَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ الْأَعْمَشُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، كَمَا قَالَ أَبُو عَوَانَةَ، وَرَوَاهُ شَيْبَانُ أَبُو مُعَاوِيَةَ، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَى حَدِيثَ النُّفَيْلِيِّ شُعْبَةُ، وَسُفْيَانُ وَغَيْرُهُمَا، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ عَلِيٍّ، لَمْ يَرْفَعُوهُ أَوْقَفُوهُ عَلَى عَلِيٍّ"[1].

د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: ما تاسو ته د اس او د غلام زکات معاف کړې دي - لهذا تاسو دَ چاندئ (سپینو زرو) زکات ادا کړئ، په هر څلویښتو درهمو کښي یو درهم او په یو کم دوو سوو کښي هیڅ زکات نشته دي - کله چه دوه شي نو په هغې کښي پنځهٔ درهمه زکات دي - امام ابوداود رحمه الله فرمائي: چه دي حدیث لره اعمش دَ ابو اسحاق نه روایت کړې دي لکه څنګه چه ابو عمر وئیلي دی، ددې نه علاوه شیبان ابو معاویه او ابراهیم بن طهمان دَ ابو اسحاق نه هغوی دَ حارث نه، هغوی دَ حضرت علی رضی الله عنه نه ددې روایت په مثل باندې بیان کړې دي -امام ابوداود رحمه الله فرمائي: دَ عبد الله بن محمد نفیلي (سابقه) حدیث لره شعبه او سفیان وغیره دَ ابو اسحاق نه، هغوی دَ عاصم نه، هغوی دَ حضرت علی رضی الله عنه نه روایت کړې دي مګر مرفوع ئي نهٔ دی وئیلی بلکي په حضرت علی رضی الله عنه باندې ئي موقوف کړې دي -

**تشریح: قوله:** عن علی رضی الله عنه قال قال رسول الله (صلی الله علیه وسلم) قد عفوت عن الخیل والرقیق.

دا مخکښي تیر شوې دی، چه په درې قسمه څاروؤ کښي زکوة بالاتفاق واجب دي، ابل، بقر، غنم، او په بغال او حمیر کښي بالاتفاق واجب نه دي، لیکن په خیل کښي اختلاف دي، دا حدیث د زکوة الخیل سره متعلق دي، په دې کښي دوه اجزاء دی، یو زکوة الخیل او بل صدقة الرقیق، امام بخاری رحمه الله او ترمذی رحمه الله په دواړو باندې مستقل ترجمة الباب قائم کړې دي، او د زکوة نفی ئي کړې ده، امام ابوداؤد مخکښي په صدقة الرقیق باندې خو باب قائم کړې دي، لیکن د خیل متعلق ئي باب قائم کړې نه دي

**د زکوة الخیل مسئله:**

مسئله مختلف فیه ده، په اصل کښي د خیل درې قسمه دی، (۱) د بار اوړولو، سورلئ او جهاد دپاره (۲) د تجارت دپاره (۳) د دَر او نسل دپاره. [2]

په قسم اول کښي بالاتفاق زکوة نشته، په قسم ثانی کښي باتفاق شته، الا الظاهریة، ظاهریه خو مطلقا په مال تجارت کښي د زکوة قائل نه دی، کما تقدم فی بابه، په قسم ثالث کښي اختلاف دي، ائمه ثلاثه او صاحبین قائل نه دی، وهو اختیار الطحاوی قیل وعلیه الفتوی، امام

[1]): سنن الترمذي/ الزکاة ۳(۶۲۰)، سنن النسائي/الزکاة ۱۸(۲۴۷۹)،( تحفة الأشراف :۱۰۱۳۶)، وقد أخرجه: مسند احمد(۹۲/۱، ۱۱۳)(صحیح)( د شواهدو په بنا صحیح دي ملاحظه: صحیح ابي داود ۲۹۵/۵)

[2]) په نورو الفاظو کښي اوایئ خیل سائمة.

ابوحنیفه رحمه الله، زفر رحمه الله، حماد بن ابی سلیمان رحمه الله، او زید بن ثابت رضی الله عنه د وجوب زکوة قائل دی، په شرط ددې چه ذکور او اناث مختلط وی، ځکه چه تناسل په دې صورت کښې کیدې شی، او که صرف ذکور یا صرف أناث وی، نو په دې کښې دوه روایتونه دی، وجوب و عدم وجوب، لیکن اشبه بالصواب دادې، چه صرف په اناث کښې واجب دې، ځکه چه تناسل په فحل مستعار سره عام طور باندې کیږی، او صرف په ذکور کښې نشته،(زیلعی علی الکنز) بیا په دې کښې اختلاف دې، چه د امام صاحب په نزدې ددې دپاره څه نصاب شته او که نه؟ وئیلې شوې دی، چه شته فقیل خمسة و قیل ثلثة و قیل اثنان ذکر و انثی والصحیح انه لا یشترط لعدم النقل(زیلعی) اوس دا چه مقدار د زکوة څه دې؟ نو په دې کښې دې اختیار دې، که غواړی نو یو فرس کښې دې یو دینار ورکړی، او که غواړی نو د قیمت لګولو نه پس په هر دواؤ سوؤ دراهمو کښې دې پنځه درهم ورکړی.

د جمهور او صاحبینو دلیل حدیث الباب دې، او حدیث ابوهریرة رضی الله عنه چه متفق علیه دې، لیس علی المسلم فی فرسه و غلامه صدقة، دویمه خبره دا ده، چه په کومو سوائمو کښې چه زکوة واجب دې، دهغې په حدیث کښې نصاب بالتفصیل ذکر دې؟ نصاب خیل په هیڅ یو صحیح حدیث کښې وارد نه دې.

### د امام صاحب دلیل :

او د امام صاحب رحمه الله دلیل د صحیح بخاری او مسلم [۱]حدیث مرفوع دې، چه د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې، ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) ذکر الخیل فقال ورجل ربطها تغنیا و تعففا ثم لم ینس حق الله فی رقابها و لا ظهورها فهی له ستر الحدیث، د حق الله فی الرقاب نه ظاهره ده،چه زکوة مراد دې،او ددې نه علاوه بعضې آثار چه د حضرت عمر رضی الله عنه نه روایت دی، په بذل المجهود کښې د بدائع صنائع نه نقل کړی دی، چه حضرت عمر رضی الله عنه ابوعبیده بن الجراح طرف ته د صدقة الخیل باره کښې اولیکل، چه خلقو ته اختیار ورکړه، که غواړی نو د هر فرس د طرف نه دې یو دینار ورکړی، او که غواړی نو د قیمت لګولو نه پس دې په هر دواؤ سوؤ درهمو کښې پنځه درهم ورکړی، وقال الزیلعی فی شرح الکنز قال ابوعمر بن عبدالبر الخبر فی صدقة الخیل صحیح، عن عمر، وکذا نقله العلامه عینی ۹ص۳۷ و زاد وقال ابن رشد المالکی فی القواعد قد صح عن عمر رضی الله عنه انه کان یاخذ الصدقة عن الخیل، هسې ددې نه خلاف هم یو روایت شته، امام مالک رحمه الله په خپل سند سره روایت کړې دې، چه أهل شام ابوعبیده بن الجراح رضی الله عنه ته اوئیل چه زمونږ د اسونو نه زکوة واخله، نو هغوی انکار اوکړو، او د حضرت عمر رضی الله عنه نه ئې لیکلو سره تپوس اوکړو، هغوی هم انکار اوکړو، اهل شام بیا د ابوعبیده نه تقاضا اوکړه، هغوی دوباره د حضرت عمر رضی الله عنه نه معلوم کړل، نو په دې حضرت عمر رضی الله عنه اولیکل، ان احبوا فخذها منهم وارددها علیهم وارزق رقیقهم،(منهل) که هغوی زکوة

[۱]) دا حدیث بعضې محشینو صرف مسلم طرف ته منسوب کړې دې حالانکه دا حدیث په بخاری کښې هم شته. په اصل کښې دا حدیث امام بخاری په صحیح بخاری کښې دوه ځائې کښې ذکردې په کتاب الجهاد ص ۴۰۰ کښې مختصر او په کتاب المساقاة ص ۳۱۹ کښې دا حدیث پوره ذکر کړې دې.

الخیل ورکول غواړي، نو د هغوی نه واخله، او بیا ئې په هغوی واپس کړه، په داسې طریقې چه دهغوی په غلامانو ئې خرچ کړه، نو ممکن ده، چه په شروع کښې حضرت عمر رضی الله عنه ته په دې باندې انشراح نه وو، بیا روستو شوې وو. (په دې صورت کښې به جمع بین الروایتین راشي، ګنې د احد الروایتین اهمال به لازم راشي) یا داچه اهل شام د اسونو په زکوة کښې اسونه ورکول غوختل، ددې نه هغوی انکار فرمائیلې وی، چه په دې صورت کښې د ارباب خیل نقصان دې، ځکه چه خیل ډیر قیمتی څیز دې، څرنګه چه پنځویشتو پورې په زکوة الابل کښې اوښان نشي اخستلې کیدې، بلکه بزې اخستلې شي.

دا حضرات دا هم وائي چه حضرت عمر رضی الله عنه چه کومه فیصله فرمائیلې وه، هغه دهغوی اجتهاد وو، لیکن دا حدیث مرفوع هم په ذهن کښې ساتل پکار دی، ان الله جعل الحق علی لسان عمر و قلبه، بهرحال که دلائل بالکل صفا وې نو اختلاف بیا ولې وو. والله سبحانه و تعالی اعلم،

[۱۵۷۵] ([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا بَهْزُ بْنُ حَكِيمٍ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَأَخْبَرَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فِي كُلِّ سَائِمَةِ إِبِلٍ فِي أَرْبَعِينَ بِنْتُ لَبُونٍ، وَلَا يُفَرَّقُ إِبِلٌ عَنْ حِسَابِهَا مَنْ أَعْطَاهَا مُؤْتَجِرًا، قَالَ ابْنُ الْعَلَاءِ: مُؤْتَجِرًا بِهَا فَلَهُ أَجْرُهَا، وَمَنْ مَنَعَهَا فَإِنَّا آخِذُوهَا، وَشَطْرَ مَالِهِ عَزْمَةٌ مِنْ عَزَمَاتِ رَبِّنَا عَزَّ وَجَلَّ لَيْسَ لِآلِ مُحَمَّدٍ مِنْهَا شَيْءٌ".

بهز بن حکیم د خپل والد صاحب نه، هغوی دده د نیکهٔ نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل " په هر څلویښت اوښانو کښې په داسې حال کښې چه بهر څریدونکې وی، یو بنت لبون (دوه کلیزی اوښه) ده او هغې لره دې د هغې په حساب سره جُدا جُدا نهٔ کړې شي - څوک چه د اجر او ثواب په نیت باندې ورکوی ...... ابو العلاء د [ موتجرا بها ] الفاظ وئیلی دي ... نو د هغه دپاره د هغې اجر او ثواب دې، او څوک چه (زکات) منع کوی نو مونږ به د هغه نه زکات وصوله وو او نیم مال (زیاتی هم -) دا زمونږ د رب ذولجلال د واجباتو نه یو واجب دې، په دې کښې د آل محمد هیڅ حصه نشته دې -

**تشریح: قوله**: عن بهز بن حکیم عن ابیه عن جده، ددې حدیث راوی د بهز بن حکیم نیکهٔ دې، دهغه نوم معاویه بن حیده القشیری دې،

**قوله**: من اعطاها مؤ تجرا فله اجرها و من منعها فانا آخذوها وشطر ماله.

## شرح حدیث:

کوم سړې چه زکوة د اجر او ثواب حاصلولو دپاره ورکړی، نو هغه دپاره د دې اجر دې، او څوک چه زکوة منع کړی، نو مونږ به دهغه نه زکوة اخلو، (بلکه نور) دهغه نیم مال هم، ګویا په سزا او جرمانه کښې دهغه د ټول مال نه به نیم هم اخلو، دا عقوبة مالیه دې، ددې باره کښې شارحین لیکی، چه په ابتداء اسلام کښې مشروع وو، روستو بیا منسوخ شو، لیکن

[1]: سنن النسائي/الزكاة ٤(٢٤٤٦)، ٧(٢٤٥١)،( تحفة الأشراف :١١٣٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٥/٢، ٤)، سنن الدارمي/الزكاة ٣٦(١٧١٩)(حسن)

فی الجملة د امام احمد (فی روایة) په دې عمل دې، او د امام شافعی رحمه الله قول قدیم هم دې، او په صحابؤ رضی الله عنهم کښې د حضرت عمر رضی الله عنه نه هم په دې باندې عمل منقول دې، د جمهور علماؤ په نزد د داسې سړې نه به صرف زکوة چه واجب دې، اخستلې شی.

یو احتمال ددې جملې په معنی کښې دا بیان کړې شوې دې، چه مونږ به دهغه نه زکوة اخلو، اګر که هغه ددهٔ د ټول مال نیمه حصه ولې نه وی، مثلاً هغه سره زر (۱۰۰۰) بزې وې، په هغې کښې لس بزې د زکوة واجبې وې، هغه د زکوة ورکولو نه انکار اوکړو، او بیا دهغه بزې مړې شوې، او صرف شل باقې پاتې شوې، نو مونږ به په دې صورت کښې دهغه نه پوره زکوة اخلو، یعنی لس بزې، چه دهغه د مال نیمه حصه ده.

و شطر ماله، بره په حدیث کښې ذکر دې، دې لره په بلې طریقې سره هم لوستلې شوې دې، و شُطِّر ماله، او په دې صورت کښې به مطلب دا وی، چه دهغې زکوة به اخستلې شی، او په داسې طریقه به اخستلې شی، چه دهغه د مال به دوه حصې کړې شی، ردی او عمده، او بیا به زکوة کښې د متوسط مال په ځائې عمده او افضل مال اخستلې شی، الحاصل

**عقوبة مالیه :**

ددې حدیث په تشریح کښې درې اقوال شو، صرف د قول اول په بناء به حدیث د عقوبت مالیه د قبیلې نه وی، د آخری اقوالو په بناء باندې نه، د عقوبة مالیه مسئله او بحث په جلد ثانی کتاب الصلوة، ابواب الجماعة کښې هم تیر شوې دې، او ددې قسمه یو حدیث مخکښې په کتاب الجهاد کښې هم راروان دې، یعنی د عقوبة الغال والا حدیث، اذا وجدتم الرجل قد غل فاحرقوا متاعه.

عزمة من عزمات ربنا عزوجل لیس لآل محمد منها شیء، عزمة لره منصوب هم وئیلې شی، بناء بر مفعولیت، ای عزم الله ذالک علینا عزمة عزمت وئیلې شی، په یو کار کښې مضبوطیا او پوخ والی ته، او عزمة مرفوع هم کیدې شی، ای ذالک عزمه فرمائې چه دا د الله تعالی په احکامو کښې یو تاکیدی حکم دې، یا د الله تعالی په حقوق واجبه کښې یو حق واجب دې، (او دا جرمانه چه اخستلې شی یا پوره زکوة) په دې کښې د محمد صلی الله علیه وسلم د کور والو هیڅ حصه نشته، ټول په ټوله به بیت المال کښې داخلیږی، دا حدیث زما د علم مطابق په صحاح کښې صرف ابوداؤد او نسائی کښې دې.

[۱۵۷۶] (۱) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مُعَاذٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا وَجَّهَهُ إِلَى الْيَمَنِ "أَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ مِنَ الْبَقَرِ مِنْ كُلِّ ثَلَاثِينَ تَبِيعًا أَوْ تَبِيعَةً، وَمِنْ كُلِّ أَرْبَعِينَ مُسِنَّةً، وَمِنْ كُلِّ حَالِمٍ يَعْنِي مُحْتَلِمًا دِينَارًا أَوْ عَدْلَهُ مِنَ الْمَعَافِرِ ثِيَابٌ تَكُونُ بِالْيَمَنِ".

د حضرت معاذ رضی الله عنه نه منقول دی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی لره کله یمن ته لیږلو نو فرمائیلې ئې وو :" په غواګانو کښې په هر دیرشو کښې یو کلیزی سخئ یا سخې اخله او په هر څلویښتو کښې دوه کلیزی - او د هر (غیر مسلم) بالغ نه یو دینار -

(۱): سنن النسائي/الزکاة ۸(۲۴۵۵)،( تحفة الأشراف :۱۱۳۱۲)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ۱۲(۲۴)، مسند احمد(۵/۲۳۰، ۲۳۳، ۲۴۷)، سنن الدارمي/الزكاة ۵(۱۶۶۳)(صحيح)

**تشریح: قوله**:عن معاذ ان النبی(صلی الله علیه وسلم) لما وجهه الی الیمن امره ان یاخذ من البقر الخ
د حضرت معاذ رضی الله عنه دا حدیث مخکښې د ابن عباس رضی الله عنه په روایت سره څه قدرې تفصیل سره راروان دې، په دې به کلام انشاء الله هلته کښې کیږی،
**ومن کل حالم یعنی محتلما دینارا او عدله** ([1]) **من المعافر**، د حدیث د دې ټکړې تعلق د جزیه سره دې، د جزیئ تعلق د کتاب الجهاد سره دې، نو ددې باب به کتاب الجهاد کښې راشی.

**شرح الحدیث و تخریجه**:

حدیث معاذ بروایة ابن عباس رضی الله عنه چه په صحیحینو کښې ذکر دې، او په ابوداؤد کښې هم مخکښې راروان دې، څرنګه چه د هغې حواله هم مخکښې تیره شوې ده، په دې کښې د حدیث هغه ټکره چه د جزیئ سره متعلق ده، نشته، دا قطعه صرف د سنن اربعه په روایت کښې ده، امام ترمذی او حاکم دهغې تصحیح کړې ده،(قاله الحافظ) د حدیث مضمون دادې، حضرت معاذ رضی الله عنه لره چه کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم یمن طرف ته اولیږلو، او والی او ګورنر ئې جوړ کړو،(کما جزم به الغسانی) یا قاضی ئې جوړ کړو،(کما جزم به ابن عبدالبر) نو هغه ته نبی کریم صلی الله علیه وسلم د زکوة احکام بیان کړل، او دا ئې ورته هم اوفرمائیل: چه په ذمیانو کښې د هر بالغ نه په کال کښې یو دینار اخله، یا ثوب معافری چه په قیمت کښې د یو دینار برابر وی، معافر په وزن د مساجد، په یمن کښې یو ځائې دې، یا یوه قبیله ده، چه هغوی طرف ته یو خاص قسم کپړه منسوبه ده.

**فقه الحدیث، د جزئې په مقدار کښې د امامانو مذاهب**:

په دې حدیث کښې دوه مسئلې ذکر دی، یو مقدار جزیه او دویمه دا چه جزیه به صرف د بالغو نه اخستلې شی، اوله مسئله مختلف فیه ده، او دویمه اجماعی ده، په ټولو مذاهبو کښې ددې تصریح ده، چه د جزیې دپاره حریت، ذکورة او بلوغ شرط دې، نو د ښځو او ماشومانو نه به اخستلې کیږی نه، ځکه چه جزیه د قتل په ځائې اخستلې شی، ګویا د ځان بدل دې، او د قتل حکم صرف د رجال کفار دپاره دې، د صبیان او نساء دپاره نه دې.
اوپه مقدار د جزیه کښې اختلاف دې، د احنافو او حنابله په نزد د حیثیت مطابق د ذمی مالدار نه په کال کښې څلور دیناره ۴ یا اته څلویښت درهمه، او د متوسط نه دوه دیناره یا څلیریشت درهمه، او د فقیر نه یو دینار یا دولس درهمه.
په صحیح بخاری ص۴۴۷ کښې دی، د حضرت مجاهد رحمه الله نه سوال اوکړې شو، ما شان اهل الشام علیهم اربعة دنانیر واهل الیمن علیهم دینار قال جعل ذالک من قبل الیسار، یعنی د اهل شام نه په جزیه کښې څلور دیناره دهغوی د مالدارئ د وجې نه واخستلې شو، او د اهل یمن نه په کال کښې یو دینار دهغوی د فقیرئ د وجې نه واخستلې شو، او د امام

[1]) عدل لره په کسرې د عین او فتحې دواړو طریقو سره ضبط کړې شوې دې، په معنی د مثل، او بعضو په دواړو کښې فرق لیکلې دې، هغه داچه(عدل بفتح) هغه څیز چه د بل څیز مثل وی، د خلاف جنس نه، او عدل(بالکسر) هغه څیز چه د بل څیز سره برابر وی، او دهغې د جنس نه وی، وقیل بعکس ذالک وقیل عدل الشيء بکسر العین اي مثله في الصورة و بالفتح ما کان مثله في القیمة)

مالک رحمه الله په نزد مطلقا که غني وي او که فقير(کما ذکره في المؤطا اوجز ۳ص۲۶۲) څلور ديناره يا څلويښت درهمه، ( بحساب لس درهم په يو دينار کښې) او د امام شافعي رحمه الله په نزد اقل مقدار يو دينار دې، مطلقا (بدون الفرق بين الغني والفقير) ولا حد لاکثرها پس که ذمي يو دينار په کال کښې ورکوي، نو هغه له قتلول جائز نه دي، بس هم دا کافي دې، ( کذا في الاوجز عن الزرقاني) ليکن حافظ په فتح الباري کښې ليکلي دي، چه د امام شافعي رحمه الله په نزد د يو دينار نه کم اخستلې شي، او هم داسې په شرح اقناع( چه په فقه شافعي کښې ده) کښې دا ليکلي دي، چه د امام شافعي رحمه الله په نزد اقل مقدار يو دينار هغه وخت کښې دې، هرکله چه مونږ ته دهغې په اخستلو قدرت وي، ګنې ددې نه کم هم مقرر کيدې شي، او د اکثر دپاره هيڅ حد نشته، ليکن مستحب داده، چه د فقير نه يو دينار او د متوسط نه دوه دينار د اوه غني نه څلور ديناره واخستلې شي، اقتداء بعمر او ابن رشد په بداية المجتهد کښې د امام احمد رحمه الله مذهب دا ليکلي دې، چه يو دينار دې، لايزاد عليه و لا ينقص منه، ليکن په الروض المربع(في فقه الحنابلة) کښې ئې مقدار جزيه د امام په اجتهاد باندې موقوف کړې ده، او هم دغسې ابن قدامة ليکلي دي، ولفظه والمرجع في الخراج والجزية الى اجتهاد الامام، لهذا تحقيق دادې، چه د امام احمد مذهب هغه نه دې، چه په اوجز کښې د زرقاني وغيره نه نقل کړې دې.

## د جزئې قسمونه :

د جزيې دوه قسمونه دي، جزيه صلح او جزيه جبر، دا مذکوره تفصيل د قسم ثاني دې، او د جزيه صلح مقدار متعين نه دې، په کوم څيز باندې چه مصالحت اوشي، لکه چه روايت دې، چه نبي کريم صلی الله علیه وسلم د نجران عيسايانو سره مصالحت اوکړو، على الفي حلة، دکپړې په دواؤ زرو جوړو باندې، کما سياتي في كتاب الخراج في باب في اخذ الجزية( بذل ۴ص۱۵۴)

او حديث الباب چه په ظاهر کښې د احنافو خلاف دې، دهغې جواب زمونږ د طرف نه دادې [1] چه دا جزيه صلح وه، ځکه چه يمن عنوة فتح شوې نه وو، بلکه صلحا فتح شوې وو، او دويمه وجه دا هم ده، چه هغوی اهل فاقه وو، ددې تائيد دمجاهد دهغې اثر نه کيږي چه په شروع کښې تير شو.

## جزيه د کومو کافرانو نه اخستلې کيږي :

يوه مسئله دلته کښې داده، چه جزيه د کومو کومو کافرانو نه اخستلې کيږي، د امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد صرف د اهل کتاب نه، او په دې حکم کښې مجوس هم داخل دي، او د احنافو په نزد د اهل کتابو تخصيص نشته، بلکه د مشرکين عجم نه هم، البته د مشرکين عرب نه به نه اخستلې کيږي، او د امام مالک رحمه الله په نزد د مشرکين عرب استثناء هم نشته، بلکه د ټولو نه به اخستلې کيږي سوا د مرتد نه(من العيني ۱۵ص۷۸)

[1] هکذا افاد المحدث الکنکوهي في لامع الدراري ۲ص۵۰۹ وکذا علي القاري)

[۱۵۷۷](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَالنُّفَيْلِيُّ، وَابْنُ الْمُثَنَّى، قَالُوا: حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، حَدَّثَنَا الْأَعْمَشُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ مُعَاذٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَهُ.

حضرت مسروق د حضرت معاذ رضی الله عنه نه هغوی د نبی کریم ﷺ نه ددې په مثل باندې روایت کړې دې -

[۱۵۷۸](٢) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ زَيْدِ بْنِ أَبِي الزَّرْقَاءِ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ سُفْيَانَ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، قَالَ: بَعَثَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْيَمَنِ، فَذَكَرَ مِثْلَهُ، لَمْ يَذْكُرْ ثِيَابًا تَكُونُ بِالْيَمَنِ، وَلَا ذَكَرَ يَعْنِي مُحْتَلِمًا. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ جَرِيرٌ، وَيَعْلَى، وَمَعْمَرٌ، وَشُعْبَةُ، وَأَبُو عَوَانَةَ، وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، قَالَ: قَالَ يَعْلَى، وَمَعْمَرٌ: عَنْ مُعَاذٍ، مِثْلَهُ.

حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ دوی لره یمن ته اولیږلو، او د مذکوره روایت په مثل باندې ئې روایت اوکړو، په دې روایت کښې دا ذکر نشته دې چه: "دا کپړې دی کومې چې په یمن کښې وی -" او نۀ ئې دَ [ محتلماً ] لفظ ذکرکړې دې -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روایت لره جریر، یعلیٰ، معمر، شعبه، ابو عوانه او یحییٰ بن سعید دَ اعمش نه، هغوی دَ ابووائل نه، هغوی دَمسروق نه(مرسل) نقل کړې دې، او یعلیٰ او معمر دَ حضرت معاذ رضی الله عنه نه هم ددې په مثل باندې( متصل) روایت کړې دې -

**تشریح: قوله**:قال ابوداود رواه جریر ویعلی و معمر و شعبه و ابوعوانة و یحی بن سعید عن الاعمش عن ابی وائل عن مسروق قال یعلی و معمر عن معاذ مثله.

## شرح السند :

دا قال ابوداؤد د تشریح محتاج دې، لهذا واورئ، مصنف اختلاف رواة فی الاسناد لره بیان فرمائي، په اصل کښې ددې حدیث معاذ مدار په اعمش باندې دې، د اعمش نه نقل کونکې دهغه متعدد شاګردان دی، په هغې کښې د ټولو نه مخکښې مصنف د ابومعاویه روایت ذکر کړې دې، ابومعاویه دې لره د اعمش نه په دواؤ طریقو روایت کړې دې، عن الاعمش عن ابی وائل عن معاذ رضی الله عنه، عن الاعمش عن ابراهیم عن مسروق عن معاذ، یعنی د اعمش استاذ کله ابووائل مقرر کړې دې، او کله ئې ابراهیم لره، لیکن د ابووائل او معاذ په مینځ کښې ئې هیڅ واسطه ذکر کړې نه ده، او د ابراهیم او معاذ په مینځ کښې ئې د مسروق واسطه ذکر کړې ده.

او سفیان، یعلی، معمر، دې دریو واړو د اعمش استاذ صرف ابووائل مقرر کړې دې، او بیا ئې د ابووائل او معاذ په مینځ کښې د مسروق واسطه هم ذکر کړې ده.

او دغه شان جریر، شعبه، ابوعوانه او یحی بن سعید کړې دی، لیکن ړومبنو دریو خو حدیث مسندا روایت کړې دې، یعنی معاذ صحابی لره ذکر کولو سره، او دې څلورو حدیث مرسلا روایت کړې دې،(معاذ ئې ذکر کړې نه دې) حاصل داچه دا حدیث د اعمش نه په

(١): سنن الترمذي/ الزكاة ٥(٦٢٣)، سنن النسائي/الزكاة ٨(٢٤٥٢)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١٢(١٨٠٣)،( تحفة الأشراف: ١١٣٦٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ١٢(٢٤)، مسند احمد(٢٣٠/٥، ٢٣٣، ٢٤٧)، دي/الزكاة(١٦٦٣)(صحيح)

(٢): انظر حديث رقم :(١٥٧٨)،( تحفة الأشراف :١١٣٦٣)(صحيح)

متعدد طریقو سره روایت دي، مسندا هم او مرسلا هم، امام ترمذی روایت مرسله(یعنی عن مسروق ان النبی(صلی الله علیه وسلم) لره اصح مقرر کړې دې، دهغې وجه دا بیان کړې شوې ده، چه د مسروق لقاء د معاذ سره ثابته نه ده، لهذا روایت مسنده یعنی مسروق عن معاذ ان النبی(صلی الله علیه وسلم) الخ منقطع شو، په خلاف د روایت مرسله نه، چه هغه د انقطاع نه محفوظ دې، دا جدا خبره ده چه مرسل دې، لیکن نور محدثین ابن القطان، او ابن حبان وغیره ددې انقطاع لره تسلیموی نه، څکه چه مسروق د معاذ رضی الله عنه په زمانه کښې یمن کښې وو، پس لقاء ممکن شوه، چه د جمهورو په نزد د حدیث معنعن د اتصال دپاره کافي ده، اګر چه د امام بخاری رحمه الله په نزد امکان لقاء کافي نه ده، کیدې شی، چه په دې مسئله کښې د امام ترمذی رائې د امام بخاری د رائې سره موافق وی، والله تعالی اعلم.

## تشکیل الاسانید :

١. ابو معاویه............اعمش عن ابی وائل عن معاذ ان النبی(صلی الله علیه وسلم)

٢. سفیان، یعلی،معمر...اعمش عن ابی وائل عن مسروق عن معاذ ان النبی(صلی الله علیه وسلم)

٣. ابومعاویه............ اعمش عن ابراهیم عن مسروق عن معاذ ان النبی(صلی الله علیه وسلم)

٤. جریر، شعبه، ابوعوانة، یحی بن سعید........... اعمش عن ابی وائل عن مسروق ان النبی(صلی الله علیه وسلم)

[١٥٧٩]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ، عَنْ مَيْسَرَةَ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ، قَالَ: سِرْتُ، أَوْ قَالَ: أَخْبَرَنِي مَنْ سَارَ مَعَ مُصَدِّقِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَإِذَا فِي عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ: "لَا تَأْخُذْ مِنْ رَاضِعِ لَبَنٍ، وَلَا تَجْمَعْ بَيْنَ مُفْتَرِقٍ، وَلَا تُفَرِّقْ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ، وَكَانَ إِنَّمَا يَأْتِي الْمِيَاهَ حِينَ تَرِدُ الْغَنَمُ، فَيَقُولُ: أَدُّوا صَدَقَاتِ أَمْوَالِكُمْ"، قَالَ: فَعَمَدَ رَجُلٌ مِنْهُمْ إِلَى نَاقَةٍ كَوْمَاءَ، قَالَ: قُلْتُ: يَا أَبَا صَالِحٍ، مَا الْكَوْمَاءُ؟ قَالَ: عَظِيمَةُ السَّنَامِ، قَالَ: فَأَبَى أَنْ يَقْبَلَهَا، قَالَ: إِنِّي أُحِبُّ أَنْ تَأْخُذَ خَيْرَ إِبِلِي، قَالَ: فَأَبَى أَنْ يَقْبَلَهَا، قَالَ: فَخَطَمَ لَهُ أُخْرَى دُونَهَا، فَأَبَى أَنْ يَقْبَلَهَا، ثُمَّ خَطَمَ لَهُ أُخْرَى دُونَهَا فَقَبِلَهَا، وَقَالَ: إِنِّي آخِذُهَا وَأَخَافُ أَنْ يَجِدَ عَلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ لِي: "عَمَدْتَ إِلَى رَجُلٍ فَتَخَيَّرْتَ عَلَيْهِ إِبِلَهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ هُشَيْمٌ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: لَا يُفَرَّقُ.

سوید بن غفله بیان کوی چې زۀ د نبی کریم ﷺ د عامل سره لاړم، یائې اوونیل ماته دې کس بیان کړې دې کوم چه د نبی کریم ﷺ د عامل سره پاتې شوې وو - د رسول الله ﷺ په عهد کښې (تحریر) کښې دا وو: " په زکات کښې د پیو والا څاروې یا پۍ خورونکی بچې مۀ اخله، جُدا جُدا څاروو لره مۀ جمع کوه او نۀ یو ځائې څاروو لره جُدا کوه - او د حضور ﷺ د زکات تحصیلدار به د هغې د اوبو ځائې (چینه، کوهې، تالاب وغیره) ته رسیدلو کله چه به چیلۍ د اوبو څښلو د پاره راغلې نو هغه به ددې مالکانو ته وئیل د خپلو مالونو زکات ادا کړئ - راوی بیان کوی : چنانچه یو کس د " کوماء " اوښې قصد اوکړو - راوی وائی چه ما

[1] ): سنن النسائي/الزكاة ١٢(٢٤٥٩)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١١(١٨٠١)،(تحفة الأشراف :١٥٥٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣١٥/٤)، سنن الدارمي/الزكاة ٨(١٦٧٠)(حسن)

اووې اې ابو صالح! دَ "کوماء" څهٔ معنیٰ ده؟ هغوی اووې دَ غټې قُب والا اوښ - نو عامل دَ اخستو نه انکار اوکړو (ځکه چه دا ډېر زيات عمده وو) مال والا اووې زهٔ دا خوښه وم چه تاسو زما نه بهترينه اوښه وصول کړئ مگر هغه دَ اخستو نه انکار اوکړو - نو هغه بله اوښه راوستله کومه چه دَ هغې نه لږه غونډې دَ کمې درجې وه، نو هغه دَ ددې دَ قبلولو نه هم انکار اوکړو - چنانچه هغه يوه بله راوستله کومه چه دَ ددې نه هم دَ کمې درجې والا وه نو هغه واخستله اووې وئيل : زهٔ دې لره اخلم مگر انديښنه ده چه رسول الله ﷺ به په ما باندې خفه وی - هغوی ﷺ به ماته وائی چه تا ددغه سړی نه بهترينه اوښه وصول کړې ده - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه هشيم دَ هلال بن خباب نه ددې روايت په مثل باندې بيان کړې دې مگر لفظ دَ "لا يفرق" ئې استعمال کړې دې -

**تشريح: قوله**:عن سويد بن غفلة قال سرت او قال اخبرنی من سار مع مصدق النبی(صلی الله عليه وسلم) فاذافی عهد رسول الله(صلی الله عليه وسلم) ان لا تاخذ من راضع لبن.

**مضمون حديث :**

سويد بن غفله وائی، [1] يو ځل زهٔ د نبی کريم ﷺ يو مصدق يعنی عامل سره لاړم، يا سويد اوئيل چه ماته هغه سړی اوئيل چه د نبی کريم ﷺ يو مصدق سره تلې وو، دا شک د راوی دې، ليکن دا روايت مخکښې هم راروان دې، هلته کښې د راوی شک نشته، بلکه دهغې نه دا معلوميږی، چه دې په خپله د مصدق سره تلې وو، لهذا ړومبنئ خبره(سرت مع مصدق النبی(صلی الله عليه وسلم)) صحيح ده.

د عهد نه مراد عهدنامه يعنی کتاب الصدقة ده، زمانه مراد نه ده، کما توهم بعضهم(منهل) په دې کښې مصدق ته هدايت دې، چه هغه به په څاروؤ کښې راضع لبن نه اخلی، د راضع لبن نه مراد يا خو پئی خوړونکې بچې دې، يا پئی ورکونکې اوښه يا بزه مراد ده، ددې پوره شرح سره د منشاء اختلاف نه د کتاب الزکوة په ړومبنې حديث والله لو منعونی عقالا په ذيل کښې تيره شوې ده.

وکان انما ياتی المياه حين ترد الغنم، ورود وئيلې شی، د څاروؤ تالاب يا چينې ته د اوبو څکلو دپاره رسيدل، مطلب دادې، چه د مصدقينو(زکوة وصولونکو) معمول دا وو، چه هغوی به د څاروؤ زکوة اخستلو دپاره هلته کښې رسيدل، کوم ځائی به چه څاروی د اوبو څکلو دپاره جمع کيدل، ځکه په دې کښې د دواړو دپاره سهولت دې.

قال فعمد رجل منهم : سويد وائی چه زهٔ د کوم مصدق سره تلې اوم، هغه د يو سړی د اوښانو نه زکوة اخستلو دپاره چينې ته اورسيدلو، نو يو سړی په زکوة کښې ورکولو دپاره ډيره ښائسته اوچت قب والا اوښه راوستله، نو هغې مصدق هغې لره د قبلولو نه انکار

---

[1] سويد بن غفله لره بعضو په صحابؤ کښې شمار کړې دې، ليکن دا صحيح نه ده، دا مخضرمی تابعی دې، مدينې منورې ته هغه وخت کښې حاضر شو، چه کله صحابه کرام د نبی کريم ﷺ د فن کولو نه فارغيدل،(منهل عن التهذيب)

اوکړو، ځکه چه هغه زیاته عمده وه، او قاعده داده چه د متوسط درجې والا به اخستلې شي، بیا هغه د یوې بلې اوښې پیزوان اونیولو او رائې وستله، چه دا واخله، لیکن مصدق دهغې د اخستلو نه هم انکار اوکړو، هغه سړی بیا یوه بله اوښه راوستله، چه د مخکښنئ نه کمې درجې والا وه، نو هغه اوښه مصدق واخستله، او دا ئې اوئیل چه زهٔ خو دا اخلم، لیکن ماسره ویره ده، چه نبی کریم ﷺ به ددې لیدلو سره اوفرمائی، چه تا په زکوة کښې دومره عمده اوښه ولې اخستلې ده؟ دا حدیث په ابن ماجه کښې هم شته، دهغې الفاظ دادي: فاتاه رجل بناقة عظيمة ململة یعنی داسې اوښه ئې راوستله چه د څورب والی په وجه بالکل غونډئ کیدله.

اوګورئ! دې حضراتو به خپل زکوة څومره په خوشالئ سره ادا کولو، او د ښه نه ښه مال به ئې زکوة کښې ورکول غوختل، فاجزل الله مثوبتهم و رزقنا اتباعهم.

[۱۵۸۰](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا شَرِيكٌ، عَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي زُرْعَةَ، عَنْ أَبِي لَيْلَى الْكِنْدِيِّ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ، قَالَ: أَتَانَا مُصَدِّقُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذْتُ بِيَدِهِ وَقَرَأْتُ فِي عَهْدِهِ: "لَا يُجْمَعُ بَيْنَ مُفْتَرِقٍ، وَلَا يُفَرَّقُ بَيْنَ مُجْتَمِعٍ خَشْيَةَ الصَّدَقَةِ" وَلَمْ يَذْكُرْ رَاضِعَ لَبَنٍ.

دَ سوید بن غفله بیان دې چه دَ نبی کریم ﷺ تحصیلدار مونږ ته راغي - ما دَ هغه لاس اونیولو او ما دَ هغه په عهد (وثیقه) کښې اولوستل: " دَ زکات دَ ویرې نه جُدا جُدا څاروو لره دې جمع نهٔ کړې شي او نهٔ دې یوځائې مال علیحده (جُدا جُدا) کړې شي -" په دې روایت کښې دَ [رَاضِعَ لَبَنٍ] " یعنی پیو والا څناور یا دَ پیو خوړلو والا بچې " ذکر نشته دې -امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ [لا تَجمَعْ] " تاسو جمع مهٔ کوئ -" او دَ [لایجمَعْ] " جمع دې نهٔ کړې شي -" حکم یو دې -

[۱۵۸۱](۲) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ زَكَرِيَّا بْنِ إِسْحَاقَ الْمَكِّيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَبِي سُفْيَانَ الْجُمَحِيِّ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ ثَفِنَةَ الْيَشْكُرِيِّ، قَالَ الْحَسَنُ: رَوْحٌ يَقُولُ: مُسْلِمُ بْنُ شُعْبَةَ، قَالَ: اسْتَعْمَلَ نَافِعُ بْنُ عَلْقَمَةَ أَبِي عَلَى عِرَافَةِ قَوْمِهِ، فَأَمَرَهُ أَنْ يُصَدِّقَهُمْ، قَالَ: فَبَعَثَنِي أَبِي فِي طَائِفَةٍ مِنْهُمْ، فَأَتَيْتُ شَيْخًا كَبِيرًا يُقَالُ لَهُ: سِعْرُ بْنُ دَيْسَمٍ، فَقُلْتُ: إِنَّ أَبِي بَعَثَنِي إِلَيْكَ، يَعْنِي لِأُصَدِّقَكَ، قَالَ ابْنَ أَخِي: وَأَيَّ نَحْوٍ تَأْخُذُونَ، قُلْتُ: نَخْتَارُ حَتَّى إِنَّا نَتَبَيَّنُ ضُرُوعَ الْغَنَمِ، قَالَ ابْنَ أَخِي: فَإِنِّي أُحَدِّثُكَ أَنِّي كُنْتُ فِي شِعْبٍ مِنْ هَذِهِ الشِّعَابِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَنَمٍ لِي، فَجَاءَنِي رَجُلَانِ عَلَى بَعِيرٍ، فَقَالَا لِي: إِنَّا رَسُولَا رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْكَ لِتُؤَدِّيَ صَدَقَةَ غَنَمِكَ، فَقُلْتُ: مَا عَلَيَّ فِيهَا، فَقَالَا: شَاةٌ، فَأَعْمَدُ إِلَى شَاةٍ قَدْ عَرَفْتُ مَكَانَهَا مُمْتَلِئَةٍ مَحْضًا وَشَحْمًا، فَأَخْرَجْتُهَا إِلَيْهِمَا، فَقَالَا: هَذِهِ شَاةُ الشَّافِعِ، وَقَدْ "نَهَانَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَأْخُذَ شَافِعًا"، قُلْتُ: فَأَيَّ شَيْءٍ تَأْخُذَانِ؟، قَالَا: عَنَاقًا جَذَعَةً أَوْ ثَنِيَّةً، قَالَ: فَأَعْمَدُ إِلَى عَنَاقٍ مُعْتَاطٍ، وَالْمُعْتَاطُ الَّتِي لَمْ تَلِدْ وَلَدًا وَقَدْ حَانَ وِلَادُهَا، فَأَخْرَجْتُهَا إِلَيْهِمَا، فَقَالَا: نَاوِلْنَاهَا، فَجَعَلَاهَا مَعَهُمَا عَلَى بَعِيرِهِمَا، ثُمَّ انْطَلَقَا. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ زَكَرِيَّاءَ، قَالَ أَيْضًا: مُسْلِمُ بْنُ شُعْبَةَ، كَمَا قَالَ: رَوْحٌ.

مسلم بن شعبه بیان کوی چه حضرت نافع بن علقمه زما پلار لره هغوی دَ خپل قوم سربراه،

---

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۹۳) (حسن)

(۲): سنن النسائي/الزكاة ۱۵ (۲٤٦٤)، (تحفة الأشراف: ۱۵۵۷۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/٤۱٤، ٤۱۵) (ضعيف)

نګران کار او منتظم جوړ کړو او حکم ئې ورته اوکړو چه ددوی نه زکات هم وصولوئ ـ چنانچه زما پلار ماله یو جماعت ته اولیږلو، زۀ یو ډیر زیات بوډا سړی ته اورسیدم د هغه نوم سعر (بن دیسم) وو ما عرض اوکړو : زما پلار ماله رالیږلی دې ددې دپاره چه ستاسو نه زکات وصول کړم ـ هغوی اووې : اې ورارۀ تۀ کوم قسم مال اخلې؟ ما اووې مونږ ئې چانږ کوو تنو ته ئې ګورو او عمده بکرئ اخلو ـ هغه اووې اې ورارۀ زۀ تاته یو حدیث بیانوم زۀ د رسول الله ﷺ په دور کښې ددې وادو نه په یوه وادئ کښې د خپلو چیلو (بکرو) سره وم چه ماته دوه کسان راغلل چه په یو اوښ باندې سوارۀ وو هغوی ماته اووې مونږ د رسول الله ﷺ د طرف نه تاسو ته راغلې یو ددې د پاره چه تۀ د خپلو چیلو زکات راکړې ـ ما تپوس اوکړو په ما باندې په دې کښې څۀ واجب دی؟ هغوی اووې یوه چیلئ ـ نو ما د یوې چیلئ قصد اوکړو کومه چه ما پیژندله چه دا د پیو والا او د چربئ نه ډکه وه ما هغې لره د هغوی طرف ته راو ویستله ـ نو هغوی اووې دا خو حامله ده او رسول الله ﷺ د حامل ځاروو د اخستلو نه منع فرمائیلې ده ـ ما اووې ت مو خلق به کوم قسم قبلوئ؟ هغوی اووئیل د یو کال ګډه یا چیلئ، کومه چه په دویم کال کښې داخله شوې وی یا د دوو کالو کومه چه په دریم کال کښې داخله شوې وی ـ اوس ما یوه ګډه راوستله کومه چه چاقه او تازه وه او حامله شوې نۀ وه ... [ معتاط ] هغه بکرئ چه لا حامله شوې خو نۀ وی لیکن د حامل والی عمر ته رسیدلې وی ... هغې لره ما هغوی ته راوستله نو هغوی اووې : دا مونږ ته راکړئ، نو هغې لره ئې د خپل ځان سره په اوښ باندې سوره کړه او روان شول ـ" امام ابوداود رحمه الله فرمائی : ابو عاصم د زکریا نه روایت کوی او د راوی نوم ئې مسلم بن شعبه وئیلی دی لکه څنګه چه روح بیان کړې دې ـ

۱۱: حدثنا الحسن بن علی نا وکیع......... قال الحسن روح یقول مسلم بن شعبة، د مصنف استاد حسن بن علی ته دا حدیث د دواؤ استاذانو نه رسیدلې دې، وکیع او روح بن عبادة، په سند کښې چه کوم یو راوی مذکور دې، یعنی مسلم، دهغه باره کښې وکیع دا وئیلی دی، مسلم بن ثفنه، او روح وئیلې دی، مسلم بن شعبة، لیکن صحیح شعبة دې، ثفنة غلط دې، صرح به علماء الرجال من البخاری والدارقطنی وغیرهم، د روح روایت مخکښې په کتاب کښې راروان دې.

قال استعمل نافع بن علقمة ابی علی عرافة قومه، مسلم بن شعبة وائی، چه زما پلار (شعبة) لره نافع بن علقمه دخپل قوم عریف جوړ کړو، عریف القوم د قوم مشر او سردار ته وئیلې شی، عرافة دهغې مصدر دې، یعنی مشری، سرداری، عام طور باندې په هر قوم او قبیله کښې دهغوی نه یو مشر او سردار وی، نو نافع شعبه لره د خپل قوم مشر جوړ کړو، دې دپاره چه هغه د قوم نه زکوة هم وصولوی.

مخکښې مسلم وائې : چه زما پلار شعبه ماله د خپل قوم د بعضو خلقو نه زکوة اخستلو دپاره اولیږلو، نو زۀ یو بوډا سړی (چه دهغه نوم سعر وو، په دې کښې د سین فتحه او کسره

دواړه ضبط کړې شوي دی، پوره نوم ئي سعربن سواده وو) ته لاړم، او هغه ته مي اوئيل چه زۀ خپل پلار د زکوة اخستلو دپاره رالیږلي يم، په دې هغه اوئيل چه اې وراره (زمونږ په معاشره کښې داسې وخت کښي وئيلي شي ځويه) زکوة کښي به څرنګه څاروي اخلي، نو ما اوئيل چه ځانړ کولو سره به اخلم، (يعنی د ښه نه ښه) تردي پورې چه زۀ به د بزو تيونو ته ګورم، چه د کومې بزې تيونه (ميمی) لوئی دی، چه هغه واخلم، دا خبره چونکه د اصول نه خلاف وه، ددې وجې نه هغه مشر سړی هغه لره پوهولو دپاره د نبی کريم ﷺ د زمانې يوه واقعه بيان کړه، دې دپاره چه معلومه شی چه زکوة وصولولو دپاره قاعده او طريقه څه ده. مخکښې مضمون واضح دې د ترجمې ضرورت نشته.

فعمدت الى شاة قد عرف مكانها ممتلة محضا و شحما: پس ما اراده اوکړه په زکوة کښې د داسې بزې ورکولو، چه دهغې مرتبه ما پيژندله، چه د پيو او وازګي نه ډکه وه، يعنی ډير پئی ورکونکې او څربه وه، هغه چه اوليدله نو وې وئيل، هذه شاة الشافع چه دا خو بچې والا بزه ده، يا حامله ده، او نبی کريم ﷺ د داسې بزې اخستلو نه منع فرمائيلې ده، ما تيوس اوکړو، بيا څرنګه بزه اخلې، نو هغه اوئيل چه داسې ځوانه چه تقريبا د يو کال وی، نو بيا ما هغه ته هغسې بزه راوستله او ورمې کړه، چه لا حامله شوې نه وه، ليکن د حمل قابله وه، معتاط په اصل کښې هغې بزې ته وئيلې شی، چه د کثرت سمن (سرب والی) د وجې نه حامله شوې نه وی، لهذا دلته په حديث کښې التی لم تلد ولدا، د ولادة نه مراد مجازا حمل دې، (راوی وائی) هغې دواړو ساعيانو هغې لره په اوښ باندې سوره کړه، او يوړه.

[۱۵۸۲] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يُونُسَ النَّسَائِيُّ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّاءُ بْنُ إِسْحَاقَ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ مُسْلِمُ بْنُ شُعْبَةَ، قَالَ فِيهِ: وَالشَّافِعُ الَّتِي فِي بَطْنِهَا الْوَلَدُ.

زکريا بن اسحاق په خپل سند سره دا حديث بيان کړې دې او د راوی نوم ئي مسلم بن شعبه ذکر کړې دې (او مسلم بن ثفنه ئي نۀ دی وئيلی) په دې کښې ئي ذکر کړې دی: [ شافع ] هغه وی چه د هغې په خيټه کښې بچې وی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی: ما په حمص کښې د آلِ عمرو بن حارث حمصی سره د عبد الله بن سالم په کتاب کښې اولوستل: کوم چه هغوی د زبيدی نه روايت کړې وو، فرمائی: [ عبد الله بن معاويه الغاضری ] چه دې د غاضرۀ قيس نه دې، فرمائی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: " چا چه درې کارونه اوکړل نو هغه د ايمان ذائقه اوڅکله - چا چه د يو الله عبادت اوکړو او اقرار ئي اوکړو چه د الله نه سوا بل څوک معبود نشته دې او په خوشالئ خوشالئ سره هر کال د خپل مال زکات ورکوی، څۀ بوډا، خاربښتی، بيمار يا ردی قسم څاروې ئي ورنۀ کړو بلکې د متوسط مال نه ئي ورکړو - بې شکه الله تعالیٰ ستاسو نه د عمده مال مطالبه نۀ ده کړې او نۀ ئي تاسو ته د بې کاره مال د ورکولو حکم کړې دې -"

**تشريح: قوله**: قال ابوداؤد و قرات فی کتاب عبدالله بن سالم، مصنف فرمائي دا حديث چه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٤٥) (صحيح)

مخکښې راروان دي، ما د عبدالله بن سالم نه براه راست اوريدلې نه دي [1] بلکه دهغه په کتاب کښې مې لوستلې دي.

قال النبي(صلی الله عليه وسلم) ثلاث من فعلهن فقد طعم طعم الايمان. د ايمان د خوند څکلو نه مراد دادې، چه هغې سړی ته د ايمان بشاشت او انشراح حاصليږي، دا خو يو معنوی خوند دې، ليکن ددې اثر داسی وی، لکه چه د يو محسوس څيز وی،(اللهم ارزقنا منه)

طيبة بها نفسه : په داسې طريقې سره زکوة ادا کوی، چه د ادا کولو په وخت کښې دننه زړۀ خوشاله وی،(يعنی په خوش دلۍ سره)

رافدة عليه) په داسې حال کښې چه دهغه نفس په زکوة ادا کولو کښې دهغه اعانت کوی، رفد بمعنی اعانت، رفد يرفد از باب ضرب،

لا يعطی الهرمة ډير زيات عمر والا بوډې، ولا الدرنة، درنة بمعنی جربا، خاربنتی اوښه)

ولا الشرط اللئيمة شرط د شين او را دواړو په فتحې سره، رذائل المال،(کوټه مال)

[۱۵۸۳]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ سَعْدِ بْنِ زُرَارَةَ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ، قَالَ: بَعَثَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُصَدِّقًا، فَمَرَرْتُ بِرَجُلٍ، فَلَمَّا جَمَعَ لِي مَالَهُ لَمْ أَجِدْ عَلَيْهِ فِيهِ إِلَّا ابْنَةَ مَخَاضٍ، فَقُلْتُ لَهُ: أَدِّ ابْنَةَ مَخَاضٍ فَإِنَّهَا صَدَقَتُكَ، فَقَالَ: ذَاكَ مَا لَا لَبَنَ فِيهِ وَلَا ظَهْرَ وَلَكِنْ هَذِهِ نَاقَةٌ فَتِيَّةٌ عَظِيمَةٌ سَمِينَةٌ فَخُذْهَا، فَقُلْتُ لَهُ: مَا أَنَا بِآخِذٍ مَا لَمْ أُومَرْ بِهِ، وَهَذَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْكَ قَرِيبٌ، فَإِنْ أَحْبَبْتَ أَنْ تَأْتِيَهُ فَتَعْرِضَ عَلَيْهِ مَا عَرَضْتَ عَلَيَّ، فَافْعَلْ فَإِنْ قَبِلَهُ مِنْكَ قَبِلْتُهُ، وَإِنْ رَدَّهُ عَلَيْكَ رَدَدْتُهُ، قَالَ: فَإِنِّي فَاعِلٌ، فَخَرَجَ مَعِي وَخَرَجَ بِالنَّاقَةِ الَّتِي عَرَضَ عَلَيَّ حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لَهُ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، أَتَانِي رَسُولُكَ لِيَأْخُذَ مِنِّي صَدَقَةَ مَالِي وَايْمُ اللَّهِ مَا قَامَ فِي مَالِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا رَسُولُهُ قَطُّ قَبْلَهُ، فَجَمَعْتُ لَهُ مَالِي فَزَعَمَ أَنَّ مَا عَلَيَّ فِيهِ ابْنَةُ مَخَاضٍ وَذَلِكَ مَا لَا لَبَنَ فِيهِ وَلَا ظَهْرَ، وَقَدْ عَرَضْتُ عَلَيْهِ نَاقَةً فَتِيَّةً عَظِيمَةً لِيَأْخُذَهَا فَأَبَى عَلَيَّ، وَهَا هِيَ ذِهْ قَدْ جِئْتُكَ بِهَا يَا رَسُولَ اللَّهِ خُذْهَا، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "ذَاكَ الَّذِي عَلَيْكَ، فَإِنْ تَطَوَّعْتَ بِخَيْرٍ آجَرَكَ اللَّهُ فِيهِ وَقَبِلْنَاهُ مِنْكَ" قَالَ: فَهَا هِيَ ذِهْ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَدْ جِئْتُكَ بِهَا فَخُذْهَا، قَالَ: "فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبْضِهَا وَدَعَا لَهُ فِي مَالِهِ بِالْبَرَكَةِ".

حضرت ابی ابن کعب رضي الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ مالره د صدقې( زکات) عامل جوړ کړو اووې ليږلم - زۀ يو کس ته ورغلم، کله چه هغه زما مخې ته خپل مال جمع کړو نو ما په هغه باندې صرف يو بنت مخاض( يو کليزی مؤنث اوښه) واجب بيا مونده ما هغه ته اووې يو بنت مخاض راکړه، ستاسو هم دا زکات دې - هغه اووې : دا پيو والا نۀ ده، نۀ دَ سورلۍ قابله ده ! ددې په ځائې باندې يوه ځوانه چاقه، تازه اوښه ده هغه بوځۀ - ما هغه ته اووې دَ کومې چه ماته حکم نۀ دې شوې هغه زۀ څنګه اخستلې شم، او دَ الله رسول تاسو ته قريب

---

[1] مصنف د عبدالله بن سالم زمانه موندلې نه ده، عبدالله بن سالم په طبقه سابعه کښې دې، چه د کبار تبع تابعينو طبقه ده، لکه امام مالک، سفيان ثوری وغيره، والمصنف من الطبقة الحادي عشر، ددې وجې نه منذری وئيلې دی، چه دا حديث منقطع دې،(عون المعبود)

[2]: تفرد به أبو داود( تحفة الأشراف : ۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۴۲/۵)(حسن)

دي کۀ چرې غوارئ نو دَ هغوی ﷺ خدمت کښې حاضر شئ او کوم څۀ چه ماته راکوئ نو هغې لره بوځه او هغوی ته ئې پيش کړه کۀ هغوی قبوله کړه نو ماته هم قبوله ده کۀ هغوی ئې نامنظوره کړې نو زۀ ئې هم نۀ قبلوم : هغه اووې زۀ هم داسې کووم چنانچه هغه زما سره لاړو او هغه اوښې لره ئې هم دَ ځان سره بوتلله کومه چه هغۀ ماته راکوله تردې پورې چه مونږ دَ رسول الله په خدمت کښې حاضر شو - هغه حضور ﷺ ورته اووئيل : اې دَ الله نبی ! ستاسو نمائنده زما دَ مال دَ زکات دَ وصولولو دَ پاره ماته راغلې دې او قسم دې په الله باندې ! چه ددې نه وړاندې نۀ دَ الله رسول زما په مال کښې تشريف راوړې دې او نۀ دَ هغه نمائنده - لهذا ما ددۀ دَ پاره خپل مال جمع کړو نو دۀ اووئيل چه زما په مال کښې صرف يو بنت مخاض واجب ده، او ددې عمر څاروې نۀ پئ ورکوی او نۀ دَ سورلئ قابله وی لهذا ما دوی ته يوه شانداره ځوانه تازه اوښه پيش کړه چه دې لره قبول کړی مګر هغه انکار اوکړو، او هغه داده -اې دَ الله رسوله ! هغې لره ما ستاسو په خدمت کښې راوستې ده نو تاسو ئې قبول اوفرمائئ، نو رسول الله ﷺ هغۀ ته اووې په تا باندې هم هغه فرض ده ليکن کۀ ته په خوشالئ سره نيکی کول غوارې نو ددې به الله تعالیٰ تاته اجر او ثواب درکوی او مونږ له تانه دا قبله وو -" هغه اووې ما دې لره راوستې ده تاسو زما نه دا قبوله کړئ، چنانچه رسول الله ﷺ دَ هغې دَ وصولو حکم ورکړو او دَ هغه په مال کښې ئې دَ برکت دَ پاره دُعا اوفرمائيله -"

**تشريح: قوله:**عن ابی بن کعب رضی الله عنه قال بعثنی رسول الله(صلی الله عليه وسلم) مصدقا فمررت برجل فلما جمع لی ماله لم اجد عليه الخ ابی بن کعب رضی الله عنه د يو زکوة ورکونکی قصه بيانوی، چه ما هغه ته اوئيل چه په تا باندې صرف بنت مخاض واجب دې، هغه اوئيل چه بچې اوړولو سره به په دې څه اوکړې، نه د سورلئ د کار دې، او نه د پيو، او اوګوره! دا ځوانه څربه اوښه ولاړه ده، دا واخله، ما اوئيل دا خو زۀ نشم اخستلې، د قاعدې خلاف دی، وهذا رسول الله(صلی الله عليه وسلم) منک قريب، دلته کښې نزدې رسول الله ﷺ مقيم او تشريف فرما دې، (په ظاهر کښې د رسول الله ﷺ د يو سفر قصه ده، د نبی کريم ﷺ قيام چه کوم ځائې وو کيدې شی چه دهغې سړی زمکه هغه ځائې سره نزدې وه) نو هغه ته لاړ شه او اجازت واخله، که نبی کريم ﷺ اجازت درکړی، نو زۀ به هم دا واخلم. الی آخر القصة.

[۱۵۸۳]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا زَكَرِيَّا بْنُ إِسْحَاقَ الْمَكِّيُّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَيْفِيٍّ، عَنْ أَبِي مَعْبَدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مُعَاذًا إِلَى الْيَمَنِ، فَقَالَ: "إِنَّكَ تَأْتِي قَوْمًا أَهْلَ كِتَابٍ، فَادْعُهُمْ إِلَى شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنِّي رَسُولُ اللَّهِ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوكَ لِذَلِكَ فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللَّهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ خَمْسَ صَلَوَاتٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوكَ لِذَلِكَ، فَأَعْلِمْهُمْ أَنَّ اللَّهَ افْتَرَضَ عَلَيْهِمْ صَدَقَةً

[1]: صحيح البخاري/الزكاة ۱(۱۳۹۵)، ۴۱(۱۴۵۸)، ۶۳(۱۴۹۶)، المظالم ۹(۲۴۴۸)، المغازي ۶۰(۴۳۴۷)، التوحيد ۱(۷۳۷۲)، صحيح مسلم/الإيمان ۷(۱۹)، سنن الترمذي/الزكاة ۶(۶۲۵)، والبر والصلة ۶۸(۲۰۱۴)، سنن النسائي/الزكاة ۱(۲۴۳۷)، ۴۶(۲۵۲۳)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۱(۱۷۸۳)،( تحفة الأشراف :۶۵۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۳۳/۱)، سنن الدارمي/الزكاة ۱(۱۶۵۵)(صحيح)

فِي أَمْوَالِهِمْ تُؤْخَذُ مِنْ أَغْنِيَائِهِمْ وَتُرَدُّ عَلَى فُقَرَائِهِمْ، فَإِنْ هُمْ أَطَاعُوكَ لِذَلِكَ فَإِيَّاكَ وَكَرَائِمَ أَمْوَالِهِمْ وَاتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُومِ فَإِنَّهَا لَيْسَ بَيْنَهَا وَبَيْنَ اللَّهِ حِجَابٌ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه لره یمن ته اولیږلو اووې فرمائیل : تهٔ داسې قوم طرف ته ځې چې هغه اهل کتاب دی، هغوی لره شهادت توحید (لااله الا الله) طرف ته او دې (شهادت) طرف ته چه زهٔ دَ الله رسول یم، راوبله - کهٔ چرې هغوی ستا دا خبره تسلیم کړی، نو هغوی ته اوښایه چه الله تعالیٰ په هغوی باندې په هر ورځ او شپه کښې پنځهٔ مونځونه فرض کړې دی - کهٔ چې هغوی دا هم اومنی نو هغوی ته اوښایه چه دَ هغوی په مالونو کښې ئې زکات فرض کړې دې، چه دا به دَهغوی دَ اغنیاؤ نه اخستلې شی اودَهغوی په فقیرانو کښې به تقسیمولې شی.- کهٔ چرې هغوی دا خبره اومنی نو دَ هغوی دَ عمده مالونو نه پرهیز کوه او دَ مظلوم دَ بد دُعا نه ځان بچ ساته، بې شکه دَ مظلوم دَ بددُعا او دَ الله تعالیٰ په مینځ کښې هیڅ پرده نهٔ وی -"

**تشریح: قوله**:عن ابن عباس ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بعث معاذ الی الیمن دا هم هغه حدیث دې، چه یوه حصه ئې مخکښې تیره شوې ده، او هم هلته کښې ددې حدیث تخریج وغیره هم بیان شوې دې.

فقال انک تاتی قوما اهل کتاب : هلته کښې زیات تر یهود او نصاری وو، مشرکان هم وو، لیکن د اهل کتاب تخصیص د مشرکینو په مقابله کښې یا خو تفضیلا دې، یا تغلیبا، اهل کتاب تعلیم یافته وو، د مشرکین عرب پشان جاهل او امیان نه وو، ددې وجې نه نبی کریم ﷺ حضرت معاذ رضي الله عنه ته هدایت اوفرمایه، چه کوم ځائی ته تهٔ ځې، دهغه ځائې خلقو سره دهغوی د حال مطابق خبره کوه، اولا هغوی ته د توحید دعوت ورکړه، (دابطال تثلیث او عزیز(علیه السلام) لره د الله تعالی ځوې منلو نه ئې منع کړه) او د محمد ﷺ د رسالت اقرار کولو دعوت ورکړه.

فان هم اطاعوک لذالک فاعلمهم ان الله افترض علیهم خمس صلوات پس که هغوی په شهادتین سره ستا خبره قبوله کړی، او په اسلام کښې داخل شی، نو بیا دهغوی مخښې ته د اسلام ارکان کیږده، (مخکښې د صلوات خمسه او د زکوة ذکر دې) په دې حدیث کښې د زکوة فرضیت بیانولو نه پس ساعی ته خاص طور باندې دا هدایت کړې شوې دې، چه هغه دې د خلقو د کرائم اموال (عمده مال) نه نه اخلی، بلکه متوسط دې اخلی، او د مظلوم د دعاء نه دې ځان ساتی.

## هل الکفار مخاطبون بالفروع

په دې حدیث کښې یو مشهور اصولی اختلافی مسئلې طرف ته اشاره ملاویږی، چه هغې لره به تاسو د ټولو نه مخکښې غالبا په نور الانوار کښې لوستلې وی، هغه داچه کافران د فروع شریعت مکلف دی او که نه؟ نو په هغې کښې ئې دا لیکلې دی، چه په دې خو د ټولو اتفاق دې، چه کافران د ایمان، عقوبات(حدود و قصاص وغیره) دغه شان معاملات(بیع، شراء، اجاره او نکاح وغیره) ددې ټولو څیزونو په دنیا کښې مکلف دی،(سوی الخمر

والخنزیر فانهما مباحان لهم لالنا کما ورد فی الحدیث) البته په شرائع یعنی عبادات کښې لږ تفصیل او اختلاف دې، هغه داچه په دې خو د ټولو اتفاق دې، چه کافران د عباداتو د مؤاخذه اخرویه په اعتبار سره مکلف دی، نو کافر ته به په آخرت کښې عذاب لکه څرنګه چه په ترک ایمان باندې وی، دغه شان به ورته په ترک اعتقاد صلوة باندې هم وی، لیکن په دې کښې اختلاف دې، چه کافران د مونځ وغیره د اداء فی الدنیا په اعتبار سره هم مکلف دی، او که نه؟ نو مشائخ عراق په دې اعتبار سره هم کافران مکلف ګڼړی، او هم دا مذهب د امام شافعی رحمه الله دې، یعنی کافر په دنیا کښې ددې خبرې مکلف دې، چه اول به هغه اسلام راوړی، او بیا به مونځ ادا کوی، او که هغه داسې اونه کړل، نو هغه ته به په دې دواړو خیزونو (ترک ایمان و ترک اداء صلوة) باندې عقاب وی، لیکن صحیح عند الحنفیه داده، (او هم دا د مشائخ ماوراء النهر مسلک دې) چه کافران د عباداتو د اداء فی الدنیا په اعتبار سره مکلف نه دی، لهذا کافر ته به په آخرت کښې عقاب صرف په ترک اعتقاد صلوة باندې وی، په ترک اداء به ورته نه وی، ځکه چه هغه د اداء فی الدنیا مکلف نه دې، او په دلیل کښې صاحب د نورالانوار هم دا حدیث معاذ رضی الله عنه پیش کړې دې، ځکه چه په دې کښې دا دی، چه هر کله هغه د شهادتین اقرار اوکړی، نو بیا هله هغوی ته اوایه، چه په اسلام کښې دا دا څیزونه فرض دی، معلومه شوه، چه که هغوی اسلام قبول نه کړی، نو بیا هغوی ته دا فرائض کیخودل هم نشته، او هغوی ددې مخاطب هم نه دی.

**د حدیث الباب نه په استدلال کښې اشکال:**

لیکن په دې استدلال باندې اشکال دې، هغه داچه ددې حدیث نه مقصود نفس فرائض لره بیانول نه دی، چه فلانې فلانې څیزونه فرض دی، په دې کښې د دعوة الی الاسلام طریقه ذکر ده، چه هغوی ته د ایمان او احکام اسلام دعوت درجه په درجه ورکړه، دفعة (په یو ځل) ټول تکلیفات دهغوی مخښې ته مه ایږده، ځکه چه دا صورت بعضې وختونو کښې د قبلولو نه مانع جوړیږی، لهذا بتدریج او په ترتیب سره هغوی ته دعوت ورکول پکار دی، لکه مخکښې په حدیث کښې دا دی، چه کله هغوی مونځ قبول کړی، نو بیا د زکوة مسئله دهغوی مخښې ته کیږده، نو آیا د زکوة مکلف سړې د مانځه نه پس کیږی؟ (افاده السندی علی النسائی) او امام نووی رحمه الله ددې دویم جواب ورکړې دې، هغه داچه په دې حدیث کښې د صلوة ترتب په ایمان باندې په اعتبار د اداء صلوة دې، نه په اعتبار د نفس وجوب صلوة ځکه چه اداء صلوة بغیر د ایمان نه بالاتفاق صحیح نه دې، بهرحال په دې استدلال باندې اشکال دې، چه معقول اشکال دې، اګر چه زمونږ بعضو علماؤ ددې جواب هم ورکړې دې، لکه صاحب لمعات لیکلې دی، چه په دې حدیث کښې د ایمان نه پس د صلوة او زکوة په مینځ کښې ترتیب د اهمیت صلوة د وجې نه دې، دهغوی الفاظ دادی، واما تقدیم الاعلام بالصلوت قبل الاعلام بالزکوة فلفضلها علی سائر الاعمال لا لاشتراطها بها (هامش ابن ماجه ص۱۲۷)

په دې مسئله کښې لکه څرنګه چه د احنافو په نزد دوه اقوال دی، (د مشائخ عراق او د مشائخ ماوراء النهر اختلاف) دغه شان په شوافع کښې هم، کما صرح به النووی ونقله عنه

العینی، او صاحب منهل خو د شافعیه، حنفیه او حنابله درې واړو مسلک یو لیکلې دې، یعنی عدم تکلیف، او د مالکیه او مشائخ عراق مسلک ئې مکلف کیدل لیکلې دې، والله تعالی اعلم بالصواب.

**قوله**: توخذ من اغنیاءهم و ترد فی فقرائهم :(کوم ځائې ته چه تهٔ ځې یعنی یمن ته) د هغه ځائې د اغنیاؤ نه زکوة واخله او دهغې ځائی فقیرانو ته ئې ورکړه، دویم احتمال ددې په شرح کښې دادې، چه دا دواړه ضمیرونه مسلمین طرف ته راجع دی، یعنی د اغنیاء د مسلمین نه زکوة واخله، او فقراء د مسلمین ته ئې ورکړه، ګویا عامه ضابطه بیانوی، د اهل یمن خصوصیت نه دې. صرف په اول صورت کښې به د حدیث په ظاهر کښې تقاضا دا وی، چه زکوة د یو ښهر به بل ښهر ته نه منتقل کیږی، او که احتمال ثانی واخستلې شی، نو بیا حدیث ددې برعکس د نقل جواز طرف ته اشاره کیدې شی.

## د نقل زکوة مسئله مع اختلاف ائمه:

په دې مسئله مخکښې مصنف یو مستقل باب قائم کړې دې، باب فی الزکوة تحمل من بلد الی بلد، دا مسئله د علماؤ په مینځ کښې اختلافی ده، جمهور علماء او ائمه ثلثه د عدم جواز نقل قائل دی، پس که چا منتقل کړو، نو د اصح قول مطابق د امام مالک رحمه الله په نزد به جائز وی، او د امام شافعی رحمه الله په نزد به جائز نه وی، علی الاصح الا داچه په هغه ځائې کښې مستحقین زکوة موجود نه وی، او ابن قدامه د حنابله نه دوه روایتونه نقل کړی دی، [۱] او د احنافو په نزد بغیر د ضرورت او مصلحت نه نقل کول مکروه دی، پس که مصلحت د نقل کولو ددې وجه نه وی چه هلته کښې احتیاج زیات دې، یا قرابت او رشته داری ده، یا اصلح، اورع او انفع للمسلمین طرف ته ئې زکوة منتقل کړو، نو بیا کراهت نشته.

امام بخاری رحمه الله چه کوم ترجمة الباب دې مسئلې باره کښې قائم کړې دې، دهغې نه په ظاهر کښې د احنافو د مسلک تائید معلومیږی، باب اخذ الصدقة من الاغنیاء و ترد فی الفقراء حیث کان، یعنی د مالدارو نه به زکوة اخستلې شی او فقیرانو ته به ورکولې شی، چه کوم ځائې هم موجود وی، هم دا مسلک لیث بن سعد او ابن المنذر شافعی اختیار کړې دې. او یو قول د امام شافعی رحمه الله هم دې، او بقول ابن المنیر شارح بخاری د امام بخاری رحمه الله هم دا مسلک دې، او حافظ صاحب داسې وائې چه په ظاهر کښې د مصنف مراد دادې، چه که په هغې ښهر کښې فقیران نه وو، (د کوم ځائې د مالدارو نه چه زکوة اخستلې شوې دې) نو بیا کوم ځائې چه هم فقیران وی، هلته کښې به لیږلې شی، هم دا مسلک د امام شافعی رحمه الله دې، عرض داچه حافظ صاحب دا نه غواړی، چه ترجمة البخاری د احنافو موافق شی.

په لامع الدراری ۲ ص ۱۷۳ کښې د حضرت ګنګوهی ارشاد د حدیث معاذ رضی الله عنه د ترجمة البخاری سره مطابقت په ذیل کښې منقول دې، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم حضرت معاذ رضی الله عنه لره اهل کتاب ته لیږلې وو، لکه چه په حدیث کښې تصریح ده، لهذا دا ضمیرونه به اهل کتاب

[۱] هغوی اصل مسئله بیانولو سره دا هم اوفرمائیل: چه د امام احمد رحمه الله په نزد د یو ځائی زکوة بل ځائی ته چه په مسافة قصر باندې واقع وی، هلته کښې اوړل ناجائز دی، یعنی د مسافت قصر تصریح ده.)

طرف ته راجع وی، یعنی دهغې اهل کتابو نه(بعد اسلامهم) دهغوی زکوة واخله، او هم په هغې اهل کتابو ئې رد کړه، او ظاهره ده چه هغه اهل کتاب صرف په یو ښهر یا به یو کلی کښې نه وو، بلکه مختلف ځایونو کښې وو، لهذا ددې نه هم عموم راؤتلو، ددې حدیث نه شارحینو نور مسائل د زکوة هم مستنبط کړې دی، چه دهغې په ذکر کولو کښې تطویل دې، او نه استیعاب مقصود دې.

[۱۵۸۵]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي حَبِيبٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ سِنَانٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُعْتَدِي فِي الصَّدَقَةِ كَمَانِعِهَا".

حضرت انس رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: "د زکات په وصولولو کښې زیاتی کوونکې داسې دې لکه زکات نهٔ ورکوونکې".

**تشریح: قوله**:ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) قال المعتدی فی الصدقة کمانعها

### شرح حدیث:

زکوة ورکولو کښې یا اخستلو کښې د حد نه تجاوز کونکې پشان دهغه سړی دې، چه زکوة منع کونکې وی، دا حدیث د مزکی او ساعی دواړو سره متعلق کیدې شی، لکه چه د ترجمې نه ظاهره ده،د مزکی دحد نه تجاوزکول دادی، چه غیرمستحق ته زکوة ورکړی، یا کم زکوة ورکړی پوره ئې ادا نه کړی، یا زکوة ورکولو سره احسان ضباطی، او تکلیف رسوی، یا د مقدار واجب نه ډیر زیات ورکړی، چه هغې سره اهل عیال پریشانه شی.

او د ساعی د حد نه تجاوز کول دادی، چه په زکوة کښې د متوسط مال په ځائی اعلی درجه مال وصول کړی، یا د مقدار واجبه نه ظلما زیات واخلی، ځکه په دې صورت کښې کیدې شی چه آئنده کال مالک زکوة ورنکړی، او خپل ټول مال یا بعضې مال پټ کړی، نو چونکه دا ساعی د زکوة د منع کولو سبب جوړ شو، ددې وجې نه دهٔ لره مانع زکوة یعنی د زکوة نه منع کونکې اوګرزولې کړې شو، الحمد لله د باب په احادیثو باندې کلام پوره شو.

## بَاب رِضَا الْمُصَدِّقِ

### باب: ٦ - دَ تحصیلدار زکات دَ راضی کولو بیان

مصدق یعنی ساعی لره راضی کول، یعنی د طلب موافق هغه ته زکوة ورکول، امام نووی رحمه الله د صحیح مسلم په شرح کښې په دې باندې باب قائم کړې دې، باب ارضاء السعاة، دا ترجمه زیاته واضحه ده،

[۱۵۸۶]() حَدَّثَنَا مَهْدِيُّ بْنُ حَفْصٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، الْمَعْنَى قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ رَجُلٍ يُقَالُ لَهُ: دَيْسَمٌ، وَقَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ، مِنْ بَنِي سَدُوسٍ، عَنْ بَشِيرِ ابْنِ الْخَصَاصِيَةِ، قَالَ ابْنُ عُبَيْدٍ فِي حَدِيثِهِ: وَمَا كَانَ اسْمُهُ بَشِيرًا، وَلَكِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمَّاهُ بَشِيرًا، قَالَ: قُلْنَا: إِنَّ أَهْلَ الصَّدَقَةِ يَعْتَدُونَ عَلَيْنَا، أَفَنَكْتُمُ مِنْ أَمْوَالِنَا بِقَدْرِ مَا يَعْتَدُونَ عَلَيْنَا، فَقَالَ: "لَا".

[1]: سنن الترمذي/الزکاة ۱۹(٦٤٦)، سنن ابن ماجه/الزکاة ۱٤(۱۸۰۸)، (تحفة الأشراف:۸٤۷)(حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۰۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۸٤/۵)(ضعیف)

حضرت بشیر ابن الخصاصیه رضي الله عنه روایت کوی - ابن عبید په خپل روایت کښې وائی چه ددهٔ نوم مخکښې بشیر نهٔ وو بلکې ددهٔ دا نوم رسول الله صلی الله علیه وسلم ایخې وو - هغه بیان کوی چه مونږ اووې : عمال( اهل) صدقه په مونږ بالدې زیاتې کوی، نو آیا څومره قدرې چه هغه زیاتې کوی مونږ هغه هومره مال پټه وو؟ هغوی اوفرمائیل : نهٔ -

د باب په اول حدیث کښې چه د حضرت بشیر بن الخصاصیه نه روایت دې، دادی، چه بعضو صحابه کرامو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو، چه بعضې عاملان په زکوة اخستلو کښې په مونږ ظلم کوی، نو آیا هغوی چه څومره په مونږ زیاتې کوی، دهغې په اندازه مونږ خپل مال پټولې شو، نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی لره ددې نه منع کړل.

[۱۵۸۷]([1]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَيَحْيَى بْنُ مُوسَى، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ أَيُّوبَ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَصْحَابَ الصَّدَقَةِ يَعْتَدُونَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَفَعَهُ عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ.

ایوب په خپل سند سره دَ مذکوره بالا حدیث هم معنیٰ روایت کړې دې - البته هغوی وئیلې دی چه مونږ اووې اې دَ الله رسوله ! دَ زکات وصولولو والا کارنده ګان زیاتې کوی - امام ابو داود رحمه الله فرمائی : دې روایت لره عبد الرزاق دَ معمر نه مرفوع روایت کړې دې -

[۱۵۸۸]([2]) حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، قَالَا: حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ أَبِي الْغُصْنِ، عَنْ صَخْرِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "سَيَأْتِيكُمْ رُكَيْبٌ مُبْغَضُونَ، فَإِنْ جَاءُوكُمْ فَرَحِّبُوا بِهِمْ وَخَلُّوا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ مَا يَبْتَغُونَ، فَإِنْ عَدَلُوا فَلِأَنْفُسِهِمْ وَإِنْ ظَلَمُوا فَعَلَيْهَا، وَأَرْضُوهُمْ فَإِنَّ تَمَامَ زَكَاتِكُمْ رِضَاهُمْ وَلْيَدْعُوا لَكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو الْغُصْنِ هُوَ ثَابِتُ بْنُ قَيْسِ بْنِ غُصْنٍ.

عبد الرحمن بن جابر عتیک د خپل پلار نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ” قریبه ده چه تاسو ته به ناخوښه خلق راځی - کله چه هغوی تاسو ته راشی نو هغوی ته خوش آمدید وائئ او دَ هغوی او کوم څهٔ چه هغوی اخستل غواړی دَ هغې په درمیان کښې خلل مهٔ اچوئ، کهٔ چرې هغوی عدل او انصاف اوکړو نو هغوی ته به ددې اجر او ثواب ملاویږی او کهٔ ظلم ئې اوکړو نو هغوی به ددې وبال اوچتوی - تاسو هغوی لره راضی ساتئ، بې شکه ستاسو دَ زکات تکمیل دَ هغوی په راضی کولو کښې دې او هغوی لره پکار دی چه ستاسو دَ پاره دعائې خیرکوی -“امام ابوداود رحمه الله فرمائی: دَ ابو الغصن نه مراد ثابت بن قیس بن غصن دې-

دویم حدیث دادې، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : سیاتیکم رب مبعضون، تاسو ته به داسې قافلې راشی، چه ستاسو په نزد به مبغوض وی، یعنی هغوی سره به ستاسو بغض او عداوت وی، لیکن د(مبغوض کیدلو باوجود) چه کله هغوی راشی، نو هغوی ته مرحبا اوایئ، دهغوی په راتلو د خوشالئ اظهار اوکړئ، او دکوم مال د زکوة اخستلو دپاره چه راغلې وی، هغې لره دهغه مخښې ته کړئ، دې دپاره چه په هغې کښې څومره زکوة کیږی هغه واخلی.

[1]: انظر ما قبله، ( تحفة الأشراف :۲۰۲۲)(ضعیف)

[2]: تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف :۳۱۷۵)(ضعیف)

## شرح حديث :

زکوة وصولونکي ته ئې مبغوض څکه اوئيل چه هغه د انسان نه داسې څيزونه اخستلو دپاره راځي، چه هغه ته طبعا محبوب دي، يعنى مال، نو گويا دغه خلق په دې اعتبار سره مبغوض دی، او دا مطلب نه دې، چه هغوی شرعا هم قابل بغض دی، څکه چه شرعا مبغوض خو هغه وخت کښې کيدې شی، چه کله هغوی واقعی په زکوة اخستلو کښې ظلم او زياتې اوکړی، او دلته کښې دا خبره نشته، څکه چه دا د هغې عاملانو باره کښې وئيلې کيږی، چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کښې وو، او ظاهره ده، چه هغوی ظلم نشی کولې، او بعضې شارحينو دې حديث لره په هره زمانه کښې عام منلې دې، او ظلم لره ئې ددې په ظاهر باندې حمل کولو سره دا وئيلې دی، چه نبی کريم ﷺ باوجود د ظلم نه د پوره زکوة ورکولو حکم ددې وجې نه فرمائيلې دې، چه پوره نه ورکولو کښې د سلطان مخالفت دې، څکه چه عامل دهغه نائب وی، او د سلطان په مخالفت کښې فتنه ده، ليکن دې لره رد کړې شوې دې، چه که دا خبره وې، نو نبی کريم ﷺ به د ظلم نه بچ کيدو دپاره د کتمان مال اجازت ورکړې وو، او په دې صورت کښې به مخالفت هم نه راتلو، حالانکه نبی کريم ﷺ د مال مالکانو ته د کتمان اجازت ورنکړو.

**تنبيه** : د باب زکوة السائمة په شروع کښې يو حديث تير شوې دې، په هغې کښې دا وو، فمن سئلها من المسلمين على وجهها فليعطها و من سئل فوقها فلا يعطه، حديث الباب په ظاهر کښې ددې خلاف دې، دا اشکال او ددې جواب هلته کښې تير شوې دې.

[۱۵۸۹](¹) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ يَعْنِي ابْنَ زِيَادٍ. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحِيمِ بْنُ سُلَيْمَانَ، وَهَذَا حَدِيثُ أَبِي كَامِلٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ هِلَالٍ الْعَبْسِيُّ، عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: جَاءَ نَاسٌ، يَعْنِي مِنَ الْأَعْرَابِ، إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالُوا: إِنَّ نَاسًا مِنَ الْمُصَدِّقِينَ يَأْتُونَا فَيَظْلِمُونَا، قَالَ: فَقَالَ: "أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ" قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَإِنْ ظَلَمُونَا؟ قَالَ: "أَرْضُوا مُصَدِّقِيكُمْ". زَادَ عُثْمَانُ: وَإِنْ ظُلِمْتُمْ. قَالَ أَبُو كَامِلٍ فِي حَدِيثِهِ: قَالَ جَرِيرٌ: مَا صَدَرَ عَنِّي مُصَدِّقٌ بَعْدَ مَا سَمِعْتُ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا وَهُوَ عَنِّي رَاضٍ.

د حضرت جرير بن عبد الله نه روايت دې چه رسول الله ﷺ ته څو د باندې اوسيدونکی راغلل او هغوی اووې : بعض عمال مونږ ته راځی او په مونږ باندې ظلم کوی - حضور ﷺ اوفرمائيل : دَ خپلو صدقو وصولولو والاراضئ کړئ -" هغوی اووې اې دَ الله رسوله ! اگر چه هغوی په مونږ باندې ظلم کوی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل دَ خپلو صدقو اصولولو والا راضی کړئ -" عثمان (بن ابی شيبه) اضافه کړې ده - اگر چه په تاسو باندې ظلم اوکړې شی -" ابو کامل په خپل حديث کښې بيان کړې دی - جرير اووې ددې فرمان نبوی ﷺ دَ اوريدو نه ورستو عامل هميشه زما نه راضی شوې دې -"

¹ ): صحيح مسلم/الزكاة ٥٥(٩٨٩)، سنن النسائي/الزكاة ١٤(٢٤٦٢)،( تحفة الأشراف :٣٢١٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الزكاة ٢٠(٦٤٧)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١١(١٨٠٢)، مسند احمد(٤/٣٦٢)، سنن الدارمي/الزكاة ٣٢(١٧١٢)(صحيح)

## بَابُ دُعَاءِ الْمُصَدِّقِ لِأَهْلِ الصَّدَقَةِ

**باب: ۷-دَ مصدق( دَ زکات وصولوونکی ) زکات ورکوونکو خلقو ته دُعا کول-**

د نبی کریم ﷺ معمول شریف وو، چه کوم سړی به دهغوی په خدمت کښې خپل زکوة حاضر کړو، نو هغه ته به ئې دعا فرمائیله، د فقهې په کتابونو کښې هم د متصدق په حق کښې دعاء لره ئې مستحب لیکلې ده، فقهاؤ لیکلې دی، چه دعاء د دواړو په حق کښې مستحب ده، مزکی دې په وخت د اداء کولو دا اوائی: اللهم اجعلها مغنما و لا تجعلها مغرما، او ساعی لره دا وئیل پکار دی: آجرک الله فیما اعطیت و بارک لک فیما ابقیت و جعله لک طهورا، په دې کښې اوله دعا امام ابن ماجه په خپل سنن کښې د ابوهریره رضی الله عنه په روایت سره مرفوعا ذکر کړې ده، او دویمه دعاء چه ساعی لره وئیل پکار ده، هغه دلته په حدیث الباب کښې داسې ده، اللهم صل علی آلِ فلان، امام بخاری رحمه الله هم په دې باندې مستقل باب قائم کړې دې، باب صلوة الامام و دعائه لصاحب الصدقة، او بیا په هغې کښې امام بخاری هم دا د ابن ابی اوفی رضی الله عنه حدیث ذکر کړې دې.

[۱۵۹۰]([1]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، وَأَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، قَالَ: كَانَ أَبِي مِنْ أَصْحَابِ الشَّجَرَةِ، وَكَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَاهُ قَوْمٌ بِصَدَقَتِهِمْ، قَالَ: "اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ فُلَانٍ" قَالَ: فَأَتَاهُ أَبِي بِصَدَقَتِهِ، فَقَالَ: "اللَّهُمَّ صَلِّ عَلَى آلِ أَبِي أَوْفَى".

حضرت عبد الله بن ابی اوفی رضی الله عنه بیان کوی چه زما پلار د هغه خلقو نه وو کومو چه( د بیعت رضوان په موقع باندې) دَ اونې نه لاندې بیعت کړې وو او نبی کریم ﷺ ته به چه کوم قوم هم زکات راوړلو او راتللو به نو حضور ﷺ به هغوی ته دا دُعا کوله: [(اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ فُلَانٍ)] " اې الله ! په آلِ فلاں باندې خپل رحمت نازل اوفرمایه -( او هغوی کښې برکت پیدا کړې -) زما پلار هم خپل زکات واخستو او دَ حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو نو حضور ﷺ اوفرمائیل: [(اللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى آلِ أَبِي أَوْفٰى)] " اې الله په آلِ ابی اوفیٰ باندې خپل رحمت نازل کړې -"( او هغوی ته برکت ورکړې) -

### شرح حدیث:

**قوله: عن عبدالله بن ابی اوفی قال کان ابی من اصحاب الشجرة الخ** : عبدالله بن ابی اوفی فرمائي: چه زما والد یعنی ابواوفی(دهغه نوم علقمة بن خالد دې) د اصحاب الشجرة نه وو، هغه یو ځل د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې زکوة راؤړولو حاضر شو، نو نبی کریم ﷺ حسب معمول هغه ته په دعاء کښې داسې اوفرمائیل: اللهم صل علی آل ابی اوفی، دلته کښې لفظ آل(مقحم) زائد دې، کله کله دې لره زیاتې کولې شی، لکه نبی کریم ﷺ یو ځل د ابوموسی اشعری رضی الله عنه قراءة واؤریدو، نو وې فرمائیل، لقد اوتی مزمارا من مزامیر آل داؤد، دلته کښې هم

[1] ): صحیح البخاري/الزكاة ٦٤(١٤٩٧)، المغازي ٣٥(٤١٦٦)، الدعوات ١٩(٦٣٣٢)، ٣٣(٦٣٥٩)، صحیح مسلم/الزكاة ٥٤(١٠٧٨)، سنن النسائي/الزكاة ١٣(٢٤٦١)، سنن ابن ماجه/الزكاة ٨(١٧٩٦)،(تحفة الأشراف: ٥١٧٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٥٣/٤، ٣٥٤، ٣٥٥، ٣٨١، ٣٨٣)(صحیح)

لفظ آل زائد دې، ځکه چه خوش آوازی د کومې چه نبی کریم ﷺ صفت فرمائیلو. هغه خپله داؤد علیه السلام ته حاصل وه، شارحینو دا هم لیکلی دی، چه دغه شان د لفظ آل زیاتوالې د یو جلیل القدر سړی په حق کښې کولې شي.

اصحاب الشجرة هغه صحابه کرام دی، چه په بیعة الرضوان کښې شریک وو، بیعة الرضوان د مشهور بیعت نوم دې، چه په مقام حدیبیه کښې په ۲ هـ کښې تحت الشجرة شوې وو، ددې باره کښې په قرآن مجید کښې دی،آیت: [لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ] الآية، په ظاهر کښې ددې آیت په وجه دې ته بیعت رضوان وئیلې شی.

په دې حدیث کښې د صلوة استعمال په غیر نبی باندې استقلالا دې، چه د جمهورو په نزد د امت په حق کښې ممنوع دې، ددې پوره بحث د کتاب الصلوة په آخر کښې باب الصلوة علی غیر النبی کښې تیر شوې دې.

## بَابُ تَفْسِيرِ أَسْنَانِ الْإِبِلِ[۱]

**باب: ۸- د اوښ د غاښونو (د هغې د عمرونو) تفصیل-**

په دې باب باندې زۀ وایم، چه دلته په سنن ابوداؤد یعنی د حدیث په کتاب کښې د قاموس یو باب راغلې دې، امام ابوداؤد رحمه الله د لوستونکو د آسانتیا دپاره د زکوة الابل په احادیثو کښې چه څومره مختلف او عجیبه عجیبه نومونه راغلې دی، دهغې ټولو تشریح ئې یو ځائې بیان کړې ده، دې دپاره چه د لغت کتابونو ته رجوع کول نه وی، جزاه الله عنا احسن الجزاء.

اسنان د سن جمع ده، په معنی د عمر، او د سن معنی غاښ هم راځی، په اصل کښې د ځاروؤ د عمر پته دهغوی په غاښونو سره لګی، لهذا په دواړو معنو کښې مناسبت ظاهر دې.

قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُهُ مِنَ الرِّيَاشِيِّ، وَأَبِي حَاتِمٍ، وَغَيْرِهِمَا، وَمِنْ كِتَابِ النَّضْرِ بْنِ شُمَيْلٍ، وَمِنْ كِتَابِ أَبِي عُبَيْدٍ، وَرُبَّمَا ذَكَرَ أَحَدُهُمُ الْكَلِمَةَ، قَالُوا: يُسَمَّى الْحُوَارُ، ثُمَّ الْفَصِيلُ إِذَا فَصَلَ، ثُمَّ تَكُونُ بِنْتَ مَخَاضٍ لِسَنَةٍ إِلَى تَمَامِ سَنَتَيْنِ، فَإِذَا دَخَلَتْ فِي الثَّالِثَةِ فَهِيَ ابْنَةُ لَبُونٍ، فَإِذَا تَمَّتْ لَهُ ثَلَاثُ سِنِينَ فَهُوَ حِقٌّ، وَحِقَّةٌ إِلَى تَمَامِ أَرْبَعِ سِنِينَ لِأَنَّهَا اسْتَحَقَّتْ أَنْ تُرْكَبَ وَيُحْمَلَ عَلَيْهَا الْفَحْلُ وَهِيَ تَلْقَحُ، وَلَا يُلْقِحُ الذَّكَرُ حَتَّى يُثَنِّيَ، وَيُقَالُ لِلْحِقَّةِ: طَرُوقَةُ الْفَحْلِ لِأَنَّ الْفَحْلَ يَطْرُقُهَا إِلَى تَمَامِ أَرْبَعِ سِنِينَ، فَإِذَا طَعَنَتْ فِي الْخَامِسَةِ فَهِيَ جَذَعَةٌ حَتَّى يَتِمَّ لَهَا خَمْسُ سِنِينَ، فَإِذَا دَخَلَتْ فِي السَّادِسَةِ وَأَلْقَى ثَنِيَّتَهُ فَهُوَ حِينَئِذٍ ثَنِيٌّ حَتَّى يَسْتَكْمِلَ سِتًّا، فَإِذَا طَعَنَ فِي السَّابِعَةِ سُمِّيَ الذَّكَرُ رَبَاعِيًا وَالْأُنْثَى رَبَاعِيَةً إِلَى تَمَامِ السَّابِعَةِ، فَإِذَا دَخَلَ فِي الثَّامِنَةِ وَأَلْقَى السِّنَّ السَّدِيسَ الَّذِي بَعْدَ الرَّبَاعِيَةِ فَهُوَ سَدِيسٌ وَسَدَسٌ إِلَى تَمَامِ الثَّامِنَةِ، فَإِذَا دَخَلَ فِي التِّسْعِ وَطَلَعَ نَابُهُ فَهُوَ بَازِلٌ أَيْ بَزَلَ نَابُهُ، يَعْنِي طَلَعَ، حَتَّى يَدْخُلَ فِي الْعَاشِرَةِ فَهُوَ حِينَئِذٍ مُخْلِفٌ، ثُمَّ لَيْسَ لَهُ اسْمٌ، وَلَكِنْ يُقَالُ: بَازِلُ عَامٍ، وَبَازِلُ عَامَيْنِ، وَمُخْلِفُ عَامٍ، وَمُخْلِفُ عَامَيْنِ، وَمُخْلِفُ ثَلَاثَةِ أَعْوَامٍ إِلَى خَمْسِ سِنِينَ، وَالْخَلِفَةُ الْحَامِلُ. قَالَ أَبُو حَاتِمٍ: وَالْجَذُوعَةُ وَقْتٌ مِنَ الزَّمَنِ لَيْسَ بِسِنٍّ، وَفُصُولُ الْأَسْنَانِ عِنْدَ طُلُوعِ سُهَيْلٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَنْشَدَنَا الرِّيَاشِيُّ: إِذَا سُهَيْلٌ أَوَّلَ اللَّيْلِ طَلَعْ فَابْنُ اللَّبُونِ الْحِقُّ وَالْحِقُّ جَذَعْ لَمْ يَبْقَ مِنْ أَسْنَانِهَا غَيْرُ الْهُبَعْ وَالْهُبَعُ الَّذِي يُولَدُ فِي غَيْرِ حِينِهِ

[۱] مصنف د أسنان ابل دا تفسیر دغسې د کتاب الحدود په باب الدیات کښې هم بیان کړې دې.

امام ابوداود رحمه الله فرمائي : ما( دا مندرجه ذیل تفصیل) د ریاشي او ابوحاتم وغیره نه اوریدلي دي - او دارنګه مي د نضر ابن شمیل او د ابو عبید د کتاب نه هم راخستي دي - او کله په دي کښي څۀ خبره صرف یو کس ددوي نه کړې ده - هغوي وائي چه د اوښ هغه بچي کوم چه پئ خوري هغي ته حُوار وائی - بیا فصیل وی کله چه پئ خوړل پریږدي - بیا بنت مخاض وی د یو کال نه تر د دوو کالو پوري - کله چه په دریم کال کښي داخل شي نو هغي ته بنت لبون وائي - کله چه دري کاله پورا شي نو هغي ته حقّ او حقّه وائي، تر د څلورو کلونو د پوره کیدو پوري - ځکه چه دا د سورلئ او د مال کیدو قابله وی - او حامله کیدي هم شي او نر د ختلو قابل نۀ وی تردي پوري چه د هغي مخي ته غاښونه پروځي او حقّي ته طروقة الفحل هم وئیلي شي ځکه چه نر ه دي باندي خیژي او دي ته تر د څلورو کلونو د پوره کیدو پوري حقّه وائي - کله چه په پنځم کال کښي داخل شي نو هغي ته جذعه وائي تر دي پوري چه پنځۀ کاله پوره شي - کله چه په شپږم کال کښي داخله شي او د خپل مخي غاښونه اوغورځوي نو په دغه وخت کښي دي ته ثَنی وائي تردي پوري چه شپږ کاله پوره شي - کله چه په اتم کال کښي داخل شي نو نر ته رباعي او مؤنث ته رباعیه وائي، تر د اووۀ کالو د پوره کیدو پوري، کله چه په اتم کال کښي داخله شي او شپږ غاښ اوغورځوي نو هغي ته سدیس او سدس وائي تر د اتو کالو د پوره کیدو پوري - کله چه په نهم کال کښي داخل شي او د هغي ناب(داړي) راوځي نو هغي ته بازل وائي - په دي معني کښي چه ددي ناب راوځي، تردي پوري چه په لسم کال کښي داخله شي - اوس ددي نوم مُخلف وی - ددي نه پس ددي هیڅ نوم نۀ وی - لیکن داسي وئیلي شي د یو کال بازل، د دوو کالو بازل - یا د یو کال مخلف، د دوو کالو مخلف، د دریو کالو مخلف، ... تر د پنځو کالو پوري ... او خَلفه حاملي ته وائي - ابو حاتم بیان کوي چه جذوعه د یو وخت نوم دي دا څۀ غاښ نۀ دي او د غاښونو موسم د سهیل( ستوري) په راختلو سره بدلیږي -امام ابوداود رحمه الله بیان کوي : چه ریاشي په دي سلسله کښي مونږ ته دا شعر واورولو [إذاسُهیل أوَلَ اللَّیل طَلَعَ ... الخ] کله چه سهیل ستوري د شپي په شروع کښي راخیژي نو ابن لبون حقه جوړیږي او حقه جذعه او هیڅ غاښ باقي نۀ پاتي کیږي سوا د " هبع " نه او هبع هغه دی کوم چه بې وخته پیدا شوي وی-

**قال ابوداؤد سمعته من الریاشي** : منصف د اسنان الابل دا تفسیر او تشریح چه د کومو علماء ادب او لغت نه اوریدلي ده، دهغوی حواله ورکوی، په هغوی کښي د بعضو نه مصنف براه راست اوریدلي دی، او د بعضو په کتابونو او تصنیفاتو کښي کتلي دی، **ریاشي**" هو ابو الفضل عباس بن الفرج البصری النحوی ثقة(بذل) په منهل کښي لیکلي دی، چه امام ابوداؤد دهغه نه په دي کتاب کښي صرف هم دا تفسیر نقل کړي دي، هیڅ حدیث ئي تري روایت کړي نه دي.

**ابوحاتم**: محمد بن ادریس الرازی احد الحفاظ(بذل) حضرت په بذل کښي ددۀ تعین په امام ابوحاتم رازی مشهور محدث سره کړي دي، دغه شان صاحب عون المعبود هم کړي دی،

لیکن صاحب منهل لیکلي دي، هو سهیل بن محمد بن عثمان السجستانی النحوی المقری، والله تعالی اعلم بالصواب.

ومن کتاب النضر بن شمیل: نضر بن شمیل د لغت او ادب لوئی امام دې، او د حدیثو هم، دغه شان ابوعبید قاسم بن سلام هم د لغت، ادب، او احادیث امام دې، ددې دواړو په غریب الحدیث(لغت حدیث) کښې کتاب مشهور دې.

وربما ذکر احدهم الکلمة: یعنی دا تفسیر چه ما نقل کړې دې، په هغې کښې بعضې څیزونه خو داسې دی، چه په دې حضراتو کښې د ټولو نه منقول دی، او بعضې حصه داسې ده، چه د ټولو نه منقول نه ده، بلکه صرف د بعضو په کلام کښې موجوده ده، ددې تمهید نه پس مصنف فرمائي قالو یسمی الحوار ثم الفصیل اذا فصل یعنی پیدا کیدو نه پس د ټولو نه اول نوم د اوښې د بچې حوار دې، ترڅو پورې چه هغه د خپلې مور سره ګرځی راګرځی، بیا چه کله هغه تقریبا د یو کال شی، او د خپلې مور نه جدا کړې شی، نو هغه ته فصیل وئیلې شی،(او فطیم هم، فصال او فطام دواړه هم معنی دی) بیا دهغې نه پس دواؤ کالو پورې هغې ته بنت مخاض وئیلې شی، د مخاض معنی حمل ده، او ماخض په معنی د حامل، ځکه چه یو کال پوره کیدو نه پس په دویم کال هغه اوښه دوباره حامله شی، فاذا دخلت فی الثالثة بیا چه کله هغه بچې د دواؤ کالو شی، او په دریم کال کښې داخل شی، نو دهغه مور چه تیر کال حامله وه، اوس د حمل زیږولو نه پس پئی ورکوی، ددې وجې نه دې بچی ته بنت لبون وئیلې شی، فاذا تمت له ثلاث سنین فهو حق و حقة او چه کله هغه بچې د پوره دریو کالو شی، او په څلورم کال کښې داخل شی، نو څلور کاله پوره کیدو پورې هغه ته حقه وئیلې شی، یعنی که ماده وی، او که نر وی، نو حق ورته وئیلې شی، ځکه چه دې عمر ته رسیدلو نه پس اوښ او اوښه دواړه د سوریدلو قابل شی، او صرف ماده ددې قابله شی چه نر هغې سره یوځائې شی، لیکن نر په دې عمر کښې د یوځائې کیدلو لائق نه وی، هم دا مطلب دې ددې جملې، چه مخکښې راروانه ده. وهی تلقح ولا یلقح الذکر حتی یثنی، یعنی نر د جفتئ قابل نه وی، ترڅو پورې چه هغه ثنی نه شی، ثنی هغه اوښ دې، چه د پنځو کالو وی، او شپږم کال کښې داخل شی، لکه چه مخکښې به خپله په کتاب کښې راشی. فاذا طعنت فی الخامسة فهی جذعة حتی یتم لها خمس سنین: بیا چه کله څلور کاله پوره شی، او پنځم کال کښې داخل شی، که ښځه وی، نو جذعه او که نر وی نو جذع ورته وئیلې شی.[1]

**فائده**: په لغت کښې لیکلې دی، چه جذع د هر حیوان جدا وی، په غوا، غویئ، او اس کښې جذع هغه دې، چه په دریم کال کښې وی، او په اوښ کښې چه په پنځم کال کښې وی،

[1] جذع په اصل کښې کم عمر ځاروی ته وئیلې شی، چه ددې استعمال په انسانانو کښې د ځوان سړی دپاره هم کیږی، لکه د ورقه ابن نوفل په کلام کښې، تاسو په صحیح بخاری کښې لوستلې دې، یا لیتنی کنت فیها جذعا(بخاری ص۲) او دا خبره دې واضحه وی، چه جذع د اسنان زکوة انتهاء ده، ددې نه زیات عمر والا اوښ په زکوة کښې واجب نه وی، حالانکه قربانی دهغې صحیح نه ده، ترڅو پورې چه مسنة نه وی، یعنی د شپږو کالو نه وی.

او په بزه کښې چه په دویم کال کښې وی.
مخکښې په کتاب کښې دا خبره راغې، چه د اوښ دا نوم یعنی جذع د غاښ ویستلو یا غورزولو په اعتبار سره نه دی، لکه د نورو نومونو پشان، لکه فرمائي والجذوعة وقت من الزمن ولیس بسن، یعنی د اوښ جذع کیدل، د یو خاص عمر په اعتبار سره دی، د غاښونو سره ددې هیڅ تعلق نشته.
فاذا دخلت فی السادسة والقی ثنیة فهو حینئذ ثنی، هرکله چه اوښ پوره د پنځو کالو شی، او په شپږم کال کښې داخل شی، او خپل ثنایا غاښونه واغورزوې، نو هغه ته ثنی وئیلې شی، او ښځې ته ثنیة وئیلې شی، ثنیه په اصل کښې مخښې ته بره او ښکته دواؤ دواؤ غاښونو ته وئیلې شی، چه دهغې جمع ثنایا راغې، پنځو کالو نه پس چه کله د اوښ مخښې ته غاښونه اوغورزیږی، (د پیو غاښونه) نو هغه وخت کښې هغه ته ثنی وئیلې شی.
**فائده:** ثنیه د هر ځاروی جدا وی، په غوا او بزه کښې هغه ثنیه ده، چه په دریم کال کښې وی، او په اس کښې هغه چه په څلورم کال کښې وی، او په اوښ کښې هغه چه په شپږم کال کښې وی.
فاذا طعن فی السابعة سمی الذکر رباعیا والانثی رباعیة، رباعیة په اصل کښې غاښونو ته وئیلې شی، چه د ثنیة او ناب (داړې) ([1]) ترمینځه وی، دواړو طرف ته، بره او ښکته، ټول څلور وی، نو چونکه په دې عمر کښې د اوښ دا غاښونه غورزیږی، ددې وجې نه هغه ته رباعی وئیلې شی، فاذا دخل فی الثامنة والقی السن السدیس الذی بعد الرباعیة فهو سدیس و سدس، یعنی چه کله اتم کال ته اورسیږی، او د سدیس غاښونه دهغه اوغورزیږی، نو اوس هغه ته سدیس او سدس وئیلې شی، سدس هغې غاښ ته وئیلې شی، چه د رباعیه نه پس او د ناب نه مخکښې دی، دا څلور وی، دوه ښکته د رباعیه نه ګس او ښې طرف ته، او دغه شان دوه بره د رباعیه نه ګس او ښې طرف ته، دې ته قوارح وئیلې شی، لیکن د انسان په خلهٔ کښې د رباعیه نه پس ناب وی، د رباعیه او ناب په مینځ کښې بل غاښ نه وی، (کذا یستفاد من العون عن لسان العرب) لکه د تجوید په کتابونو کښې د غاښونو په تفصیل کښې ددې هیڅ ذکر نشته.
فاذا دخل فی التسع طلع نابه فهو بازل: هرکله چه اوښ په نهم کال کښې داخل شی، نو دهغه ناب ((داړې) سوکې والا غاښونه) راؤځی، نو هغه ته بازل وئیلې شی، د بزل معنی ده شق(شلول)، چونکه دا غاښ د خپل ځائې غوښه اوشلوی او بهر ته راؤځی، ددې وجې نه دې ته بازل وئیلې شی، (هسې خو ټول غاښونه غوښه شلوی او بهر راؤځی لیکن په وجه تسمیه کښې اطراد شرط نه دې، یعنی کوم ځائې چه هم وجه تسمیه اوموندلې شی، هلته کښې تسمیه هم وی، دا ضروری نه ده)

[1]) دا چه مونږ کوم لیکلې دی، د انسانانو په اعتبار سره دی، او د اوښانو په اعتبار سره به داسې وئیلې شی، چه رباعیه هغه غاښ دې، چه د ثنیه او سدس په مینځ کښې وی، کما سیاتي فتامل و تشکر)

حتی یدخل فی العاشرة فهو حینئذ مخلف ثم لیس له اسم: یعنی د مخلف نه پس بیا څه خاص نوم نشته، بلکه په اول نوم کښې قیودات زیاتوی، مثلا بازل عام، بازل عامین، مخلف عام، مخلف عامین، یعنی د یو کال بازل، د دواړو کالو بازل، دیو کال مخلف او د دواړ کالو مخلف، څرنګه چه په عربئ کښې د عشر نه پس د اعدادو دپاره مستقل نوم نشته، بلکه د روستنی عدد سره قیودات لګوی، احد عشر، ثانی عشر وغیره.

قال ابوحاتم والجذوعة الخ قد مر شرحه قریبا

وفصول الاسنان عند طلوع سهیل: د هر یو څیز یو فصل او موسم وی، دغه شان د نتاج ابل(د اوښانو د پیدائش) هم یو خاص فصل دې، چه په هغې کښې عام طور باندې اوښان بچې راوړی، ددې فصل په راتلو باندې د اوښانو د بچو کال پوره کیږی، یو کال والا د دواړ کالو شی، او دواړ والا د دریو شی، او هغه موسم دې، د سهیل طلوع، یعنی سهیل نومې ستورې په کومه زمانه کښې چه د شپې په شروع کښې راؤخیژی، نو پوهه شه، چه د اوښانو د پیدائش زمانه راغله، په دغه زمانه کښې د اونو میوې پخیږی، چه هغې ته موسم ربیع وئیلې شی.

مصنف دلته کښې د ریاشی نه درې اشعار نقل کړې دی:

اذا سهیل اول اللیل طلع فابن اللبون الحق و الحق جذع

لم یبق من اسنانها غیر الهبع

د آخری شعر مطلب دادې، چه په دې اشعارو کښې د ټولو اوښانو د عمرونو ذکر راغلو، پس د یو ذکر پاتې شو، او دا هغه دې، چه ورته هبع وئیلې شی، او هبع د اوښې هغه بچې ته وئیلې شی، چه بې موسمه پیدا شوې وی، مثلا د ژمې په اول کښې، یا د سپرلی په آخر کښې،(منهل) الحمد لله ددې باب شرح پوره شوه .

## بَابُ أَيْنَ تُصَدَّقُ الْأَمْوَالُ

### باب: ۹-دَ مال زکات دې کوم ځائې وصول کړې شی؟

یعنی د څاروؤ زکوة کوم ځائې وصول کړې شی

[۱۵۹۱](1) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا جَلَبَ، وَلَا جَنَبَ، وَلَا تُؤْخَذُ صَدَقَاتُهُمْ إِلَّا فِي دُورِهِمْ".

حضرت عمرو بن شعیب د خپل پلار نه، هغه د خپل نیکهٔ عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما نه روایت کوی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : نهٔ جَلَب شته او نهٔ جَنَب او دَ هغوی دَ مالونو زکات دې هم دَ هغوی په کورونو باندې وصول کړې شی -

، عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده عن النبی(صلی الله علیه وسلم) قال لاجلب و لا جنب و لا تؤخذ صدقاتهم الا فی دورهم، (2) جلب او جنب، د هر یو شارح دوه دوه مغنې ذکر کړې دی،

(1): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف :۸۷۸۵، ۱۹۲۸٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۱۸۰، ۲۱٦)(حسن صحیح)

(2) د مسند احمد د روایت الفاظ داسې دی، تؤخذ صدقات المسلمین علی میاههم ددې روایت ......۲٦

د يوې تعلق د كتاب الزكوة سره دې، او د دويمې معنى تعلق د كتاب الجهاد سره دې، ددې وجې نه دا حديث په دواړو ځايونو كښې ذكركولې شي، نو مصنف هم دې لره په دواړو ځايونو كښې ذكر كړې دې، او امام نسائي او ابن ماجه صرف په كتاب الجهاد كښې ذكر كړې دې، او امام ترمذي رحمه الله صرف په كتاب النكاح كښې په باب الشغار كښې ذكر كړې دې.

**شرح حديث:**

اوله معنى د جلب داده، چه سعاة(زكوة وصولونكى) كله د څاروؤ زكوة اخستلو دپاره لاړ شي، نو داسې ځائې كښې دې ديره شي، چه د څاروؤ نه ډير لرې فاصله كښې وي، او هلته كښې ديره كيدو نه پس دې د مالونو مالكانو ته اوائي، چه خپل څاروى دلته راولئ، دې دپاره چه مونږ هغه اوينو، او دهغې زكوة واخلو، دا معنى ده د جلب، ددې نه په دې حديث كښې منع راغلې ده، وجه ظاهره ده، چه په دې كښې زكوة وركونكې ته تكليف او پريشانى ده.

او دويمه معنى د جلب داده، چه مسابقة خيل(د اسونو زغلولو) په وخت احد المتسابقين خپل يو سړى مقرر كړى، چه كله سباق(منډه) شروع شي، نو زما اس لره تيزولو دپاره ښه چغې اوهه، دې دپاره چه زما اس مخكښې لاړ شي، ددې نه منع كړې شوې ده، ځكه چه دا د اصول مسابقة او ديانة نه خلاف دى.

او د جنب اوله معنى داده، چه كله د مال مالكان اوينى، چه د زكوة وصولونكو راتلو وخت نزد دې، نو دوى هغوى لره پريشانه كولو دپاره خپل مال(څاروى) ډير لرې بوځى او هلته ئې ديره كړى، دې دپاره چه سعاة لره زكوة اخستلو دپاره هلته كښې تلل وى.

او دويمه معنى د جنب داده، چه د مسابقة خيل په ميدان كښې چه كله مسابقت شروع شى، نو احد المتسابقين خپل ځان سره خوا كښې يو بل اس هم روان كړى، دې دپاره چه منډه شروع كيدو نه پس چه كله اوګورى چه زما اس روستو پاتې كيږى، نو سمدستى د خپل اس د ملا نه دې بل اس ته راؤدانګى، ددې نه هم منع شوې ده، دا هم غلطه خبره ده، ځكه چه مسابقة د كوم اس سره مقرر وو، دا هغه نه دې.

دلته كښې يو دريم څيز هم دې، تلقى الجلب، چه دهغې تعلق كتاب البيوع سره دې، نهى رسول الله(صلى الله عليه وسلم) عن تلقى الجلب، يعنى د مال مجلوب استقبال كول او هغه اخستل، مال مجلوب هغه مال دې، چه هغې لره بانډيسى د بانډې نه ښهر ته د خرڅولو دپاره راوړى، نو يو سړې هغه مال د دې نه مخكښې چه هغه منډئ ته اورسى،(او هلته كښې رسيدلو نه پس ئې په صحيح نرخ خرڅ كړى) په لاره كښې واخلى، ددې نه منع شوې ده، ځكه چه په دې كښې خطره ده، د تلبيس سعر، چه كيدې شى دې بانډيسى ته دهوكه وركړى او ارزان ترې واخلى.

ك...... تعلق صرف مواشي سره دې، او د ابوداؤد د روايت الفاظ عام دى، كه زكوة د څاروؤ وى، يا د نور مال، بهر حال ددې احاديثو نه معلوميږى، چه د ساعى فرض دى، چه هغه زكوة د خلقو كورونو او تالابونو ته لاړ شى او وصول كړى، نه داچه زكوة وركونكې خپل زكوة هغه ته راؤرسوى، سبل السلام ص ۱۲۵ ج ۲.

[۱۵۹۲]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي، يَقُولُ: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، فِي قَوْلِهِ: لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ، قَالَ: أَنْ تُصَدَّقَ الْمَاشِيَةُ فِي مَوَاضِعِهَا وَلَا تُجْلَبَ إِلَى الْمُصَدِّقِ وَالْجَنَبُ عَنْ غَيْرِ هَذِهِ الْفَرِيضَةِ أَيْضًا لَا يُجْنَبُ أَصْحَابُهَا، يَقُولُ: وَلَا يَكُونُ الرَّجُلُ بِأَقْصَى مَوَاضِعِ أَصْحَابِ الصَّدَقَةِ فَتُجْنَبُ إِلَيْهِ، وَلَكِنْ تُؤْخَذُ فِي مَوْضِعِهِ.

محمد بن اسحاق د [لا جلب لا جنب] په توضيح کښې بيان کړې دی: " د څاروو زکات دې د هغې په خپلو ډيرو باندې وصول کړې شي -( جلب دادې چې) هغهٔ دې د زکات تحصيل دار ته په راښکلو سره نهٔ شی راوړلې او [جنَب] په دې فريضه کښې دادې چه د څاروو والا دې دې لره لرې نهٔ بوځی -( ابن اسحاق وائی) د عامل د پاره روا نهٔ دی چه هغه د زکات والا د مقاماتو نه ډير لرې کينی او څاروی دې ددهٔ طرف ته راوستلې شی بلکې زکات دې د هغوی نه په خپل ځائې کښې واخستې شی -

عن محمد بن اسحاق فی قوله لا جلب و لا جنب : محمد بن اسحاق د جلب او جنب تفسير کوی، د جلب تفسير ئې داسې کړې دې، چه کوم ځائې کښې څاروی د مخکښې نه دی، ساعی لره هلته کښې تلل او زکوة وصولول پکار دی، دا نه چه مزکی خپل زکوة ساعی ته راوړی،

والجنب علی هذه الطريقة ايضا لا يجنب اصحابها دلته کښې د ابوداؤد نسخې مختلفې دی، کوم الفاظ چه د کومې نسخې مونږ اختيار کړی دی، هم هغه زيات صحيح دی،

مطلب دادې، چه کوم قسم هدايت په لاجلب کښې ساعی ته ورکړې شوې دی، دغه شان په لاجنب کښې د څاروؤ مالکانو ته ورکړې شوې دی، چه هغوی لره هم پکار نه دی، چه خپل مال د خپل معروف ځائې نه چرته لرې بوسی، په دې صورت کښې ساعی ته تکليف دې

ولايکون الرجل باقصی مواضع اصحاب الصدقة : دا د محمد بن اسحاق د روايت تفسير روان دې، غالبا دا د لاجنب بل تفسير دې، او دا هغه ده، کومه معنی چه د لا جلب بيان شوې ده، په دې صورت کښې به ګويا جلب او جنب دواړه هم معنی شی، او دې لره به په تاکيد باندې حمل کولې شی، او دا اول صورت به په ځائې د تاکيد تاسيس وی، وهو الاولی، هذا ماعندی، والله اعلم.

## باب الرَّجُلِ يَبْتَاعُ صَدَقَتَهُ

**باب: ۱۰ - څوک چې د خپل زکات (په صدقه کښې ورکړې شوې مال) قيمتاً اخستل اوغواړی -**

صدقه کولو نه پس د متصدق عليه نه د متصدق هغه څيز په بيع اخستل، د حديث الباب نه ددې عدم جواز معلوميږی، امام بخاری رحمه الله هم په دې باندې باب قائم کړې دې، هل يشتری الرجل صدقته، او دهغې په ذيل کښې ئې هم دا حديث د ابن عمر رضی الله عنه ذکر کړې دې، کوم چه دلته ذکر دې.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۵، ۱۹۲۸۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۱۸۰، ۲۱۶)(صحيح)

[۱۵۹۳] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، حَمَلَ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَوَجَدَهُ يُبَاعُ، فَأَرَادَ أَنْ يَبْتَاعَهُ، فَسَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "لَا تَبْتَعْهُ وَلَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه بیان کوی چه حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د الله په لاره کښې یو اس ورکړو، بیا ئې اولیدل چه هغه خرڅولې شي نو هغوی رضی الله عنه د هغې اخستل اوغوښتل او د رسول الله ﷺ نه ئې ددې په باره کښې تپوس اوکړو نو حضور ﷺ اوفرمائیل: دې لره مهٔ اخله او خپله صدقه واپس مهٔ اخله۔"

**تشریح: قوله**: عن عبدالله بن عمر ان عمربن الخطاب حمل على فرس في سبيل الله فوجده يباع فاراد ان يبتاعه،.... فقال لا تبتعه ولا تعد في صدقتك.

## شرح حدیث:

حضرت عمر رضی الله عنه یو سړی لره په اس باندې سور کړو، یعنی هغه ته ئې اس بطور صدقه هبه کړو، پس د بخاری په روایت کښې دی، تصدق بفرس في سبيل الله، او یو قول دادې، چه حضرت عمر رضی الله عنه هغه ته وقف کړې وو، اوس داچه بیا دهغې بیع څرنګه جائز شوه؟ جواب ورکړې شوې دې، چه دغې اس ته هزال او ضعف داسې لاحق شوې وو، چه هغه د جهاد کار نشو کولې، والله اعلم.

بهرحال په روایت کښې دادی، چه حضرت عمر رضی الله عنه اولیدل، چه هغې اس لره هغه سړې خرڅوی، نو هغوی اوغوختل چه زهٔ ئې واخلم، (هغوی د اس په خوبئ باندې پوهیدل، هغه داچه نبی کریم ﷺ ورته ورکړې وو) د نبی کریم ﷺ نه ئې اجازت اوغوختلو، نو نبی کریم ﷺ د اخستلو نه منع کړو، چه صدقه کولو نه پس هغه واپس مهٔ اخله. دې اخستلو ته نبی کریم ﷺ عود في الصدقة ځکه اوفرمائیل، چه ظاهره ده، چه کله هغوی دا اخستلو، نو هغه سړې به د هغوی ضرور رعایت کولو، او په ثمن کښې به ئې د هغه د احسان په وجه کمی کوله، نو څومره قدرې به چه هغه په ثمن کښې کمی کوله، هغومره ګویا حضرت عمر رضی الله عنه عود کونکې وو، ۲

## مذاهب ائمه:

د امام احمد مسلک دادې، چه د متصدق شراء د خپل صدقه کړې شوی څیز جائز نه ده، د امام مالک رحمه الله په نزد هم دا یوه وجه ده، او هم دا مذهب د ابن المنذر شافعی دې، د جمهور علماؤ په نزد جائز ده، او دا حدیث په نهی تنزیه باندې محمول دې، او د جمهورو دلیل هغه حدیث دې، چه مخکښې په باب من يحوز له اخذ الصدقة وهو غنى، کښې راروان دې، لا تحل الصدقة لغنى الا لخمسة لعامل عليها او رجل اشتراها بماله، الحديث.

---

[۱]: صحيح البخاري/الزكاة ٥٩(١٤٨٩)، والهبة ٣٠(٢٦٢٣)، ٣٧(٢٦٣٦)، والوصايا ٣١(٢٧٧٥)، والجهاد ١١٩(٢٩٧١)، ١٣٧(٣٠٠٢)، صحيح مسلم/الهبات ١(١٦٢١)،( تحفة الأشراف :٨٣٥١)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الزكاة ٣٢(٦٦٨)، سنن النسائي/الزكاة ١٠٠(٢٦١٦)، سنن ابن ماجه/الصدقات ١(٢٣٩٠)، ٢(٢٣٩٢)، موطا امام مالك/الزكاة ٢٦(٤٩)، مسند احمد(١/٤٠، ٥٤)(صحيح)

**فائده** : ابن سعد په طبقات کښې ليکلي دی، چه دهغې فرس نوم ورد وو، او هغه د حضرت تميم داری رضی الله عنه وو، هغه نبی کريم ﷺ ته هبه کړې وو، بيا نبی کريم ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه ته ورکړې وو. (بذل عن الحافظ)

## بَابُ صَدَقَةِ الرَّقِيقِ

### باب ۱۱- دَ غلامانو زکات

[۱۵۹۳]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَيَّاضٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ مَكْحُولٍ، عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ فِي الْخَيْلِ وَالرَّقِيقِ زَكَاةٌ إِلَّا زَكَاةُ الْفِطْرِ فِي الرَّقِيقِ".

دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل : په اس او غلام کښې زکات نشته دې، البته دَ غلام دَ طرف نه دې صدقۀ فطر ورکړې شی -"

عن ابی هريرة رضی الله عنه عن النبی (صلی الله عليه وسلم) قال ليس فی الخيل والرقيق زکوة الا زکوة الفطر فی الرقيق.

د زکوة الخيل مسئله په باب زکوة السائمة حديث نمبر۷، د قد عفوت عن الخيل والرقيق په ذيل کښې تيره شوې ده.

[۱۵۹۵]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ عَلَى الْمُسْلِمِ فِي عَبْدِهِ وَلَا فِي فَرَسِهِ صَدَقَةٌ".

دَ حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : په مسلمان باندې دَ هغه په غلام او اس کښې زکات نشته دې -"

دويمه مسئله دلته کښې د عبد ده، په عبيد دتجارت کښې د ټولو امامانو په نزد زکوة شته، خلافا للظاهريه، او په عبيد د خدمت کښې بالاتفاق زکوة نشته، البته د صدقة الفطر مسئله مختلف فيه ده، هغه داچه په عبيد دخدمت کښې صدقة الفطر د ټولو امامانو په نزد شته، ليکن په عبيد دتجارت کښې صدقةالفطر شته او که نه، په دې کښې اختلاف دې، نور هم په دې کښې اختلافات شته، چه انشاء الله په باب صدقة الفطر کښې به راشي.

---

[1]: صحيح البخاري/الزكاة ٤٥(١٤٦٣)، ٤٦(١٤٦٤)، صحيح مسلم/الزكاة ٢(٩٨٢)، سنن الترمذي/الزكاة ٨(٦٢٨)، سنن النسائي/الزكاة ١٦(٢٤٦٩)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١٥(١٨١٢)، موطا امام مالك/الزكاة ٢٣(٣٧)،(تحفة الأشراف :١٤١٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/٢٤٢، ٢٤٩، ٢٥٤، ٢٧٩، ٤١٠، ٤٢٠، ٤٣٢، ٤٥٤، ٤٦٩، ٤٧٠، ٤٧٧)، سنن الدارمي/الزكاة ١٠(١٦٧٢)(صحيح)

[2]: انظر ما قبله،( تحفة الأشراف :١٤١٥٣)(صحيح)

# بَابُ صَدَقَةِ الزَّرْعِ

## باب: ۱۲ - دَ فصل زکات

### د مسائل الباب تجزيه :

ددې باب تعلق د زرعي پيداوار زکوة سره دې، چه هغې ته عشر وئيلې شي، په دې سلسله کښې مصنف خو يو باب قائم کړې دې، او امام ترمذی درې ابواب قائم کړې دی، په هغې کښې د يو باب تعلق د زروع او ثمار نصاب سره دې، په هغې کښې هغوی ليس فيما دون خمسة اوسق صدقة حديث ذکر کړې دې، اه. د دويم باب مضمون دادې، چه د کومې زمکې په پيداوار کښې عشر واجب دې، او د کومې زمکې په پيداوار کښې نصف عشر، او دريم باب دې، ماجاء في زکوة الخضراوات، يعني سبزئ او ترکارۍ، مقصد دادې، چه د زمکې په کوم کوم پيداوار کښې صدقه واجبه ده، آيا په ټول کښې يا صرف په بعضو کښې.

د امام ابوداؤد غرض په دې باب کښې دا وئيل دی، چه په کومه زمکه کښې عشر واجب وی، او په کومه کښې نصف عشر، پاتې شوه مسئله د نصاب، نو دا اختلافی ده، په هغې باندې کلام مونږ بالکل په شروع کښې کړې دې، جمهور په هغې کښې باقاعده د نصاب قائل دی، حتی چه صاحبين هم، او امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله د نصاب قائل نه دې، بلکه د زمکې پيدوار چه څومره هم وی، که قليل وی او که کثير، په ټولو کښې د صدقې قائل دې، دا يواهم اختلاف دې، چه څه قدرې تفصيل سره الحمد لله په شروع کښې تير شوې دې.

باقی دا مسئله چه د زمکې په کوم کوم پيداوار کښې صدقه ده، په دې امام ابوداؤد اګر چه هيڅ باب قائم کړې نه دې، ليکن تکميلا للبحث هغې لره مونږ بيانوؤ.

[۱۵۹۶] (۱) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ سَعِيدِ بْنِ الْهَيْثَمِ الْأَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ بْنُ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "فِيمَا سَقَتِ السَّمَاءُ وَالْأَنْهَارُ وَالْعُيُونُ أَوْ كَانَ بَعْلًا الْعُشْرُ، وَفِيمَا سُقِيَ بِالسَّوَانِي أَوِ النَّضْحِ نِصْفُ الْعُشْرِ".

حضرت سالم بن عبد الله د خپل پلار نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" کوم فصل چه دَ باران په اوبو سره خړوبيږی يا دَ درياب يا دَ چينو نه يا دَ زمکې دَ ترئ نه نو په هغې کښې لسمه حصه ده - او کومې زمکې چې په اوښانو سره( يعنی دَ ارټ په ذريعې سره) سيرابه کولې شی يا دَ کومو زمکو چه آبپاشی کولې شی نو په هغې کښې شلمه حصه( زکات) دې -

۱ :حدثنا هارون بن سعيد بن الهيثم الايلي،......... عن سالم بن عبدالله عن ابيه قال قال رسول الله(صلی الله عليه وسلم) فيما سقت السماء والانهار والعيون او كان بعلا العشر و فيما سقی بالسوانی والنضح نصف العشر.

---

۱ ): صحيح البخاري/الزكاة ٥٥(١٤٨٣)، سنن الترمذي/الزكاة ١٤(٦٤٠)، سنن النسائي/الزكاة ٢٥(٢٤٩٠)، سنن ابن ماجه/الزكاة ١٧(١٨١٧)،( تحفة الأشراف:٦٩٧٧)(صحيح)

## شرح حدیث:

العشر او دغه رنګ نصف العشر په ترکیب کښې مبتداء مؤخر ده، او فیما سقت الخ دا خبر مقدم دې، سوانی جمع ده د سانیة، د کوهې نه اوبه راویستونکې اوښه، او نضح مصدر دې، د اوښ په ذریعې زمکه خړوب کول، او ناضح خړوب کونکې اوښ، ددې جمع نواضح راځی، لیکن دلته کښې مراد د تقابل په وجه دادې، چه مطلق د یوې آلې په ذریعه زمکه خړوب کول.

او کان بعلا، د بعل تفسیر د کتاب په بعضو نسخو کښې داسې دې، قال ابوداؤد البعل ما شرب بعروقه و لم یتعن في سقیه یعنی بعل هغه فصل یا اونه ده، چه اوبه او لوندوالې د خپلو جرړو په ذریعې سره په خپله راکاږی، او هغې ته د اوبه خور ضرورت نه پیښیږی، او د بخاری او ترمذی په روایت کښې د بعلا په ځائې او کان عثریا دې، او د عثری تفسیر په مظاهر حق ۲ص۱۰۳ کښې دا لیکلې دې، چه عثری هغه زمکې ته وئیلې شی، چه په عاثور سره ورته اوبه ورکړې شی، او عاثور وئیلې شی، یوې کندې ته، چه په زمکه کښې کنستلې شی، تالاب دپاره، او د هغې په ذریعه اوبه په خپله پټی ته رسی، اوبعضو وئیلې دی، چه عثری وئیلې شی، هغې فصل ته، چه همیشه دپاره تروتازه وی، د اوبو د نزدې کیدلو په وجه. حاصل داچه په کوم فصل یا اونه کښې چه د اوبه خور مشقت برداشت کولې شی، نو په هغې کښې زکوة نصف العشر دې، یعنی شلمه حصه واجبه ده، او کوم ځائی چه داسې نه وی هلته کښې عشر واجب دې، دا مسئله خو دلته په حدیث کښې مصرح ده، او امام نووی لیکلې دی، چه دا مسئله متفق علیه ده، لیکن که داسې پټی یا اونه وی، چه هغې ته کله د اوبو ضرورت وی او کله نه وی، نو دهغې حکم دادې، چه که دا دواړه څیزونه علی التساوی وی، نو عندالجمهور په دې کښې ثلثة ارباع العشر واجب دې، یعنی یو ربع کم یو عشر،اوهم دا یوقول د احنافو هم دې،او مشهور قول دهغوی نصف العشر دې، او که احدهما اکثر من الآخر وی، نو د احنافو او حنابله په نزد اکثرولره اعتباردې،اوهم دا یو روایت دامام مالک اوامام شافعی هم دې،اودویم روایت دهغوی دادې، یؤخذ من کل بحسابه(منهل) یعنی د هر یو حساب به ځان ځانله کولې شی.

ددې حدیث د اطلاق نه ثابتیږی، چه په زرعی پیداوار کښې د وجوب عشر دپاره نصاب شرط نه دې، لهذا دا حدیث د امام صاحب رحمه الله و من وافقه دپاره دلیل دې، وقد مر تحقیقه تحت حدیث، لیس فیما دون خمسة اوسق صدقة.

### په خضراوات[1] کښې د وجوب عشر مسئله:

اوس تاسو هغه مسئله راواخلئ، چه د زمکې په پیداوار کښې په کوم کوم قسم کښې صدقه واجبه ده، او په کوم کښې واجبه نه ده؟ د امام صاحب په نزد د زمکې په پیداوار

[1] ) الخضراوات هي مالا یکال ولا یقتات، هغه څیزونه او پیداوار چه نه کیلی وی، او نه د انسانی خوراک د قبیلې نه وی. )

کښې څرنګه چه نصاب شرط نه دې، دغه شان د يو خاص پيداوار تخصيص هم نشته، بلکه په هر قسم پيداوار کښې عشر واجب منی[1] که هغه باقی پاتې کيدونکې وی، لکه غله، او خوراک وغيره، او که باقی پاتې کيدونکې نه وی، لکه خضراوات، او بقول، يعنی ساګ، سبزی، او ميوې، وغيره الا الحطب والقصب والحشيش ([2])بانس، او لرګې، او ګيا) چه په دې کښې عشر نشته.

## د امام صاحب دليل:

د امام صاحب مستدل حديث الباب دې، چه متفق عليه دې، د صحيح بخاری او مسلم روايت دې، او ددې نه علاوه د قرآن مجيد عمومات.
په دې مسئله کښې د صاحبينو او جمهور عالمانو د امام صاحب سره اختلاف دې، د صاحبينو په نزد په پيداوار کښې څرنګه چه نصاب شرط دې، څرنګه چه مخکښې تير شو، دغه شان دا هم شرط دې، چه هغه څيز بغير د تدبير او علاج نه يو کال پورې باقی وی، فقهاؤ ليکلې دی، ماله ثمرة باقية، لهذا لهذا رياحين، اوراد او بقول(يعنی سبزی، او ميوې او ګلونه وغيره) په دې کښې دهغوی په نزد عشر واجب نه دې،([3]) او په باقی ائمه ثلاثه کښې د امام شافعی او امام مالک مسلک دادې، چه عشر په هغې پيداوار کښې واجب دې، چه قوت مدخر وی، يعنی د سړی دپاره خوراک او غذا وی،([4]) او هغه خوراک ذخيره کيدې شی، مثلا حنطه، شعير، سلت، ذره(جوار) عدس(مسور) حمص(چنړه) وغيره، لهذا کوم څيز چه قوت(غذا) نه وی، لکه خضراوات په هغې کښې عشر واجب نه دې، او د امام احمد په نزد عشر په هر هغه پيداوار کښې دې، چه کيلی وی، لکه ټول حبوب(دانې) يعنی غلې، او باقی پاتې کيدونکې وی،([5]) اګر که قوت نه وی، لکه ثماريابسة، تمر، زبيب، تين(انځر) کمون(زيره) فلفل(تور مرچ) بزر القطن (فومبه) سمسم(تل،کونځلې) وغيره، په دې ټولو کښې عشر واجب دې، او کوم څيزونه چه باقی پاتې کيدونکې نه وی، لکه عامې

---

[1] د پيداوار نه مراد دادی، چه هغه داسې څيز وی، چه هغې لره خلق عادة کری، او د هغې نه مقصود استغلال يعنی ګټل، او د آمدنۍ حاصلول وی، په خلاف د خطب او حشيش وغيره نه، چه په هغې کښې دا خبره نشته، بلکه دې لره خو د زمکې نه صفا کولې شی، او که هغه قصب او حشيش داسې قسم والا وی، چه دهغې نه استغلال او آمدنی مقصود وی، نو په هغې کښې به هم عشر واجب وی)

[2] او اونې اګر چه قيمتی څيز دې، ليکن په دې کښې عشر ددې وجې نه واجب نه دې، چه دې لره د زمکې تابع مقرر کړې شوې دی، ګويا دا د زمکې اجزاء دی، او د زمکې په ذات باندې عشر نشته، بلکه دهغې په پيداوار باندې عشر دې)

[3] په مظاهرحق ۲ ص۹۸ کښې ليکلې دی، اود ساګو او ترکارو او ميوؤ په مينځ کښې اختلاف کړې دې، چه يو کال پورې پاتې کيږی نه، او په دې کښې د امامانو په نزد زکوة واجب نه دې)اهـ

[4] صفة انبات چه دهغې شافعيه او مالکيه قائل دی، دا د مالکيه په نزد خو عام دې، يعنی په کوم څيز کښې چه د غذا جوړيدلو صلاحيت وی، اګر که هغه په حالت د مجبورۍ کښې وی، او د شافعيه د کتابونو نه معلوميږی، چه دهغوی په نزد د حالت اختيار اعتبار دې، په حالت مجاعة او ضرورت کښې قوت معتبر نه دې)

[5] يعنی اوچولو نه پس باقی ساتلې شی)

میوې مثلا ناشپاتی، سیب، انځر غیر یابس، او سبزو کښې بادرنګ، ټماټر، بانجان، وغیره وغیره، په دې کښې عشر واجب نه دې.
یو مذهب دلته کښې بل دې، چه هغې لره حسن بصری، حسن بن صالح،شعبی او سفیان ثوری رحمه الله اختیار کړې دې، هغه دا چه عشر صرف په څلورو څیزونو کښې واجب دې، القمح، الشعیر، زبیب، تمر، لحدیث ابی موسی الاشعری و معاذ حین بعثهما النبی(صلی الله علیه وسلم) الی الیمن یعلمان الناس امردینهم فقال لا تاخذ الصدقة الا من هذه الاربعة، الشعیر، والحنطة والزبیب، والتمر، اخرجه الحاکم والدار قطنی والطبرانی والبیهقی، ولحدیث عمر انما سن رسول الله صلی الله علیه وسلم الزکوة فی هذه الاربعة (المذکور قبل) رواه الدار قطنی.
او د ابن ماجه په روایت کښې په دې کښې د پنځم څیز زیاتوالې دې، الذرة، لیکن په هغې ټولو روایاتو(په کومو کښې چه د عشر انحصار په اشیاء اربعة کښې شوې دې) کښې محدثینو کلام فرمائیلې دې، او دا روایات د ائمة اربعة هم خلاف دی، ځکه چه په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم د عشر انحصار په دې اشیاء اربعه کښې نه دې.(منهل وغیره)

### د مذاهب ائمه خلاصه : ([1])

خلاصه د مذهب داده، چه د امام مالک او شافعی رحمه الله په نزد خضراوات یعنی سبزیانو او میوو او ګلونو کښې عشر واجب نه دې، بلکه په هغې څیزونو کښې واجب دې، چه هغه د قوت(غذا) کیدلو په صورت کښې ذخیره کولې شی، او د امام احمد په نزد په ټولو مکیلاتو او باقی پاتې کیدونکو څیزونو کښې دې، که هغه قوت وی، او که نه وی، لهذا په ترکارو او سبزو کښې عشر خو نشته، چه هغه نه کیلی دی، او باقی پاتې کیدونکې دی، لیکن کومې میوې وغیره چه اوچې وی، او باقی پاتې کیدونکې وی، په هغې کښې عشر واجب دې، اګر که هغه د قوت د قبیلې نه نه وی، تقریبا هم دا مسلک(چه د امام احمد دې) د صاحبینو هم دې، په تفصیلونو کښې اختلاف دې.

### دلائل فریقین :

اوس پاتې شوه مسئله د دلیل، نو د جمهور او صاحبینو استدلال خو دهغې حدیث نه دې، په کوم چه امام ترمذی مستقل باب تړلې دې، لیکن حدیث لره هغوی ضعیف هم ګرزولې دې، هغوی فرمائي باب ما جاء فی زکوة الحضراوات، عن موسی بن طلحة عن معاذ انه کتب الی النبی(صلی الله علیه وسلم) یسأله عن الخضراوات وهی البقول فقال لیس فیها شیء، قال ابو عیسی اسناد هذا الحدیث لیس بصحیح ولیس یصح فی هذا الباب عن النبی(صلی الله علیه وسلم) شیء، او روستو بیا داسې فرمائي چه صحیح داده، چه دا حدیث مرسل دې، دې ته مسند وئیل صحیح نه دی، یعنی موسی بن طلحه چه تابعی دې، هغه دې لره براه راست بغیر د واسطې دمعاذ رضی الله عنه نه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی، دې حدیث لره دارقطنی هم روایت کړې دې، او د امام صاحب استدلال د حدیث الباب یعنی حدیث د ابن عمر نه دې، چه متفق علیه

[1]) مونږ ټول اختلافات او د ائمه ؤ مذاهب د احادیثو شروح او د فقهې دکتابونو د مطالعې کولو نه پس لیکلی دی.والله الموفق.

دي، بخاري او مسلم ددې تخریج کړي دي.

[۱۵۹۷] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فِيمَا سَقَتِ الْأَنْهَارُ وَالْعُيُونُ الْعُشْرُ، وَمَا سُقِيَ بِالسَّوَانِي فَفِيهِ نِصْفُ الْعُشْرِ".

د حضرت جابر بن عبد الله نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کومې زمکې چه په دریابونو سره خړوبولې شي یا په چینو سره نو په هغې کښې لسمه حصه ده - او کومې چه په اوښانو سره (یعنی د ارټ په ذریعې سره) خړوبولې شي نو په هغې کښې شلمه حصه ده -

[۱۵۹۸] (۲) حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيُّ، وَحُسَيْنُ بْنُ الْأَسْوَدِ الْعِجْلِيُّ، قَالَا: قَالَ وَكِيعٌ: الْبَعْلُ الْكَبُوسُ الَّذِي يَنْبُتُ مِنْ مَاءِ السَّمَاءِ، قَالَ ابْنُ الْأَسْوَدِ: وَقَالَ يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ آدَمَ: سَأَلْتُ أَبَا إِيَاسٍ الْأَسَدِيَّ، عَنِ الْبَعْلِ، فَقَالَ: الَّذِي يُسْقَى بِمَاءِ السَّمَاءِ، وَقَالَ النَّضْرُ بْنُ شُمَيْلٍ: الْبَعْلُ مَاءُ الْمَطَرِ.

حضرت وکیع وائی چه د [ البعل الکبوس ] نه مراد هغه فصل دې کوم چه په باران سره خړوبولې شي - ابن اسود وائی چه یحیی بن آدم وئیلي دی چه ما د ابو ایاس اسدی نه د بعل متعلق د تفصیل پوښتنه اوکړه نو هغوی اوفرمائیل: کومه زمکه چه په باران سره خړوبولې شي - نضر بن شمیل وائی د "بعل" نه مراد د باران اوبۀ دی -

[۱۵۹۹] (۳) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ، يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ، عَنْ شَرِيكِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي نَمِرٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَهُ إِلَى الْيَمَنِ، فَقَالَ: "خُذِ الْحَبَّ مِنَ الْحَبِّ، وَالشَّاةَ مِنَ الْغَنَمِ، وَالْبَعِيرَ مِنَ الْإِبِلِ، وَالْبَقَرَةَ مِنَ الْبَقَرِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: شَبَرْتُ قِثَّاءَةً بِمِصْرَ ثَلَاثَةَ عَشَرَ شِبْرًا، وَرَأَيْتُ أُتْرُجَّةً عَلَى بَعِيرٍ بِقِطْعَتَيْنِ قُطِعَتْ، وَصُيِّرَتْ عَلَى مِثْلِ عِدْلَيْنِ.

د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ هغه لره د یمن طرف ته اولیږلو نو هغه ته ئې اوفرمائیل: د غلې نه غله او د بکرو نه بکرئ او د اوښانو نه اوښ او د غواګانو نه غوا (غویې) وصوله وه - "امام ابوداود رحمه الله فرمائی: چه ما په مصر کښې یو بادرنګ لره ناپ کړو نو هغې لره ما دیارلس لیشتې بیا موندو - دغه شان ما په یو اوښ باندې یو ترنج بار کړې شوې اولیدو چه هغه دوه ټکړې کړې شوې وو او برابر برابر ایخودلې شوې وو -

۲:حدثنا الربیع بن سلیمان........ عن معاذ بن جبل ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بعثه الی الیمن فقال خذ الحب من الحب والشاة من الغنم والبعیر من الابل والبقرة من البقرة، یعنی د غلې په زکوة کښې غله واخله، او د بزو په زکوة کښې بزه، د ظاهر حدیث نه مستفاد کیږی، چه د هر مال زکوة بعینه دهغه مال نه واخستلې شي، او قیمت وانه خستلې شي.

[1]: صحیح مسلم/الزکاة ۱(۹۸۱)، سنن النسائي/الزکاة ۲۵(۲۴۹۱)،( تحفة الأشراف :۲۸۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۴۱/۳، ۳۵۳)(صحیح)

[2]: تفرد به أبو داود(صحیح)

[3]: سنن ابن ماجه/الزکاة ۱۲(۱۸۱۴)،( تحفة الأشراف :۱۱۳۴۸)(ضعیف)

## په اداء الزکواة بالقیمة کښې د مذاهب ائمه تحقیق :

مسئله مختلف فیه ده، امام بخاری رحمه الله په دې مستقل باب قائم کړې دې، باب العرض فی الزکوة، یعنی په زکوة کښې د اصل څیز په ځائی دهغې د قیمت برابر سامان اخستل، او بیا ددې دپاره هغوی بعضې آثار او روایات ذکر کړې دی، د ټولو نه مخکښې د حضرت معاذ رضی الله عنه حدیث تعلیقا بصیغة الجزم، وقال طاؤس قال معاذ لاهل الیمن الخ ذکر کړې دې، هغه داچه هغوی اهل یمن ته اوفرمائیل : چه تاسو د غلې په ځائې په زکوة کښې فلانې فلانې قسمه یمنی کپړې راوړئ، ستاسو دپاره په دې کښې آسانی ده، او د مدینې والو په حق کښې دا کپړا زیاتې بهترې دی، د بخاری په شارحینو کښې یو شارح ابن رشید دې، هغه فرمائي : په دې مسئله کښې امام بخاری رحمه الله د احنافو د مسلک موافقت کړې دې، اګرچه هغوی د احنافو په کثرت سره مخالفت کوی، علامه عینی رحمه الله فرمائي : اصل دادی، چه په زکوة کښې د قیمت ورکول د احنافو په نزد جائز دی، وهو قول عمر و ابنه عبدالله و ابن مسعود و ابن عباس و معاذ و طاؤس وهو قول البخاری واحدی الروایتین عن احمد و قال مالک و الشافعی لا یجوز وهو قول داؤد، ۱ هـ او په اوجز کښې دی، چه د امام مالک رحمه الله نه دواړه روایتونه دی، د جواز او عدم جواز، لیکن مشهور عدم جواز دې، کما قال الباجی، صاحب منهل د امام شافعی او امام احمد دواړو مذهب عدم جواز لیکلي ئې دې، او لیکلي دی، الا ان لهم فی اخراج احد النقدین عن الآخر قولین قول بالجواز و قول بالمنع، یعنی د دراهم او دنانیر په زکوة کښې د یو په ځائې بل ورکولو کښې ددې دواړو دوه اقوال دی، د جواز او عدم جواز، او د مالکیه په مذهب کښې صاحب منهل درې روایتونه لیکلي دی، دوه خو هغه چه بره تیر شو، او دریم جواز اخراج الذهب والفضة عن الحرث والماشیة فقط مع الکراهة وعدم الجواز فیما عدا ذالک او په دلائلو هغوی ډیر کلام فرمائیلې دې.

قال ابوداؤد، شبرت قثاءة بمصر ثلاثة عشر شبرا و رایت اترجة علی بعیر بقطعتین،

## د زکوة د برکت مثال :

مصنف رحمه الله د زکوة دبرکت یو اعجوبه (عجیبه واقعه) بیانوی، چه ما یو ځل په مصر کښې یو ښتکې اولیدو، چه هغه ما په خپل لاس سره ناپ کړو، نو هغه دیارلس لویشې وو، دغه شان ما یو نارنج (مالټه) اولیده، چه هغه دوه ټکړې کړې شوې وو، او په یو اوښ باندې بار کړې شوې وو، یوه ټکړه دهغه د ملا ښې طرف ته وه، او دویمه ګس طرف ته.

احقر وائی، دغه شان ما په الانوار الساطعه کښې کتلې دی، هغه لیکلې دی،

**فائده:** د غنمو دانه چه کله په شروع کښې د جنت نه زمکې ته راوړلې شوه، نو د شترمرغ د اګۍ (بیضه نعامه) برابر وه، او د کچو نه زیاته نرمه او مئینه وه، او د مشکو نه زیاته خوشبوداره وه، لیکن د ورځو تیریدولو سره وړوکې شوه، او د فرعون زمانې پورې د چرګې د اګۍ برابر شوه، او یوې موډې پورې دومره وه، تردې پورې چه کله یحیی (علیه السلام) لره ذبح کړې شو، نو هغه نوره هم وړه شوه، د کونترې د اګۍ برابر شوه، بیا دغه شان نوره هم

وره کیدله، تردې پورې چه موجوده حالت ته راغله، دغه شان حضرت شیخ په حاشیه د بذل کښې د حافظ ابن القیم رحمه الله په حوالې سره د امام احمد نه نقل کړې دی، چه هغه د بنوامیه په بعضې خزانو کښې په یوه تهلیځ کښې د غنمو دانه اولیده، چه په مقدار کښې د کهجورې د هډوکې برابر وه.

## باب زکاة العسل

### باب: ۱۳ - دَشاتوزکات

د زمکې پیداوار دوه دی، زروع، او ثمار، ددې نه علاوه دوه نور هم شمارلې شی، یعنی معدن، او رکاز، لیکن ددې دواړو باب مصنف دلته په کتاب الزکوة کښې نه دې تړلې، بلکه په جلد ثانی کښې د کتاب الجهاد نه پس په کتاب الخراج کښې ئې قائم کړې دې، او امام بخاری رحمه الله په کتا الزکوة کښې په دې باندې باب تړلې دې.

**مذاهب ائمة:**

عسل هم د ثمار په شان د زمکې پیداوار دې، په دې کښې زکوة شته او که نه؟ نو پوهیدل پکار دی، چه د عشر باره کښې د مالکیه او شافعیه چه کومه ضابطه ده، دهغې تقاضا داده، چه په عسل کښې دهغوی په نزد زکوة نه واجب کیدل پکار دی، ځکه چه عسل قوت مدخر نه دې، او د حنابله او د صاحبینو د قاعدې تقاضا داده، چه په عسل کښې دهغوی په نزد عشر واجب کیدل پکار دی، ځکه چه عسل مکیل مدخر دې، نو مذاهب ائمه د زکوة العسل باره کښې داسې دی، او د امام صاحب په نزد په پیداوار کښې عموم خو د مخکښې نه دې، لهذا حاصل داشو، چه په عسل کښې د مالکیه او شافعیه په نزد عشر نشته، او د امام صاحب، امام احمد او صاحبینو په نزد په کښې عشر شته، او دا مذهب د اسحاق بن راهویه او عمر بن العزیز او په صحابه کرامو کښې د حضرت عمر رضی الله عنه او ابن عباس رضی الله عنهما هم دې، د امام شافعی رحمه الله یو قول هم داسې دې، داخبره دې هم واضحه وی، چه عام ضابطه داده، چه د امام صاحب رحمه الله په نزد عشر صرف په عشری زمکه کښې واجب دې، په خراجی زمکه کښې واجب نه دې، او د جمهورو په نزد په دواړو کښې عشر دې، دا ټوله خبره خو د نفس مسئلې په اعتبار سره وه، اوس دلیل واورئ.

[۱۶۰۰] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ أَعْيَنَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ الْمِصْرِيِّ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: جَاءَ هِلَالٌ أَحَدُ بَنِي مُتْعَانَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعُشُورِ نَحْلٍ لَهُ، وَكَانَ سَأَلَهُ أَنْ يَحْمِيَ لَهُ وَادِيًا يُقَالُ لَهُ: سَلَبَةُ، "فَحَمَى لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ الْوَادِي"، فَلَمَّا وُلِّيَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، كَتَبَ سُفْيَانُ بْنُ وَهْبٍ إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ يَسْأَلُهُ عَنْ ذَلِكَ، فَكَتَبَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: إِنْ أَدَّى إِلَيْكَ مَا كَانَ يُؤَدِّي إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عُشُورِ نَحْلِهِ فَاحْمِ لَهُ سَلَبَةَ، وَإِلَّا فَإِنَّمَا هُوَ ذُبَابُ غَيْثٍ يَأْكُلُهُ مَنْ يَشَاءُ.

حضرت عمرو بن شعیب د خپل والد صاحب نه هغه د خپل نیکهٔ (عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما) نه روایت کوی چه د بنی متاعن یو سړی هلال د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې د شاتو عشر

(۱): سنن النسائي/الزكاة ۲۹ (۲۴۹۸)، (تحفة الأشراف: ۸۶۷۷)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الزكاة ۲۰ (۱۸۲۳) (حسن)

راوړو او راغي او هغوی ته ئې درخواست اوکړو چه دَ "سلبه" وادئ لره دَ هغه په نوم باندې کړې شي - چنانچه رسول الله ﷺ هغې لره دَ هغه په نوم باندې کړو - کله چه حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه خليفه شو نو حضرت سفيان بن وهب رضی الله عنه تحريرا دَ حضرت عمر رضی الله عنه نه دَ هغه په باره کښې تپوس اوکړو : نو حضرت عمر رضی الله عنه ورته اوليکل کۀ چرې دې دَ خپلو شاتو هم هغه عشر ورکوی کوم چه به ئې رسول الله ﷺ ته ورکولو نو وادئ سلبه دَ هغه په نوم باندې پريږده - ورنه دا دَ شاتو مچئ دی څوک چه غواړی (دَ هغې شات دې) خوری - "

عن عمرو بن الحارث المصری عن عمروبن شعيب عن ابيه عن جده قال جاء هلال احد بنی متعان الی رسول الله (صلی الله عليه وسلم) بعشور نحل له وکان ساله ان يحمی واديا يقال له سلبة فحمی له رسول الله (صلی الله عليه وسلم) ذالک الوادی فلما ولی عمربن الخطاب رضی الله عنه کتب سفيان بن وهب الی عمر ابن الخطاب رضی الله عنه يساله عن ذالک.

## شرح حديث :

په دې باب کښې مصنف درې احاديث ذکر کړې دی، [1] درې واړه د عبدالله بن عمرو بن العاص دی، د عمروبن شعيب عن ابيه عن جده په سند سره، په اول حديث کښې د عمرو نه روايت کونکې عمروبن الحارث دې، او په دويم کښې عبدالرحمن بن الحارث او په دريم کښې اسامه بن زيد ، مضمون د ټولو معمولی فرق سره مشترک دې، په اول حديث کښې دا دی، چه هلال متعی (بنی متعان ته منسوب) د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې د خپلو شهدو عشر راؤړلو سره حاضر شو ، او هغه نبی کريم ﷺ ته د وادی سلبه باره کښې درخواست کړې وو ، چه دا وادی هغه ته بطور حمی ورکړې شی (يعنی دې لره هغه دپاره خاص کړئ، چه دهغه نه علاوه به بل څوک ددې زمکې نه فائده نه اوچتوی) نو نبی کريم ﷺ دهغه دپاره دهغې وادئ حمی اوفرمائيله، (بيا ډيره موده پس د حضرت عمر رضی الله عنه په خلافت کښې) سفيان بن عبدالله الثقفی، چه د حضرت عمر رضی الله عنه د طرف نه د طائف عامل وو، حضرت عمر ته دې باره کښې اوليکل، (غالبا کيدې شی دائې ليکلې وو چه دا وادی دهغه دپاره خاص اوساتلې شی او که نه) نو په دې حضرت عمر جواب اوليکلو، فکتب عمر ان ادی اليک ما کان يؤدی الی رسول الله (صلی الله عليه وسلم) من عشور نحله فاحم له سلبة والا فانما هو ذباب غيث ياکله من يشاء. چه که دا سړی هم هغسې د شهدو عشر ادا کوی، څرنګه ئې چه نبی کريم ﷺ ته ادا کول، نو بيا خو حمی باقی اوساته، ګنی باقی ئې مه ساته، بلکه دا خصوصيت ختم کړه، چه څوک غواړی ددې وادئ شهد دې حاصل کړی، او ورته ئې اوليکل، چه دا شهد د يو باران والا مچئ نفع ده، چه څوک غواړی دا خورلې شی، باران طرف ته نسبت ځکه اوکړې شو، چه د باران په وجه په اونو کښې ميوې او ګلونه پيدا کيږی، چه دهغې نه دا مچئ رس نچوړوی، او شهد جوړوی، او چونکه دا زمکه (د کومې چه شهد وو) د ارض موات د قبيلې نه وه، ددې وجې نه ټولو ته ددې نه د فائدې اوچتولو حق شته.

---

[1] او که غواړئ نو داسې اوايئ، چه په دې باب کښې مصنف د عبدالله بن عمرو رضی الله عنه حديث په دريو طريقو سره ذکر کړې دې.

[۳۰۱]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدَةَ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا الْمُغِيرَةُ، وَنَسَبَهُ إِلَى عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ الْمَخْزُومِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ شَبَابَةَ بَطْنٌ مِنْ فَهْمٍ، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، قَالَ: مِنْ كُلِّ عَشْرِ قِرَبٍ قِرْبَةٌ، وَقَالَ سُفْيَانُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الثَّقَفِيُّ، قَالَ: وَكَانَ يَحْمِي لَهُمْ وَادِيَيْنِ، زَادَ: فَأَدَّوْا إِلَيْهِ مَا كَانُوا يُؤَدُّونَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَمَى لَهُمْ وَادِيَيْهِمْ.

حضرت عمرو بن شعیب دخپل پلار نه هغه دَ خپل نیکهٔ نه روایت کوی چه شبابه دَ بنو فهم تعلق دار وو ( شبابه دَ وړوکی خاندان نوم دې او فهم دَ غټې قبیلې) او حدیث لره ئې دَ سابقه حدیث په شان بیان کړو -(دَ مغیره پلار عبد الرحمن بن حارث) وائی دَ شاتو دَ هر لسو مشکو نه دې یو مشک ورکړې شی - او ( دَ عمر بن خطاب ﷺ عامل) سفیان بن عبد الله ثقفی ذکر کړې دی او وائی چه د هغوی په نوم باندې دوه وادئ لیکلې شوې وې، ( او عمر بن حارث دَ یو وادئ ذکر کړې دې) عبد الرحمن مزید وئیلې دی : چنانچه هغه خلق دې هغه څه ادا کوی کوم چه به ئې رسول الله ﷺ ته ورکول او دا وادیانې دې دَ هغوی په نوم باندې وی -"

## مضمون حدیث

حدثنا احمد بن عبدة الضبی الخ ان شابة بطن من فهم فذکر نحوه، ([2])دا حدیث ثانی دې، چه دهغې مضمون دادې، عبدالله بن عمرو بن العاص فرمائي چه قبیله شبابه چه د قبیله فهم یو شاخ دې، هغوی د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې عشر حاضر کړو، او بیا مخکښې هم هغه مضمون دې، کوم چه مخکښې حدیث کښې وو، یعنی د حمی سره متعلق، لیکن په دې حدیث کښې وادیین په صیغه د تثنیه سره دې، او په اول کښې وادیا مفرد صیغې سره وو، او دویم زیاتوالې دادې، چه په دې کښې نصاب عسل هم مذکور دې، من کل عشر قرب قربة یعنی په هر لسو مشکیزو کښې یوه مشکیزه.

او د حدیث ثالث مضمون هم داد ، په هغې کښې داسې دی، ان بطنا من فهم یعنی د قبیله فهم یو شاخ، ددې شاخ نه مراد هم هغه بنو شبابه دی، کوم چه په مخکښې حدیث کښې مذکور دی.

[۳۰۲]([3]) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ بَطْنًا مِنْ فَهْمٍ بِمَعْنَى الْمُغِيرَةِ، قَالَ: مِنْ عَشْرِ قِرَبٍ قِرْبَةٌ، وَقَالَ: وَادِيَيْنِ لَهُمْ.

حضرت عمروبن شعیب دَ خپل پلار نه، هغوی دَ خپل نیکهٔ نه روایت کوی چه دَ قبیلهٔ فهم یوه ډله ...ددې نه پس ئې دَ مغیره په مثل باندې بیان اوکړو، وائی : په لسو مشکونو

[1]: انظر حدیث رقم :(۱۶۰۰)،( تحفة الأشراف :۸۷۳۷)(حسن)

[2]) استاذ محترم حضرت مولانا اسعدالله صاحب ﷫ په دې دا لیکلې دی: چه مقصد دادې، چه هلال(دچا ذکر چه مخکښې حدیث کښې راغلې دی) هغه د شبابه قبیلې نه دې، او شبابه د قبیلهٔ فهم شاخ دې، لیکن دا په دې موقوف دې، چه د هلال مذکور شبابې کیدل ثابت شی، ګنی په روایت کښې خو تصریح ده، دهغه د متعی کیدلو، او دا هم ممکن ده، چه متعی او شبابی دواړو نسبتونو کښې تضاد نه وی، جمع کیدې شی،والله اعلم فلیسئل.

[3]: سنن ابن ماجه/الزکاة ۲۰(۱۸۲۳)،( تحفة الأشراف :۸۶۵۷)(حسن)

کښې به ئې یو مشک (ورکولو) او دواړه وادئ د هغوی د پاره مخصوص پاتې شوې۔"
دا د احادیث الباب تشریح ده، حدیث خو په اصل کښې یو دې، البته ددې په طرقو او بعضو الفاظو کښې اختلاف دې.

**د حدیث الباب نه استدلال:**

ددې نه پس پوهیدل پکار دی، چه د دې حدیث نه په عسل کښې وجوب ثابتیږی، لکه چه د احناف او حنابله مذهب دې، دا حدیث په سنن نسائی کښې هم دې، او امام نسائی په دې باندې سکوت فرمائیلې دې، هیڅ تنقید ئې نه دې کړې، البته امام ترمذی رحمه الله د باب زکوة العسل لاندې د ابن عمر رضی الله عنه حدیث مرفوع فی کل عشرة ازق زق راوړلې دې، او فرمائیلې ئې دی، وفی الباب عن ابی سیارة المتعی و عبدالله بن عمرو، او فرمائیلې ئې دی، و لا یصح عن النبی(صلی الله علیه وسلم) فی هذا الباب کبیر شیء،(یعنی زیات تر په دې مسئله کښې روایات غیر صحیح دی، والعمل علی هذا عند اکثر اهل العلم، یعنی حدیث خو ضعیف دې، لیکن عمل د اکثر اهل علم په دې باندې دې. د عبدالله بن عمرو حدیث چه دهغې امام ترمذی رحمه الله حواله ورکړې ده، هغه خوهم دا دې، چه دلته په کتاب کښې موجود دې، او د ابوسیاره حدیث په ابن ماجه کښې دې، عن ابی سیارة المتعی قال قلت یا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) ان لی نحلا الخ، بعضې شارحینو د حدیث ابن حجر وغیره په دې کښې تردد ظاهر کړې دې، چه هلال متعی او ابوسیاره دواړه یو سړې دې، یا جدا جدا سړی دی.
د وجوب العشر فی العسل په احادیثو کښې اګر چه کلام دې، لیکن د تعدد طرق په وجه حدیث ته تقویت ملاویږی، خصوصا په هغه وخت کښې چه د حدیث مخارج متعدد او طرق مختلف وی، بله دا چه عسل د میوؤ او غوټو نه پیدا کیږی،او مکیل مدخر دې، لکه چه حبوب او بعضې ثمار دی، چه په هغې کښې بالاتفاق عشر واجب دې.

**نصاب عسل:**

په نصاب عسل کښې هم اختلاف دې، د امام صاحب په نزد خو دهغه د قاعدې مطابق هیڅ نصاب نشته، په قلیل او کثیر ټولو کښې واجب دې، او په صاحبینو کښې د امام ابویوسف رحمه الله په نزد ددې نصاب عشر قرب(یعنی لس مشکیزې) دی، او د امام محمد رحمه الله په نزد خمس فرق دی، یو فرق د دریو صاعو وی، او د امام احمد په نزد لس فرق دی،

## بَابٌ فِي خَرْصِ الْعِنَبِ

**باب: ۱٤ - په اولوبا لدې دَ انګورو اندازه لګول**

د خرص مسئله هم د زکوة په مشهور اختلافی مسائلو کښې ده، چه دهغې جمهور علماء و منهم الائمة الثلثة قائل دی، امام صاحب، صاحبین، شعبی او سفیان ثوری ددې قائل نه دی.

**د خرص سره متعلق مباحث ثمانیه فقهیه:**

دلته کښې څو خبرې قابل ذکر دی.(۱) د خرص تعریف، یعنی دهغې شرعی معنی،(۲) ددې حکم او فائده(۳) خرص په کومو کومو څیزونو کښې وی، صرف په میوؤ کښې یا په دانو

کېږي هم وی، او په میوؤ کېږي په کومو کومو میوو کېږي دې(۴) د خرص په وخت کښې د رب المال په رعايت کښې به څه مقدار د عشر پرېښودلې شي، او که نه(۵) که بعد الجفاف د خرص خطاء کيدل ظاهر شي، نو په دې صورت کښې به د خارص په قول باندې عمل کولې شي، يا موجوده صورت حال ته به کتلې شي(۶) که د څه آفت سماويه په وجه د مالک د تعدی نه بغير ثمار قبل الجفاف ضائع شي نو زکوة به ساقطيږی، او که نه(۷) د خرص ثبوت من حيث الدليل او د منکرين خرص جواب(۸) د خرص په باره کښې د مسلک احناف تحقيق.
اوس د شروح حديث او کتب فقه په مدد سره دا مضامين ليکلې شي، والله الموفق.

**بحث اول : (دخرص لغوی اواصطلاحی تعريف)**

خرص په فتحې او کسرې دواړو سره ضبط کړې شوې دې،(ازباب نصر) ددې لغوی معنی تخمين او تقدير ده، يعنی خپلې رائې او اندازې سره د يو څيز مقدار متعين کول، او شرعا په اونو باندې لګيدلو ميوؤ مقدار متعين کول، چه فی الحال دا دومره دی، او عند الجداد(د اونو نه راشوکولو په وخت) کښې به ددې مقدار دومره وی، لهذا په دې کښې به دومره زکوة واجب وی، چه عند الجداد به اخستلې کيږی،(څکه چه د جداد په وخت کښې هغه قوت مدخر جوړيږی) خرص عند الجمهور په اصل کښې يو قسم معاهده ده، د ساعی د رب المال سره، چه ستا په مال کښې دومره زکوة واجب دې، چه ستا نه به په خپل وخت باندې اخستلې کيږی، نو رب المال هغه مقدار په خپله ذمه کښې واخلی، دا ټول هرڅه د جمهورو په نزد دی، احناف د خرص قائل نه دی، ددوی د مذهب تحقيق به آخره کښې راشی.

**بحث ثانی : (د خرص حکم اوفائده)**

د خرص فائده د قائلين خرص په نزد داده، چه د رب المال دپاره دا سهولت شي، چه هغه په خپل مال کښې د خرص نه پس چه څرنګه غواړی تصرف کولې شي، رطبا ويابسا يعنی فی الحال تروتازه هم او روستو هم، خپله خوړل، نورو ته ورکول، هبه کول، صدقه نافله ورکول، وغيره، څکه چه د شافعيه په نزد قبل الخرص مالک دپاره په مال کښې تصرف کول حرام دی، ترڅو پورې چه زکوة ترې اونه باسی، څکه چه درب المال سره کوم مال دی، هغه د اداء زکوة نه مخکښې مشترک دې، د هغه او فقيرانو په مينځ کښې، البته د حنابله په نزد قبل الخرص صرف ثلث يا ربع مال کښې تصرف جائز دې، ددې نه زيات کښې جائز نه دې.
او په خرص کښې د فقيرانو فائده داده، چه دهغوی حق د خيانت او نقص نه محفوظ شي، څکه چه ټول زکوة ورکونکې امانتدار نه وی، اوس داچه خرص عند الجمهور واجب دې، او که مستحب، دا مختلف فيه دې، حافظ فرمائي چه د قائلين خرص په نزد ددې په حکم کښې اختلاف دې، جمهور فرمائي مستحب دې، او يوه وجه د شافعيه په نزد د وجوب ده، چه هغې لره صيمری نقل کړې ده، او په منهل کښې دی، ذهب مالک و اصحابه الی الوجوب وهو قول بعض اهل الظاهر وهوقول للشافعی وقالت الشافعية والحنابلة يسن. اهـ

**بحث ثالث : (خرص په کومو څيزونو کښې صحيح دې؟)**

خرص د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد صرف په تمر او عنب کښې دې، په زيتون کښې

نشته، علی القول المشهور الا فی روایة شاذة عن الشافعی ومالک اګر چه په دې کښې(زیتون کښې) زکوة واجب دې، لیکن خرص په کښې مشروع نه دې، لعدم ورود النص،
لیکن د زهری، اوزاعی او لیث په نزد په دې کښې هم خرص شته، لانه ثمر تجب فیه الزکوة فیخرص کالرطب، او د بعضې علماؤ په نزد ومنهم البخاری، د تمر او عنب نه علاوه هم په هر هغه میوه کښې شته، چه رطبا و یابسا په دواړو طریقو سره خوړلې شی، او څلورم مذهب د قاضی شریح او داؤد ظاهری دې، دهغوی په نزد خرص تمر سره خاص دې، ددې نه علاوه په بل څیز کښې نشته.
او په حبوب او زروع کښې بالاتفاق خرص مشروع نه دې.

**بحث رابع : (ایا دخرص په وخت څه مقدار په عشر کښې پریخودې شی؟)**

د خرص په وخت کښې به څه مقدار پریخودلې شی، او که نه؟ د حنابله په نزد د خارص د رائې او مصلحت مطابق ثلث یا ربع پریخودل واجب دی، کما فی نیل المآرب ص۶۰، دا مقدار ولې پریخودلې شی؟ د مالک خپله خوړلو دپاره او هدیه وغیره کولو دپاره. قال الحافظ فی الفتح ۳ص۲۷۴، و به قال اللیث واحمد و اسحاق وغیرهم وقال مالک[1]و سفیان لا یترک لهم شیء وهو المشهور عن الشافعی او دلیل د ترک مخکښې په کتاب کښې راروان دې.

**بحث خامس : (ظهور الخطا فی الخرص بعد الجفاف)**

ظهور الخطاء فی الخرص بعد الجفاف) په دې صورت کښې د مالکیه ظاهر قول دادې، چه د خارص په قول به عمل کولې شی، په شرط ددې چه هغه عارف او ماهر وی،
او د شوافعو په نزد د موجوده صورت حال اعتبار به وی، کذا فی الفتح وارشاد السالک ص۶۲۶ فی فقه مالک.

**بحث سادس : (افة سماویه)**

(آفت سماویه) په دې صورت کښې د ټولو په نزد زکوة به ساقط وی، په شرط ددې چه کوم مال بچ پاتې شوې وی، هغه د نصاب(پنځه وسق) په اندازه نه وی.

**بحث سابع : (دخرص ثبوت من حیث الدلیل اود منکرین خرص جواب)**

په دې کښې کلام طویل دې، بهرحال مصنف په دې سلسله کښې دوه احادیث ذکر کړې دی، حدیث عتاب ابن اسید او حدیث سهل بن ابی حثمه وفیهما مقال کما سیاتی او یو دریم حدیث عائشه چه د خرص یهود باره کښې دی، چه نبی کریم ﷺ به ابن رواحه رضی الله عنه لیږلو وو، د خیبر د یهودیانو د باغونو خرص کولو دپاره، لیکن ددې دریم حدیث تعلق د زکوة مسلمین د خرص سره نه دې (حالانکه مقصود دادې)

**د ابن العربی دخرص په مسئله کښې خرص ، محققانه او منصفانه کلام :**

په دې سلسله کښې زما په خیال د ټولو نه زیات واضحه او منصفانه خبره قاضی ابوبکر ابن

---

[1] قلت وفي كتاب الكافي ص۲۶۵(في فقه مالك) لابن عبد البر والمشهور من مذهب مالك انه لا يترك الخارص شيئا في حين خرصه وقدروي بعض المدنيين أنه يخفف في الخرص و يترك للعرايا والصلة ونحوها) اهـ

العربی فرمائیلې ده، په عارضة الاحوذی شرح ترمذی کښې هغوی د احادیث خرص ذکر کولو نه پس فرمائیلې دی، چه د خرص په باره کښې هیڅ حدیث صحیح وارد نه دې، صرف یو حدیث په دې کښې صحیح دې، چه هغې لره بخاری او مسلم روایت کړې دې، په هغې کښې دادی، چه کله نبی کریم ﷺ تبوک ته تشریف اوړولو، نو په لاره کښې د یوې بوډئ باغ وو، نبی کریم ﷺ هلته تشریف یوړو، او کوم صحابه چه دهغوی سره وو، هغوی ته ئې اوفرمائیل : اخرصوا تاسو ټول ددې باغ د میوؤ خرص اوکړئ، نو ټولو خرص اوکړو، او خپله نبی کریم ﷺ هم اوکړو، د نبی کریم ﷺ د خرص مقدار په حدیث کښې لس وسق مذکور دې،(د صحابه کرامو د خرص مقدار معلوم نه دې، چه څه وو) بیا چه کله د تبوک نه واپس شول، نو نبی کریم ﷺ دهغې ښځې نه تپوس اوکړو، چه په دې کښې څومره مال(تمر) راؤتلو، نو هغې هم هغه مقدار اوښودلو، چه د نبی کریم ﷺ د خرص مطابق وو([1])

ابن العربی فرمائي : او ددې ته نزدې(په ثبوت او صحت کښې) حدیث ابن رواحه هم دې، لیکن دهغې تعلق د زکوة المسلمین سره نه دې، بلکه هغه د یهود سره متعلق دې، د یهودیانو نه خو نبی کریم ﷺ خرص ددې وجې نه اخستلې وو، لانهم کانوا غیر امناء او دلته کښې خبره په خرص لاجل الزکوة کښې ده، او حدیث د سهل بن ابی حثمه او عتاب بن اسید اګرچه د خرص فی الزکوة باره کښې دی، لیکن هغه ثابت او صحیح نه دی، ابن العربی یو نقد او جرح بله هم فرمائیلې ده، هغه داچه د خرص په باره کښې روایات چه څرنګه هم دی،(قوی یا ضعیف) لیکن هغه صرف د خرص النخل سره معتلق دی، د خرص زیتون په باره کښې هیڅ حدیث نشته، حالانکه د نبی کریم ﷺ په زمانه کښې زیتون په کثرت سره وو، او په دې کښې عشر هم واجب دې، داسې ولې ده؟اهـ مختصرا

**د امام طحاوی رائې :**

امام طحاوی په شرح معانی الآثار کښې د خرص یهود باره کښې دا فرمائیلې دی، چه هغه هم د الزام حکم دپاره نه وو، بلکه صرف ددې دپاره چه معلومه شی، چه په دغې باغونو کښې کوم مال دې، دهغې مقدار څه دې، دې دپاره چه په وخت د صرام(یعنی ریبلو) هغومره دهغوی نه وصول کړې شی، او په هغې کښې دوی هیڅ ګړ بړ اونه کړی، د ابن العربی او طحاوی په کلام کښې په ظاهره فرق دادې، چه د اول الذکر په نزد د یهودیانو سره خرص دالزام حکم دپاره وو، او د مؤخر الذکر په نزد صرف دمقدار د معرفت دپاره وو، دې دپاره چه دهغوی د خیانت پته اولګی.

---

[1]) په ظاهر کښې د ابن العربی د وینا مقصد دادې، چه دا یو حدیث اګر چه صحیح دې، لیکن په دې کښې ددې خبرې تصریح چرته ده، چه نبی کریم ﷺ دا خرص لاخذ الحق کړې وو، نه مخکښې په حدیث کښې شته، چه نبی کریم ﷺ ددې خرص مطابق دهغې نه زکوة اخستلې وو، او که دا خرص د الزام حکم دپاره وو، نو بیا نبی کریم ﷺ دهغې ښځې نه ولې تپوس کولو؟ چه څومره مال په دې کښې راؤتلو، په حقیقت کښې دا د صحابه کرامو یو قسم اختبار او امتحان وو، چه د چا اندازه صحیح راؤخی، هذا ما فهمته من سیاق کلامه والله تعالی اعلم.)

ابن رشد مالکی هم ددې خبرې اعتراف کړې دې، چه خرص لره معتبر منل د اصول او قواعدو خلاف دی،(بیا ئې منی ولې؟ لاجل الاثر) خلاف اصول ددې وجې نه دی، چه په دې کښې د بیع مزابنې شکل دې، او بیع الرطب بالتمر د نسیئة د قبیلې نه دې. چه بالاتفاق ممنوع دې.۱ه

## د نهی عن الخرص حدیث:

زهٔ وایم امام طحاوی د خرص خلاف یو صریح حدیث هم روایت کړې دې. وهو حدیث جابر ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) نهی عن الخرص وقال ارئیتم ان هلک التمر أیحب احدکم ان یاکل مال اخیه بالباطل، که څوک اوائی چه بیا نبی کریمﷺ د یهودیانو سره خرص ولې کولو؟ ددې جواب دادې، چه د یهودیانو سره خرص صرف دمقدار دمعرفت دپاره کولې شو، نه د الزام حکم دپاره(قاله الطحاوی)

## د شوافعو د طرف نه د حدیث النهی جواب.

شراح شافعیه یعنی حافظ ابن حجر وغیره د حدیث جابرؓ باره کښې وئیلې دی، چه دا زمونږ خلاف نه دې، ځکه که د آفت سماویه په وجه قبل الجفاف د میوؤ نقصان اوشی، او هغه ضائع شی، نو بیا مونږ هم په دې صورت کښې د خارص په قول عمل نه کوؤ، احقر عرض کوی، چه د باغونو د میوؤ چه کوم خلق کاروبار کوی، هغوی همیشه هم داسې خبره کوی، چه زمونږ دومره نقصان شوې دې، دا خو بیا د اختلاف او نزاع شکل جوړیږی.

## بحث ثامن: (خرص سره متعلق د احنافو دمسلک تحقیق)

د تیر شوؤ بحثونو نه دا خبره معلومه شوه، چه احناف د خرص قائل نه دی، یعنی هغسې ځرنګه چه جمهور وائی، کما تقدم التصریح بذلک فی کلام الطحاوی، د علامه عینی د کلام نه هم دا معلومیږی، او نور شارحینو د حدیث هم په دې مسئله کښې د احنافو خلاف نقل کړې دې، حضرت شیخ په اوجز کښې لیکلې دی، ددې وجې نه اکثر فروع د احنافو د دې مسئلې د بیان نه خالی دی.

## د خرص باره کښې د حضرت ګنګوهی رائې:

لیکن د حضرت ګنګوهیؒ په تقریرترمذی(الکوکب الدری) او تقریر ابوداؤد دواړو کښې تصریح ده، چه د احنافو په نزد په عشر او خراج دواړو کښې خرص(بالمعنی الذی اخذه جمهور) جائز دې، البته په مزارعت کښې جائز نه دې، دغه شان د حضرت په تقریربخاری(لامع الدراری) کښې هم دې طرف ته اشاره ملاویږی، چه خرص په عشر او عریه وغیره کښې جائز دې، البته خرص بالبیع(بیع مزابنة) جائز نه ده، لعارض شبهة الربوا ګویا دا شبهة الربوا په خرص فی الزکوة کښې نشته.

زمونږ حضرت شیخؒ ته د حضرت ګنګوهیؒ په رائې او نقل مذهب باندې داسې ښکاری چه څه حیرانتیا ده،(ځکه چه د ډیرو علماء احناف د تصریح نه خلاف ده) ددې باوجود بیا هم په حاشیه د کوکب کښې د حضرت ګنګوهیؒ د کلام حتی الامکان توجیه

فرمائیلي ده، (دي لره هلته کښي کتل پکار دي) دغه شان د مولانا انور شاه کشمیري رحمه الله په تقاریر بخاري و ترمذي (فیض الباري او عرف الشذي) کښي لیکلي دي، چه په دي مسئله کښي د جمهور او احنافو څه خاص اختلاف نشته، لیکن احقر ته په دي کښي دا شک دي، چه بیا زمونږ فقهاء دي لره په خپلو کتابونو کښي ذکر کوي ولي نه؟ څرنګه چه د نورو مذاهبو په کتابونو کښي دا مسئله ملاویږي، بلکه دهغوی په کتابونو کښي خو دومره تصریح ملاویږي، چه باغ والا دپاره د خپل باغ په میوؤ کښي قبل الخرص تصرف حرام دي، زمونږ په نزد خو داسي نه ده، فتدبر و هذا جهد المقل فی توضیح هذه المسئلة و بیان متعلقاتها والله المؤفق. ددي بحثونو نه خبریدلو نه پس اوس تاسو حدیث الباب اوګورئ.

[۱۶۰۳] ([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ السَّرِيِّ النَّاقِطُ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ مَنْصُورٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ عَتَّابِ بْنِ أَسِيدٍ، قَالَ: "أَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُخْرَصَ الْعِنَبُ كَمَا يُخْرَصُ النَّخْلُ، وَتُؤْخَذُ زَكَاتُهُ زَبِيبًا كَمَا تُؤْخَذُ زَكَاةُ النَّخْلِ تَمْرًا".

حضرت عتاب بن اسید رضی الله عنه وائی چه رسول الله ﷺ د انګورو د تخمینه لګولو حکم اوکړو لکه څنګه چه په اونه کښي د کجورو تخمینه لګولي شی او دهغي زکوة هغه وخت واخستلي شی کله چه هغه اوچې شی لکه چه د کجورو زکوة په اوچیدلو سره اخستلي شی.

**تشریح: قوله**: عن عتاب بن اسید قال امر رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ان یخرص العنب کما یخرص النخل تؤخذ زکوته زبیبا کما توخذ صدقة النخل تمرا.

## شرح حدیث :

ددي حدیث تشریح داسي ده، چه د جمهورو په نزد د کهجورو په زکوة کښي رطب یعني تروتازه کهجوري خو اخستلي کیږي نه، بلکه چه کله هغه اوچې شی او تمر ترې جوړ شي، ځکه چه دا ذخیره کولي شی، رطب نشي ذخیره کولي، ځکه چه ډیري زر باسي کیږي، علی هذ القیاس د عنب زکوة بعد الجفاف چه کله هغه زبیب شی، اخستلي شی، ددي وجي نه ددي دواړو څیزونو خرص په دي اعتبار سره وی، چه رطب تمر جوړیدلو نه پس او عنب زبیب جوړیدلو نه پس به څومره مقدار کښي وی، نو د جمهورو په نزد د معشراتو چه کوم نصاب دي، یعنی پنځه وسق، هغه بعد الجفاف دي.

## د حدیث الباب نه د احنافو د طرف نه جواب :

دا حدیث د سنن اربعة روایت دي، او د قائلین خرص دپاره دلیل دي، لیکن دا منقطع دي، ځکه چه د سعید ابن المسیب سماع د عتاب نه ثابت نه ده، بلکه سعید د عتاب زمانه هم موندلي نه ده، د ابن المسیب ولادة په خلافت عمر رضی الله عنه کښي دي، او د عتاب وفات په هغه ورځ وو، په کومه ورځ چه صدیق اکبر رضی الله عنه وفات شو، قال المنذری انقطاعه ظاهر، لهذا حجت نه دي.

[1]: سنن الترمذي/الزكاة ۱۷ (٦٤٤)، سنن النسائي/الزكاة ۱۰۰ (۲٦۱۹)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۱۸ (۱۸۱۹)، (تحفة الأشراف: ۹۷٤۸) (ضعيف)

[١٦٠٤]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ الْمُسَيَّبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نَافِعٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ صَالِحٍ التَّمَّارِ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَعِيدٌ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ عَتَّابٍ شَيْئًا.

محمد بن صالح التمار دَ ابن شهاب نه دَ هغه په سند سره دَ مذکوره بالا حديث هم معنیٰ بيان کړې دې - امام ابوداودرحمه الله فرمائی چه سعيد (بن المسيب) دَ حضرت عتّاب نه څۀ نۀ دی اوريدلي -

# بَابٌ فِي الْخَرْصِ

## باب: ۱۵ - په اونوباندې دَ ميوو اندازه لګول

## د خرص مفهوم عند الحنفيه او عند الجمهور:

يعنی دا اندازه لګول چه په اونو کښې خومره رطب يا انګور دی، هغه في الحال څومره دی، او تمر او زبيب جوړيدلو نه پس به څومره وی، دې دپاره چه د اوس نه معلومه شی، چه ددې باغ نه به تقريبا دومره عشر وصولولې شی، چه دهغې تحقيقی مقدار بعد الجفاف به متعين وی،د خرص دا مفهوم د احنافو د مسلک مطابق دې، او د جمهورو په نزد ددې مفهوم دعشر د مقدار فيصله کول دی، چه دهغې د باغ مالک لره د اوس نه ذمه وار جوړولې شی، چه د عشر اخستلو کله وخت راشی، نو مونږ به ستا نه دومره زکوة اخلو.

دلته کښې دا اشکال دې، چه مصنف لره پکار وو، چه اول ئې مطلق د خرص باب قائم کړې وې، دهغې نه پس د خرص العنب، ځکه چه مطلق مقدم وی، په مقيد باندې، مصنف ددې خلاف ولې اوکړل؟

ددې جواب دادې، چه ددې دويم باب نه د مصنف مقصود د نفس خرص بيان نه دې، چه اشکال وارد شی، بلکه د خرص سره متعلق نور احکام بيانول دی، فلا اشکال

[١٦٠٥]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: جَاءَ سَهْلُ بْنُ أَبِي حَثْمَةَ إِلَى مَجْلِسِنَا، قَالَ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا خَرَصْتُمْ فَجُذُّوا وَدَعُوا الثُّلُثَ، فَإِنْ لَمْ تَدَعُوا أَوْ تَجُذُّوا الثُّلُثَ فَدَعُوا الرُّبُعَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الْخَارِصُ يَدَعُ الثُّلُثَ لِلْحِرْفَةِ.

حضرت عبد الرحمن بن مسعود بيان کوی چه حضرت سهل بن ابی حثمه رضی الله عنه زمونږ مجلس ته راغې اووې فرمائيل چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته حکم فرمائيلې وو: کله چه تاسو په اونو باندې دَ ميوو اندازه اولګوئ نو تاسو دَ هغې ميوه راشوکولې شئ او دَ اندازه کړی شوی وزن نه دريمه حصه پريږدئ - کۀ چرې تاسو دريمه حصه نۀ پريږدئ نو څلورمه حصه پريږدئ-
امام ابوداودرحمه الله فرمائی: چه اندازه کوونکې دې دَ خپل عمل دَ تخمينې او اندازې په باعث سره دريمه حصه پريږدی -

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف :٩٧٤٨)(ضعيف)
[2]: سنن الترمذي/الزكاة ١٧(٦٤٣)، سنن النسائي/الزكاة ٢٦(٢٤٩٠)،( تحفة الأشراف :٤٦٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/٤)(ضعيف)

**تشریح: قوله**:قال جاء سهل بن ابی حثمة الی مجلسا قال امرنا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) اذا خرصتم فجذوا و دعوا الثلث فان لم تدعوا و تجدوا الثلث فدعوا الربع.

## شرح حدیث او اختلاف نسخ :

د اولې جملې مطلب دادې، چه کله تاسو خرص اوکړئ، نو میوې اوشوکوئ، یعنی باغ والو ته د شوکولو اجازت ورکړئ، ځکه چه د میوؤ شوکول د خارص کار نه دې، بلکه د باغ د مالک کار دې، د شوکولو نه مراد دادې، چه هغوی ته په باغ کښې د تصرف کولو اجازت او اختیار ورکړئ، ددې نه په ظاهر کښې معلومیږی، چه قبل الخرص مالک ته په خپل باغ کښې د تصرف کولو اختیار نشته، لکه د شوافعو وغیره مذهب هم دادې. کما تقدم تفصیله.

دا جذوا د امر صیغه ده، د جذ(ذال معجمه سره) نه، ددې معنی قطع ده، او بعضې نسخو کښې دا لفظ فجدوا دال مهمله سره راغلې دې،د جد نه د امر صیغه ده، ددې معنی کوشش او سعی ده، یعنی هرکله چه تاسو خرص اوکړو، نو چه کله د زکوة اخستلو وخت راشی، نو دهغې خرص مطابق زکوة وصول کړئ.

ودعو الثلث او د خرص په وخت کښې یو ثلث زکوة د باغ مالک سره پریږدئ، کوم خلق چه د ترک قائل دی، لکه امام احمد رحمه الله دهغوی په نزد خو ددې حدیث د توجیه ضرورت نشته، او مصنف هم حنبلی دې، او کوم چه قائل نه دی، لکه امام مالک رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله نو غالبا هغوی ددې توجیه داسې کوی، چه د ترک نه مقصود تخفیف فی الزکوة نه دې، په زکوة کښې خو به کمې کولې نشی، بلکه ددې ترک نه مقصود دادې، چه باغ والو ته به هم فقیران وغیره راځی، ددې وجې نه څه مقدار یعنی ثلث یا ربع د باغ مالک سره پریږدئ، دې دپاره چه هغه په خپل لاس هم څه زکوة ورکړی، دا ترک یو مستقل اختلافی مسئله ده، چه په تیر شوې مباحث ثمانیه کښې په بحث رابع کښې تیره شوې ده. فان لم تدعوا او تجدو الثلث پس که نه پریږدئ تاسو ثلث، یا(راوی داسې وئیلې دی) چه اونه مومئ ترک ثلث لره مناسب، نو بیا ربع پریږدئ، دلته کښې هم نسخې مختلفې دی، په دې صورت کښې خطاب په دوارو افعالو کښې عاملانو ته دې، او په بعضو نسخو کښې دی، او تجذوا الثلث په دې صورت کښې د تدعوا خطاب عاملانو ته، او د تجذوا خطاب مالکانو ته دې، یعنی که نه کټ کوئ تاسو د خپل ځان دپاره ثلث، نو ربع کټ کړئ،(د کټ کولو نه مراد خپل ځان دپاره اخستل دی) په عرف الشذی کښې ددې حدیث متعددې معنې لیکلې دی، څوک چه غواړی هلته دې اوګوری.

## تخریج الحدیث :

قال المنذری والحدیث اخرجه الترمذی والنسائی وعزاه الحافظ فی الفتح (ص ۲۷۴ ج ۳) الی السنن و صحیح ابن حبان، دا حدیث هم د قائلین خرص دپاره دلیل دې، ددې په سند کښې عبدالرحمن بن مسعود بن نیار الانصاری دې، چه متکلم فیه دې، بعضو ددهٔ توثیق کړې دې، او ابن القطان لا یعرف حاله وئیلې دی.

## بَابٌ مَتَى يُخْرَصُ التَّمْرُ

### باب: ۱۶- دَ کجورو اندازه دې کله اولګولې شي

[۱۶۰۶](1) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أُخْبِرْتُ عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّهَا قَالَتْ: وَهِيَ تَذْكُرُ شَأْنَ خَيْبَرَ "كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْعَثُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ رَوَاحَةَ إِلَى يَهُودَ فَيَخْرُصُ النَّخْلَ حِينَ يَطِيبُ قَبْلَ أَنْ يُؤْكَلَ مِنْهُ".

حضرت عائشې رضی الله عنها د خيبر په سلسله کښې ذکر کړې دی چه نبی کريم ﷺ به حضرت عبد الله بن رواحه رضی الله عنه لره دَ يهودو طرف ته ليږلو او دَ کجورو دَ ميوې اندازه به ئې لګوله په هغه وخت کښې کله چه به هغه ښۀ تيارې شوې وې، دَ خوراک دَ قابل جوړيدو نه مخکښې مخکښې به ئې دا کار کولو -

**تشريح: قوله**:عن عائشة رضی الله عنها انها قالت وهی تذکر شان خيبر کان النبی(صلی الله عليه وسلم) يبعث عبدالله بن رواحة فيخرص النخل حين يطيب قبل ان يؤکل منه،

عبد الله بن رواحه د خرص ماهر وو، ددې وجې نه به نبی کريم ﷺ هغه لره د خيبر يهوديانو ته ليږلو، او دهغه په ذريعې سره به ئې خرص کولو.

د حديث نه معلومه شوه، چه خرص ثمار د بدوصلاح نه پس کول پکار دی، ددې نه مخکښې نه، هم دا مسلک د جمهورو دې، او داچه خرص کښې د خارص واحد عدل قول معتبر دې، وبه قالت المالکية والحنابلة وجماعة من الشافعية ان کان عدلا عارفا وقال جماعة من الشافعية لا بد من الاثنين( منهل)

## بَابُ مَا لَا يَجُوزُ مِنَ الثَّمَرَةِ فِي الصَّدَقَةِ

### باب: ۱۷- په صدقه اوزکات کښې ردی قسم ميوه ورکول ناجائز دی-

[۱۶۰۷](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ سُلَيْمَانَ، حَدَّثَنَا عَبَّادٌ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي أُمَامَةَ بْنِ سَهْلٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْجُعْرُورِ، وَلَوْنِ الْحُبَيْقِ أَنْ يُؤْخَذَا فِي الصَّدَقَةِ". قَالَ الزُّهْرِيُّ: لَوْنَيْنِ مِنْ تَمْرِ الْمَدِينَةِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأَسْنَدَهُ أَيْضًا أَبُو الْوَلِيدِ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ كَثِيرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ.

حضرت ابو امامه بن سهل د خپل پلار نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ منع فرمائيلې وه ددې نه چه دَ جعرور او لون الحُبَيق قسم( ردی) کجورې په صدقه کښې قبول کړې شی - امام زهری رحمه الله وضاحت کړې دې چه دا دَ مدينې منورې دَ دوو قسم کجورو نومونه دی -امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې لره ابو الوليد هم په واسطه دَ سليمان بن کثير، دَ امام زهری نه مسند ذکر کړې دې -

**تشريح: قوله**:عن ابی امامة بن سهل عن ابيه قال نهی رسول الله(صلی الله عليه وسلم) عن الجعرورولون الحبيق ان يؤخذا فی الصدقة.

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :۱۶۰۶، ۱۶۵۳۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۶/۱۶۳)(ضعيف)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :۴۶۵۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي /الزکاة ۲۷(۲۴۹۴)(صحيح)

## شرح حديث :

ددې حديث راوی سهل بن حنيف دی، او د سهل نه دهغه ځوی ابوامامه چه دهغه نوم اسعد دی، روايت کوی، چه نبی کريم ﷺ په صدقة الثمار کښې ددې نه منع فرمائيلې ده، چه جعرور (بروزن عصفور) او لون الحبيق واخستلې شی، دا د دواؤ بې کاره قسمه کهجورو نومونه دی، لکه چه خپله په روايت کښې ذکر دی، ليکلې دی، چه حبيق منسوب دې ابن حبيق طرف ته، چه د يو سړی نوم دې، د زکوة او عشر ضابطه داده، چه هغه به د متوسطې درجې نه اخستلې کيږی، نه بې کاره او نه د ټولو نه اعلی، د دارقطنی د روايت نه معلوميږی، چه بعضې خلقو به په صدقه کښې ردی قسم کهجورې ورکولې، نو نبی کريم ﷺ منع کړل، او دا آيت شريف نازل شو، ولا تيمموالخبيث منه تنفقون، او په يو روايت کښې دی، نهى رسول الله(صلى الله عليه وسلم) ان يؤخذ من الصدقة الرذالة، رذالة په معنى د ردی کهجورې(منهل)

[۱۶۰۸]([1]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَاصِمٍ الْأَنْطَاكِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي الْقَطَّانَ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنِي صَالِحُ بْنُ أَبِي عَرِيبٍ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: دَخَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَسْجِدَ وَبِيَدِهِ عَصًا، وَقَدْ عَلَّقَ رَجُلٌ قَنًا حَشَفًا، فَطَعَنَ بِالْعَصَا فِي ذَلِكَ الْقِنْوِ، وَقَالَ: "لَوْ شَاءَ رَبُّ هَذِهِ الصَّدَقَةِ تَصَدَّقَ بِأَطْيَبَ مِنْهَا" وَقَالَ: "إِنَّ رَبَّ هَذِهِ الصَّدَقَةِ يَأْكُلُ الْحَشَفَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

د حضرت عوف بن مالک رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ مونږ ته تشريف راوړو او د هغوی ﷺ په لاس کښې امسا وه او چا د ردی قسم اوچو کجورو يوه غنچه زوړنده کړې وه، حضور ﷺ په خپلې امسا سره هغه غنچه اووهله اووې فرمائيل :" دې صدقه کوونکې ددې نه عمده صدقه هم ورکولې شوه -" اووې فرمائيل : چه دا کس به د قيامت په ورځ باندې ردی کجورې خوری -"

عن عوف بن مالک قال دخل علينا رسول الله(صلى الله عليه وسلم) المسجد وبيده عصا وقد علق رجل منا قنا حشفا فطعن بالعصا فى ذالک القنو، قنا، د قاف فتحې او کسرې سره دواړه لغته دی، او هم دارنگې قنو(بضم القاف و کسرها) په معنى د کهجور غنچه، او حشف اوچ او ردی کهجورو، يعنى يو سړی د ردی کهجورو غنچه په مسجد نبوی ﷺ کښې د فقيرانو دپاره زوړنده کړې وه، نو هغه ليدلو سره نبی کريم ﷺ هغه په امسا سره اوخوزوله، او په خفگان ئې اوئيل چه ددې زوړندونکې که غوختلې وې، نو ددې نه ښه غنچه ئې هم زوړندولې شوه، ليکن هغه اونه غوختل، اوس الله تعالى به هغه ته هم د قيامت په ورځ دغسې بې کاره کهجورې ورکوی، د قيامت په ورځ خوراک نه په ظاهر کښې حقيقة خوراک مراد نه دې، بلکه ددې خصلت سيئة سزا څکل مراد دی، جزاء اکل باندې د اکل اطلاق مشاکلة دې، او حقيقت اکل هم مراد کيدې شی، په دې شان سره، چه الله تعالى به د قيامت په ورځ دهغه سړی په زړه کښې د خوراک خواهش او رغبت پيدا کړی، او بيا به داسې بې

[1] ): سنن النسائي/الزكاة ۲۷(۲٤۹٥)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۱۹(۱۸۲۱)،( تحفة الأشراف :۱۰۹۱٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۳/٦، ۲۸)(حسن)

کاره کهجورې په هغه باندې اوخروی، په اصل کښې په صحابه کرامو کښې چه کوم حضرات باغونو والا یا مالدار وو، هغوی به داسې کول، چه د غریبو خلقو دپاره به ئې په جمات کښې د کهجورو غنچې اویزاندولې، دې دپاره چه کله دغه خلقه د مانځه دپاره جمات ته راشی، نو ددې نه یو دانه دوه کهجورې راؤشوکوی، او اوخری، مخکښې په باب حقوق المال کښې یو حدیث راروان دې، ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) امر من کل جاد(۱) عشرة اوسق بقنو یعلق فی المسجد ددې نه معلومه شوه، چه ددې تعلیق قنو دستور د نبی کریم ﷺ په ترغیب سره وو.

## باب زکاة الفطر

### باب: باب: ۱۸-دزکات فطر احکام او مسائل

پوهیدل پکار دی، چه د زکوة دوه قسمه دی، زکوة مالیه او دویم قسم زکوة بدنیه، چه هغې ته صدقة الفطر وئیلې شی، مصنف چه کله د قسم اول د ضروری او اهم ابوابو نه فارغ شو، نو اوس دلته کښې دهغې قسم ثانی بیان فرمائي، بیا ددې د فراغت نه پس به مصنف نور باقی پاتې ابواب الزکوة بیانوی.

**د صدقة الفطر سره متعلق مباحث عشره علمیه مفیده:**

دلته کښې د شروع نه مخکښې د یو څو امورو پیژندل د طالب علم دپاره مفید او موجب بصیرت دی، او زمونږ د ترتیب په لحاظ سره هغه لس څیزونه دی،(۱) د صدقة الفطر تسمیه او وجه تسمیه(۲) ددې د مشروعیت کال(۳) ددې حکم شرعی مع اختلاف ائمه(۴) د صدقة الفطر سبب وجوب(۵) شرط وجوب، او آیا غنی هم ددې د شرائطو نه دې او که نه؟( ۶) وقت وجوب(۷) کیفیت وجوب وهل له قضاء ان لم یؤد یوم العید(۸) آیا په غلام هم واجب دې، که وی نو ادا کوی به ئې څوک، هغه په خپله یا دهغه د طرف نه مولی(۹) د صدقة الفطر مقدار، او په مقدار حنطه کښې اختلاف(۱۰) صدقة الفطر من الاقط معیار او حکم.

**بحث اول : (د صدقة الفطر نومونه او وجه تسمیه)**

د صدقة الفطر اسماء ډیر دی، زکوة الفطر، زکوة رمضان، زکوة الصوم، صدقة الراس، صدقة النفوس، زکوة البدن، په صدقة الفطر کښې اضافت الی وقت الوجوب دې، یا الی الشرط ورته اوایئ، او په صدقة الراس والبدن کښې اضافة الی السبب دې،(کما ستعرف) بیا په فطر کښې دوه اقوال دی، په معنی د فطرت واصل خلقة، بمعنی الافطار، وهو الاظهر فقد ورد فی حدیث "زکوة الفطر من رمضان"(قاله الحافظان ابن حجر والعین)

(۱) جاد اسم فاعل دې، جدّ په معنی د قطع، مجدود،(د اونې نه راشوکولې شوې کهجورې) یعنی د هر لس وسق کهجورو د ذخیرې نه کم ازکم یوه غنچه په جمات کښې اویزاندول پکار دی، لطیفه: په الکوکب الدری کښې ددې حدیث نه یو لطیف استنباط هم فرمائیلې دې، هغه داچه د جمات په چهت کښې د گرمئ په موسم کښې د هوا دپاره پکی اویزاندول جائز دی)

**بحث ثاني : (دصدقة الفطر حکم کله نازل شو؟)**

په سنه ۲هـ کښې د اختر د ورځې نه دوه ورځې مخکښې، نبی کریم ﷺ د اختر نه دوه ورځې مخکښې خلقو ته خطبه ورکړه، په هغې کښې ئې د صدقة الفطر تعلیم ورکړو، صلی الله علیه وسلم شرف وکرم(وقد تقدم شيء منه في مبداء كتاب الزكوة)

**بحث ثالث : (د صدقة الفطر حکم)**

په دې کښې څلور اقوال دی، د ائمه ثلاثه او جمهورو په نزد صدقة الفطر فرض دې، او د احنافو په نزد واجب دې، داشهب مالکی، او ابن اللبان شافعی په نزد سنت مؤکده دې، ابوبکر بن کیسان الاصم او ابراهیم بن علیه په نزد منسوخ دې، لحديث قيس بن سعد بن عبادة، امرنا رسول الله(صلى الله عليه وسلم) بصدقة الفطر قبل ان تنزل الزكوة ثم نزل فريضة الزكوة فلم يامرنا ولم ينهنا(رواه [1] احمد وابن خزيمة والنسائي وابن ماجه والحاكم) لیکن دا استدلال صحیح نه دې، اذ نزول فرض لا يدل على سقوط فرض آخر([2])

**فائده** : د ائمه ثلاثه مذهب اګر چه د صدقة الفطر د فرضیت لیکلې شوې دې، لیکن ددې باوجود دهغوی په نزد د صدقة الفطر منکر کافر نه دې، ځکه چه د فرضو نه مراد دهغوی غیر قطعی دې، او د احنافو په نزد فرض غیر قطعی نه وی، هغه همیشه دپاره قطعی وی، بلکه د غیر قطعی نه هغوی واجب سره تعبیر کوی، دا یوه مستقله اختلافی او اصولی مسئله ده، ه د احنافو اصطلاح د واجبو ده، او د جمهورو په نزد فرض غیر قطعی، پس دا اختلاف صرف لفظی دې، حقیقی نه دې.

**بحث رابع : (د صدقة الفطر د وجوب سبب)**

د صدقة الفطر وجوب راس يمونه و يلى عليه ولاية تامة دې، لما في الحديث عمن تمونون يعنى هغه ذات د کوم مؤنته(نان نفقه وغيره) چه سړې بر داشت کوی، او په چا چه هغه ته ولایت تامه حاصل وی، ددې اولین مصداق خو د سړی خپل ذات دې، او دغه شان په دې کښې دهغوی اولاد صغار(ماشومان) هم داخل دی، اولاد کبار او زوجه په دې کښې داخل نه دی، سړی ته په هغوی باندې ولایت تامه حاصل نه وی، نو د احنافو بلکه د جمهور او ائمه ثلاثه په نزد د اولاد صغار مسئله داده، چه که هغه مالدار وی، نو په پلار واجب دی، چه دهغوی د مال نه دهغوی صدقة الفطر ادا کړی، او که مالدار نه وی، نو بیا پلار وغیره چه څوک هم دهغوی ولی وی، دهغوی د طرف نه دې هغه ادا کړی، لیکن د امام محمد رحمه الله په دې کښې اختلاف دې، دهغوی په نزد د صغیر صدقه مطلقا دهغه په پلار ده، که هغه صغیر مالدار وی او که نه، او که هغه یتیم وی، د هغه پلار نه وی، نو بیا په هیڅ باندې دهغه صدقه نشته.

او د زوجې مسئله هم اختلافی ده، جمهور و منهم الائمة الثلاثة په نزد دهغې صدقه په زوج واجب ده، ځرنګه چه نفقه په هغه واجبه ده، او د احنافو په نزد د زوجې صدقة الفطر په

---

[1]) دا حدیث د کتاب الزکوة په شروع کښې تیر شوې دې،)

[2]) په الحل المفهم کښې تبعا للاوجز داسې دی، اذاسقوط فرض لا يدل على سقوط فرض آخر دا سبقت قلم دې

خپله په هغې واجبه ده، څرنګه چه دهغې د مال زکوة خپله دهغې په مال کښې واجب دې، هم دا مسلک د سفیان ثوری، ابن المنذر، او ابن سیرین او ظواهرو دې.
د احنافو استدلال علی کل ذکر او انثی الحدیث نه دې، په دې کښې زوجه هم داخله ده، او غیر منکوحه بالغه ښځه به بالاتفاق خپله صدقة الفطر په خپله ورکوی.

**بحث خامس : (د صدقة الفطر د وجوب شرائط)**

شرائط د وجوب درې دی، اسلام، حریت او غنی، یعنی صاحب نصاب کیدل، لیکن حولان حول شرط نه دې، دا د احنافو مسلک دې، او د امام مالک رحمه الله نه یو روایت داسې دې، او د جمهورو په نزد د صدقة الفطر د وجوب دپاره نصاب شرط نه دې، بلکه په غنی او فقیر ټولو باندې واجبه ده، صرف دا ضروری ده، چه دې سړی سره د خپل ځان او اهل عیال د یوې ورځې د نفقې نه علاوه دومره مال وی، چه د هغې نه صدقة الفطر ادا کړې شی، هم دا مسلک د امام شافعی رحمه الله، احمد رحمه الله او مالک رحمه الله (فی روایة) دې، لحدیث ثعلبة بن ابی صعیر مرفوعا عند المصنف(چه په مخکښې باب کښې راروان دې، وفیه علی کل غنی او فقیر اما فقیرکم فیرد الله علیه اکثر مما اعطی.
قاضی ابوبکر بن العربی مالکی په دې کښې د احنافو مسلک ته ترجیح ورکړې ده،(چه د امام مالک صاحب یو روایت هم داسې دې) ځکه چه حدیث ثعلبه دهغې احادیث صحیحه مقابله نشی کولې، چه دهغې نه د غنی شرط کیدل معلومیږی، لا صدقة الا عن ظهر غنی وغیره احادیث صحیحه دی، دغه شان د اصولو تقاضا هم داده، او حدیث ثعلبه اول خو ضعیف دې، ځکه چه ددې په سند کښې النعمان بن راشد دې، قال المنذری لا یحتج بحدیثه، دویم ددې جواب دا هم کیدې شی، چه غنی د امور اضافیه نه دې، پس د فقیر نه فقیر نسبی مراد دې، یعنی هغه غنی چه د کبار اغنیاؤ په اعتبار سره فقیر دې.

**بحث سادس : (د صدقة الفطر د وجوب وخت)**

دا مخکښې تیر شوې دی، چه په صدقة الفطر کښې د فطر نه مراد افطار صوم دې، لهذا ددې وقت وجوب وقت افطار دې، اوس د افطار نه کوم یو افطار مراد دې؟ حنابله خو دا وائی، چه د رمضان د آخری ورځې وقت غروب،(د لیلة العید شروع) او احناف وائی، چه دا افطار خو د رمضان د شروع نه کیږی، دا مراد نه دې، بلکه هغه خاص وقت افطار چه د یوې میاشت نه پس کیږی، یعنی د اختر په ورځ د سحر د راختلو وخت پس کوم سړې چه دغه وخت کښې موجود وی، په هغه صدقة الفطر واجب دې او کوم سړې چه ددې نه مخکښې مړ شی، یا کوم ماشوم چه ددې وخت تیریدو نه پس پیدا شی، په هغه به صدقة الفطر نه وی، او د امام مالک رحمه الله په دې کښې دواړه اقوال دی، مثل المذهبین، دغه شان د امام شافعی رحمه الله هم قول جدید د امام احمد رحمه الله پشان دې، او په قول قدیم کښې هغه زمونږ سره دې.(عینی ۹ص۱۱۸)

**بحث سابع : (د صدقة الفطر د وجوب کیفیت)**

یعنی ددې وجوب موسعا دې او که مضیقا(غیر موسع) فعند الحنفیه هی من الواجبات الموسعة

فوقت اداءها جميع العمر مثل الزكوة، او د ائمه ثلاثه په نزد صدقة الفطر د جبات غير موسعه نه دي، نو دهغوی په نزد ددې تاخير د اختر د ورځې نه حرام دي، ليکن په هغه وخت کښې نه اداء کولو سره د ذمې نه ساقطيږی نه، بيا د امام شافعی او احمد په نزد خو روستو ورکول به قضاء شمارلې شی، او د امام مالک رحمه الله په نزد روستو ورکول خو ادا ده، ليکن د تاخير په وجه به ګناه وی، او د حسن بن زياد په نزد يوم الفطر تيريدو نه پس صدقة الفطر ساقطيږی، او د ابن القيم په نزد د صلوة العيد نه پس ددې وخت باقی پاتې کيږی نه، بلکه ساقطيږی، (بذل وحاشيه بذل)

**بحث ثامن** : (**ايا په غلام باندې صدقه فطر شته؟**)

په حديث کښې دی، على كل حر او عبد، ددې مطابق د داؤد ظاهری مسلک دادې، چه صدقة الفطر په عبد باندې هم واجب دې، او دهغې ادا کول دهغه په ذمه دی، او په سيد لازم دی، چه هغه ته د اکتساب مهلت ورکړی، دې دپاره چه هغه اوګټی او خپله صدقة الفطر په خپله ادا کړی، څرنګه چه مونځ دپاره هغه ته وخت ورکول ضروری دی.

او د جمهورو ومنهم الائمة الاربعة په نزد د غلام د صدقة الفطر ادا کول په سيد باندې دی، اوس دا د ابتداء نه په سيد ده، يا ابتداء هم په عبد باندې واجب ده، بيا سيد دهغه د طرف نه متحمل کيږی؟ په دې کښې د امام شافعی رحمه الله دوه اقوال دی، او احناف داسې وائی، چه په عبد کښې اهليت وجوب نشته، بلکه د عبد صدقه واجب هم په مولی باندې وی، او ادا کول هم دهغه په ذمه دی، دلته کښې دوه اختلافه دی، يو دا چه په عبدخدمت او عبدتجارت کښې فرق شته او که نه؟ دغه شان د عبدمسلم او غير مسلم په حکم کښې فرق شته او که نه؟ دا اختلافات د آئنده حديث د لاندې راروان دی.

**بحث تاسع و عاشر:**

ددې دواړو بيان انشاء الله د آئنده حديث د لاندې راروان دی.

[۱۶۰۹] (۱) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ الدِّمَشْقِيُّ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ السَّمَرْقَنْدِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، قَالَ عَبْدُ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو يَزِيدَ الْخَوْلَانِيُّ وَكَانَ شَيْخَ صِدْقٍ وَكَانَ ابْنُ وَهْبٍ يَرْوِي عَنْهُ، حَدَّثَنَا سَيَّارُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، قَالَ مَحْمُودٌ الصَّدَفِيُّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ طُهْرَةً لِلصَّائِمِ مِنَ اللَّغْوِ وَالرَّفَثِ وَطُعْمَةً لِلْمَسَاكِينِ، مَنْ أَدَّاهَا قَبْلَ الصَّلَاةِ فَهِيَ زَكَاةٌ مَقْبُولَةٌ، وَمَنْ أَدَّاهَا بَعْدَ الصَّلَاةِ فَهِيَ صَدَقَةٌ مِنَ الصَّدَقَاتِ".

حضرت ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه رسول الله ﷺ صدقهٔ فطر (سرسايه) فرض قرار کړه ددې د پاره چه د روژې صفائی راشی د لغو او بې هوده اقوالو او افعالو نه او مسکينانو ته طعام حاصل وی - چنانچه چا چه دې لره د مونځ (د اختر) نه مخکښې مخکښې ادا کړو نو دا داسې زکات دې چه دا قبول کړې شوې دې او چا چه دې لره د مونځ نه پس ادا کړو نو دا د عامو صدقاتو نه يوه صدقه ده -

(۱) د سنن ابن ماجه الزكاة ۲۱ (۱۸۲۷)، (تحفة الأشراف: ۶۱۳۳) (حسن)

**تشریح: قوله:** عن ابن عباس قال فرض رسول الله(صلی الله علیه وسلم) زکوة الفطر طهرة للصیام من اللغو والرفث و طعمة للمساکین الخ

## د صدقة الفطر په مشروعیت کښې حکمت:

په دې حدیث کښې د صدقة الفطر مشروعیت او دهغې حکمت بیان کړې شوې دې، هغه داچه په صیام [1] کښې څه نقصان واقع شوې وی، دهغې تلافی(پوره والې) اوشی.

دویمه داچه د فقیرانو په دې کښې فائده ده، د دارقطنی په یو روایت کښې دی، اغنوهم عن الطواف فی هذا الیوم، چه فقیرانو لره د اختر په ورځ( په محلو کښې او بازارونو کښې د طلب معاش دپاره) د ګرزیدو نه مستغنی کړئ.

د حدیث الباب باره کښې حافظ منذری لیکلي دی، والحدیث اخرجه ابن ماجه معلومه شوه، چه دا حدیث په صحاح سته کښې صرف ابوداؤد او ابن ماجه کښې دې، امام نووی فرمائي چه ددې حدیث نه بعضو عالمانو په دې استدلال کړې دې، چه په صبی صدقة الفطر نشته، ځکه چه د تطهیر تعلق خو د ګناه سره دې، او صبی ګناهګار نه دې، دغه شان حسن بصری او سعید بن المسیب ددې نه استدلال کړې دې، چه صدقة الفطر صرف په هغه چا واجب ده، چاچه روژه نیولې وی، ځکه چه چا روژه نیولې نه ده، نو تطهیر صیام کوم ځائي راغلو؟ لیکن ددې جواب دا ورکړې شوې دې، چه طهرة للصائم دا قید د غالب الناس په اعتبارسره دې. هرځائي کښې ددې تحقق ضروری نه دې،مثلا چاچه هډو ګناه کړې نه وی، بلکه هغه سړې متحقق الصلاح وی، نو آیا په هغه به هم واجب نه وی؟

## باب مَتَى تُؤَدَّى

### باب: ۱۹ - صدقهٔ فطر دې کوم وخت کښې ادا کړې شی؟

صدقة الفطر کله پورې ادا کولې شی، په دې مسئله باندې کلام په ابتدائي بحثونو کښې تیر شوې دې، چه صدقة الفطر په واجبات موسعه کښې دې، یا په واجبات مضیقه کښې، په تیر شوې بحثونو کښې بحث سابع داسې دې.

[۱۶۱۰](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِزَكَاةِ الْفِطْرِ أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ خُرُوجِ النَّاسِ إِلَى الصَّلَاةِ"، قَالَ: فَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يُؤَدِّيهَا قَبْلَ ذَلِكَ بِالْيَوْمِ وَالْيَوْمَيْنِ.

حضرت ابن عمر رضی الله عنهما بیان کوی چه رسول الله ﷺ مونږ ته د صدقهٔ فطر په باره کښې حکم فرمائیلې وو چه دې لره دې دَ خلقو عیدګاه ته دَ وتلو نه مخکښې مخکښې ادا کړې شی (نافع) وائی چه حضرت ابن عمر رضی الله عنهما به دې لره دَ اختر دَ ورځې نه یوه دوه ورځې مخکښې ادا کولو۔

**تشریح: قوله:** عن ابن عمر قال امرنا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بزکوة الفطر ان تؤدی قبل خروج

---

[1] ) دا ترجمه او مطلب زمونږ د نسخې مطابق دې، او په بعضو نسخو کښې طهرة للصائم دې، هلته کښې به مطلب دا وی، چه د روژه دار تطهیر عن الاثم اوشی)

[2] ): صحیح البخاري/الزکاة ۷۶(۱۵۰۹)، صحیح مسلم/الزکاة ۵(۹۸۶)، سنن الترمذي/الزکاة ۳۶(۶۷۷)، سنن النسائي/الزکاة ۴۵(۲۵۲۲)،(تحفة الأشراف :۸۴۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۱۵۱، ۱۵۵)(صحیح) دون فعل ابن عمر

الناس الى الصلوة قال فكان ابن عمر يؤديها قبل ذالک باليوم و اليومين.

**د صدقة الفطر تقديم کله پورې جائز دې؟**

دا دويمه مسئله ده، چه د صدقة الفطر تعجيل جائز دې او که نه؟
د امام مالک او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد د اختر نه صرف يوه يا دوه ورځې مخکښې ورکولې شی، داسې يو روايت د امام ابوحنيفه رحمه الله هم دې، او دويم روايت د احنافو د يو کال يا دواؤ کالو د تعجيل دې، د حنابله يو روايت دادې، چه د نيم رمضان نه پس ورکول جائز دی، څرنګه چه د سحر آذان د نصف اليل نه پس جائز دې، او مزدلفې ته تلل د نصف ليل نه پس جائز دی، او د امام شافعي رحمه الله په نزد د رمضان په هره حصه کښې ورکولې شی، د رمضان نه مخکښې ورکول جائز نه دی، او هم دا يو روايت د احنافو هم دې، زمونږ په نزد په دې کښې مختلاف روايات دی، لکه دوه مخکښې تير شوې دی، او دريم روايت دادې، دې ته اصح وئيلې شوې دې، چه مطلقا تقديم جائز دې، ولو على رمضان.(اوجز ٣ص٢٩١)

## بَابٌ كَمْ يُؤَدَّى فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ

**باب: ٢٠- دَ سرسايې مقدار-**

**د صدقة الفطر مقدار:**

دا هم هغه بحث تاسع دې، چه دهغې مونږ په آئنده کښې د ذکر کولو وعده کړې وه، يعنی د صدقة الفطر مقدار، د صدقة الفطر مقدار په حديث کښې د ټولو ذکر کړې شوې څيزونو د جمهورو او ائمة ثلاثه په نزد يو صاع دې، په حنطه کښې د احنافو د جمهورو سره اختلاف دې د احنافو په نزد نصف صاع دې،([1]) دې لره په ډير قوت سره ابن المنذر شافعي رحمه الله اختيار کړې دې، او د صحابه کرامو د يو جماعت مذهب دې لره ثابتوی، او هم دا مذهب د سفيان ثوری او ابن المبارک رحمه الله دې، او د ابن حبيب مالکی رحمه الله هم يو روايت دادې، د حافظ ابن القيم او دهغه د شيخ ابن تيميه ميلان هم دې طرف ته دې، ابن تيميه رحمه الله فرمائي چه د امام احمد کوم مسلک په کفاراتو کښې دې، چه هغه په کفاراتو کښې حنطه نصف منی، د غير حنطه نه، ددې تقاضا او قياس په صدقة الفطر هم دا دې، چه نصف صاع دې وی، ليکن زه وايم، چه د حنابله په کتابونو کښې د يو صاع تصريح ده، او په ظاهر کښې د امام نووی رحمه الله نه په شرح مسلم کښې سبقت قلم شوې دې، چه د امام احمد مسلک ئې د احنافو په شان ليکلې دې

[١٦١١] (١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ وَقَرَأَهُ عَلَى مَالِكٍ أَيْضًا، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَضَ زَكَاةَ الْفِطْرِ، قَالَ فِيهِ فِيمَا قَرَأَهُ عَلَى مَالِكٍ: "زَكَاةُ الْفِطْرِ مِنْ رَمَضَانَ صَاعٌ مِنْ تَمْرٍ أَوْ صَاعٌ

---

[1] او په زبيب کښې صرف امام صاحب دا فرمائي چه نصف صاع دې، د صاحبينو او ائمه ثلاثه په نزد يو صاع دې.

(): صحيح البخاري/الزكاة ٧٣(١٥٠٦)، صحيح مسلم/الزكاة ٤(٩٨٤)، سنن الترمذي/الزكاة ٣٥، ٣٦(٦٧٦)، سنن النسائي/الزكاة ٣٣(٢٥٠٥)، سنن ابن ماجه/الزكاة ٢١(١٨٢٦)، (تحفة الأشراف :٨٣٢١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ٢٨(٥٢)، مسند احمد(٢/٥، ٥٥، ٦٣، ٦٦، ١٠٢، ١١٤، ١٣٧)، سنن الدارمي/الزكاة ٢٧(١٧٠٢)(صحيح)

مِنْ شَعِيرٍ عَلَى كُلِّ حُرٍّ أَوْعَبْدٍ ذَكَرٍ أَوْأُنْثَى مِنَ الْمُسْلِمِينَ".

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه نه مروی دی چه رسول الله ﷺ په رمضان کښې صدقهٔ فطر (سرسایې) لره فرض اوفرمائیل : په دې شان سره چه دَ هر مسلمان آزاد، غلام، دَ سړی او ښځې دَ طرف نه دې دَ کجورو یا دَ اوربشو یو صاع ورکړې شي۔

عن ابن عمر رضی الله عنه ان رسول الله (صلى الله عليه وسلم) فرض زكوة الفطر (قال فيه فيما قراءه على مالك زكوة الفطر في رمضان) بين القوسين والا عبارت جمله معترضه ده، د سند په شروع کښې دا راغلې وه، عبدالله بن مسلمه فرمائي حدثنا مالک و قراءة على مالک.

**شرح السند :**

يعنى عبدالله بن مسلمه ته دا حديث د امام مالک رحمه الله نه په طريق د تحديث رسيدلې دې، او په طريق د قراءت على الشيخ هم، چه هغې ته اخبار وئيلې شي، اوس دلته د الفاظ حديث باره کښې عبدالله بن مسلمه دا فرمائي، چه د سماع من الشيخ والا صورت کښې الفاظ صرف دادی، فرض زكوة الفطر، او په قراءة على الشيخ والا روايت کښې زكوة الفطر من رمضان دی، د من رمضان لفظ په دې کښې زائد دې.

صاع من تمر او صاع من شعير : پوهيدل پکار دی، چه د داؤد ظاهری په نزد صدقة الفطر په دې دواؤ څيزونو کښې منحصر دې، کوم چه په دې حديث کښې ذکر دی، يعنى تمر او شعير، او د جمهورو په نزد په دې دوارو کښې انحصار نشته، دهغې احاديث په بناء باندې، په کومو کښې چه نور څيزونه هم ذکر دی. من المسلمين

**د كافر غلام د طرف نه صدقة الفطر :**

په بحث ثامن کښې دا تير شوې وو، چه په دې کښې دا اختلاف دې، چه د کافر او مسلمان غلام په حکم کښې فرق شته او که نه؟ نو د جمهور ومنهم الائمة الثلثة په نزد فرق شته، دهغوی په نزد په مولى باندې صرف د مسلمان غلام صدقة الفطر واجبه ده، د کافر غلام صدقة الفطر پرې واجبه نه ده، او د احنافو په نزد په مولى باندې د دوارو د طرف نه صدقة الفطر واجبه ده، دلته په روايت کښې د من المسلمين قيد مذکور دې، چه د جمهورو سره موافق دې، د احنافو د طرف نه په جواب کښې وئيلې شوې دی، چه امام ترمذی ددې زياتوالې په باره کښې فرمائيلې دی، چه امام مالک په دې سره متفرد دې، د نافع په شاګردانو کښې بل هيچا هم دا زياتوالې ذکر کړې نه دې.

ليکن امام نووی رحمه الله د امام ترمذی رحمه الله په دې تنقيد باندې رد کړې دې، چه داسې نه ده، بلکه د مالک متابعت کړې شوې دې، لکه د نافع نه دې زياتوالې لره د امام مالک نه علاوه ضحاک بن عثمان او عمربن نافع هم روايت کړې دې، او دا دواړه ثقه دی، اهـ

زهٔ وايم، چه د عمر بن نافع روايت خو په صحيح بخاری کښې شته، او د ضحاک بن عثمان په صحيح مسلم کښې شته، په دوارو کښې د من المسلمين قيد مذکور دې، (کما قال النووی) بلکه ابن دقيق العيد خو دا فرمائي، چه دې زياتوالې لره د نافع نه روايت کونکې

اووه راویان دی،(عینی ۹ص۱۱۰) لهذا د تفرد او ضعف دعوی خو صحیح نه ده، هرکله چه دا لفظ د صحیحین په روایت کښې موجود دې، اصل جواب ددې دادې، چه په اسبابو کښې تزاحم نه وی، د یو مسبب ډیر اسباب کیدې شی، دلته کښې مسبب یعنی صدقة الفطر یو دې، او دهغې سبب په عبدکافر کښې دهغه ذات دې، او په عبد مسلم کښې دهغه ذات، ددې وجې نه په بعضو روایاتو کښې د من المسلمین قید ذکر دې، او په بعضو کښې نشته، دویمه خبره داده، چه په مولی باندې د عبد د طرف نه چه کومه صدقة الفطر واجبه وی، دهغې په علت کښې اختلاف دې، د احنافو په نزد دهغې علت مال کیدل دی، او د جمهورو په نزد دهغې علت د هغه مکلف کیدل دی، او مال څرنګه چه عبد مسلم دې، دغه شان عبدکافر هم دې، او مکلف ظاهره خبره ده، چه صرف عبدمسلم دې، عبدکافر نه دې، ددې وجې نه جمهور د اسلام قید لګوی، والله اعلم

یو اختلاف دلته کښې دادې، چه صدقة الفطر په عبیدخدمت او عبید تجارت دواړو کښې دې، او که صرف په عبید خدمت کښې؟

عند الائمة الثلاثه په دې کښې عموم دې، دهغوی په نزد په دواړو کښې دی، او د احنافو په نزد صرف په عبید للخدمت کښې دې، للتجارة کښې نشته، ځکه په هغې کښې خو زکوة تجارت واجب وی، ولیس فی مال زکوتان، او په یو مال کښې دوه زکوته واجب نه وی.

[۱۶۱۲](۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ السَّكَنِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَهْضَمٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ صَاعًا"، فَذَكَرَ بِمَعْنَى مَالِكٍ، زَادَ: "وَالصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ، وَأَمَرَ بِهَا أَنْ تُؤَدَّى قَبْلَ خُرُوجِ النَّاسِ إِلَى الصَّلَاةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ اللَّهِ الْعُمَرِيُّ، عَنْ نَافِعٍ، بِإِسْنَادِهِ، قَالَ: "عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ". وَرَوَاهُ سَعِيدٌ الْجُمَحِيُّ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ فِيهِ: "مِنَ الْمُسْلِمِينَ"، وَالْمَشْهُورُ عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ لَيْسَ فِيهِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ.

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ صدقۀ فطر لره یو صاع مقرر اوفرمائیلو - او دَ مذکوره بالا روایت مالک هم معنیٰ ئې بیان کړو - او مزید ئې اووئیل : دَ وړوکی او دَ غټ دَ جانب نه دې ورکړې شی او حکم ئې اوکړو چه دې لره دې دَ خلقو دَ مانځه دَ پاره دَ وتلو نه مخکښې مخکښې ادا کړې شی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ عبد الله العمری عن نافع په روایت کښې [ علی کل مسلم ] او دَ سعید الجمحی په روایت کښې کوم چی په واسطه د عبید الله عن نافع سره دې په هغې کښې دَ [ من المسلمین ] لفظ بیان شوې دې - مګر مشهور دادی چه دَ عبید الله په روایت کښې د [ من المسلمین ] لفظ نشته دې -

[۱۶۱۳](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ يَحْيَى بْنَ سَعِيدٍ، وَبِشْرَ بْنَ الْمُفَضَّلِ حَدَّثَاهُمْ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ، "فَرَضَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ أَوْ تَمْرٍ عَلَى الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ وَالْحُرِّ وَالْمَمْلُوكِ"، زَادَ مُوسَى: وَالذَّكَرِ وَالْأُنْثَى. قَالَ أَبُو دَاوُد: قَالَ فِيهِ: أَيُّوبُ وَعَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي الْعُمَرِيَّ فِي حَدِيثِهِمَا: عَنْ نَافِعٍ، ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى أَيْضًا.

(۱): صحيح البخاري/الزكاة ۷۰(۱۵۰۳)، سنن النسائي/الزكاة ۳۳(۲۵۰٦)، (تحفة الأشراف: ۸۲٤٤)(صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الزكاة ۷۸(۱۵۱۲)، (تحفة الأشراف: ۷۷۹۵، ۷۸۱۵، ۸۱۷۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۵۵)(صحيح)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه دَ نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چه هغوی ﷺ صدقة فطر لره فرض فرمائیلې دې یو صاع دَ اوربشو یا دَ کجورو چه دا په هر وړوکی، غټ، په آزاد او غلام باندې واجب ده موسیٰ بن اسماعیل دَ سړی او دَ ښځې لفظ هم وئیلې دې - امام ابوداودرحمه الله فرمائی : چه په دې روایت کښې ایوب او عبد الله العمری هم دَ نافع نه دَ [ذکر او انثیٰ] " دَ سړی او ښځې " الفاظ بیانوی۔

[۱۶۱۴]() حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيُّ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ النَّاسُ يُخْرِجُونَ صَدَقَةَ الْفِطْرِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ أَوْ تَمْرٍ أَوْ سُلْتٍ أَوْ زَبِيبٍ"، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: فَلَمَّا كَانَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَكَثُرَتِ الْحِنْطَةُ، جَعَلَ عُمَرُ نِصْفَ صَاعِ حِنْطَةٍ مَكَانَ صَاعٍ مِنْ تِلْكَ الْأَشْيَاءِ.

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه بیان کوی چه خلقو به دَ رسول الله ﷺ په زمانه کښې اوربشې، کجورې، بغیر دَ پوستکی نه اوربشې یا دَ اوچکو نه یو یو صاع ورکولو او صدقة فطر به ئې ادا کولو - حضرت نافع وائی چه کله دَ حضرت عمر رضي الله عنه دور راغې او غنم ډیرشو نوهغوی ددې څیزونو دَ یو صاع په ځائې باندې دَ غنمو نیم صاع مقرر کړو۔"

**تشریح: قوله**: عن عبدالله بن عمر قال كان الناس يخرجون صدقة الفطر على عهد رسول الله (صلى الله عليه وسلم) صاعا من شعير او تمر او سلت او زبيب.

## په صدقة الفطر کښې کوم څیز ورکول پکار دی:

دلته کښې لفظ (آو)د تخیر دپاره دې، د احنافو او حنابله په نزد سړی ته اختیار دې، په دې څیزونو کښې چه څه غواړی په صدقة الفطر کښې دې ورکړی، او د امام شافعی او امام مالک مسلک دادې، چه په صدقة الفطر کښې هغه څیز ورکول ضروری دی، چه غالب قوت بلد وی، یعنی په هغې ښهر کښې چه زیات طور باندې کومه غله خوړلې کیږی. هغه په صدقة الفطر کښې ورکول ضروری دی. (حاشیه بذل)

**فائده** : د باب د سر نه د ابن عمر رضي الله عنه حدیث شروع دې، چه په متعدد طرقو سره روایت دې، اوسه پورې چه څومره طرق بیان شوې دی، په هغې ټولو کښې د صاع من تمر او صاع من شعیر صرف د دواؤ ذکر دې، نو ددې نه داؤد ظاهری استدلال کړې دې، (کما تقدم) چه صدقة الفطر صرف په دې دواؤ کښې ورکول ضروری دی، لیکن په هغه طریق کښې کوم چه د عبد العزیز بن ابی رواد طریق دې، د سلت او زبیب اضافه ده، حافظ وائي : دې لره امام مسلم په کتاب التمیز کښې د عبد العزیز وهم ګرزولې دې.

دغه شان په دې روایت کښې چه کوم لفظ مخکښې راروان دې، فلما کان عمر، په دې باندې هم بعضو محدثینو تنقید کړې دې، چه د عمر تصریح مرجوح ده، په اصل روایت کښې "الناس" دې، چه دهغې مصداق معاویه رضي الله عنه دې، لیکن امام طحاوی د خپل بیان کړې شوې روایت نه دا ثابته کړې ده، چه نصف صاع د حنطه لره د صاع من شعیر سره برابرونکې

[1]: سنن النسائي/الزكاة ٤١(٢٥١٨)، (تحفة الأشراف: ٧٧٦٠)(ضعيف)

عمر رضي الله عنه دې، دهغه نه پس عثمان رضي الله عنه (من الفتح ٥ص٢٩٦) په اصل کښې شافعيه وغيره چونکه په حنطه کښې د صاع قائل دی، او دا روايت دهغوی خلاف دې، ددې وجې نه هغوی په دې روايت د تنقيد کوشش کوی، مثلاً داچه داسې کونکې معاويه رضي الله عنه وو، عمر رضي الله عنه نه وو، په دې سره مسئله لږه اهون کيږی.

قال عبدالله فلما كان عمر وكثرت الحنطة جعل عمر نصف صاع حنطة مكان صاع من تلك الاشياء.

يعنی د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په زمانه کښې خو په مدينه منوره کښې غنم نه وو، ددې وجې نه عام طور باندې خلقو په صدقة الفطر کښې تمر او شعير ورکول، ليکن چه کله د حضرت عمر رضي الله عنه زمانه راغله، او په اسلامی فتوحاتو کښې اضافه اوشوه، ملک شام فتح شو، او د هلته نه مدينې منورې ته غنم راتلل شروع شو، نو حضرت عمر رضي الله عنه د غنمو نصف صاع د دې نورو څيزونو د يو صاع برابر مقرر کړو، يعنی عملی طور باندې، ګنی نفس ثبوت خو ددې (نصف صاع حنطة) عند الحنفيه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه منقول دې، او دا وئيل پکار دی، چه راوی د خپل ګمان او علم په اعتبار سره وائي چه عمر رضي الله عنه داسې اوکړل، باقی ددې تاويل حاجت په هغه صورت کښې دې، چه کله دا تسليم کړې شی، چه د نصف صاع حنطه ثبوت د نبی کريم صلى الله عليه وسلم نه دې، ليکن دا څيز مختلف فيه بين المحدثين دې، ددې مخکښې يو مستقل باب راروان دې.

[١٦١٥] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ: "فَعَدَلَ النَّاسُ بَعْدُ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ"، قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ يُعْطِي التَّمْرَ فَأَعْوَزَ أَهْلَ الْمَدِينَةِ التَّمْرُ عَامًا، فَأَعْطَى الشَّعِيرَ.

حضرت نافع وئيلي دی چه حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمائيلي دی چه بيا خلقو د غنمو نيم صاع ورکولو - هغوی اووې چه حضرت عبد الله به کجورې ورکولې مګر يو کال په اهل مدينه باندې د کجورو تنګسيا راغله، نو هغوی اوربشې ورکړې -

**قوله:** فاعوزاهل المدينة التمر صاعا: د ابن عمر رضي الله عنه معمول خو هميشه دپاره په صدقة الفطر کښې د صاع تمر ورکولو وو، (ځکه چه هغه اجود الاصناف دې) يو ځل اهل مدينه د تمر ورکولو نه عاجزه شو، يعنی د تمر پيداوار په مدينه منوره کښې اونه شو، يا کم اوشو، نو مجبورا هغوی په دغه کال د تمر په ځائې شعير ادا کړو.

[١٦١٦] (٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ يَعْنِي ابْنَ قَيْسٍ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: "كُنَّا نُخْرِجُ إِذْ كَانَ فِينَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَكَاةَ الْفِطْرِ عَنْ كُلِّ صَغِيرٍ وَكَبِيرٍ حُرٍّ أَوْ مَمْلُوكٍ، صَاعًا مِنْ طَعَامٍ، أَوْ صَاعًا مِنْ أَقِطٍ، أَوْ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ، أَوْ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ، أَوْ صَاعًا مِنْ زَبِيبٍ، فَلَمْ نَزَلْ نُخْرِجُهُ حَتَّى

[١]: صحيح البخاري/الزكاة ٧٨(١٥١١)، صحيح مسلم/الزكاة ٤(٩٨٤)، سنن الترمذي/الزكاة ٣٥(٦٧٦)، سنن النسائي/الزكاة ٣٠(٢٥٠٢)، (تحفة الأشراف: ٧٥١٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ٢٨(٥٢)، مسند احمد(٢/٥، ٥٥، ٦٣، ٦٦، ١٠٢، ١١٤، ١٣٧)، دي/الزكاة ٢٧(١٧٠٢)(صحيح)

[٢]: صحيح البخاري/الزكاة ٧٢(١٥٠٥)، ٧٣(١٥٠٦)، ٧٥(١٥٠٨)، ٧٦(١٥١٠)، صحيح مسلم/الزكاة ٤(٩٨٥)، سنن الترمذي/الزكاة ٣٥(٦٧٣)، سنن النسائي/الزكاة ٣٧(٢٥١٣)، سنن ابن ماجه/الزكاة ٢١(١٨٢٩)، (تحفة الأشراف: ٤٢٦٩)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة ٢٨(٥٣)، مسند احمد(٣/٢٣، ٧٣، ٩٨)، سنن الدارمي/الزكاة ٢٧(١٧٠٤)(صحيح)

قَدِمَ مُعَاوِيَةُ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا، فَكَلَّمَ النَّاسَ عَلَى الْمِنْبَرِ، فَكَانَ فِيمَا كَلَّمَ بِهِ النَّاسَ، أَنْ قَالَ: إِنِّي أَرَى أَنَّ مُدَّيْنِ مِنْ سَمْرَاءِ الشَّامِ تَعْدِلُ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ، فَأَخَذَ النَّاسُ بِذَلِكَ، فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ: فَأَمَّا أَنَا فَلَا أَزَالُ أُخْرِجُهُ أَبَدًا مَا عِشْتُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ عُلَيَّةَ، وَعَبْدَةُ وَغَيْرُهُمَا، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ، عَنْ عِيَاضٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ بِمَعْنَاهُ، وَذَكَرَ رَجُلٌ وَاحِدٌ فِيهِ عَنْ ابْنِ عُلَيَّةَ: أَوْ صَاعًا مِنْ حِنْطَةٍ، وَلَيْسَ بِمَحْفُوظٍ.

حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه بيان کوی چه کله رسول الله ﷺ په مونږ کښي موجود وو نو مونږ به د هر وړوکی او غټ، آزاد او غلام د طرف نه په صدقهٔ فطر کښي د طعام (غنمو)، پنير، اوربشو، کجورو يا د اوځکو نه يو صاع ورکولو تردې پورې چه حضرت معاويه رضي الله عنه د حج يا د عمرې د پاره راغي او په منبر باندې ئي خلقو ته خطبه ورکړه - د منجمله نورو خبرونه علاوه هغوی رضي الله عنه خلقو ته دا هم اوفرمائيل : زهٔ پوهيږم چه د شام د غنمو نه دوه مده (نيم صاع) د کجورو د يو صاع برابر دی - چنانچه خلقو د هغه دا خبره واخسته په دې باندې حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه اووئيل : زهٔ خو چه ترڅو پورې ژوندې يم نو هم يو صاع به ورکووم - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې روايت لره ابن علي او عبده وغيره په سند د ابن اسحاق سره د حضرت عبد الله بن عبد الله بن عثمان بن حکيم بن حزام هغوی د حزام بن عياض نه او هغوی د ابی سعيد نه ددې هم معنیٰ روايت کړې دې او په دوی کښي يو کس د ابن عُلَيّه په روايت کښي د [ او صاعا من حنطة ] ”يا يو صاع د غنمو نه“ ذکر کړې دې، مګر دا محفوظ نهٔ دی -

**تشريح: قوله**: صاعا من طعام او صاعا من اقط او صاعا من شعير او صاعا من تمر او صاعا من زبيب فلم نزل نخرجه حتى قدم معاوية حاجا او معتمرا فكلم الناس على المنبر انى ارى ان مدين من سمراء الشام تعدل صاعا من تمر فاخذ الناس بذلک.

د باب د شروع نه دې ځائې پورې په متعدد طرقو سره حديث ابن عمر رضي الله عنه راروان دې، دا حديث د ابوسعيد خدري رضي الله عنه دې، په دې کښي د حنطه ذکر هم دې، هغه په دې طريقې سره، چه د نبی کريم ﷺ په زمانه کښي به مونږ په صدقة الفطر کښي فلانې فلانې څيزونه يو يو صاع ورکول، بيا چه کله د امير معاويه رضي الله عنه دور راغلو، نو هغوی اوفرمائيل : چه زهٔ د حنطې نصف صاع د شعير يو صاع سره برابر ګنړم، نو خلقو دې لره اختيار کړو.

## په صدقة الفطر کښې ورکونکې اشياء منصوصه :

پوهيدل پکار دی، چه کوم څيزونه په صدقة الفطر کښې ورکولې شی، هغه په صحيحينو کښې صرف څلور ذکر دی، په حديث ابن عمر رضي الله عنه کښې صرف دهٔ، تمر او شعير، او په حديث ابوسعيد خدري رضي الله عنه کښې څلور، تمر، شعير، اقط، او زبيب، او ددې ټولو څيزونو مقدار يو يو صاع بيان کړې شوې دې.

## په صاعا من طعام باندې کلام :

او يو لفظ صاعا من طعام راغلې دې، د حنطه ذکر يا دهغې مقدار د صحيحينو په يو حديث مرفوع يا موقوف کښې صراحة نشته، سوا د لفظ صاعا من طعام نه، دې باره کښې د بعضو شارحينو د شوافعو رائې داده، چه ددې نه مراد حنطه دهٔ، او بعضو نورو ددې مضبوط

تردید کړې دې، او دغې تردید لره حافظ ابن حجر هم تسلیم کړې دې، هاو! دا په صحیحینو کښې ضرور راځي، چه حضرت معاویه رضي الله عنه یو ځل په خپله زمانه کښې د حج یا عمرې دپاره مکې مکرمې ته تشریف راؤړو، او په ممبر باندې کیناستلو او د خلقو په مخکښې ئې دا خبره اوکړه، چه زما رائي داده، چه د سمراء الشام (کوم غنم چه د ملک شام نه راځي) نصف صاع د یو صاع تمر برابر دی، فاخذ الناس بذلک، نو ټولو خلقو دې لره قبول کړه، سوا د ابوسعید خدری رضي الله عنه نه، هغوی اوفرمائیل: چه زهٔ خو به هم هغسې ادا کوم، څرنګه مې چه اوسه پورې ادا کوله.

**د حنطه ذکر په صحاح کښې:**

البته په صحاح کښې باقی سنن اربعه کښې د حنطه تصریح په حدیث مرفوع کښې (مرفوع حقیقی او حکمی) موجود ده، لیکن د مقدار په بیان کښې روایات مختلف دی، په بعضو کښې صاع او په اکثرو کښې نصف صاع دې، لکه امام ابوداؤد رحمه الله په نصف صاع باندې مستقل باب قائم کړې دې، او په هغې کښې هغوی دوه احادیث ذکر کړې دی، (۱) د ثعلبه بن ابی صعیر حدیث (۲) د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما حدیث، د اول حدیث مضمون دادې، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم صاع حنطه لره د دواؤ سړو د طرف نه صدقة الفطر مقرر کړه، (لهذا د هر سړی د طرف نه نصف صاع شوه) او د دویم حدیث مضمون دادې، ([1]) چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د شعیر او تمر یو صاع فرض کړې دې، او د حنطه نصف صاع.

**د ثعلبه بن ابی صُعیر په حدیث باندې بحث او نقد:**

د ثعلبه بن ابی صُعیر حدیث چه هغې لره امام ابوداؤد رحمه الله په متعدد طرقو سره ذکر کړې دې، او د احنافو دپاره دلیل دې، په هغې باندې بعضې محدثینو کلام کړې دې، چه په هغې کښې سندا و متنا اضطراب دې، ([2]) لیکن ددې حدیث ټولو طرقو لره علامه زیلعی په نصب الرایه کښې جمع کړې دی، او په هر یو ئې تفصیلی کلام کړې دې، او ددې بعضو طرقو لره ئې صحیح او قوی ګرزولې دی. الحاصل، د صاع حنطه څهٔ صریح او صحیح دلیل نشته، په خلاف د نصف صاع من بر، چه هغه د بعضو صحیح احادیث نه ثابت دې، فی الواقع اصل مدار د جمهورو په حدیث دابوسعید خدری رضي الله عنه صاع من طعام باندې دې، په

[1]) لیکن دې حدیث د ابن عباس رضي الله عنهما لره امام نسائي په درې طریقو سره ذکر کړې دې، په یو کښې نصف صاع حنطه دی، او په یو کښې صاع من حنطه دې، او په دریم طریق کښې صاع من طعام دې، امام نسائي دې لره أثبت ګرزولې دې، لیکن بیا مخکښې هغوی مستقل باب قائم کړې دې، او په هغې کښې ئې هم دا حدیث د ابن عباس ذکر کړې دې، چه په هغې کښې د نصف صاع من بر لفظ دې، او په دې ئې سکوت اختیار کړې دې، او امام ترمذی د صاع من بر باره کښې څهٔ صریح حدیث بیان کړې نه دې، سوا د صاع من طعام نه، (چه هغې لره بعضو شوافعو په حنطه باندې محمول کړې دې) او د نصف صاع په حدیث مرفوع کښې من حدیث عمروبن شعیب عن ابیه عن جده ذکرکړې دې، او دې ته ئې احسن ونیلې دی.)

[2]) ددې اضطراب تشریح او بیان څهٔ قدرې به په خپل محل کښې، کوم ځائې چه دا حدیث ذکر کیږي، هلته راشي.)

دې کښې شک نشته، چه دا حديث بالکل صحيح او متفق عليه دې، (اخرجه الشيخان) ليکن دا وئيل چه د طعام نه مراد حنطه ده، [1] ډيره کمزورې خبره ده، هرکله چه د صحيح بخارى په يو روايت کښې خپله ابوسعيد خدرى ﷺ اعتراف کوى، وکان طعامنا الشعير، والزبيب، والاقط والتمر.

## د حافظ ابن المنذر دې باره کښې رائې:

ابن المنذر دلته کښې دويمه طريقه اختياره کړې ده، هغه فرمائي چه د حنطه په باره کښې د نبى کريم ﷺ نه هيڅ يو حديث هم قابل اعتماد طريق سره ثابت نه دې او نه د نبى کريم ﷺ په زمانه کښې په مدينه منوره کښې حنطه موجوده وه، ليکن اقل قليل، بيا چه کله د صحابه کرامو په زمانه کښې حنطه کثرت سره شوه، نو هغوى په خپلې رائې او اجتهاد سره دهغې مقدار نصف صاع مقرر کړو، اوس د صحابه کرامو د قول نه د عدول کولو هيڅ گنجائش نشته، څکه چه هغوى زمونږ امامان او پيشوايان دى، په دې حافظ ابن حجر فرمائيلې دى: ليکن ابوسعيد خدرى ﷺ ته خو دې رائې سره اتفاق نه وو، لهذا اجماع کوم ځائي شوه. اهـ

زهٔ وايم، چه اجماع نه سهى، جمهور صحابه کرامو خو دې لره اختيار کړې وه، دويمه خبره داده، چه ابوسعيد ﷺ دا کوم ځائي فرمائيلې دى، چه د حنطه يو صاع ورکول پکار دى، هغوى خو دا فرمائي چه کوم اجناس او څيزونه چه مونږ د نبى کريم ﷺ په زمانه کښې په صدقة الفطر کښې ورکول، زهٔ به اوس هم هغه ورکوم، يعنى په صدقة الفطر کښې به حنطه نه ورکوم، نه داچه دهغې يو صاع به ورکوم، او که بالفرض هم دا مراد وى، چه د حنطه نه به هم يو صاع ورکوم، نو دا خو د خپل ذات په اعتبار سره فرمائي، نورو ته خو مسئله نه ښائي، وهذا ظاهر کما لا يخفى.

شوکانى فرمائي: که دا تسليم کړې شى، چه د طعام په مصداق کښې حنطه هم شامله ده، نو بيا هغه احاديث په کوم کښې چه د نصف صاع تصريح ده، د خپل مجموع طرق په اعتبار سره ددې قابل دى، چه دهغې په وجه په دې مسئله کښې د حنطه تخصيص اوکړې شى.

**تنبيه**: سنن ابوداؤد کښې د ابو سعيد خدرى ﷺ د يو حديث په طريق کښې صاع من حنطة او په بل طريق کښې نصف صاع من بر راغلې دې، امام ابوداؤد ﷺ دې دواړو لره وهم او غير محفوظ شمار کړې دى، او واقعى هم داسې ده، چه د ابوسعيد خدرى ﷺ د حديث په صحيح طريق کښې د حنطې تصريح نشته، نه د حنطې او نه دهغې د مقدار.

[۱۶۱۷] ([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا إِسْمَاعِيلُ، لَيْسَ فِيهِ ذِكْرُ الْحِنْطَةِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدْ ذَكَرَ مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ الثَّوْرِيِّ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عِيَاضٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، نِصْفَ صَاعٍ مِنْ بُرٍّ وَهُوَ وَهْمٌ مِنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ هِشَامٍ، أَوْ مِمَّنْ رَوَاهُ عَنْهُ.

---

[1] د بعضو علماؤ رائې داده، چه د طعام نه مراد ذره ده، يعنى جوار، څکه چه په هغه زمانه کښې عام خوراک هم دا وو، او بعضې وائي چه طعام د جنس درجه ده، چه مجمل دې، مخکښې په حديث کښې شعير، تمر، او زبيب وغيره دذغې مجمل دپاره بيان دې.

[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۴۲۶۹) (ضعيف)

مسدد په واسطه د اسماعیل سره په روایت کښې د غنمو ذکر نهٔ دې کړې - امام ابوداود رحمه الله فرمائي: چه معاویه بن هشام د ثوری نه مروی په دې حدیث کښې د ابو سعید نه د غنمو نیم صاع ذکر کړې دی مګر دا د معاویه بن هشام یا د هغوی نه د روایت کوونکو والا نه د یو کس وهم دې -

[۱۶۱۸] (¹) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، سَمِعَ عِيَاضًا، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: "لَا أُخْرِجُ أَبَدًا إِلَّا صَاعًا، إِنَّا كُنَّا نُخْرِجُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَاعَ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ أَوْ أَقِطٍ أَوْ زَبِيبٍ"، هَذَا حَدِيثُ يَحْيَى، زَادَ سُفْيَانُ: أَوْ صَاعًا مِنْ دَقِيقٍ، قَالَ حَامِدٌ: فَأَنْكَرُوا عَلَيْهِ فَتَرَكَهُ سُفْيَانُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: فَهَذِهِ الزِّيَادَةُ وَهْمٌ مِنَ ابْنِ عُيَيْنَةَ.

حضرت عیاض فرمائي چه ما د حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه نه واوریدل چه هغوی فرمائیل زهٔ خو همیشه یو صاع ورکووم - مونږ به د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د کجورو، اوربشو، د پنیر یا د اوڅکو نه هم یو صاع ورکولو - دا روایت د یحیی دې د سفیان په روایت کښې د [صاعا من دقيق] "یو صاع د اوړونه" ذکر هم دې - حامد وئیلي دی: چه علمائي حدیث ددې اضافې نه انکار اوکړو نو سفیان ددې بیانول پریخودل - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه دا اضافه د ابن عیینه وهم دې -

## بَابُ مَنْ رَوَى نِصْفَ صَاعٍ مِنْ قَمْحٍ

### باب: ۲۱ - د هغه حضراتو دلیل کوم چه د غنمو د یو صاع قائل دی

ترجمة الباب د احنافو موافق دې، په دې کښې مصنف دوه احادیث ذکر کړې دی، یو د ثعلبه بن ابی صعیر، او دویم د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما، په دې دواړو باندې کلام مخکښې تیر شوې دې، او دا هم چه بعضو محدثینو په دې حدیث باندې دا نقد کړې دې، چه ددې په سند او متن دواړو کښې اضطراب دې.

[۱۶۱۹] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْعَتَكِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ رَاشِدٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ مُسَدَّدٌ: عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، وَقَالَ سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، أَوْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي صُعَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "صَاعٌ مِنْ بُرٍّ أَوْ قَمْحٍ عَلَى كُلِّ اثْنَيْنِ صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ حُرٍّ أَوْ عَبْدٍ ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، أَمَّا غَنِيُّكُمْ فَيُزَكِّيهِ اللَّهُ، وَأَمَّا فَقِيرُكُمْ فَيَرُدُّ اللَّهُ تَعَالَى عَلَيْهِ أَكْثَرَ مِمَّا أَعْطَى"، زَادَ سُلَيْمَانُ فِي حَدِيثِهِ: "غَنِيٍّ أَوْ فَقِيرٍ".

حضرت عبد الله بن ثعلبه یا ثعلبه بن عبد الله بن ابی صعیر د خپل پلار نه روایت کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: د هر دوو افرادو غنم ورو، آزاد او غلام، سړی او د ښځې د طرف نه یو صاع غنم دی - چنانچه څوک چه په تاسو کښې غني دی نو الله تعالی به هغه له پاک کړی او کوم چه فقیر دی نو الله تعالی به دهٔ ته ددې نه زیاته ورکړی کوم چه هغه ورکړې

¹): تفرد أبو داود برواية سفيان بن عيينة، ورواية يحيي القطان صحيحة موافقة لرقم: ۱۶۱۶، (تحفة الأشراف: ۴۲۶۹) (حسن)

²): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۰۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۵/۴۳۲) (ضعيف)

دی۔" سلیمان په خپل رایت کښې دَ " غنی او فقیر " اضافه کړې ده ۔( داسې ئې وئیلی دی آزاد، غلام، دَ ښځې او سړی، دَ غنی او فقیر دَ طرف نه .......) ۔

**د صحابی(راوی حدیث) د نوم تحقیق :**

ددې اول حدیث د روای په نوم کښې د راویانو اختلاف دې، په اصل کښې ځوی د خپل پلار نه روایت کوی، لیکن د پلار نوم ئې څه دې، او د ځوی نوم څه دې؟ په دې کښې د راویانو اختلاف دې، بعضې راویان کوم نوم چه د ځوی ګڼړی، نو نور راویان هغه نوم د پلار ګڼړی، په کتب رجال کښې هم دغسې دا اختلاف منقول دې، بهر حال امام ابوداؤد رحمه الله چه په دې کښې کوم اختلاف ذکر کړې دې، دهغې مطابق ددې حدیث راوی، کوم طرف ته چه دا حدیث منسوب کولې شی، دهغې حاصل درې دی،(۱) ابوصُعیر(۲) ثعلبه بن ابی صُعیر(۳) عبدالله بن ابی صُعیر، او دې طرف ته علامه ذهبی په الکاشف کښې میلان کړې دې، هم دغسې په بذل المجهود کښې د دارقطنی نه نقل کړې دی، چه صحیح عبدالله بن ثعلبه بن ابی صعیر دې، بیا عبدالله دې لره د خپل پلار ثعلبه نه روایت کوی، لهذا راوئ حدیث علی الراجح ثعلبه بن ابی صعیر دې.

**په حدیث ثعلبه باندې نقد او دهغې جواب :**

د ثعلبه د حدیث نه نصف صاع ثابتیږی، په دې باندې شراح شافعیه دا اشکال کوی، چه په دې حدیث کښې سندا و متنا اضطراب دې، اول خو د صحابی په نوم کښې اختلاف دې، چه ثعلبه دې او که عبدالله بن ثعلبه، دویم داچه بعض دې لره مسندا او بعض مرسلا روایت کوی.

ددې جواب دا کیدې شی، چه د اول اختلاف تعلق صرف اسم سره دې، په مسمی کښې هیڅ اختلاف نشته، هغه خو متیقن دې، او د ارسال او اسناد اختلاف هم څه سخت اختلاف نه دې، حدیث مرسل هم د جمهورو په نزد حجت دې، او دلته کښې د سند ټول راویان ثقه دی، او په متن کښې اختلاف دادې، چه بعضو روایت کړې دې، صاع من قمح او اکثرو د نصف صاع من بر روایت کړې دې، بعضو د صاع من قمح عن کل انسان یا عن کل راس، او بعضو د صاع من بر بین اثنین، که بین اثنین صحیح دې، نو په هر یو نصف صاع واجب شو، او که صحیح عن کل راس او علی کل انسان دې، نو ظاهره ده، چه د هر یو د طرف نه پوره یو صاع شو، لیکن دا هم کتل پکار دی، چه مصنف په دې حدیث باندې څه باب تړلې دې؟ د نصف صاع ئې تړلې دې، ګویا د مصنف په نزد په دې حدیث کښې نصف صاع راجح دې، دویمه خبره دا ده، چه نصف صاع د بعضې نورو روایاتو نه هم ثابت دې، لکه په مسند احمد کښې دی، عن اسماء قالت کنا نؤدی زکوة الفطر علی عهد رسول الله(صلی الله علیه وسلم) مدین من قمح،(مسند احمد ۶ص۳۵۵) ددې نه علاوه نور هم بعضې روایات دی، چه هغې لره علامه عینی په شرح بخاری کښې ذکر کړې دی، او د هغې نه بعضې د دې کتاب په اول باب کښې هم تیر شوې دی.

او خطابی وغیره شراح شافعیه د دې حدیث نه یوه دویمه مسئله اختلافی باندې استدلال کړې دې، چه مخکښې تیره شوې ده، هغه داچه صدقة الفطر په غنی او فقیر دواړو باندې

واجبه ده، لکه چه د شافعیه وغیره مسلک دې، او دې حدیث لره هغوی په خپل تائید کښې پیش کوی، ددې مطلب دا دې، چه دا حدیث دهغوی په نزد هم قابل استدلال دې.

[١٦٢٠](١) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحَسَنِ الدَّرَابِجِرْدِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا بَكْرٌ هُوَ ابْنُ وَائِلٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَوْ قَالَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى النَّيْسَابُورِيُّ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ بَكْرٍ الْكُوفِيِّ، قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى: هُوَ بَكْرُ بْنُ وَائِلِ بْنِ دَاوُدَ، أَنَّ الزُّهْرِيَّ حَدَّثَهُمْ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ ثَعْلَبَةَ بْنِ صُعَيْرٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطِيبًا، فَأَمَرَ بِصَدَقَةِ الْفِطْرِ صَاعِ تَمْرٍ أَوْ صَاعِ شَعِيرٍ عَنْ كُلِّ رَأْسٍ"، زَادَ عَلِيٌّ فِي حَدِيثِهِ: أَوْ صَاعِ بُرٍّ أَوْ قَمْحٍ بَيْنَ اثْنَيْنِ، ثُمَّ اتَّفَقَا عَنِ الصَّغِيرِ وَالْكَبِيرِ وَالْحُرِّ وَالْعَبْدِ".

حضرت عبد الله بن ثعلبه بن ابی صعیر د خپل پلار نه روایت کوی چه رسول الله ﷺ د خطبې د پاره پاسیدلو نو هغوی د صدقۀ فطر حکم ارشاد اوفرمایۀ چه د هر فرد د طرف نه یو صاع کجورې یا یو صاع اوربشې دې ورکړې شی - دَ علی په روایت کښې دا اضافه ده چه یا د دوو افرادو د طرف نه دې یو صاع د غنمو ورکړې شی ....... ددې حصې نه ورستو روایت کښې (علی ابن حسین او محمد بن یحیی نیشاپوری) دواړه متفق دی چه د وړوکی، غټ، آزاد او دَ غلام دَ طرف نه دې ورکړې شی -

[١٦٢١](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: وَقَالَ ابْنُ شِهَابٍ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ ثَعْلَبَةَ: قَالَ ابْنُ صَالِحٍ: قَالَ الْعَدَوِيُّ قال أَبُو دَاوُدَ: قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: قَالَ الْعَدَوِيُّ: : خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ قَبْلَ الْفِطْرِ بِيَوْمَيْنِ، بِمَعْنَى حَدِيثِ الْمُقْرِءِ.

د ابن جریر نه روایت دې چه ابن شهاب (د حدیث د راوی نوم) عبد الله بن ثعلبه روایت کړې دې او احمد صالح دۀ ته العدوی وئیلې دی - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دا په حقیقت کښې العذری دې -( روایت دادې چه) رسول الله ﷺ دَ وړوکی اختر نه یوه ورځ مخکښې خلقو ته خطبه اوفرمایله : ....... او دَ (عبد الله بن یزید مکی المقرئ دَمذکوره بالا) روایت په مثل ئې بیان کړو -

[١٦٢٢](٣) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سَهْلُ بْنُ يُوسُفَ، قَالَ حُمَيْدٌ: أَخْبَرَنَا، عَنِ الْحَسَنِ، قَالَ: "خَطَبَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَحِمَهُ اللَّهُ فِي آخِرِ رَمَضَانَ عَلَى مِنْبَرِ الْبَصْرَةِ، فَقَالَ: أَخْرِجُوا صَدَقَةَ صَوْمِكُمْ، فَكَأَنَّ النَّاسَ لَمْ يَعْلَمُوا، فَقَالَ: مَنْ هَاهُنَا مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ قُومُوا إِلَى إِخْوَانِكُمْ فَعَلِّمُوهُمْ، فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ، فَرَضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذِهِ الصَّدَقَةَ صَاعًا مِنْ تَمْرٍ أَوْ شَعِيرٍ أَوْ نِصْفَ صَاعٍ مِنْ قَمْحٍ عَلَى كُلِّ حُرٍّ أَوْ مَمْلُوكٍ، ذَكَرٍ أَوْ أُنْثَى، صَغِيرٍ أَوْ كَبِيرٍ، فَلَمَّا قَدِمَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ رَأَى رُخْصَ السِّعْرِ، قَالَ: قَدْ أَوْسَعَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ، فَلَوْ جَعَلْتُمُوهُ صَاعًا مِنْ كُلِّ شَيْءٍ"، قَالَ حُمَيْدٌ: وَكَانَ الْحَسَنُ يَرَى صَدَقَةَ رَمَضَانَ عَلَى مَنْ صَامَ.

حضرت حسن بصری رحمه الله بیان کوی چه حضرت ابن عباس رضی الله عنهما د رمضان په اخر کښې په بصره کښې خلقو ته په منبر باندې خطبه اولوستله اووې فرمائیل دَ خپلو روژو صدقه ادا

١): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف: ٢٠٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٤٣٢)(صحيح)
٢): انظر ما قبله، ( تحفة الأشراف: ٢٠٧٣)(صحيح)
٣): سنن النسائي /الزكاة ٣٦ (٢٥١٠)، ( تحفة الأشراف: ٥٣٩٤)(ضعيف)

کړئ - نو ګویا چه خلقو ته دَ هغوی خبره په پوهه کښې رانغله، نو هغوی اوفرمائیل : دَ اهل مدینې والونه دلته کښې څوک دی؟ اودریږه او خپلو رونړو لره پوهه کړه، دوی نۀ پوهیږی چه رسول الله ﷺ دې صدقهٔ فطر( سرسایې) لره فرض کړې ده چه دَ هر آزاد، غلام سړی، ښځې، دَ وړوکی او دَ غټې دَ طرف نه دې دَ کجورو یا دَ اورشبو نه یو صاع ورکړې شی، یا دَ غنمو یو نیم صاع ... او کله چه حضرت علی رضی الله عنه تشریف راوړو نو هغوی رضی الله عنه ارزانی اولیدله، نو وې فرمائیل : الله تعالیٰ په تاسو باندې وسعت فرمائیلې دې لهذا کۀ چرې تاسو دَ هر یو څیز نه یو یو صاع ادا کوئ( نو بهتره او افضله به وی -) حمید وائی چه حضرت حسن رحمه الله به سرسایه په هغه چا باندې لازمه ګنړله چا چه روژې نیولې وی -

**تشریح: قوله:** قال خطب ابن عباس فی آخر رمضان علی المنبر بصرة.......... فلما قدم علی رای رخص السعر قال قد اوسع الله علیکم فلو جعلتموه صاعا من کل شیء.

**شرح حدیث :**

حضرت ابن عباس رضی الله عنه د حضرت علی رضی الله عنه د طرف نه د بصرې والی او ګورنر وو، نو هغوی د بصرې په منبر باندې د رمضان په آخری تاریخونو کښې یوه خطبه ورکړه، په هغې کښې د صدقة الفطر ادا کولو ترغیب وو، او دهغې د مقدار بیان هم وو، تمر او شعیر یو صاع، او حنطه نصف صاع، ددې نه پس په روایت کښې دادی، چه کله حضرت علی رضی الله عنه( بظاهر د خپلې دارالخلافې کوفې نه) بصرې ته تشریف راؤړلو، او هلته کښې ئې د غنمو په نرخ کښې ارزانی اولیدله، نو هغوی اوفرمائیل : چه هرکله الله تعالی د غنمو ډیر والې فرمائیلې دې، نو که تاسو هم د نصف صاع په ځائې یو صاع ورکړئ، نو ډیره به ښه وی،

وکان الحسن یری صدقة رمضان علی من صام یعنی حسن بصری رحمه الله صرف په هغه سړی باندې د صدقة الفطر د وجوب قائل وو، چاچه د رمضان روژې نیولې وی، په بذل کښې حضرت لیکلې دی : یعنی دهغوی مذهب دا وو، چه صدقة الفطر په ماشومانو باندې واجبه نه ده، ولکن لم نقف علی دلیله، ۱هـ

زۀ وایم چه مخکښې د صدقة الفطر په شروع کښې د طهرة للصائم په شرح کښې تیر شوې دی، چه ددې نه حسن بصری او سعید بن المسیب دا استدلال کړې دې، چه صدقة الفطر صرف په من صام باندې ده، په من لم یصم باندې نشته.

**تکمله :**

الحمد لله د صدقة الفطر په مسائلو او احادیثو باندې کلام پوره شو، لیکن اوس یوه مسئله باقی ده، هغه داچه بعضو تیر شوؤ احادیثو کښې صاع من اقط هم تیر شوې دې، تشریح طلب څیز دادې، چه فقهاء او ائمه دې باره کښې څه فرمائي، نو په مذهب حنفی کښې خو دا تصریح ده، چه په اقط کښې د قیمت لحاظ دې، د نورو منصوصی څیزونو د قیمت برابر به ورکولې شی، مثلا د یو صاع شعیر د قیمت برابر به ورکولې شی، احناف دا

فرمائي چه کوم څیزونه غیر منصوصی دی. (۱) یاپه بااعتماد طریق سره ثابت نه دی، په هغې کښې به د قیمت اعتبار وی، د نورو امامانو د طرف نه د اقط باره کښې روایات مختلف دی، د امام مالک رحمه الله مسلک دادې، چه په صدقة الفطر کښې به هغه څیز ورکولې شی، چه غالب قوت بلد وی، (۲) نو که په اقط باندې دا خبره په یو مقام یا ښهر کښې صادق راځی، چه دهغې ځائې د اوسیدونکو هم دا اقط زیات تر خوراک وی، نو ددې به یو صاع ورکول جائز وی، ګنی نه، او د امام شافعی رحمه الله نه په دې کښې دوه روایتونه دی، د جواز او د عدم جواز، او دریم قول دهغوی دادې، چه د اهل بادیه (باندیسی) دپاره صاع اقط ورکول جائز دی، او اهل حاضره (ښهر والو) دپاره جائز نه دی، او د امام احمد رحمه الله مسلک حافظ ابن حجر دالیکلې دې، یجوز اعطاء الاقط عنده ان لم یجد غیره،

او ابن قدامه حنبلی دا لیکلې دی، چه د غیر واجد (۳) د دپاره خو دهغې ورکول جائز دی، او په واجد الغیر کښې هغه لیکلې دی، چه زمونږ د طرف نه دوه روایتونه دی، یو د جواز او بل د عدم جواز.

دلته کښې یوه مسئله اختلافی بله ده، چه هغې طرف ته امام مالک رحمه الله په مؤطا کښې اشاره کړې ده، قال مالک تجب زکوة الفطر علی اهل البادیة کما تجب علی اهل القری، یعنی صدقة الفطر څرنګه چه په ښهر والو باندې واجبه ده، دغه شان په باندو والو باندې هم واجبه ده، په اوجز ۲ ص ۲۸۱ کښې لیکلې دی، چه د جمهورو مسلک هم دادې، او لیث بن سعد، زهری او ربیعة دا فرمائي چه صدقة الفطر په اهل بادیه باندې واجبه نه ده، صرف په اهل قری باندې واجبه ده.

## بَابٌ فِي تَعْجِيلِ الزَّكَاةِ

### باب: ۲۲- زکات لره په تیزئ سره ورکول

[۱۶۲۳] (٤) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ، عَنْ وَرْقَاءَ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنِ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: بَعَثَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ عَلَى الصَّدَقَةِ، فَمَنَعَ ابْنُ جَمِيلٍ وَخَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ وَالْعَبَّاسُ، فَقَالَ

---

(۱) لیکن په دې کښې ماته دا اشکال دې، چه د اقط ذکر په روایاتو کښې په کثرت سره موجود دې، حتی چه د صحیحینو په روایت کښې هم موجود دې، ددې جواب شاید دا کیدې شی، چه هرکله دا خبره ده چه د اقط باره کښې د نورو امامانو هم اختلاف دې، او دهغوی نه په دې کښې روایات مختلف دی، ددې نه معلومیږی چه څه خبره ضرور شته، دغه شان امام بخاری رحمه الله سره ددې نه چه احادیث الاقط نې ذکر کړې دې، خو مستقل باب نې په دې باندې ترلې نه دې، حالانکه هغوی په نورو ټولو څیزونو باندې مستقل تبویب کړې دې، مولانا انور شاه فرمائي: چه زما تجربه داده، چه حضرت امام بخاری رحمه الله ته کله د یو حدیث په یو جزء کښې تردد وی، نو هلته کښې هغوی داسې کوی، چه حدیث خو ذکر کوی، لیکن په هغې جزء باندې مستقل ترجمه نه قائموی. والله اعلم)

(۲) ففي کتبهم صاع من اغلب قوت البلد)

(۳) یعنی د چا سره چه د اقط نه علاوه بل څیز د ورکولو دپاره نه وی، او واجد الغیر چه هغه سره د اقط نه علاوه بل څیز هم د ورکولو دپاره وی.)

(٤) ): صحیح مسلم/الزکاة ۳(۹۸۳)،( تحفة الأشراف :۱۳۹۲۲)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الزکاة ٤۹(۱٤٦۸)، سنن النسائي/الزکاة ۱۵(۲٤٦۳)، مسند احمد(۳۲۲/۲)(صحیح)

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا يَنْقِمُ ابْنُ جَمِيلٍ إِلَّا أَنْ كَانَ فَقِيرًا فَأَغْنَاهُ اللّٰهُ، وَأَمَّا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ فَإِنَّكُمْ تَظْلِمُونَ خَالِدًا فَقَدِ احْتَبَسَ أَدْرَاعَهُ وَأَعْتُدَهُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ، وَأَمَّا الْعَبَّاسُ عَمُّ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهِيَ عَلَيَّ وَمِثْلُهَا"، ثُمَّ قَالَ: "أَمَا شَعَرْتَ أَنَّ عَمَّ الرَّجُلِ صِنْوُ الْأَبِ أَوْ صِنْوُ أَبِيهِ".

سیدنا ابوهریره رضی الله عنه بیان کوی چه نبی کریم ﷺ حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه دَ صدقاتو دَ وصولولو دَ پاره اولیږلو نو ابن جمیل، خالد بن ولید او عباس زکات ورنهٔ کړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ابن جمیل خو ددې خبرې بدله اخلی چه هغه فقیر وو نو الله تعالیٰ هغه لره غنی کړو، پاتې شو خالد بن ولید، نو تاسو په هغه باندې ظلم کوئ - هغه خو خپلې زغرې او نور سامان دَ الله عز وجل په لاره کښې ورکړې دی - او پاتې شو عباس، نو هغه دَ رسول الله ﷺ ترهٔ دې، دَ هغوی زکات په ما باندې دې بلکې دومره قدرې نور هم - بیائې اوفرمائیل: آیا تاسو ته معلومه نهٔ ده چه دَ انسان ترهٔ ددهٔ دَ پلار مثل وی -"

**تشریح: قوله:** قال بعث النبی(صلی الله علیه وسلم) عمربن الخطاب علی الصدقة فمنع ابن جمیل و خالد بن الولید و العباس فقال رسول الله ﷺ ما ینقم ابن جمیل الا ان کان فقیرا فاغناه الله.

## شرح حدیث:

رسول الله ﷺ حضرت عمر رضی الله عنه لره عامل علی الصدقة جوړ کړو او وی لیږلو، دې دپاره چه د خلقو نه زکوة وصول کړی، نو هغوی هغه خدمت ترسره کړو، او واپس راغلو، او د دریو سړو باره کښې ئې نبی کریم ﷺ ته شکایت اوکړو، یو ابن جمیل، دویم حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه، او دریم حضرت عباس رضی الله عنه، چه دوی د زکوة ورکولو نه انکار اوکړو. د ابن جمیل نوم معلوم نه دې، اصح قول دادې، هم ددې وجې نه حافظ ذهبی رحمه الله دهٔ لره د فیمن عرف بابیه و لم یسم د لاندې ذکر کړې دې، وقیل اسمه عبدالله و قیل حمید، نبی کریم ﷺ د دریو وارو باره کښې خپله رائې ښکاره کړه، ما ینقم ابن جمیل الخ د ابن جمیل باره کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه هغه ته د زکوة ادا کولو نه هیڅ څیز مانع نشی کیدې، (بل هیڅ عذر هغه سره نشته) سوا ددې نه چه هغه په شروع کښې فقیر وو، بیا الله تعالی په خپل فضل سره هغه غنی جوړ کړو، او ظاهره ده، چه د الله تعالی هغه لره غنی جوړول د منع زکوة سبب او عذر هیچرې نشی کیدې، پس خلاصه دا شوه، چه هیڅ یو سبب او عذر هغه سره د منع د زکوة دپاره نشته.

فصحاء عرب بعضو وختونو کښې د یو څیز نفی د مبالغې په طور باندې کوی، چه په ځائې دهغې څیز د نفی کولو، داسې یو څیز راولی او ثابت کړی، چه په هغې کښې دهغې محل صلاحیت بالکل نه وی، پس که داسې کول په مقام د مدح کښې وی، نو د علم بیان په اصطلاح کښې ددې نه په تاکید المدح بما یشبه الذم سره تعبیر کولې شی، او که مقام د مذمت وی، نو دې ته تاکید المدح بما یشبه الذم وئیلې شی، د اول مثال:

ولا عیب فیهم غیر ان سیوفهم . بهن فلول من قراع الکتائب

او د دویم مثال دا حدیث[1] پیش کیدې شی، (قسطلانی شرح بخاری)
زۀ وایم، او هم ددې قبیلې نه دې د الله تعالی دا قول: الم تر الی الذی حاج ابراهیم فی ربه ان آتاه الله الملک.
بعضې شارحینو لیکلې دی، چه دا ابن جمیل منافق سړې وو، روستو بیا تائب شوې وو، ددې آیت د نزول نه پس، وما نقموا الا ان اغناهم الله و رسوله من فضله فان یتوبوا یک خیر الهم، وئیل به ئې : استتابنی ربی فتاب فصلحت حاله.

**قوله**: و اما خالد بن الولید فانکم تظلمون خالدا فقد احتبس ادراعه ([2]) و اعتده فی سبیل الله عزوجل. د خالد بن ولید ﷛ باره کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : چه هغه خپل جنګی سامان ټول په ټوله، زغرې، او نورې وسلې او څاروی، (چه د تجارت دپاره وو) هغې لره د کال پوره کیدو نه مخکښې) وقف فی سبیل الله کړې دی، یعنی بیا په هغه باندې زکوة څرنګه واجب شو؟ لهذا ستا دهغه نه د زکوة مطالبه کول په هغه باندې ظلم دې، او دویم مطلب ددې جملې دادې، چه د خالد د سخاوت چه دا حال دې، (کوم چه ذکر شو) نو هغه د زکوة واجبه ورکولو نه څرنګ انکار کولې شی، بلکه تۀ خطاء شوي يې، (د خالد په څه خبره باندې)، دریم مطلب ئې دا لیکلې دې، چه د نبی کریم ﷺ مراد دادې، چه خالد کوم سامان د جهاد دپاره وقف کړې دې، هم هغې لره د هغه په زکوة واجبه کښې حساب کړه، ځکه چه فی سبیل الله یعنی جهاد، دا په خپله په مصارف زکوة کښې دې (نو داسې اوګنړه چه هغه خپل زکوة په خپله ادا کړې دې)

**قوله**: و اما العباس عم رسول الله(صلی الله علیه وسلم) فهی علی و مثلها قال اما شعرت ان عم الرجل صنو ابیه ([3]) .

د حدیث ددې قطعې په شرح کښې دوه اقوال دی، یو داچه نبی کریم ﷺ د خپل څه ضرورت یا د بیت المال د ضرورت دپاره د حضرت عباس ﷛ نه د دواؤ کالو زکوة پیشګی د وخت نه مخکښې اخستلې وو، ددې وجې نه نبی کریم ﷺ فرمائي چه د عباس ﷛ د دواؤ کالو زکوة زما په ذمه دې، زۀ به دا ادا کوم، په بعضو روایاتو کښې ددې تصریح هم ده، انا کنا احتجنا فتعجلنا من العباس صدقة ماله سنتین(دارقطنی) او خپله په دې کتاب کښې په بل روایت کښې راروان دی، چه حضرت عباس ﷛ د نبی کریم ﷺ نه د تعجیل زکوة باره کښې تپوس

---

[1] ) عام طور سره شارحینو دې حدیث ته هم تاکید المدح بما یشبه الذم وئیلې دی، لیکن علامه قسطلانی هغه تفصیل لیکلې دې، کوم چه مونږ بره ذکر کړو، فجزاه الله خیرا، هم دغه شان زمونږ استاذ محترم الادیب الاریب حضرت مولانا اسعدالله صاحب نور الله مرقده به هم په درس کښې فرمائیل، چه دا تاکید المدح بما یشبه الذم دې فتشکر.

[2] ) ادراع د درع جمع ده، د اوسپنې زغره، او اعتد د عتد(بفتحتین) جمع ده، هغه سامان چه د جهاد دپاره تیارولې شی، من الدواب والسلاح وقیل الخیل خاصة او د مسلم په روایت کښې اعتاده دې، هغه هم د عتد جمع ده)

[3] ) صنو بمعنې مثل په اصل کښې صنو د کهجور هغې اونې ته وئیلې شی، چه د بلې اونې د جرړې نه راؤخی، دې دواړو ته صنوان وئیلې شی، او هر یو ته صنو)

کړې وو، نبی کریمﷺ هغه ته اجازت ورکړې وو، دا مطلب د مصنف د ترجمة الباب سره مناسب هم دې، او دویم مطلب ددې حدیث دا لیکلې دې، چه عباسؓ زما تره محترم دې، دهغه په ما باندې حقوق دی، لهذا زهٔ دهغه زکوة په خپله ذمه اخلم، ددې مطلب تائید ددې جملې نه کیږی، اما شعرت ان عم الرجل صنو ابیه، یا مطلب دادې، چه دهغه نه ددې کال او آئنده کال زکوة ما په خپله وصول کړې دې، بیا اوس دوباره هغه زکوة څرنګه ورکړی؟ لیکن د علی لفظ ددې مطلب سره په ظاهر کښې منافی دې.

**فائده** : د سنن ابوداؤد او صحیح مسلم په روایت کښې خو داسې دی، فهی علی و مثلها، او د صحیح بخاری او سنن نسائي د روایت الفاظ دا دی، فهی علیه صدقة و مثلها معها، دا لفظ نور هم قابل اشکال دې، چه د عباسؓ زکوة په عباسؓ باندې صدقه کړئ، بعضې شارحینو وئیلې دی، چه او! داسې کیدې شی، او دا قصه د تحریم الصدقة علی بنی هاشم نه مخکښې ده، (لیکن دا جواب کافی نه دې، ځکه چه دا خو کیدې شی، چه په شروع کښې په بنو هاشم صدقه حرامه نه وه، لیکن د سړی زکوة په خپله په هغه صدقه کړې شی، دا څرنګه کیدې شی؟ په زکوة کښې خو اخراج المال عن ملکه وی) دویم مطلب (ددې بخاری والا روایت) ئې دا لیکلې دې، چه نبی کریمﷺ اوفرمائیل : چه عباس زما عم محترم دې، مشر سړې دې، دهغه نه ناامیده کیږه مه، پس دا صدقه په هغه باندې ثابته او واجبه ده، او په دې باندې بس نه دې، بلکه دهغې سره نور هم دهغې پشان (چه ورکړی) دهغه د شان سره دا مناسب دی.

او بعضې شارحینو د بخاری د روایت توجیه کړې ده، چه د اصل روایت لفظ خو علی دې، او په علیه کښې یاء مشدده ده، چه یاء د متکلم ده، او په آخر کښې هاء سکته ده، علیه، په دې صورت کښې به دواړه صورتونه یو شی، او د بخاری د روایت مفهوم به هم هغه شی، کوم چه د ابوداؤد د روایت دې.

ددې حدیث نه علماؤ ډیر مسائل او فوائد مستنبط کړې دی، دهغې تولو نه یوه مسئله د وقف منقول ده، چه اختلافی ده،[1]

## په تعجیل زکوة کښې مذاهب ائمة :

او د تعجیل زکوة مسئله څرنګه چه مصنف ثابته کړې ده، دا هم اختلافی ده،د ائمه ثلاثه، احناف، شافعیه او حنابله په نزد د ملک نصاب نه پس حولان حول نه مخکښې اخراج زکوة جائز دې، د حسن بصری، سفیان ثوری او داؤد ظاهری په نزد تعجیل جائز نه دې، دا حضرات فرمائي چه د زکوة یو وخت متعین دې، څرنګ چه د مانځه وخت متعین دې، قبل الوقت جائز نه دې، هم دا مذهب د امام مالکؒ دې، لیکن په یو روایت کښې هغه فرمائي چه تقدیم یسیر جائز دې، بیا د یسیر په مصداق کښې دهغه د طرف نه څو اقواله منقول دی، د یوې میاشتې، د نیمې میاشتې، پنځه ورځې، او درې ورځې، کذا قال العینی

[1] ددې دپاره د فقهې کتابونه ته رجوع اوکړئ، دلته کښې بیانول مقصود نه دی، بلکه صرف اشاره مقصود ده)

۹ص۴۷) او په حاشيه د کوکب ص۲۴۵ کښې ئې د حنابله مسلک دا ميکلې دې، چه دهغوی په نزد صرف د دواؤ کالو تقديم جائز دې، والحديث اخرجه ايضا احمد والبخاری ومسلم والنسائي والدارقطنی( منهل) تم الکلام (۱) علی حديث الباب و مسئلته فلله الحمد والمنة.

[۱۶۲۴](۲) حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ دِينَارٍ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ حُجَيَّةَ، عَنْ عَلِيٍّ، أَنَّ الْعَبَّاسَ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي تَعْجِيلِ صَدَقَتِهِ قَبْلَ أَنْ تَحِلَّ، فَرَخَّصَ لَهُ فِي ذَلِكَ"، قَالَ مَرَّةً: "فَأَذِنَ لَهُ فِي ذَلِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ هُشَيْمٌ، عَنْ مَنْصُورِ بْنِ زَاذَانَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَحَدِيثُ هُشَيْمٍ أَصَحُّ.

حضرت عباس رضی الله عنه د نبی کريم ﷺ نه پوښتنه اوکړه چه ايا صدقه(زکات) د لازم کيدو نه وړاندې ادا کيدې شي؟ نو حضور ﷺ هغه ته ددې رخصت ورکړو-( راوی) يو ځل داسې روايت اوکړو : [ فاذن له فی ذالک ] -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې حديث لره هشيم د منصور بن زاذان نه، هغوی د حکم نه، هغوی د حسن بن مسلم نه، هغوی د رسول الله ﷺ نه روايت کړې دې ... او د هشيم روايت زيات صحيح دې -

## بَابٌ فِي الزَّكَاةِ هَلْ تُحْمَلُ مِنْ بَلَدٍ إِلَى بَلَدٍ

### باب: ۲۲-ايا د يو ښارې زکات بل ښار ته منتقل کيدې شي؟

په دې مسئله کښې کلام مخکښې په باب زکوة السائمة حديث نمبر ۱۴ توخذ من اغنيائهم و ترد فی فقرائهم، دلاندې تير شوې دې.

[۱۶۲۵](۳) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبِي، أَخْبَرَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عَطَاءٍ مَوْلَى عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ زِيَادًا أَوْ بَعْضَ الْأُمَرَاءِ بَعَثَ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ عَلَى الصَّدَقَةِ، فَلَمَّا رَجَعَ، قَالَ لِعِمْرَانَ: أَيْنَ الْمَالُ؟ قَالَ: وَلِلْمَالِ أَرْسَلْتَنِي أَخَذْنَاهَا مِنْ حَيْثُ كُنَّا نَأْخُذُهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوَضَعْنَاهَا حَيْثُ كُنَّا نَضَعُهَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د ابراهيم بن عطاء د پلار نه روايت دې چه زياد يا کوم بل امير حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه لره د صدقاتو( زکات) د وصولولو د پاره مقرر کړو - کله چه هغه واپس راغې نو امير د حضرت عمران رضی الله عنه نه پوښتنه اوکړه : مال کوم ځائې دې؟ هغوی جواب ورکړو : چه تاسو مالره د مال( د جمع کولو) دپاره ليږلې وو مونږ زکات وصول کړو د کوم ځائې نه چه به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې اخستلې شو، او هم په هغه ځائې کښې مو اولګولو په کوم ځائې کښې چې به د رسول الله ﷺ په دور کښې لږيدلو -( يعنی د علاقې د مالدارو نه مو واخستو او هم د هغه ځائې په فقراؤ او مساکينو باندې مو تقسيم کړو-)

---

(۱) ددې حديث شرح مونږ د شروح بخاری فتح الباری، عينی، او قسطلانی په رڼا کښې کړې ده،

(۲): سنن الترمذي/الزكاة ۳۷(۶۷۸)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۷(۱۷۹۵)،( تحفة الأشراف :۱۰۰۶۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۰۴/۱)، سنن الدارمي/الزكاة ۱۲(۱۶۷۶)(حسن)

(۳): سنن ابن ماجه/الزكاة ۱۴(۱۸۱۱)،( تحفة الأشراف :۱۰۸۳٤)(صحيح)

## بَابُ مَنْ يُعْطَى مِنَ الصَّدَقَةِ وَحَدِّ الْغِنَى

**باب: ۲۴- صدقه څوک ورکړې شي؟ او دَ غنی کيدو حد څۀ دې؟**

ترجمة الباب کښې وحد الغنی ددې وجې نه زيات کړې شو، چه من يعطى من الصدقة هغه سړې کيدې شي، چه غنی نه وی، لهذا اوس ضرورت ددې خبرې دې، چه معلومه کړې شی، چه حد د غنٰی څه دې؟

**د حد دغنیٰ په باره کښې اختلاف روايات :**

دا خبره زده کول پکار دی، چه د حد غنی باره کښې روايات حديثيه هم مختلف دی، او مذاهب ائمه هم، اول اختلاف روايات واورئ، د باب په اول حديث کښې چه د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه مرفوعا روايت دې، دهغې مقدار خمسون درهما يا ددې برابر سرۀ زر مذکور دی، او په دويم حديث کښې چه دهغې راوی ابوسعيد خدری رضی الله عنه دې، دهغې مقدار يو اوقيه يعنی اربعين درهما مذکور دې، او دهغې نه پس د باب په دريم حديث کښې چه د سهل بن الحنظليه نه روايت دې، دهغې مقدار قدر ما يعديه و يعشيه مذکور دې، يعنی شبع يوم و ليلة،(د سحر ماښام خوراک)

د رواياتو دې تعارض لره بعضو عالمانو داسې ختم کړې دې، چه دا اختلاف د اشخاصو او احوالو په اعتبار سره دې، اصل څيز په دې کښې قدر کفاية دې، اوس د بعض الناس په حق کښې قدر کفاية پنځوس درهمه دې، او د بعضو په حق کښې څلويښت درهمه دې، او بعضې شارحينو توجيه داسې کړې ده، چه په دې احاديثو کښې د نبی کريم ﷺ مخاطب هغه حضرات وو، چه په هغې کښې د اکثرو پيشه تجارت وه، نو نبی کريم ﷺ د تجارت په راس المال کښې تخمينا يو مقدار يعنی څلويښت يا پنځوس درهمه متعين کړل، او د دريم روايت يعنی قدر ما يغديه و يعشيه توجيه دا کړې شوې ده، چه ددې نه مراد صرف د يوې ورځې شپې روزې مراد نه ده، بلکه روزانه د سحر او ماښام خوراک، او دهغې مستقل نظم مراد دې، هغه چه څرنګه هم وی، که په دستکارئ سره وی، ياتجارت او زراعت وغيره سره،غرض داچه مقصود دټولو احاديثونه دمقدار کفايت حاصلول دی.

او بعضو عالمانو دې احاديثو کښې تطبيق داسې ورکړې دې، چه بعضو لره ئې د بعضو دپاره ناسخ منلې دې، نو حديث الاوقيه ئې ناسخ منلې دې، د مايغديه و يعشيه دپاره، او خپله د حديث الاوقيه دپاره ئې خمسون درهما والا حديث ناسخ منلې دې، او بعضو عالمانو فرمائيلې دی، چه د نسخې ترتيب داسې نه دې، بلکه ددې برعکس دې، د کثرت نه قلت طرف ته راغلې دې، پس خمسون درهما دپاره ناسخ اربعون درهما دې، او د اربعون دپاره غداء و عشاء والا روايت ناسخ دې.

والله سبحانه و تعالى اعلم، دا خو اختلاف روايات او جمع بين الروايات باندې خبره شوه.

**د حدغنیٰ په باره کښې د ائمۀ مذاهب تحقيق :**

د حد غنی په باره کښې اختلاف مذاهب هم واورئ! په دې کښې درې مذاهب دی،(۱) د

سفیان ثوری، ابن المبارک او اسحاق بن راهویه په نزد خمسون درهما(۲) دابوعبید قاسم بن سلام په نزد اربعون درهما، او د ائمه اربعه مذاهب داسې دی.
د امام احمد رحمه الله په نزد علی الدوام د مقدار کفایه حصول، یعنی بقدر کفایه مستقل معاش او د روزئ حصول، که هغه د نقد مال په ذریعې سره وی، یا په طریقه د کسب وی، لهذا داسې سړی غنی دې، نه دهغه دپاره سوال جائز دې، او نه اخذ زکوة(بدون السوال) که هغه صاحب نصاب وی او که نه، والروایة الثانیة عنه وجود خمسین درهما او قیمتها من اللذهب، او د شافعیه مسلک دادې، چه د هرې ورځې آمدنی او ګټه په قدر د کفایت حاصلیدل،(د هغې مداره علی الکسب) یا د باقې پاتې عمر غالب د کفایت حصول(دهغې مداره علی النقد) ددې تشریح مخکښې راروانه ده، او د مالکیه مسلک دادې، چه د قوت عام ([1]) یعنی دپوره کال روزی حاصلیدل، یعنی چه دهغه او دهغه د اهل عیال دپاره کافی وی،(دا آخری قید خو په ټولو مذاهبو کښې معتبر دې) ددې تفصیل نه معلومه شوه، چه د جمهورو په نزد د غنی څه خاص مقدار متعین نه دې، بلکه ددې مدار په کفایت او عدم کفایت باندې دې، او ظاهره ده، چه قدر کفایت په ټولو کښې برابر نه دې، د خلقو د حال مطابق دې، ځکه چه بعض کثیر العیال دی، نو بعض قلیل العیال یا عدیم العیال دی، دغه شان بعض خلق قوی مکتسب(قادر علی الکسب) دی، او بعض ضعیف یعنی غیر قادر علی الکسب دی، لیکن که یو سړی ته باوجود د صاحب نصاب کیدلو نه ټول کفایت حاصل نه وی، نو هغه عند الجمهور زکوة اخستلې شی، اخذ زکوة د هغه دپاره جائز دې، مثلا یو سړی د څلویښتو بزو مالک دې، لیکن دهغې آمدنې دهغه دپاره کافی نه ده، نو هغه زکوة اخستلې شی، اګر چه په خپله په هغه باندې هم زکوة واجب دې.(۴) د احنافو په نزد د غنی حد متعین دې، یعنی چه د نصاب نامی مالک کیدل، لهذا کوم سړې چه صاحب نصاب وی، هغه د احنافو په نزد غنی دې، که هغه ته ما تحصل به الکفایة علی الدوام حاصل وی، او که نه، او کوم سړې چه صاحب نصاب نه دې، هغه غیر غنی دې، دهغه دپاره اخذ زکوة جائز دې، اګر که هغه ته ما تحصل به الکفایة حاصل وی.

ددې ټولو نه معلومه شوه، چه د جمهورو په نزد د غنی دوه قسمونه ځان ځانله دی، اول هغه غنی چه موجب زکوة دې، هغه خو دادې، چه سړې صاحب نصاب وی، او دویم قسم الغنی المانع عن اخذ الزکوة دې، یعنی د قدر کفایت حاصلیدل، او د احنافو په نزد وجوب زکوة او منع عن اخذ الزکوة د دواړو تعلق د نصاب سره دې، ([2]) او دا هم زده کول پکار دی، چه د

---

[1] ) د کفایت باره کښې خو شوافعو د باقی پاتې عمر غالب اعتبار کړې دې،(کما سیاتي) او امام مالک رحمه الله د یو کال د کفایت اعتبار کړې دې، او په کتب حنابله کښې د بعضو نه هم دا د یو کال اعتبار معلومیږی، او بعضو علی الدوام، په ظاهر کښې په دې دواړو کښې فرق صرف لفظی دې، ځکه چه کله هر کال د یو کال د کفایت اعتبار کوی، نو هغه به علي الدوام خامخا وی، والله تعالي اعلم)

[2] ) اصل او بنیادی اختلاف خو د احنافو او د جمهورو د مسلک په مینځ کښې هم دادې، دې لره په ښه طریقې سره ذهن کښې ساتل پکار دی، ددې سره سره دا هم په ذهن کښې اوساتئ،........

امام احمد یو روایت خو هغه دې، کوم چه بره ذکر شو، او دهغوی دویم روایت کښې (وهو اظهر الروایتین کما قال الموفق) د ثمن اوغیر ثمن فرق دې، هغه داچه مانع عن الاخذ یا خو ما تحصل به الکفایة دې، او یا خمسون درهما او قیمتها من الذهب، که چاسره پنځوس درهمه یا دهغې دقیمت برابر ذهب دی، نوبیا هم هغه مانع عن الاخذ دې.

## د شافعیه مسلک تفصیل او توضیح:

لکه څرنګه چه دهغوی په کتابونو کښې ذکر دی، چه کوم سړې تجارت او کسب نشي کولې، د عدم قدرت او ضعف د وجې نه، یا دهغې سره لائق اسبابو دشتوالي د وجې نه، بلکه د هغه ګذاره په موجوده مال باندې وی، نو دهغه حکم دادې، چه که هغه مال دهغه باقي پاتې عمر غالب پورې کافي وو، [۱] نو بیا خو هغه سړې غنی دې، دهغه دپاره اخذ زکوة جائز نه دې، او که هغه مال دومره نه دې، نو بیا هغه سړې غني نه دې، دهغه دپاره اخذ زکوة جائز دې، او عمر غالب هغوی اثنین و ستین یعنی دوه شپیتهٔ کاله مقرر کړې دې، او د تجارت او کسب په صورت کښې دهغوی په نزد د هرې ورځې د آمدنئ او ګټې اعتبار دې، که هغه آمدنی دهغه دپاره کافي کیدې شی، نو بیا خو غنی دې، ګنې غنی نه دې. (روضة المحتاجین ص۲۸۸)

## تکمیل:

د احنافو او جمهور علماؤ په مینځ کښې چه د حد غنی باره کښې کوم اختلاف دې، هغه په اصل کښې مبنی دې په یو بل اختلاف باندې، چه هغې لره تکمیلا للبحث لیکلې شی، څکه چه مشهوره ده، تتبین الاشیاء باضدادها.

## د فقیر او مسکین په تعریف کښې د امامانو اختلاف:

هغه داچه فقیر او مسکین چه دهغوی مصرف زکوة کیدل منصوص من الله تعالی دی، دهغوی په تعریف او مصداق کښې اختلاف دې، هغه اختلاف دادې، چه فقیر د امام شافعي رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد هغه سړې دې، چه هغه سره نقد مال یا د کسب آمدنی بالکل نه وی، یا که وی نو د نصف کفایت نه کم وی، مثلا د یو سړې مقدار کفایت خو هره ورځ لس درهمه وی، لیکن آمدنی او ګټه دهغه صرف څلور درهمه وی. او مسکین د دې دواړو امامانو په نزد هغه دې، چه هغه ته تول کفایت خو حاصل نه وی، لیکن نصف کفایت یا ددې نه اکثر ورته حاصل وی، مثلا په مثال مذکور کښې د شخص مذکور روزانه ګټه د

---

↵...چه فقهاء احناف دا وائي، چه زمونږ په نزد د غنی درې قسمه دی، الغنی الموجب للزکوة، او هغه د نصاب نامی حولی مالک کیدل دی، ثانی الغني المانع عن اخذ الزکوة ددې مصداق هم دادې، یعنی د نصاب مالک کیدل، لیکن حولان حول شرط نه دی، پس کوم سړې چه صاحب نصاب دې، او دهغه په مال حولان حول نه دې شوې، نو دهغه دپاره اخذ زکوة ناجائز دې، او په هغه صدقة الفطر او اضحیه واجب ده، او دریم قسم الغني المحرم للسوال دی، او هغه دادې، چه سړې د سحر ماښام د روزئ او ما یستر به عورته مالک وی، د داسې سړې دپاره اخذ زکوة بغیر د سوال نه خو جائز دې، البته سوال حرام دې)

[۱] ) مثلا د کوم سړې چه موجوده عمر پنځوس کاله دې، نو اوس دهغه باقی پاتې عمر غالب صرف دولس کاله دې)

پنځو (۵) درهمو نه کم او د نهو (۹) درهمو نه زياته نه وي.
او د احنافو په نزد د فقير تعريف دادې، چه د مادون النصاب مالک وي، يا مالک نصاب خو وي، ليکن هغه مال غير نامي وي، يا نامي هم وي، ليکن هغه مال دهغه د حاجت اصليه يعنې مسکن او ملبس وغيره نه زياتې نه وي، او د امام مالک رحمه الله په نزد فقير هغه دې، چه هغه سره کفايت عام(د پوره کال د روزئ بندوبست) نه وي، بلکه دهغې نه کم وي، او مسکين د دې دواړو(احناف او مالکيه) په نزد هغه دې، من لا شيء له اصلا.
ددې تفصيل نه دا هم معلومه شوه، چه د جمهور علماؤ په نزد د غنى مدار په نصاب نه دې، بلکه په کفايت او عدم کفايت باندې دې، او دا هم معلومه شوه، چه د شافعيه او حنابله په نزد فقير ادنى حالا من المسکين دې، او د احناف او مالکيه په نزد ددې برعکس دې، فتدبر و تشکر لعلک لا تجد هذا التفصيل والتحقيق بهذا النهج فى غير هذا الشرح.

[۱۶۲۶](۱) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ وَلَهُ مَا يُغْنِيهِ جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُمُوشٌ أَوْ خُدُوشٌ أَوْ كُدُوحٌ فِي وَجْهِهِ"، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا الْغِنَى؟ قَالَ: "خَمْسُونَ دِرْهَمًا أَوْ قِيمَتُهَا مِنَ الذَّهَبِ". قَالَ يَحْيَى: فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ لِسُفْيَانَ حِفْظِي: أَنَّ شُعْبَةَ لَا يَرْوِي عَنْ حَكِيمِ بْنِ جُبَيْرٍ، فَقَالَ سُفْيَانُ: حَدَّثَنَاهُ زُبَيْدٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ.

دَ حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه بيان دې - رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کوم کس چه اوغواړي، حالانکه دَ هغه سره بقدر کفايت موجود وي، نو دَ قيامت په ورځ باندې به هغه راشي او دَ هغه مخ به زخمي وي يا په هغې باندې به خراشې وي - اووئيلې شو اې دَ الله رسوله اَدَ غنى کيدو مقدار څۀ دې؟ حضور ﷺ اوفرمائيل :" پنځوس درهمه يا ددې قيمت سرۀ زرِ -" يحيىٰ اووې چه عبد الله بن عثمانِ سفيان ته اووې : ما ته خو داسې ياد دى چه شعبه دَ حکيم بن جبير نه روايت نۀ کوي، نو سفيان جواب ورکړو چه مونږ ته دا روايت زبيد دَ محمد بن عبد الرحمن بن يزيد نه بيان کړو -"

**تشريح: قوله:** من سال وله ما يغنيه جاءت يوم القيمة خموش او خدوش او کدوح فى وجهه فقيل يا رسول الله(صلى الله عليه وسلم) وما الغنى قال خمسون درهما او قيمتها من الذهب، دا ددې باب اول حديث دې، اوسه پورې په ترجمة الباب کښې خبره شروع وه.

**شرح حديث :**

د جاءت ضمير مؤنث مسئلې طرف ته راجع دې، چه د سال نه مفهوم کيږي، تقدير د عبارت داسې دې، جاءت المسئلة يوم القيمة وهى خموش او خدوش، يعنې کوم سړي چه بغير د حاجت نه سوال اوکړي ، نو دهغه دا سوال به د قيامت په ورځ په دې حال کښې ظاهر شي، چه د هغه په مخ به داغونه وي، يعنې دهغه دا سوال کول به د قيامت په ورځ دهغه د مخ د داغونو او

(۱): سنن الترمذي/الزكاة ۲۲(۶۵۰)، سنن النسائي/الزكاة ۸۷(۲۵۹۳)، سنن ابن ماجه/الزكاة ۲۶(۱۸۴۰)،(تحفة الأشراف: ۹۳۸۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۳۸۸، ۴۴۱)، سنن الدارمي/الزكاة ۱۵(۱۶۸۰)(صحيح)

عيبونو سبب وي، يعنی دهغه د رسوايئ او ذلت سبب به وي، او د نسائي په روايت کښې دی، جاءت خموشا او کدوحا فی وجهه، خموش او کدوح د حال کيدو په وجه منصوب دی، او د ابوداؤد په روايت کښې خموش او خدوش د مبتداء محذوف دپاره خبر دی، او دا جمله اسميه حال واقع شوې دې.

په خموش، خدوش او کدوح دريو واړو کښې حرف اول مضموم دې، دا ټول الفاظ متقارب المعنی دی، دې ته په پښتو کښې شوکول، ګرول، او رژول وائی، دا درې واړه مصدر هم کيدې شی، او جمع هم، خموش د خمش جمع او کدوح د کدح جمع، وثيلې شی، خمشت المرءة وجهها، هرکله چه هغه خپل مخ په نوکونو باندې اوشوکوی، او زخمی ئې کړی، دلته کښې لفظ او يا د راوی شک دې، چه راوی ته په ښه طريقې سره ياد نه دی، چه د استاذ نه ئې کوم لفظ اوريدلې دې، او دا هم ممکن ده، چه دا خپله د متکلم(نبیٴ کريم ﷺ) په کلام کښې وی، په دې صورت کښې به دا "او" د تقسيم او تنويع دپاره وی، او په دې صورت کښې به دې دريو واړو لره مختلف المرتبه تسليمولې شی، د مراتب سائلين د اختلاف په اعتبار سره، ځکه چه بعضې په دوی کښې مقل وی،(يعنی کله کله سوال کویَ) او بعضې مکثر او بعضې مفرط(يعنی ډير زيات سوال کوی) دغه شان خمش ابلغ دې، د خدش نه، او خدش ابلغ دې د کدح نه، ځکه چه خمش خاص په مخ باندې وی، او خدش په مطلق څرمن کښې دننه، اوکدح فوق الجلد(د څرمنې دپاسه) په خلاف د خدش نه چه هغه د څرمنې دننه پورې وی، او بعضو په دې دريو واړو کښې فرق بل شان ليکلې دې، هغه داچه الخمش بالظفر( په نوکونو سره شوکول) والخدش بالعود( په څه لرګی سره شوکول) والکدح بالسن(غاښونو سره شوکول).

قال يحيی فقال عبدالله بن عثمان لسفيان حفظی ان شعبة لا يروی عن حکيم بن جبير : دا حديث سفيان د حکيم بن جبير نه روايت کړې دې، نو په دې باندې عبدالله بن عثمان چه د شعبه شاګرد دې، سفيان ته اوئيل، چه ترکومې پورې ماته ياد دی، هغه دادی، چه زما استاذ شعبه د حکيم بن جبير نه روايت نه اخلی،(دهغه د ضعف د وجې نه) لهذا بهتره دا وه ، چه تاسو هم دا روايت د بل راوی نه روايت کولې،) نو ددې په جواب کښې سفيان اوفرمائيل : فقد حدثناه زبيد عن محمد بن عبدالرحمن يعنی دا حديث ماته د حکيم بن جبير نه علاوه د زبيد نه هم رارسيدلې دې،(لهذا ستا مقصد پوره شو، ځکه چه زبيد ثقه دې) دا زبيد، زبيد بن الحارث دې،(کما فی المنهل) او دا د صحاح سته راوی دې، وفی التقريب ثقة، ثبت، عابد، والحديث اخرجه ايضا احمد و النسائي والترمذی وابن ماجه والدارمی والطحاوی والدار قطنی( منهل)

[۱۶۲۷]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي أَسَدٍ أَنَّهُ قَالَ: نَزَلْتُ أَنَا وَأَهْلِي بِبَقِيعِ الْغَرْقَدِ، فَقَالَ لِي أَهْلِي: اذْهَبْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلْهُ لَنَا شَيْئًا نَأْكُلُهُ فَجَعَلُوا يَذْكُرُونَ مِنْ حَاجَتِهِمْ، فَذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدْتُ عِنْدَهُ رَجُلًا يَسْأَلُهُ

[1]: سنن النسائي/الزکاة ۹۰(۲۵۹۷)،( تحفة الأشراف :۱۵۶۴۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصدقة ۱(۳)، مسند احمد(۴/۳۶، ۵/۴۳۰)(صحيح)

وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "لَا أَجِدُ مَا أُعْطِيكَ"، فَتَوَلَّى الرَّجُلُ عَنْهُ وَهُوَ مُغْضَبٌ، وَهُوَ يَقُولُ: لَعَمْرِي إِنَّكَ لَتُعْطِي مَنْ شِئْتَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَغْضَبُ عَلَيَّ أَنْ لَا أَجِدَ مَا أُعْطِيهِ، مَنْ سَأَلَ مِنْكُمْ وَلَهُ أُوقِيَّةٌ أَوْ عِدْلُهَا فَقَدْ سَأَلَ إِلْحَافًا"، قَالَ الْأَسَدِيُّ: فَقُلْتُ لَلِقْحَةٌ لَنَا خَيْرٌ مِنْ أُوقِيَّةٍ، وَالْأُوقِيَّةُ أَرْبَعُونَ دِرْهَمًا، قَالَ: فَرَجَعْتُ وَلَمْ أَسْأَلْهُ، فَقَدِمَ عَلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ ذَلِكَ شَعِيرٌ وَزَبِيبٌ فَقَسَمَ لَنَا مِنْهُ، أَوْ كَمَا قَالَ: حَتَّى أَغْنَانَا اللهُ عَزَّ وَجَلَّ. قَالَ أَبُو دَاوُد: هَكَذَا رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ كَمَا قَالَ مَالِكٌ.

د بنو اسد د یو کس نه روایت دې، هغه وائي: ما او زما کور والو د بقيع الغرقد (د مدینې موجوده قبرستان) سره پړاؤ اوکړو، نو زما کور والو ماته اووې چه رسول الله ﷺ ته لاړ شه او د هغوی ﷺ نه څۀ اوغواړه راوړه چه هغې لره مونږ اوخورو، چنانچه زۀ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم ما د هغه سره یو کس لره بیا موندۀ چه هغه د رسول الله ﷺ نه څۀ غوښتل او حضور ﷺ فرمائیل: زۀ څۀ داسې څیز نۀ مومم چه تاته ئې درکړم - بیا هغه کس شا کړه او روان شو او هغه ناراض وو او وئیل ئې: قسم دې زما د عمر! تاسو چه چاته غواړئ نو ورکوئ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دې ددې وجې نه په ما باندې غصه دې چه زما سره هیڅ نشته دې چۀ زۀ ئې دۀ ته ورکړم؟ په تاسو کښې چې کله څوک سوال کوی، حالانکه د هغه سره څلویښت درهمه یا د هغې مساوی څۀ وی نو دۀ بې ځایه سوال کړې دې. دغه اسدی کس بیان کوی: ما اووې زما اوښه خو د یو اوقیې نه ډیره بهتره ده ... او یو اوقیه د څلویښتو درهمو وی ... هغه وائي: چنانچه زۀ واپس راغلم او د هغوی ﷺ نه مې څۀ اونۀ غوښتل - ددې نه پس رسول الله ﷺ ته اوربشې او اوڅکې راغلې نو رسول الله ﷺ په هغې کښې مونږ ته هم راکړې ... یا ئې داسې اووې ... تردې پورې چه الله تعالیٰ مونږ لره غنی کړو -" امام ابوداود رحمه الله اوفرمائیل: ثوری هم داسې روایت کړې دې لکه څنګه چه مالک وئیلی وی -

**عن عطاء بن یسار عن رجل من بنی اسد الخ فقال رسول الله(صلی الله علیه وسلم) تغضب علی ان لا اجد ما اعطیه،** ما نه ناراضه کیږې، څکه چه ماسره هیڅ څیز هغه ته د ورکولو دپاره نشته، (هرکله چه دا خبره ده، نو بیا دا غصه بالکل غلطه او بې محله ده).

**من سال منکم وله اوقیة او عدلها فقد سال الحافا،** کوم سړې چه سوال کوی، او دهغه سره څلویښت درهمه یا دهغې برابر په قیمت کښې څه بل څیز وی، نو دغې سړی په سوال کښې مبالغه او بې ځایه اصرار اوکړو، **فقلت للقحة لنا خیر من اوقیة:** په للقحة کښې لام اول لام ابتداء دې، چه مفتوح دې، او لام ثانی مکسور او مفتوح، په دواړو طریقو سره دې، لقحه وئیلې شی، پئې ورکونکې اوښې ته، دا صحابی د نبی کریم ﷺ خدمت ته د خپل حاجت د وجې نه د سوال کولو په نیت تلې وو، هلته کښې تللو نه پس چه کله هغه نبی کریم ﷺ نه دا واؤریدل، چه کوم سړې په دې حال کښې سوال اوکړی، چه هغه سره یو اوقیه چاندی وی، نو دهغه دا سوال کول ناجائز دی، نو بیا ئې دا سوچ کولو چه ماسره کومه اوښه ده، هغه خو د څلویښتو درهمو نه زیاته ده، لهذا دا صاحب دهغه ځائې نه بغیرد سوال کولو نه واپس راغلو، والحدیث اخرجه ایضا النسائي والطحاوی(منهل)

[۱۶۲۸]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَهِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي الرِّجَالِ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ غَزِيَّةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، عَنْ أَبِيهِ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ وَلَهُ قِيمَةُ أُوقِيَّةٍ فَقَدْ أَلْحَفَ"، فَقُلْتُ: نَاقَتِي الْيَاقُوتَةُ هِيَ خَيْرٌ مِنْ أُوقِيَّةٍ، قَالَ هِشَامٌ: خَيْرٌ مِنْ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا فَرَجَعْتُ فَلَمْ أَسْأَلْهُ شَيْئًا، زَادَ هِشَامٌ فِي حَدِيثِهِ: وَكَانَتِ الْأُوقِيَّةُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعِينَ دِرْهَمًا.

حضرت ابو سعید خدری رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کوم کس چه اوغواړي، حالانکه دَ هغه سره (دَ څلویښتو درهمو) مساوی موجود وی نو دَ هغه سوال الحاف دي - "(بي ځایه اصرار دي) ما اووې زما یاقوته اوښه دَ یو اوقیې نه ډیره بهتره ده - دَ هشام په روایت کښې دی: دَ څلویښتو درهمو نه ډیره بهتره ده - چنانچه زهٔ واپس راغلم او دَ حضور ﷺ نه مې څهٔ سوال اونهٔ کړو - دَ هشام په روایت کښې اضافه ده چه دَ رسول الله ﷺ په دور کښې یوه اوقیه دَ څلویښتو درهمو وه -

**تشریح: قوله:** فقلت ناقتي الياقوتة هي خير من اوقية یاقوته دهغې اوښې نوم دې، ددې نه معلومه شوه چه تسمیة الدواب جائز دي، لکه د نبی کریم ﷺ نه هم دا تسمیه ثابته ده،

والحديث اخرجه ايضا احمد والنسائي والدارقطني وكذا الطحاوي مختصرا (منهل)

[۱۶۲۹]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُهَاجِرِ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ السَّلُولِيِّ، حَدَّثَنَا سَهْلُ ابْنُ الْحَنْظَلِيَّةِ، قَالَ: قَدِمَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُيَيْنَةُ بْنُ حِصْنٍ وَالْأَقْرَعُ بْنُ حَابِسٍ فَسَأَلَاهُ، فَأَمَرَ لَهُمَا بِمَا سَأَلَا، وَأَمَرَ مُعَاوِيَةَ فَكَتَبَ لَهُمَا بِمَا سَأَلَا، فَأَمَّا الْأَقْرَعُ فَأَخَذَ كِتَابَهُ فَلَفَّهُ فِي عِمَامَتِهِ وَانْطَلَقَ، وَأَمَّا عُيَيْنَةُ فَأَخَذَ كِتَابَهُ وَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَانَهُ، فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، أَتُرَانِي حَامِلًا إِلَى قَوْمِي كِتَابًا لَا أَدْرِي مَا فِيهِ كَصَحِيفَةِ الْمُتَلَمِّسِ؟ فَأَخْبَرَ مُعَاوِيَةُ بِقَوْلِهِ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَأَلَ وَعِنْدَهُ مَا يُغْنِيهِ فَإِنَّمَا يَسْتَكْثِرُ مِنَ النَّارِ"، وَقَالَ النُّفَيْلِيُّ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: مِنْ جَمْرِ جَهَنَّمَ، فَقَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا يُغْنِيهِ؟ وَقَالَ النُّفَيْلِيُّ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: وَمَا الْغِنَى الَّذِي لَا تَنْبَغِي مَعَهُ الْمَسْأَلَةُ، قَالَ: "قَدْرُ مَا يُغَدِّيهِ وَيُعَشِّيهِ"، وَقَالَ النُّفَيْلِيُّ فِي مَوْضِعٍ آخَرَ: "أَنْ يَكُونَ لَهُ شِبْعُ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ أَوْ لَيْلَةٍ وَيَوْمٍ"، وَكَانَ حَدَّثَنَا بِهِ مُخْتَصَرًا عَلَى هَذِهِ الْأَلْفَاظِ الَّتِي ذَكَرْتُ.

حضرت سهل بن حنظله رضی الله عنه بیان کوی چه عیینه بن حصن او اقرع بن حابس رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته راغلل او دَ هغوی ﷺ نه ئې سوال اوکړو نو کوم څهٔ چه هغوی اوغوښتل، نو حضور ﷺ دَ هغې دَ ورکړې دوی ته حکم اوکړو او حضرت معاویه رضی الله عنه ته ئې اوفرمائیل: چه دوی ته ددې یو تحریر (لیکل) ورکړه نو حضرت معاویه رضی الله عنه دې دواړو ته (کوم چه دوی غوښتلې وو) اولیکل - چنانچه اقرع دا خط واخستو، په خپله پګړۍ کښې ئې راتاؤ کړو او لاړو - مګر حضرت عیینه هغه خط واخستو او نبی کریم ﷺ ته راغې کوم ځائې کښې چه هغوی ﷺ تشریف فرما وو اووې وئیل: اې محمد! ستاسو څهٔ خیال دې چه د صحیفهٔ متلمس په شان زهٔ دا خط واخلم او خپل قوم ته لاړ شم، معلومه نهٔ ده چه په دې کښې څهٔ دی؟ نو حضرت معاویه رضی الله عنه دَ هغه دَ تلمیح وضاحت دَ رسول الله ﷺ په وړاندې پیش کړو - بیا

[1]: سنن النسائي/الزكاة ۸۹(۲۵۹۶)، (تحفة الأشراف: ۴۱۲۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۹/۳)(حسن)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۶۵۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۸۰/۴، ۱۸۱)(صحيح)

رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" كوم كس چه غواړي( سوال كوي) او حالانكه په قدر د كفايت هغه سره موجود وي نو هغه د ځان د پاره د اور اضافه كوي -" نفيلي په دې ځائې كښې وئيلي دي :" د جهنم انگار زياته وي -" خلقو اووې هغه كوم( مقدار) دې چه هغه د انسان د پاره كافي كيږي( او د سوال نه ئې غني كوي؟) په دويم ځائې كښې د نفيلي الفاظ داسې وو - د غنا هغه حد څۀ دې چه د هغې په موجود كيدو سره سوال كول لائق نۀ دي؟ حضور ﷺ اوفرمائيل د چا سره چه د ورځې او د شپې خوراک موجود وي -" د نفيلي الفاظ په دويم ځائې كښې داسې وو : د چا سره چه د ورځې او د شپې د پاره د ډكې خيټې خوراک موجود وي -( امام ابوداود رحمه الله فرمائي) : نفيلي مونږ ته دې حديث لره په مختصر انداز كښې داسې بيان كړې وو كوم چه ذكر كړې شو -

**تشريح: قوله:** عن ابي كبشة السلولي نا سهل بن الحنظلية قال قدم على رسول الله(صلى الله عليه وسلم) عيينة بن حصن والاقرع بن حابس رضي الله عنه الخ

**شرح حديث :**

عيينة بن حصن د مؤلفة القلوب نه وو، دهغه معامله گړ بړ وه، د فتح مكې نه پس ئې ايمان راوړلې وو، بيا د صديق اكبر رضي الله عنه په عهد كښې مرتد شوې وو، د طليحه اسدي نه ئې بيعت كړې وو، بيا ئې دوباره اسلام راوړلې وو، په يو موقع نبي كريم ﷺ هغه ته الاحمق المطاع([1]) فرمائيلې وو، او اقرع بن حابس رضي الله عنه هم اگر چه په شروع كښې د مولفة القلوب نه وو، ليكن د اسلام نه مخكښې هم او روستو هم د عزت مند خلقو نه وو، او په اخلاص سره اسلام كښې داخل شوې وو، دا دواړه د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې د څه سوال كولو دپاره او څه غوختلو دپاره حاضر شوې وو، نبي كريم ﷺ خپل كاتب حضرت معاويه رضي الله عنه ته اوفرمائيل : چه ددوی دپاره د فلانې فلانې عامل په نوم زما د طرف ته پرچه اوليكه، چه ده ته دومره وركړه او ده ته دومره وركړه، حضرت معاويه رضي الله عنه دا پرچه اوليكله اوهغوی ته ئې حواله كړه، اقرع خو دغه پرچه په خپل پټكي كښې كيخوده او عيينه بن حصن ته په دې تحرير (پرچه) باندې اعتماد نه وو، هغه دا تحرير د معاويه رضي الله عنه نه واخستلو او د نبي كريم ﷺ په خدمت كښې حاضر شو، او وې وئيل،(ځكه چه دغه وخت كښې پوره په اسلام كښې داخل شوې نه وو) فقال يا محمد اتراني حاملا الى قومي كتابا لا ادري مافيه كصحيفة المتلمس، آيا ستا دا خيال دې، چه زۀ خپل قوم ته داسې ليكل يوسم، چه دهغې باره كښې ماته صحيح معلومه نه ده، چه په كښې څه ليكلې دي، د صحيفة متلمس پشان، فاخبر معاوية بقوله رسول الله(صلى الله عليه وسلم) پس معاويه رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته د عيينه د كلام خبر وركړو، يعني مطلب ئې ورته بيان كړو، نبي كريم ﷺ د صحيفة متلمس په مطلب باندې پوهه شوې نه وو، حضرت معاويه رضي الله عنه پوهه شوې وو، ددې وجې نه معاويه رضي الله عنه دهغې تشريح نبي كريم ﷺ ته بيان كړه.

---

[1]) د خپل قوم بې وقوف سردار)

## د صحیفه متلمس شرح :

متلمس شاعر جاهلی، د شعراء جاهلیه نه یو شاعر دې، دهغه نوم جریر وو، قصه دهغه داده، چه یو ځل جریر او طرفة بن العبد دوارو د خپلې زمانې د بادشاه عمروبن هند شاعرانه مدح اوکړه، (انعام اخستلو دپاره) بادشاه دوارو ته ځان ځانله یوه یوه پرچه ورکړه، چه د یو عامل په نوم وه، او دا ئې ظاهره کړه، چه ما په دې کښې د انعام ورکولو باره کښې لیکلې دی، حالانکه په هغې کښې دا وو، چه کله دا دواړه تاته راشی، نو سمدستی دوی لره قتل کړه، طرفه خو هغه پرچه اخستلو سره نیغ عامل ته لاړو، او هلته کښې اوژلې شو، لیکن متلمس پوهه شو، هغه دا پرچه اوکتله، نو په دې کښې د قتل حکم وو، هغه داپرچه اوغورځوله، او د قتل نه بچ شو، دا ده، دهغه صحیفه متلمس واقعه، چه دې طرف ته عیینه بن حصن اشاره اوکړه، فقالوا یا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) و ما یغنیه قال قدر ما یغدیه و یعشیه د سحر او ماښام خوراک یعنی د یوې ورځې گزاره، چه د چا سره وی. دې حدیث لره احنافو په سوال باندې محمول کړې دې، لکه چه خپله دلته په دې روایت کښې تصریح ده، یعنی د داسې سړې دپاره سوال جائز نه دې، او اخذ زکوة دهغه دپاره جائز دې، او بعضې عالمانو دې لره عام گرزولې دې، او اخذ زکوة په دوارو کښې په دې باندې محمول کړې دې، چه مراد دادی، چه کوم سړی ته علی الدوام غداء او عشاء حاصل وی، یعنی مستقل د سحر او ماښام د روزئ بندوبست وی، لهذا د جمهورو په نزد کوم سړی ته چه د ټول کال دپاره کفایت حاصل وی، هغه دپاره نه سوال جائز دې، او نه اخذ زکوة، ددې تفصیل د باب په شروع کښې تیر شوې دې، والحدیث اخرجه ایضا الطحاوی مختصرا واخرجه احمد مطولا (منهل) ([1])

[۱۶۳۰] ([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ بْنِ غَانِمٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ زِيَادٍ، أَنَّهُ سَمِعَ زِيَادَ بْنَ نُعَيْمٍ الْحَضْرَمِيَّ، أَنَّهُ سَمِعَ زِيَادَ بْنَ الْحَارِثِ الصُّدَائِيَّ، قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ، فَذَكَرَ حَدِيثًا طَوِيلًا، قَالَ: فَأَتَاهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: أَعْطِنِي مِنَ الصَّدَقَةِ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَمْ يَرْضَ بِحُكْمِ نَبِيٍّ وَلَا غَيْرِهِ فِي الصَّدَقَاتِ حَتَّى حَكَمَ فِيهَا هُوَ فَجَزَّأَهَا ثَمَانِيَةَ أَجْزَاءٍ فَإِنْ كُنْتَ مِنْ تِلْكَ الْأَجْزَاءِ أَعْطَيْتُكَ حَقَّكَ".

د حضرت زیاد بن حارث صدائی بیان دې چه زۀ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او دَ هغوی ﷺ سره مې بیعت اوکړو ... او یو طویل حدیث ئې بیان کړو ... اووې فرمائیل: بیا یو کس دَ نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو اووې وئیل: ما ته په صدقه کښې څۀ راکړئ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: الله تعالیٰ دَ صدقاتو د تقسیم مسئله دَ نبی یا دَ چا بل چا په خوښه باندې نۀ ده پریخودې بلکې ددې په باره کښې ئې خپله فیصله فرمائیلې ده - او دې لره ئې په اتۀ قسمه خلقو کښې تقسیم فرمائیلې ده - کۀ چرې ته دَ

[1] ) دا حدیث واقعی ډیر اوږد دې او قابل د مطالعې دې، دې لره حضرت په بذل المجهود کښې د نورو کتابونو نه نقل کړې دې. فارجع الیه لوشئت.

[2] ): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۶۵۴) (ضعیف)

هغوی نه ئې نو زهٔ تاته ستا حق درکووم-"
عن زیاد بن الحارث الصدائی قال اتیت رسول الله(صلی الله علیه وسلم) فبایعته و ذکر حدیثا طویلا فاتاه رجل فقال اعطنی من الصدقة فقال له رسول الله(صلی الله علیه وسلم) ان الله لم یرض بحکم نبی و لا غیره فی الصدقات حتی حکم فیها هو فجزاها ثمانیة اجزاء فان کنت من تلک الاجزاء اعطیتک حقک، یعنی الله تعالی د صدقاتو او زکوة معامله د یو نبی یا غیر نبی په فیصلې یا اجتهاد پرېخودلې نه ده، بلکه دهغې فیصله الله تعالی په خپله فرمائیلې ده، او مستحقین زکوة ئې په اته قسمه خلقو کښې منحصر فرمائیلې دې، که ته په هغوی کښې وې نو زهٔ به تاته هم ستا حصه درکړم.
په دې حدیث کښې مجملا د مصارف زکوة ذکر راغلو، ددې تفصیل په قرآن مجید کښې موجود دې، انما الصدقات للفقراء والمساکین والعاملین علیها والمؤلفة قلوبهم وفی الرقاب والغارمین و فی سبیل الله وابن السبیل.

## د زکوة د مصارف ثمانیه بیان مع مذاهب ائمه:

دلته کښې ضرورت ددې خبرې دې، چه په دې مصارف ثمانیه کښې د هر یو بیان او دهغې تعریف عند الفقهاء اوکړې شي، دویمه خبره داده، چه دا مصارف ثمانیه اوس هم تول باقی دی، یا په دې کښې د څه مصرف نسخ هم شوې ده، دریمه خبره داده، چه ددې مصارف ثمانیه استیعاب او تعمیم ضروری دې او که نه؟

## بحث اول :(د مصارف ثمانیه مصادیق)

(۱، ۲) د فقیر او مسکین هر یو تعریف مع اختلاف ائمه اوس نزدې تیر شوې دی.
(۳) عاملین هغه خلق دی، چه هغوی لره د امام المسلمین د طرف نه د زکوة او صدقاتو د وصولولو دپاره مقرر کړې شوې وی، هغه ته د زکوة دمال نه ورکولې شی، [۱] لیکن هغه ته چه څه ورکولې شی، هغه د زکوة کیدو په حیثیت سره نه، بلکه د حق الخدمت او معاوضهٔ عمل په طور باندې ورکولې شی، ددې وجې نه عامل ته په هر حال کښې ورکولې شی، [۲]

[۱] په دې کښې اختلاف دې، چه عامل ته به څومره مقدار زکوة ورکولې شی، د احنافو په نزد بقدر کفایت، لیکن که مال زکوة صرف دومره دې، چه که عامل ته بقدر کفایت ورکړې شی، نو تول زکوة به دې کښې خرچ کیږی، نو په دې صورت کښې به هغه‌ته صرف نیم ورکولې شی، ددې نه زیات نه، او د امام مالک رحمه الله مسلک دادې، چه بقدر اجرة عمل به ورته ورکولې شی، اګر که تول زکوة په هغې کښې لاړ شی، او د امام شافعی رحمه الله مسلک ډیرو علماؤ دا لیکلې دې، چه دهغه په نزد چونکه تسویه بین الاصناف الثمانیه واجب دې، ددې وجې نه عامل ته به صرف ثمن(اتمه حصه) ورکولې شی، لیکن دا صحیح نه ده، بلکه دهغوی مسلک دادې، کما فی کتبهم چه اګر چه دهغوی په نزد تسویه ضروری ده، لیکن عامل ددې نه مستثنی دې، هغه ته به بقدر اجرة عمل ورکولې شی، او د امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد تولو ته به د حاجت مطابق ورکولې شی، او عامل ته د هغه د عمل مطابق(من الاوجز)

[۲] وفی حاشیه شرح الاقناع (ص۲۹۷ ج ۲)ولوکان غنیا ومن شرائط الاسلام وان لا یکون هاشمیا ولا مطلبیا ولامولی لهما وفی الانوار الساطعه (ص۲۲٦)فی مذهب المالکیه و یعطی العامل من الزکوة ولو غنیا بشرط ان یکون مسلما حرا غیر هاشمی عدلا عالما باحکام الزکوة ١هـ وفی نیل المارب فی فقه الحنابلة و شرط کون العامل علیهامکلفا مسلما .......

که هغه غني وي او که فقير، په ټولو مصارفو د زکوة کښې صرف دا مصرف داسې دې، چه ده ته زکوة د معاوضهٔ خدمت په طور باندې ورکولې شي، ګنې زکوة خو وثيلې شي، هغې عطيئ ته، چه غريبانو ته بغير د څه خدمت د معاوضې نه ورکړې شي، ددې وجې نه دلته کښې دا اشکال پيدا کيږي، چه بيا داسې ورکولو سره زکوة څرنګه ادا کيږي؟ جواب دادې، چه عاملين د فقيرانو د طرف نه حکما وکيلان دی، او د وکيل قبضه د مؤکل قبضه وی، نو داسې ګنړل پکار دی، چه د زکوة دا رقم فقيرانو ته رسيدلو نه پس دهغوی د طرف نه د عاملينو د خدمت عوض دې، او فقيرته په خپل مال زکوة کښې د تصرف کولو اختيار شته، چه چاته غواړی ورکولې شی،(معارف القرآن للمفتي محمد شفيع) او علامه زيلعي د کنز په شرح کښې ليکلې دی، چه څه عامل ته ورکولې شي، هغه من وجه دهغه د عمل اجرت دې، ددې وجې نه هغه ته د زکوة نه ورکول جائز دی، باوجود دهغه د غني کيدو نه، او من وجه صدقه ده، من وجه ځکه چه عامل هاشمي ته ورکول جائز نه دی.

(۴) مؤلفة القلوب، ددې په مصداق کښې کافران هم داخل دی، او مسلمانان هم، شيخ ابن الهمام ددې درې قسمونه ليکلې دی،(۱) هغه کافران چه هغوی ته نبی کريم ﷺ ددې وجې نه زکوة ورکولو چه مونږ ته نزدې شی، او مسلمانان شی(۲) هغه کافر چه هغه ته زکوة ددې وجې نه ورکولې شی، چه دهغه د شر نه محفوظ شی،(۳) هغه مسلمان چه دهغه په اسلام کښې ضعف وو، دې دپاره چه دهغه په ايمان کښې پوخ والې راشي.

### (د مؤلفة القلوب حصه ولې ساقط شوه؟)

د مؤلفة القلوب مصرف زکوة کيدل اوس هم باقي دې، يا دهغوی حصه ساقطه شوې ده؟ د امامانو په مينځ کښې دا مسئله اختلافی ده، د احنافو په نزد دهغوی حصه مطلقا ساقطه شوې ده، د صديق اکبر په زمانه کښې په اتفاق د صحابه کرامو سره، ځکه چه د کوم ضرورت او مصلحت د وجې نه هغوی ته ورکولې شو،، هغه د نبی کريم ﷺ نه پس باقی پاتې نه شو، الله تعالی اسلام ته غلبه او شوکت ورکړو، او د تاليف حاجت باقې پاتې نشو، او دا د انتفاء الحکم لارتفاع العلة د قبيلې نه دې، لهذا دا اشکال کول صحيح نه دی، چه د نبی کريم ﷺ نه پس په دې حکم شرعی کښې نسخ څرنګه واقع شوه؟ د مالکيه مشهور مسلک(کما في الشرح الکبير) دادې، چه مؤلفة القلوب که کافران دی، نو دهغوی حصه ساقطه شوې ده، لغلبة الاسلام او که مسلمانان دی، نو باقی ده، او صاحب منهل د مالکيه په

---

ئه ...امينا کافيا من غير ذوي القربي و يعطي قدر اجرته منها و لو غنيا ١هـ وقال الموفق (ص ٦٥٤ ج ٢)يجوز للعامل ان ياخذ عمالته من الزکوة سواء کان حرا او عبدا و ظاهر کلام الخرقي انه يجوز ان يکون کافرا و هذه احدي الروايتين عن احمد والرواية الاخري لا يجوز ان يکون العامل کافرا و يجوز ان يکون غنيا و ذا قرابة لرب المال ١هـ وفي الزيلعي (ص ٢٩٧ ج ١) عفي الکنز و لا تحل للعامل الهاشمي تنزيها لقرابة النبي (صلي الله عليه وسلم) عن شبهة الوسخ و تحل للغني لانه لا يوازي الهاشمي في استحقاق الکرامة ١هـ . وفي الجوهرة النيره (ص ١٥٧ ج ١)فان جعل الهاشمي عاملا واعطي من غير الزکوة فلا باس به ثم الذي ياخذه العامل اجرة من وجه حتي يجوز له مع الغني و صدقة من وجه حتي لا يجوز للعامل الهاشمي تنزيها له عنها ١هـ . وفي الکنز الزکوة تمليك المال من فقير مسلم غير هاشمي و لا مولاه قال الزيلعي (ص ٢٥٢)اخترز به عن الغني والکافر والهاشمي و مولاه لان دفع الزکوة اليهم مع العلم لا يجوز ١هـ)

مسلک کښې لیکلې دی، چه د مؤلف کافر باره کښې خو دوه اقوال دی، قیل یعطی و قیل لا یعطی او مولف مسلم ته دهغوی په نزد بالاتفاق ورکولې شی، دغه شان د شافعیه په نزد د مولفة المسلمین حصه باقی ده، او د مولفة الکفار باره کښې دادی، چه زکوة خو به هغوی ته بالاتفاق نشی ورکولې، او غیر زکوة هم علی الاصح، لیکن د ډیرې مجبورئ په وخت کښې مصلحة غیر زکوة ورکولې شی، (روضة المحتاجین ص۲۸۹) دحنابله په نزد مولفة القلوب مطلقًا که کافران وی او که مسلمانان، مصرف زکوة دی، لیکن بشرط الحاجة، یعنی که د تالیف حاجت وی، ګنی مصرف نه دې، لکه د خلفاء راشدینو په زمانه کښې چونکه د تالیف حاجت نه وو، ددې وجې نه هغې حضراتو دوی ته نه ورکوؤ، اود ورکولو وجه دا نه وه، چه ددوی حصه ساقطه شوې ده، (الروض المربع ص۴۴)

(۵) **الرقاب** : د احنافو په نزد ددې مصداق مکاتبین دی، د زکوة په پیسو د مکاتبینو امداد کول پکار دې، دې دپاره چه هغوی بدل کتابت ادا کړی، او خپل ځانونه د غلامۍ نه آزاد کړی، تحریر رقبه یعنی خالص غلامانو لره ازادول په دې کښې داخل نه دی، هم دا مذهب د شافعیه او حنابله دې. ([1]) البته د مالکیه په دې کښې اختلاف دې، دهغوی په نزد د وفی الرقاب نه مراد تحریر رقبه دې، یعنی رقیق مومن لره اخستل او آزادول، ([2])

او دا هم شرط دی، چه هغه خالص رقیق وی، (کوم ته چه قن وئیلې شی) مدبر یا مکاتب نه وی، د امام مالک رحمه الله مشهور قول دادې، او هم دې طرف ته د امام بخاری رحمه الله میلان دې، او یو روایت د امام مالک رحمه الله نه په دې کښې دا هم دې، چه د مکاتب امداد هم په دې کښې داخل دې، هغه هم په مال زکوة سره ادا کولې شی.

(۶) **والغارمین** : ددې نه مراد هغه مدیون دې، چه هغه سره وفاء د دین نه وی، یا وی لیکن د اداء دین نه پس هیڅ نه پاتې کیږی، او که پاتې کیږی هم، نو هغه په قدر د نصاب نه وی، او دغه شان هغه سړې چه دهغه دین د خلقو په ذمه وی، او هغه دهغوی نه د وصولولو قدرت نه لری، (د غارم اطلاق په مدیون او دائن دواړو باندې کیږی) او د شافعیه او حنابله په نزد ددې په مصداق کښې هغه سړې هم داخل دې چا چه د اصلاح ذات البین دپاره تحمل حماله کړې وی، اګر چه هغه غنی وی، ([3]) او د احنافو په نزد د تحمل حماله والا سړې د غنی کیدو په صورت کښې مصرف زکوة نه دې.

---

[1] ) د حنابله په کتابونو کښې د فی الرقاب په ضمن کښې دا هم لیکلې دی، و یفك الاسیر المسلم چه د زکوة په پیسو مسلمان قیدی هم ازادولې شی.)

[2] ) د جمهورو په نزد په دې سره زکوة نه ادا کیږی، ځکه چه زکوة کښې تملیک ضروری دې، دا رقم کوم سره چه شراء عبد کیږی، ددې تملیک چاته کولې شی؟ عبد ته یا مولی ته، په عبد کښې خو د مالک جوړیدلو صلاحیت نشته، او مولې کیدې شی چه غنی وی، په خلاف د مکاتب نه، چه په هغه کښې د مالک جوړیدلو صلاحیت شته، ځکه اګر چه هغه ته ملک رقبه حاصل نه دې، لیکن ملک ید ورته حاصل دې، مولی هغه ته د ګټلو او مالک جوړیدلو اجازت ورکړې دې،)

[3] ) لیکن ددې دپاره ددوی په نزد څه قیود او تفصیل دې کوم چه دهغوی په کتابونو کښې لیکلې شوی دی، من شاء فلیرجع الیه.

(۷) **فی سبیل الله** : ددې مصداق عند الحنفیه منقطع الغزاة دې، (۱) یعنی کوم سړې چه جهاد ته تلل غواړی، لیکن هغه د جهاد سامان نه ملاویدو په وجه د مجاهدینو نه منقطع کیدونکې دې، نو د داسې سړی د زکوة په پیسو سره مدد کولې شی، او د ائمه ثلاثه یعنی شافعیه، مالکیه او حنابله په نزد ددې نه مطلقا غزاة او مجاهدین مراد دی، بغیر د قید د فقر نه، لهذا دا خلق د غنی کیدلو باوجود سامان جهاد وغیره تیاری دپاره د ضرورت مطابق زکوة اخستلې شی، (کما هو مصرح فی کتبهم)

(۸) **ابن السبیل** : ددې نه مراد هغه مسافر دې، چه هغه سره په سفر کښې مال نه وی، اگر چه په خپل وطن کښې ذومال او غنی وی، بیا پوهیدل پکار دی، چه مسافر په دوه قسمه دې، المسافر المنقطع بالسفر، والمسافر المنشئ للسفر، د اول مطلب دادې، چه یو سړې چه د مخکښې نه په سفر کښې دې، او د سفر په مینځ کښې هغه ته د نفقې ختمیدلو په وجه حاجت راپیښ شو، او منشئ للسفر هغه سړې دې، چه انشاء سفر یعنی د سفر ابتداء د خپل وطن نه کوی، او حال دادې، چه هغه سره د سفر خرچه نشته، د احنافو او حنابله په نزد د ابن السبیل په مصداق کښې صرف قسم اول داخل دې، او د شوافعو په نزد په دې کښې دواړه قسمونه داخل دی، کما هو مصرح فی کتبهم، او علامه باجی مالکی د امام مالک رحمه الله مذهب هم دا نقل کړې دې، (کما فی هامش البذل) لهذا که یو سړې د خپل وطن نه سفر کول غواړی، لیکن د سفر خرچه هغه سره نشته، او هسې بقدرکفایت د معاش انتظام دهغه سره شته، نو که دا سړې سفر او نه کړی، نو هغه دپاره د شافعیه په نزد اخذ زکوة جائز نه دې، او سفر دپاره زکوة اخستل جائز دی (۲) الحمد لله د مصارف زکوة تشریح پوره شوه.

## بحث ثانی :

د بحث اول په ضمن کښې د مولفة القلوب په بیان کښې تیر شوې دې.

## بحث ثالث :

د امام شافعی رحمه الله په نزد زکوة لره په دې اصناف ثمانیه باندې تقسیمول ضروری دې، په شرط ددې چه دا ټول مصارف او اصناف په محل د مال کښې موجود وی، ګنی چه کوم موجود وی په هغو کښې به تقسیمولې شی، دا په هغه صورت کښې دی، چه کله تقسیم د امام المسلمین د طرف نه وی، چه هغه د عمالو په ذریعه زکوة وصول کړې وی، لیکن که

---

(۱) د فی سبیل الله تفسیر عند الجمهور مجاهدینو سره کړې شوې دې، بغیر د قید د فقر او احتیاج نه، او د احنافو نه د امام ابویوسف صاحب رائې هم داده، لیکن په قید د حاجت او فقر سره، ددې وجې نه هغوی دې لره په منقطع الغزاة سره تعبیر کړې دې، او د امام محمد رحمه الله په نزد ددې نه منقطع الحاج مراد دې، یعنی هغه سړې چه په هغه باندې حج فرض شوې دې، لیکن فی الحال فقیر دې، داسې سړی ته فرض حج ادا کولو دپاره زکوة ورکولې شی، الروض المربع فی فقه الحنابله کښې هم ددې تصریح ده، چه دفرض حج د ادا کولودپاره غریب سړی ته زکوة ورکولې شی)

(۲) لیکن دهغوی په نزد دا قید دې، چه هغه سفر د څه غرض صحیح دپاره وی، اگر که د تفریح دپاره وی، لهذا د شخص هائم یعنی د چا حالت چه ښه نه وی، او دهغه په سفر کښې څه خاص نیت نه دې، نو دهغه دپاره اخذ زکوة جائز نه دې، دغه شان د جمهورو په نزد هم دا قید دې، چه هغه سفر د څه معصیت دپاره نه وی، بلکه مباح وی)

مالک خپله ادا کړي، بغير د توسط د عامل نه، نو په دې صورت کښې به زکوة د عامل نه علاوه باقي مصارف سبعه کښې تقسيمولې شي، او په هر صنف کښې کم ازکم دريو سړو ته ورکول ضروري دي، سوا د عامل نه، که عامل صرف يو وي، نو ظاهره ده، چه بيا به صرف هم دې يو ته ورکولې شي، (انوار ساطعه ١٤٨)

او د حنابله په نزد تعميم الاصناف واجب نه دی، په صنف واحد باندې هم اکتفاء جائز ده، البته تعميم مستحب دی، (نيل المآرب) او دغه شان د مالکيه په نزد هم تعميم واجب نه دې، بلکه دهغوی په نزد ايثار المضطر علی غيره اولی دې، يعنی چه کوم زيات محتاج وی، هغه ته ورکول اولی دی، الاحوج فالاحوج (انوار ساطعه ٢٢٧)

د احنافو په نزد هم تعميم ضروری نه دې، بلکه تخيير دې، که په ټولو اصنافو کښې ئې تقسيموی، او که بعضو ته ئې ورکوی، او که صرف يو ته ئې ورکوی، و حديث الباب اخرجه ايضا الطحاوی واخرجه الامام احمد من حديث حبان ابن ربح الصدائي صاحب رسول الله (صلى الله عليه وسلم) ( منهل)

[١٦٣١] ([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَزُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي تَرُدُّهُ التَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَالْأَكْلَةُ وَالْأَكْلَتَانِ، وَلَكِنَّ الْمِسْكِينَ الَّذِي لَا يَسْأَلُ النَّاسَ شَيْئًا وَلَا يَفْطِنُونَ بِهِ فَيُعْطُونَهُ".

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: مسکين هغه نهٔ دې چه هغه لره يو کجوره يا دوه کجورې واپس کوی بلکې مسکين هغه دې چه هغه دَ خلقو نه سوال نهٔ کوی او نهٔ خلقو ته ددهٔ په باره کښې اندازه وی چه دهٔ ته ورکړی۔

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ الْمِسْكِينُ الَّذِي تَرُدُّهُ التَّمْرَةُ وَالتَّمْرَتَانِ وَالْأَكْلَةُ وَالْأَكْلَتَانِ وَلَكِنَّ الْمِسْكِينَ الَّذِي لَا يَسْأَلُ النَّاسَ شَيْئًا وَلَا يَفْطِنُونَ ([2]) بِهِ فَيُعْطُونَهُ".

يعنی مسکين هغه سړی نه دې، چه يوه يا دوه کجهورې يا يوه يا دوه نمړئ پسې په کوڅو کښې ګرځی، بلکه په حقيقت کښې مسکين يعنی کامل مسکين هغه سړی دې، چه د خلقو نه نه سوال کوی، او نه خلق هغه لره محتاج او فقير ګڼړی، چه هغه ته څه ورکړی، يعنی دهغه د سوال نه کولو په وجه خلق هغه لره حاجت مند نه ګڼړی، او هم ددې وجې نه څه ورکوی هم نه، په دې حديث سره تيره شوې اختلافی مسئله (چه د احنافو او امام مالک رحمه الله په نزد مسکين هغه سړی دې، من لا شیء له،) تائيد کيږی، استدل ايضا بقوله تعالى او مسكينا ذا متربة، اى لاصق بالتراب من الجوع والعرى واما قوله تعالى اما السفينة فكانت لمساكين يعملون فى البحر فلا ينافى ما ذكر لانه انما سماهم مساكين مجازا ترحما و شفقة عليهم لانهم كانوا مظلومين ضعفاء ( من المنهل)

[1]): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف :١٢٣٥٥)، وقد أخرجه: خ /الزكاة ٥٣(١٤٧٦)، وتفسير البقرة ٤٨(٤٥٣٩)، صحيح مسلم/الزكاة ٣٤(١٠٣٩)، سنن النسائي/الزكاة ٧٦(٢٥٧٢)، موطا امام مالك/ صفة النبي ٥(٧)، مسند احمد(٢/٢٦٠، ٣١٦، ٣٩٣، ٤٤٥، ٤٥٧)، سنن الدارمي/الزكاة ٢(١٦٥٦)(صحيح)

[2])، په دې کښې طاء باندې ضمه اوکسره دواړه ونيلې شی فطن يفطن د باب کرم و نصر وسمع دريو واړو نه راځی.

د کوم مسکین ذکر چه بره په حدیث کښې راغلې دې، دهغه نه په راتلونکې حدیث کښې المحروم سره تعبیر شوې دې، فذاک المحروم، دا د قرآن مجید آیت طرف ته اشاره ده، وفی اموالهم حق للسائل و المحروم، والحدیث اخرجه ایضا البخاری ومسلم والنسائی (منهل)

[۱۶۳۲] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَعُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، وَأَبُو كَامِلٍ الْمَعْنَى، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مِثْلَهُ، قَالَ: "وَلَكِنَّ الْمِسْكِينَ الْمُتَعَفِّفُ"، زَادَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ: "لَيْسَ لَهُ مَا يَسْتَغْنِي بِهِ الَّذِي لَا يَسْأَلُ وَلَا يُعْلَمُ بِحَاجَتِهِ فَيُتَصَدَّقَ عَلَيْهِ فَذَاكَ الْمَحْرُومُ"، وَلَمْ يَذْكُرْ مُسَدَّدٌ الْمُتَعَفِّفُ الَّذِي لَا يَسْأَلُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا مُحَمَّدُ بْنُ ثَوْرٍ وَعَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، وَجَعَلَا الْمَحْرُومُ مِنْ كَلَامِ الزُّهْرِيِّ وَهُوَ أَصَحُّ.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: (او حدیث ئې بیان کړو لکه څنګه چه بره ذکر شو (او) وې فرمائیل: " لیکن مسکین خو هغه دې چه هغه (د سوال د عار او شرم نه) بچ او پاک وی ... مسدد په خپل روایت کښې زیاته کړې ده چه د هغه سره دومره قدرې نهٔ وی چه د هغه کفایت اوکړی ... او د خلقو نه سوال هم نهٔ کوی او نهٔ خلقو ته ددهٔ د ضرورت علم وی چه هغوی دهٔ ته صدقه ورکړی دې قسم سړی ته " محروم " وئیلې شی -" مسدد په خپل روایت کښې د [ المتعفف الذی لا یسأل ] ذکر نهٔ دې کړې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی : چه دې حدیث لره محمد بن ثور او عبد الرزاق د معمر نه روایت کړې دې او هغه د " محروم " بیان د زهری کلام ښودلې دې او دا زیات صحیح دې -

[۱۶۳۳] (²) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَدِيِّ بْنِ الْخِيَارِ، قَالَ: أَخْبَرَنِي رَجُلَانِ، أَنَّهُمَا أَتَيَا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَهُوَ يُقَسِّمُ الصَّدَقَةَ، فَسَأَلَاهُ مِنْهَا، فَرَفَعَ فِينَا الْبَصَرَ وَخَفَضَهُ فَرَآنَا جَلْدَيْنِ، فَقَالَ: "إِنْ شِئْتُمَا أَعْطَيْتُكُمَا وَلَا حَظَّ فِيهَا لِغَنِيٍّ وَلَا لِقَوِيٍّ مُكْتَسِبٍ".

د عبید الله بن عدی بن خیار نه منقول دی، وائی چه ما ته دوو کسانو اووئیل چی دا دواړه د حجة الوداع په موقع باندې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شول او حضور ﷺ صدقه تقسیموله - دې دواړو هم د هغوی نه سوال اوکړو نو حضور ﷺ مونږ ته د بره نه تر د خکته (د سر نه تر د خپو) پورې اوکتل - هغوی ﷺ اوکتل چه مونږ دواړه طاقتور یو، نو وې فرمائیل : کهٔ چرې تاسو غواړئ نو مونږ ئې تاسو ته درکوو مګر (حقیقت دادې) په دې کښې د غنی او د طاقت ور کسب کوونکی هیڅ حصه نشته دې -"

فرفع فینا البصر و خفضه فرانا جلدین (³) فقال ان شئتما اعطیتکما ولا حظ فیها لغنی و لا لقوی مکتسب، دوه سړی چه دهغوی نومونه معلوم نه دی، لیکن صحابه دی، خپله واقعه بیانوی، چه مونږ د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شو ، د حجة الوداع په موقع، او نبی

¹): سنن النسائي/الزكاة ٧٦(٢٥٧٤)، (تحفة الأشراف :١٥٢٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/٢٦٠)(صحيح) دون قوله: «فذاك المحروم» فإنه مقطوع من كلام الزهري

²): سنن النسائي/الزكاة ٩١(٢٥٩٩)، (تحفة الأشراف :١٥٦٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/٢٢٤، ٥/٣٦٢)، (صحيح)

³) جلدین تثنیه ده د جلد ، ددې معنی ده قوی (مضبوط)، جلد (په فتحې د جیم اولام سره) په معنی د قوت راځی، وئیلې شی جلد الرجل جلداً فهوجلد وجلیداً.

کریم ﷺ صدقات تقسیمول، هغه دواړه وائي چه مونږ هم د نبی کریم ﷺ نه سوال اوکړو، نو رسول الله ﷺ په مونږ باندې بره ښکته نظر واچولو، یعنې مونږ ته ئې د بره نه ښکته پورې اوکتل، پس نبی کریم ﷺ مونږ قوی او مضبوط اوموندلو، بیا هغوی اوفرمائیل: چه که تاسو غواړئ، نو تاسو ته به ددې صدقې د مال نه درکړم، لیکن حقیقت دادې، چه په صدقه کښې د غنی او قوی مکتسب (چه ګټلو باندې قادر وی) حصه نشته.

**غریب قادر علی الکسب د غنی په حکم کښې دې او که نه؟**

ددې حدیث نه معلومیږی، چه کوم سړې غریب وی، لیکن قادر علی الکسب وی، هغه هم د غنی په حکم کښې دې، پس د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله مذهب دادې، چه سړې څنګه غنی بالمال جوړیږی، دغه شان بالکسب هم جوړیږی، نو ددې دواړو په نزد قوی مکتسب دپاره اخذ زکوٰة جائز نه دې، اوداحنافو اومالکیه په نزد قدرة علی الکسب سره سړې غنی شمارلې نشی، او دهغه دپاره اخذ زکوٰة جائز دې، دا حضرات ددې حدیث جواب دا ورکوی، چه دا په سوال باندې محمول دې، د قوی مکتسب دپاره اګر چه اخذ زکوٰة جائز دې، لیکن سوال جائز نه دې، او دلیل ددې دپاره دادې، چه نبی کریم ﷺ هغوی ته اوفرمائیل: چه که تاسو غواړئ، نو زۀ به تاسو ته ددې نه درکړم، نو که هغوی ته ورکولو سره زکوٰة ساقط کیدو نه، نو بیا نبی کریم ﷺ دا تعلیق ولې فرمائیلو،

علامه طیبی رحمه الله د شوافعو د طرف نه ددې جواب دا ورکړې دې، چه د نبی کریم ﷺ مراد دادې، چه باوجود د حرام کیدلو نه که تاسو په اکل حرام باندې راضی یئ، نو تاسو ته به ددې نه درکړم، ګویا دا خبره نبی کریم ﷺ هغوی ته توبیخا فرمائیلې وه، (منهل)

والحدیث اخرجه ایضا احمد والنسائي والطحاوی (منهل)

[۱۶۳۴] (1) حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ مُوسَى الْأَنْبَارِيُّ الْخُتَّلِيُّ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ يَعْنِي ابْنَ سَعْدٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ رَيْحَانَ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ سُفْيَانُ، عَنْ سَعْدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ، كَمَا قَالَ إِبْرَاهِيمُ: وَرَوَاهُ شُعْبَةُ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ لِذِي مِرَّةٍ قَوِيٍّ، وَالْأَحَادِيثُ الْأُخَرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْضُهَا لِذِي مِرَّةٍ قَوِيٍّ وَبَعْضُهَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ، وَقَالَ عَطَاءُ بْنُ زُهَيْرٍ: أَنَّهُ لَقِيَ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، فَقَالَ: إِنَّ الصَّدَقَةَ لَا تَحِلُّ لِقَوِيٍّ وَلَا لِذِي مِرَّةٍ سَوِيٍّ.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه بیان کوی، چې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل صدقه د هیڅ یو مالدار دَ پاره حلال نۀ ده او نۀ دَ چا طاقتور او صحیح سالم کس دپاره - "امام ابوداود رحمه الله فرمائی: چه دې حدیث لره سفیان دَ سعد بن ابراهیم نه همداسې روایت کړې دې لکه څنګه چه ابراهیم (بن سعد) روایت کړې دې - او شعبه دَ سعد نه دا لفظ روایت کړې دې: [لذی مرة قوی] یعنې دَ "سویّ" په ځائې باندې ئې "قویّ" وئیلې دی، او دَ نبی کریم ﷺ نه په بعض احادیثو کښې [لذی مرة قوی] او په بعضو کښې [لذی مرّة سویّ] روایت شوې دې - عطاء بن زهیر وائی چه زۀ دَ حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه سره ملاو شوم نو دَ هغوی الفاظ

[1] ): سنن الترمذي/الزكاة ۲۳ (۶۵۲)، (تحفة الأشراف: ۸۶۲۶)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۴، ۱۹۲)، سنن الدارمي/الزكاة ۱۵ (۱۶۷۹) (صحيح)

وو : [ان الصدقة لا تحل لقوی ولا ذی مرة سوی]

عن عبدالله بن عمرو عن النبی(صلی الله علیه وسلم) قال لا تحل الصدقة لغنی ولا لذی مِرّة سوی، مِرّة، بمعنی قوة، یعنی لذی قوة، او سوی بمعنی سالم، یعنی چه دهغه اندامونه صحیح سالم وی، ځکه چه داسې سړې قادر علی الکسب دې، دا حدیث هم د شافعیه او حنابله دلیل دې، احناف وائي چه په دې کښې د کمال حل نفی ده، نه د اصل حل. ځکه چه دهغوی په نزد د داسې سړې دپاره اخذ زکوة جائز دې، چه قوی وی، او د خپل حاجات اصلیه نه علاوه د نصاب مالک نه وی، دویمه توجیه هغوی دا کوی، چه دې لره په سوال باندې محمول کړې شی، کما تقدم فی الحدیث السابق،

والحدیث اخرجه ایضا احمد والدارمی والدارقطنی والطحاوی والترمذی وقال حدیث حسن لکن فی سنده ریحان بن یزید و فیه مقال(منهل)

## بَابُ مَنْ يَجُوزُ لَهُ أَخْذُ الصَّدَقَةِ وَهُوَ غَنِيٌّ

### باب: ٢٥- دَهغه خلقو بیان چه هغوی لره سره دَغنی کیدو، صدقه اخستل جائز دی.

[١٦٣٥]( ) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ إِلَّا لِخَمْسَةٍ: لِغَازٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، أَوْ لِعَامِلٍ عَلَيْهَا، أَوْ لِغَارِمٍ، أَوْ لِرَجُلٍ اشْتَرَاهَا بِمَالِهِ، أَوْ لِرَجُلٍ كَانَ لَهُ جَارٌ مِسْكِينٌ فَتُصُدِّقَ عَلَى الْمِسْكِينِ فَأَهْدَاهَا الْمِسْكِينُ لِلْغَنِيِّ".

د حضرت عطاء بن یسار نه منقول دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د پنځو صورتونو نه علاوه دَ هیڅ مالدار دپاره صدقه(اخستل) حلال نهٔ دی :(١) . کوم چه دَ الله په لاره کښې غازی او مجاهد وی -(٢) . یا دَ صدقاتو تحصیلدار(وصولوونکې) وی -(٣) . یا چه په چا باندې قرض وی -(۴) . یا هغه کوم چه په خپل مال سره دَ صدقې څیز واخلی -(۵) . یا هغه سړې چه یو مسکین ددهٔ همسایه وی، هغه مسکین ته صدقه ورکړې شوه نو دهٔ په هغې کښې غنی ته هدیه ورکړه -

عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ- صلى الله عليه وسلم- قَالَ « لاَ تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ إِلاَّ لِخَمْسَةٍ لِغَازٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوْ لِعَامِلٍ عَلَيْهَا أَوْ لِغَارِمٍ أَوْ لِرَجُلٍ اشْتَرَاهَا بِمَالِهِ أَوْ لِرَجُلٍ كَانَ لَهُ جَارٌ مِسْكِينٌ فَتُصُدِّقَ عَلَى الْمِسْكِينِ فَأَهْدَاهَا الْمِسْكِينُ لِلْغَنِيِّ».

### مضمون حدیث مع بیان مذاهب ائمه:

د زکوة مال د غنی دپاره حلال نه دې، لیکن پنځه قسمه غنیان داسې دی، چه هغوی دپاره د زکوة مال اخستل جائز دی،(١) غازی فی سبیل الله، جهاد ته تلونکې دپاره، د ائمه ثلاثه په نزد د هغې سړی دپاره سره ددې نه چه هغه غنی وی، زکوة اخستل جائز دی. بیا د امام مالک رحمه الله په نزد خو دا عام دی، د هر مجاهد په حق کښې، که په دیوان کښې دهغه نوم وی،(او د مال فئ نه هغه ته حصه ملاویږی، کومه چه مجاهدینو ته ملاویږی) او که نه وی،

[1]: سنن ابن ماجه/الزكاة ٢٧(١٨٤١)،( تحفة الأشراف :٤١٧٧، ١٩٠٩٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الزكاة١٧(٢٩)، مسند احمد(٤/٣، ٣١، ٤٠، ٥٦، ٩٧)(صحيح)

اود امام شافعي او احمد رحمه الله په نزد ددې نه هغه مجاهد مراددې، چه تطوعا (۱) جهاد ته تلل غواړي، يعنى په ديوان کښې دهغه نوم نه وى، او د مال فئ نه هغه ته حصه نه ملاويږي.
او د احنافو په نزد ددې نه هغه غنى مجاهد مراد دې، چه په جهاد کښې د شرکت نه کولو په صورت کښې خو غنى وى، ليکن جهاد کښې شرکت او دهغې دپاره تيارى دپاره سامان د جهاد اخستلو د وجې نه فقير شوې وى، نو دا سړې د خپل حالت سابقه په وجه غنى دى، ليکن حالت عارضه، کوم چه اوس ورته پيښ شوې دې، ددې په اعتبار سره محتاج دې، عرض داچه په دې حديث کښې دغازى فى سبيل الله نه مراد داسې قسمه غنى دې، په خلاف د ائمه ثلاثه، دهغوى په نزد ددې نه مطلق غنى مراد دې، احناف وائى، چه د زکوة اصل حقدار فقيران دى، ځکه چه آيت کريمه انما الصدقات للفقراء والمساکين، او حديث معاذ رضي الله عنه کښې دى، توخذ من اغنيائهم و ترد فى فقرائهم، په خپل مضمون کښې دا دواړه نص دى، صريح او صحيح دى، لهذا د حديث الباب معنى به هم ددې په رڼرا کښې متعين کولې شى، والله تعالى اعلم، او جمهور دا فرمائي، چه دا آيت کريمه او حديث معاذ رضي الله عنه پشان نور احاديث مخصوص منه البعض دى، او مخصص دا حديث دې.(منهل بزيادة)

(۱) اوالعامل عليها: په دې باندې د ټولو اتفاق دې، چه د عامل على الصدقات دپاره اخذ زکوة جائز دې، دهغه غنى کيدل د اخذ زکوة نه مانع نه دى، ځکه چه هغه څه اخلى، بطور حق الخدمت او اجرة د عمل ئې اخلى، نه بطور صدقة.

(۳) اوالغارم، هغه مديون چه دهغه دين دهغه د مال نه زيات وى، کوم چه هغه سره دې، يا دهغې برابر وى، يا کم وى، ليکن اداء دين نه پس چه کوم مال زياتې شى، هغه د نصاب هومره نه وى، (داسې سړې اګر چه صورة او ظاهرا د خپل موجوده مال په وجه غنى دې، ليکن فى الواقع غنى نه دې) او يو تفسير د غارم داسې کړې شوې دې، چه ددې نه هغه سړې مراد دې، چه هغه د اصلالح ذات البين دپاره تحمل حماله کړې وى، ددې تشريح د مصارف زکوة په بيان کښې تيره شوې ده، هلته کښې کتل پکار دى.

(۴) او لرجل اشتراها بماله، کوم غنى سړې چه مال زکوة د فقير نه په بيع واخلى، دهغه دپاره هم دا مال زکوة جائز کيږي، دا هم ښکاره خبره ده، چه د شراء زکوة دوه صورتونه دى، يو خو دا چه د بل چا ورکړې شوې زکوة د فقير نه واخستلې شى، په دې کښې خو هيڅ اختلاف نشته، او يو صورت دادې، چه يو سړې خپل ورکړې شوې زکوة د فقير نه په بيع واخلى، د جمهورو په نزد دا هم جائز دى، ليکن مکروه دى، او د امام احمد رحمه الله په نزد جائز نه دى، دا

---

[1] په اصل کښې اسلامى ملک کښې جهاد کښې تلونکى يعنى لښکرې دحکومت د طرفه مقرر وى، کوم ته چه زمونږ په عرف کښې فوج وائى ددوى دپاره يو ديوان يعنى رجسټر وى چه په هغې کښې د لښکر والو نومونه ليکلى کيږي، اوهغوى ته باقاعده دبيت المال نه رزق يعنى وظيفه ملاويږي دغه جماعت ته مرتزقه هم وائى يعنى په جهاد کښې د تلونکو هغه جماعت چه هغوى دپاره د بيت المال نه رزق او وظيفه مقررده. په کتاب الجهاد کښې به داسې قسمه ځيزونه او ابواب راځى نود کومو خلقو نومونه چه په دغه رجسټر کښې وى دهغوى خو به نمبر نمبر په جهاد کښې تلل ګويا مقرر او واجب دى دهغوى نه علاوه چه کوم خلق په جهاد کښې تلل غواړي دهغوى جهاد تطوعا ګڼرلې کيږي.

اختلافی مسئله د باب الرجل يبتاع صدقته، دلاندې تيره شوې ده.

(۵) اولرجل کان له جار مسکين، که يو غنی سړې ته فقير د زکوة مال هديه کړی، نو دا مال هغه غنی اخستلې شی، ددې نمبر ۵ او د تير شوی نمبر ۴ دواړو دپاره د جواز اخذ وجه ظاهره ده، چه کله زکوة يو ځل خپل مصرف او محل ته اورسيدو، نو ادا شو، اوس چه دا فقير په دې کښې څه تصرف کوی، کولې شی، دهغه خپل مال دې، او هغه چه چاته هم ورکوی، بطور زکوة او صدقه نه ورکوی، ځکه چه اول خو په دې فقير باندې خپل زکوة واجب هم نه دې، بالفرض که وی هم، نو د زکوة، زکوة کيدل موقوف دې په نيت زکوة باندې، او هغه دلته کښې شته نه، (منهل) په بذل کښې حضرت په دې باندې قصه بريره ﷞ ليکلې ده، په بذل کښې حضرت په دې باندې قصه د بريره ﷞ ليکلې ده، لک صدقة و لنا هدية، چه تاسو په مشکوة او دهغې نه مخکښې په نورالانوار کښې وئيلې ده، چه تبدل د ملک مستلزم دې، تبدل د عين لره حکما، دا حديث مخکښې په دې کتاب کښې باب الفقير يهدی للغنی من الصدقة، کښې راروان دې.

[۱۶۳۶](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ ابْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ زَيْدٍ، كَمَا قَالَ مَالِكٌ: وَرَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ زَيْدٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي الثَّبْتُ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

حضرت عطاء بن يسار د حضرت ابو سعيد خدری ﷜ نه روايت کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : او د مذکوره بالا حديث هم معنیٰ ئې روايت اوفرمائيلو - "امام ابوداود ﷫ فرمائی : چه دې حديث لره ابن عيينه د زيد نه هم داسې بيان کړې دې لکه څنګه چه مالک وئيلی دی - او ثوری د زيد نه روايت کړې دې او وئيلې ئې دی : [ حدثنی الليث عن النبی ﷺ ] يعنی يو بااعتماد کس زما په وړاندې د نبی کريم ﷺ حديث بيان کړو-

[۱۶۳۷](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا الْفِرْيَابِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عِمْرَانَ الْبَارِقِيِّ، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَحِلُّ الصَّدَقَةُ لِغَنِيٍّ إِلَّا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَوِ ابْنِ السَّبِيلِ أَوْ جَارٍ فَقِيرٍ يُتَصَدَّقُ عَلَيْهِ فَيُهْدِي لَكَ أَوْ يَدْعُوكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ فِرَاسٌ، وَابْنُ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

د حضرت ابو سعيد خدری ﷜ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : صدقه د هيڅ غنی د پاره حلال نه ده - مګر داچه د الله په لاره کښې (مجاهد) وی يا مسافر وی يا يو فقير همسايه ته صدقه ورکړې شوه او هغه فقير تاسو ته هديه درکړی، يا تاسو ته دعوت درکړی - امام ابوداود ﷫ فرمائی چه دې حديث لره فراس او ابن ابی ليلیٰ د عطيه نه، هغوی د ابو سعيد نه، او هغوی د نبی کريم ﷺ نه ددې په مثل باندې روايت کړې دې -

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۴۱۷۷، ۱۹۰۹۰)(صحيح)

(2): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۲۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۱، ۴۰، ۹۷)(ضعيف)

# بَاب كَمْ يُعْطَى الرَّجُلُ الْوَاحِدُ مِنَ الزَّكَاةِ

## باب: ۲۶- يو سړي ته دې دَ زکات نه څومره قدرې ورکړې شي؟

[۱۶۳۸]() حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ الصَّبَّاحِ، حَدَّثَنَا أَبُو نُعَيْمٍ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ عُبَيْدٍ الطَّائِيُّ، عَنْ بُشَيْرِ بْنِ يَسَارٍ، زَعَمَ أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ: سَهْلُ بْنُ أَبِي حَثْمَةَ أَخْبَرَهُ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَدَاهُ بِمِائَةٍ مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ" يَعْنِي دِيَةَ الْأَنْصَارِيِّ الَّذِي قُتِلَ بِخَيْبَرَ.

حضرت سهل بن حثمه انصاری رضی الله عنه خبر ورکړې دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغوی ته د صدقې د اوښانو نه دیت ادا کړې وو - یعنی دَ هغه انصاری رضی الله عنه دیت کوم چه په خیبر کښې قتل کړې شوې وو -

**تشریح: قوله:** أَنَّ رَجُلاً مِنَ الأَنْصَارِ يُقَالُ لَهُ سَهْلُ بْنُ أَبِي حَثْمَةَ أَخْبَرَهُ أَنَّ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- وَدَاهُ بِمِائَةٍ مِنْ إِبِلِ الصَّدَقَةِ - يَعْنِي دِيَةَ الأَنْصَارِيِّ الَّذِي قُتِلَ بِخَيْبَرَ.

دلته په دې باب کښې درې څيزونه د بيان محتاج دی، اول ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر ده، چه يو سړې ته د زکوة څومره مقدار ورکولې شی.ددې بيان او اختلاف ائمه، دويم د حديث الباب تشريح، دريم د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت، درې واړه څيزونه قابل تحقيق دی، والله الموفق والميسر.

### بحث اول: يو سړی ته څومره زکوة ورکولې شی؟

مسئله مختلف فيه ده، د احنافو په نزد شخص واحد ته مادون النصاب ورکولې شی، او بقدر نصاب ورکول مکروه دی، ليکن دا که هغه سړې مديون وی، نو بيا په دې صورت کښې دومره ورکولې شی، چه د اداء دين نه پس هغه سره مادون النصاب باقی پاتې شی، دغه شان که يو سړې عيال والا وی، نو هغه ته دومره مقدار ورکولې شی، چه که هغه په ټولو باندې تقسيم کړی، نو د هر يو په حصه کښې د نصاب نه کم راځی، او د امام مالک او احمد رحمه الله په نزد يو سړې ته بقدر کفاية عام ورکولې شی، يعنی دومره مقدار چه دهغه دپاره سره د عيال نه ټول کال دپاره کافی وی، او د حضرت امام شافعی رحمه الله په نزد دومره مقدار به ورکولې شی، چه دهغه باقی عمر غالب دپاره کافی وی، او عمر غالب دوه شپيتۀ کاله دې، کما تقدم، (منهل)

خطابی فرمائی چه د شافعيه مذهب دادې، چه په دې کښې هيڅ تحديد نشته، بلکه بقدر الحاجة ورکولې شی، او د سفيان ثوری رحمه الله په نزد يو سړی ته د خمسون درهما نه زيات نشی ورکولې، او دا يو قول د امام احمد رحمه الله دې اهـ،(عون) په اصل کښې د جمهورو مسلک په دې کښ(كما قال الموفق) دادې، چه يو فقير ته به د ما يحصل به الغنی نه زيات نشی ورکولې، او د ما يحصل به الغنی تفصيل مخکښې تير شوې دې، چه د ائمه ثلاثه په نزد ددې مصداق قدر کفاية دې، د مالکيه او حنابله په نزد کفاية عام دې،(د ټولو کال کفاية) او

[۱]: صحيح البخاري/الديات ۲۲(۶۸۹۸)، صحيح مسلم/القسامة ۱(۱۶۶۹)، سنن النسائي/القسامة ۲(۴۷۱۴)، سنن ابن ماجه/الديات ۲۸(۲۶۷۷)،(تحفة الأشراف :۴۶۴۴، ۱۵۵۳۶، ۱۵۵۹۲)(صحيح) ويأتي هذا الحديث مفصلاً برقم(۴۵۲۰)

د شافعیه په نزد د غیر مکتسب دپاره د باقي پاتي عمر غالب کفایة، او د مکتسب مثلا تاجر په حق کښې د هرې ورځې د کفایة حصول، یعنې روزانه دهغه دومره آمدني وی، چه دهغه او د هغه د أهل او عیال دپاره کافي وی.

**بحث ثاني: تشریح حدیث:**

د دې حدیث د الفاظو ترجمه خو داده، چه سهل ابن خثمه انصاری ﷺ فرمائي، چه نبی کریم ﷺ هغه ته سل اوښان د صدقاتو د اوښانو نه ورکړل، دهغه انصاري په دیة کښې، چه په خیبر کښې قتل شوې وو، یعنې چا لره چه دخیبر یهودیانو قتل کړې وو.

دا حدیث دلته کښې ډیر زیات مجمل او مختصر دې، چه په تفصیل سره د کتاب الحدود دلاندې باب القسامة کښې راروان دې، دهغې خلاصه داده، چه یو انصاري صحابي چه دهغه نوم عبدالله بن سهل دې، یو ورځ د خپل ملګری سره، چه دهغه نوم محیصه دې، د مدینې منورې نه خیبر ته لاړو، خیبر ته رسیدلو نه پس دا دواړه ملګری د یو بل نه جدا شول، لږ ساعت پس چه محیصه واپس خپل ځائي ته راغلو، کوم ځائي کښې چه جدا شوي وو، چه وې لیدل چه دهغه ملګرې عبدالله بن سهل د یو اوښي لاندې وژلې شوې دې، بیا ددې نه پس په حدیث کښې دی، چه انصارو د قتل دا مقدمه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې پیش کړه، چونکه قاتلان په تعین سره معلوم نه وو، او د خیبر په یهودیانو باندې د انصارو شبهه وه، ددې وجې نه نبی کریم ﷺ د قسامة فیصله اوفرمائیله، تفصیل ددې خو به په خپل مقام کښې راځي، خلاصه ددې داده، چه انصارو د یهودیانو قسمونه منلو ته تیار نه وو، چه دا خلق دروغ وائي، ددوی د قسمونو هیڅ اعتبار نشته، لهذا مقدمه خارج کیدل پکار وو، لیکن ددې باوجود بیا هم نبی کریم ﷺ د مقتول صحابي دیت کښې سل اوښان د بیت المال د اوښانو نه د مقتول ورور ته، چاچه مقدمه راوړې وه، ورکړل، یعنې عبد الرحمن بن سهل ته ئې ورکړل. [1]

ددې واقعې د تفصیل نه معلومه شوه، چه نبی کریم ﷺ دا دیت عبد الرحمن بن سهل ته ورکړې وو، حالانکه دلته کښې په حدیث الباب کښې د وداه ضمیر سهل بن خثمه ته راجع دې، لهذا دا لفظ د تاویل محتاج دې، یا خو داسې وئیل پکار دی، چه سهل ته ورکولو نه مراد دهغه قوم ته ورکول دی، او دهغه قوم انصار دې، او د مقتول ورور عبد الرحمن ته ورکړې شو، هغه هم انصاري دې، او یا داسې وئیل پکار دی، چه دلته کښې دا ضمیر غیر مذکور طرف ته راجع دې، او هغه غیر په اصل قصه کښې مذکور دې.

**یو فقهي اشکال او دهغې جواب:**

دلته کښې یو سوال دې، چه مصارف د زکوة متعین دی، او دیة په هغې مصارفو کښې نه دې، بیا دا اوښان په دیت کښې څرنګه ورکړې شو؟ ددې جواب دا ورکړې شوې دې، چه

[1] د نبی کریم ﷺ انصارو ته د مقتول دیت ورکول دهغوی په رعایت کښې دمصلحت په طور وو چه د یو مسلمان وینه دغسې مفت ضائع نه شي او دا چه راروان وخت کښې دغه دواړو فریقو انصار او یهودو په مینځ کښې ګړ بړ او بې چینې پاتې نه شي کذا قال المشائخ رحمهم الله، په دې تولو خبرو خان ښه پوهه کړئ انشاء الله په باب القسامة کښې به مو ډیرې په کار راشي. والله الموفق.

ممکن ده، چه داسې اوشيلې شی، چه دې صورت حال لره تحمل حمالة باندې محمول کړې شی، چه د اصلاح ذات البين دپاره ګويا نبی کريم ﷺ ديت په خپله ذمه باندې واخستلو، او بيا د قرضدارو د حصې نه ئې هغوی ته ورکړو، او يا داسې اوشيلې شی، چه د مؤلفة القلوب د حصې نه دا اوښان نبی کريم ﷺ هغوی ته ورکړل، والتوجيه الاول للخطابی والثانی ذکره صاحب المنهل.

**بحث ثالث: د حديث د ترجمة الباب سره مطابقت**

زما په نزد ډير مشکل دې، ځکه چه اول خو د اوښانو دا ورکول د زکوة دپاره نه وو، بلکه د دية په طور باندې وو، دويم دا چه سل اوښان يو سړی ته ورکول د هيچا مذهب نه دې، د ډير غور او فکر نه پس توجيه دا په پوهه کښې راځی، چه دا خو صحيح ده، چه دا ورکول بطور زکوة نه وو، ليکن چونکه مال د زکوة وو، په دې اعتبار سره ترجمه سره مناسبت پيدا کيږی، پاتې شو دا اشکال، چه په دومره لوئې مقدار کښې زکوة يو سړی ته څرنګه ورکولې شی، نو ددې حل دا کيدې شی، چه بې شکه فقير ته خو دومره مقدار ورکولې نشی، ليکن دا خو تحمل حماله وو، چه دهغې تعلق د دين سره وی، او مقدار د دين خو لوئې نه لوئې کيدې شی.

هذا ما عندی والله سبحانه و تعالی اعلم بالصواب، الحمد لله د باب سره متعلق مباحث پوره شول، دا باب په سبق کښې هميشه دپاره ماته مشکل معلوميدو، اميد دې چه اوس به حل شوې وی. و حديث الباب اخرجه ايضا البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه مختصرا و مطولا،(منهل)

# بَابُ مَا تَجُوزُ فِيهِ الْمَسْأَلَةُ

**باب: ...... په کوم صورت کښې سوال کول جائز دی؟**

[۱۶۳۹] ([1]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ النَّمَرِيُّ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عُقْبَةَ الْفَزَارِيِّ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمَسَائِلُ كُدُوحٌ يَكْدَحُ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ فَمَنْ شَاءَ أَبْقَى عَلَى وَجْهِهِ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَ، إِلَّا أَنْ يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ أَوْ فِي أَمْرٍ لَا يَجِدُ مِنْهُ بُدًّا".

حضرت سمره رضی الله عنه د نبی کريم ﷺ نه روايت کوی چه حضور ﷺ اوفرمائيل سوال کول خپل ځان لره زخمی کول دی، په دې سره انسان خپل مخ لره شوکه وی او زخمی کوی. چنانچه څوک چه غواړی نو هغه دې د خپل مخ آبرو( عزت) باقی اوساتی او څوک چه غواړی نو ضائع دې کړی، ليکن بيا هم که څوک د حکمران نه سوال اوکړی يا ډير زيات لاچاره شی، نو بيا څۀ مضائقه نشته دې.

**تشريح: قوله:** قَالَ « الْمَسَائِلُ كُدُوحٌ يَكْدَحُ بِهَا الرَّجُلُ وَجْهَهُ فَمَنْ شَاءَ أَبْقَى عَلَى وَجْهِهِ وَمَنْ شَاءَ تَرَكَ إِلاَّ أَنْ يَسْأَلَ الرَّجُلُ ذَا سُلْطَانٍ أَوْ فِى أَمْرٍ لاَ يَجِدُ مِنْهُ بُدًّا ».

[1]): سنن الترمذي/الزكاة ۳۸(۶۸۱)، سنن النسائي/الزكاة ۹۲(۲۶۰۰)،( تحفة الأشراف :۴۶۱۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۵/۱۰، ۱۹، ۲۲)(صحيح)

مسائل د مسئلې جمع، بمعنی سوال، او کدوح د کدح جمع د څه زخم نښه، مراد تري نه داغ دې، يعني د خلقو نه غوختل او سوال کول، خپل مخ لره داغدار او عيب دار کول دی، پس د چا چه زړهٔ غواړي، خپل مخ دې داغدار کړي، که نه غواړي نو د سوال نه دې ځان اوساتی، يعني د سوال ذلت سره د سړي د مخ رڼرا ختميږي، دهغه عزت خاوري کيږي، ليکن ددې نه مراد تخيير نه دې، چه نبی کريم ﷺ اجازت ورکوی، بلکه دا د زجر او توبيخ د قبيلې نه دې، کقوله تعالی فمن شاء فليؤمن و من شاء فليکفر انا اعتدنا للظلمين نارا، بيا مخکښې فرمائي، مګر دا چه يو سړې سوال اوکړي، د يو بادشاه نه، چه د بيت المال نه راکړي، ځکه چه په بيت المال کښې د ټولو مسلمانانو حصه ده، يا دا چه څه حاجت او مجبوري ډيره زياته شديده وي، چه هلته د سوال نه بغير بله څه لاره نه وي، نو بيا په دې صورت کښې د بادشاه نه علاوه هم سوال کولې شي.

الحديث اخرجه ايضا النسائي والترمذی وقال حسن صحيح(منهل)

[۱٦٤٠]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ هَارُونَ بْنِ رِئَابٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي كِنَانَةُ بْنُ نُعَيْمٍ الْعَدَوِيُّ، عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ مُخَارِقٍ الْهِلَالِيِّ، قَالَ: تَحَمَّلْتُ حَمَالَةً فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "أَقِمْ يَا قَبِيصَةُ حَتَّى تَأْتِيَنَا الصَّدَقَةُ فَنَأْمُرَ لَكَ بِهَا"، ثُمَّ قَالَ: "يَا قَبِيصَةُ، إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَحِلُّ إِلَّا لِأَحَدِ ثَلَاثَةٍ: رَجُلٍ تَحَمَّلَ حَمَالَةً فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ فَسَأَلَ حَتَّى يُصِيبَهَا ثُمَّ يُمْسِكُ، وَرَجُلٍ أَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ فَاجْتَاحَتْ مَالَهُ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ فَسَأَلَ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ أَوْ قَالَ: سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ، وَرَجُلٍ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ حَتَّى يَقُولَ ثَلَاثَةٌ مِنْ ذَوِي الْحِجَى مِنْ قَوْمِهِ قَدْ أَصَابَتْ فُلَانًا الْفَاقَةُ فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ فَسَأَلَ حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ أَوْ سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ ثُمَّ يُمْسِكُ، وَمَا سِوَاهُنَّ مِنَ الْمَسْأَلَةِ يَا قَبِيصَةُ سُحْتٌ يَأْكُلُهَا صَاحِبُهَا سُحْتًا".

حضرت قبيصه بن مخارق هلالی ﷺ نه روايت دې چه(يو ځل) زهٔ دَ چا ضامن جوړ شوم. بيا زهٔ دَ نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم نو هغوی ﷺ اوفرمائيل: اې قبيصه! اودريږه تردې پورې چه مونږ ته دَ څهٔ صدقه راشی نو مونږ به ستا دَ پاره په هغې کښې دَ درکولو حکم اوکړو بيا ئې اوفرمائيل: اې قبيصه! سوال کول حلال نهٔ دی، سوا دَ دريو کسانو نه دَ يو کس دَ پاره: کوم کس چه دَ چا ضمانت واخلی نو دَ هغه دَ پاره سوال کول جائز دی تردې پورې چه هغه خپل ضرورت پورا کړی، او بيا منع شی - دويم هغه سړې چه په هغه باندې څهٔ مصيبت يا آفت راغي او هغه(مصيبت او آفت) دَ هغه مال لره تباه کړی نو دداسې کس دپاره سوال کول حلال دی تردې پورې چه دَ ګزارې لائق خپل ضروريات حاصل کړی - او دريم هغه کس چه هغه لره انتهائی احتياج ګير کړې وی تردې پورې چه دَ هغه دَ قوم نه درې عقل مند افراد اووائی چه فلانکې از حد بې وسه شوې دې نو دداسې کس دپاره سوال کول حلال دی تردې پورې چه هغه خپل ګزران حاصل کړی او بيا منع شی ددې صورتونو نه علاوه سوال کول اې قبيصه!حرام دی، غوښتونکی حرام خوری -"

[1] ): صحيح مسلم/الزكاة ٣٦(١٠٤٤)، سنن النسائي/الزكاة ٨٠(٢٥٨٠)، ٨٦(٢٥٩٢)،( تحفة الأشراف :١١٠٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٧٧/٣، ٦٠/٥)(صحيح)

**تشریح: قوله**: عَنْ قَبِيصَةَ بْنِ مُخَارِقٍ الْهِلَالِيِّ قَالَ تَحَمَّلْتُ حَمَالَةً فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ -صلى الله عليه وسلم- إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لاَ تَحِلُّ إِلاَّ لأَحَدِ ثَلاَثَةٍ رَجُلٌ تَحَمَّلَ حَمَالَةً فَحَلَّتْ لَهُ الْمَسْأَلَةُ الخ

**شرح حدیث**:

یعنی د سوال ګنجائش صرف د دریو قسمه خلقو دپاره دې،(۱) هغه چا چه تحمل حماله کړې وی، یعنی د دواؤ سړو په مینځ کښې د صلح کولو دپاره د چا حق ئې په خپله ذمه اخستلې وی،(۲) هغه سړی چه دهغه په مال باندې ناساپې مصیبت او آفت راغلې وی، چه دهغې په وجه دهغه ټول مال تباه شوې وی،(نو هغه سړې سوال کولې شی)

حَتَّى يُصِيبَ قِوَامًا مِنْ عَيْشٍ ». أَوْ قَالَ « سِدَادًا مِنْ عَيْشٍ تردې پورې چه هغه ته د خپلې روزئ او ګذارې بندوبست حاصل شی، یعنی ترڅو پورې چه ورته حاصل نه وی، تر هغې پورې سوال کولې شی، د حاصلیدو نه پس نشی کولې.(۳) یو هغه سړې چه دهغه مالی حالت خو مخکښې ښه وو، لیکن بیا وروستو په تنګئ کښې مبتلاء شو، بلکه د هغه تنګی محققه شوه، په داسې طریقې سره چه دهغه د قوم درې باخبره عقلمند سړی دا ګواهی ورکړی، چه او واقعی فلانې سړې نن صبا په فاقه (اولږه) کښې مبتلاء دې.

په اصل کښې غوختونکې په دوه قسمه دی، یو غیر مشهور سړی، چه دهغه حاجت او عدم حاجت چاته صحیح طریقې سره معلوم نه وی، دویم مشهور سړې، پیژندګلو، چه دهغه باره کښې محلې والا د مخکښې نه خبر وی، چه هغه حاجت مند نه دې، داسې سړې چونکه په سوال کښې متهم وی، ددې وجې نه دهٔ دپاره هغه وخته پورې سوال کول جائز نه دی، تر څو پورې چه دهغه د قوم یو څو سړی اونه وائی، چه او واقعی دا سړې اوس حاجت مند دې، د خپل قوم قید ددې وجې نه دې، چه هغوی د نورو په نسبت زیات ددهٔ دحال نه خبر دی، د دې حدیث نه بعضې شافعیه لکه ابن خزیمه وغیره دا استدلال کړې دې، چه د ثبوت اعسار دپاره د دریو سړو شهادت پکار دې، جمهور علماء دا وائی، چه دا څیز د باب شهادت نه نه دې، بلکه د تبین حال او تحقیق حال د قبیلې نه دې، یا داسې وئیل پکار دی، چه د استحباب په طریقې سره دی، ګنی د اعسار(یعنی تنګی) ثبوت هم د نورو څیزونو پشان د دواؤ کسانو په شهادت سره کیږی.

**د حد غنی باره کښې د جمهورو دلیل**:

ددې حدیث حتی یصیب قواما من عیش نه د جمهورو تائید کیږی، چه د غنی او فقر مدار په حصول کفایة باندې دې، و قد تقدم تفصیل الخلاف فیه.

والحدیث اخرجه ایضا احمد و مسلم والنسائی وابن حبان والدار قطنی و ابن خزیمة(منهل)

[۱٦٤۱](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، أَخْبَرَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، عَنْ الْأَخْضَرِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ أَبِي بَكْرٍ الْحَنَفِيِّ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُهُ، فَقَالَ: "أَمَا فِي بَيْتِكَ شَيْءٌ؟" قَالَ: بَلَى، حِلْسٌ نَلْبَسُ بَعْضَهُ وَنَبْسُطُ بَعْضَهُ وَقَعْبٌ نَشْرَبُ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ، قَالَ: "ائْتِنِي بِهِمَا"، قَالَ: فَأَتَاهُ بِهِمَا فَأَخَذَهُمَا

[۱]: سنن الترمذي/البیوع ۱۰(۱۲۱۸)، سنن النسائي/البیوع ۳۰(٤٥۱۲)، سنن ابن ماجه/التجارات ۲٥(۲۱۹۸)،( تحفة الأشراف: ۹۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/۱۰۰، ۱۱٤، ۱۲٦)(ضعیف)

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِهِ، وَقَالَ: "مَنْ يَشْتَرِي هَذَيْنِ؟" قَالَ رَجُلٌ: أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمٍ، قَالَ: "مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ" مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا، قَالَ رَجُلٌ: أَنَا آخُذُهُمَا بِدِرْهَمَيْنِ، فَأَعْطَاهُمَا إِيَّاهُ وَأَخَذَ الدِّرْهَمَيْنِ وَأَعْطَاهُمَا الْأَنْصَارِيَّ، وَقَالَ: "اشْتَرِ بِأَحَدِهِمَا طَعَامًا فَانْبِذْهُ إِلَى أَهْلِكَ وَاشْتَرِ بِالْآخَرِ قَدُومًا فَأْتِنِي بِهِ"، فَأَتَاهُ بِهِ، فَشَدَّ فِيهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُودًا بِيَدِهِ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: "اذْهَبْ فَاحْتَطِبْ وَبِعْ وَلَا أَرَيَنَّكَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا"، فَذَهَبَ الرَّجُلُ يَحْتَطِبُ وَيَبِيعُ فَجَاءَ وَقَدْ أَصَابَ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فَاشْتَرَى بِبَعْضِهَا ثَوْبًا وَبِبَعْضِهَا طَعَامًا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَذَا خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ تَجِيءَ الْمَسْأَلَةُ نُكْتَةً فِي وَجْهِكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لَا تَصْلُحُ إِلَّا لِثَلَاثَةٍ: لِذِي فَقْرٍ مُدْقِعٍ، أَوْ لِذِي غُرْمٍ مُفْظِعٍ، أَوْ لِذِي دَمٍ مُوجِعٍ".

حضرت انس بن مالک ﷺ روایت کوی چې یو انصاری د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې راغې او هغه څۀ غوښتل - حضور ﷺ اوفرمائیل آیا ستا په کور کښې څۀ نشته دې؟ هغه اووې ولې نشته دې، یوه کمبل غونډې ده، د هغې یوه حصه اغوندم او څۀ ځان ته خوره وم او یوه پیاله چه په هغې سره څښاک کوو - حضور ﷺ اوفرمائیل دا دواړه ماته راوړه -" چنانچه هغه راوړل - نو رسول الله ﷺ هغې لره په خپل لاس کښې واخستل اووې فرمائیل: څوک دا څیزونه اخلی؟ یو کس اووې زۀ دې لره په یو درهم باندې اخلم - حضور ﷺ اوفرمائیل د یو درهم نه په زیات باندې څوک اخلی؟ حضور ﷺ دا دوه یا درې ځله اوفرمائیل: یو (بل) کس اووې زۀ ددې دوه درهمه درکووم، چنانچه هغوی ﷺ دا دواړه څیزونه هغه ته ورکړل او دوه درهمه ئې ترینه واخستل او دواړه ئې هغه انصاری ته ورکړل او هغه ته ئې اوفرمائیل: په یو درهم باندې طعام واخله او خپل کور والو ته ئې ورکړه او په دویم سره تبر واخله او ماته ئې راوړه،" چنانچه هغه راوړو نو حضور ﷺ په خپلولاسونو سره په هغې کښې لاسکې واچولو اووې فرمائیل: ځه لرګی کټ کوه او خرڅوه، او تر د پنځلسو ورځو پورې چه زۀ تا اونۀ وینم - چنانچه هغه کس لاړو، لرګی به ئې کټ کول او خرڅول به ئې، بیا راغې او هغه ته لس درهمه ملاؤ شوې وو په څۀ باندې ئې کپړا واخستله او په څۀ سره ئې د خوراک څښاک څیزونه، نو رسول الله اوفرمائیل: دا ددې نه بهتر دی چه په سوال کولو سره ستا په مخ باندې د قیامت په ورځ داغ وی - بې شکه غوښتل (سوال کول) روا نۀ دی سوا د دریو کسانو نه: از د فقیر محتاج خاک نشین، یا په بې آرامۍ کښې مبتلا قرضدار یا په دیت کښې د پریوتلې وینې والا (یعنی په چا باندې چه دقتل دیت لازم وی -")

**تشریح: قوله:** «قَالَ « أَمَا فِي بَيْتِكَ شَيْءٌ ». قَالَ بَلَى حِلْسٌ نَلْبَسُ بَعْضَهُ وَنَبْسُطُ بَعْضَهُ وَقَعْبٌ نَشْرَبُ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ. قَالَ « ائْتِنِي بِهِمَا ».قال فَأَتَاهُ بِهِمَا فَأَخَذَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- بِيَدِهِ وَقَالَ ....الخ

د حدیث مضمون واضح دې، د تشریح محتاج نه دې

## د بیع المزایدة (نیلام) جواز:

په دې حدیث کښې دا ذکر دی، چه نبی کریم ﷺ د هغې سری تاټ او د لرګی پیالۍ په دې طریقې سره خرڅ کړل، چه هغې ته په بیع من یزید او بیع المزایده سره تعبیر کولې شی، اول تعبیر لره امام ترمذی او دویم تعبیر لره امام بخاری په ترجمة الباب کښې اختیار کړې دې،

چه هغې ته زمونږ په معاشره کښې نیلام او نیلامی بیع وئیلې شي، دا د جمهورو په نزد جائز ده، او د ابراهیم نخعی رحمه الله په نزد مکروه ده، او بعضې علماء لکه امام اوزاعی رحمه الله او اسحق بن راهوایه د تخصیص قائل دی، هغه داچه داسې قسمه بیع صرف په غنائم او مواریث کښې جائز ده، هر ځائي کښې جائز نه ده، حدیث الباب ته امام ترمذی رحمه الله حسن وئیلې دې، او امام بخاری رحمه الله هیڅ یو صریح حدیث په دې مسئله کښې مسندا نه دې ذکر کړې.

**قوله**: وَلاَ أَرَيَنَّكَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَوْمًا ».

او دې نه وینم پنځلسو ورځو پورې، (پنځلس ورځې ماته خپل شکل مهٔ ښایه) یعنی زما مجلس ته مهٔ راځه، بلکه په کوم کار کښې دې لګوم، په هغې کښې لګیا اوسه، بیا پنځلس ورځې پوره کیدو نه پس راشه او ماته صورت حال بیان کړه.

**قوله**: إِنَّ الْمَسْأَلَةَ لاَ تَصْلُحُ إِلاَّ لِثَلاَثَةٍ لِذِى فَقْرٍ مُدْقِعٍ أَوْ لِذِى غُرْمٍ مُفْظِعٍ أَوْ لِذِى دَمٍ مُوجِعٍ ».

## شرح حدیث :

سوال کول جائز نهٔ دی، مګر د درې قسمه خلقو دپاره :

(۱) هغه سړی دپاره چه دهغه فقر دقعاء یعنی خاؤرو سره یوځائي کونکې وی، کما فی قوله تعالی او مسکینا ذا متربة،

(۲) داسې قرضدارې چه دهغه قرض قطیع یعنی شدید وی، یقال اقطع الامر ای اشتد، د دین د شدید کیدو مطلب دادې، چه دهغې ادا کول ډیر زیات ګران وی، ځکه چه اسباب ئې نه وی. (۳) د داسې دم والا دپاره، چه هغه ئې بې آرامه کړې وی، یعنی د څه قتل په مسئله کښې یو سړی په خپله ذمه دیت واخستو، د اصلاح ذات البین په طور باندې، لیکن په هغه کښې دومره استطاعت نشته، چه هغې لره ادا کړې شي، اوس کهٔ دیت نه ادا کوی، نو قاتل لره به قتلولې شي، چه هغې سره به دهٔ ته تکلیف رسی، نو په داسې صورت حال کښې دهٔ دپاره سوال کول جائز دی، والحدیث اخرجه ایضا احمد و ابن ماجه والترمذی و قال حدیث حسن و اخرجه النسائی مختصرا(منهل)

# بَابُ كَرَاهِيَةِ الْمَسْأَلَةِ

**باب: ۲۷- دَ غوښتلو او دَ سوال کولو بیان.**

[۱۶۴۲] (۱) حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ، عَنْ رَبِيعَةَ يَعْنِي ابْنَ يَزِيدَ، عَنْ أَبِي إِدْرِيسَ الْخَوْلاَنِيِّ، عَنْ أَبِي مُسْلِمٍ الْخَوْلاَنِيِّ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْحَبِيبُ الأَمِينُ أَمَّا هُوَ إِلَيَّ فَحَبِيبٌ وَأَمَّا هُوَ عِنْدِي فَأَمِينٌ عَوْفُ بْنُ مَالِكٍ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَةً أَوْ ثَمَانِيَةً أَوْ تِسْعَةً، فَقَالَ: "أَلاَ تُبَايِعُونَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟" وَكُنَّا حَدِيثَ عَهْدٍ بِبَيْعَةٍ، قُلْنَا: قَدْ بَايَعْنَاكَ، حَتَّى قَالَهَا ثَلاَثًا فَبَسَطْنَا أَيْدِيَنَا فَبَايَعْنَاهُ، فَقَالَ قَائِلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا قَدْ بَايَعْنَاكَ، فَعَلاَمَ نُبَايِعُكَ؟ قَالَ: "أَنْ تَعْبُدُوا اللَّهَ وَلاَ تُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَتُصَلُّوا الصَّلَوَاتِ الْخَمْسَ وَتَسْمَعُوا وَتُطِيعُوا، وَأَسَرَّ كَلِمَةً خَفِيَّةً، قَالَ: وَلاَ تَسْأَلُوا النَّاسَ شَيْئًا، قَالَ: فَلَقَدْ كَانَ بَعْضُ أُولَئِكَ النَّفَرِ يَسْقُطُ سَوْطُهُ فَمَا يَسْأَلُ أَحَدًا أَنْ يُنَاوِلَهُ إِيَّاهُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَدِيثُ هِشَامٍ لَمْ يَرْوِهِ إِلاَّ سَعِيدٌ.

[1]: صحیح مسلم/الزکاة ۳۵(۱۰۴۳)، سنن النسائي/الصلاة ۵(۴۶۱)، سنن ابن ماجه/الجهاد ۴۱(۲۸۶۸)، (تحفة الأشراف: ۱۰۹۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۷/۶)(صحیح)

دَ حضرت ابو مسلم خولانی نه روایت دې چه ما ته یو حبیب (خوږ) او امین کس حدیث بیان کړو - هغه زما محبوب او ما ته قریب او نزدې امین دې (یعنی) حضرت عوف بن مالک رضی الله عنه هغه بیان کوی چه مونږ دَ رسول الله ﷺ په خدمت کښې اووهٔ یا اتهٔ یا نههٔ افراد وو، حضور ﷺ اوفرمائیل: آیا تاسو دَ الله دَ رسول سره بیعت نهٔ کوئ؟ حالانکه مونږ اوس اوس تازه بیعت کړې وو - مونږ اووې مونږ بیعت کړې دې، مګر هغوی ﷺ خپله خبره درې ځله اوفرمائیله - پس مونږ خپل لاسونه وراوږدهٔ کړل او بیعت مو اوکړو - یو کس اووې اې دَ الله رسوله ! مونږ (ددې نه وړاندې) ستاسو نه بیعت کړې دې نو اوس په څهٔ خبره باندې بیعت اوکړو؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: "(په دې خبره باندې چه) صرف دَ الله عبادت به کوئ، دَ هغه سره به څهٔ څیز شریک نهٔ جوړوئ، پنځه وخته مونځ به کوئ او (دَ احکام شریعت او دَ حکامو خبره به) اورئ او منئ به ئې - او یوه خبره ئې په مزه غوندې اوفرمائیله: "دَ خلقو نه به څهٔ نهٔ غواړئ -" بیان کوی چه بیا دَ هغه خلقو حال دا وو کهٔ دَ چا نه به څهٔ کوړه (چابک) هم پریوتلو نو هغه به چا ته داسې نهٔ وئیل چه دا رواخله او ماته ئې راکړه -

**تشریح: قوله:** عن عَوْفُ بْنُ مَالِكٍ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– سَبْعَةً أَوْ ثَمَانِيَةً أَوْ تِسْعَةً فَقَالَ « أَلاَ تُبَايِعُونَ رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– ». وَكُنَّا حَدِيثَ عَهْدٍ بِبَيْعَةٍ

عوف بن مالک رضی الله عنه فرمائي: چه مونږ یوه ورځ د نبی کریم ﷺ په مجلس کښې اووهٔ یا اتهٔ یا نهه کسان موجود وو، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه آیا ما سره بیعت نه کوئ، هغه فرمائي چه چونکه مونږ نزدې زمانه کښې د نبی کریم ﷺ سره بیعت کړې وو، یعنی بیعة اسلام، ددې وجې نه مونږ عرض اوکړو، چه یا رسول الله ﷺ مونږ خو تاسو سره بیعت کړې دې، نو اوس په کوم څیز باندې بیعت اوکړو، په دې باندې نبی کریم ﷺ هغې حاضرینو ته په بعضو اعمالو باندې بیعت اوکړو، کوم چه په حدیث کښې ذکر دی.

## د صوفیانو په بیعت سلوک باندې استدلال:

حضرت شیخ په حاشیه دبذل کښې لیکلې دی، چه په دې حدیث کښې په بیعت او سلوک باندې چه د صوفیاؤ په نزد مشهور دی، دلیل ملاویږی، ځکه ظاهره خبره ده، چه دا بیعت علی الاسلام خو وو نه، بلکه په اعمال صالحه او د کفر او شرک نه بچ کیدو باندې وو،

و فی المنهل تحت عنوان، فقه الحديث، دل الحديث على ما كان عليه النبى صلى الله عليه وسلم من الحرص على نشر الدعوة و تبليغ الاحكام كلما وجد الى ذلك سبيلا، وعلى مشروعية التعاهد على البر والتقوى. ١هـ

**قوله:** وَأَسَرَّ كَلِمَةً خَفِيَّةً : او یوه خبره نبی کریم ﷺ په مزه آواز سره اوفرمائیله، دې دپاره چه تول ئې واؤرې، هغه داچه «وَلاَ تَسْأَلُوا النَّاسَ شَيْئًا ». ددې عدم سوال هدایت نبی کریم ﷺ په مزه ځکه اوفرمائیل، چه د خلقو حالات مختلف وی، د بعضو دپاره د سوال ګنجائش وی، بلکه بعضې وخت کښې ضروری وی، او د بعضو دپاره د سوال کولو ګنجائش نه وی، ددې

وجي نه ټول خلق ددې مخاطب او مکلف نه شو. (کذا فی المنهل)[1]

قَالَ فَلَقَدْ كَانَ بَعْضُ أُولَئِكَ النَّفَرِ يَسْقُطُ سَوْطُهُ فَمَا يَسْأَلُ أَحَدًا هغه خبره چه نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته پټه بیان کړه، په هغې باندې هغې حضراتو چه کوم شدت سره عمل اوکړو، راوی هغې لره بیانوی، چه دغې بیعت کونکو کښې د بعضو حال دا وو، چه که په هغوی کښې به چرته د سور سړی کوړا هم په زمکه پریوته، نو بل چاته به ئې سوال نه کولو، چه رائې کړه، بلکه په خپله به د سورلئ نه کوزیدو، او هغه به ئې پورته کوله، رضی الله تعالی عنهم و عن سائر الصحابة.

والحديث اخرجه ايضا مسلم و النسائي وكذا ابن ماجه في باب البيعة واشار المصنف الى كونه غريبا بقوله حديث هشام لم يروه الا سعيدا (منهل)

[١٦٤٣] ([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِي الْعَالِيَةِ، عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: وَكَانَ ثَوْبَانُ مَوْلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ تَكَفَّلَ لِي أَنْ لَا يَسْأَلَ النَّاسَ شَيْئًا وَأَتَكَفَّلُ لَهُ بِالْجَنَّةِ؟" فَقَالَ ثَوْبَانُ: أَنَا، فَكَانَ لَا يَسْأَلُ أَحَدًا شَيْئًا.

د حضرت ثوبان رضی الله عنه نه مروی دی او دا د حضور ﷺ مولیٰ (غلام او خادم) وو - بیان کوی چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: څوک دې چه هغه ماته دا ضمانت راکړی چه هغه به د خلقو نه څۀ نۀ غواړي چه زۀ هغه ته د جنت ضمانت ورکړم -؟ نو حضرت ثوبان رضی الله عنه اووې زۀ. چنانچه هغه به د هیچا نه سوال نۀ کوو -"

## بَابٌ فِي الِاسْتِعْفَافِ

### باب: ۲۸ - د سوال نه د بچ کیدو فضیلت

عفة په معنی د ترک او پرهیز، وئیلې شی، عف عن الشیء یعف، من باب ضرب عفا و عفة و عفافا ای امتنع عنه پس مطلب دا شو، چه د سړی د الله تعالی نه عفة عن السوال طلب کول، یعنی چه الله تعالی هغه لره د سوال نه بچ کړی.

[١٦٤٤] ([3]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ يَزِيدَ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ نَاسًا مِنَ الْأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَعْطَاهُمْ، ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ، حَتَّى إِذَا نَفِدَ مَا عِنْدَهُ، قَالَ: "مَا يَكُونُ عِنْدِي مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ أَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ، وَمَنْ يَسْتَعْفِفْ يُعِفَّهُ اللَّهُ، وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللَّهُ، وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللَّهُ، وَمَا أَعْطَى اللَّهُ أَحَدًا مِنْ عَطَاءٍ أَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ".

---

[1]: زما په ذهن کښې ددې حکمت دا راغلې دې چه دا جزء هغوی د راز په طور اوفرمائیلو چه بعضې دا واؤری او بعضې نې وانه ؤری او دخلقو عادت وی چه د راز او پټې خبرې لټون او تپوس کوی دغسې دلته د حضور ﷺ د مجلس نه د پاسیدلو نه پس د یوبل نه تپوسونه کول چه حضور ﷺ دا پټه څه خبره اوفرمائیله؟ چه په دې کښې به په دې خبره کښې نور هم اهمیت پیدا کیږی. والله تعالى أعلم بالصواب.

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٢٠٨٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الزكاة ٨٦(٢٥٩١)، سنن ابن ماجه/الزكاة ٢٥(١٨٣٧)، مسند احمد(٥/٢٧٥، ٢٧٦، ٢٧٩، ٢٨١)(صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الزكاة ٥٠(١٤٦٩)، والرقاق ٢٠(٦٤٧٠)، صحيح مسلم/الزكاة ٤٢(١٠٥٣)، سنن الترمذي/البر ٧٧(٢٠٢٤)، سنن النسائي/الزكاة ٨٥(٢٥٨٩)، (تحفة الأشراف: ٤١٥٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصدقة ٢(٧)، مسند احمد(٣/٣، ٩، ١٢، ١٤، ٤٧، ٩٣)، سنن الدارمي/الزكاة ١٨(١٦٨٦)(صحيح)

دَ حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې چه دَ انصارو څهٔ خلقو دَ نبي كريم ﷺ نه سوال اوكړو نوحضور ﷺ هغوی ته عنايت اوفرمائيلو- هغوی بيا سوال اوكړو نو حضور ﷺ هغوی ته وركړل تردې پورې چه دَ حضور ﷺ سره څهٔ وو، هغه ټول ختم شو نو حضور ﷺ اوفرمائيلِ: زما سره چه كوم مال هم وی هغې لره به زهٔ هر ګز ستاسو نه، نهٔ ذخيره كووم او څوك چه دَ سوال نه ځان بچ كوی الله تعالىٰ به هغه لره بچ كوی او څوك غنا اختياروی الله تعالىٰ به هغه لره غني كوی- او څوك چه صبر كوی الله تعالىٰ به دَ هغه نه صابر جوړوی اودَ صبر نه بل كوم داسې وسيع نعمت نشته چه الله تعالىٰ چاته وركړې وی

عَنْ أَبِى سَعِيدٍ الْخُدْرِىِّ أَنَّ نَاسًا مِنَ الأَنْصَارِ سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– فَأَعْطَاهُمْ ثُمَّ سَأَلُوهُ فَأَعْطَاهُمْ حَتَّى إِذَا نَفِدَ مَا عِنْدَهُ قَالَ « مَا يَكُونُ عِنْدِى مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ أَدَّخِرَهُ عَنْكُمْ

يعني بعضو انصارو به د نبي كريم ﷺ نه بار بار سوال كولو، څه وقفې سره، نبي كريم ﷺ به هغوی ته وركول، تردې پورې چه څه د نبي كريم ﷺ سره وو، هغه پاتې نشو، نو يوه ورځ نبي كريم ﷺ هغوی ته اوفرمائيل: چه ګورئ، څه مال چه ماسره وی، هغې لره زهٔ چرې هم سنبهالوم نه، بلكه هغه تقسيموم، بيا ئې اوفرمائيل: وَمَنْ يَسْتَعْفِفْ يُعِفَّهُ اللَّهُ وَمَنْ يَسْتَغْنِ يُغْنِهِ اللَّهُ

**شرح حديث:**

كوم سړې چه ـ خپل نفس نه عفة عن السوال طلب كوی، يعني د سوال نه د بچ كيدو كوشش كوی، او خپل نفس په دې باندې اماـده كوی، او يا مطلب دادې، چه كوم سړې د الله تعالى نه عفت عن السوال طلب كوی، او دا غواړی، چه الله تعالى هغه لره د سوال نه اوساتی، يعفه الله نو بيا واقعی الله تعالى هغه لره بچ كوی، او دې پسې جملې مطلب دادې، چه كوم سړې خپله غنی ښكاره كوی، او د خلقو نه استغناء كوی، نو بيا الله تعالى هغه لره په رشتيا غنی جوړوی، دمال په ذريعې سره يا دغنی القلب په ذريعې سره.

وَمَنْ يَتَصَبَّرْ يُصَبِّرْهُ اللَّهُ او كوم سړې چه د الله تعالى نه توفيق د صبر طلب كوی، يا كوم سړې چه خپل ځان لره په صبر باندې آماده كوی، او په تكلف سره صبر اختياروی، نو الله تعالى هغه ته د صبر خصلت وركوی، چه بيا دهغې په ذريعې دهٔ دپاره صبركول آسان وی.

وَمَا أَعْطَى اللَّهُ أَحَدًا مِنْ عَطَاءٍ أَوْسَعَ مِنَ الصَّبْرِ ». يعني د صبر نه زيات څه دولت خو چاته وركړې شوې نه دې، ځكه چه ددې نه لوئې څه خصلت نشته، ځكه چه صبر داسې يو خصلت دې، چه ددې ضرورت د ژوند د شعبو نه په هره شعبه كښې پيښيږی، ځكه چه انسان ته ژوند په منزلونو كښې په هر منزل كښې څه نه څه ناخوښه خبره پيښيږی، او دهغې بهترين علاج او حل صبر دې، نو ګويا چه صبر د انسان په قدم قدم باندې پكار راتلونكې څيز دې، ددې وجې نه دې ته اوسع العطايا فرمائيلې شوې دې، د صبر خلاصه رضا بالقضاء ده،[1] چه كومه ناخوښه خبره پيښه شوې ده ، هغه منجانب الله او د الله تعالى د تقدير نه ده، او

---

[1] دا تفسير د صبر بالمعصيت دې، د صبر دوه قسمونه دی: (۱) صبر عن المعصيت: نفس د معصيت (ګناه) نه د منع كولو كوشش كول. (۲) صبر علي الطاعة: خپل نفس په اطاعت باندې مضبوط ساتل او په دې كښې مشقت برداشت كول.

پته نه لګی، چه په هغې کښې څومره مصلحتونه پټ دی.
والحدیث اخرجه ایضا البخاری و مسلم والنسائی والترمذی(منهل)

[۱۶۴۵](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ دَاوُدَ. ح وحَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ حَبِيبٍ أَبُو مَرْوَانَ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ وَهَذَا حَدِيثُهُ، عَنْ بَشِيرِ بْنِ سَلْمَانَ، عَنْ سَيَّارٍ أَبِي حَمْزَةَ، عَنْ طَارِقٍ، عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ وَمَنْ أَنْزَلَهَا بِاللهِ أَوْشَكَ اللهُ لَهُ بِالْغِنَى إِمَّا بِمَوْتٍ عَاجِلٍ أَوْ غِنًى عَاجِلٍ".

دَ حضرت عبد الله بن مسعود ﷛ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل : '' چاته چه انتهائی سخت حاجت پیښ شو او دهٔ هغې لره په خلقو باندې پیش کړو نو ددهٔ دا حاجت به نهٔ پوره کیږی او چاچه په الله پاک باندې پیش کړو نو عنقریب به الله تعالیٰ دهٔ لره بې پرواه کړی - یا به دهٔ ته زر مرګ راشی(او دَ دنیا دَ غمونو او مصیبتونو نه به دهٔ لره خلاص کړی) یا به زر غنی شی -(او هیچا ته به ئې حاجت پاتې نهٔ شی -)

عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ –صلى الله عليه وسلم– « مَنْ أَصَابَتْهُ فَاقَةٌ فَأَنْزَلَهَا بِالنَّاسِ لَمْ تُسَدَّ فَاقَتُهُ وَمَنْ أَنْزَلَهَا بِاللَّهِ أَوْشَكَ اللَّهُ لَهُ بِالْغِنَى(۲)

**تشریح**: **قوله**: إِمَّا بِمَوْتٍ عَاجِلٍ أَوْ غِنًى عَاجِلٍ »(۳)

کوم سړی ته چه فقیری او اولړه پیښه شی، او هغه دې لره د خلقو په مخکښې بیانوی، نو دهغه اولړه ختمیږی نه، ځکه چه اول خو دا ضروری نه ده، چه هغه دهٔ ته څه ورکړی، او که څه ورکړی، نو خلقو ته حاجت خو ئې باقی پاتې دې، دهغې نه ئې استغناء رانغله، او څوک چه خپلې دې فاقې لره الله تعالی ته بیان کړی، او دهغه نه خپل حاجت طلب کړی، نو(دا د دواړو حالتونو نه خالی نه دې) یا خو به الله تعالی دهغه انتظام په موت عاجل سره اوفرمائی، چه نزدې زمانه کښې به دهغه څه نزدې رشته دار وفات کړی، او دهغه د میراث نه به ددهٔ حاجت پوره کړی، یا مطلب دادې، چه خپله دا حاجت مند به وخت پوره کیدو د وجې نه پورته کړی، نه به محتاج وی، او نه به حاجت باقی وی، دویم شکل دادې، چه دهٔ ته به په څه طریقې سره سمدستی غناء ورکړی.
والحدیث اخرجه ایضا الترمذی و قال حسن غریب،(منهل)

---

(۱): سنن الترمذي/الزهد ۱۸(۲۳۲۶)( تحفة الأشراف :۹۳۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۳۸۹، ۴۰۷، ۴۴۲)(صحیح)

(۲) غنی په کسرې د غین او قصر یعنی مالداری او د مصابیح په نسخه کښې بالغناء دې یعنی په فتحه د غین او مدسره چه ددې معنی کفایت (کافی کیدل) ده، د مصابیح په شروحو کښې لیکلی دی چه غناء صحیح دې ځکه چه دحدیث مطلب دادې چه داسې کس ته به الله تعالی ضرور کفایت ورکوی، روستو ئې په حدیث کښې د کفایت دوه شکلونه بیان کړی دی.(عون المعبود)

(۳) د ابوداؤد په ټولو نسخو کښې دغه شان دې أَوْغِنًى عَاجِلٍ لیکن په مشکوة کښې أَوْغِنًى آجِلٍ (په همزه سره) دې. علامه طیبی هم دې ته ترجیح ورکړې ده، خو دا صحیح نه ده په ظاهره راجح هَمدا دې کوم چه دلته دې ځکه چه دحدیث مطلب دادې چه الله تعالی داسې سړی ته ضرور کفایت ورکوی او فورا دهغه انتظام کوی که دهغه یو رشته دار ته مرګ ورکولوسره وی او که په بله طریقه وی، (من البذل والمنهل)

[۱۶۴۶]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ بَكْرِ بْنِ سَوَادَةَ، عَنْ مُسْلِمِ بْنِ مَخْشِيٍّ، عَنِ ابْنِ الْفِرَاسِيِّ، أَنَّ الْفِرَاسِيَّ، قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: أَسْأَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا، وَإِنْ كُنْتَ سَائِلًا لَا بُدَّ فَاسْأَلِ الصَّالِحِينَ".

د ابن الفراسی نه روایت دې چه فراسی رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته اووئیل: اې د الله رسوله! ایا زهٔ سوال کووم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: نهٔ - کهٔ چرې تهٔ ضرور سوال کوې چه د هغې نه ستا خلاصې نهٔ وی نو د نیک خلقو نه سوال کوه -

عَنِ ابْنِ الْفِرَاسِيِّ أَنَّ الْفِرَاسِيَّ قَالَ لِرَسُولِ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- أَسْأَلُ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَقَالَ النَّبِيُّ -صلى الله عليه وسلم- « لاَ وَإِنْ كُنْتَ سَائِلاً لاَ بُدَّ فَسَأَلِ الصَّالِحِينَ ».

او که سوال ستا دپاره ډیر ضروری وی، نو بیا د صالحانو نه سوال کوه، ځکه چه د صالح نه سوال کولو کښې زیات ذلت نه وی، ځکه چه صالح سړې یو مسلمان لره ذلیل نه ګنړی، دویم داچه که هغه سره څه وی، نو دربه کړی، ګنې کم از کم دعاء به درته اوکړی، او مناسب لاره به درته اوښائی.

دې حدیث لره ابن الفراسی د خپل پلار فراسی نه روایت کوی، بنو فراس یوه قبیله ده، په دې دواړو کښې د هیڅا نوم معلوم نه دې، او بعضې وائی، چه فراسی ئې نوم وو، او وئیلې شوی دی، چه صحیح فراس دې، یعنی بغیر د یاء نسبت نه، او فراس دهغه نوم دې، والحدیث اخرجه ایضا النسائی،((منهل)

[۱۶۴۷]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ، قَالَ: اسْتَعْمَلَنِي عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَلَى الصَّدَقَةِ، فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْهَا وَأَدَّيْتُهَا إِلَيْهِ أَمَرَ لِي بِعُمَالَةٍ، فَقُلْتُ: إِنَّمَا عَمِلْتُ لِلَّهِ وَأَجْرِي عَلَى اللَّهِ، قَالَ: خُذْ مَا أُعْطِيتَ فَإِنِّي قَدْ عَمِلْتُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "فَعَمَّلَنِي"، فَقُلْتُ مِثْلَ قَوْلِكَ، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أُعْطِيتَ شَيْئًا مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْأَلَهُ فَكُلْ وَتَصَدَّقْ".

حضرت ابن ساعدی رضی الله عنه بیان کوی چه حضرت عمر رضی الله عنه ما لره د زکات تحصیلدار جوړ کړو اووې لیږلم- کله چه زهٔ ددې کار نه فارغ شوم او راغلم او جمع کړې شوی صدقات مې هغوی ته پیش کړل نو هغوی زما په باره کښې حکم اوکړو چه دهٔ ته دې دده حق الخدمت ورکړې شی ما اووې نهٔ ما دا کار د الله د پاره کړې دې او زما اجر په الله پاک باندې دې - هغوی اوفرمائیل: کوم څهٔ چه تاته درکولې شی هغه واخله، ما هم د رسول الله ﷺ په زمانه کښې (داسې قسم) کار کړې وو، نو حضور ﷺ ماته د هغې حق الخدمت راکړې وو، ما هم ستا غوندې جواب ورکړې وو، نو رسول الله ﷺ ماته فرمائیلې وو: " کله چه تاته څهٔ څیز درکړې شی بغیر ددې نه چه تهٔ د هغې سوال اوکړې نو (هغې لره واخله او) اوخوره او صدقه ئې کړه -"

[1]: سنن النسائي/الزكاة ٨٤(٢٥٨٨)،( تحفة الأشراف :١٥٥٢٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٣٤/٤)(ضعيف)

[2]: صحيح البخاري/الزكاة ٥١(١٤٧٣)، صحيح مسلم/الزكاة ٣٧(١٠٤٥)، سنن النسائي/الزكاه ٩٤(٢٦٠٥)،( تحفة الأشراف:١٠٤٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٧/١، ٤٠، ٥٢)(صحيح)

**تشریح: قوله:** عَنِ ابْنِ السَّاعِدِيِّ قَالَ اسْتَعْمَلَنِي عُمَرُ - رضی الله عنه - عَلَى الصَّدَقَةِ فَلَمَّا فَرَغْتُ مِنْهَا وَأَدَّيْتُهَا إِلَيْهِ أَمَرَ لِي بِعُمَالَةٍ

عمالة يعنى اجرة عمل، او دهغه وظيفه مضمون دحديث واضحه دي، فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صلى الله عليه وسلم- « إِذَا أُعْطِيتَ شَيْئًا مِنْ غَيْرِ أَنْ تَسْأَلَهُ فَكُلْ وَتَصَدَّقْ » يعنى كله هم چرته يو ځيز بغير د سوال او د اشراف نفس نه راشي، نو هغې لره قبلوه، او قبلولو نه پس ئې خوره، او صدقه کوه ئې هم.

حضرت شیخ رحمه الله به فرمائيل، چه صوفيان وائي، چه که يو ځيز حلال بغير د فرمائش او لالچ نه ملاؤ شي، نو هغې لره د الله تعالى د طرف نه گنړل پکار دی، هغې لره رد کول جائز نه دی، گنی بيا په سوال باندې هم نه ملاويږي، صاحب منهل ليکلې دی، چه د داسې ځيز قبلول د امام احمد رحمه الله په نزد واجب دی، د ظاهر حديث په بناء باندې، او د جمهورو په نزد صرف مستحب دی. [1]

**تنبيه:** ددې حديث په سند کښې دی، عن ابن الساعدى، قاضى عياض فرمائي الصواب ابن السعدى و اسمه قدامة ابن وقدان و قيل عمرو بن وقدان، هغوی فرمائي چه دهٔ ته سعدی ددې وجې نه وئيلې شی، چه دهٔ په ماشوموالی کښې قبيله بنو سعد بن بکر کښې پئی څکلې وو، هسې دې قرشی، عامری، او مالکی دې، من بنى مالک بن حنبل بن عامر، او ددهٔ د ځوی نوم عبدالله بن السعدى دې، هغه هم صحابى دې، لهذا دې صحابى ابن الصحابى شو، حافظ منذری رحمه الله فرمائي واما الساعدى فنسبة الى بنى ساعده من الانصار من الخزرج ولا وجه له ههنا يعنى د ساعدی د صحيح کيدلو دلته کښې هيڅ صورت نشته، بلکه ابن السعدى صحيح دې، (من العون)

زهٔ وايم، حافظ د تقريب په شرع کښې ابن الساعدی نه دې اخستلې، صرف ابن السعدی ئې اخستلې دې، وقال هو عبدالله. ا هـ

والحديث اخرجه ايضا مسلم والنسائى من طريق المصنف بلفظه واخرجه البخارى والنسائى من طريق الزهرى عن ابن السعدى بلفظ تقدم ا هـ (منهل)

---

[1] علامه عينى د طبرى نه نقل کړی دی هرکله چه دا خبره ده چه الله تعالى داهل کتابونه جزيه اخستل فرمائيلی دی حالاتکه دا خبره ښکاره ده چه ددوی اکثر مالونه د حرام کاروبار، شرابونو، خنزيرانو، او د سودی معاملاتو په ذريعه حاصل شوی دی نوبيا په اهل اسلام کښې چه دچا سره مال دې چه دهغې باره کښې دا معلوم نه وی چه هغه دا څنگه گټلې دې جائز طريقې سره ئې گټلې دې اوکه ناجائز طريقې سره، ددې قبلول جائز دی په دې شرط چه بعينه هم ددغې مال حرام کيدل معلوم نه وی کوم چه هغه درکوی. اهـ (منهل) قلت لي فيه نظر، اهل اسلام په اهل کتاب باندې قياس کول څنگه صحيح دی؟ ځکه چه اهل کتاب دپاره شراب او خنزير حلال دی. وفي نور الانوار (تحت عنوان هل الكفار مخاطبون بالفروع) الا الخمر والخنزير فان الخمر لهم كالخل لنا والخنزير له كالشاة لنا.اهـ فتأمل.

[۱۶۴۸]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ وَهُوَ يَذْكُرُ الصَّدَقَةَ وَالتَّعَفُّفَ مِنْهَا وَالْمَسْأَلَةَ: "الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى، وَالْيَدُ الْعُلْيَا الْمُنْفِقَةُ وَالسُّفْلَى السَّائِلَةُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: اخْتُلِفَ عَلَى أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَ عَبْدُ الْوَارِثِ: "الْيَدُ الْعُلْيَا الْمُتَعَفِّفَةُ"، وَقَالَ أَكْثَرُهُمْ: عَنْ حَمَّادِ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، "الْيَدُ الْعُلْيَا الْمُنْفِقَةُ"، وَقَالَ وَاحِدٌ: عَنْ حَمَّادٍ، "الْمُتَعَفِّفَةُ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دی چه رسول الله ﷺ په منبر باندې اوفرمائیل، او حضور ﷺ د صدقې او د هغې نه د بچ کیدو (فضیلت) او د سوال کولو (مذمت) بیانولو، وې فرمائیل: بره لاس د ښکته لاس نه بهتر دې- بره لاس خرچ والا لاس وی او لاندې لاس سوال کوونکې وی-" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه په دې روایت کښې په ایوب باندې کوم چه د نافع نه روایت کوی، اختلاف کړې شوې دې عبد الوارث وئیلې دی چه د بره لاس نه مراد " المتعفّفه " دې یعنی چه کوم سوال او غوښتنه نهٔ کوی- او په واسطه د سلمان بن زید د ایوب نه روایت کوونکی اکثر حضرات د بره لاس نه مراد " المنفقه " یعنی خرچ کولو والا لاس، بیانوی- د حماد نه صرف یو راوی (مسدد بن مسرهد) المتعفّفه ذکر کړې دې-

**تشریح: قوله**: عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صلی الله علیه وسلم- قَالَ .....« الْيَدُ الْعُلْيَا خَيْرٌ مِنَ الْيَدِ السُّفْلَى ........ وَقَالَ وَاحِدٌ عَنْ حَمَّادٍ « الْمُتَعَفِّفَةُ ».

## شرح حدیث:

د متن په الفاظو کښې چه د راویانو کوم اختلاف دې، مصنف هغې لره بیانوی، هغه دا دې، چه دې حدیث لره د نافع نه روایت کونکې یو خو مالک دې، چه دهغه روایت د ټولو نه اول مصنف بیان کړو، هغه د خود الید العلیا تفسیر المنفقة سره روایت کړې دې، او دویم سړې د نافع نه روایت کونکې ایوب سختیانی دې، بیا د ایوب شاګردان خپلو کښې مختلف دی، بعضو دهغه نه هم دا نقل کړې دی، (الید العلیا المنفقة) او بعضو ددې نه خلاف الید العلیا المتعففة نقل کړې دې، د ثانی روایت کونکې عبد الوارث دې، او د اول نقل کونکې د ایوب نه حماد بن زید دې، د حماد اکثرو شاګردانو دهغه نه هم دا نقل کړې دی، (المنفقة، لیکن د حماد صرف یو شاګرد دهغه نه المتعففة نقل کړې دی، حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي (فتح ص۲۳۶ ج۳) چه د یو نه مراد مسدد دې، بیا مخکښې فرمائي چه یو نه دې، بلکه دوه دی، دویم ابو الربیع الزهرانی دې ۱هـ، په عون المعبود کښې لیکلې دی، رجح الخطابی فی المعالم روایة المتعففة وقال انها اشبه و اصح و رجح ابن عبد البر فی التمهید روایة المنفقة و کذا رواه البخاری فی صحیحه و قال النووی فی شرح المسلم انه الصحیح قال المنذری و اخرجه البخاری و مسلم و النسائی بهذا اللفظ الید العلیا المنفقة والسفلی السائلة، ۱هـ (عون) حافظ فرمائي چه د اکثرو احادیثو نه دا معلومیږی، چه ید علیا منفقه دې، او سفلی سائله دې،

[1]: صحیح البخاري/الزكاة ۱۸(۱۴۲۹)، صحیح مسلم/الزكاة ۳۲(۱۰۳۳)، سنن النسائي/الزكاة ۵۲(۲۵۳۴)، (تحفة الأشراف: ۸۳۳۷)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الصدقة ۲(۸)، مسند احمد(۲/۹۷)، سنن الدارمي/الزكاة ۲۲(۱۶۹۲)(صحيح)

قال وهذا هو المعتمد وهو قول الجمهور. ا هـ

[۱٦٤۹]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبِيدَةُ بْنُ حُمَيْدٍ التَّيْمِيُّ، حَدَّثَنِي أَبُو الزَّعْرَاءِ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ أَبِيهِ مَالِكِ بْنِ نَضْلَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْأَيْدِي ثَلَاثَةٌ: فَيَدُ اللَّهِ الْعُلْيَا، وَيَدُ الْمُعْطِي الَّتِي تَلِيهَا، وَيَدُ السَّائِلِ السُّفْلَى، فَأَعْطِ الْفَضْلَ وَلَا تَعْجِزْ عَنْ نَفْسِكَ".

د حضرت مالک بن نضله رضی الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل لاس په دري قسمه باندي دي یو لاس دَ الله دي کوم چه دَ ټولو نه بره دي - دویم دَ ورکوونکی لاس دي کوم چه دَ هغي نه پس دي - او دَ سائل لاس دَ ټولو نه لاندي دي. لهذا چه کوم زیاتی دي هغه ورکړئ او د خپل نفس په وړاندي عاجز مهٔ جوړیږه -( دَ نفس خبره مهٔ منه -") -

عَنْ مَالِكِ بْنِ نَضْلَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- « الأَيْدِى ثَلاَثَةٌ فَيَدُ اللَّهِ الْعُلْيَا وَيَدُ الْمُعْطِى الَّتِى تَلِيهَا وَيَدُ السَّائِلِ السُّفْلَى

**جمع بین الروایات:**

ټول احادیث مخښې ته ایخودلو نه پس وئیلې شی، چه علو حقیقی خو ید دالله تعالی ته حاصل دي، او په انسانانو کښې ید علیا المنفقة دي، او ید سفلی سائله دي، او بیا که نور زیات تفصیل اوکړې شی، نو داسې به وئیلې شی، چه ترتیب داسې دي، المنفقة المتعففة عن الاخذ، الآخذة بغیر سوال او اسفل الایدی الید السائلة دي،(بذل عن الحافظ)

## بَابُ الصَّدَقَةِ عَلَى بَنِي هَاشِمٍ

### باب: ۲۹ - بنی هاشم ته صدقه ورکول څنګه دي؟

(عالی نسب)د مسئله ترجمة الباب د بیان نه مخکښې بطور تمهید ددې مضمون ذکر کول مناسب دی، چه حضور اکرم ﷺ قرشی هاشمی دي، قبیله قریش په ټولو قبائل عرب کښې د ټولو نه افضل ده، لکه چه په احادیثو کښې ددې تصریح شته، دترمذی شریف یو حدیث مرفوع دي، ثم خیرا القبائل فجعلنی من خیر القبیلة، او په صحیح مسلم کښې دی، الناس تبع لقریش فی هذا الشان،(ای الخلافة)

بیا په بطون قریش کښ(یعنی د قریشو په خاندانونو کښې) د ټولو نه افضل بنو هاشم دی، څکه چه حضور اکرم ﷺ هاشمی دي، هغوی د هاشم بن عبدمناف د اولاد نه دی، هاشم دهغوی جد ثانی وو، د صحیح مسلم او د سنن ترمذی حدیث دي، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه الله تعالی د ابراهیم علیه السلام د اولاد نه اسماعیل علیه السلام لره منتخب کړو، او د اسماعیل علیه السلام د اولاد نه بنو کنانه لره منتخب کړو( ددې نه مراد نضر بن کنانه دي، اګر چه د کنانه نور ځامن هم وو) او په بنو کنانه کښې ئې قریش منتخب کړل،([2]) او په قریش کښې ئې بنو هاشم

[1]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف :۱۱۲۰۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴۷۳/۳)(صحیح)

[2]) د نبی کریم ﷺ په اجداد کرام کښې د قریش مصداق څوک دی په دې کښې دوه اقوال مشهور دی: (۱) نضربن کنانه، د نضر بن کنانه اولاد قریش دی. (۲) فهربن مالک، لهذا د فهر اولاد قریش دی، ددې نه اول قول جمهور طرف ته منسوب دي ددوی ﷺ په سلسله نسب کښې فهر بن مالک......

منتخب کړل، او په بنو هاشم کښې ئې زۀ منتخب او ممتاز کړم،
د دغې علو نسبي او شرف اصلي د وجې نه شريعت مطهره بنو هاشم لره مصارف زکوة مقرر نه کړل، په حديث شريف کښې دي، ان هذه الصدقات انما هي اوساخ الناس و انها لا تحل لمحمد ولا لآل محمد(رواه مسلم) يعني د صدقې مال د خلقو خيرې دې، د محمد او آل محمد دپاره جائز نه دې، نو په دې باندې خو د ټولو علماؤ اجماع ده، چه د نبی کريم ﷺ دپاره زکوة جائز نه دې، بعضو علماؤ د صدقۀ نافله باره کښې هم اجماع نقل کړې ده، چه هغه هم د نبی کريم ﷺ دپاره جائز نه ده، ليکن دا مسئله اجماعي نه ده، بلکه په دې کښې د بعضو اختلاف دې، اګر چه د جمهورو مسلک هم دادې، چه دا هم د نبی کريم ﷺ دپاره جائز نه وه، دغه شان په دې باندې هم اجماع ده، چه د بنو هاشم دپاره زکوة جائز نه دې، او په صدقة التطوع کښې اختلاف دې، عند الحنفية په دې کښې دواړه اقوال دی، بعضو جواز ته ترجيح ورکړې ده، او بعضو عدم جواز ته ترجيح ورکړې ده، د حضرت ګنګوهی رائې په کوکب کښې د عدم جواز ده، او د باقی ائمه ثلاثة په نزد قول معتمد دادې، چه د هغوی دپاره صدقۀ نافله جائز ده.(منهل)

**په حرمة دصدقة کښې د بنو هاشم سره بنو المطلب هم شامل دی، او که نه:**

د آل محمد ﷺ دپاره چه په دې حديث کښې صدقه ناجائز کړې شوې ده، ددې نه مراد صرف بنو هاشم دی، يا ددوی سره بنو المطلب هم شامل دی؟ دا مسئله د علماؤ په مينځ کښې اختلافی ده، په اصل کښې د هاشم بن عبدمناف، چه دهغه په اولاد کښې نبی کريم ﷺ دې، دهغه درې ورونړه نور هم وو، مطلب، نوفل، عبد شمس، لهذا د دې څلورو واړو نه څلور خاندانونه جوړ شو، په دوی کښې د بنو هاشم مرتبه د ټولو نه اعلی ده، ځکه چه خپله حضور اکرم ﷺ ددې خاندان نه دې، بيا په نورو دريو خاندانونو کښې بنو المطلب ته دا خصوصيت او شرف حاصل دې، چه هغوی په زمانه جاهليت او اسلام دواړو کښې د بنو هاشم نصرت او حمايت کړې دې، لکه په زمانه د مقاطعې د قريشو کښې په شعب أبی طالب کښې د بنو هاشم سره صرف بنو المطلب وو.
ددې وجې نه به نبی کريم ﷺ د غنيمت د خمس په تقسيم کښې بنو هاشم او بنو المطلب دواړو ته حصه ورکوله، په دې باندې د بنو نوفل او بنو عبد شمس بعض خلق د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او ګيله ئې اوکړه، چه تاسو د بنو هاشم سره صرف بنو المطلب شامل کړل، او باقی دوه قبيلې مو پريخودلې، حالانکه کومه رشته چه تاسو سره د

---

لـه..... په يوولسم پشت دې، او نضربن کنانه ديارلسم پشت، داسې: محمد بن عبدالله بن عبدالمطلب بن هاشم بن عبدمناف بن قصي بن كلاب بن مرة بن كعب بن لوي بن غالب بن فهر بن مالك بن النضر بن كنانه بن خزيمة بن [illegible] بن الياس بن النضر بن نزار بن معد بن عدنان، په صحيح بخاری کښې د حضور ﷺ نسب عالی دلته پورې مذکور دې، علماؤ ليکلی دی چه ددې نه اخوا په صحيح طريق محفوظ نه دې. فائده: د خلفاء راشدينو نسب د حضور ﷺ سره داسې ملاويږی چه علی د حضور ﷺ له په دويم پشت (عبدالمطلب) کښې او عثمان غنی په څلورم پشت (عبدمناف) او صديق اکبر په اووم پشت (مرة) او عمر فاروق په اتم پشت (كعب) کښې ملاويږی.

بنو المطلب ده، هغه زمونږ هم ده، ټول د يو نيکهٔ اولاد يو، په دې باندې نبی کريمﷺ اوفرمائيل: انا و بنی المطلب لا نفترق فی جاهلية و لا اسلام و انما نحن و هم شئ واحد و شبک بين اصابعه، يعنی نبی کريمﷺ د يو لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو کښې داخل کړې، او وې فرمائيل، چه مونږ او هغوی د هميشه نه داسې يو، (رواه ابو داؤد، بذل) ص...ج ۴) مطلب دا شو، چه دا خو صحيح ده، چه درې واړه خاندانونه ما سره په قرابت کښې برابر دی، ليکن د نصرت او تعاون په اعتبار سره برابر نه دی، په دې اعتبار سره صرف بنو المطلب مونږ سره دی، ددې نه معلومه شوه، چه په خمس غنيمت کښې بنو هاشم سره بنو المطلب هم شامل دی.
اوس دا چه د حرمت صدقة په مسئله کښې هم بنو المطلب د بنو هاشم سره دی، او که نه؟ په دې کښې اختلاف دې، د امام ابو حنيفهؒ او امام مالکؒ په نزد شامل نه دی، او د امام شافعیؒ په نزد داخل دی، د شافعیؒ په نزد ددې دواړو دپاره زکوة جائز نه دې، او د حضرت امام احمد بن حنبل په دې کښې دواړه روايتونه دی، کما فی المغنی، يو پشان د شافعيه، او دويم پشان د احناف او مالکيه.
امام شافعیؒ فرمائي چه نبی کريمﷺ سهم ذوی القربی په قبائل قريش کښې چاته هم نه دې ورکړې، سوا د بنو هاشم او بنو المطلب نه، او په اصل کښې دا بدل دې، ددې نه چه په صدقاتو کښې دې دواړو قبيلو ته هيڅ نشی ورکولې، جمهور وائی، چه دا خبره نه ده، بلکه بنو المطلب ته په بله وجې سره سهم ورکړې شو، يعنی نصرت او حمايت، لکه چه دهغې حديث نه معلوميږی، کوم چه مخکښې تير شو، او نصرت او حمايت د اخذ زکوة نه مانع نه دې، بلکه ددې نه مانع صرف قرابت دې، او په قرابت کښې اقرب الی النبیﷺ صرف بنو هاشم دی، باقی درې واړه خاندانونه په قرابت کښې برابر دی، لهذا دهغوی حکم به هم يو شان وی.

## د بنو هاشم مصداق:

بيا يو اختلاف دلته کښې دا هم دې، هغه دا چه د بنو هاشم مصداق څوک دی؟ د احنافو په نزد په دې کښې پنځهٔ کورنئ داخلې دی، آل عباس، آل علی، آل جعفر، آل عقيل، (دا جعفر او عقيل دواړه د حضرت علیؓ ورونړه دی) آل حارث بن عبد المطلب، د احنافو په نزد د ابو لهب اولاد په دې کښې داخل نه دی، ځکه چه د نبی کريمﷺ خاندان والو کښې صرف دې پنځو کورنو د نبی کريمﷺ نصرت او حمايت کړې وو، چه دهغې د وجې نه دوی د اعزاز او اکرام مستحق شو، په خلاف د ابو لهب نه، چه هغه نبی کريمﷺ ته تکليفونه رسول، لهذا هغه د کرامت په ځائې د اهانت مستحق دې، او د جمهورو په نزد د ابولهب په اولاد کښې چه چا ايمان راوړې دې، هغه هم په دې کښې داخل دی، لکه عتبه و معتب، چه د فتح مکه په موقع ئې اسلام قبول کړې وو، او نبی کريمﷺ دهغوی په اسلام راوړلو باندې خوشاله شوې وو. (منهل)
يو اختلاف دلته کښې دا هم دې، چه د بنو هاشم سره دهغوی موالی هم شامل دی، او که نه؟ مسئله اختلافی ده، د جمهور علماء ائمه ثلاثه په نزد د حديث الباب په بناء باندې (مولی

القوم من انفسهم) د موالي بني هاشم حکم هم دا دی، او د امام مالک رحمه الله او د بعضو شوافعو په نزد هغوی په دې حکم کښې داخل نه دی.

## ازواج مطهرات په دې حکم کښې داخل دی او که نه:

يو بحث دلته کښې دا هم دې، چه د آل (په کومو باندې چه صدقه حرام ده) په مصداق کښې ازواج مطهرات هم داخل دی او که نه؟ ابن بطال شارح بخاری، د امام بخاری په ترجمة باب الصدقة على موالي ازواج النبي (صلى الله عليه وسلم) لاندې فرمائي چه باتفاق فقهاء هرکله چه د نبی کریم ﷺ ازواج په دې حکم کښې داخل نه دی، نو موالی ازواج په طریقه اولی داخل نه دی، لیکن په دې باندې حافظ په فتح الباری کښې اولا یو اشکال کړې دې،([1]) هغه دا چه ابن قدامه په مغنی کښې د حضرت عائشه رضی الله عنها روایت ذکر کړې دې، چه هغې لره خلال په خپل سند سره ذکر کړې دې، دهغې مضمون دادې، چه یو ځل یو سړی د حضرت عائشې رضی الله عنها په خدمت کښې یو څیز بطور صدقه راؤلیږو، نو هغې لره حضرت عائشې رضی الله عنها دې وینا سره واپس کړو، انا آل محمد لا تحل لنا الصدقة، چه مونږ آل محمد یو، او آل محمد ﷺ دپاره صدقه جائز نه ده، په دې باندې ابن قدامه لیکلې دی، چه دا حدیث تحریم الصدقة على الازواج باندې دلالت کوی، په دې باندې حافظ لیکلې دی، (فتح) (ص۲۸۱ج۳) وهذا لا يقدح فما نقله ابن بطال بظاهر، د حافظ د کلام مطلب دادې، چه دا روایت د ابن بطال د روایت سره کوم چه هغه په اتفاق د علماؤ سره نقل کړې دې، منافی نه دې، د فقهاؤ اتفاق په خپل ځائې دې، دا جدا خبره ده، چه دا اثر عائشه په ظاهر کښې د هغوی د اتفاق نه خلاف دې، بهرحال دا د یو فقیه نه منقول نه دی، چه د نبی کریم ﷺ په ازواج باندې صدقه حرام ده، دې اثر عائشه رضی الله عنها لره علامه عینی مصنف ابن ابی شیبه طرف ته هم منسوب کړې دې.

زۀ وایم، چه د ازواج مطهرات په دې حکم کښې د نه داخلیدو وجه دا ده، چه په هغوی کښې یوه هم هاشمیه نه وه، ګو اکثرې په کښې قرشیه وې، لکه په نسائی شریف ص۸۱ج۲ کښې یو روایت دې،([2]) چه یو ځل حضرت علی رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو، چه یا رسول الله ﷺ څه خبره ده، چه تاسو د خپلې نکاح دپاره قریش (یعنی هغه قریش چه هاشمی نه دی) خوښوئ، او مونږ لره یعنی بنو هاشم لره پریږدئ، په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه آیا ستا په ذهن کښې داسې څوک هاشمیه شته، چه هغې سره زۀ نکاح اوکړم، هغه اوئیل چه اوجی، بنت حمزه رضی الله عنه ده، په دې باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه حمزه زما رضاعی ورور دې، لهذا دهغه لور زما دپاره حلال نه ده، ددې نه هم دا معلومیږی، چه د نبی کریم ﷺ ټولې نکاح ګانې په غیر بنو هاشمو کښې شوې دی.

[1] او بیا روسته ئې په خپله ددې جواب هم ورکړو.

[2] ولفظه عن ابي عبد الرحمن السلمي عن علي رضي الله عنه قال قلت يا رسول الله مالك تتوق في قريش وتدعنا قال وعندك احد الحديث.

[۱۶۵۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنِ ابْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ رَجُلًا عَلَى الصَّدَقَةِ مِنْ بَنِي مَخْزُومٍ، فَقَالَ لِأَبِي رَافِعٍ: "اصْحَبْنِي فَإِنَّكَ تُصِيبُ مِنْهَا"، قَالَ: حَتَّى آتِيَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْأَلَهُ، فَأَتَاهُ فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: "مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ وَإِنَّا لَا تَحِلُّ لَنَا الصَّدَقَةُ".

ابن ابی رافع د حضرت ابورافع رضی الله عنه نه روایت کوی چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د قبیلهٔ مخزوم نه یو شخص د صدقاتو د پاره مقرر کړو، هغه ابو رافع ته اووې: زما سره لاړ شه، تاته به هم ددې نه حصه ملاؤ شي - هغه اووې: مخکښې زهٔ پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته ورځم چه د هغوی نه پوښتنه اوکړم، چنانچه هغه د حضور صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راغې او تپوس ئې اوکړو، نو حضور صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: " د قوم مولی (آزاد کړې شوې غلام) هم د قوم نه وی او زمونږ د پاره صدقه حلاله نهٔ ده -"

[۱۶۵۲] (۲) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا أَبِي، عَنْ خَالِدِ بْنِ قَيْسٍ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَدَ تَمْرَةً، فَقَالَ: "لَوْلَا أَنِّي أَخَافُ أَنْ تَكُونَ صَدَقَةً لَأَكَلْتُهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هِشَامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، هَكَذَا.

د حضرت انس رضی الله عنه نه مروی دی چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم (په یوه لاره کښې) یوه کجوره بیا موندہ، نو وې فرمائیل: کهٔ چرې دا یره نهٔ وې چه دا به د صدقې وی نو ما به دې لره خوړلې وې امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې لره هشام د قتاده نه هم داسې روایت کړې دې -

[۱۶۵۳] (۳) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ فُضَيْلٍ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "بَعَثَنِي أَبِي إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِبِلٍ أَعْطَاهَا إِيَّاهُ مِنَ الصَّدَقَةِ".

حضرت ابن عباس رضی الله عنه بیان کوی چه ماله زما پلار د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې اولیږلو د هغه اوښانو په سلسله کښې کوم چه هغوی دهٔ ته د صدقې نه ورکړې وو -

## شرح حدیث:

عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ بَعَثَنِي أَبِي إِلَى النَّبِيِّ -صلى الله عليه وسلم- فِي إِبِلٍ أَعْطَاهَا إِيَّاهُ مِنَ الصَّدَقَةِ. (۴)

---

[1]): سنن الترمذي/الزكاة ۲۵(۶۵۷)، سنن النسائي/الزكاة ۹۷(۲۶۱۳)، (تحفة الأشراف :۱۶۵۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۰/۶، ۳۹۰، ۱۲۰۱۸)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :۱۱۶۵)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزكاة ۵۰(۱۰۷۱)، مسند احمد(۲۹۱/۳)(صحيح)

[3]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :۶۳۴۴)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/ قيام الليل ۲۷(۱۳۳۹)، مسند احمد(۳۶۴/۱)(صحيح)

[4]) جار مجرور په ظاهره کښې د ﴿اعطاها﴾ سره متعلق دې او مطلب دا دې چه کوم اوښ رسول الله صلی الله علیه وسلم عباس رضی الله عنه ته هدیه کړې وو، د صدقه په اوښانو کښې خو عباس رضی الله عنه هغه اوښانو لره هغه سر بدلول غوښتل، یا خو په دې وجه چه په هغې کښې کمی او نقص وی (نو زما د ذهن خبره ده) او صاحب منهل دا لیکلې دی چه په بدلیدو سره د عباس رضی الله عنه مقصود دا وو چه اهل صدقه په ځائې د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغوی نه نور اوښان راولیږی ګویا هغوی د صدقې څیز اخستل نه غوښتل تنزها وتورعا، اګر چه دا اوښ د صدقې په طور نه وو بلکه په اداء قرض کښې وو، او صاحب د عون المعبود خو د دې مطلب بالکل بدل ......۹۶

کریب چه د حضرت ابن عباس ﷺ مولی او آزاد کرده غلام دې، هغه د ابن عباس ﷺ نه نقل کوی، چه هغه لره دهغه والد یعنی عباس ﷺ د نبی کریم ﷺ خدمت ته اولیږلو، دهغې اوښانو باره کښې، کوم چه نبی کریم ﷺ هغه ته د صدقې د اوښانو نه ورکړي وو، او ددې نه مخکښې روایت کښې دا زیاتوالې دې، چه د حضرت عباس ﷺ ابن عباس ﷺ لره لیږل، دهغې اوښانو د بدلولو دپاره وو، په ظاهر کښې مطلب دادې، چه چرته نبی کریم ﷺ به د حضرت عباس ﷺ نه څه اوښان قرض اخستلي وو، (د جهاد یا د مسلمانانو د ضرورت دپاره) بیا چه کله هغوی عباس ﷺ ته هغه اوښان واپس اولیږل، یعنی دهغې بدل ئې اولیږو، نو په هغې کښې بعضې حضرت عباس ﷺ بدلول اوغوختل، او د دې عرض دپاره هغه ابن عباس ﷺ لره د نبی کریم ﷺ خدمت ته اولیږو، (کذ فی البذل)

ددې تشریح نه پس اوس دا اشکال باقی نه پاتې کیږی، چه حضرت عباس ﷺ خو خالص هاشمی دې، او د هاشمی دپاره صدقه جائز نه ده.

بیهقی په دې حدیث کښې دوه احتمالات لیکلي دی، یو خو هغه کوم چه بره مونږ اولیکو، چه نبی کریم ﷺ د صدقې اوښان د قرض په ادا کولو کښې لیږلي وو، او هم دا وجه وه، چه حضرت عباس ﷺ ته دهغې د بدلولو حق هم وو، ګنې د صدقې د بدلولو څه مطلب، او دویم احتمال ئې دا لیکلي دې، چه ممکن ده، چه دا واقعه دتحریم الصدقة علی بنو هاشم نه مخکښې وی، بیا وروستو تحریم اوشو.

[١٦٥٤](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ هُوَ ابْنُ أَبِي عُبَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، نَحْوَهُ، زَادَ "أَبِي يُبْدِلُهَا لَهُ".

د حضرت ابن عباس ﷺ نه د مذکوره بالا په مثل باندې مروی دې(ابو عبیده) دا اضافه کړې ده ... چه زما پلار ماله اولیږلو چه هغوی دې اوښانو لره بدل کړی -

## شرح السند:

زَادَ أَبِي يُبْدِلُهَا. د زاد ضمیر فاعل ابو عبیده راوی طرف ته راجع دې،(٢) او ابی یبدلها دا جمله د زاد دپاره مفعول دې، د عبارت ترجمه داسې ده، مصنف فرمائي، چه په دې دویم روایت کښې، چه دهغې راوی ابو عبیده دې، هغه ددې جملې زیاتوالې کړې دې، ابی یبدلها، او اول روایت چه دهغې راوی محمد بن فضیل دې،(٣) هغه دا زیاتوالې ذکر کړې نه دې، او ددې جملې مطلب څرنګه چه مونږ مخکښې لیکلي دې، دادې، چه ابن عباس ﷺ فرمائي، چه

ك..... کړې دې هغه لیکی ﴿من الصدقة﴾ په ﴿اعطاها﴾ پورې متعلق نه دې بلکه په ﴿یبدلها﴾ سره متعلق دې او مطلب دا دې چه رسول الله ﷺ چه عباس ﷺ ته کوم اوښان لیکلي وو هغه د غیر صدقه په اوښانو کښې وو خو کله چه رسول الله ﷺ ته اهل صدقه راغلل (بیت المال کښې) نو عباس سابق اوښانو لره بدلول غوښتل چه هغه واخله او اهل صدقه ته ئې ورکړه. اهـ والله تعالي اعلم

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٥٠)(صحيح)

(٢) دلته په ظاهره دا دهوکه کیږی چه أبي په ترکیب کښې د زاد فاعل دې حالانکه داسې نه ده، ښه پوهه شئ.

(٣) په رومبی سند کښې د اعمش شاګرد محمد بن فضیل دې او په دویم کښې ابو عبید.

مالره زما والد عباس رضي الله عنه د حضور ﷺ خدمت ته د اوښانو د بدلولو دپاره لیږلې وو.«د ابی مصداق عباس رضي الله عنه دي»

## بَابُ الْفَقِيرِ يُهْدِي لِلْغَنِيِّ مِنَ الصَّدَقَةِ

### باب: ۳۰- فقیر کهٔ دَ صدقې دَ مال نه غنی او مالدار ته هدیه ورکړی نو جائز دی-

[۱۶۵۵]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ مَرْزُوقٍ، قَالَ: أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُتِيَ بِلَحْمٍ، قَالَ: "مَا هَذَا؟" قَالُوا: شَيْءٌ تُصُدِّقَ بِهِ عَلَى بَرِيرَةَ، فَقَالَ: "هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ".

حضرت انس رضي الله عنه بیان کوی چه د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې غوښه پیش کړې شوه نو حضور ﷺ تپوس اوکړو دا څهٔ دی؟ اوئیلې شو حضرت بریرې رضي الله عنها ته صدقه کړې شوې وه« دا دَهغې نه ده » حضور ﷺ اوفرمائیل : دا د هغې دَ پاره صدقه ده او زمونږ دَ پاره هدیه ده.

**قوله: فقال « هُوَ لَهَا صَدَقَةٌ وَلَنَا هَدِيَّةٌ ».**

دا حدیث ډیر مشهوراو معروف دې، ددې تخریج امام بخاري او مسلم دواړو کړې دې، د حدیث مضمون واضح دې، د بیان محتاج نه دې، ددې حدیث نه معلومه شوه، چه د فقیر په صدقې باندې قبضه کولو نه پس هغه څیز صدقه نه پاتې کیږی، اوس که هغه چاته هغه څیز هدیه کول غواړی، نو هغه به هدیه وی، صدقه به نه وی، ددې وجې نه اهل اصول لیکلې دی، چه تبدل دملک مستلزم دې، تبدل د عین لره حکما.

### د صدقې او هدیې په مینځ کښې فرق:

په صدقه او هدیه کښې فرق دادې، چه په صدقه کښې د متصدق نیت او مقصود صرف ثواب د آخرت وی، د فقیر ذات په دې کښې مقصود نه وی، او هدیه هغه عطیه ده، چه هغې سره مقصود د مهدی الیه تقرب حاصلول وی، او دهغه اکرام مقصود وی، په هدیه کښې حصول ثواب ثانوی درجه کښې وی، او بعضو دې فرق لره په دې طریقې سره واضح کړې دې، چه د صدقې بدله سړې ته په اخرت کښې ملاویږی، ددې وجې نه په دنیا کښې په فقیر باندې دهغه منت او احسان باقی پاتې وی، په خلاف د هدئې نه، چه د هدئې بدله په دنیا کښې هدئې سره ورکولې شی، پس په صدقه کښې یو قسم ښکته والې او ذلت دې، او په هدیه کښې د مهدی الیه اعزاز او اکرام دې، ددې وجې نه صدقه د نبی کریم ﷺ او د بنو هاشم دپاره جائز نه ده، د صدقې او هدئې په مینځ کښې فرق په یو حدیث مرفوع کښې هم وارد دې،([2]) چه په سنن نسائی کښې د باب العمری په اخر کښې موجود دې، دهغې حاصل

---

[1]): صحيح البخاري/الزكاة ٦٢(١٤٩٥)، والهبة ٧(٢٥٧٧)، صحيح مسلم/الزكاة ٥٢(١٠٧٤)، سنن النسائي/العمري ١(٣٧٩١)،(تحفة الأشراف :١٢٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(١١٧/٣، ١٣٠، ١٨٠، ٢٧٦)(صحيح)

[2]) چه دهغې الفاظ دادی : عن عبدالرحمن بن علقمة الثقفي قال قدم وفد ثقيف الي رسول الله ﷺ ومعهم هدية فقال أهدية أم صدقة فان كانت هدية فانما يبتغي بها وجه رسول الله ﷺ وقضاء الحاجة وان كانت صدقة فانما يبتغي بها وجه الله عزوجل قالوا لا بل هدية نقبلها منهم الحديث (نسائي ص٤١ ج) ددې جملې په شرح کښې بذل الجهود کښې هم په ظاهر د کاتب په غلطئ سره ګړ بړ شوی دی چه دې لره مونږ د بذل په حاشیه کښې صحیح کړې دې، اوپه حاشیه کښې موهم وضاحت کړې دې.

دادي، چه په صدقې سره مقصود تقرب الی الله وی، او په هديې سره مقصود دمهدی اليه تقرب وی، چه هغه سره په تعلق کښې زياتوالي اوشي.

## بَاب مَنْ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ ثُمَّ وَرِثَهَا

### باب: ۳۱- چاچه صدقه ورکړه اوبيا دې دَهغې وارث جوړ شو( او والې خستو، نو دا جائز دی )

[۱۶۵۶] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُرَيْدَةَ، عَنْ أَبِيهِ بُرَيْدَةَ، أَنَّ امْرَأَةً أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: كُنْتُ تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِوَلِيدَةٍ وَإِنَّهَا مَاتَتْ وَتَرَكَتْ تِلْكَ الْوَلِيدَةَ، قَالَ: "قَدْ وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَجَعَتْ إِلَيْكِ فِي الْمِيرَاثِ".

د حضرت بريده رضی الله عنه نه روايت دې چه يوه ښځه د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې راغله اووې وئيل : چه ما خپلې مور ته يوه وينځه په صدقه کښې ورکړې وه او اوس زما مور وفات شوې ده او دې وينځې لره ئي په ترکه کښې پريخودې ده - حضور ﷺ اوفرمائيل : ستا اجر او ثواب ثابت شو او هغه وينځه تاته په وراثت کښې واپس شوله -"

د حديث الباب مضمون واضح دې، د بيان محتاج نه دې، ددې نه معلوميږی، که د صدقې څيز متصدق ته په ميراث کښې واپس راشی، نو دهغې په اخستلو کښې هيڅ گناه نشته، او دا عود فی الصدقة نه دې، څکه چه ميراث امر غير اختياری دې، د اکثرو علماؤ مسلک هم دادې، او بعضو علماؤ ليکلې دی، چه داسې قسمه څيز اخستلو نه پس دوباره چاته صدقه کول پکار دی، څکه اولاً دې لره صدقه کولو د وجې نه حق الله دې سره اوتړلې شو(عون المعبود) ليکن دهغوی دا خبره په ظاهر کښې ددې حديث خلاف ده.

دويم څيز دلته کښې شراء المتصدق صدقته دې، ددې مستقل باب ډير مخکښې تير شوې دې، په هغې کښې بې شکه د امام احمد رحمه الله اختلاف دې.

## بَاب فِي حُقُوقِ الْمَالِ

### باب: دَ مال دَ حقوقو بيان

[۱۶۵۷] ([2]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ أَبِي النَّجُودِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "كُنَّا نَعُدُّ الْمَاعُونَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَارِيَةَ الدَّلْوِ وَالْقِدْرِ".

حضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه بيان کوی چه مونږ خلقو به د رسول الله ﷺ په زمانه کښې د [ الماعون ] نه دا مراد اخستو چه چاته ئي په سوال سره بوقه( ډولچه) يا کټوئ ورکړه -

**تشريح: قوله:** قال كنا نعد الماعون على عهد رسول الله(صلى الله عليه وسلم) عارية الدلو والقدر.

په قرآن مجيد کښې د بخلاؤ يعنی کنجوسانو مذمت بيان کړې شوې دې، و يمنعون الماعون،

[1]: صحيح مسلم/الصيام ٢٧(١١٤٩)، سنن الترمذي/الزكاة ٣١(٦٦٧)، سنن ابن ماجه/الصدقات ٣(٢٣٩٤)،( تحفة الأشراف :١٩٨٠)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى/ الفرائض(٦٣١٥، ٦٣١٦)، مسند احمد(٥/٣٥١، ٣٦١)، ويأتي هذا الحديث برقم(٢٨٧٧، ٣٣٠٩)(صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود( تحفة الأشراف :٩٢٧٣)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبرى/التفسير(١١٧٠١)، مسند احمد ٣٨٧)(حسن)

دهغوی حال دادې، چه د ماعون (۱) نه هم انکار کوی، هغه هم نه ورکوی، ددې په تفسیر کښې حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه فرمائي چه د ماعون مصداق د حضور ﷺ په زمانه کښې ډولچه او دیګچې وغیره معمولي څیزونه عاریة ورکول وو، او یو قول په دې کښې دادې، چه ددې نه مراد زکوة دې، دریم قول دادې، چه ددې اعلی فرد زکوة دې، او ادنی فرد معمولي څیزونه عاریة ورکول دی، (بذل)

[۱۶۵۸](۲) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ سُهَيْلِ بْنِ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ صَاحِبِ كَنْزٍ لَا يُؤَدِّي حَقَّهُ إِلَّا جَعَلَهُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ يُحْمَى عَلَيْهَا فِي نَارِ جَهَنَّمَ فَتُكْوَى بِهَا جَبْهَتُهُ وَجَنْبُهُ وَظَهْرُهُ حَتَّى يَقْضِيَ اللَّهُ تَعَالَى بَيْنَ عِبَادِهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ثُمَّ يَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ، وَمَا مِنْ صَاحِبِ غَنَمٍ لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا إِلَّا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَوْفَرَ مَا كَانَتْ فَيُبْطَحُ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ فَتَنْطَحُهُ بِقُرُونِهَا وَتَطَؤُهُ بِأَظْلَافِهَا لَيْسَ فِيهَا عَقْصَاءُ وَلَا جَلْحَاءُ كُلَّمَا مَضَتْ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُولَاهَا حَتَّى يَحْكُمَ اللَّهُ بَيْنَ عِبَادِهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ثُمَّ يَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ، وَمَا مِنْ صَاحِبِ إِبِلٍ لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا إِلَّا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَوْفَرَ مَا كَانَتْ فَيُبْطَحُ لَهَا بِقَاعٍ قَرْقَرٍ فَتَطَؤُهُ بِأَخْفَافِهَا كُلَّمَا مَضَتْ عَلَيْهِ أُخْرَاهَا رُدَّتْ عَلَيْهِ أُولَاهَا حَتَّى يَحْكُمَ اللَّهُ تَعَالَى بَيْنَ عِبَادِهِ فِي يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهُ خَمْسِينَ أَلْفَ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ثُمَّ يَرَى سَبِيلَهُ إِمَّا إِلَى الْجَنَّةِ وَإِمَّا إِلَى النَّارِ".

رسول الله ﷺ اوفرمائیل کوم صاحب خزانه چه د هغې حق نهٔ ادا کوی نو الله تعالی به د قیامت په ورځ باندې دې مال لره داسې جوړ کړی چه دا به د جهنم په اور سره ګرم کړې شی بیا په دې سره د هغه تندې، اړخ او ملا داغلې شی تردې پورې چه الله تعالی د خپلو بندګانو په مابین کښې فیصله اوفرمائی، په هغه ورځ چه د هغې طوالت (اوږدوالې) ستاسو په شمیر سره پنځوس زره کاله دې - ددې نه پس به هغه خپله لاره اووینی، جنت طرف ته یا جهنم طرف ته - او کوم بکرو چیلو والا چه د هغې حق نهٔ ادا کوی نو د قیامت په ورځ باندې به هغه چیلو لره راوستلې شی، د هغې نه په زیات فربه (چاق) حالت کښې په کوم کښې چه مخکښې وو، او دهٔ لره به په یو هموار صفا میدان کښې اولټه زوړند کړې شی، چنانچه هغه چیلئ به دهٔ لره په خپلو ښکرو سره وهی او په نوکو سره به ئې پائمال کوی او په دې کښې به څهٔ کړو ښکرو یا بې ښکرو چیلئ نهٔ وی - کومه یوه (چه خپل چکر پوره کړی او) آخری چیلئ تیره شی نو اوله به په دهٔ باندې بیا واپس شی تردې پورې چه الله تعالی د خپلو بندګانو په مابین کښې فیصله اوفرمائی، په هغه ورځ کښې چه د هغې طوالت او اوږدوالې ستاسو په حساب سره پنځوس زره کاله ده، ددې نه پس به دې خپله لار اووینی جنت طرف ته، یا جهنم طرف ته - او کوم اوښانو والا چه ددې حق ادا نهٔ کړو، نو د قیامت په ورځ باندې به دا راوستلې شی، د هغه حالت نه په زیات فُربه حالت کښې په کوم

(۱) ماعون د معن نه دې ددې معنی ده شئ قلیل (معمولي څیز) په دې کښې دوه اقوال نورهم دی کوم چه حضرت شیخ د تفسیر جمل نه په حاشیه د بذل کښې نقل کړی دی.
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :۱۲۶۲٤)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/الزکاة ۳(۱٤۰۲)، والجهاد ۱۸۹(۲۳۷۸)، وتفسیر براءة ٦(۳۰۷۳)، والحیل ۳(۹٦۵۸)، صحیح مسلم/الزکاة ٦(۹۸۷)، سنن النسائي/الزکاة ٦(۲٤۵۰)، سنن ابن ماجه/الزکاة ۲(۱۷۸٦)، موطا امام مالك/الزکاة ۱۰(۲۲)، مسند احمد(۲/٤۹۰، ۱۰۱، ۲٦۲، ۳۸۳)(صحیح)

کښې چه دا مخکښې وو او مالک لره به په يو هموار او صفا ميدان کښې زورند کړې شي او بيا به هغه لره په خپلو خپو سره پائمال کوي کومه چه ددې نه يو چکر پوره کړي، او آخرۍ اوښ تير شي، نو اول به واپس کولې شي تردې پورې چه الله تعالیٰ په خپلو بند ګانو کښې فيصله اوفرمائي په هغه ورځ کومه چه ستاسو په حساب سره پنځوس زره کاله ده، بيا به دې خپله لار اووينی، جنت طرف ته يا جهنم طرف ته۔"

إِلَّا جَاءَتْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَوْفَرَ مَا كَانَتْ : اصحاب المواشي (څاروو والا) ته چه د څاروو زکوة نه ورکولو په وجه کوم عذاب د قيامت په ورځ ورکولې شي، په دې حديث کښې دهغې بيان دې، فرمائي: چه هغه بزې به راشي، د قيامت په ورځ ډير په ښه حالت کښې، چه کله په دنيا کښې دهغوی وو، يعنی ښه څربې او طاقتورې به وی، دې دپاره چه مالک لره ښه د پښو لاندې کړي، فيبطح لها بقاع قرقر، پس هغه به پر مخې واچولې شي، دهغې بزو په وجه، يعنی دهغې د زکوة نه ورکولو په وجه، په يو هموار ميدان کښې. فتنطحه نطح ينطح از باب ضرب و فتح، په ښکر باندې وهل، و تطوه باظلافها وطي بمعنی د پښو لاندې کول، اظلاف د ظلف جمع ده، دغوا، ميښې او بزې نوکې، يعنی قدمونه، چه منشق يعنی په مينځ کښې څيرې کړې شوې وی، ددې مقابل حافر دې، يعنی هغه چه غير منشق وی، لکه د اس يا خر نوکان، ليس فيها عقصاء و لا حلجاء، عقصاء چه دهغې ښکرونه کاږه وی، او حلجاء چه دهغې ښکرونه بالکل نه وی، کلما مضت اخواها ردت عليه اولاها.

## شرح حديث :

يعنی دهغې څاروو مالک لره به په زمکه باندې الټه څملولې شي، او هغې تولو څاروو لره به دهغه دپاسه اوګرځولې شي، هغه ټول به دې د پښو لاندې کړي، او دې به په ښکرو باندې وهی او په دهٔ دپاسه به تيريږی، ګويا چه هغه ټول څناور به د ګول دائرې په شکل کښې جمع وی، چه کله دهغې ټولو يو چکر پوره شي، نو بيا به دوباره هغوی لره په دهٔ باندې تاوهلې شي، چه کله هم آخری څاروې تير شي، نو اول به په دهٔ باندې اوګرځولې شي، څکه چه د اخری په تيريدو سره به دهغوی يو چکر پوره شي، بيا به سردوباره د اول څاروی نه چکر شروع کولې شي.

**تنبيه** : د صحيح مسلم په يو روايت کښې خو داسې دی، او په يو بل روايت کښې ددې برعکس دې، کلما مر عليه اولاها رد عليه اخراها، دې باره کښې قاضی عياض خو داسې فرمائيلې دی، چه په دې کښې قلب واقع شو، او دا تصحيف دې، په کوم روايت کښې چه ددې برعکس دې، هغه صحيح دې، ليکن ملا علی قاری رحمه الله ددې توجيه کړې ده، چه ټولو څاروؤ لره به په يو قطار کښې اودرولې شي، هغوی به پرله پسې په دغې سړی باندې ګرځی، د هر يو نه پس دويم، بيا چه کله آخره پورې اورسی، نو اوس به دوباره دهغې اخری څاروی نه سلسله شروع کړې شي، زما په خيال کښې ددې دويم روايت په صورت کښې د څاروؤ نيغ قطار زيات مناسب دې، او د اول روايت دپاره د دائرې شکل زيات مناسب دې، والله تعالیٰ اعلم.

فی یوم کان مقداره خمسین الف سنة مما تعدون. یعنی د تعذیب دا توله کاروائی به په هغه ورځ کښې کیږی، چه دهغې مقدار د دنیا د ورځو په اعتبار سره پنځوس زره کاله دې، صاحب منهل لیکلې دی، یعنی د کافرانو په حق کښې او د نورو نافرمانو په حق به دهغوی د عصیان په اعتبار سره طول کم او زیات وی، لقوله تعالی یوم عسیر علی الکافرین غیر یسیر، او د مومن کامل الایمان په حق کښې به هغه د یو فرض مونځ د وخت نه زیاته آسانه وی، ففی روایة احمد و ابن حبان فقیل ما اطول هذ الیوم فقال والذی نفسی بیده انه لیخفف علی المؤمن حتی یکون اخف علیه من صلوة مکتوبة، وانا اسال الله تعالی ان یجعلنی و اهل بیتی و غیرهم من الاصول والفروع من هؤلاء الذین یکون هذا الیوم علیهم اخف من صلوة واحدة.
دا حدیث مطولا په صحیح مسلم کښې هم شته، او په صحیح بخاری کښې هم ددې مضمون راغلې دې،

[۱٦٥۹]([1]) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ، قَالَ فِي قِصَّةِ الْإِبِلِ بَعْدَ قَوْلِهِ "لَا يُؤَدِّي حَقَّهَا"، قَالَ: "وَمِنْ حَقِّهَا حَلَبُهَا يَوْمَ وِرْدِهَا".

حضرت ابوهریره رضی الله عنه دَ نبی کریم ﷺ نه ددې په مثل باندې روایت کړې دې - او دَ اوښانو په باره کښې چه کوم ذکر شو چه " چا ددې حق نهٔ وی ادا کړې " ددې نه پس فرمائی او دَ هغې دَ حق نه دادی چه په کومه ورځ باندې دا دَ اوبو څښلو دَ پاره راولی دَ هغې پئ اولوشی -
ومن حقها حلبها یوم وردها. ورد بکسر الواو الماء الذی ترد علیه،(عون) یعنی د څاروُو حقونه کوم چه د مالک په ذمه دی، دهغې نه دا دی، چه دهغوی نه دې پئی په هغه ورځ واخستلې شی، په کومه چه هغوی اوبو څکلو دپاره چینې یا تالاب ته اورسی، ددې ورځې تخصیص ئې ددې وجې نه اوکړو، چه په دغه ورځ اوبو باندې فقیران او مسکینان جمع کیږی، باقی دا څیز دهغې حقوق واجبه نه نه دې، چه دهغې په تفویت باندې تعذیب دې، بلکه دا صرف د حقوق مستحبه نه دې، دې لره ئې صرف استطرادا د ترغیب دپاره ذکر کړې دې، لکه چه په یو بل حدیث کښې راغلې دی، چه د اوني میوه د شپې مه شوکوه، بلکه د ورځې شوکوه،(ددې دپاره چه فقیرانو ته هم څه دهغې نه ورکړې) او قاضی عیاض دې لره د حقوق واجبه نه مقرر کړې دې، او دا ئې فرمائیلې دی، چه دا د وجوب زکوة نه مخکښې قصه ده، د نزول زکوة نه پس منسوخ شوه، او یا دې لره په زمان قحط یا حالت اضطرار باندې محمولولې شی، څکه چه د مضطر امداد د واجباتو نه دې. والله تعالی اعلم.

[۱٦٦۰]([2]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي عُمَرَ الْغُدَانِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَحْوَ هَذِهِ الْقِصَّةِ، فَقَالَ لَهُ يَعْنِي لِأَبِي هُرَيْرَةَ: فَمَا حَقُّ الْإِبِلِ؟ قَالَ: "تُعْطِي الْكَرِيمَةَ وَتَمْنَحُ الْغَزِيرَةَ وَتُفْقِرُ الظَّهْرَ وَتُطْرِقُ الْفَحْلَ وَتَسْقِي اللَّبَنَ".

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۳۲۱)(صحیح)

[2]: سنن النسائي/الزکاة ۲ (۲٤٤٤)، (تحفة الأشراف: ۱٥٤٥۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۸۳، ٤۸۹، ٤۹۰)(حسن)

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چه هغوی د رسول الله ﷺ نه ددې قصې په مثل باندې اوریدلې دی - شاګرد د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه د اوښانو څۀ حق دې؟ هغوی اووې: چه تۀ بهترين اوښ ورکړې (د الله په لاره کښې) د زياتو پيو ورکولو والا اوښه په عطيه کښې ورکړې، څۀ سورلی په سوال باندې ورکړې، او د څښلو د پاره نر اوښ ورکړې او په خلقو باندې يئ اخښې -"

قال تعطى الكريمة و تمنح الغزيرة و تفقر الظهر و تطرق الفحل: کريمه يعنى نفيسه، مطلب دادې، چه تۀ په زکوة کښې اعلى قسم اوښه ورکړه، او د غزيرې منيحه ورکړه، غزيره بمعنى كثير اللبن، او منيحه وئيلې شی، هغه پئی ورکونکې بزه يا اوښه، چه هغې لره دهغې مالک د څو ورځو دپاره عاريتا يو ضرورت مند ته ورکړی، دې دپاره چه څو ورځې هغه ددې د پيو نه نفع واخلی، او بيا هغې لره مالک ته واپس کړی، پخوا زمانه کښې د عربو کښې ددې دستور وو، او په احاديثو کښې هم ددې ترغيب راغلې دې، په دې باندې مستقل باب راروان دې، او د دريمې جملې مطلب دادې، چه د سورلئ څاروې چاته عاريتاً د سورلئ دپاره ورکول، او د څلورمې جملې مطلب دادې، چه د جفتى دپاره نر څاروې چاته عاريتاً بغير د اجرت نه ورکول.

[۱۶۶۱] (۱) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ خَلَفٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو الزُّبَيْرِ: سَمِعْتُ عُبَيْدَ بْنَ عُمَيْرٍ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا حَقُّ الْإِبِلِ؟ فَذَكَرَ نَحْوَهُ، زَادَ: "وَإِعَارَةُ دَلْوِهَا".

حضرت عبيد بن عمير رحمه الله (تابعی) بيان کوی چه يو کس اووې: اې د الله رسوله! د اوښانو څۀ حق دې؟ نو د مذکوره بالا هم معنیٰ ئې ذکر کړو او مزيد ئې اووې: د هغې بوقه (ډولچه) په سوال باندې ورکول -"

**تشريح: قوله:** زاد و اعارة دلوها:

د دلو نه مراد يا خو ددې ظاهری معنی ده، يعنی څاروو ته د اوبه ورکولو دپاره عاريتا خپله ډولچه ورکول، او وئيلې شوې دی، چه دا کنايه ده د ضرع (تيونو) نه، يعنی پيو والا څاروې څو ورځو دپاره عاريتا ورکول، لکه چه مخکښې تير شو و تمنح الغزيرة.

[۱۶۶۲] (۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ يَحْيَى الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ، عَنْ عَمِّهِ وَاسِعِ بْنِ حَبَّانَ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَمَرَ مِنْ كُلِّ جَادِّ عَشَرَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ بِقِنْوٍ يُعَلَّقُ فِي الْمَسْجِدِ لِلْمَسَاكِينِ".

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ د کجورو د ميوې د شوکولو والا ته حکم کړې وو چه څوک لس وسقه کجورې کټ کړی نو هغه دې يوه غُنچه د مساکينو د پاره په جمات کښې زورنده وی -

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۸۹۹۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزكاة ۶ (۹۸۸) (صحيح)
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۱۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۵۹، ۳۶۰) (صحيح)

## شرح حديث :

**تشريح: قوله**: عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ مِنْ كُلِّ جَادٍّ [1] عَشْرَةِ أَوْسُقٍ مِنَ التَّمْرِ بِقِنْوٍ يُعَلَّقُ فِي الْمَسْجِدِ لِلْمَسَاكِينِ

ددې حديث حواله او مطلب مخکښې د باب ما لا يجوز من التمر في الصدقة دلاندې تير شوې دې، دهغې حاصل دادې، چه کوم خلق باغ والا دی، او هغوی سره د کجهورو باغونه دی، نو هغوی لره پکار دی، چه په هر لس وسقه کهجورو کښې يوه غنچکه په جمات کښې زوړنده کړی، مثلا که د چا د باغ نه سل وسق کهجورې راوځی، نو هغه دپاره لس غنچکې په جمات کښې زوړندول پکاردی. باقی د تعليق قنو امر عند الجمهور استحبابی دې، او د بعضې ظاهريه په نزد واجب دې. (منهل)

[۱۶۶۳] (2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدِ اللّٰهِ الْخُزَاعِيُّ، وَمُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو الْأَشْهَبِ، عَنْ أَبِي نَضْرَةَ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ، إِذْ جَاءَ رَجُلٌ عَلَى نَاقَةٍ لَهُ فَجَعَلَ يُصَرِّفُهَا يَمِينًا وَشِمَالًا، فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ عِنْدَهُ فَضْلُ ظَهْرٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا ظَهْرَ لَهُ، وَمَنْ كَانَ عِنْدَهُ فَضْلُ زَادٍ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا زَادَ لَهُ، حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي الْفَضْلِ".

حضرت ابو سعيد خدری رضی الله عنه بيان کوی چه مونږ په يو سفر کښې د نبی کريم ﷺ سره وو چه يو کس په اوښ باندې راغې او هغې لره ئې ښی او ګس طرف ته تاؤ راتاؤ کړو نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" دَ چا سره چه زياتی سورلی وی نو هغه دې هغه کس ته ورکړی دَ چا سره چه سورلی نهٔ وی - او دَ چا سره چه دَ خوراک څښاک زياتی څهٔ څيز وی نو هغه دې هغه شخص ته ورکړی چه دَ هغه سره توښه نهٔ وی -" ( دَ هغوی دَ ارشاد نه) مونږ دا اوګنړله چه زمونږ په زياتی اموالو کښې هيڅ حق نشته دې -

**تشريح: قوله**: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: بَيْنَمَا نَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ........ فَلْيَعُدْ بِهِ عَلَى مَنْ لَا زَادَ لَهُ، حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي الْفَضْلِ".

## شرح حديث :

ابو سعيد خدری رضی الله عنه فرمائي چه يو ځل مونږ د نبی کريم ﷺ سره په سفرکښې وو، نو يو سړې چه په اوښې باندې سور وو، ناساپه راؤرسيدو، او راتلو نه پس په هغې باندې د

---

[1] في مصباح المنير جده جدا من باب قتل قطعة فهو جديد. فعيل په معنی د مفعول وئيلي شی: هذا زمن الجداد (بفتح وله وکسره) دا د جداد زمانه ده يعني د ميوو د پرې کولو زمانه او موسم، دلته په حديث کښې به جاد يا خود مجدد په زمانه کښې اخستلې شی او جاد به ما بعد ته مضاف منلې شی، په دې صورت کښې به ترجمه دا وی چه رسول الله ﷺ حکم اوفرمائيلو د دې خبرې چه هر لس وسقه په پرې کړې شوی کهجورو کښې دې يوه غنچه په مسجد کښې زوړنده کړې شی، او دا هم ممکنه ده چه لفظ جاد د فاعل په معنی کښې اوساتلې شی او ( من ) زائد اومنلې شی، او د اضافت په ځائې تنوين اولوستلې شي، او عشرة لره منصوب د مفعوليت په وجه باندې، من کل جاد عشرة اوسق. ترجمه به دا وی : رسول الله ﷺ حکم اوفرمائيلو هغه سړی ته کوم چه لس وسق پرې کونکې وی چه د هغې نه يوه غنچه په مسجد کښې زوړنده کړی. (منهل بتغير)

[2]: صحيح مسلم/اللقطة ٤(١٧٢٨)،( تحفة الأشراف: ٤٣١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/٣٤)(صحيح)

سوریدو په حالت کښې کله به ئې یو طرف ته تاؤ کړه، او کله بل طرف ته، په بذل المجهود کښې ددې دوه مطلبه لیکلې دی،(۱) دهغې سړی سورلی د ضعف او ستړې والی په وجه عاجزه شوې وه، او دې سړی خپله سورلی بدلول غوختل، ددې وجې نه هغه سړی د خپلې سورلئ حالت خلقو ته ښودل غوختل، دې دپاره چه خلق دهغه مدد اوکړی، او د بلې سورلئ انتظام اوکړی، لکه مخکښې په حدیث کښې دی، چه نبی کریم ﷺ خلقو ته اوفرمائیل: چه د چا سره د ضرورت نه زیاته سورلی وی، نو هغه دې خپل ضرورتمند ورور ته ورکړی.(۲)
دویم مطلب دادې، چه هغه سړې په ډیر خائسته سورلئ باندې سور وو، چه دهغې مخ به ئې کله یو طرف ته کړو، او کله بل طرف ته، یعنی بطور فخر او لوئې خلقو ته ئې خپله سورلی ښودله، او ممکن ده، چه هغه سره نور هم د ضرورت نه زیاتې سورلئ وې، نو ددې وجې نه نبی کریم ﷺ دهغې سړی د اصلاح دپاره اوفرمائیل: چه چاسره د ضرورت نه زیاتې سورلئ وی، هغه لره پکار دی، چه نورو ته ئې هبه کړی، او خپل ځان سره دې صرف د ضرورت مطابق اوساتی، او په زیاته لوئې کښې دې نه راځی، چه د مال د کثرت او ډیروالی د وجې نه انسان په تکبر کښې مبتلاء کیږی.

**تشریح**: **قوله**: حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهُ لَا حَقَّ لِأَحَدٍ مِنَّا فِي الْفَضْلِ

یعنی نبی کریم ﷺ د صدقې دومره ترغیب اوفرمائیلو، چه مونږ دا اوګڼړل، چه سړی سره د ضرورت نه زیات چه کوم مال وی، په هغې کښې دهغه هیڅ حق او حصه نشته.

[۱۶۶۴](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ يَعْلَى الْمُحَارِبِيُّ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا غَيْلَانُ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ إِيَاسٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ سورة التوبة آية ۳۴، قَالَ: كَبُرَ ذَلِكَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ، فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَا أُفَرِّجُ عَنْكُمْ، فَانْطَلَقَ، فَقَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنَّهُ كَبُرَ عَلَى أَصْحَابِكَ هَذِهِ الْآيَةُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَفْرِضِ الزَّكَاةَ إِلَّا لِيُطَيِّبَ مَا بَقِيَ مِنْ أَمْوَالِكُمْ، وَإِنَّمَا فَرَضَ الْمَوَارِيثَ لِتَكُونَ لِمَنْ بَعْدَكُمْ"، فَكَبَّرَ عُمَرُ، ثُمَّ قَالَ لَهُ: "أَلَا أُخْبِرُكَ بِخَيْرِ مَا يَكْنِزُ الْمَرْءُ: الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ إِذَا نَظَرَ إِلَيْهَا سَرَّتْهُ، وَإِذَا أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ، وَإِذَا غَابَ عَنْهَا حَفِظَتْهُ".

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه منقول دی چه کله دا آیت کریمه {وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ}[التوبة: ۳۴] نازل شو نو په دې سره په مسلمانانو باندې ډیره ګرانی پریوتله - پس حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل : زۀ ستاسو مشکل لره لرې کووم، چنانچه دا تول راغلل او هغوی اووې اې د الله نبی ! ستاسو صحابه ؤ ته دا آیت کریمه ډیر دروند محسوسیږی نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : الله تعالیٰ زکات هم ددې د پاره فرض کړې دې چه په دې سره ستاسو باقی مال پاک شی - او وراثت لره ئې ددې وجې نه فرض کړې دې چه ستاسو نه ورستو خلقو ته ملاؤ شی -" په دې باندې حضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل : [ الله اکبر ] بیا ئې دۀ ته اوفرمائیل : آیا زۀ تاته خبر درنۀ کړم چه هغه کوم بهترین څیز دې چه هغې لره انسان خزانه کوی وې فرمائیل :" هغه نیکه صالحه بی بی ده، کله چه دې هغې ته نظر اوکړی نو دۀ لره خوشالوی -، هغې ته چه امر اوکړی نو منی ئې او کله چه غائب وی نو ددۀ ( د کور،

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۶۳۸۳)(ضعیف)

مال او دَ خپل ځان دَ عفت، حفاظت کوي -

ثُمَّ قَالَ لَهُ أَلَا أُخْبِرُكَ بِخَيْرِ مَا يَكْنِزُ الْمَرْءُ الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ إِذَا نَظَرَ إِلَيْهَا سَرَّتْهُ وَإِذَا أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ وَإِذَا غَابَ عَنْهَا حَفِظَتْهُ: ددې ټول حديث حاصل دادې، چه سړی سره که څومره ډير مال ولې نه وی، که هغه زکوة واجبه او حقوق واجبه ادا کوي،نودا مال دهغه دپاره موجب مواخذه نه دې، ليکن ددې باوجود د دنيا مال او متاع، ساز او سامان د رغبت او جمع کولو قابل څيز نه دې، البته که د دنيا په څيزونو کښې څه څيز قابل رغبت دې، نو هغه نيکه او خائسته بې بې ده،داسې بې بې چه کله خاوندهغې طرف ته اوګوري،نوهغه په خپل حسن ظاهري او باطني(حسن صورت و حسن سيرت) سره هغه خوشاله کړي، او هغه د خاوند فرمانبرداره وی، او چه کله خاوند سفر وغيره ته لاړ شي، نو هغه د خپل عصمت او د خاوند دمال حفاظت کوی، يعنی د دنيا چه باقي کوم څيزونه دی، هاتهی، اسونه خائسته بنګلې، باغونه، او قسماقسم د آرام او راحت اسباب ټول فضول او لغو دی، د ديندار او پوهه سړی دپاره د رغبت څيزونه نه دی، واقعی نبی کريم ﷺ رشتيا فرمائيلې دی، د غور کولو ضرورت دې، په دې وخت کښې غور کول فائده مند او نفع ورکونکې دی، ګنی وروستو به پښيمانتيا وی، چه هغې سره به هيڅ فائده نه حاصليږي. والله الموفق.

## باب حَقِّ السَّائِلِ

### باب: ۳۳- دَ سائل حق

[۱۶۶۵]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا مُصْعَبُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ شُرَحْبِيلَ، حَدَّثَنِي يَعْلَى بْنُ أَبِي يَحْيَى، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ حُسَيْنٍ، عَنْ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لِلسَّائِلِ حَقٌّ وَإِنْ جَاءَ عَلَى فَرَسٍ".

د حضرت حسين بن على رضي الله عنهما نه روايت دې، چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :" دَ سائل حق دې، اګر کۀ هغه په اس باندې سور راشی -"

عَنْ حُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلسَّائِلِ حَقٌّ وَإِنْ جَاءَ عَلَى فَرَسٍ
د سوال کونکې بهر حال حق شته، اګر چه هغه په اس باندې سور ولې نه وی راغلې، يعنی دهغه د ظاهری حال په وجه په هغه باندې بدګمانی پکار نه ده، ځکه چه په اس باندې سوريدلو تقاضا اګر چه دهغه عدم حاجت دې، نو دهغه سوال کول خو د احتياج نښه او دليل دې، ښکاره خبره ده، چه کله هغه د سوال ذلت برداشت کوی، نو غالبه دا ده، چه هغه ته څه حاجت پيښ شوې دې، مثلا تحمل حماله يا کثرت عيال وغيره، او اس ضروری نه دې، چه د هغه ملک وی، ممکن ده چه عاريتا ئې اخستلې وی.

حضرت په بذل کښې ليکلې دی، چه دا د خير القرون خبرې دی، ليکن په دې زمانه کښې خو ډيرو خلقو سوال يو کسب او ذريعه معاش ګرځولې دې، په داسې صورت کښې سوال هم حرام دې، او اعطاء هم حرام ده، ځکه چه دا اعانت على المعصية دې، او هم دا خبره

[1]: تفرد به أبو داود.( تحفة الأشراف: ۳۴۱۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۲۰۱)(ضعيف)

صاحب منهل هم ليکلي ده.

دا حديث د اهل بيت د مروياتو نه دې، فاطمه بنت الحسين چه د امام زين العابدين خور ده، هغه دې لره د خپل والد حسين بن علی نه روايت کوی، او علامه سيوطی رحمه الله دې لره په الهاشميات کښې روايت کړې دې، کما في المنهل، او صاحب عون المعبود ليکلي دی، چه دا حديث د حضرت شاه ولی الله صاحب دهلوی په اربعين اهل بيت کښې بالسند المسلسل مروی دې، او دا هم زده کول پکار دی، چه بعضو علماؤ لکه سراج الدين قزوينی او ابن الصلاح محدث دې حديث ته موضوع وئيلې دی، ليکن حافظ ابن حجر او علامه سيوطی وغيره په دې باندې رد کړې دې، او دې لره ئې حسن ګرزولې دې، صاحب منهل ليکلي دی، والحديث اخرجه ايضا الامام احمد.

[۱۶۶۶]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ شَيْخٍ، قَالَ: رَأَيْتُ سُفْيَانَ عِنْدَهُ، عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ حُسَيْنٍ، عَنْ أَبِيهَا، عَنْ عَلِيٍّ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ.

حضرت حسين رضی الله عنه د خپل پلار حضرت علی رضی الله عنه نه هغوی رضی الله عنه د نبی کريم ﷺ نه ... د مذکوره بالا حديث په مثل باندې روايت اوکړو -"

[۱۶۶۷]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ بُجَيْدٍ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ بُجَيْدٍ وَكَانَتْ مِمَّنْ بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ لَهُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْكَ، إِنَّ الْمِسْكِينَ لَيَقُومُ عَلَى بَابِي فَمَا أَجِدُ لَهُ شَيْئًا أُعْطِيهِ إِيَّاهُ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنْ لَمْ تَجِدِي لَهُ شَيْئًا تُعْطِينَهُ إِيَّاهُ إِلَّا ظِلْفًا مُحْرَقًا فَادْفَعِيهِ إِلَيْهِ فِي يَدِهِ".

د حضرت ام بجيد نه روايت دې او دا د هغه ښځو نه وه کومو چه د رسول الله ﷺ نه بيعت کړې وو - هغې اووې اې د الله رسوله! د الله تعالیٰ رحمت دې په تا باندې نازل وی، مسکين زما په دروازه باندې اودريږی او ما سره څۀ نۀ وی چه هغه ته ئې ورکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل: کۀ چرې تاسره هغه ته د ورکړې څۀ نۀ وی، او تاسره د بکرۍ سوزيدلې نوکه هم وی نو هم هغې لره هغه ته په لاس کښې ورکړه -

**تشريح: قوله:** إِنْ لَمْ تَجِدِي لَهُ شَيْئًا تُعْطِينَهُ إِيَّاهُ إِلَّا ظِلْفًا مُحْرَقًا فَادْفَعِيهِ إِلَيْهِ فِي يَدِهِ

که هيڅ يو څيز سائل ته د ورکولو دپاره اونه مومې سوا د ظلف محرق نه، (يعنی دغوا يا بزې سوزيدلې نوکه) نو هم هغه ورکړه.

**شرح حديث:**

وئيلې شوې دی، چه دا بطور مبالغه ده، مراد معمولی او حقير څيز دې، مقصد دادې، چه سائل خالی لاس واپس مۀ ليږه، او بعضې وائی، چه نا بلکه حقيقت مراد دې، ځکه چه بعضې خلق د بزې وغيره نوکه په اور کښې سوزولو نه پس ميده کړی، او ځان سره ئې ساتی، او بيا د ضرورت او مجبورۍ په حالت کښې هغه خوری.

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۷۱)(ضعيف)

[2]: سنن الترمذي/الزكاة ۲۹(۶۶۵)، سنن النسائي/الزكاة ۷۰(۲۵۶۶)( تحفة الأشراف :۱۸۳۰۵)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/صفة النبي ۵(۸)، مسند احمد(۷۰/۴)(صحيح)

## بَابُ الصَّدَقَةِ عَلَى أَهْلِ الذِّمَّةِ

### باب: ۳۴- ذميانو ته صدقه ورکول

که کافر ذمي وي او که مشرک، هغه ته صدقه مفروضه يعنی زکوة ورکول جائز نه دی، البته صدقه نافله ورکولې شی، د زکوة مصرف کښې مسلمان کيدل ضروری دی، سوا د مؤلفة القلوب نه، چه په هغې کښې اختلاف دې، او دهغې بيان په تفصيل سره په مصارف زکوة کښې تير شوي دي.

د حضرت شيخ رحمه الله په حاشيه کښې دی، چه د احنافو په نزد صدقة الفطر کافر ذمی ته ورکول جائز دی. (کما في الشامي) ا هـ

[۱۶۶۸] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ أَبِي شُعَيْبٍ الْحَرَّانِيُّ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ: قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي رَاغِبَةً فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ وَهِيَ رَاغِمَةٌ مُشْرِكَةٌ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ عَلَيَّ وَهِيَ رَاغِمَةٌ مُشْرِكَةٌ أَفَأَصِلُهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ فَصِلِي أُمَّكِ".

د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنهما نه روايت دې، هغه فرمائي چه د قريشو سره د معاهدهٔ حديبيه په ورځو کښې زما مور (مدينه) ماته راغله او هغې (اسلام لره) ناخوښه ګڼړلو او مشرکه وه - ما تپوس اوکړو: اې دَ الله رسوله! زما مور ماته راغلې ده او هغه (اسلام) لره ناخوښه ګڼړي او مشرکه ده - آيا زهٔ دَ هغې سره حسنِ سلوک (ښهٔ سلوک) اوکړم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل: او دَ خپلې مور سره دَ حسنِ سلوک او دَ صلهٔ رحمئ معامله اوکړه -"

### شرح حديث:

عَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي رَاغِبَةً (۲) فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ وَهِيَ رَاغِمَةٌ مُشْرِكَةٌ

حضرت اسماء بنت ابو بکر رضي الله عنهما فرمائي چه په کومه زمانه کښې د مسلمانانو قريشو سره صلح وه، (يعنی صلح حديبيه) هغه زمانه کښې زما مور ماته رغبت سره راغله، يعنی زما د حسن سلوک توقع سره، او زما دطرف نه د صله رحمئ اميد سره راغله، ليکن د اسلام نه نفرت کونکې وه، يعنی څرنګه چه اسلام راوړونکی مدينې ته د هجرت او د قيام په نيت راځی، دهغې راتلل داسې نه وو، د اسلام سره دهغې بې رغبتی وه، صرف زما د وجې نه ملاقات دپاره راغلې وه، په بعضو رواياتونو کښې دی، چه هغې ځان سره څه تحفې هم

(۱): صحيح البخاري/الهبة ۲۹ (۲۶۲۰)، والجزية ۱۸ (۳۱۸۳)، والأدب ۸ (۵۹۷۸)، صحيح مسلم/الزكاة ۱۴ (۱۰۰۳)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/۳۴۴، ۳۴۷، ۳۵۵) (صحيح)

(۲) د ﴿ راغبة ﴾ په تفسير کښې اختلاف دې، صحيح دا ده چه د دې نه مراد ﴿ راغبة في صلتي ﴾ دې او بعض شارحين په ﴿ راغبة في الاسلام ﴾ سره د دې شرح کړې ده ترديد چه بعض په دې بنياد باندې هغه په صحابيات کښې شمار کړې دې خو دا صحيح نه ده ځکه چه د ابوداود په دې حديث کښې ﴿ وهي راغمة مشركة ﴾ تصريح ده.. بلکه دا چه که هغه د ﴿ رغبة في الاسلام ﴾ سره راشی نو بيا به اسماء رضي الله عنها ته د رسول الله ﷺ نه د اجازت اخستلو ضرورت نه وو ځکه چه تاليف علي الاسلام په هغه زمانه کښې مشهور وو، د رسول الله ﷺ د فعل او امر د وجې نه. (قاله الحافظ ج ۱ ص ۳۲۵) امام نووی رحمه الله فرمائي: الاكثر علي انها ماتت مشركة، هم دغه شان خبره حافظ هم ليکلې ده چه د يو روايت نه هم د هغې اسلام ثابت نه دې.

راوړلې وې، ليکن حضرت اسماء خپلې مور ته نه کور ته د داخليدو اجازت ورکړو، او نه ئې دهغې تحفې قبولې کړې، تر څو پورې چه د نبی کريم ﷺ نه ئې تپوس نه وو کړې، حضور اقدس ﷺ حضرت اسماء رضي الله عنها ته د خپلې مور سره د حسن سلوک او د صله رحمئ حکم ورکړو، دا حديث متفق عليه دې، امام بخاری دې لره په کتاب الهبه او کتاب الادب دوه ځايونو کښې ذکر کړې دې، او امام مسلم په کتاب الزکوة کښې، امام بخاری په دې باندې يو ځائې کښې باب قائم کړې دې، باب الهدية للمشركين، و قول الله تعالى لا ينهاكم الله عن الذين لم يقاتلوكم فى الدين الآية، او بل ځائې کښې ئې باب قائم کړې دې، باب صلة الوالد المشرك، ليکن امام ابوداؤد څرنګه چه تاسو ګورئ، په دې حديث باندې ئې د ذمی باب قائم کړې دې، دهغې وجه داده، چه د اسماء رضي الله عنها مور مدينې منورې ته د صلح په زمانه کښې راغلې وه، په دې اعتبار سره هغه ذميه شوه، په اصل کښې ددې حديث نه د کافر مور پلار سره د صله رحمئ ثبوت کيږی، چه دهغې په جواز کښې هيڅ تامل هم پکار نه دې، د نصوص قرآنيه او حديثيه دواړو نه ثابت دې، ليکن مصنف رحمه الله په دې باندې د صدقة ترجمه قائمه کړې ده، د صله رحمئ نه د صدقې په جواز باندې استدلال په طريقې د قياس دې، يعنی د رشته دارونه علاوه نورو کافرانو سره هم احسان او سلوک کولې شی،[1] كما قال الله تعالى لا ينهاكم الله عن الذين لم يقاتلوكم فى الدين و لم يخرجوكم من دياركم ان تبروهم و تقسطوا اليهم الآية،لکه چه امام بخاری رحمه الله هم دې آيت لره په ترجمة الباب کښې ذکر کړې دې.

د اسماء رضي الله عنها د مور نوم قيله بنت عبد العزى دې، او وئيلې شوې دی، چه قتيله دې، هغې ته حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په زمانه دجاهليت کښې طلاق ورکړې وو .(فتح الباری ۱۷۱\۵)

## بَاب مَا لَا يَجُوزُ مَنْعُهُ

### باب: ۳۵- هغه څيزونه چه دهغې منع جائز نهٔ ده-

هغه څيزونه چه منع کول او صدقه کښې ئې نه ورکول جائز نه دی، بلکه ورکول ضروری او واجب دی.

[۱۶۶۹]([2]) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا كَهْمَسٌ، عَنْ سَيَّارِ بْنِ مَنْظُورٍ رَجُلٍ مِنْ بَنِي فَزَارَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ امْرَأَةٍ يُقَالُ لَهَا: بُهَيْسَةُ، عَنْ أَبِيهَا، قَالَتْ: اسْتَأْذَنَ أَبِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَمِيصِهِ فَجَعَلَ يُقَبِّلُ وَيَلْتَزِمُ، ثُمَّ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: "الْمَاءُ"، قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: "الْمِلْحُ"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: "أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ".

---

[1] او دا شبهه دې اونکړې شی چه دا خبره د دې آيت کريمه خلاف ده ﴿لا تجد قوما يومنون بالله واليوم الاخر يوادون من حاد الله ورسوله﴾ الاية. ځکه چه په دې آيت کريمه کښې خو کفار او مشرکينو سره د مودة نه منع کړې شوې ده او احسان او صله رحمی مودة لره مستلزم نه دی بعض وخت په چا باندې احسان مصلحة سره د نفرت نه هم کولې شی او مودة وئيلې شی قلبی تعلق او محبت ته.

[2]: تفرد به أبو داود، ويأتي برقم :(۳۴۷۶)،( تحفة الأشراف :۱۵۶۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴/ ۸۰، ۸۱)، سنن الدارمي /البيوع ۷۰(۲۶۵۵)(ضعيف)

بهیسهؓ د خپل پلار نه نقل کوی چه زما پلار د نبی کریم ﷺ نه د ملاویدو اجازت واخستو - او هغه د هغوی ﷺ د قمیص او د هغوی ﷺ په درمیان کښې داخل شو او د هغوی ﷺ جسم( مبارک) ئې ښکل کړو او په هغې پورې پیوست شو - بیا ئې اووې اې د الله رسوله! هغه کوم څیز دې چه د هغې منع کول حلال نهٔ دی حضور ﷺ اوفرمائیل: اوبهٔ - بیا ئې تپوس اوکړو هغه کوم څیز دې چه د هغې منع کول حلال نهٔ دی؟ هغوی ﷺ اوفرمائیل: مالګه -" بیا ئې تپوس اوکړو اې د الله رسوله! هغه کوم څیز دې چه د هغې منع کول جائز نهٔ دی؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: کومه نیکی چه هم کوې هغه ستا د پاره خیر دې -

عَنْ امْرَأَةٍ يُقَالُ لَهَا بُهَيْسَةُ عَنْ أَبِيهَا بهیسه مجهوله ده، ددې د پلار دنوم په باره کښې وئیلې شوې دی، چه عمیر دې، صحابی دې، قلیل الروایة دې.

قَالَتْ اسْتَأْذَنَ أَبِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ قَمِيصِهِ فَجَعَلَ يُقَبِّلُ وَيَلْتَزِمُ

حدیث باب د محبت او عشق باره کښې دې، بهیسه وائی، زما پلار د نبی کریم ﷺ نه ددې خبرې اجازت طلب کړو، چه هغه د ستاسو جسد اطهر او جسم انور ښکلول غواړی، یعنی بغیر د حائل نه، او صرف ښکلول نه، بلکه څومره هم چه بدن سره بدن یو ځائې کیدې شی، (یا خو د نبی کریم ﷺ سره د محبت په غلبه کښې، یا ددې وجې نه چه دهغه جسم د نبی کریم ﷺ د جسم سره د تماس په برکت سره د اور نه محفوظ شی)

ثُمَّ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ الْمَاءُ قَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ الْمِلْحُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ قَالَ أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ

## شرح حدیث من حیث الفقه:

د بهیسې پلار د نبی کریم ﷺ نه بار بار دا سوال اوکړو، چه هغه کوم څیز دې، چه دهغې نه انکار کول جائز نه دی، په اول ځل نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: الماء، بیا دویم ځل سوال باندې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: الملح، بیا په آخره کښې د دغې سوال په جواب کښې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه کوم د نیکئ کار وی هغې لره کول پکار دی، په دې جواب سره نبی کریم ﷺ تمادی فی السوال( یعنی د سوال او جواب سلسله) ختمه کړه، په دې حدیث باندې که فقهی حیثیت سره د ټولو مذاهبو په اعتبار سره کلام اوکړې شی، نو په دې کښې ډیر زیات طوالت دې، لهذا څرنګه چه خپله نبی کریم ﷺ په دې حدیث کښې اختصار اختیار کړې دې، مونږ هم مختصر لیکلو باندې اکتفاء کوؤ.

په کتاب البیوع کښې هم مصنف یو باب ددې قسم قائم کړې دې، باب فی منع الماء او په هغې کښې ئې ډیر احادیث ذکر کړې دی، هم دا د بهیسې والا حدیث هم، او بل حدیث د یو رجل مهاجری( چه دهغه د نوم تصریح په سند کښې نشته) چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: المسلمون شرکاء فی ثلاث فی الماء والکلاء والنار.

علماؤ لیکلې دی، چه د اوبو درې قسمه دی، الانهار الکبار، الانهار الصغار، الماء المحرز فی الاناء، اول لکه نیل او فرات، لوئې لوئې نهرونه، چه دا د هیچا ملک نه دې، په دې کښې د

تولو خلقو شرکت دې، هيڅوک چالره منع کولې نه شي، او دويم قسم، وړوکې وړوکې نهرونه، چه د لوئي نهرونو نه ويستلې شوې وي، دا نهرونه د هغې خلقو ملک دې، کومو چه په خپلې خرچې سره دا ويستلې او جاري کړې دي، او دهغې حکم دادې، چه څرنګه سړې خپله دهغې نهر نه فائده اخستلې شي، دغه شان نور خلق او دهغوی څاروی هم دهغې نه اوبه څکلې شي، منع کول جائز نه دي، البته که هغه څاروی دهغې نهر غاړه يا دولچه وغيره ماته کړي، يا خرابه کړي، نو بيا مالک منع کولې شي، ليکن په دې اوبو سره نور خلق خپل باغونه او پټي د مالک د اجازت نه بغير خړوب کولې نه شي، ددې نه هغه دوی لره منع کولې شي، او د دريم قسم حکم دادې، چه هغه اوبه دسړی خپل ملک دې، د بل دپاره په هغې کښې بالکل تصرف جائز نه دې.

او د ملح نه مراد هغه مالګه ده، چه په خپل معدن کښې وي، او هغه معدن په ارض غير مملوکه کښې وي، او که په خپل مملوکه زمکه کښې وي، يا داسې مالګه چه د سړی په خپل ملک او خرز کښې وي، نو دهغې منع کول جائز دي، دا خو اصولي او آئيني خبره ده، دويم احتمال په حديث کښې دادې، چه دې سره د حق شرع بيان مقصود نه دې، بلکه دا د حسن معاشرت او د مکارم اخلاق د قبيلې نه دې، او د بخل نه منع کول دي، په دې صورت کښې به قسم ثالث هم په دې حکم کښې داخل شي، او د هيڅ تخصيص حاجت به نه وي. و حديث الباب قال المنذري اخرجه النسائي.

## بَابُ الْمَسْأَلَةِ فِي الْمَسَاجِدِ

### باب: ۳۶- په جماتونو کښې سوال کول

[۱۶۷۰]() حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ بَكْرٍ السَّهْمِيُّ، حَدَّثَنَا مُبَارَكُ بْنُ فَضَالَةَ، عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ مِنْكُمْ أَحَدٌ أَطْعَمَ الْيَوْمَ مِسْكِينًا؟" فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: دَخَلْتُ الْمَسْجِدَ فَإِذَا أَنَا بِسَائِلٍ يَسْأَلُ فَوَجَدْتُ كِسْرَةَ خُبْزٍ فِي يَدِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ فَأَخَذْتُهَا مِنْهُ فَدَفَعْتُهَا إِلَيْهِ.

د حضرت عبد الرحمن بن ابی بکر ﷠ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ پوښتنه اوکړه: "آيا په تاسو کښې څوک شته چه هغه نن په چا مسکين باندې خوراک کړې وي؟" نو ابوبکر ﷠ جواب ورکړو: زۀ جمات ته داخليدم ما يو سوال کوونکې په سوال کولو باندې اوليدلو، ما (د خپل ځوی) عبدالرحمن په لاس کښې دَ روټئ يوه ټکړا اومندله نو ما هغې لره دَ هغه نه واخستله او هغه سائل ته مې ورکړه."

په حديث الباب کښې دادی چه حضرت ابوبکر صديق ﷠ فرمائي چه يوه ورځ زۀ جمات ته لاړم، نو اومې ليدل چه يو سائل سوال کوی، هغه فرمائي چه زما د ځوی عبدالرحمن په لاس کښې د ډوډئ يوه ټکړه وه، ما دهغه د لاس نه واخستله، او هغې سائل ته مې ورکړه.

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۶۹۰)(صحيح)

**په حدیث باندې کلام من حیث الفقه:**

د جمهورو په نزد سوال فی المسجد جائز دې، او اعطاء هم جائز ده، لیکن که سائل چرته بدعنوانی اوکړی، مثلا په سوال کښې الحاح او اصرار اوکړی، یا تخطی رقاب اوکړی، نو بیا سوال او اعطاء دواړه ناجائز دی، دا خو د جمهورو مسلک ددې، او داحنافو په نزد سوال فی المسجد مطلقا حرام دې، او په اعطاء کښې دوه اقوال دی، (۱) مطلقا کراهة، (۲) دویم قول دادې چه په اعطاء کښې کراهة په هغه وخت کښې دې، چه کله سائل تخطی رقاب اوکړی، گنی کراهة نشته، قول اصح هم دادې، لهذا دا حدیث د سوال فی المسجد په مسئله کښې د احنافو خلاف دې، ددې جواب یو خو دادې، چه په دې حدیث کښې ددې تصریح نشته، چه هغه سائل په جمات کښې وو، ممکن ده، چه د جمات نه بهر جمات سره نزدې ئې سوال کولو، چه هغه صدیق اکبر رضی الله عنه په جمات کښې واؤریدو، دویم جواب دادې، چه دا حدیث ضعیف دې، د مبارک بن فضاله د وجې نه، اکثرو امامانو ددهٔ تضعیف کړې دې، دا حدیث مطولا په مسند بزار کښې دې، او امام ابوبکر بزار هم په دې باندې کلام کړې دې، د احنافو دلیل په حرمت سوال کښې هغه حدیث دې، کوم چه په کتاب الصلوة، ابواب المساجد کښې تیر شوې دې، من سمع رجلا ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا راداها الله الیک فان المساجد لم تبن لهذا، (بذل و منهل) هرکله چه د خپل څیز تلاش کولو نه او دهغې باره کښې د سوال کولو نه منع شوې ده، نو د بل نه سوال کول به په طریقه اولی منع وی، والله تعالی اعلم.

**تشریح: قوله:** قال المنذری وقد اخرجه مسلم فی صحیحه والنسائی فی سننه من حدیث ابی حازم سلمان الاشجعی عن ابی هریرة بنحوه اتم منه.

## بَابُ كَرَاهِيَةِ الْمَسْأَلَةِ بِوَجْهِ اللَّهِ تَعَالَى

**باب: ۳۷- دَ الله تعالی په مخ باندې سوال کول مکروه دی:**

[۱۶۷۱] (١) حَدَّثَنَا أَبُو الْعَبَّاسِ الْقِلَّوْرِيُّ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِسْحَاقَ الْحَضْرَمِيُّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُعَاذٍ التَّمِيمِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللَّهِ إِلَّا الْجَنَّةُ".

د حضرت جابر رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: "د الله تعالی د مخ په واسطه باندې صرف دَ جنت سوال کولې شی."

عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللَّهِ إِلَّا الْجَنَّةُ،

لَا يُسْأَلُ: مضارع منفی مجهول، او صیغه د نهی دواړه کیدې شی.

**شرح حدیث**

د حدیث دوه مطلبه کیدې شی، (۱) د الله تعالی د ذات په توسل سره څه معمولی څیز نه دی غوختل پکار، یعنی خپله د الله تعالی نه، څکه چه عظیم ذات لره وسیله جوړول د حقیر څیز په طلب کښې غیر مناسب دی، بلکه د جنت پشان عظیم الشان څیز غوختل پکار دی، مثلا

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۰۴۰) (ضعیف)

داسې دعا غوختل جائز نه دی، چه یا الله د خپل کریم ذات په وسیلې او طفیل سره ماته یو وسیع کور راکړه، بلکه داسې دې اوائی، چه ای الله د خپل کریم ذات په طفیل سره ماته جنت الفردوس راکړه، او دویم مطلب دادې، چه د خلقو نه سوال د الله تعالی د ذات په وسیلې سره کول جائز نه دی، یعنی د دنیوی مال او متاع سوال کول د خلقو نه د الله تعالی په وسیلې سره جائز نه دی، مثلا چاته داسې اوائی، چه ماته د الله تعالی دپاره فلانې څیز راکړه، د الله تعالی په نوم سره حقیر څیز طلب کول پکار نه دی، دا دویم مطلب علامه طیبی رحمه الله لیکلی دې، په دې باندې صاحب منهل لیکلې دی، چه دا کراهت او ممانعت په هغه وخت کښې دې، چه کله مسئول (د چا نه چه سوال کولې شی) سوال سره تنګ دله او سترې کیږی، که دا خبره نه وی، بلکه د الله تعالی د نوم نه متاثره کیږی، او دهغې د عزت خیال ساتی، نو بیا په کښې هیڅ ګناه نشته، کما سیاتی فی الحدیث الآتی.

## باب عَطِيَّةِ مَنْ سَأَلَ بِاللَّهِ

**باب: ۳۸- کوم کس چه دَ الله تعالی په نوم باندې سوال اوکړی، هغه ته ورکول پکار دی-**

[۱٦۷۲] (1) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنِ اسْتَعَاذَ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ، وَمَنْ سَأَلَ بِاللَّهِ فَأَعْطُوهُ، وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ، وَمَنْ صَنَعَ إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ، فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُونَهُ فَادْعُوا لَهُ حَتَّى تَرَوْا أَنَّكُمْ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کوم کس چه د الله په واسطې سره پناه اوغواړی نو هغه ته امان ورکړئ - او کوم کس چه دَ الله په نوم باندې سوال اوکړی نو هغه ته ورکړئ - او څوک چه ستاسو دعوت اوکړی نو دَ هغه دعوت قبول کړئ - او څوک چه له تاسو سره احسان اوکړی نو دَ هغې بدله ورکړئ - کهٔ چرې دَ بدلې ورکولو دَ پاره څهٔ څیز بیا نهٔ مومئ نو دَ هغه په حق کښې دعا کوئ تردې پورې چه تاسو ته یقین راشي چه دَ هغه (دَ احسان) بدله تاسو پوره کړه -"

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اسْتَعَاذَ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ وَمَنْ سَأَلَ بِاللَّهِ فَأَعْطُوهُ وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ

کوم سړې چه ستا نه پناه اوغواړی د الله تعالی په وسیلې سره، نو هغه ته پناه ورکړه، او کوم سړې چه ستا نه سوال اوکړی، د الله تعالی په وسیلې سره، نو تهٔ دهغه سوال پوره کړه، مطلب دادې، چه دا خو جدا خبره ده، چه سائل لره پکار دی، چه هغه د دنیوی مال او متاع دپاره د الله تعالی د عظیم الشان ذات په وسیلې سره د خلقو نه سوال نه کوی، لیکن ستا دپاره پکار دی، چه که یو سړې د الله تعالی د نوم په وسیلې سره ستا نه سوال اوکړی، نو تهٔ هغه ته ورکړه، بیا مخکښې فرمائي، او څوک چه تاته دعوت درکړی، مثلا د ولیمې، نو هغې لره قبول کړه، مطلب دادې، چه که څوک تا راؤبلی مدد دپاره، نو تهٔ دهغه مدد اوکړه، او څوک چه تاسره هر قسمه احسان اوکړی، نو تهٔ هغه ته دهغې بدله ورکړه، د احسان بدله

(1): سنن النسائي/الزكاة ۷۲ (۲۵٦۸)، (تحفة الأشراف: ۷۳۹۱)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/٦۸، ۹۵، ۹۹، ۱۲۷) (صحيح)

په احسان سره، او که د احسان بدله په احسان سره نه شي ورکولې، (په وجه ددې چه ستا طاقت نشته) نو دهغه دپاره د خیردعا کوه، تردې پورې چه ته پوهه شې، چه اوس دهغه بدله ادا شوه، او په دعا کښې جزاک الله وئیل هم کافی دی، لکه په یو حدیث کښې دی، من صنع الیه معروف فقال لفاعله جزاک الله فقد ابلغ فی الثناء، (رواه الترمذی والنسائی من حدیث اسامة بن زید مرفوعا)

## بَابُ الرَّجُلِ يَخْرُجُ مِنْ مَالِهِ

### باب: ۳۹ - کۀ څوک خپل تمام مال صدقه کول اوغواړي

یخرج د ثلاثی مجرد نه دې، یعنی کوم سړې چه د خپل مال صدقه اوکړی، او د خپل مال نه بهر راوځی، یعنی دهغې نه بالکل جدا او دست بردار شی، او دا هله کیدې شی، چه کله هغه ټول مال صدقه کړی، نو گویا په دې باب سره د مصنف عرض دتصدق بجمیع المال حکم بیانول دی.

[۱۶۷۳] (¹) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَاصِمِ بْنِ عُمَرَ بْنِ قَتَادَةَ، عَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ، قَالَ: كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ بِمِثْلِ بَيْضَةٍ مِنْ ذَهَبٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَصَبْتُ هَذِهِ مِنْ مَعْدِنٍ فَخُذْهَا فَهِيَ صَدَقَةٌ مَا أَمْلِكُ غَيْرَهَا، فَأَعْرَضَ عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ أَتَاهُ مِنْ قِبَلِ رُكْنِهِ الْأَيْمَنِ، فَقَالَ: مِثْلَ ذَلِكَ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ ثُمَّ أَتَاهُ مِنْ قِبَلِ رُكْنِهِ الْأَيْسَرِ، فَأَعْرَضَ عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ أَتَاهُ مِنْ خَلْفِهِ، فَأَخَذَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَذَفَهُ بِهَا فَلَوْ أَصَابَتْهُ لَأَوْجَعَتْهُ أَوْ لَعَقَرَتْهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَأْتِي أَحَدُكُمْ بِمَا يَمْلِكُ فَيَقُولُ هَذِهِ صَدَقَةٌ، ثُمَّ يَقْعُدُ يَسْتَكِفُّ النَّاسَ، خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى".

حضرت جابر بن عبد الله انصاری ﷺ بیان کوی چه مونږ د رسول الله ﷺ په خدمت کښې وو چه اچانک یو سړې راغې او ده هغه سره د انډې په مقدار باندې سرۀ زر وو - وې وئیل: اې د الله رسوله! دا ماته د یو کان نه ملاو شوې دی تاسو دې لره واخلئ، دا صدقه ده، ما سره ددې نه علاوه نور هیڅ نشته دې - نو رسول الله ﷺ د هغه نه مخ واړولو، نو هغه د حضور ﷺ ښئ جانب ته راغې او د اول په شان ئې اووې - حضور ﷺ د هغه نه مخ واړولو نو هغه کس د حضور ﷺ کس جانب ته راغې نو رسول الله ﷺ د هغه نه مخ واړولو - بیا هغه حضور ﷺ ته د شا د طرف نه راغې - نو رسول الله ﷺ د هغه نه هغه سرۀ زر واخستل او لره ئې کړل - کۀ چرې دا دۀ ته رسیدلې وه نو دۀ لره به ئې زخمی کړې وو - بیا رسول الله ﷺ اوفرمائیل: په تاسو کښې یو کس خپل ټول مال راوړی اووائی چه دا صدقه ده او بیا د خلقو نه سوال کوی - بهترینه صدقه هغه ده چه هغه د خپلوضروریاتو د پوره کیدو نه پس ورکړی -"

**تشریح: قوله:** عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ رَجُلٌ بِمِثْلِ بَيْضَةٍ مِنْ ذَهَبٍ .الخ

د حدیث مضمون خو بالکل واضح دې، د تشریح محتاج نه دې، ددې حدیث نه واضحه

¹: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۰۹۷)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الزكاة ۲۵ (۱۷۰۰) (ضعيف)

کیږی، چه تصدق بجمیع المال ممنوع دي، لیکن دامنع دهغه سړی په حق کښې ده، چه دهغه حال هغه وی، کوم چه په حدیث کښې آخر کښې ذکر دي. ثم قعد یستکف الناس، یعني ټول مال صدقه کړی، او په بله ورځ د خلقو مخکښې لاسونه خوارهٔ کړي ناست وی سوال کوی.

## تصدق بجمیع المال کښې د علماؤ اختلاف:

د تصدق بجمیع المال مسئله مختلف فیه ده، امام نووی په شرح مسلم کښې فرمائي، چه زمونږ یعنی د شافعیه مسلک دادي، چه تصدق بجمیع المال مستحب دي، لیکن ددي دپاره څه قیود او شرائط دی، (۱) هغه سړي قانع او صابر وی، (۲) دهغه په ذمه د چا دین نه وی (۳) هغه سړي عیال دار نه وی که عیال والا وی، نو بیا هغه عیال هم ددهٔ پشان قانع او صابر وی، او که دا شرطونه موجود نه وی، نو بیا مکروه دی، قاضي عیاض فرمائي، عند الجمهور و علماء الامصار تصدق بجمیع المال جائز دي، او یو قول دادي، چه جائز نه دي، ټولو لره به رد کولي شي، وهذا مروی عن عمر بن الخطاب ﷺ او یو قول دادي، چه که څوک خپل ټول مال صدقه کړی، نو دهغه دا تصرف به صرف په ثلث مال کښې نافذ وی، په باقي کښې به نافذ نه وی، وهو مذهب اهل الشام و قیل ان زاد علی النصف ردت الزیادة وهو محکی عن مکحول الشامی، په دي باندې نور کلام په مخکښې باب کښې راروان دي.

[۱۶۷۴] (¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، بِإِسْنَادِهِ، وَمَعْنَاهُ، زَادَ: "خُذْ عَنَّا مَالَكَ لَا حَاجَةَ لَنَا بِهِ".

ابن اسحاق په خپل مذکوره سند سره هم ددې روایت هم معنیٰ روایت کړي دي - مګر په دې کښې مزید دادی چه حضور ﷺ اوفرمائیل : زمونږ نه خپل مال یوسه زمونږ دې ته هیڅ ضرورت نشته دې -'' (نبی کریم ﷺ هغې لره قبول نهٔ کړو -)

[۱۶۷۵] (²) حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ، سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ، يَقُولُ: "دَخَلَ رَجُلٌ الْمَسْجِدَ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَطْرَحُوا ثِيَابًا فَطَرَحُوا، فَأَمَرَ لَهُ مِنْهَا بِثَوْبَيْنِ، ثُمَّ حَثَّ عَلَى الصَّدَقَةِ فَجَاءَ فَطَرَحَ أَحَدَ الثَّوْبَيْنِ فَصَاحَ بِهِ، وَقَالَ: خُذْ ثَوْبَكَ".

د حضرت ابو سعید خدری ﷺ نه روایت دې چې یو کس جمات کښې داخل شو نو نبی کریم ﷺ خلقو ته حکم اوکړو : کپړې ورکړئ (په صدقه کښې) او ددهٔ یعنی دَ راتلونکی کس) په باره کښې ئې اوفرمائیل چه دهٔ ته دوه کپړې ورکړئ - حضور ﷺ بیا دوباره دَ صدقې ترغیب ورکړو نو هغه کس هم خپله یوه کپړا راویشته - حضور ﷺ هغه لره اورټلو اووې فرمائیل : خپله کپړا اوچته کړه -''

خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى بهترینه صدقه هغه ده، چه دهغې نه پس په متصدق کښې غنی باقي وی، دهغې صورت دادي، چه سړي د خپل او د خپل أهل او عیال د ضرورت نه

---

(¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۰۹۷) (ضعيف)

(²): سنن النسائي/الجمعة ۲۶ (۱۴۰۹)، والزكاة ۵۵ (۲۵۳۷)، (تحفة الأشراف: ۴۲۷۴)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الصلاة ۲۵۰ (الجمعة ۱۵) (۵۱۱)، حم (۳/۲۵) (حسن)

علاوه صدقه کړي، ددې نه معلومه شوه، چه تصدق بجميع المال په مقابله کښې تصدق بما فضل عن الحاجة(کوم مال چه د ضرورت نه زياتې وي) افضل دې

**دوؤ احاديثو کښې تطبيق:**

دا دهغې خلقو په حق کښې دی، چه زيات صابر، شاکر او قانع نه وي، او کوم خلق، چه صفت صبر، قناعت، او کمال يقين او توکل سره متصف وي، لکه صديق اکبر رضي الله عنه، نو دهغوی په حق کښې تصدق بجميع المال افضل دې، لکه چه د راتلونکې باب په حديث کښې راروان دی، چه بهترينه صدقه جهد المقل ده، يعنی چه غريب سړې محنت او مزدوری سره مال ګټی، او بيا هغې لره صدقه کړی، دې سره د دواړو احاديثو په مينځ کښې چه کوم ظاهری تعارض په نظر راتلو، هغه هم ختم شو، چه دا اختلاف د اختلاف اشخاص و احوال په اعتبار سره دې، او دويمه توجيه دا کيدې شی، چه عن ظهر غنی، کښې د غنی نه عام مراد واخستلې شی، که غنی المال وی، چه د عامو خلقو په اعتبار سره وی، او که غنی النفس وی، چه د قانعينو او صابرينو سره په اعتبار سره دې، بيا به په دې کښې تصدق بجميع المال هم راشی، او علامه سندهی داسې ليکلې دی، چه د غنی نه مراد عامه ده، که غنا قلبی وی، يا د قلب او ظهر اضافت غناء طرف ته اضافت بيانيه دې، څرنګه چه سړې د ملا په زور سره تکيه لګوی، او کښينی، چه هغې سره هغه ته آرام او سکون ملاويږی، دغه شان د کومې صدقې نه پس چه غنی باقی وی، نو هغه غنی به دهغه دپاره په منزله د ملا او ظهر وی، ځکه چه د صدقې نه پس به دهغه دار و مدار په هغې غنی وی، په دې باندې نور بحث په آئنده باب کښې راروان دې.

عَنْ عِيَاضِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَعْدٍ سَمِعَ أَبَا سَعِيدٍ الْخُدْرِيَّ يَقُولُ...دَخَلَ رَجُلٌ الْمَسْجِدَ فَأَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَطْرَحُوا ثِيَابًا فَطَرَحُوا فَأَمَرَ لَهُ بِثَوْبَيْنِ الخ

دا دويمه قصه ده، اوله قصه کښې د بيضة من ذهب وه-د رجل نه سليک غطفانی مراد دې، دهغه قصه په ابواب الجمعه کښې باب اذا دخل الرجل والامام يخطب کښې تيره شوې ده. دا واقعه د نسائی شريف په روايت کښې په تفصيل سره مذکور ده، پس حافظ منذری وائی: واخرجه النسائی اتم منه ۱ هـ(عون)

د واقعې خلاصه داده. چه سليک غطفانی يو ځل چه کله نبی کريم ﷺ خطبه ورکوله، جمات کښې حاضرشو، په هغه وخت کښې دهغه حالت ډير زيات خراب وو، (يعنی غريب وو) په بدن ئې پوره جامه هم نه وه، ډير په کمزوری لباس کښې وو، نبی کريم ﷺ دهغه دا حالت ليدلو سره د خطبې په دوران کښې هغه ته د تحية المسجد ادا کولو حکم اوکړو، ټول خلق کوم چه په جمات کښې موجود وو، هغې سړی طرف ته متوجه شو، نبی کريم ﷺ خلقو ته د صدقې ترغيب ورکړو، دهغې فضائل ئې بيان کړل، خلقو په صدقه کښې ډيرې زياتې جامې پيش کړې، نبی کريم ﷺ د هغې نه دوه جامې هغې صاحب ته هم ورکړې، دې دپاره چه هغه خپل لباس درست کړی، د هغې نه پس چه کله دويمه جمعه راغله، او د جمعې په خطبه کښې د صدقې ذکر راغلو، نو هغې صاحب دا کار اوکړو، چه په تيره شوې جمعه چه

کومې دوه جامې نبی کریم ﷺ هغه ته ورکړې وې، په هغې دواړو کښې یوه جامه هغه هم په صدقه کښې پیش کړه، په دې باندې نبی کریم ﷺ غصه شو، او په اوچت آواز ئې اوفرمائیل: خذ ثوبک، اونیسه جامه خپله، دې حدیث باره کښې په منهل کښې لیکلي دی، واخرجه ایضا الحاکم و صححه او دا خبره مخکښې تیره شوې ده، چه دا روایت په نسائی کښې په زیات تفصیل سره بیان شوې دې.

[۱۶۷۶]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ خَيْرَ الصَّدَقَةِ مَا تَرَكَ غِنًى، أَوْ تُصُدِّقَ بِهِ عَنْ ظَهْرِ غِنًى، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ".

حضرت ابو هریره رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: بې شکه بهترینه صدقه هغه ده چه هغه غنا (د خلقو نه بې نیازی) باقی پریږدی یا داچه په دې کیفیت کښې صدقه اوکړې شی چه خپله محتاج او ضرورت مند نهٔ وی (بلکې غنی وی) او د هغه چا نه شروع اوکړئ چه د هغوی کفالت ستاسو په ذمه باندې وی۔"

**تشریح: قوله:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ خَيْرَ الصَّدَقَةِ مَا تَرَكَ غِنًى أَوْ تُصُدِّقَ بِهِ عَنْ ظَهْرِ غِنًى وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ

دحدیث دا متن په صحیح بخاری و مسلم کښې هم شته، د حدیث د اولې جملې تشریح خو مخکښې تیره شوې ده، د آخری جملې مطلب دادې، چه د صدقې ابتداء د خپل کور د خلقو نه کول پکار دی، د چا نفقه چه د سړی په ذمه ده،

عال یعول، د خپل اهل عیال نفقه برداشت کول.

## بَابٌ فِي الرُّخْصَةِ فِي ذَلِكَ

### باب: ۴۰- د ټول مال د صدقه کولو رخصت

د ذلک اشاره تیر شوې ترجمة الباب طرف ته ده، یعنی د تصدق بجمیع المال رخصت او اجازت، ددې باب په حدیث باندې کلام په تیر شوې باب کښې تیر شوې دی، جهد المقل، یعنی د قلیل المال مشقت، د غریب سړی کوشش، ددې نه معلومه شوه، چه د فقیر (غنی القلب) صدقه اگر چه په مقدار کښې کمه وی، هغه افضله ده، د غنی او مالدار د صدقې نه، اگر چه دهغه صدقه ډیر زیات مقدار کښې ولې نه وی، لکه چه د ابو هریره رضی الله عنه یو حدیث مرفوع دې، سبق درهم مائة الف درهم، (اخرجه النسائی وابن حبان والحاکم و صححه، کما فی المنهل) یعنی بعضې وخت کښې یو درهم د یو لاکھ درهم نه زیات ثواب لرې، صحابه کرامو عرض اوکړو، چه هغه څنګه؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه یو سړې چه هغه سره صرف دوه درهمه دی، هغه په هغې کښې یو درهم صدقه کړی، او دویم سړې هغه دې، چه هغه سره د دراهمو ډیرې لګیدلې وی، هغه په هغې کښې یو لاکھ صدقه کړی.

---

[1]: تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف :۱۲۳۵٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الزكاة ۱۸(۱٤۲٦)، والنفقات ۲(٥۳٥٥)، صحيح مسلم/الزكاة ۳٥(۱۰٤۲)، سنن الترمذي/الزكاة ۳۸(٦۸۰)، سنن النسائي/الزكاة ٥۳(۲٥۳٥)، مسند احمد(۲/۲۳۰، ۲٤۳، ۲۷۸، ۲۸۸، ۳۱۹، ۳٦۲، ۳۹٤، ٤۳٤)(صحيح)

[۱۶۷۷](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، وَيَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ الرَّمْلِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ جَعْدَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "جُهْدُ الْمُقِلِّ، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه منقول دی، هغوی پوښتنه اوکړه اې د الله رسوله ! کومه صدقه بهتره ده؟ حضور ﷺ اوفرمائیل : دَ کم مال والا چه محنت او مشقت اوکړی او ورکړی - او شروع دَ هغه چا نه کوئ دَ کومو چه کفالت ستاسو په ذمه باندې وی -

[۱۶۷۸](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ دُكَيْنٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، يَقُولُ: أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا أَنْ نَتَصَدَّقَ، فَوَافَقَ ذَلِكَ مَالًا عِنْدِي، فَقُلْتُ: الْيَوْمَ أَسْبِقُ أَبَا بَكْرٍ إِنْ سَبَقْتُهُ يَوْمًا فَجِئْتُ بِنِصْفِ مَالِي، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ؟" قُلْتُ: مِثْلَهُ، قَالَ: وَأَتَى أَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِكُلِّ مَا عِنْدَهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَا أَبْقَيْتَ لِأَهْلِكَ؟" قَالَ: أَبْقَيْتُ لَهُمُ اللَّهَ وَرَسُولَهُ، قُلْتُ: لَا أُسَابِقُكَ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا.

حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه بیان کوی چه یوه ورځ نبی کریم ﷺ مونږ ته د صدقې کولو حکم اوکړو - په دې موقع باندې ماسره مال هم وو - چنانچه ما ( په زړهٔ کښې ) اووې : کهٔ چرې زهٔ دَ حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نه سبقت کول اوغواړم نو نن سبقت کولې شم - چنانچه ما خپل نیم مال ( دَ حضور ﷺ په خدمت کښې ) راوړو - رسول الله ﷺ تپوس اوکړو تا دَ کور والو دَ پاره څهٔ باقی پریخودلی دی؟ " ما اووې هم دومره ( مې پریخې دې او راغلې یم ) او بیا حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه خپل تمام مال ( دَ حضرت په خدمت کښې ) راوړو - رسول الله ﷺ دَ هغوی نه پوښتنه اوکړه تا دَ کور والو دَ پاره څهٔ پریخې دی؟ هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل : ما دَ هغوی دَ پاره الله او دَ هغه رسول پریخودلې دې - بیا ما اووې : زهٔ په څهٔ شئ کښې ددوی نه همیشه نهٔ شم مخکښې کیدلې -

قوله: يَقُولُ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا أَنْ نَتَصَدَّقَ فَوَافَقَ ذَلِكَ مَالًا عِنْدِي فَقُلْتُ الْيَوْمَ أَسْبِقُ أَبَا بَكْرٍ إِنْ سَبَقْتُهُ يَوْمًا فَجِئْتُ بِنِصْفِ مَالِي

حضرت عمر رضی الله عنه فرمائي چه یوه ورځ نبی کریم ﷺ مونږ ته د صدقې کولو حکم اوکړو، اتفاقًا هغه ورځ ماسره ډیر زیات سامان موجود وو، ما په خپل زړهٔ کښې سوچ اوکړو، که زهٔ د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نه مخکښې کیدې شم، نو نن به مخکښې شم ( په صدقه کښې ) نو ما د خپل ټول مال نیمه راوړه، او د نبی کریم ﷺ خدمت کښې حاضر شوم، نبی کریم ﷺ تپوس اوکړو، چه د خپل کور والو دپاره دې څه پریخودل؟ ما عرض اوکړو، چه ددې برابر، او ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره چه څه وو، هغه ټول ئې حاضر کړل، نبی کریم ﷺ دهغه نه هم تپوس اوکړو، چه کور والو دپاره دې څه پریخودل، هغوی عرض اوکړو، چه هغوی دپاره

(۱): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف :۱۴۸۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۵۸) (صحيح)

(۲): سنن الترمذي/المناقب ۱۶ (۳۶۷۵)، ( تحفة الأشراف :۱۰۳۹۰)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/الزكاة ۲۶ (۱۷۰۱) (حسن)

ما الله تعالی او دهغه رسول ﷺ پريښودو، (يعنی د الله او د رسول رضامندی مې هغوی دپاره پريښودله)

قُلْتُ لَا أُسَابِقُكَ إِلَى شَيْءٍ أَبَدًا عمر رضي الله عنه فرمائي چه ما اوئيل (په خپل زړهٔ کښې يا ظاهر کښې) چه زهٔ ستا نه چرې هم په څه نيکۍ کښې مخکښې کيدې نشم

**تصدق بجميع المال:**

ددې واقعې نه د تصدق بجميع المال اولويت يا کم از کم جواز ثابتيږي، ليکن دهغه سړي دپاره چه په يقين او توکل کښې کمال لري.

صاحب منهل ليکلي دي، چه بهتره داده، چه دې ته د جواز درجه ورکړې شي، نه د استحباب، ځکه چه د نورو احاديثو نه د تصدق بالبعض افضل کيدل ثابتيږي، دغه شان د کعب ابن مالک رضي الله عنه قصه هم ددې مقتضی ده، او دا هغه قصه ده، چه امام ابوداؤد په کتاب الايمان والنذور کښې د باب من نذر ان يتصدق بماله، لاندې راوړلې ده، په هغې کښې دادي، چه هغه نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو، ان من توبتی ان اخرج من مالی کله الی الله والی رسوله صدقة قال لا، يعنی زما د توبې تکميل په دې کښې دې، چه زهٔ خپل ټول مال صدقه کړم، نبی کريم ﷺ ورته اوفرمائيل: چه نا، داسې مهٔ کوه، هغه بيا عرض اوکړو، چه صحيح ده، نيم مال به صدقه کړم، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: چه نا، هغه عرض اوکړو، چه صحيح ده، ثلث مال به صدقه کړم، نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: چه دا صحيح ده، يو ثلث صدقه کړه، اهـ ددې جمهور علماء قائل دي، او بعضې علماء لکه امام مالک رحمه الله او امام اوزاعی رحمه الله فرمائي لا يجوز التصدق الا بالثلث و يرد عليه الثلثان وهو رواية عن مكحول الشامی وعنه ايضا يرد عليه ما زاد علی النصف، (من المنهل) و حديث الباب اخرجه ايضا الترمذی والحاكم و صححاه.

**فائده** : د احاديث شريفه نه د صدقې ډير لوئې فضيلت او فائدې معلوميږي، لکه په ترمذی شريف کښې دي، عن انس بن مالک مرفوعا ان الصدقة لتطفئ غضب الرب و تدفع ميتة السوء و في حديث آخر بادروا بالصدقة فان البلاء لا يتخطاها، (په صدقه کښې تلوار کوئ، ځکه چه مصيبت او بلاګانې د صدقې نه مخکښې کيدې نشی) رواه ابو الحسن رزين بن معاوية العبدری (منهل)

## بَابٌ فِي فَضْلِ سَقْيِ الْمَاءِ

### په خلقو باندې د اوبو څښلو فضيلت

[۱۶۷۹] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدٍ، أَنَّ سَعْدًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: أَيُّ الصَّدَقَةِ أَعْجَبُ إِلَيْكَ؟ قَالَ: "الْمَاءُ".

حضرت سعد (بن عباده) رضي الله عنه د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې اوکړو کومه يوه صدقه دَ تاسو نه زياته پسنديده ده؟ حضور ﷺ اوفرمائيل: اوبهٔ -

[1]: سنن النسائي/الوصايا ٩ (٣٦٩٤)، سنن ابن ماجه/الأدب ٨ (٣٦٨٤)، (تحفة الأشراف: ٣٨٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٢٨٥، ٦/٧) (حسن)

[۱۶۸۰]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَرْعَرَةَ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، وَالْحَسَنِ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، نَحْوَهُ.

محمد بن عبد الرحيم په خپل سند سره د حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه نه، هغوی د نبی کریم ﷺ نه دَ مذکوره بالا حدیث هم مثل روایت کړې دې-

[۱۶۸۱]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أُمَّ سَعْدٍ مَاتَتْ، فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ: "الْمَاءُ"، قَالَ: فَحَفَرَ بِئْرًا، وَقَالَ: هَذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ.

د حضرت سعد بن عباده رضی الله عنه نه منقول دی، هغوی اوفرمائیل اې د الله رسوله! (زما مور) ام سعد وفات شوې ده نو کومه یوه صدقه افضل ده؟ (چه هغې لره زۀ دَ هغې دَ طرف نه اوکړم) حضور ﷺ اوفرمائیل: اوبۀ - چنانچه هغوی یو کوهی اوکنیستلو اووې فرمائیل چه دا (زما دَ مور) ام سعد دَ طرف نه دې-"

## بَابٌ فِي فَضْلِ سَقْيِ الْمَاءِ

**قوله:** عَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ أُمَّ سَعْدٍ مَاتَتْ فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ قَالَ الْمَاءُ قَالَ فَحَفَرَ بِئْرًا وَقَالَ هَذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ

حضرت سعد بن عبادة رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو، چه زما د مور انتقال شوې دې، که زۀ دهغې د ایصال ثواب دپاره صدقه کوم، نو څه څیز صدقه کړم، نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل: چه اوبۀ صدقه کړه، د اوبونه مراد عامې دی، که د انسانانو د څکلو دپاره وی، او که د څاروؤ یا پټی وغیره دپاره وی، یا د طهارت دپاره وی، نبی کریم ﷺ د اوبو صدقې لره افضل اوګرزوله، څکه چه اوبۀ د عام حاجت او ضرورت څیز دې، ددې نفع ډیره زیاته عامه ده، او خصوصا د عربو په ګرم ملک کښې، چه هلته کښې د اوبو قلت هم دې.

### مړی ته د کومو اعمالو ثواب رسی، او په دې کښې مذاهب ائمه:

ددې نه معلومه شوه، چه مړی ته د صدقې ثواب ملاویږی، ( ) امام نووی رحمه الله په شرح مسلم(ص۳۳۲) کښې لیکلې دی، ( ) چه په دې باندې د علماؤ اجماع ده، چه مړی ته د صدقې ثواب ملاویږی، دغه شان د مړی په حق کښې د دعا نافع کیدو باندې هم اجماع ده، او هم دغه شان په قضاء الدین عن المیت باندې هم اجماع ده، او حجة الاسلام عن المیت یعنی

[1]): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف : ۳۸۳٤)(حسن)

[2]): انظر حدیث رقم : ۱٦۷۸،( تحفة الأشراف : ۳۸۳٤)(حسن)

[3]) لیکن دا حدیث منقطع دې څکه چه سعید بن المسیب او حسن بصری دواړو سعد بن عباده نه دې موندلې، څکه چه د سعد وفات ۱۵ هـ یا ۱۴ هـ کښې دې اود ابن المسیب ولادة ۱۵ هـ کښې دې اود حسن بصری په ۲۱ هـ کښې، کذا فی البذل والمنهل، خوصاحب د منهل لیکلې دی چه په دې کښې هیڅ باک نشته څکه چه دحضرت سعید بن المسیب او خواجه حسن بصری په باره کښې دا دی چه: انهما لا یرویان الا عن ثقة»، اهـ

[4]) تحت حدیث عائشه ان رجلا أتي النبي فقال ان امي افتلتت نفسها ولم توص واظنها لو تكلمت تصدقت افلها اجر ان تصدقت عنها قال نعم.اهـ، په حدیث کښې خودا سوال شوې وو چه مړی ته ثواب رسیږی او که نه.

فرض حج هم معتبر دي، دغه شان حج التطوع علی الاصح عندنا البته په صوم عن المیت کښې اختلاف دې، په قراءت دقرآن کښې زمونږ مشهور مذهب دادې، چه ددې ثواب نه رسي، او د امام احمد رحمه الله په نزد رسي.

(قلت) د مذاهبو خلاصه داده، چه د عبادت مالیه ثواب بالاتفاق رسي، او په عبادت بدنیه کښې د دعا حکم هم دغه دې، باقي نور عبادت بدنیه مثلا مونځ تلاوت قران وغیره کښې اختلاف دې، د شافعیه په نزد نه رسي، د احنافو او حنابله په نزد رسي، د مالکیه مذهب لکه چه د الشرح الکبیر وغیره نه معلومیږي، دادې، چه دهغوی په نزد د تلاوت قرآن ثواب صرف د مړي په نیت سره لوستلو سره رسي، البته که تلاوت کونکي الله تعالی ته دا دعا کولو سره تلاوت اوکړي، چه یا الله په خپل فضل سره ددې ثواب فلانۍ مړي ته اورسوې، نو رسي، ګویا د دعا په واسطې سره رسي، ددې نه بغیر نه رسي، والله تعالی اعلم.

ماته یادیږي، چه غالبا په قصص الاولیاء کښې مې لوستلي وو، چه عزالدین بن عبد السلام چا دهغه د مرګ نه پس په خوب کښې اولیدو، نو هغه اوفرمائیل: چه مونږ خو داسې وایو، چه مړي ته دقراءة قرآن ثواب نه رسي، لیکن دلته کښې راتلو نه پس مونږ دهغې خلاف اوموندل.

[۱۶۸۲] ([1]) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ الْحُسَيْنِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ بْنِ إِشْكَابَ، حَدَّثَنَا أَبُو بَدْرٍ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الَّذِي كَانَ يَنْزِلُ فِي بَنِي دَالَانَ، عَنْ نُبَيْحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا عَلَى عُرْيٍ كَسَاهُ اللَّهُ مِنْ خُضْرِ الْجَنَّةِ، وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ أَطْعَمَ مُسْلِمًا عَلَى جُوعٍ أَطْعَمَهُ اللَّهُ مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ، وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ سَقَى مُسْلِمًا عَلَى ظَمَإٍ سَقَاهُ اللَّهُ مِنَ الرَّحِيقِ الْمَخْتُومِ".

حضرت ابو سعید خدری رضي الله عنه د نبي کریم ﷺ نه روایت کوي چه حضور ﷺ اوفرمائیل: کوم مسلمان چه چا مسلمان ته کپړا واغوندوله په داسې حال کښې چه هغه بربنډ وو نو الله تعالی به دهٔ ته دَ جنت شین پوشاک (جوړه) واغونده وي - او کوم مسلمان چه په چا مسلمان باندې خوراک اوکړو په داسې حال کښې چه هغه اوږې وو نو الله تعالیٰ به په هغه باندې دَ جنت د میوو نه خوراک اوکړي - او کوم مسلمان چه په چا مسلمان باندې څښاک اوکړو په داسې حال کښې چه هغه تږې وو نو الله تعالیٰ به په هغه باندې دَ جنت دَ خالص شرابو نه اوڅښي-"

## بَابٌ فِي الْمَنِيحَةِ

### باب: ٤٢- دَ پیو دَ پاره دَ څاروي دَ هدیه کولو فضیلت

منحه او منیحه دواړه لغتونه دي، دا د عطیه او هدیه یو خاص صورت دې، چه په هغې کښې تملیک المنفعت وي، نه تملیک الرقبة، ددې وجې نه د هر څیز منیحه دهغې سره مناسب وي، مثلا د ذهب او فضې منیحه داده، چه دراهم او دنانیر چاته بطور قرض ورکول، او منیحة اللبن دادې، چه پئې ورکونکې اوښه یا بزه د خو ورځو دپاره چاته عاریة

[1] ): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف :٤٣٨٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/صفة القيامة ١٨(٢٤٤٩)، مسند احمد(١٣/٣)(ضعیف)

ورکول، چه څو ورځې هغه ددې نه نفع واخلی، او بیا ئې مالک ته واپس کړی، او د اونو منیحه داده، چه میوه دارې اونې د څو ورځو دپاره چاته عاریة ورکړی، دې دپاره چه هغه ددې د میووه نه څو ورځې فائده اوچته کړی، او بعضې علماء وائی چه منیحه پئی ورکونکې اوښې یا بزې سره خاص دې.

[۱۶۸۳]() حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى، قَالَ: أَخْبَرَنَا إِسْرَائِيلُ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى وَهَذَا حَدِيثُ مُسَدَّدٍ وَهُوَ أَتَمُّ، عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ حَسَّانَ بْنِ عَطِيَّةَ، عَنْ أَبِي كَبْشَةَ السَّلُولِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْبَعُونَ خَصْلَةً: أَعْلَاهُنَّ مَنِيحَةُ الْعَنْزِ مَا يَعْمَلُ رَجُلٌ بِخَصْلَةٍ مِنْهَا رَجَاءَ ثَوَابِهَا وَتَصْدِيقَ مَوْعُودِهَا إِلَّا أَدْخَلَهُ اللَّهُ بِهَا الْجَنَّةَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: فِي حَدِيثِ مُسَدَّدٍ، قَالَ حَسَّانُ: فَعَدَدْنَا مَا دُونَ مَنِيحَةِ الْعَنْزِ مِنْ رَدِّ السَّلَامِ، وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ، وَإِمَاطَةِ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ، وَنَحْوِهِ فَمَا اسْتَطَعْنَا أَنْ نَبْلُغَ خَمْسَةَ عَشَرَ خَصْلَةً.

حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل ؛ په څلویښتو خصلتونو کښې دَ ټولو نه اعلیٰ خصلت دَ پیو چیلئ هدیه کول دی -" کوم بنده چه ددې دَ ثواب امیدوار او په دې باندې دَ کړو شوو وعدو دَ تصدیق په بناء باندې په یو باندې عمل اوکړی نو الله تعالیٰ به دهٔ لره ددې په سبب سره په جنت کښې داخل کړی - امام ابو داود رحمه الله فرمائی چه دَ مسدد په روایت کښې حسان بن عطیه وئیلي دی چه مونږ دَ پئ ورکولو چیلئ دَ هدیې نه علاوه ( دَ نورو اعمالو مثلاً) دَ سلام او دَ انټوشکی جواب ورکول او دَ لارې نه دَ اذیت والا څیز لرې کول، وغیره دَ شمارولو کوشش اوکړو مګر تر دَ پنځلسوخصلتونو پورې هم اونهٔ رسیدو (معلومه نهٔ ده چه هغه کوم کوم خصلتونه دی-)

**تشریح: قوله**: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعُونَ خَصْلَةً أَعْلَاهُنَّ مَنِيحَةُ الْعَنْزِ مَا يَعْمَلُ رَجُلٌ بِخَصْلَةٍ مِنْهَا رَجَاءَ ثَوَابِهَا وَتَصْدِيقَ مَوْعُودِهَا إِلَّا أَدْخَلَهُ اللَّهُ بِهَا الْجَنَّةَ قَالَ حَسَّانُ فَعَدَدْنَا مَا دُونَ مَنِيحَةِ الْعَنْزِ مِنْ رَدِّ السَّلَامِ وَتَشْمِيتِ الْعَاطِسِ الخ.

**شرح حدیث** :

عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه فرمائي چه یوځل نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل: چه څلویښت خصلتونه او نیک کارونه داسې دی، چه په هغې کښې د ټولو نه اعلی او اوچت خصلت منیحة العنز دې، د بزې منیحه ( یعنی ددې نه علاوه چه باقی کوم یو کم څلویښت خصلتونه او عملونه دی، هغه ټول ددې نه کمې درجې والا دی، چه هغې لره اختیارول ډیر زیات اسان دی) کوم سړې چه په دې خصلتونو کښې یو خصلت هم اختیار کړی، د ثواب په امید سره او دالله د رسول په وعدې باندې یقین کولو سره، نو هغه به جنت کښې داخلیږی.

په دې حدیث کښې نبی کریم صلی الله علیه وسلم دهغې څلویښتو خصلتونو (کوم چه جنت ته داخلونکې دی) تعین نه دې فرمائیلې، او هغه ئې شمار کړې نه دی، صرف دومره ئې فرمائیلې دی، چه دهغې ټولو نه یو منیحة العنز هم دې، او دا منیحة العنز په هغې ټولو کښې اعلی او د ټولو نه اوچت خصلت دې، باقی نور دهغې نه کم دی.

[1]: صحیح البخاري/الهبة ۳۵ (۲۶۳۱)، (تحفة الأشراف: ۸۹۶۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۶۰، ۱۹۴، ۱۹۶) (صحیح)

اوس دلته کښې فطری طور باندې دا سوال پیدا کیږی، چه هغه باقی اعمال کوم کوم دی، نو حسان بن عطیه د حدیث راوی فرمائي چه مونږ هغې باقی اعمالو لره د احادیثو په ذخیره کښې تلاش کړل، نو تلاش کولو سره پنځلس خصلتونه هم معلوم نه شو، کوم چه هغوی ته معلوم شوې وو، په هغې کښې څو لره هغوی بیان کړې دی، لکه رد السلام، تشمیت العاطس، او اماطة الاذی عن الطریق وغیره.

دا حدیث په صحیح بخاری کښې هم دې،[۱] د کتاب الهبة باب فضل المنیحة دلاندې، حافظ ابن حجر په فتح الباری کښې د ابن بطال مشهور شارح حدیث نه نقل کړې دی، چه هغوی اوفرمائیل: چه ښکاره خبره ده، چه نبی کریم ﷺ ته هغه ټول خصلتونه معلوم وو، لیکن دهغې باوجود هغوی د څه مصلحت د وجې نه هغه شمار نه کړل، او هغه مصلحت دا کیدې شی، چه هسې نه چرته د تعین نه پس خلق باقی نیک عملونه پریږدی، او صرف په دغې څلویښتو باندې اکتفاء اوکړی، او بیا مخکښې فرمائي، لیکن دا هم حقیقت دې، چه که حسان راوی ته د تلاش کولو باوجود دهغې خصلتونو پته اونه لګیده، نو ددې نه دا لازم نه راځی، چه بل چاته هم پته اونه لګی، نو مونږ هغې خصلتونو لره په مختلفو احادیثو کښې تلاش کړل، نو هغه تول خصلتونو الحمد لله ملاؤ شو، بلکه د څلویښتو نه هم زیات، او بیا ئې هغه ټول خصلتونه بیان کړل، حافظ فرمائي، چه د بخاری یو بل مشهور شارح ابن المنیر په ابن بطال باندې رد کړې دې، هغه وائی، چه ددې څه دلیل دې، چه د حضور ﷺ د هغې څلویښتو نه مراد دا خصلتونه دی، کوم چه ابن بطال تلاش کړې، او شمار کړې دی، او شمارل خو آسان کار دې، لیکن هغه قید چه دلته په حدیث کښې ذکر دې، چه هغه باقی ټول د منیحة العنز نه کم درجې والا دی، دا شرط په هغې کښې کوم ځائې موندلې کیږی، کوم چه تا تلاش کړې دی، بلکه صورت حال دادې، چه بعضې دهغې نه د منیحة العنز سره مساوی دی، او بعضې د هغې نه هم اوچت دی. هغوی دا هم فرمائیلې دی، چه هرکله د څه مصلحت د وجې نه خپله نبی کریم ﷺ هغه شمار نه کړل، حالانکه نبی کریم ﷺ ته یقینا هغه معلوم وو، نو بیا مونږ لره هم دهغې د تعین کوشش کول پکار نه دې، انتهی کلامه.

دغه شان علامه کرمانی هم د ابن بطال تردید کړې دې، او فرمائیلې دی، چه دهغه کلام د رجم بالغیب د قبیلې نه دې، حافظ ابن حجر هغې ټولو لره نقل کولو نه پس فرمائي، چه په دې خبره کښې خو زۀ د ابن بطال سره یم، چه دغې باقی خصلتونو لره په مختلفو احادیثو کښې تلاش کول پکار دی، تلاش کولو سره ملاویدې شی، لیکن په دې خبره کښې زۀ د ابن المنیر سره یم، چه واقعی ابن بطال چه کوم تلاش کړې دی، په هغې کښې بعضې د منیحة العنز نه کمې درجې والا نه دی. (من فتح الباری ج۵ ص۱۷۹)

---

[۱] صاحب د عون المعبود لیکلی دی چه دا حدیث امام بخاری روایت کړې دې خو تعجب دې په حافظ منذری چه هغوی دا حدیث (د ابوداؤد په شرح کښې) بخاری طرف ته نه دې منسوب کړې، او علامه مناوی فرمائي چه حاکم ته وهم اوشو هغوی دا حدیث په المستدرك کښې ذکرکړو، حالانکه مستدرک کښې خو هغه حدیث کیدل پکار دی کوم چه دامام بخاری د شرط کیدو باوجود په صحیح بخاری کښې موجود نه وی.

# باب أَجْرِ الْخَازِنِ

**باب: ٤٢- دَخزانچي اجر او ثواب-**

خازن يعني خزانچي، د مال محافظ او د مطبخ نگران وغيره.

[١٦٨٤] () حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ بُرَيْدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّ الْخَازِنَ الْأَمِينَ الَّذِي يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبَةً بِهِ نَفْسُهُ حَتَّى يَدْفَعَهُ إِلَى الَّذِي أُمِرَ لَهُ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقَيْنِ".

حضرت ابو مسی بیان کوی چې رسوالله ﷺ اوفرمائيل : بې شکه امانت دار خزانچي کوم چه دَ مالک دَ حکم مطابق دَ زړهٔ په خوشئ سره پوره پوره ورکوی - تردې پورې چه دَ چا متعلق وئيلې شوې دی هغه ته ئې ورکړی، هغه ددو صدقه ورکوونکو نه يو دې -( يو اصل مالک چا چه دَ ورکولو حکم کړې دې او دويم هغه کس چا چه ادا کړو -)

**تشريح: قوله:** عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْخَازِنَ الْأَمِينَ الَّذِي يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ كَامِلًا مُوَفَّرًا طَيِّبَةً بِهِ نَفْسُهُ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقَيْنِ

څوک چه د مال محافظ او نگران وی، او هغه امانتدار وی(دهغه حال داسې وی کوم چه مخکښې حديث کښې راروان دې) مالک چه هغه ته دځه صدقه کولو وئيلې وی، هغې لره په خوشالئ سره پوره پوره ورکوی، نو دهغه شمار هم په صدقه کونکو کښې کيږی.

ډير کرته داسې کيږی، چه اصل مالک خو صدقه کول غواړی، او هغه ددې حکم هم ورکوی، ليکن دا لاندې خلق يعنی خزانچي وغيره پوره ورکولو ته تيار نه وی، اخوا ديخوا، ټال مټول کوی، حالانکه دهغه خپله هيڅ نه خرچ کيږی، ليکن د حب مال او د سختې کنجوسئ په وجه داسې کوی، ليکن ټول داسې نه وی، بعضې په هغوی کښې سخيان او نيکان هم وی، په خوشالئ خوشالئ پوره صدقه ورکوی، د دغسې حضراتو نبی کريم ﷺ تعريف فرمائيلې دې.

**احد المتصدقين:** دې لره تثنيه او جمع دواړو طريقې سره لوستلې شوې دې، که جمع ده، نو د هغې ترجمه بره ليکلې شوې ده، او د تثنيه کيدو په صورت کښې مطلب دادې، چه يو متصدق خو اصل مالک دې، او دويم متصدق دا شخص مامور دې، دواړه د صدقې په ثواب کښې شريک دی، باقي دا ضروری نه ده، چه د دواړو ثواب برابر وی، بلکه د يو د بل نه زيات يا کم کيدې شی، بعضو صورتونو کښې به د مالک ثواب زيات وی، او په بعضو صورتونو کښې به د رسونکې ثواب زيات وی. ([2])و حديث الباب اخرجه احمد والبخاری و مسلم والنسائي ايضا(منهل)

[1]): صحيح البخاري/الزكاة ٢٥(١٤٣٨)، والإجارة ١(٢٢٦٠)، والوكالة ١٦(٢٣١٩)، صحيح مسلم/الزكاة ٢٥(١٠٢٣)، سنن النسائي/الزكاة ٦٧(٢٥٦١)،( تحفة الأشراف :٩٠٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/ ٣٩٤، ٤٠٤، ٤٠٩)(صحيح)

[2]) مثلا که ډير مال وی او چاته ورکولې شی هغه په دروازه ولاړ دې چه په دې کښې مامور ته دهغه پورې رسولو کښې هيڅ مشقت نه وی، ظاهره ده چه دغه وخت به مالک ته ثواب زيات وی او که مال ډير کم وی او څرنه ئې چه رسوی هغه ځائ ډير لرې دې نو په دې صورت کښې به د مامور ثواب زيات وی.(منهل).

## بَابُ الْمَرْأَةِ تَصَدَّقُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا[١]

### باب: ٤٤-دَ ښځې ثواب، کومه چه دَ خپل خاوند دَ کور نه صدقه ورکړي-

کور والا چه د کور د ضرورتونو دپاره د خوراک څکاک کوم سامان خپلې ښځې ته حواله کوي، نو آيا هغې لره په هغې کښې د صدقې ورکولو حق شته، او که نه؟ دغه شان د مطبخ چه کوم خادم او ناظم وي، هغوی په هغې خوراک کښې څه صدقه ورکولې شي او که نه؟ليکن د مطبخ دخادم او د خازن مسئله خو مستقل په مخکښنی باب کښې تيره شوې ده، په دې سلسله کښې اکثر شارحينو په شروع کښې د قاضي ابوبکر ابن العربي رحمه الله کلام نقل کړې دې، هغوی فرمائي، چه آيا ښځه د کور په څيزونو کښې صدقه کولې شي او که نه؟ په دې کښې اختلاف دې، بعضې علماء خو دا فرمائي، چه داسې معمولي څيز چه دهغې عام طور باندې خلق پرواه نه ساتی، او هغې طرف ته توجه نه کوي، داسې څيز لره ښځه صدقه کولې شی،(په دې کښې د هيچا د اجازت ضرورت نشته) او بعضې علماء فرمائي چه ددې مدار د زوج په اجازت باندې دې، دکوم قسم څيز چه دهغه د طرف نه اجازت وی، صراحة يا دلالة، يعنی د قرائنو نه معلوميږي، چه خاوند ته به په دې باندې هيڅ اعتراض نه وې، نو داسې څيز لره صدقه کولې شی، ددې نه علاوه نشی صدقه کولې، د امام بخاري رحمه الله ميلان دې طرف ته دې، لکه هغوی په ترجمة الباب کښې د اجازت قيد ذکر کړې دې، هغوی فرمائي، او دا هم احتمال دې، چه ددې مدار د خلقو په عادت باندې وی، د کوم ځائي د خلقو چه څرنګه عادت وی، هغې لره به اعتبار وی، او د عدم افساد قيد چه په حديث کښې مصرح دې، هغه خو بالاجماع معتبر دې، يعنی ښځه چه کوم څيز صدقه کړی، هغه په طريقې او اعتدال سره وی، په هغې کښې ناديده والې بالکل نه وی، مثلا په زيات مقدار کښې ورکړی، يا داسې سړی ته ورکړی، چه هغه ته ورکول مناسب نه دی، يا خاوند ته هغه سړې خوښ نه دې، وغيره وغيره. او د بعضو علماؤ رائې داده، چه په دې

---

[١] ) زوجه د خاوند د مال نه صدقه کولې شی يا نه په دې کښې روايات مختلف دی په بعض کښې د اجازت قيد مذکور دې او په بعض کښې نه او د بعض رواياتو نه معلوميږي چه بعض څيزونه ورکولې شی او بعض نه، تر څيزونه کوم چه په کيخودلو سره خرابيږي هغه ورکولې شي د دې نه علاوه نه. ونحو ذلك من الاختلافات. جواب دا دې چه په دې کښې اصل دا دې چه بغير د اجازت نه اخستل جائز نه دی خو د اجازت دوه قسمونه دی : ( دلالة ) دويم ( صراحة ) نو ( صراحة ) کيدل ضروری نه دی بلکه دلالة هم کافی دی اوس چه په کومو رواياتو کښې د اجازت ذکر نشته هغه محمول دی په روايات مقيده بالاذن باندې ځکه چه دا تقييد د اصول او ضوابط مطابق دې. اوس دا چه په بعض رواياتو کښې چه کوم مطلقا مذکور دې او چرته مقيدا نو د هغې وجه دا هم کيدې شی چه په دې کښې د خلقو عادتونه مختلف دی، په بعض ملکونو او ښهرونو کښې اجازت د مخکښې نه وی، لکه چه د عربو په نزد عام طور سره په هغوی کښې د سخاوت ماده وی او د ميلمستيا ئې د دې په وجه باندې ضرورت نه دې ګڼرلې او قيد ئې نه دې ذکر کړې. بله دا چه دا ټول بحث په دې کښې دې چه زنانه د خاوند د مال نه صدقه ورکړی او که هغه د خپل مال نه صدقه اوکړی نو په دې کښې د جمهورو په نزد ( اذن ) د زوج شرط نه دې البته د امام مالک په نزد په دې کښې هم د زوج اذن ضروری دې کما تذکر من کلام الشيخ قدس سره. ۱۳.

احاديثو کښې د خادمانو او ښځو خرچ کولو نه مراد د صاحب مال په اهل و عيال باندې خرچ کول دی، نورو خلقو يعنی فقيرانو او مسکينانو ته ورکول مراد نه دی، او بعضو علماؤ په دې کښې د ښځې او د خادم په حکم کښې فرق کړې دې، چه ښځې ته خو د خاوند په مال کښې د حدودو دننه د صدقې ورکولو حق د تصرف حاصل دې، او خادمانو دپاره بغير د اجازت نه ورکول جائز نه دی، انتهی کلام ابن العربی، زۀ وايم، چه دې اخرى قول لره امام بخاری رحمه الله اختيار کړې دې، ځکه چه هغه دې باره کښې دوه بابونه قائم کړې دی، د خادم متعلق باب ئې په امر سره مقيد کړې دې، او د زوجې متعلق باب ئې په غير مفسده سره مقيد کړې دې، په دې کښې هغه د امر زوج قيد نه دې ذکر کړې.

**يو اشکال او دهغې جواب :**

ليکن دلته کښې يو اشکال پيدا کيږی، هغه داچه دلته مخکښې د ابوهريره رضی الله عنه يو حديث مرفوع راروان دې، او هم دا حديث د بخاری رحمه الله په کتاب البيوع هم دې، په هغې کښې دادی، اذا انفقت المرءة من کسب زوجها عن غير امره فلها نصف اجره، ددې نه په ظاهر کښې دا معلوميږی، چه ښځه د خاوند د اجازت نه بغير د کور د څيزونو نه صدقه ورکولې شی، او په دې صورت کښې به ښځې ته نيم اجر ملاويږی، ددې مفهوم دا شو، چه که اجازت ورکړی، نو هغې ته به پوره ثواب ملاويږی، حالانکه دا خبره د نورو احاديثو نه خلاف ده، چه په هغې کښې دادی، لا ينقص بعضهم اجر بعض، ددې حل حافظ صاحب ډير زبردست ليکلې دې، هغه دادې، چه ددې نه مراد د ښځې د هغه مال نه خرچ کول دی، کوم چه خاوند دهغې په حصه کښې اچولې وی، بيا دغه ښځه خاص دهغې خپلې حصې نه خرچ کوی، لهذا په دې کښې د خاوند اجازت ته ضرورت نشته، حافظ صاحب بيامخکښې فرمائي، او يا دا تاويل به کولې شی، چه په دې حديث کښې د اذن صريح او تفصيلی نفی مراد ده، د اذن مطلق نفی مراد نه ده، ځکه چه د خاوند د اجازت نه بغير ورکولو کښې د ښځې دپاره د اجر په ځائې وزر دې، او د نيم اجر توجيه دا کولې شی، چه ددې مطلب دا نه دې، چه د ښځې اجر د خاوند د اجر نه نيم دې، بلکه مطلب دادې، چه د دواړو اجر برابر دې، يعنی که د دواړو اجر راجمع کړې شی، نو په هغې کښې به د هر يو حصه نيمه نيمه وی، چه کله يو څيز لره په دواؤ برابر حصو کښې تقسيمولې شی، نو وئيلې شی، نيم نيم واخله، او په منهل کښې ليکلې دی، چه علامه کرمانی دې حديث لره ددې په ظاهر باندې ساتلو سره فرمائيلې دی، چه لاينقص بعضهم اجر بعض خو په هغه صورت کښې دې، چه کله ښځه د خاوند په اجازت سره صدقه کوی، او د عدم اذن په صورت کښې ثواب نيم ملاويږی.

[۱۶۸۵] (۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُوعَوَانَةَ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ كَانَ لَهَا أَجْرُ مَا أَنْفَقَتْ

(۱): صحيح البخاري/الزكاة ۱۷(۱٤۲۵)، ۲۵(۱٤۳۷)، ۲٦(۱٤٤۰)، والبيوع ۱۲(۲۰٦۵)، صحيح مسلم/الزكاة ۲۵(۱۰۲٤)، سنن الترمذي/الزكاة ۳٤(٦۷۲)، سنن النسائي/الزكاة ۵۷(۲۵٤۰)، سنن ابن ماجه/التجارات ٦۵(۲۲۹٤)، (تحفة الأشراف: ۱۷٦۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/٤٤، ۹۹، ۲۷۸)(صحيح)

وَلِزَوْجِهَا أَجْرُ مَا اكْتَسَبَ وَلِخَازِنِهِ مِثْلُ ذَلِكَ لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ أَجْرَ بَعْضٍ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، هغه وائي چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: "ښځه چه کله دَ خپل خاوند دَ کور نه خرچ اوکړي (صدقه ورکړي) په داسې حال کښې چه دا اسراف کوونکې نۀ وي نو ددې دَ پاره دَ صدقې کولو او دَ خاوند دَ پاره دَ ګټلو ثواب دې او ددې دَخزانچې دَ پاره هم دومره قدرې دې، اوپه دوي کښې هيڅ يو کس هم دَبل ثواب نۀ کموي.

[١٦٨٦]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَّارٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ حَرْبٍ، عَنْ يُونُسَ بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ زِيَادِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ حَيَّةَ، عَنْ سَعْدٍ، قَالَ: لَمَّا بَايَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّسَاءَ، قَامَتِ امْرَأَةٌ جَلِيلَةٌ كَأَنَّهَا مِنْ نِسَاءِ مُضَرَ، فَقَالَتْ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ، إِنَّا كَلٌّ عَلَى آبَائِنَا وَأَبْنَائِنَا، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَأُرَى فِيهِ وَأَزْوَاجِنَا فَمَا يَحِلُّ لَنَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ، فَقَالَ: "الرَّطْبُ تَأْكُلْنَهُ وَتُهْدِينَهُ"، قَالَ أَبُو دَاوُد: الرَّطْبُ الْخُبْزُ وَالْبَقْلُ وَالرُّطَبُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ، عَنْ يُونُسَ.

د حضرت سعد (بن ابی وقاص رضي الله عنه) نه روايت دې چه کله رسول الله ﷺ دَ ښځو نه بيعت واخستو نو يو باوقار (يا دَ اوږد قد والا) ښځه اودريده، ګويا چه هغه دَ قبيلهٔ مُضر نه وه، هغې اووې: اې دَ الله رسوله ! اې دَ الله نبي ! مونږ مور او پلار خوپه خپل اولاد ... امام ابوداود رحمه الله فرمائي زما خيال دې چه هغې دَ خاوندانو ذکر هم اوکړو ...... باندې بوج يو نو زمونږ دَ پاره دَ هغوی دَ مالونو نه څۀ حلال دی؟ حضور ﷺ اوفرمائيل: تَر ځيزونه خورئ او هديه هم ورکوئ امام ابوداود رحمه الله فرمائي [رطب] " تر ځيز " نه مراد تړکاري او تازه کجورې دی امام ابوداود رحمه الله فرمائي: ثوری هم دَ يونس نه داسې روايت کړې دې

**تشريح: قوله**: عَنْ سَعْدٍ قَالَ لَمَّا بَايَعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النِّسَاءُ قَامَتْ امْرَأَةٌ جَلِيلَةٌ كَأَنَّهَا مِنْ نِسَاءِ مُضَرَ فَقَالَتْ يَا نَبِيَّ اللَّهِ إِنَّا كَلٌّ(٢) عَلَى آبَائِنَا وَأَبْنَائِنَا

ددې حديث راوی سعد دې، يعنی سعد بن ابی وقاص، كما فی البذل، د حضرت شيخ په حاشيه دبذل کښې دی، چه دعلامه عينی رائې هم داده، ليکن دا صحيح نه ده،وهم دې، بلکه دا سعد انصاری دې، يو بل سړې كما بسطه الحافظ فی التهذيب فی ترجمته. اهـ

**مضمون حديث**:

مضمون د حديث دادې، چه حضرت سعد رضي الله عنه فرمائي، کله چه نبی کريم ﷺ ښځو ته بيعت اوفرمائيلو، يعنی په هغې مضمون باندې کوم چه په دې آيت کريمه کښې دې، على ان لا يشركن بالله شيئا و لا يسرقن ولا يزنين الاية، نو يوه غټه غونډې زنانه(د بدن په اعتبار سره) اودريده، راوی وائي چه داسې معلوميده، چه هغه د مضر قبيلې د ښځو نه ده، اودريدو نه پس هغې نبی کريم ﷺ ته عرض اوکړو، چه يا رسول الله! مونږ يعنی زنانه په خپلو سړو باندې(ددې نه پلار، خوې او خاوند مراد دې) بوج يو، يعنی زمونږ ټوله خرچه هغوی برداشت کوی، مونږ خو ګټلې نشو، او نه مونږ سره څه شته، چه صدقه ئې کړو، نو آيا مونږ په هغې ځيزونو کښې څه صدقه کولې شو، په دې باندې نبی کريم ﷺ اوفرمائيل: الرطب

(١): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٣٨٥٣)(ضعيف)

(٢) كل دا لفظ په قرآن شريف کښې هم راغلې دې، وضرب الله مثلا عبدا مملوكا لايقدر على شئ وهو كل على مولاه، الآية.

تاکلنه و تهدینه، تر یعني لواندۀ څیزونه تاسو په خپله هم خوړلې شئ، او هدیه او صدقه کښې هم ورکولې شئ، دا لفظ رطب د راء فتحې او طاء په سکون سره دې، یعني هر تر او لوند څیز، چه هغې لره د خرابیدو د وجې نه ذخیره ساتلې نشي، لکه سبزې، میوې، روټۍ، او ترکاري وغیره، او رطب د راء په ضمې او د طا په فتحې سره لوندو کهجورو سره خاص دې. ددې نه معلومه شوه، چه کوم څیزونه جمع کولې شي، مثلا غله، دراهم، یا دنانیر وغیره، هغې لره بغیر د اجازت نه صدقه کولې نشي، د خوراک څکاک څیزونه عام طور باندې صدقه کولې شي، عام طور باندې د داسې څیزونو د ورکولو او اخستلو اجازت وی، او که چرته ددې نه زیات وسعت وی، نو د هغې به هم ګنجائش وی. والله تعالی اعلم.

[۱۶۸۷](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ هَمَّامِ بْنِ مُنَبِّهٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ أَمْرِهِ فَلَهَا نِصْفُ أَجْرِهِ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: کله چه ښځه د خپل خاوند دَ کمائئ نه دَ هغه دَ وینا نه بغیر صدقه ورکړی نو ددې دَ پاره دَ خاوند په نیمه اجر او ثواب دې۔"

[۱۶۸۸](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَوَّارٍ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ فِي الْمَرْأَةِ تَصَدَّقُ مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا، قَالَ: "لَا، إِلَّا مِنْ قُوتِهَا وَالْأَجْرُ بَيْنَهُمَا، وَلَا يَحِلُّ لَهَا أَنْ تَصَدَّقَ مِنْ مَالِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا يُضَعِّفُ حَدِيثَ هَمَّامٍ.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه(تپوس اوکړې شو) ایا ښځه دې د خاوند د کور نه صدقه ورکوی؟(یا دې نۀ ورکوی) هغوی رضی الله عنه اوفرمائیل: نۀ - دَ خپلې حصې دَخرج نه ورکولې شي -،(کومه چه خاوند دې ته ورکړې وی)،او اجر به دَ دواړو په مابین کښې وی - او ددې دَپاره جائز نۀ دی چه دَخاوند دَ کور نه دَ هغه دَ اجازت نه بغیر صدقه ورکړی -" امام ابوداود رحمه الله فرمائي: چه دَ حضرت ابوهریره رضی الله عنه دا فتوی ګویا چه دَ همّام دَ سابقه حدیث تضعیف دې۔

## بَابٌ فِي صِلَةِ الرَّحِمِ

### باب: ۴۵ - دَرشته دارو سره میل جول او حسنِ سلوک

### د صلة الرحم لفظي تحقیق:

صله په اصل کښې وَصلٌ وو، واؤ لره په شروع کښې حذف کړې شو، او په آخره کښې دهغې په عوض کښې هاء راوړلې شوه، وصل یصل وصلا و صلة ددې معنی ده، احسان الی الاقارب، د خپلو رشته دارو سره ښه سلوک او دهغوی سره د احسان معامله کول، ګویا سړې د خپلو رشته دارو سره احسان کولو سره هغه رشته جوړوی او قائموی، رحم(بفتح الراء د

(1): صحیح البخاري/البیوع ۱۲(۲۰۶۶)، والنکاح ۸۶(۵۱۹۲)، والنفقات ۵(۵۳۶۰)، صحیح مسلم/الزکاة ۲۶(۱۰۲۶)، تحفة الأشراف:۱۴۶۹۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۲۴۵، ۳۱۶)(صحیح)

(2): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف:۱۴۱۸۵)(صحیح موقوف)

کسر الهاء) بچه دانئ ته وئیلې شی، بیا وروستو ددې استعمال په قرابت او رشته دارئ کښې اوشو، د اتحاد رحم د وجې نه، ځکه چه ټول رشته دار د یو رحم نه وتلې دی. او وئیلې شوې دی، چه لفظ رحم مشتق دې، د رحمت نه، ځکه چه اقرباء په خپلو کښې په یو بل باندې رحیم او مهربان وی، (منهل) په حاشیه د بذل کښې حضرت شیخ رحمه الله د علامه شامی (ص ۲۹۱ ج ۹) نه نقل کړې دی، چه صله رحمی شرعا واجب ده. ا هـ

## صله رحمی د کومو رشته دارو سره واجب ده:

بیا د علماؤ په دې حد رحم کښې اختلاف دې، د کوم صله چه واجب ده، یعنی هغه کوم اقرباء دی، چه هغوی سره صله رحمی واجب ده، ددې تفصیل او اختلاف صاحب د منهل لیکلې دې[1]، علامه قرطبی فرمائي: هغه رحم یعنی رشته چه دهغې د جوړولو حکم دې، دهغې دوه قسمونه دی، عام او خاص، د اول مصداق قرابة الدین یعنی دینی رشته ده، او دهغې صله داده، چه د عامو مسلمانانو سره د خیر خواهئ او محبت او دهغوی د واجب او مستحب حقوقو ادا کول او هغوی سره د انصاف معامله اوکړې شی، او رحم خاص( رشته خاص، د قرابة النسب نوم دې، ددې صله رحم د عام صلې نه زیاته ده، په دې کښې احسان او اعطاء او دهغوی د حالاتو خبر اخستل، دهغوی د کوتاهئ او خطایئ نه بې پروائی کول وغیره شامل دی، او په صله رحمئ کښې دا څیزونه هم داخل دی، سلام و کلام او ترک خصام(منهل)

[۱۶۸۹] ([2]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ هُوَ ابْنُ سَلَمَةَ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: لَمَّا نَزَلَتْ لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ سورة آل عمران آية ۹۲، قَالَ أَبُو طَلْحَةَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَى رَبَّنَا يَسْأَلُنَا مِنْ أَمْوَالِنَا

---

[1] ) هغه لیکی چه بعض علماء کرام فرمائی چه دا هغه خپلوان دی چه د هغوی سره نکاح حرام ده، یعنی په کومو خپلوانو کښې چه داسې رشته داری وی چه که په هغوی کښې یو ذکر او بل انثی فرض کړې شی نو نکاح به حرام وی، د دې قول په وجه باندې به د رحم نه رشتې خارج شی ﴿ اولاد الاعمام والعمات والاخوال والخالات ﴾ ځکه چه په دې ټولو رشتو کښې نکاح جائز ده، دا حضرات په دلیل کښې وائی چه په کومو رشتو کښې صله رحمی واجب وه لکه ترور، وریره، خاله، خورزه، د دې دواړو د جمع فی النکاح ته شریعت ممنوع وئیلې دی ځکه چه ﴿ جمع في النكاح مفضي الي التقاطع ﴾ سبب جوړیږی، دغه شان خپله نکاح د دې سبب وی پس چه کله نکاح ممنوع نه وی نو معلومه شوه چه هلته صله رحمی هم واجب نه ده ګویا وجوب صله رحمی او جواز نکاح د دې دواړو په شریعت نه دې جمع کړې شوې. ۲: دویم قول په دې کښې دې چه د رحم نه مراد ﴿ کل قریب وارث لحدیث ابي هریره ان رجلا قال یا رسول الله من احق الناس بحق الصحبة؟ قال امك ثم امك ثم ابوك ثم ادناك ثم ادناك. (اخرجه مسلم) ۳: دریم قول دا دې چه د دې نه مراد ﴿ کل قریب ولو کان غیر وارث لحدیث عبدالله بن عمر مرفوعا ان ابر البر ان یحصل الرجل ابل ود ابیه بعد ان یولي. (اخرجه مسلم) د دې لیکلو نه پس په خپلو فقهی کتابونو کښې چه څه ملاؤ شی هغه لاندې لیکلې شی: وفي الدر المختار وصلة الرحم واجبة ولو كانت بسلام وتحية وهدية ومعاونة ومجالسة ومكالمة وتطلف واحسان ويزورهم غبا ليزيد حبا بل يزور اقربائه كل جمعة او شهر ولا يرد حاجتهم لانه من القطيعة في الحديث ان الله يصل من وصل رحمه ويقطع من قطعها وفي الحديث صلة الرحم تزيد في العمر. اهـ كتب عليه ابن عابدين نقل القرطبي في تفسيره اتفاق الامة علي وجوب صلتها وحرمة قطعها للادلة القطعية من الكتاب.

[2] ): سنن الترمذي/تفسير القرآن(آل عمران) ٦(٢٩٢٧)،( تحفة الأشراف :٣١٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوكالة ١٥(٢٣١٨)، والوصايا ١٠(٢٧٥٢)، وتفسير القرآن ٥(٤٥٥٤)، والأشربة ١٣(٥٦١١)، صحيح مسلم/الزكاة ١٣(٩٩٨)، موطا امام مالك/الجامع ٨٣، مسند احمد(١١٥/٣، ٢٨٥)، سنن الدارمي/الزكاة ٢٣(١٦٩٥)(صحيح)

فَإِنِّي أُشْهِدُكَ أَنِّي قَدْ جَعَلْتُ أَرْضِي بِأَرِيحَاءَ لَهُ، فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلْهَا فِي قَرَابَتِكَ"، فَقَسَمَهَا بَيْنَ حَسَّانَ بْنِ ثَابِتٍ وَأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. قَالَ أَبُو دَاوُد: بَلَغَنِي عَنِ الْأَنْصَارِيِّ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ أَبُو طَلْحَةَ زَيْدُ بْنُ سَهْلِ بْنِ الْأَسْوَدِ بْنِ حَرَامِ بْنِ عَمْرِو بْنِ زَيْدِ مَنَاةَ بْنِ عَدِيِّ بْنِ عَمْرِو بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّجَّارِ وَحَسَّانُ بْنُ ثَابِتِ بْنِ الْمُنْذِرِ بْنِ حَرَامٍ، يَجْتَمِعَانِ إِلَى حَرَامٍ وَهُوَ الْأَبُ الثَّالِثُ، وَأُبَيُّ بْنُ كَعْبِ بْنِ قَيْسِ بْنِ عَتِيكِ بْنِ زَيْدِ بْنِ مُعَاوِيَةَ بْنِ عَمْرِو بْنِ مَالِكِ بْنِ النَّجَّارِ، فَعَمْرٌو يَجْمَعُ حَسَّانَ وَأَبَا طَلْحَةَ وَأُبَيًّا. قَالَ الْأَنْصَارِيُّ: بَيْنَ أُبَيٍّ وَأَبِي طَلْحَةَ سِتَّةُ آبَاءٍ.

حضرت انس رضي الله عنه بیان کوی چه کله دا آیت کریمه {لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ} [آل عمران :۹۲] نازل شو نو حضرت ابو طلحه رضي الله عنه اووې اې دَ الله رسوله ! مونږ پوهیږو چه زمونږ رب زمونږ نه مال غواړی نو تاسو ګواه اوسئ چه ما خپله دَ اریحاء والا زمکه دَ الله دَ پاره ورکړه، نو رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : دې لره په خپلو قرابت دارو کښې تقسیم کړه -" چنانچه دې لره هغه په حسان بن ثابت او ابی بن کعب کښې تقسیم کړه -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه ما ته دَ انصاری محمد بن عبد الله نه دا خبره رارسیدلې ده چه د حضرت ابو طلحه نسب دادې : ابوطلحه : زید بن سهل بن اسود بن حرام بن عمرو بن زید مناة بن عدی بن عمرو بن مالک بن نجار - او دَ حضرت حسان نسب په دې ډول دې : حسان بن ثابت بن منذر بن حرام، ابوطلحه او حسان دواړه په دریم پلار کښې جمع کیږی - او دَ ابی بن کعب نسب دادې : ابی بن کعب بن قیس بن عتیک بن زید بن معاویه بن عمرو بن مالک بن نجار - عمرو (بن مالک) دې دواړو لره جمع کوی - یعنی حسان ابو طلحه او ابی لره - انصاری وئیلې دی چه په مابین دَ ابی او دَ ابو طلحه کښې شپږ آباء (پلاران) دی -

**تشریح: قوله:** عَنْ أَنَسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ { لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ } قَالَ أَبُو طَلْحَةَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَرَى رَبَّنَا يَسْأَلُنَا مِنْ أَمْوَالِنَا فَإِنِّي أُشْهِدُكَ أَنِّي قَدْ جَعَلْتُ أَرْضِي بِأَرِيحَاءَ لَهُ

**شرح حدیث :**

د مذکوره آیت شریف په نازلیدو باندې د رسول الله صلی الله علیه وسلم صحابی حضرت ابوطلحه انصاری رضي الله عنه چه د حضرت انس رضي الله عنه ناسکه پلار دې، هغوی حضور صلی الله علیه وسلم ته عرض اوکړو، چه په خپل مال کښې ماته محبوب هغه باغ دې، د کوم نوم چه "بئر رحاء" دې، زهٔ تاسو لره ګواه جوړوم، په دې باندې چه ما هغه د الله تعالی دپاره وقف کړو،

**(د بئر تلفظ)**

ددغې باغ څه نوم دې، دهغې صحیح تلفظ څه دې، په دې کښې روایات مختلف دی، د صحیحینو په روایت کښې خو بیر رحاء راغلې دې، په باء باندې فتح او کسره دواړه دی، او په راء باندې فتحه او ضمه دواړه دی، والا فصح بیرحاء،[۱] (بالقصر بدون الهمزة) لیکن د سنن ابوداؤد په دې روایت کښې خلاف مشهور باریحاء راغلې دې، بموحدة مفتوحة ثم الف وهي بدل او عطف بیان لما قبله، او بعضو دې لره په بلې طریقې سره لوستلې دې،

[۱] وفي بعض الروايات بئرحاء باضافة بئر الي حاء والبساطين في المدينة المنورة تسمي بأسماء الآبار والمعني بستان فيها هذا البئر.

باریحاء،(بالیاء الجارة) فقیل وهم فان اریحاء ارض شام و قیل محتمل فسمی بستان ابی طلحة باسمها، او د مسلم په یو روایت کښې بریحاء راغلي دي.(منهل وبذل) دا حدیث د صحیحینو په روایت کښې لږ په تفصیل سره دي، په هغې کښې داسې دی، چه په انصار مدینه کښې د ټولو نه زیاتو کهجورو والا باغونه د ابوطلحه وو، په هغې باغونو کښې د ټولو نه زیات محبوب بیر حاء وو، چه د مسجد نبوی ﷺ مخښې ته وو، هغې ته به اکثر نبی کریم ﷺ تشریف اوړو، بهرحال ابوطلحه نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو، چه زهٔ دا باغ الله تعالی دپاره ورکوم، دا صدقه مطلقه وه، چه ددې د مصرف تعین نه وو کړې شوې، په ظاهر کښې د مشورې په طور باندې هغه حضور ﷺ ته ددې ذکر اوکړو، نبی کریم ﷺ هغه ته مشوره ورکړه، اجعلها فی قرابتک، چه ددې صدقې مخ خپلو رشته دارو طرف ته واړوه، نو هغه دغه باغ حسان بن ثابت رضی الله عنه او ابی بن کعب رضی الله عنه ته هبه کړو، نبی کریم ﷺ ابوطلحه رضی الله عنه ته دا مشوره ورکړه، چه دغې باغ لره په ځائې د مطلق صدقې، صدقه اقربین مقرر کړه، دې دپاره چه د صدقې سره د صله رحمئ ثواب درته هم حاصل شي.

**یو فقهی بحث:**

په فتح الباری کښې دی، چه ظاهری خبره داده، چه ابوطلحه رضی الله عنه په هغه ورځ هغه دواړه د باغ مالکان جوړ کړې وو، او دا ورکول بطور وقف نه وو،[1] ځکه چه د صحیح بخاری په روایت کښې دی، چه وروستو بیا حضرت حسان رضی الله عنه دهغې باغ نه خپله حصه په حضرت امیر معاویه رضی الله عنه باندې په یو لاکهـ درهم خرڅه کړه، نو که دا وقف وو، نو دې لره خرڅول به جائز نه وو.

د حدیث شارحینو ددې حدیث دلاندې ډیر فوائد لیکلې دی، یو ئې دا هم لیکلې دې، چه ددې نه معلومه شوه، چه که یو سړې غنی ته دهغه د سوال کولو نه بغیر صدقه ورکړی، نو هغې لره قبلول جائز دی، ځکه چه مشهوره دا ده، چه ابی ابن کعب د میاسیر(مالدار) صحابه کرامو نه وو.

**(د دریو واړو صحابه کرامو خپل مینځ کښې رشته داری)**

دلته کښې فطری طور باندې دا سوال پیدا کیږی، چه د حسان بن ثابت رضی الله عنه او د ابی بن کعب رضی الله عنه د ابوطلحه رضی الله عنه سره څه رشته داری وه، ددې جواب مصنف رحمه الله خپله ارشاد فرمائي او د ابوطحه، حسان، او ابی ابن کعب رضی الله عنهم شجره نسب بیانوی.

قَالَ أَبُو دَاوُد بَلَغَنِي عَنْ الْأَنْصَارِيِّ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ

(۱) ابوطلحه: زید بن سهل بن الاسود بن حرام بن عمرو بن زید مناة بن عدی بن عمرو بن مالک بن النجار.

(۲) حسان بن ثابت بن المنذر بن حرام.

---

[1]) خو مولانا حفظ الرحمن صاحب په خپل تصنیف د اسلام اقتصادی نظام کښې د التاج الجامع للاصول د حاشیه نه نقل کړی دی چه دا وقف وو اوپه حدیث کښې چه د قسمة لفظ راغلي دې ددې نه مراد تقسیم د منافع دې اودا په منزله د وقف علی الاولاد وو.(حاشیه بذل).

(۳) ابی بن کعب بن قیس بن عتیک بن زید بن معاویه بن عمرو بن مالک بن النجار.
ددې نسبونو نه معلومه شوه، چه حضرت حسان د ابوطلحه سره په دریم پشت کښې یعنی حرام کښې یو ځائې کیږي، او ابی بن کعب د ابوطلحه سره په عمرو بن مالک کښې یو ځائې کیږي، عمرو بن مالک د ابوطلحه په اعتبار سره خو اووم پشت دې، او د ابی بن کعب په اعتبار سره شپږم پشت دې.

قَالَ الْأَنْصَارِيُّ بَيْنَ أُبَيٍّ وَأَبِي طَلْحَةَ سِتَّةُ آبَاءٍ یعنی د ابوطلحه او د ابی بن کعب په مینځ کښې د شپږو پشتونو فصل دې، او په اووم پشت کښې دواړه ملاویږي، لیکن مونږ مخکښې وئیلې دی، چه عمرو بن مالک ته اووم پشت وئیلې د ابوطلحه په اعتبار سره دی، او د ابی بن کعب په اعتبار سره هغه شپږم پشت دې، لهذا د انصاری په کلام کښې فی الجمله تسامح دې.

[۱۶۹۰](1) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ عَبْدَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ مَيْمُونَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: كَانَتْ لِي جَارِيَةٌ فَأَعْتَقْتُهَا فَدَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ، فَقَالَ: "آجَرَكِ اللَّهُ، أَمَا إِنَّكِ لَوْ كُنْتِ أَعْطَيْتِهَا أَخْوَالَكِ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِكِ".

د ام المؤمنین حضرت میمونه ﷝ نه روایت دې هغه بیان کوی چه زما یوه وینځه وه، ما هغې لره ازاده کړه، بیا رسول الله ﷺ ماته تشریف راوړو، ما هغوی ته اووئیل نو حضور ﷺ اوفرمائیل: الله تعالیٰ دې تاته جزاء درکړی، که چرې تادې لره خپل ماما ته ورکړې وې نو ستا دپاره به زیات اجر او ثواب وو.

[۱۶۹۱](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَجْلَانَ، عَنْ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّدَقَةِ، فَقَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، عِنْدِي دِينَارٌ، فَقَالَ: "تَصَدَّقْ بِهِ عَلَى نَفْسِكَ"، قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "تَصَدَّقْ بِهِ عَلَى وَلَدِكَ"، قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "تَصَدَّقْ بِهِ عَلَى زَوْجَتِكَ، أَوْ قَالَ: زَوْجِكَ"، قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "تَصَدَّقْ بِهِ عَلَى خَادِمِكَ"، قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "أَنْتَ أَبْصَرُ".

حضرت ابوهریره ﷛ بیان کوی چه نبی کریم ﷺ د صدقې کولو حکم اوکړو نو یو کس اووې اې د الله رسوله! زما سره یو دینار دې، حضور ﷺ اوفرمائیل په خپل ځان باندې صدقه اوکړه ـ" هغه اووې زما سره بل دینار دې، حضور ﷺ اوفرمائیل: په خپل بچی باندې صدقه اوکړه ـ" هغه اووې زما سره یو بل دې ـ اوئې فرمائیل: په خپله بی بی باندې صدقه اوکړه ـ ـ" لفظ د [زوجتک] یا د [زوجک] ئې اوفرمائیلو، هغه کس اووې زما سره یو بل دې ـ حضور ﷺ اوفرمائیل: په خپل خادم باندې صدقه اوکړه ـ هغه اووې زما سره یو بل دې نو حضور ﷺ اوفرمائیل ددې متعلق الله ښه پوهیږی ـ" (چه دا په کوم ځائې او په چا باندې صدقه کړې شی،)

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف :١٨٠٥٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الهبة ١٥(٢٥٩٢)، صحيح مسلم/الزكاة ١٤(٩٩٩)، سنن النسائي/الكبري/المعتق(٤٩٣٢)(صحيح)

(2): سنن النسائي/الزكاة ٥٤(٢٥٣٦)،(تحفة الأشراف: ١٣٠٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/٢٥١، ٤٧١)(حسن)

[۱۶۹۲](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ وَهْبِ بْنِ جَابِرٍ الْخَيْوَانِيِّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "كَفَى بِالْمَرْءِ إِثْمًا أَنْ يُضَيِّعَ مَنْ يَقُوتُ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: د انسان د ګناهګار کیدو د پاره هم دا (عمل) کافی دې چه د چا د رزق او د اخراجاتو دې ذمه دار وی، هغهٔ لره ضائع کړی۔

[۱۶۹۳](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، وَيَعْقُوبُ بْنُ كَعْبٍ، وَهَذَا حَدِيثُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُبْسَطَ عَلَيْهِ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ".

د حضرت انس رضی الله عنه بیان دې چې رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چاته چه دا خبره ښهٔ لږی چه ددهٔ رزق دې فراخ اوعمرزیات وی نو هغه لره پکاردی چه د خپلو رشته دارو سره صلهٔ رحمی کوی۔

**تشریح: قوله:** عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُبْسَطَ عَلَيْهِ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ

## شرح حدیث:

نسیئة او نساء بمعنی تاخیر،(۳) وئیلې شی، نساء الله فی عمرک، الله تعالی دې ستا ژوند مؤخر کړی، یعنی عمر دې اوږد کړی، کوم سړی لره چه دا خبره خوشالوی، چه دهغه په رزق کښې فراخی راوستلې شی، او دهغه عمر زیات کړې شی، نو هغه لره پکار دی، چه صله رحمی کوی، اثر وئیلې شی، اجل او مدت العمر ته، او اصل معنی ددې نشان قدم یعنی د قدم نخښې دې، چه د ژوند سره لازم دی، او دعمر ختمیدو نه پس د زمکې نه د قدم نخښې هم ختمیږی، ددې وجې نه د نشانات قدم بقاء کنایه ده، د ژوند نه(بذل)

په دې حدیث کښې د صله رحمئ بعضې ثمرات ذکر کړې شوې دی، اول د رزق وسعت او فراخی، دویم د عمر زیاتوالې، د عمر د زیاتوالی شارحینو دوه مطلبه لیکلې دی، اول داچه دا کنایه ده د برکة العمر نه، په سبب د توفیق الخیرات، او په سبب د حفاظت عن اضاعة الاوقات، چه دهغې د وجې نه د هغه ذکر خیر ډیر وخته پورې باقی وی، ګویا چه هغه ژوندې دې، مړې شوې نه دې، دویم مطلب دادې، چه ددې نه حقیقة زیاتوالې مراد دې، لیکن د علم الهی په اعتبار سره نه، په دغې لحاظ سره خو د هر سړی مدت العمر متعین دې، اذا جاء اجلهم لا یستاخرون ساعة ولا یستقدمون، بلکه دا زیاتوالې د هغې فرشتې په اعتبار سره دې، کوم چه په عمر باندې مقرر ده، مثلا هغې فرشتې ته داسې وئیلې شی، چه که فلانې سړی صله رحمی اوکړه، نو دهغه عمر به سل کاله وی، او که صله رحمی ئې اونه کړه، نو

(۱): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف :۸۹۴۳)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الزكاة ۱۲(۹۹۶)، سنن النسائي/الكبري/عشرة النساء(۹۱۷۶)، مسند احمد(۲/۱۶۰، ۱۹۴، ۱۹۵)(صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف :۱۵۱۶، ۱۵۵۵)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۱۳(۲۰۶۷)، والأدب ۱۲(۵۹۸۶)، صحيح مسلم/البر والصلة ۶(۲۵۵۹)، مسند احمد(۳/۲۴۷، ۲۳۹۳)(صحيح)

(۳) قال ابن الأثير النساء التاخير يقال نسأت الشئ نسأ، وانسأته انساءً اذا اخرته، والنساء الاسم ويكون في العمر والدين.اهـ

صرف شپيته کاله به وی، اول یعنی چه کوم د علم الهی په اعتبار سره وی، هغې ته تقدیر مبرم، او ثانی چه د فرشتې د علم په اعتبار سره دې، هغې ته تقدیر معلق سره تعبیر کولې شی، دغې دواړو قسمونو طرف ته دې آیت کریمه کښې اشاره ده، یمحوا الله ما یشاء و یثبت و عنده ام الکتاب، محو او اثبات د علم ملک په اعتبار سره دې، اوپه ام الکتاب کښې چه څه دی، هغه هم هغه دې، کوم چه په علم الهی کښې دې.

[١٦٩٤] (¹) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو بَكْرِ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "قَالَ اللَّهُ: أَنَا الرَّحْمَنُ وَهِيَ الرَّحِمُ شَقَقْتُ لَهَا اسْمًا مِنَ اسْمِي، مَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَهَا بَتَتُّهُ".

حضرت عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه بیان کوی چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل چه هغوی فرمائیل: الله تعالیٰ فرمائی: زهٔ رحمٰن یم (بې انتهاء رحم کوونکې) او دا رِشته داریٔ کوم ته چه رَحم وئیلې شی، ددې لفظ ما دَ خپل نوم نه ویستلې دې نو څوک چه دَ خپلو رشته دارو سره صِلهٔ رحمی (ښهٔ سلوک، میل جول) کوې نو زهٔ دَپه هغه پورې پیوست کیږم او څوک چه هغې لره کټ کوی نو زهٔ دَ هغه نه کټ کیږم (جُدا کیږم)

عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ اللَّهُ أَنَا الرَّحْمَنُ وَهِيَ الرَّحِمُ شَقَقْتُ لَهَا اسْمًا مِنَ اسْمِي مَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَهَا بَتَتُّهُ او د ترمذی د روایت الفاظ دادی، انا الله و انا الرحمن خلقت الرحم الخ، ددې نه معلومه شوه، چه د ابوداؤد په روایت کښې اختصار دې، او په دې کښې چه کوم ضمیر دهی دې، دهغې مرجع رحم دې، لفظ رحم زیات تر مونث استعمالیږی.

## شرح حدیث:

دا حدیث حدیث قدسی دې، الله تعالی فرمائي چه قرابت او رشته داری، چه هغې ته رحم وئیلې شی، دهغې دا نوم مشتق دې، زما د نوم نه، یعنی د رحمان نه، چه د الله تعالیٰ نوم او صفت دې، مطلب دادې، چه دا رحم یعنی رشته داری او قرابت د رحمان د رحمت د آثارو نه یو اثر دې، او په دې دواړو کښې (یعنی رشته داریٔ او د رحمان رحمت کښې) یو خاص قرب او تعلق دې، لهذا کوم سړې چه رحم جوړ ساتی، نو رحمان به په خپل رحمت سره هغه جوړ ساتی، او څوک چه دا ماتوی، نو رحمان به خپل رحمت د هغه نه مات کړی، یعنی رحمت به ترې لرې کړی.

په دې حدیث کښې د صله رحمیٔ زبردست فائده او دهغې بالمقابل د قطع رحمیٔ زبردست مضرت مذکور دې، په صله رحمیٔ کښې سراسر فائده ده، خپله هم او د نورو هم، او په قطع رحمیٔ کښې سراسر نقصان دې، خپل هم او د نوروهم، والله الموفق لما یحب و یرضی.

د صله رحمیٔ مفهوم او تشریح دلته کښې په حاشیه او اصل دواړو کښې تیره شوې ده، ددې صله رحمیٔ درجات او مراتب دی، چه د راتلونکې حدیث دلاندې به بیانیږی.

والحدیث اخرجه ایضا الامام احمد والبخاری فی الادب والحاکم والترمذی (منهل)

---

¹): سنن الترمذي/البر والصلة ٩(١٩٠٧)، (تحفة الأشراف :٩٧٢٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/١٩١، ١٩٤)(صحيح)

[۱۶۹۵](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنِي أَبُو سَلَمَةَ، أَنَّ الرَّدَّادَ اللَّيْثِيَّ أَخْبَرَهُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ.

د محمد بن متوكل عسقلانی په سند سره مروی دی چه حضرت عبد الرحمن بن عوف د نبی کریم ﷺ نه واوریدل، او د مذکوره بالا حدیث هم معنیٰ ئې روایت کړو ـ

[۱۶۹۶](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعُ رَحِمٍ".

د حضرت جبیر بن مطعم نه روایت دې هغوی د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چه هغوی ﷺ اوفرمائیل: چه قطع رحمئ والا (د رشته داریٔ کټ کولو والا) به په جنت کښې نۀ داخلیږی"

**تشریح: قوله**: عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ عَنْ أَبِيهِ يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَاطِعُ رَحِمٍ

قاطع د واصل مقابل دې، واصل، صله رحمی کونکې او قاطع قطع رحمی کونکې، او د امام بخاری په ادب المفرد کښې دغه شان د صحیح مسلم په یو روایت کښې قاطع رحم دې، چه هغې سره د قاطع مفهوم متعین شو، او هم دا اکثر شارحینو لیکلې دې، او په بذل المجهود کښې ددې یو دویم احتمال هم لیکلې دې، یعنی قاطع الطریق، (ډاکو، او لار شوکونکې) قطع رحمی یو معصیت او حرام کار دې، او ددې مرتکب عاصی او فاسق دې، او ددې مستحل (یعنی حلال ګنړونکې) کافر دې، او که حدیث لره په مستحل باندې محمول کړې شی، نو بیا خو عدم دخول جنت ظاهر دې، او که ددې نه مراد تارک صله رحمی دې، یعنی غیر مستحل، نو بیا دا حدیث په دخول اولی باندې محمول دې، لکه چه ددې حدیث پشان نورو احادیثو کښې دا مشهوره توجیه ده، د قطع رحمئ په باره کښې دا حدیث ډیر سخت وعید دې، کما هو ظاهره.

قال المنذری واخرجه البخاری و مسلم والترمذی (عون) زاد صاحب المنهل و احمد.

[۱۶۹۷](۳) حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، وَالْحَسَنِ بْنِ عَمْرٍو، وَفِطْرٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ سُفْيَانُ: وَلَمْ يَرْفَعْهُ سُلَيْمَانُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَرَفَعَهُ فِطْرٌ وَالْحَسَنُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ، وَلَكِنْ هُوَ الَّذِي إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا".

د حضرت عبد الله بن عمر و رضی الله عنهما نه مروی دی چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چه په بدل کښې رشته داریٔ قائمولو والا صلهٔ رحمی کوونکې نۀ دې، بلکې صله رحمی کوونکې هغه دې چه کله د هغه سره رشته داری کټ کړې شی نو دې صله رحمی کوی (رشته داری قائمه وی ـ)

(۱): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف :۹۷۲۸)(صحیح)

(۲): صحیح البخاري/الأدب ۱۱(۵۹۸٤)، صحیح مسلم/البر والصلة ٦(۲۵۵٦)، سنن الترمذي/البر والصلة ۱۰(۱۹۰۹)، (تحفة الأشراف: ۳۱۹۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۸۰/٤، ۸۳، ۸٤، ۸۵، ۳۸۲، ۳۸۹، ۳۹۷، ٤۰۳)(صحیح)

(۳): صحیح البخاري/الأدب ۱۵(۵۹۹۱)، سنن الترمذي/البر والصلة ۱۰(۱۹۰۸)، (تحفة الأشراف :۸۹۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱٦۳/۲، ۱۹۰، ۱۹۳)(صحیح)

**تشریح: قوله:** لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِئِ وَلَكِن الواصل إِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهُ وَصَلَهَا:

**شرح حدیث:**

هغه سړې صله رحمي کونکي نه دې، چه صرف مکافاة یعنی د برابرئ بدله او د احسان په بدله کښې احسان کوی، بلکه واصل هغه سړې دې، چه کله د بل طرف نه د قطع رحمئ معامله اوکړې شی، نو دې د یو خائي کولو او د جوړولو معامله کوی، شارحینو لیکلې دی، چه اګر چه د مکافات معامله یعنی د احسان په بدله کښې احسان، دا هم فی نفسه صله رحمی ده، لیکن کمال صله نه ده، دلته کښې د کمال نفی مراد ده، او دا حدیث د مکارم اخلاق د قبیلې نه دې، کما ورد صل من قطعک و اعط من حرمک و اعف عمن ظلمک،(عون) صاحب منهل لیکلې دی، چه خلق په درې قسمه دی، واصل، مکافی، قاطع، واصل هغه سړې دې، چه خپلو رشته دارو سره احسان کوی، کله چه هغوی دۀ سره احسان نه کوی، مکافی هغه سړې دې، چه څومره اخلی هغومره ورکوی،([1]) او په خپله عطاء کښې زیاتوالې نه کوی، او قاطع هغه سړې دې، چه دهغه قریبې رشته دار په هغه باندې احسان کوی، لیکن دې په هغه احسان نه کوی.

**تشریح: قوله:** والحدیث اخرجه ایضا البخاری والترمذی قاله المنذری(عون)

## بَابٌ فِي الشُّحِّ

### باب: ٤٦-دَ حرص او بخل مذمت-

دا د کتاب الزکوة آخری باب دې، مصنف رحمه الله د باریک نظرئ نه کار اخستې دې، هغه دا چه د پوره کتاب الزکوة او دهغې د احادیثو خلاصه او مقصد دادې، چه سړی لره پکار دی، چه د هغه په ذمه کوم حقوق مالیه دی، که واجب دی او که مستحب دی، هغې ټولو لره ادا کړی، لیکن د هر څیز د تحقق دپاره دوه اموره مطلوب دی، اول د اسباب او شرائطو تحقق، او ثانی د موانع او عوارضو ارتفاع، په دې آخری باب کښې مصنف رحمه الله دې امر ثانی لره بیانوی، چه د سړی ایمان اګر چه هغه لره په انفاق فی سبیل الله باندې تیزوی، لیکن د سړی په طبعیت کښې چه کوم حب مال او بخل طبعی(د مال جمع کولو حرص) دې، هغه د دې انفاق نه مانع جوړیږی، لیکن د دې مانع د لرې کولو ضرورت دې،

[1] ) او مکافات څنګه چه صله من الجانبین نه وی (څومره احسان چه په ده باندې اوکړې شی دومره هغه هم اوکړی) هم دغه شان مقاطعة من الجانبین نه هم وی (د قطع تعلق بدله په قطع تعلق سره ورکول) بیا چه په دې کښې څوک مخکښې کیږی هغه به قاطع وی او دویم یعنی جوابی کارروائی کولو والا مکافی یللې شی (منهل) صله رحمی یو جامع لفظ دې د دې مفهوم کافی وسیع دې چه د هغې خلاصه معارف الحدیث (للنعمانی) کښې داسې لیکلې ده چه د صله رحمی هم هغه دوه صورتونه دی یو دا چه انسان په خپلې ګټې سره د اهل قرابت مالی خدمت اوکړی او دویم دا چه د خپل وخت او خپل ژوند څه حصه په هغه کارونو کښې اولګوی. اهـ د دې بعض صورتونه مونږ مخکښې په حاشیه د در مختار کښې نقل کړې دی. ۱۲

[۱۶۹۸]([۱]) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُرَّةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو، قَالَ: خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "إِيَّاكُمْ وَالشُّحَّ فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِالشُّحِّ، أَمَرَهُمْ بِالْبُخْلِ فَبَخِلُوا، وَأَمَرَهُمْ بِالْقَطِيعَةِ فَقَطَعُوا، وَأَمَرَهُمْ بِالْفُجُورِ فَفَجَرُوا".

د حضرت عبد الله بن عمرو ﷺ نه مروی دی چه رسول الله ﷺ خطبه اوفرمائيله : خپل خانونو لره د حرص او بخل نه بچ کړئ ستاسو نه مخکښې خلق هم په دې وجه سره هلاک شو -(حرص) هغوی ته حکم اوکړو نو بخل ئې شروع کړو، د قطعهٔ رحمئ حکم ئې ورته اوکړو نو دوی قطعهٔ رحمی اوکړه او د بدکارئ امر ئې ورته اوکړو نو بدکاری ئې اوکړه-"

عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ خَطَبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِيَّاكُمْ وَالشُّحَّ فَإِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِالشُّحِّ أَمَرَهُمْ بِالْبُخْلِ فَبَخِلُوا وَأَمَرَهُمْ بِالْقَطِيعَةِ فَقَطَعُوا وَأَمَرَهُمْ بِالْفُجُورِ فَفَجَرُوا

## شرح حديث :

خپل ځان د بخل نه اوساتئ، ځکه چه ستاسو نه مخکښې چه کوم امتونه تير شوې دی، هغه ددې بخل د وجې نه هلاک شو. ([۲])

امرهم بالبخل : امر اوکړو هغې شح(يعنی طبعی بخل او خرص) په بخل سره، پس هغوی بخل اختيار کړو، ددې نه معلوميږی، چه بخل د عدم انفاق مال نوم دې، او شح دهغې طبعی خصلت نوم دې، کوم چه سړې په عدم انفاق باندې آماده کوی، يعنی منشاء دبخل.

ددې شح د وجې نه هغه خلق په قطع رحمئ او په قسما قسم فسق او فجور کښې مبتلاء شو، د قسما قسم فسق او فجور مطلب دادې، چه د حب مال او د حرص مال د وجې نه خلق د ظلم و ستم، قتل، لوټ مار، غصب او غلا مرتکب شو، او په دې لوټ مار کښې د زنانو عزت لوټ کول وغيره بې حيائی هم شامله ده.

والحديث صححه الحاكم قال المنذری و اخرجه النسائی(عون)

[۱۶۹۹]([۳]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي مُلَيْكَةَ، حَدَّثَتْنِي أَسْمَاءُ بِنْتُ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا لِي شَيْءٌ إِلَّا مَا أَدْخَلَ عَلَيَّ الزُّبَيْرُ بَيْتَهُ أَفَأُعْطِي مِنْهُ، قَالَ: "أَعْطِي وَلَا تُوكِي فَيُوكَى عَلَيْكِ".

حضرت اسماء بنت ابی بکر ﷺ بيان کوی چه ما اووې اې د الله رسوله ! زما سره بس صرف

[۱]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف :۸۶۲۸)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري(۱۱۵۸۳)، مسند احمد(۲/۱۵۹، ۱۶۰، ۱۹۱، ۱۹۵)(صحيح)

[۲]) دلته دهلاکت نه هلاکت معنوی يعنی دينی هم مراد کيدې شی چه دبخل په وجه ئې حقوق الله او حقوق العباد ضائع کړل کوم چه دمال سره متعلق وو اوخپل آخرت ئې تباه اوبرباد کړو، او هلاکت حسی يعنی دنيوی هم مراد کيدې شی ځکه چه کله دخلقو حقوق ئې ادانه کړل نو په خپل مينځ کښې يوبل سره جګړه او قتل وقتال جوړشو چه په دې سره په دنيا کښې هم هلاک اوبرباد شو، او ښکاره ده چه هلاکت حسی اومعنوی، دينی او دنيوی دواړه مراد واخستلې شی.(منهل)

[۳]: سنن الترمذي/البر والصلة ۴۰(۱۹۶۰)، سنن النسائي/الزكاة ۶۲(۲۵۵۱، ۲۵۵۲)،( تحفة الأشراف: ۱۵۷۱۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الزكاة ۲۱(۱۴۳۳)، ۲۲(۱۴۳۴)، والهبة ۱۵(۲۵۹۰)، صحيح مسلم/الزكاة ۲۸(۱۰۲۹)، مسند احمد(۶/۱۳۹، ۳۴۴، ۳۵۳، ۳۵۴)(صحيح)

هغه وی کوم چه( زما خاوند) زبیر کورته راوړی - نو آیا زهٔ هغې لره ورکووم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل :(اې اسماء !) ورکوه او تهٔ مهٔ تړه هغې لره( د ایخودو د پاره) ورنه په تاباندې به هم( ستا رزق) اوتړلې شی -''

**تشریح**: **قوله**: حَدَّثَتْنِي أَسْمَاءُ بِنْتُ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا لِي شَيْءٌ إِلَّا مَا أَدْخَلَ عَلَيَّ الزُّبَيْرُ بَيْتَهُ أَفَأُعْطِي مِنْهُ قَالَ أَعْطِي وَلَا تُوكِي فَيُوكَى عَلَيْكِ

حضرت اسماء بنت ابی بکر رضی الله عنها فرمائي چه یو ځل ما نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو، یا رسول الله ﷺ(صورت حال دادې) چه زما په ملک کښې خو هیڅ نشته، سوا دهغې نه کوم چه زما خاوند(زبیر) زما کور ته راوړې دی او ماته ئې حواله کړې دی، نو زهٔ دهغې نه صدقه ورکولې شم؟ نبی کریم ﷺ هغې ته د عطاء اجازت ورکړو، بلکه منع کولو او ساتلو نه ئې منع کړه، چه د مال د بوجئ خولهٔ مهٔ تړه، ګنی ستا نه به هم اوتړلې شی، یعنی الله تعالی به د خپلې خزانې خولهٔ ستا دپاره بنده کړی، ولاتوکی د ایکاء نه ماخوذ دې، یعنی وکاء سره یو څیز تړل، وکاء وئیلې شی هغه رسئ او تار ته، چه دهغې په ذریعې سره د بورئ او تهیلئ خولهٔ تړلې شی،

په دې حدیث کښې نبی کریم ﷺ زنانه ته د خاوند د مال نه د صدقې کولو اجازت ورکړې دې، چه دهغې د پاره اذن زوج ضروری دې، که دلالة وی، او که صراحة. دلته کښې نبی کریم ﷺ دهغې د ذکر کولو ضرورت ځکه اونه ګڼړو، چه شاید هغوی ته دهغې د خاوند د طبعیت حال معلوم وو، او یا وئیلې شی، چه مراد دادی، چه تهٔ خاص ستا په حصه کښې چه کوم څیز راغلې دې، دهغې نه ضرور صدقه ورکوه، د انفاق المرءة من بیت الزوج تفصیل ددې په باب کښې تیر شوې دې. والله تعالی اعلم.

قال المنذری اخرجه الترمذی والنسائی واخرجه البخاری و مسلم من طریق آخر مختصرا.(عون)

[۱۷۰۰](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، أَخْبَرَنَا أَيُّوبُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا ذَكَرَتْ عِدَّةً مِنْ مَسَاكِينَ قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَالَ غَيْرُهُ: أَوْ عِدَّةً مِنْ صَدَقَةٍ، فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطِي وَلَا تُحْصِي فَيُحْصَى عَلَيْكِ".

د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه هغې څو مساکینو لره شمیر کړل ...... یائې څو صدقات شمیر کړل نو رسول الله ﷺ هغې ته اوفرمائیل : ''( اې عائشه !) ورکوه او شمیر مهٔ کوه، ورنه په تاباندې به هم شمیر کولې شی -''

عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا ذَكَرَتْ عِدَّةً مِنْ مَسَاكِينَ الخ: عدة لره د دال په تشدید او تخفیف دواړو طریقو سره لوستلې شوې دې،عدّة،عدَة په اول صورت کښې به مطلب دا وی، چه هغې د نبی کریم ﷺ مخکښې د څو مسکینانو تذکره اوکړه، چه هغوی ماته د سوال دپاره راغلې وو، او په دویم صورت کښې به مطلب دا وی، چه عائشه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ مخکښې عرض

(1): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٦٢٣٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الزكاة ٦٢(٢٥٥٢)، مسند احمد(١٠٨/٦، ١٣٩، ١٦٠)(صحيح)

اوکړو، چه ما بعضې مسکینانو سره د ورکولو وعده کړې ده، نو آیا زۀ هغوی ته ورکولې شم. نبی کریم ﷺ هغې ته هم د ورکولو حکم اوکړو. والحدیث اخرج النسائی نحوه مطولا (منهل)
الحمد لله الذی بعزته و جلاله تتم الصالحات.

بسم الله الرحمن الرحیم

# كتاب اللقطة

## دَ پريوتلې ګمشده څيز متعلق احکام او مسائل

## بَابُ التَّعْرِيفِ بِاللُّقَطَةِ

### باب: ۱ - پريوتلې څيز چه اوچت کړې نو دَ هغې دَ اعلان حکم۔

په بعضو نسخو کښې د کتاب اللقطه نه قبل آخر کتاب الزکوة ليکلې شوې دې، ليکن زمونږ په نسخه کښې کتاب اللقطه په ختم باندې ليکلې شوې دی آخر کتاب الزکوة، د اول نسخې تقاضا دا ده، چه کتاب اللقطه مستقل کتاب دې، د کتاب الزکوة جزء نه دې، او د دويمې نسخې تقاضا په ظاهر کښې داده، چه مصنف لقطې لره د کتاب الزکوة جزء او دهغې تکمله مقرر کړې ده، بهرحال د لقطې بيان که د کتاب الزکوة جزء وی او که نه، ددې مناسبت د کتاب الزکوة سره ظاهر دې، ځکه چه د لقطې انجام که مالک رانشی، نو تصدق دې.
د عادت او معمول مطابق مونږ دلته کښې د لقطې په شروع کښې څو امور او مفيد بحثونه ذکر کوؤ، دې د پاره چه د احاديث الباب په زده کولو او پوهيدلو کښې مفيد او د بصيرت باعث وی، والله الموفق.

#### د لقطې سره متعلق مباحث تسعه:

(۱) تحقيق اللقطة لغة (۲) حکم الالتقاط (۳) الفرق بين لقطة الحيوان وغير الحيوان (٤) مدة التعريف (٥) التملک بعد التعريف (٦) وجوب الضمان عند مجئی المالک (۷) هل يدفع الی الناشد بمجرد بيان العلامات (۸) الاشهاد عند الالتقاط (۹) لقطة الحاج ما ذا حکمه.

#### البحث الاول: (تحقيق اللقطة لغةً)

لقطه په ضمې دلام او په فتح دقاف سره دې، اګر چه عوام دې لره د قاف په سکون سره وائی، (زمخشری) و معناه لغة الشئی الملقوط، (هغه پريوتونکې څيز چه هغې لره پورته کړې شوې وی) حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائي چه مشهور عنداهل اللغة والمحدثين خو دا دی، ليکن خليل رحمه الله وائی، چه لقطه چه سکون دقاف سره دې، او لقطة بالفتح هغه بمعنی لاقط راځی، حافظ وائی، خليل چه څه وائی هو القياس، ليکن مسموع من العرب هم دادی، (کوم چه مشهور دی) بلکه په دې باندې اجماع ده، واما شرعا هو مال يوجد ولا يعرف مالکه، يعنی هغه مال چه غير محفوظ ځائې کښې اوموندلې شی، او دهغې د مالک پته نه لګی.

#### البحث الثانی: (حکم الالتقاط)

د احنافو په نزد التقاط اولی دې، په شرط ددې چه لاقط ته په خپل نفس باندې اطمينان وی، او که د خيانت خطره وی، فالترک اولی (درمختار) او صاحب بدائع فرمائي چه په خپل نيت

سره اوچتول خو حرام دی، پشان د غصب، او د خوف ضیاع په وخت کښې التقاط واجب دې، ځکه چه څرنګه د شخص مسلم د نفس دپاره حرمت او عزت دې، دغه شان د مال دپاره هم، د دواړو حفاظت واجب دې، ګنی که هغه څیز ضائع شو، نو ګناهګار به وی اهـ، او هم دا مذهب د شافعیه، مالکیه او جمهورو دې، البته په مغنی کښې د امام احمد بن حنبل رحمه الله نه نقل کړې شوې دی، چه ترک التقاط اولی دې، او دویم قول د حنابله په نزد هغه دې، کوم چه د جمهورو دې.

## البحث الثالث: (الفرق بين لقطة الحيوان وغير الحيوان)[1]

د لقطې په اصل کښې دوه قسمه دی، لقطة الحیوان و غیر الحیوان، اول ته ضاله وئیلې شی، او ثانی ته لقطة، د احنافو په نزد د دواړو په حکم کښې هیڅ فرق نشته، کوم حکم چه د

---

[1] او په بعض تقریرونو کښې داسې دی: التقاط الابل، امام بخاری رحمه الله ضالة الابل او ضالة الغنم دوه جدا جدا مستقل بابونه تړلی دی، ابل او کوم حیوانات چه د هغه په شان دی په قوت او جسامت کښې صغار سباع (د وړو او لویو درندګانو نه) خپله بچ کیدې شی مثلا بقر او فرس او حمار وغیره د حنابله په نزد د دې التقاط جائز نه دی لکه چه د ظاهر حدیث الباب نه هم دا معلومیږی (چه د هغه نه کله د ضالة الابل په باره کښې تپوس اوکړې شو) ابن قدامه د امام احمد او شافعی دواړو مسلک هم دا لیکلې دې خو دا د شافعیه یو قول دې اصح قول د هغوی کما قال النووي في روضة الطالبين وكذا الحافظ العسقلاني في شرح البخاري دا دې چه صحراء او قریه (ابادی) کښې فرق دې د دې قسم حیواناتو التقاط په صحراء کښې جائز نه دې الا للحفظ فقط لا للتملك بعد التعريف. او که ابادئ یا هغې ته نزدې هم اوموندلې شی نو په دې صورت کښې بیشکه د هغوی التقاط للتملک به جائز وی تر یو کال پورې به ئې تعریف کوی بیا که مالک رانشی نو خپله مالک جوړیدې شی او هم دا مسلک تقریبا د مالکیانو دې. (كما في الكافي لابن عبدالبر والمغنى) او حیوانات چه داسې وی چه هغه د صغار سباع نه خپل خان خپله نه شی بچ کولې لکه بیزه وغیره نو د هغه التقاط د شافعیه او حنابله په نزد مطلقا جائز دې که آبادئ کښې وی یا په صحرا کښ. په دې کښې د امام مالک اختلاف دې هغه فرمائی چه بیزه که په صحرا کښې ملاؤ شی نو بیا د دې التقاط او تملک جائز دی بلکه تعریف او ضمان هیڅ هم واجب نه دی خو په ابادئ کښې ملاؤ شی یا د هغې په خوا کښې ملاؤ شی نو بیا د هغه تعریف ضروری دی او تملک بعد التعریف هم جائز نه دې بلکه همیشه به د هغه تعریف کولی شی تردې چه د هغه مالک راشی دا تفصیل خو وو د جمهورو په مسلک کښې او د احنافو په نزد ابل او بقر او غنم د ټولو حکم یو شان دی، التقاط جائز دې او هم دغه شان د صحراء او قریه هم څه فرق نشته، صاحب بدائع د احنافو دلیل دا بیان کړې دې چه د عمر رضي الله عنه په زمانه کښې یو سړی د اوښ التقاط اوکړو او د هغه تعریف ئې هم اوکړو چه کله ئې مالک رانغلو نو هغه سړې عمر رضي الله عنه ته راغلو او عرض ئې اوکړو نو هغه ورته اوفرمائیل چه مزید تعریف ئې اوکړه، هغه عرض اوکړو چه ماته خو دا ډیره مشکله شوې ده، عمر رضي الله عنه ورته اوفرمائیل چه بیا دې هم هلته پریږده چرته نه چه دې راوستلی وو. الحاصل عمر رضي الله عنه ورته دا او نه فرمائیل چه تا د دې التقاط ولې کړې دې او د حدیث جواب هغه دا ورکړې دې چه دا منع په دې صورت کښې دې چه هر کله د قرائن نه دا معلومیږی چه مالک ئې چرته نزدې دې هغه به خپله راشی او دا به بوځی. يشير اليه قوله في الحديث حتي ياتيها ربها. (بذل) او علامه سرخسی په مبسوط کښې دا جواب کړې دې چه حدیث د صلاح په زمانه باندې محمول دې چه په کوم وخت کښې د اهل صلاح غلبه او د هغوی کثرت وو نو په دې صورت کښې د ضیاع ویره نه وه او اوس دا خبره نشته لكثرة الخائنين في هذا الزمان. پس اصل څیز په دې کښې د ضائع کیدو ویره ده، هم په دې وجه شافعیه او مالکیانو هم مغازه او د قریه فرق دې ځکه چه په ابادئ کښې د خیانت ویره ده څوک به ئې خپل کور کښې اوتړی مالک ته به معلومات کول ګران شی په خلاف د صحراء. والله تعالي اعلم

لقطة غير حيوان دې، هغه حکم د لقطة حيوان هم دې، دهغوی په نزد په دې کښې ابل او غنم دواړه برابر دی، ليکن د جمهور علماؤ ائمه ثلثة په نزد په دواړو کښې فرق دې، او په ماقبل يعنی بحث ثانی کښې چه کوم حکم بيان شوې دې، هغه عند الجمهور د غير حيوان دې، او په لقطة الحيوان کښې دهغوی په نزد تفصيل دې، هغه دا چه حيوان په دوه قسمه دې.(۱) هغه حيوان چه د خپل قوت د وجې نه د صغار سباع(يعنی وړوکي درنده ګانو) نه حفاظت په خپله کولې شی، او دهغوی د ضائع کيدو خطره نه وی، كالابل والخيل والبغال والحمير، د داسې قسمه څناورو حکم په ائمه ثلثة کښې د امام شافعی رحمه الله په نزد دادې، که هغوی په صحراء کښې اوموندلې شی، نو بيا خو حکم دادې، چه دهغوی التقاط للحفظ جائز دې، لهذا دا حيوان به هغه سره هميشه دپاره امانت وی، چه کله هم دهغې مالک راشی، هغه ته به ورکولې شی، او د تملک دپاره التقاط جائز نه دې، يعنی په دې نيت باندې چه يو کال پورې به ددې لقطې تعريف اوکړم، که مالک راغلو، نو هغه ته به ورکړم، ګنی خپله به ئې مالک شم، په دې طريقې سره التقاط جائز نه دې. او که داسې قسمه څناور په آبادئ کښې اوموندلې شی، نو د شافعيه يو قول خو دادې، چه په دې صورت کښې هم التقاط للتملک جائز نه دې، كما في الصحراء، ليکن دهغه اصح قول دادې، چه په آبادئ کښې دهغې التقاط للتملک جائز دې، ځکه چه په آبادئ کښې خيانت کونکې ډير وی، هلته کښې د ضائع کيدو خطره ده، په خلاف د ځنګل.

دا خو مسلک د شافعی رحمه الله وو، او د حنابله په نزد د داسې قسمه څناورو التقاط مطلقا ناجائز دې، که هغه په صحراء کښې اوموندلې شی، يا په آبادئ کښې، لکه چه د ظاهر حديث نه معلوميږی، پس په ظاهر حديث باندې عمل صرف د حنابله دې، د احنافو نه علاوه د نورو ائمه هم د حديث په ظاهر باندې عمل نه دې، د احنافو باره کښې خو تولو ليکلې دی، چه دا حديث دهغوی خلاف دې.

او د مالکيه نه مختلف روايات منقول دی، يو روايت دهغوی دادې، يجوز الالتقاط في القرية لا في الصحراء، ځکه چه د ضائع کيدو خطره صرف په آبادئ کښې ده،(چه څوک ئې خپل کور ته بوځی، او پټ ئې کړی) په صحراء کښې خطره نشته، دا ټول تفصيل او اختلافات خو دهغې څناورو باره کښې وو، د کومو چه د ضائع کيدو خطره نه وی، او هغوی خپل حفاظت په خپله کولې شی، او کوم څناور چه داسې دی، چه هغوی د صغار سباع(وهی الثعلب والذئب وولد الاسد) نه خپل حفاظت نشی کولې، مثل الغنم و فصلان الابل و عجاجيل البقر و افلاء الخيل(اولاد خيل) والدجاج و نحوها، نو دهغوی التقاط د جمهورو په نزد مطلقا جائز دې، که په قريه کښې وی، او که په صحراء کښې، په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دې، هغوی فرمائی، بزه وغيره څناور که په صحراء کښې ملاؤ شی، نو بيا خو د هغې التقاط جائز دې، او تملک هم، ليکن که په قريه او آبادئ کښې ملاؤ شی، نو التقاط دهغې خو جائز دې، ليکن تملک بعد التعريف جائز نه دې، بلکه هميشه به دهغې حفاظت کولې شی، تردې پورې چه دهغې مالک راشی، دهغوی دپاره دليل دادې، چه په حديث

کښې دا فرمائیلې شوې دی، لک اولاخیک او للذئب، لهذا دا حکم د صحراء دې، د ښهر نه دې، ځکه چه ذئب په مصر کښې نه وی، په صحراء کښې وی، جمهورو ددې جواب دا ورکړې دې، چه په ښهر کښې بل قسم وی، یعنی غلهٔ، ډاکوان، شوکمار وغیره.

**البحث الرابع: (مدة التعريف)**

عند الجمهور منهم الائمه الثلثة مدة تعریف یو کال دې، او زمونږ په نزد په دې کښې درې روایات دی، (۱) ظاهر الروایة یو کال دې، مثل الجمهور (۲) د لقطې د حیثیت مطابق، که لقطه د لسو درهمو نه کمه ده، نو بیا مدة تعریف څو ورځې دی، او که لس درهم یا دهغې نه زیاته ده، نو بیا یو کال دې، (۳) علی رای المبتلی به، تر څو پورې چه دهغه دا ګمان وی، چه تلاش کونکې راتلې شی، نو هغه به تعریف کوی، او کله چه ظن غالب دا وی، چه اوس نه راځی، ډیر ورځې تیرې شوې، نو تعریف ختم.

**البحث الخامس: (التملک بعد التعريف)**

د احنافو په نزد د مدة تعریف پوره کیدو نه پس که دهغې مالک رانشی، او لاقط غنی وی، نو دهغه دپاره د لقطې نه په خپله منتفع کیدل جائز نه دی، بلکه هغې لره دې صدقه کړی، او که هغه فقیر دې، نو دهغه دپاره انتفاع جائز ده، هغه خپله دهغې مالک جوړیدې شی، د مالکیه مسلک هم ددې قریب دې، دهغوی د کتابونو نه معلومیږی، چه دهغوی په نزد د غنی دپاره تملک جائز خو دې، لیکن علی کراهة، او د شافعیه او حنابله په نزد تملک مطلقا جائز دې، که لاقط فقیر وی، او که غنی وی.

**البحث السادس: (وجوب الضمان عند مجئ المالک)**

د تعریف نه پس که لاقط په لقطه کښې تصرف کړې وی، بیا وروستو مالک هم راغلو، نو د جمهور علماء او د ائمه اربعه په نزد ضمان واجب دې، په دې کښې د کرابیسی صاحب شافعی رحمه الله او د امام بخاری او داؤد ظاهری اختلاف دې، دهغوی په نزد ضمان واجب نه دې، لیکن د امام مالک رحمه الله په نزد ددې حکم نه ضالة الغنم مستثنی دې، دهغه په نزد د التقاط نه پس نه دهغې تعریف واجب دې، او نه ضمان[1]، بلکه هغه ته اختیار دې، که غواړی، نو صدقه دې کړی، او که غواړی، نو خپله دې اوخوری.

واستدل بقوله علیه السلام فی الحدیث: فانما هی لک اولاخیک او للذئب، یعنی نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه د ضالة الغنم التقاط کول پکار دی، ځکه چه دا ستا دپاره دې، که ته ئې نه خورې، نو دا ستا د ورور دپاره دې، که هغه هم وانه خستلو، نو بیا د شرمخ دپاره دې، او ظاهر ده، چه په ذئب باندې ضمان نشته، دغه شان په لاقط باندې هم ضمان نشته.

[1] شروحاتو دا مطلقًا لیکلې دې خو الکافي لابن عبدالبر (ص۱۶۴ ج۲) کوم چه د فقه مالکیه کتاب دې دا لیکلي دی چه دا دهغوی په نزد په هغه صورت کښې دې کله چه هغوی ته چیلۍ په مفازه کښې ملاؤشی او که په قریه (کلی) یا هغې سره خواوشا کښې ملاؤ شی نو بیا دهغې تعریف ضروری دې.

**البحث السابع:** **(هل يدفع الى الناشد بمجرد بيان العلامات)**

دا مسئله هم اختلافی ده، امام بخاری رحمه الله په دې باندې مستقل باب تړلې دې، **باب اذا اخبره رب اللقطة بالعلامة دفع اليه.** حضرت شيخ رحمه الله په حاشيه دلامع كښې ليكلي دی، چه د امام مالک او احمد مسلک هم دادې، چه کوم سړې عفاص او وكاء لره اوپيژنی، (يعنی علامات اوښائی) هغه ته وركول پكار دی، او د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله مسلک دادې، چه د ناشد علامات ښودلو نه پس كه د لاقط زړهٔ گواهی وركړی، نو وركولې شی، گنی هغه لره بغير د گواهانو نه مجبوروليې نشی.

**البحث الثامن:** **(الاشهاد عند الالتقاط)**

د حنفيه په نزد عند الالتقاط اشهاد واجب دې، د امام شافعی رحمه الله يو روايت هم دادې، **لحديث عياض بن حمار قال قال رسول الله (صلى الله عليه وسلم) من وجد لقطة فليشهد ذاعدل الحديث،** او د امام مالک و احمد و شافعی رحمهم الله فی رواية اشهاد واجب نه دې، صرف مستحب دې، څكه چه حضور صلى الله عليه وسلم د زيد بن خالد رضی الله عنه په حديث كښې دې لره بيان كړې نه دې، كه واجب وې نو خامخا به ئې بيان فرمائيلې وو.

**البحث التاسع:** **(لقطة الحاج ما ذا حكمه)**

حضرت امام بخاری رحمه الله په دې باندې مستقل باب قائم كړې دې، **باب كيف تعرف لقطة اهل مكة،** د كتاب اللقطة په آخر كښې يو حديث مرفوع رراوان دې، **نهى عن لقطة الحاج،** او په يو حديث كښې دی، **ولا تحل لقطتها الا لمعرف و فی رواية الا لمنشد** ددې حديث په بناء باندې امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله په يو روايت كښې دا فرمائي، چه لقطة الحرم يعنی د مكې التقاط صرف د تحفظ او تعريف دپاره كيدې شی، او دا د نورو عامو لقطو پشان نه ده، چه د تعريف نه پس ئې تملک جائز وی، او وجه ددې داده، چه د مكې لقطې لره دهغې مالک ته رسول ممكن او آسان دی، څكه چه هغه لقطة به د دواړ حالتونو نه خالی نه وی، يا خو به د مكې وی، يا به د آفاقی وی، كه د مكی وی، نو بيا خو ظاهره ده، او كه د آفاقی ده، نو چونكه مكې مكرمې ته هر كال د هر ملک او د هر ښهر نه خلق راځی، ددې وجې نه چه هر كال تعريف كولې شی، نو د مالک پته به اولگی، او دهغه راتلونكې په ذريعې سره به هغه مالک ته رسول آسان وی.

او د حنفيه بلكه د جمهور ائمه په نزد په لقطة الحل والحرم كښې هيڅ فرق نشته، او د حديث جواب دهغوی د طرف نه دادې، چه نبی كريم صلى الله عليه وسلم چه فرمائي چه ددې لقطه صرف د منشد او معرف دپاره جائز ده، دهغې مقصد دادې، چه دهغه ځائي په لقطه كښې مبالغه فی التعريف كول پكار دی، څكه ممكن ده، چه هغه چرته د حاجی وی، او معلومه نه ده، چه هغه به دوباره دلته راځی او كه نه، لهذا په تعريف كښې پوره كوشش كول پكار دی، او يا د مكې تخصيص په تعريف كښې ددې وجې نه كړې شوې دی، چه ممكن ده چه څوک دا اوګنړی، چه ددې لقطې مالک ته رسول ډير مشكل دی، پته نشته چه د كوم مسافر به وی، د ټولې دنيا نه خلق هلته راځی، رش وی، مالک به كوم ځائي تلاش كوی، لهذا بغير د

تعریف نه هغه خپل ځان مالک جوړ کړی، ددې خیال د تردید دپاره په حدیث کښې مبالغه فرمائیلې شوې ده، چه ددې التقاط دې صرف د تعریف دپاره اوکړې شی، ګنی په حقیقت کښې چه کوم حکم د نورو لقطو دې، هغه د لقطة الحاج هم دې، یعنی تعریف ثم التملک ان کان فقیرا او التصدق ان کان غنیا، والله تعالی اعلم، و قد تم بتوفیقه سبحانه و تعالی بیان المباحث التسعة فله الحمد والمنة، ددې مباحثو نه پس اوس حدیث الباب ته اوګورئ:

[۱۷۰۱]()[1] حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا شُعْبَةُ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ، عَنْ سُوَيْدِ بْنِ غَفَلَةَ، قَالَ: غَزَوْتُ مَعَ زَيْدِ بْنِ صُوحَانَ وَسَلْمَانَ بْنِ رَبِيعَةَ فَوَجَدْتُ سَوْطًا، فَقَالَا لِي: اطْرَحْهُ، فَقُلْتُ: لَا، وَلَكِنْ إِنْ وَجَدْتُ صَاحِبَهُ وَإِلَّا اسْتَمْتَعْتُ بِهِ فَحَجَجْتُ فَمَرَرْتُ عَلَى الْمَدِينَةِ، فَسَأَلْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ، فَقَالَ: وَجَدْتُ صُرَّةً فِيهَا مِائَةُ دِينَارٍ، فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "عَرِّفْهَا حَوْلًا"، فَعَرَّفْتُهَا حَوْلًا ثُمَّ أَتَيْتُهُ، فَقَالَ: "عَرِّفْهَا حَوْلًا"، فَعَرَّفْتُهَا حَوْلًا ثُمَّ أَتَيْتُهُ، فَقَالَ: "عَرِّفْهَا حَوْلًا"، فَعَرَّفْتُهَا حَوْلًا ثُمَّ أَتَيْتُهُ، فَقُلْتُ: لَمْ أَجِدْ مَنْ يَعْرِفُهَا، فَقَالَ: "احْفَظْ عَدَدَهَا وَوِكَاءَهَا وَوِعَاءَهَا فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا فَاسْتَمْتِعْ بِهَا"، وَقَالَ: وَلَا أَدْرِي أَثَلَاثًا قَالَ عَرِّفْهَا أَوْ مَرَّةً وَاحِدَةً.

**ترجمه**: حضرت سوید بن غفله رحمه الله فرمائی چه په یو سفر کښې د حضرت زید بن صوحان او د سلمان بن ربیعه سره وم مونږ ته یو چابک (کوړه) ملاؤ شوه (چه هغې لره ما اوچت کړو) نو دې دواړو ماته اووې چه دې لره اوغورځوه - ما ورته اووې نه - کۀ چرې ددې مالک ماته ملاؤ شو (نو زۀ به ئې هغه ته ورکړم) ورنه ددې نه به زۀ فائده اخلم - بیا زۀ د حج د پاره لاړم او مدینې ته هم راغلم نو ما د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه نه تپوس اوکړو هغوی اوفرمائیل چه ما ته یوه تیلۍ ملاؤ شوې وه چه په هغې کښې سل دیناره وو - نو زۀ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې راغلم، هغوی ﷺ اوفرمائیل: تر د یو کاله پورې ددې اعلان اوکړه، چنانچه ما یو کاله پورې د هغې اعلان کولو، بیا هغوی ته راغلم نو هغوی ﷺ اوفرمائیل: یو کال (بل) اعلان اوکړه - ما یو کال بل د هغې اعلان اوکړو، بیا د حضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم هغوی اوفرمائیل: یو کال (بل) د هغې اعلان اوکړه ما یو کال مزید د هغې اعلان اوکړو بیا هغوی ته راغلم او عرض مې اوکړو چه ما یو کس داسې اونۀ موندۀ چه هغه دې لره پېژندلو - نو حضور ﷺ اوفرمائیل ددې شمیر لره یاد ساته، د هغه تیلۍ او سر بند لره هم (یعنی هغه څیز چه په هغې باندې د تیلۍ خولۀ تړلې شوې وی -) کۀ د هغې مالک راغې نو بهتره ده، ورنه د هغې نه فائده اخله -" (سلمه بن کهیل) وائی: ما ته معلومه نۀ ده چه د اعلان کولو حکم ئې درې ځله ورکړې دې یا یو ځل.

**تشریح: قوله**: عن سوید بن غفلة قال غزوت مع زید بن صوحان و سلمان بن ربیعة الخ.

### مضمون حدیث:

سوید بن غفله چه د اصح قول مطابق تابعی دې، فرمائي چه زۀ یو ځل د زید بن صوحان (صحابی) او د سلمان بن ربیعه (مختلف فی صحبته) سره د غزوې په یو سفر کښې

[1]: صحیح البخاري/اللقطة ۱ (۲۴۲۶)، ۱۰ (۲۴۳۷)، صحیح مسلم/اللقطة ۱ (۱۷۲۳)، سنن الترمذي/الأحکام ۳۵ (۱۳۷۴)، سنن النسائي/الکبری/ اللقطة (۵۸۲۰، ۵۸۲۱)، سنن ابن ماجه/اللقطة ۲ (۲۵۰۶)، (تحفة الأشراف :۲۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۶/۵، ۱۲۷) (صحیح)

شریک اوم، په دې حدیث کښې مخکښې دادی، چه حضرت ابی بن کعب فرمائي چه یو ځل ماته یوه تهیلئ ملاؤ شوه، چه په هغې کښې سل دینار وو، هغه مې راواخستله او د نبی کریمﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، نو نبی کریمﷺ اوفرمائیل عرفه حولا الخ چه ددې یو کال پورې تعریف کوه، هغه وائی، ما دهغې یو کال پورې تعریف اوکړو، لیکن هیڅوک رانغلل، زهٔ د نبی کریمﷺ په خدمت کښې حاضر شوم، نبی کریمﷺ بیا یو کال پورې د تعریف حکم اوفرمائیلو، دغه شان دریو کالو پورې تعریف اوکړې شو. مخکښې په روایت کښې دادی، چه یو سړی په مدة التعریف کښې د شک اظهار اوکړو، چه دا ماته صحیح یاد نه دی، چه نبی کریمﷺ صرف یو کال پورې د تعریف حکم اوکړو، یا دریو کالو پورې. دا حدیث په صحیحینو کښې هم شته، هلته کښې د دریو کالو تعریف ذکر دې، (بدون شک) لیکن دریو کالو پورې د تعریف جمهور قائل نه دی، البته بعضې صحابه کرام لکه حضرت عمرؓ او بعضې نور علماؤ نه تعریف الی ثلثة اعوام منقول دې،

دغه شان د احنافو نه هم یو قول د مبتلی به د رائې په اعتبار سره دې، په دې صورت کښې دریو کالو پورې نوبت راتلې شی، حضرت شیخ په اوجز کښې لیکلې دی: لیکن د زید بن خالد په حدیث کښې (کوم چه په ابوداؤد کښې مخکښې راروان دې) دهغې په ټولو طرقو کښې د یو کال تعریف مذکور دې، چه د جمهورو مسلک دې، لهذا هغې ته به ترجیح ورکولې شی، حتی چه ابن حزم او ابن الجوزی خو په یقین سره دا خبره کړې ده، چه دریو کالو والا روایت د راوی وهم دې.

**د شافعیه دلیل او دهغې نه جواب:**

**والا فاستمتع بها:** په دې سره شافعیه او حنابله په خپل مسلک باندې استدلال کړې دې، چه د لقطې د تعریف نه پس لاقط دپاره دهغې نه انتفاع اخستل مطلقا جائز دی، یعنی اګر چه هغه غنی وی، ځکه چه دا خبره مشهوره ده، چه حضرت ابی بن کعب د میاسیر (مالدار) صحابه کرامو نه وو، زمونږ د طرف نه ددې جواب دادې، چه مال تلونکې راتلونکې څیز دې، همیشه سړې په یو حالت باندې نه وی، ممکن ده چه هغه دغه وخت کښې غنی نه وو، او زمونږ دلیل هغه دې، چه مخکښې د عیاض بن حمار نه مرفوعا راروان دې، **والا فهو مال الله یؤتیه من یشاء،** شوکانی رحمه الله فرمائي چه مال الله هغه مال ته وئیلې شی، چه د صدقې قابل وی.

[۱۷۰۲](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: عَرِّفْهَا حَوْلًا، وَقَالَ ثَلَاثَ مِرَارٍ، قَالَ: فَلَا أَدْرِي قَالَ لَهُ ذَلِكَ فِي سَنَةٍ أَوْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ.

**ترجمه:** شعبه د مذکوره بالا حدیث په مثل باندې روایت کړې دې: (په دې کښې دی حضورﷺ) اوفرمائیل: یو کاله پورې ددې اعلان اوکړه" حضورﷺ دې خبرې لره درې ځل اوفرمائیله -( سلمه بن کهیل) وائی ماته نهٔ ده معلومه چه ددې مفهوم په یو کال کښې درې ځله اعلان کول دی یا تر دَ دریو کالو پورې اعلان کول -"

---

(1): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف :۲۸)(صحیح)

[۱۷۰۳]()[1] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ فِي التَّعْرِيفِ: "قَالَ: عَامَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً، وَقَالَ: اعْرِفْ عَدَدَهَا وَوِعَاءَهَا وَوِكَاءَهَا"، زَادَ: "فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَعَرَفَ عَدَدَهَا وَوِكَاءَهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: لَيْسَ يَقُولُ هَذِهِ الْكَلِمَةَ إِلَّا حَمَّادٌ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، يَعْنِي فَعَرَفَ عَدَدَهَا.

**ترجمه**: سلمه بن کهیل په خپل سند سره ددې په مثل باندې روایت کړې دې او د اعلان په باره کښې ئې وئیلې دی: " دوه کاله یا درې کاله -" او فرمائی: ددې شمیر اوکړه او ددې تیلئ او سر بند لره ښهٔ یاد ساته -" مزید وائی بیا کهٔ چرې دَ هغې مالک راغې او دَ هغې شمیر لره اوپېژنی او تیلئ او سر بند لره هم، نو هغه ته ئې حواله کړه -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دا الفاظ یعنی کهٔ چرې هغه ددې شمیر اوپېژنی " صرف دَ حماد په روایت کښې دی -

[۱۷۰۴]()[2] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ جَعْفَرٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ اللُّقَطَةِ، قَالَ: "عَرِّفْهَا سَنَةً، ثُمَّ اعْرِفْ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا، ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ"، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَضَالَّةُ الْغَنَمِ، فَقَالَ: "خُذْهَا فَإِنَّمَا هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ"، قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَضَالَّةُ الْإِبِلِ، فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى احْمَرَّتْ وَجْنَتَاهُ أَوِ احْمَرَّ وَجْهُهُ، وَقَالَ: "مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا حِذَاؤُهَا وَسِقَاؤُهَا حَتَّى يَأْتِيَهَا رَبُّهَا".

د حضرت زید بن خالد جهنی نه روایت دې چه یو کس د نبی کریم ﷺ نه د لقطې (د پریوتلی څیز) متعلق پوښتنه اوکړه نو حضور ﷺ اوفرمائیل: یو کاله پورې دَ هغې اعلان اوکړه، بیا دَ هغې سربند او تیلئ (لوښې وغیره چه په هغې کښې دا څیز وی) ښهٔ یاد کړه - او هغې لره په خپل استعمال کښې راوله - کهٔ چرې دَ هغې مالک راغې نو هغه ته ئې ورکړه - بیا هغه کس اووې اې دَ الله رسوله! دَ ګمشده چیلئ (په باره کښې څهٔ ارشاد دې؟) حضور ﷺ اوفرمائیل دې لره بوځه دا ستا دَ پاره ده یا ستا دَ رور دَ پاره یا دَ شیر مخ دَ پاره -" هغه اووې او اې دَ الله رسوله! ورک شوې اوښ؟ په دې باندې حضور ﷺ په غصه کښې راغې تردې پورې چه دَ هغوی ﷺ رخسار (مبارک) سور شو یائې اووې چه مخ (مبارک) ئې سور شو اووې فرمائیل: ستا ددې سره څهٔ غرض؟ دَ هغهٔ سره خپل پیزار دې او خپله مشکیزه ده -(دَ اوښ په خیټه کښې دَ اوبو دَ ذخیره کولو ګنجائش او صلاحیت دې) تردې پورې چه دَ هغې مالک راشی -

**تشریح: قوله**: قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په دې حدیث باندې په ائمه کښې د امام احمد رحمه الله عمل دې، د شافعیه او مالکیه هم په

---

[1]): انظر حدیث رقم: ۱۷۰۱، (تحفة الأشراف :۲۸)(صحیح)

[2]): صحیح البخاري /العلم ۲۸ (۹۱)، المساقاة ۱۲ (۲۳۷۲)، اللقطة ۲ (۲۴۲۷)، ۳ (۲۴۲۸)، ۴ (۲۴۲۹)، ۹ (۲۴۳۶)، ۱۱ (۲۴۳۸)، الطلاق ۲۲ (۵۲۹۲مرسلا)، الأدب ۷۵ (۶۱۱۲)، صحیح مسلم /اللقطة ۱ (۱۷۲۲)، سنن الترمذي /الأحکام ۳۵ (۱۳۷۲)، سنن النسائي / الکبری /اللقطة (۵۸۱۴، ۵۸۱۵، ۵۸۱۶)، سنن ابن ماجه /اللقطة ۱ (۲۵۰۴)، (تحفة الأشراف : ۳۷۶۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك /الأقضیة ۳۸ (۴۶، ۴۷)، مسند احمد (۴/۱۱۵، ۱۱۶، ۱۱۷)(صحیح)

څه درجه کښې دي، ليکن د احنافو نه په ظاهر کښې خلاف دي، په دې باندې کلام او ددې نه جواب په بحث ثالث کښې تير شوې دې.

**تشريح: قوله**: فقال مالک ولها معها حذائها و سقائها حتى ياتيها ربها:

ستا د اوښ سره څه مطلب؟ دهغه سره خو دهغه پنړې دى، (پښې او قدمونه چه هغې سره هغه کوم ځائې ته غواړې تلې شى) او هغه سره دهغه مشکيزه ده، يعنى ګيډه، چه په هغې کښې د څو څو ورځو اوبه هغه جمع کوى، قال المنذرى و اخرجه البخارى و مسلم و الترمذى والنسائى وابن ماجه(عون)

[۱۷۰۵]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، زَادَ: "سِقَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ وَتَأْكُلُ الشَّجَرَ"، وَلَمْ يَقُلْ: خُذْهَا فِي ضَالَّةِ الشَّاءِ، وَقَالَ فِي اللُّقَطَةِ: "عَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا وَإِلَّا فَشَأْنَكَ بِهَا"، وَلَمْ يَذْكُرْ: اسْتَنْفِقْ. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الثَّوْرِيُّ وَسُلَيْمَانُ بْنُ بِلَالٍ وَحَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ رَبِيعَةَ مِثْلَهُ، لَمْ يَقُولُوا: خُذْهَا.

حضرت مالک دي حديث لره هم په دې سند سره دَ مذکوره هم معنىٰ روايت کړې دې - او مزيد ئې فرمائيلې دى : "(دَ هغه سره) خپله مشکيزه ده، هغه اوبو ته اورسى اوبۀ څکى او ونې(بوټى) خورې - او دَ ګمشده چيلئ په باره کښې ئې دَ [ خُذها ] " دې لره واخله " لفظ نۀ دې ذکر کړې او دَ لقطې په باره کښې ئې اوفرمائيل : يو کاله پورې دَ هغې اعلان اوکړه - بيا کۀ چرې دَ هغې مالک راشى(نو بهتره ده) ورنه تۀ پيشه -(يعنى دَ هغې مالک جوړ شه) او دَ " خرچ کولو " ذکر ئې نۀ دې کړې -

امام ابوداودرحمه الله فرمائى چه دې لره ثورى، سليمان بن بلال، او حمّاد بن سلمه دَ ربيعه نه هم ددې په مثل باندې روايت کړې دې -

[۱۷۰۶]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ، وَهَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، عَنْ سَالِمٍ أَبِي النَّضْرِ، عَنْ بُسْرِ بْنِ سَعِيدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ: "عَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنْ جَاءَ بَاغِيهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ، وَإِلَّا فَاعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ كُلْهَا فَإِنْ جَاءَ بَاغِيهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ".

د حضرت زيد بن خالد جهنى رضي الله عنه نه روايت دې چه د رسول الله ﷺ نه د پريوتلى څيز په باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نو حضور ﷺ اوفرمائيل : يو کاله پورې دَ هغې اعلان اوکړه - " کۀ چرې دَ هغې طلب کولو والا راغې نو هغه ته ئې ورکړه، ورنه د هغې تيلئ (يا لوښې) او د هغې سربند ياد ساته، بيا هغې لره خوره(په خپل استعمال کښې ئې راوله) ددې نه پس کۀ چرې دَ هغې طلب کوونکې راشى نو هغه ته ئې حواله کړه - "

**تشريح: قوله**: والا فاعرف عفاصها ووكائها:

اوپيژنه دهغې لقطې تهيلئ لره(په کومه کښې چه دراهم وغيره ملاؤ شوې دى)، او دهغې غوټې لره(د کومې په ذريعې سره چه د هميانئ خولۀ تړلې شى)

[1]): انظر ما قبله،(تحفة الأشراف:۳۷۶۳)(صحيح)

[2]): صحيح مسلم/اللقطة ۱(۱۷۲۲)، سنن الترمذي/الأحكام ۳۵(۱۳۷۳)، سنن النسائي/الكبرى(۵۸۱۱)، سنن ابن ماجه/اللقطة ۱(۵۰۷)،(تحفة الأشراف:۳۷۴۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴/۱۱۶، ۵/۱۹۳)(صحيح)

[١٧٠٧]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَفْصٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ طَهْمَانَ، عَنْ عَبَّادِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يَزِيدَ، عَنْ أَبِيهِ يَزِيدَ مَوْلَى الْمُنْبَعِثِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ، أَنَّهُ قَالَ: سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ نَحْوَ حَدِيثِ رَبِيعَةَ، قَالَ: وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ: "تُعَرِّفُهَا حَوْلًا فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا دَفَعْتَهَا إِلَيْهِ وَإِلَّا عَرَفْتَ وِكَاءَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ أَفِضْهَا فِي مَالِكَ فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ".

دَ حضرت زيد بن خالد جهنی رضی الله عنه نه روایت دې، دَ رسول الله ﷺ نه سوال اوکړې شو -او دَ ربيعه دَ حديث په مثل باندې ئې روايت اوکړو - فرمائی : دَ حضور ﷺ نه دَ پريوتلی څيز په باره کښې پوښتنه اوکړې شوه نو حضور ﷺ اوفرمائيل يو کاله پورې دَ هغې اعلان اوکړه. پس کۀ چرې دَ هغې مالک راغې نو هغه ته ئې حواله کړه - کۀ رانغې نو دَ هغې تيلئ او سربند لره ښۀ ياد ساته - او هغې لره په خپل مال کښې شامل کړه - بيا کۀ چرې دَ هغې مالک راغې نو هغه ته ئې ورکړه -"

[١٧٠٨](٢)حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ، وَرَبِيعَةَ، بِإِسْنَادِ قُتَيْبَةَ وَمَعْنَاهُ، وَزَادَ فِيهِ: "فَإِنْ جَاءَ بَاغِيهَا فَعَرَفَ عِفَاصَهَا وَعَدَدَهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ"، وَقَالَ حَمَّادٌ أَيْضًا: عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مِثْلَهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهَذِهِ الزِّيَادَةُ الَّتِي زَادَ حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ فِي حَدِيثِ سَلَمَةَ بْنِ كُهَيْلٍ وَيَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ وَعُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ وَرَبِيعَةَ: "إِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَعَرَفَ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ" لَيْسَتْ بِمَحْفُوظَةٍ، فَعَرَفَ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا، وَحَدِيثُ عُقْبَةَ بْنِ سُوَيْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَيْضًا، قَالَ: "عَرِّفْهَا سَنَةً"، وَحَدِيثُ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَيْضًا، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "عَرِّفْهَا سَنَةً".

دَ يحيی بن سعيد او دَ ربيعه نه، دَ قتيبه په سند سره ددې هم معنیٰ روايت دې - په دې کښې اضافه ده : " کۀ چرې دَ هغې تلاش کوونکې راشی او هغه ددې تيلئ ( يا لوښې) او دَ هغې شمير اوښائی نو هغه څيز هغه ته حواله کړه -" او حماد هم دَ عبيد الله بن عمر نه، هغوی دَ عمرو بن شعيب نه، هغوی دَ خپل پلار شعيب نه، هغوی دَ خپل نيکۀ( عبد الله بن عمرو بن عاص) نه او هغوی دَ نبی کريم ﷺ نه ددې په مثل باندې روايت کړې دې - امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دَ حماد بن سلمه دا اضافه کومه چه هغوی دَ سلمه بن کهيل، يحيی بن سعيد ، عبيد الله بن عمرو او دَ ربيعه په روايت کښې ذکر کړې ده " کۀ چرې دَ هغې مالک راشی او دَ هغه څيز تيلئ( يا لوښې) او دَ هغې سربند ( او نور علامات وغيره) بيان کړی نو دې لره هغه ته حواله کړه -" ( دې سند سره) دا الفاظ محفوظ نۀ دی - يعنی [ فعرف عفاصها ووکائ ها ] او دَ عقبه بن سويد حديث کوم چه دَ هغوی دَ والد صاحب نه، دَ نبی کريم ﷺ نه مروی دې چې " دَ يو کاله پورې اعلان اوکړه -" ددې نه علاوه دَ حضرت عمر رضی الله عنه په حديث کښې هم دَ نبی کريم ﷺ نه مروی دی چې دَ يو کاله پورې اعلان اوکړه -"

(١): انظر حديث رقم :(١٧٠٤)،( تحفة الأشراف :٣٧٦٣)(صحيح)

(٢): انظر حديث رقم :(١٧٠٤)، ويأتي هذا الحديث برقم(١٧١٣)،( تحفة الأشراف :٢٨، ٣٧٦٣، ٨٧٥٥، ٨٧٨٤)(صحيح)

[۱۷۰۹]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ يَعْنِي الطَّحَّانَ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ الْمَعْنَى، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي الْعَلَاءِ، عَنْ مُطَرِّفٍ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ وَجَدَ لُقَطَةً فَلْيُشْهِدْ ذَا عَدْلٍ أَوْ ذَوِي عَدْلٍ وَلَا يَكْتُمْ وَلَا يُغَيِّبْ فَإِنْ وَجَدَ صَاحِبَهَا فَلْيَرُدَّهَا عَلَيْهِ وَإِلَّا فَهُوَ مَالُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ".

حضرت عیاض بن حمار رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل: چاته چه لقطه ملاؤ شي نو هغه لره پکار دی چه یو یا دوو عادلانو لره ګواه جوړ کړي - او نۀ دې پټوی او نۀ دې غائبه وی، ، بیا کۀ چرې د هغې مالک لره اومومی نو هغه ته دې واپس کړي، اورنه دا د الله مال دې چاته چه اوغواړی نو ورکوی ئې -

**تشریح: قوله**: من وجد لقطة فليشهد ذا عدل الخ:

په اشهاد عند التقاط کښې دا د احنافو دلیل دې، و قد مر في المباحث.

**قوله**: والا فهو مال الله يؤتيه من يشاء : د احنافو او مالکیه دلیل دې، په هغې مسئله کښې، کومه چه په بحث خامس کښې تیره شوې ده.

قال المنذري واخرجه النسائي و ابن ماجه(عون)

[۱۷۱۰]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنِ ابْنِ عَجْلَانَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ؟ فَقَالَ: "مَنْ أَصَابَ بِفِيهِ مِنْ ذِي حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ، وَمَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ، وَمَنْ سَرَقَ مِنْهُ شَيْئًا بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ فَبَلَغَ ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ"، وَذَكَرَ فِي ضَالَّةِ الْإِبِلِ وَالْغَنَمِ كَمَا ذَكَرَهُ غَيْرُهُ، قَالَ: وَسُئِلَ عَنِ اللُّقَطَةِ، فَقَالَ: "مَا كَانَ مِنْهَا فِي طَرِيقِ الْمِيتَاءِ أَوِ الْقَرْيَةِ الْجَامِعَةِ فَعَرِّفْهَا سَنَةً، فَإِنْ جَاءَ طَالِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ، وَإِنْ لَمْ يَأْتِ فَهِيَ لَكَ، وَمَا كَانَ فِي الْخَرَابِ يَعْنِي فَفِيهَا وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ".

حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه بیان کوی چه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړې شو چه( په اونو باندې) د رازوړندو میوو څۀ حکم دې؟ " چا ضرورت مند کۀ په خپلې خولې سره خوړلې وی، خپل پلو( د څادر ګوټ، طرف و غیره) پورې ئې نۀ وی تړلې نو په هغه باندې هیڅ( حرج او تاوان) نشته دې - او څوک چه د هغې ځائې نه څۀ واخلی لاړ شی نو په هغه باندې دوه چنده جرمانه ده او سزا - او څوک چه ددې مخزن نه راغې او د هغې نه پس ئې غلا کړو نو کۀ چرې هغه د ډال د قیمت برابر وو نو په دې باندې به د هغه لاس کټ کیږی -" او د ورک شوی بکرئ او د اوښ په باره کښې ئې هم داسې بیان اوکړو لکه څنګه چه نورو راویانو ذکر کړې دی -او د لقطې( پریوتلې څیز) په باره کښې ترینه پوښتنه اوکړې شوه نووې فرمائیل : کوم چه تاسو ته د آباد لارو او کلو نه ملاؤ شی نو د هغې د یو کال پورې اعلان اوکړه - پس کۀ چرې د هغه تلاش کوونکې راغې نو ورته ئې حواله کړه او کۀ

[۱]: سنن النسائي / الكبري(۵۸۰۸، ۵۸۰۹)، سنن ابن ماجه /اللقطة ۲(۲۵۰۵)،( تحفة الأشراف :۱۱۰۱۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۶۲/۴)(صحيح)

[۲]: سنن الترمذي /البيوع ۵۴(۱۲۸۹)، سنن النسائي /قطع السارق ۹(۴۹۶۱)،( تحفة الأشراف :۸۷۹۸) ويأتي عند المؤلف برقم(۴۳۹۰)(حسن)

رانغي نو هغه ستا دي - او کوم چه دَ ويران او شاړ ځائي نه ملاؤ شي نو په هغې کښې او دارنګه کۀ څۀ دفينه (په زمکه کښې دفن کړې شوې څيز) ملاؤ شي، نو په هغې کښې خمس دي -" (يعنې پنځمه حصه زکات دي -)

**تشريح: قوله:** سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ فَقَالَ مَنْ أَصَابَ بِفِيهِ مِنْ ذِي حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَمَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ

**مضمون حديث :**

د نبی کريم ﷺ نه تپوس اوکړې شو دهغې ميوؤ متعلق، کومې چه په اونو باندې لګيدلې وی (يعنی هغې لره مسافر راشوکولې شی اوکه نه) نو نبی کريم ﷺ په جواب کښې اوفرمائيل: چه کوم ضرورت مند هغې لره راؤشوکوی او په خولۀ کښې واچوی، (او هلته کښې اوخوری) او د خپل لنګ په جيب کښې ئې وانه چوی، نو هيڅ حرج نشته، او کوم سړې چه راؤشوکوی، او ځان سره ئې يوسی، نو په دې صورت کښې به هغه باندې دوچند جرمانه (ضمان) وی، او سزا هم، يعنی د ضمان نه علاوه هغه ته به تعزير هم ورکولې شی (يعنی وهلې به هم شی)

**مسئله ثابته بالحديث او په دې کښې اختلاف علماء:**

مسئله داده، چه کومې ميوې د اونې نه د هوا وغيره په ذريعې سره راپريوځی، نو په لاره تلونکې هغه راؤچتولې شی، د هغې د مالکانو د طرف نه عام طور باندې اجازت وی، ليکن دچا د اونې نه ميوه شوکول او اوړل، بغير د مالک د اجازت نه، بالاتفاق ناجائز دی، ليکن په دې حديث شريف کښې ددې اجازت مذکور دې، البته دا ده، چه هم دغه ځائې کښې د ضرورت او حاجت مطابق خوړلې شی، خپل ځان سره دې نه اوړی، دې لره يا خو په دې باندې محمولولې شی، چه دا حکم په ابتداء داسلام کښې وو، بيا روستو منسوخ شو، او يا دا وئيلې شی، چه د فلا شئ عليه مطلب دادې، چه د ضرورت او مجبورئ په حالت کښې شوکولې او خوړلې شی، په دې کښې ګناه نشته، اګرچه ضمان به ورکول وی، صرف د ګناه نفی مراد ده.

**يوه بله اختلافی مسئله:**

بيا ددې نه پس چه فرمائيلې شوې دی، (چه څوک ئې ځان سره يوسی، هغه باندې دوچند ضمان دې) دا خبره د قاعده شرعيه نه خلاف ده، د شئ متلف تاوان دهغې د قيمت برابر وی، دهغې نه زيات نه وی، **قال الله تعالى وان عاقبتم فعاقبوا بمثل عوقبتم به**، ددې حديث په ظاهر باندې د حضرت عمر ﷺ عمل وو، او د ائمه اربعه نه د امام احمد بن حنبل رحمه الله هم په دې باندې عمل دې. او د جمهور علماؤ او ائمه ثلثة په نزد دا يا خو منسوخ دې، يا په زجر او توبيخ باندې محمول دې.

**قوله:** فَقَالَ مَا كَانَ مِنْهَا فِي طَرِيقِ الْمِيتَاءِ أَوِ الْقَرْيَةِ الْجَامِعَةِ فَعَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنْ جَاءَ طَالِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ وَإِنْ لَمْ يَأْتِ فَهِيَ لَكَ وَمَا كَانَ فِي الْخَرَابِ فَفِيهَا وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ

## شرح حديث :

الطريق الميتاء: روانه لار، چه په هغې باندې خلق تيريږي راتيريږي. الميتاء د اتيان نه ماخوذ دې، د حديث مطلب دادې، چه کوم څيز د داسې ځائې نه ملاؤ شي، چه آباد وي، نو ظاهر ده، چه هغه به د چا تلونکې يا راتلونکې نه غورزيدلې وي، لهذا هغه به لقطه ګڼړلې شي، او د لقطې حکم به په هغې باندې جاري کولې شي، يعنى تعريف سنة.

او کوم څيز چه په ويران غيرآباد ځائې کښې اوموندلې شي، چه هلته کښې د خلقو تګ راتګ نه وي، نو ظاهره داده، چه هغه به رکاز (يعنى خخ کړې شوې څيز) وي، چه د هغې نه خاوره بارانونو او هواګانو اوړلې وي، لهذا په هغې باندې به د رکاز حکم جاري کولې شي، يعنى تخميس "ومن سرق منه شيئا بعد ان يوويه الجرين،، دا د کتاب الحدود مسئله ده، (حد سرقه) چه دلته کښې په دې حديث کښې راغله، جرين هغه ځائې ته وئيلې شي، کوم ځائې چه کهجورې اوچولې شي، هغه ځائې عام طور باندې محفوظ وي، هلته کښې حرز موندلې شي، په خلاف د ثمر معلق نه، چه هغه غير محرز (يعنى غير محفوظ) وي، او د سرقې دپاره حرز يعنى مال محرز کيدل ضروري دي، بغير د دې نه د سرقې تعريف نه صادقيږي، ددې وجې نه هلته کښې قطع يد نه وي، يعنى کوم سړې چه د جرين نه د ميوؤ غلا اوکړي، په شرط ددې چه نصاب د سرقې ته رسي، چه ثمن المجن دې، (د ډهال د قيمت برابر) چه دهغې مصداق د جمهورو په نزد ربع دينار (درې درهمه) دې، او د احنافو په نزد يو دينار (يعنى لس درهمه) دي، نو د هغه لاس به پريکولې شي.

[۱۷۱۱] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنِ الْوَلِيدِ يَعْنِي ابْنَ كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، بِإِسْنَادِهِ، بِهَذَا قَالَ فِي ضَالَّةِ الشَّاءِ، قَالَ: "فَاجْمَعْهَا".

عمرو بن شعيب په خپل هم دې سند سره دې حديث لره روايت کړې دې او د ګمشده بکرئ په باره کښې د هغه لفظ دادې: [ فاجمعها ] " يعنى هغې لره د خپلو بکرو سره ملاؤ کړه - "

[۱۷۱۲] (۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، بِهَذَا بِإِسْنَادِهِ وَقَالَ فِي ضَالَّةِ الْغَنَمِ: "لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ لِلذِّئْبِ، خُذْهَا قَطُّ"، وَكَذَا قَالَ فِيهِ أَيُّوبُ، وَيَعْقُوبُ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فَخُذْهَا".

حضرت عمرو بن شعيب هم په دې سند سره رايت کړې دې - او د ورک شوې بکرئ په سلسله کښې ئې فرمائيلې دي : دا ستا د پاره دي يا ستا د رور د پاره يا د شير مخ دپاره، دې لره واخله او بس - او دارنګه په دې روايت کښې ايوب او يعقوب بن عطاء د عمرو بن شعيب نه، هغوى د نبى کريم ﷺ نه [ فخذها ] لفظ بيان کړې دې -

[۱۷۱۳] (۳) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهَذَا قَالَ فِي ضَالَّةِ الشَّاءِ:

(۱): سنن ابن ماجه/الحدود ۲۸(۲۵۹۶)، (تحفة الأشراف: ۸۸۱۲)(حسن)
(۲): سنن النسائي/قطع السارق ۸(۴۹۶۰)، (تحفة الأشراف: ۸۷۵۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۸۶/۲)(حسن)
(۳): انظر حديث رقم: (۱۷۰۸)، (تحفة الأشراف: ۸۷۸۴)(حسن)

"فَاجْمَعْهَا حَتَّى يَأْتِيَهَا بَاغِيهَا".

ابن اسحاق، د عمرو بن شعیب نه هغوی د خپل پلار نه، هغوی د خپل نیکهٔ (عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه) نه، هغه د نبی کریم ﷺ نه هم دا روایت کوی نو د هغوی لفظ دادي: [ فاجمعها حتی یاتیها باغیها ] دې لره د خپل مال سره ملاؤ کړه تردې پورې چه د هغې طلب کوونکې راشي -"

[ ۱۷۱٤ ]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ وَهْبٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ بُكَيْرِ بْنِ الْأَشَجِّ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ بْنِ مِقْسَمٍ حَدَّثَهُ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَجَدَ دِينَارًا فَأَتَى بِهِ فَاطِمَةَ، فَسَأَلَتْ عَنْهُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "هُوَ رِزْقُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ" فَأَكَلَ مِنْهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَكَلَ عَلِيٌّ وَفَاطِمَةُ، فَلَمَّا كَانَ بَعْدَ ذَلِكَ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ تَنْشُدُ الدِّينَارَ، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ أَدِّ الدِّينَارَ".

د حضرت ابوسعید خدری رضي الله عنه نه روایت دې چه حضرت علی رضي الله عنه ته یو دینار ملاؤ شو هغې لره ئې حضرت فاطمې رضي الله عنها ته راوړو حضرت فاطمې رضي الله عنها د هغې په باره کښې د نبی کریم ﷺ نه پوښتنه اوکړه نو حضور ﷺ اوفرمائیل: دا د الله تعالیٰ رزق دې -" چنانچه رسول الله ﷺ، حضرت علی رضي الله عنه او حضرت فاطمې رضي الله عنها هغې لره اوخوړلو - ددې نه پس هغوی ته یوه ښځه راغله چه هغې یو دینار لره تلاش کولو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: علی! هغه دینار لره ادا کړه -"

**تشریح: قوله:** حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ....... أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَجَدَ دِينَارًا فَأَتَى بِهِ فَاطِمَةَ رضي الله عنها

## د حضرت علی رضي الله عنه د لقطې موندلو قصه:

د حدیث مضمون دادې، چه یو ځل حضرت علی رضي الله عنه خپل کور ته تشریف راؤړو، هلته ئې اولیدل چه حضرات حسنین (دواړه خامن ئې) ژړل، هغوی د حضرت فاطمې رضي الله عنها نه تپوس اوکړو، چه دوی ولې ژاړی؟ هغې اوفرمائیل چه د اولږې د سختئ د وجې نه ژاړی، حضرت علی رضي الله عنه په پریشانئ کښې د کور نه بهر راؤتلو، په لاره کښې ئې یو دینار اولیدو چه پروت وو، هغوی هغه دینار اوچت کړو، او هغه ئې خپل کور والا ته راؤړو، هغې ورته اوئیل چه په دې باندې لږ شان اوړهٔ راؤړه، نو حضرت علی رضي الله عنه یو یهودی دوکاندار ته لاړو، او هغه نه ئې اوړهٔ واخستل، یهودی تپوس اوکړو، چه آیا تهٔ دهغه سړی خوم ئې، چه خپل ځان ته نبی وائی، هغوی ورته اوفرمائیل: چه او، په دې باندې یهودی اوئیل، چه واخله دا خپل دینار، او دا اوړهٔ هسې کور ته یوسه، (تاته هدیه ده) علی رضي الله عنه هغه اوړهٔ کور ته راوړل، خپل کور والا ته ئې د یهودی خبره بیان کړه، بیا ورته هغې اوئیل چه اوس په دې کښې د یو درهم غوښه راؤړه، نو علی رضي الله عنه قصاب ته لاړو، او د یو درهم غوښه ئې واخستله، او دهغې یو درهم په بدله کښې ئې هغه دینار ګانړه کیخودو، او غوښه ئې راؤړه، فاطمې رضي الله عنها اوړهٔ واغرل، او غوښه ئې په کټوئ کښې واچوله، او په نغری ئې کیخودله، او نبی کریم ﷺ ئې

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٤٤٣) (حسن)

هم راؤغوختلو، نبی کریم ﷺ چه کله تشریف راؤړو، نو فاطمې رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته عرض اوکړو، چه اول تاسو ددې قصه واورئ، دهغې نه پس که تاسو اجازت راکوئ، نو مونږ به اوخورو، ګنې نه، نبی کریم ﷺ ټوله قصه اوریدلو نه پس اوفرمائیل: کلوا باسم الله، نو ټول کیناستل، او روټئ ئې اوخوړه، په دغې دوران کښې یو غلام (هلک) د خدائې او رسول په نوم باندې سوال کولو دپاره راغلو، چه که چا زما دینار اوچت کړې وی، نو ماته دې راکړی، نبی کریم ﷺ هغه هلک راؤغوختلو، او دهغه نه ئې د دینار متعلق تپوس اوکړو، دهغه خبره اوریدلو نه پس نبی کریم ﷺ علی ته اوفرمائیل: اې علی! قصاب ته لاړ شه، او ورته اوایه، چه هغه دینار چه تاسره د رهن په طور باندې ما ایخودلې دې، هغه راکړه، او ستا هغه درهم زما په ذمه دې، نو حضرت علی رضی الله عنه هغه دینار راؤړو، او هغه هلک ته ئې ورکړو، ددې قصې په یو بل طریق کښې داسې دی، چه څو ؤرځې پس یوه ښځه خپل دینار تلاش کولو دپاره راغله، نو نبی کریم ﷺ حضرت علی ته حکم ورکړو، چه دې ته خپل دینار ورکړه.

## په دې قصه باندې کلام من حیث الفقه او توجیهات:

په دې قصه کښې یو اشکال خو عام دې، د ټولو مذاهبو په اعتبار سره، هغه اشکال دادې، چه دلته کښې ددې لقطې تعریف ولې اونه کړې شو، دویم اشکال د احنافو د مسلک په اعتبار سره دې، هغه دادې، چه د احنافو په نزد د لقطې حکم تصدق دې، د غنی دپاره دهغې نه فائده اخستل جائز نه دی، او د هاشمی دپاره هم جائز نه دی، حالانکه دې لقطې لره هاشمی (علی و فاطمه رضی الله عنهما) بلکه سید الهاشمین ﷺ اوخوړلو، ددې اشکال مختلف جوابونه کړې شوې دی، حضرت په بذل المجهود کښې په دې باندې تفصیلی کلام فرمائیلې دې، مونږ دهغې خلاصه دلته کښې لیکلو.

(۱) حافظ منذری رحمه الله فرمائي چه ددې لقطې اطلاع حضرت علی رضی الله عنه نبی کریم ﷺ ته د هغوی په مجلس کښې ورکړې وه، دا فی الجمله تعریف شو، د تعریف دپاره الفاظ متعین نه دی، چه دهغې نه بغیر تعریف معتبر نه وی.

(۲) علامه زیلعی فرمائي دا روایت په مصنف عبد الرزاق کښې هم شته، په هغې کښې تعریف مذکور دې، هلته کښې داسې دی، فاتی النبی (صلی الله علیه وسلم) فقال عرفه ثلثة ایام قال فعرفه ثلثة ایام فلم یجد من یعرفه الخ.

(۳) امام بیهقی فرمائي دا حدیث ضعیف دې، بعضې راویان ددې ضعیف او بعضې مجهول دی، او په دې کښې اضطراب دې، په یو روایت کښې دی چه ناشد (تلاش کونکې) یو غلام وو، او په بل روایت کښې دی، چه هغه یوه زنانه وه، او په یو طریق کښې داسې دی، چه څو ؤرځې پس ناشد راغلو، او په بعضو کښې دی، چه هم په دغه ؤرځ په کومه ؤرځ چه دا واقعه اوشوه، ناشد راغلو، او دا حدیث د احادیث صحیحه سره معارض دې، چه په هغې کښې د تعریف لقطه حکم دې، لهذا ددې حدیث به اعتبار نه وی، یا به داسې وئیلې شی، چه دا په اضطرار باندې محمول دې، د اضطرار د وجې نه وقتی طور باندې

تعریف ساقط شو.

(۴) د علامه سرخسي رحمه الله توجیه یوه بله ده، هغه دا، چه دا ملقی الملک وو، (یعنی فرشتې په لاره کښې غورزولې وو) د اهل بیت د اعانت دپاره. [1]

(۵) د حضرت اقدس گنگوهي رحمه الله توجیه داده، چه د لقطې التقاط کله خو د تحفظ دپاره وي، په دې صورت کښې ید دلاقط ید دامانت وي، او کله د لقطې التقاط للانفاق (یعنی د خرچ کولو دپاره) وي، لاجل الاضطرار، هلته کښې د لاقط قبضه په لقطې باندې قبض ضمان وي، یعنی د ناشد په راتلو باندې هغه ته ضمان ورکول واجب وي، او د اضطرار د وجې نه سمدستي دهغې لقطې انفاق جائز وي، حضرت فرمائي چه دلته کښې په دې لقطې کښې دا دویم صورت وو، والله تعالی اعلم،

(٦) حضرت سهارنپوري رحمه الله په بذل المجهود کښې خپله رائې دا لیکلې ده، چه زما په نزد دا واقعه د شروع زمانې ده، کوم وخت چه د تعریف لقطې حکم نه وو راغلې، لهذا تعریف خو ددې وجې نه اونه کړې شو ،باقي داچه د بنوهاشم دپاره دهغې خوراک څرنگه جائز شو، دهغې خو صدقه کول پکار وو، ددې توجیه داده، چه داسې لأجل الاضطرار اوشو. (ملخصًا من البذل)

[۱۷۱۵] ([2]) حَدَّثَنَا الْهَيْثَمُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سَعْدِ بْنِ أَوْسٍ، عَنْ بِلَالِ بْنِ يَحْيَى الْعَبْسِيِّ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، أَنَّهُ الْتَقَطَ دِينَارًا فَاشْتَرَى بِهِ دَقِيقًا فَعَرَفَهُ صَاحِبُ الدَّقِيقِ فَرَدَّ عَلَيْهِ الدِّينَارَ فَأَخَذَهُ عَلِيٌّ وَقَطَعَ مِنْهُ قِيرَاطَيْنِ فَاشْتَرَى بِهِ لَحْمًا".

بلال بن یحیی عبسي د حضرت علي رضي الله عنه نه نقل کوي چه هغوی ته یو دینار ملاؤ شو نو هغوی په هغې سره اوړه واخستل، اوړو والا حضرت علي رضي الله عنه لره اوپېژندلو نو هغه دوی ته دینار لره واپس کړو - نو حضرت علي رضي الله عنه هغه واخستو او د هغې نه ئې دوه قیراطه کټ کړل په هغې باندې ئې غوښه واخسته -"

[۱۷۱٦] ([3]) حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُسَافِرٍ التِّنِّيسِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ يَعْقُوبَ الزَّمْعِيُّ، عَنْ أَبِي حَازِمٍ، عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَخْبَرَهُ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ دَخَلَ عَلَى فَاطِمَةَ وَحَسَنٌ وَحُسَيْنٌ يَبْكِيَانِ، فَقَالَ: مَا يُبْكِيهِمَا؟ قَالَتْ: الْجُوعُ، فَخَرَجَ عَلِيٌّ فَوَجَدَ دِينَارًا بِالسُّوقِ فَجَاءَ إِلَى فَاطِمَةَ فَأَخْبَرَهَا، فَقَالَتْ: اذْهَبْ إِلَى فُلَانٍ الْيَهُودِيِّ فَخُذْ لَنَا دَقِيقًا فَجَاءَ الْيَهُودِيَّ فَاشْتَرَى بِهِ، فَقَالَ الْيَهُودِيُّ: أَنْتَ خَتَنُ هَذَا الَّذِي يَزْعُمُ أَنَّهُ رَسُولُ اللَّهِ، قَالَ: نَعَمْ، قَالَ: فَخُذْ دِينَارَكَ وَلَكَ الدَّقِيقُ، فَخَرَجَ عَلِيٌّ حَتَّى جَاءَ فَاطِمَةَ فَأَخْبَرَهَا، فَقَالَتْ: اذْهَبْ إِلَى فُلَانٍ الْجَزَّارِ فَخُذْ لَنَا بِدِرْهَمٍ لَحْمًا فَذَهَبَ فَرَهَنَ الدِّينَارَ بِدِرْهَمِ لَحْمٍ فَجَاءَ بِهِ فَعَجَنَتْ وَنَصَبَتْ وَخَبَزَتْ وَأَرْسَلَتْ إِلَى أَبِيهَا فَجَاءَهُمْ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَذْكُرُ لَكَ فَإِنْ رَأَيْتَهُ لَنَا حَلَالًا أَكَلْنَاهُ وَأَكَلْتَ مَعَنَا مِنْ شَأْنِهِ كَذَا وَكَذَا، فَقَالَ: "كُلُوا بِاسْمِ اللَّهِ"، فَأَكَلُوا، فَبَيْنَمَا هُمْ

[1] که څوک داسې اووائي چه په روایت کښې خودادي چه دغه دینار د یو غلام یا ښځې وو چه دهغه نه غورزیدلې وو په دې وجه هغه ددې په تلاش کښې راغلې وو، ددې جواب دا کیدې شي چه ممکن ده دغسې هم شوې وي یعنی ددغه هلک نه هم دینار ورک شوې وي خودا څه ضروري ده چه دا دینار هم هغه وي.

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۲۸) (صحیح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤۷۷۰) (حسن)

مَكَانَهُمْ إِذَا غُلَامٌ يَنْشُدُ اللَّهَ وَالْإِسْلَامَ الدِّينَارَ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدُعِيَ لَهُ فَسَأَلَهُ، فَقَالَ: سَقَطَ مِنِّي فِي السُّوقِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا عَلِيُّ، اذْهَبْ إِلَى الْجَزَّارِ، فَقُلْ لَهُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَكَ: أَرْسِلْ إِلَيَّ بِالدِّينَارِ وَدِرْهَمُكَ عَلَيَّ"، فَأَرْسَلَ بِهِ فَدَفَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْهِ.

د حضرت سهل بن سعد بیان دي چه حضرت علی رضي الله عنه حضرت فاطمي رضي الله عنها ته راغي نو (وي کتل چه) حضرت حسن او حضرت حسین رضي الله عنهما ژاړي - تپوس ئي اوکړو دوی ولي ژاړي؟ پس علی رضي الله عنه (د کور نه) بهر راوتلو نو (اتفاقاً) په بازار کښې هغوی ته یو دینار چه دا پريوتلي وو ملاؤ شو نو هغه حضرت فاطمي رضي الله عنها ته راغي اورته ئي اوفرمائيل: (چه دا دینار راته داسې ملاؤ شو) هغې رضي الله عنها اووې: فلان یهودی ته لاړ شه او زمونږ د پاره اوړه راوړه - چنانچه هغه رضي الله عنه یهودی ته راغي او د هغه نه ئي اوړه واخستل - یهودی اووې: آیا ته د هغه شخص خوم ئي کوم چه خپل ځان ته رسول وائي؟ هغوی رضي الله عنه ورته اووې او-! نو هغه اووې دینار د خپل ځان سره کیږده او اوړه یوسه - حضرت علی رضي الله عنه د هغه ځائي نه لاړو او حضرت فاطمي رضي الله عنها ته ئي اوړه راوړل او ټوله خبره ئي ورته اوکړه - حضرت فاطمي رضي الله عنها اوفرمائيل: فلان قصاب ته لاړ شه او د یو درهم غوښه راوړه، چنانچه هغوی رضي الله عنه لاړل، خپل دینار ئي د هغه سره ګانړه کیخودو او د یو درهم غوښه ئي واخسته حضرت فاطمي رضي الله عنها اوړه واخل - کټوئ ئي په اور باندې کیخوده، روټئ ئي پخه کړه او خپل پلار صلی الله علیه وسلم ته ئي استاذې اولیږلو او هغوی ئي راوبللو، هغوی صلی الله علیه وسلم دوی کره تشریف راوړو، نو حضرت فاطمي رضي الله عنها اوفرمائيل: اې د الله رسوله! زهٔ تاسو ته ذکر کووم کهٔ چرې تاسو دې ته حلال اووائئ نو مونږ دې لره خورو او تاسو به هم زمونږ سره خوراک فرمائئ او ددې حال داسې دې - حضور صلی الله علیه وسلم واوریدل نو وې فرمائيل: د الله نوم واخلئ او خورئ -" چنانچه ټولو خوراک اوکړو - لا تر اوسه پورې دوی په خپل ځائي (درستخوان باندې) ناست وو چه یو هلک، د الله او د اسلام واسطه ورکوله او خپل ورک شوې دینار ئي تلاش کولو - نو رسول الله صلی الله علیه وسلم حکم اوکړو او هغه راوبللې شو - حضور صلی الله علیه وسلم د هغه نه پوښتنه اوکړه نو هغه اووې زما نه په بازار کښې چرته پريوتي دي - نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل: اې علی! هغه قصاب ته لاړ شه او هغه ته اووایه د الله رسول فرمائي: هغه دینار ماته راولیږه او ستا درهم زما په ذمه باندې دي -" چنانچه هغه دینار راولیږلو - بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم هغې دینار لره دې هلک ته حواله کړو -

[۱۷۱۷] (1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ شُعَيْبٍ، عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ الْمَكِّيِّ، أَنَّهُ حَدَّثَهُ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "رَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَصَا وَالسَّوْطِ وَالْحَبْلِ وَأَشْبَاهِهِ يَلْتَقِطُهُ الرَّجُلُ يَنْتَفِعُ بِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ النُّعْمَانُ بْنُ عَبْدِ السَّلَامِ، عَنِ الْمُغِيرَةِ أَبِي سَلَمَةَ، بِإِسْنَادِهِ، وَرَوَاهُ شَبَابَةُ، عَنْ مُغِيرَةَ بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: كَانُوا لَمْ يَذْكُرُوا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روایت دې، فرمائي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د امسا،

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۹٦٦) (ضعيف)

رسئ، کوړې، او ددې قسم څیزونو دَ اوچتولو رخصت راکړې وو چه انسان دې ددې نه فائده اوچته کړي -"

امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې لره نعمان بن عبد السلام دَ مغیره( بن مسلم) ابو سلمه نه په خپل سند سره روایت کړې دې - او شبابه دَ مغیره بن مسلم نه، هغوی دَ ابو الزبیر نه، هغوی دَ جابر نه روایت کړې دې -( وائی چه دې حضراتو به دَ امسا، رسئ، کوړې( چابک) وغیره څیزونو په اوچتولو کښې څۀ حرج نۀ ګڼړلو -)او دَ نبی کریم ﷺ ذکر ئې نۀ دې کړې -( موقوف ئې بیان کړې دې) -

**تشریح: قوله**: عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ رَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَصَا وَالسَّوْطِ وَالْحَبْلِ وَأَشْبَاهِهِ يَلْتَقِطُهُ الرَّجُلُ يَنْتَفِعُ بِهِ

**شرح حدیث**:

مطلب دادې، چه محقرات اشیاء یعنی معمولی څیزونه، چه دهغې باره کښې ظن غالب دا وی، چه هغې لره څوک تلاش کوی نه، د داسې څیزونو التقاط جائز دې، او د تعریف حاجت نشته، بلکه دهغې نه انتفاع جائز ده.(بذل عن مبسوط السرخسي)

[۱۷۱۸](۱) حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مُسْلِمٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ أَحْسَبُهُ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "ضَالَّةُ الْإِبِلِ الْمَكْتُومَةُ غَرَامَتُهَا وَمِثْلُهَا مَعَهَا".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : دَ ورک شوی اوښ نیولو والا کۀ پټ کړی نو په هغه باندې جرمانه ده او( مزید) دَ هغې سره دَ هغې مثل هم -"

ضَالَّةُ الْإِبِلِ الْمَكْتُومَةُ غَرَامَتُهَا وَمِثْلُهَا مَعَهَا

یعنی کوم سړې چه د چا ورک شوې اوښ اونیسی او پټ ئې کړی،(دهغې تعریف نه کوی) نو د داسې سړی نه به دوچند ضمان اخستلې شی، ددې حدیث نظیر ددې نه مخکښې نزدې تیر شوې دې، دهغې توجیه هم هلته تیره شوې ده،

[۱۷۱۹](۲) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ مَوْهَبٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي عَمْرٌو، عَنْ بُكَيْرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حَاطِبٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنْ لُقَطَةِ الْحَاجِّ". قَالَ أَحْمَدُ: قَالَ ابْنُ وَهْبٍ: يَعْنِي فِي لُقَطَةِ الْحَاجِّ يَتْرُكُهَا حَتَّى يَجِدَهَا صَاحِبُهَا، قَالَ ابْنُ مَوْهَبٍ: عَنْ عَمْرٍو.

دَ حضرت عبد الرحمن بن عثمان تیمی رضی الله عنه بیان دې چه رسول الله ﷺ دَ حاجیانو د لقطې( پریوتلی څیز) دَ اوچتولو نه منع فرمائیلې ده - احمد روایت کړې دې چه ابن وهب وئیلې دی " دَ حاجی څیز لره دې پریږدی تردې پورې چه دَ هغې مالک هغې لره بیا مومی - " ابن موهب په(خپل سند کښې) عن عمرو وئیلې دی -( اخبرنی عمرو ئې نۀ دی وئیلی -)

(۱): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف:١٤٢٥١)(صحيح)

(۲): م /اللقطة ١(١٧٢٤)، سنن النسائي/ الكبرى/ اللقطة(٥٨٠٥)،( تحفة الأشراف :٩٧٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٩٩/٣)(صحيح)

نَهَى عَنْ لُقَطَةِ الْحَاجِّ په دې باندې کلام مفصل په ابتدائی مباحثو کښې تیر شوې دې،

[۱۷۲۰] (¹) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ أَبِي حَيَّانَ التَّيْمِيِّ، عَنِ الْمُنْذِرِ بْنِ جَرِيرٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ جَرِيرٍ بِالْبَوَازِيجِ فَجَاءَ الرَّاعِي بِالْبَقَرِ وَفِيهَا بَقَرَةٌ لَيْسَتْ مِنْهَا، فَقَالَ لَهُ جَرِيرٌ: مَا هَذِهِ؟ قَالَ: لَحِقَتْ بِالْبَقَرِ لَا نَدْرِي لِمَنْ هِيَ، فَقَالَ جَرِيرٌ: أَخْرِجُوهَا، فَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "لَا يَأْوِي الضَّالَّةَ إِلَّا ضَالٌّ".

منذر بن جریر وائی چه زۀ د خپل پلار جریر (بن عبد الله البجلی رضی الله عنه) سره په مقام بوازیج کښې وم چه یو شپونکی غواګانې راوستلې - او په هغې کښې یوه غوا د هغه نۀ وه - حضرت جریر رضی الله عنه تپوس اوکړو دا څۀ دی؟ هغه اووې: پس د غواګانو سره یو ځائې شوې ده - مونږ ته معلومه نۀ ده چه د چا ده - نو حضرت جریر رضی الله عنه اوفرمائیل: دې لره جُدا کړه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې دی: "ورک شوې څیز نۀ اخلی مګر [ضال] "ګمراه انسان-"

**تشریح: قوله:** لَا يَأْوِي الضَّالَّةَ إِلَّا ضَالٌّ

## شرح حدیث:

ورک شوې څاروی ته ځائې هغه څوک ورکوی چه خپله ورک شوې وی، دا وعید مطلقا نه دې، بلکه مقید دې په ترک دتعریف سره، دا حدیث په صحیح مسلم کښې هم شته، هلته کښې دا زیاتوالې دې، مالم یعرفها په دې زیاتوالې سره اشکال حل کیږی. والله سبحانه و تعالی اعلم بالصواب و هذا آخر کتاب اللقطة فلله الحمد.

اللهم تقبل منا کما تقبلت من عبادک الصالحین واجعله خالصا لوجهک الکریم

بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب المناسك

## د حج اعمال او دَ هغې احکام او مسائل

### ابتدائی مباحث:

دلته کښې څو امور قابل ذکر دی.(۱) ترتیب الکتب،(۲) د لفظ مناسک او حج لغوی تحقیق او شرعی معنی(۳) بدء الحج یعنی د حج د فرضیت کال(۴) د استطاعة الی الحج تفسیر، چه د حج د فرضیت دپاره شرط دې،(۵) د حج وجوب علی الفور دې او که علی التراخی(۶) د حضور اقدس صلی الله علیه وسلم د حج د تاخیر سبب وهلی وجد التاخیر؟(۷) آیا حج ددې امت په خصائصو کښې دې، یا د امم سابقه په حق کښې هم حج فرض وو(۸) د حضور صلی الله علیه وسلم د هجرت الی المدینه نه مخکښې د حجونو تعداد

### بحث اول: ترتیب الکتاب

د صلوة او زکوة په مینځ کښې ترتیب او په دې کښې د فقهاؤ او محدثینو طرز عمل د کتاب الزکوة په شروع کښې بیان شوې دې، اوس دوه باقی دی، یعنی صوم او حج، په دې دواړو کښې ترتیب څرنګه دې؟ اکثر فقهاء صوم لره په حج باندې مقدم کوی، او د محدثینو طرز

¹): سنن النسائي/الكبري(۵۷۹۹)، سنن ابن ماجه/اللقطة ۱(۲۵۰۳)،( تحفة الأشراف :۳۲۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۶۰/۴، ۳۶۲)(صحیح)

مختلف دي، بعض بلکه اکثر صوم لره مقدم کوی په حج باندې، لکه مؤطاامام مالک رحمه الله، صحیح مسلم او ترمذی، دغه شان په مشکوة او سنن بیهقی کښې صوم مقدم دې په حج باندې، او هم داسې په نسائی او ابن ماجه کښې دی، بلکه په هغې کښې خو صوم په زکوة باندې هم مقدم دې، کما تقدم فی مبداء کتاب الزکوة، البته د صحیح بخاری نسخې مختلفې دی، کما قال الحافظ په بعضو کښې صوم مقدم دې، او په بعضو کښې حج مقدم دې، لیکن د بخاری زمونږ په نسخو کښې حج مقدم دې په صوم باندې، او په سنن ابوداؤد کښې هم حج مقدم دې په صوم باندې، [1] او د هر یو دپاره یوه وجه ده.

(و لکل وجهة هو مولیها) که تقدیم الحج لره واخستلې شی (کما فی البخاری و سنن ابی داؤد) نو دهغې حکمت ئې دا لیکلې دې، چه چونکه عبادات په درې قسمه دی، (۱) صرف بدنیه (۲) صرف مالیه (۳) بدنیه او مالیه مشترک، پس په دې ترتیب سره مصنف ذکر کړې دې، اول بدنیه (صلوة) بیا مالیه (زکوة) ددې نه پس مشترک (حج) او صوم اګر چه د صلوة پشان عبادت بدنیه دې، لیکن چونکه هغه د تروک نه دې، یعنی دهغې تعریف عدمی دې، د څه افعالو د پریخودلو نوم صوم دې، [2] ددې وجې نه هغه ئې مؤخر کړو.

او که تقدیم دصوم لره واخستلې شی، نو دا به وئیلې شی، چه چونکه صلوة، زکوة او صیام درې واړه د قبیلې د مفرد نه دی، او حج مرکب دې، او د مرکب وجود او تحقق د اجزاؤ د وجود نه پس وی، ددې وجې نه هغه ئې مؤخر کړو، والله تعالی اعلم.

**بحث ثانی : (د حج لغوی معنی)**

(د حج لغوی معنی) لیکن مصنف عنوان د کتاب الحج وضع کړې نه دې، بلکه کتاب المناسک ئې وضع کړې دې، ددې وجې نه د دواړو معنی لیکلې شی، په صحیح مسلم کښې خو عنوانات شته نه، او د بخاری نسخې مختلفې دی، په هندی نسخو کښې المناسک دې، په نسائی او ابن ماجه کښې هم المناسک دې، البته په ترمذی شریف کښې عنوان کتاب الحج دې.

**مناسک:**

د منسک (بکسر السین و فتحها) جمع ده، منسک مصدر میمی دې، په معنی د نسک او عبادت، او ظرف زمان او مکان په معنی د متعبد دواړه کیدې شی، د نسک معنی عبادت راځی، او ناسک په معنی د عابد، د مناسک استعمال په امور حج او افعال حج کښې کیږی، نسک ینسک نسکا، (بروزن رشدا) ددې معنی ذبح هم راځی، ددې وجې نه منسک بمعنی مذبح او نسیکه بمعنی ذبیحه استعمالیږی.

---

[1] **فائده:** په سنن ابی داؤد کښې ترتیب داسې دې چه د زکوة نه پس حج، ددې نه پس ددې نه پس النکاح والطلاق، بیا ددې نه پس کتاب الصیام، اوپه سنن ابن ماجه کښې کتاب المناسک د کتاب الصوم نه پس هم متصلاً نه دې، بلکه ډیر روسته کتاب البیوع، کتاب الحدود، کتاب الفرائض، کتاب الجهاد، ددې ټولو نه د فارغ کیدو نه پس کتاب المناسک دې.

[2] په خلاف د حج چه ددې تعریف وجودی دې او وجود اشرف وی د عدم نه، په دې وجه وجودی مقدم کوی په عدمی باندې.

**حج:**

بکسر الحاء و فتحها، دواړه لغت دی، (قال الله تعالى و لله على الناس حج البيت، په دې کښې هم دواړه قراءتونه دی. بیا بعضې خو دا وائی، چه بالکسر مصدر دې، او بالفتح اسم مصدر دې، وقيل بعكسه، ددې لغوی معنی قصد ده، او خلیل وائی، هو كثرة القصد الى معظم، د یو عظیم څیز بار بار قصد کول، دغه شان خطابی رحمه الله وائی، هو قصد فيه تكرار، مخکښې هغه لیکلې دی، ددې وجې نه دلته کښې دا سوال پیدا کیږی، چه آیا وجوب دحج مکرر دې، لیکن د علماؤ په دې باندې اجماع ده، چه په دې کښې تکرار نشته.
او ددې شرعی معنی ده: د بیت المحرم قصد کول چه اعمال مخصوصه سره.

**بحث ثالث: (حج کله فرض شو؟)**

د حج د فرضیت په کال کښې یوولس اقوال دی، په هغې کښې دوه شاذ او دوه زیات مشهور دی، قولین شاذین دا دی، قبل الهجرة، سنه ۱۰هجری، او باقی دوه چه مشهور اقوال دی، هغه دادی، سنه ٦هجری[۱] وهو قول الجمهور كما قال الحافظ فى الفتح و القسطلاني، دويم قول د سنه ۹ هجری دې، دا د بعضو محققينو حافظ ابن قيم او قاضی عياض قول دې، د علامه شامی رحمه الله هم دا رائې ده، هغوی فرمائي چه غالبا نبی کریم ﷺ په هغه کال حج ددې وجې نه اونه کړو، چه د حج حکم د حج دوخت تیریدو نه پس نازل شوې وو، نو ګویا چه نبی کریم ﷺ په حج کولو کښې تاخیر بالکل نه وو کړې، او هم دا رائې د ابن القیم ده، چه نبی کریم ﷺ د نزول حج نه پس سمدستی حج کړې دې، بغیر د تاخیر او تاخر نه.

**بحث رابع: (د استقامت نه څه مراد دی؟)**

د حج فرضيت عند الجمهور د ولله على الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا نه ثابت دې، او د بعضو په نزد د واتموا الحج والعمرة لله، نه دې، والاول اظهر(تفسير ابن كثير ج۱ ص۳۸۵)
په دې خبره پوهيدل پکار دی، چه د استطاعة تفسير د ډيرو صحابه کرامو نه زاد او راحله سره مروې دې، اګر چه حافظ په فتح البارى کښې د ابن المنذر نه نقل کړې دی، چه دا حديث ثابت نه دې، هغه فرمائي آيت کريمه(ولله على الناس حج البيت) عام دې، مجمل نه دې، لهذا د بيان او تفسير محتاج نه دې، حافظ وائی، چه د ابن المنذر رحمه الله مراد دادې، چه هر هغه سړې چه قادر بالبدن يا قادر بالمال وی، هغه مستطيع دې، لهذا په هغه باندې حج فرض دې، (قلت) او د حديث زاد و راحله تقاضه داده، چه د وجوب حج دار و مدار صرف په استطاعة بالمال باندې دې ليکن دا زاد و راحله والا حديث په صحاح کښې صرف په ترمذی او ابن ماجه کښې دې، دهغې نه علاوه په مستدرک حاکم او مسند احمد کښې هم دې، قال الحاکم صحيح على شرط مسلم، حافظ ابن کثير فرمائي چه دا حديث د ډيرو صحابه کرامو حضرت انس رضی الله عنه، ابن عباس رضی الله عنه، ابن مسعود رضی الله عنه، او حضرت عائشه رضی الله عنها نه مرفوعا

---

[۱] په دې کښې د ۶هـ په ځاني بعضو ۵هـ وئيلی دی څکه چه دحج ذکر د ضمام بن ثعلبه په حديث کښې هم راغلې دې، وکان قدومه ۵هـ کما قال النووي، والله تعالي أعلم.

روایت دي، لکن فی آسانیدها مقال، امام ترمذی ایجاب الحج بالزاد والراحلة مستقل باب قائم کړې دې، په هغې کښې ئې د ابن عمر رضي الله عنه هم دا حدیث ذکر کړې دې، وقال هذا حدیث حسن و ابراهیم بن یزید الخوزی قد تکلم فیه بعض اهل العلم من قبل حفظه، حافظ ابن کثیر فرمائي چه په دې کښې شک نشته، چه ددې سند ټول راویان ثقات دی، سوا د خوزی نه، لیکن ابن ابی حاتم ددې متابعت ذکر کړې دې، لهذا دا حدیث حسن یقینا دې.

**د استطاعت قسمونه چه په هغې باندې د وجوب حج مدار دې:**

ددې نه پس په دې پوهه شئ، چه فقهاء کرام هم په دې مسئله کښې مختلف دی، علامه آلوسی حنفی رحمه الله د آیت کریمه د لاندې لیکلي دی، چه د قدرت درې قسمونه دی، بالبدن، بالمال، بالبدن والمال، اول لره امام مالک رحمه الله اختیار کړې دې، او ثانی لره امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله، ددې وجې نه د هغوی په نزد په هغې زمن (شل) باندې هم حج فرض دې، چه خپل نائب لره اجرت ورکولو سره لیږلي شی، او ثالث لره اختیار فرمائیلي دې زمونږ امام اعظم رحمه الله،[1] ددې نه پس بیا د حدیث زاد و راحله لاندې هغه لیکلي دی، چه دا حدیث د امام شافعی موافق دې، او د امام مالک بالکل خلاف دې، او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي چه په دې حدیث کښې د بعضې شروط استطاعت بیان دې، که امن د طریق مفقود وی، یعنی په لاره کښې امن نه وی، نو بالاجماع حج واجب نه دې۱هـ. لهذا دا حدیث د امام صاحب خلاف نه شو.

زۀ وایم، چه د زاد و راحله والا حدیث د امام شافعی رحمه الله سره هم پوره موافق نه دې، کما قال الحافظ ګنی لازم به راشی، چه معضوب سړې به په خپله حج کولو دپاره ځی، اګر که هغه لره په سورلۍ باندې اوتړلي شی، حالانکه داسې نه ده، بلکه په دې صورت کښې هغوی د انابت قائل دی، (بل چالره نائب جوړول او لیږل) د حدیث الخثعمیه د وجې نه، لهذا د زاد و راحله والا حدیث د حدیث الخثعمیه سره د شافعیه دلیل دې، ګنی نه دې، والله تعالی اعلم.

**بحث خامس: (دحج وجوب علی الفور دې یا علی التراخی؟)**

د ائمه ثلثه، امام ابوحنیفه رحمه الله مالک رحمه الله احمد رحمه الله او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد حج واجب علی الفور دې، لهذا بعد حصول الاستطاعة په ورمبې کال مکلف باندې حج کول واجب دی، ګنی تاخیر کولو سره به ګناه ګار وی، (یفسق و ترد شهادته کمافی الطحطاوی) او د امام شافعی او امام محمد په نزد د حج وجوب علی التراخی دې، په شرط ددې چه مړ نه شی، (ددې ذمه دار به هغه په خپله وی) لهذا تاخیر سره به ګناه ګاریږی نه، لیکن که د حج نه مخکښې مړ شو، نو ګناه ګار به وی،[2] د جمهورو استدلال د ابن عباس رضي الله عنهما دهغې حدیث

---

[1] ویؤیده ما أخرجه البیهقي وغیره عن ابن عباس انه قال السبیل ان یصح بدن العبد ویکون له ثمن زاد وراحلة.اهـ.

[2] اصولیینو د حج وخت مشکل ګرځولي دې یعنی ددې نوم ئې مشکل ایخي دې، ځکه چه نه خودا من کل وجه معیار دې اونه من کل وجه ظرف دې ځکه چه کوم حضرات حج نه واجب علی الفور وائی دهغې تقاضا دا وه چه دحج وخت دهغې دپاره معیار وی چه دهغې نتیجه دا کیدل پکار وو چه دحج په تاخیر سره د ادا کولو په صورت کښې قضاء ورته اوونیلي شی حالانکه داسې نه ده بلکه دې ته ......۶

مرفوع نه دي، کوم چه مخکښې په متن کښې راروان دي، من اراد الحج فليتعجل، او د دويم فريق دليل د حضور ﷺ فعل دي، نبی کريم ﷺ په تاخير سره په سنه ۱۰ هجری کښې حج فرمائيلې وو، ددې جواب په بحث سادس کښې راروان دي.

**بحث سادس: (حضورپاک ﷺ د حج د تاخير سبب)**

دا بحث په بحث سابق باندې متفرع دې، ځکه چه هر کله دا ثابته شوه، چه عند الجمهور د حج فرضيت علی الفور دې، او دا هم چه د حج فرضيت دهغوی په نزد سنه ۲ هجری کښې شوې وو، نو بيا نبی کريم ﷺ سنه ۱۰ هجری پورې دومره تاخير په څه مصلحت باندې اوفرمائيلو، شيخ ابن الهمام خو ددې وجه دا ليکلې ده، چه د حج فرضيت او په هغې کښې تعجيل د امت په حق کښې ددې وجې نه ضروری ګرزولې شوې دې، چه چرته حج فوت نه شی، د مرګ او ژوند او د عوارضو هيڅ پته نه لګی، چه کله څه عذر پيښ شی، ليکن د نبی کريم ﷺ په تاخير کښې د فوات خطره نه وه، ځکه چه نبی کريم ﷺ ته دخپل ځان باره کښې دا علم وو، چه هغوی به نور هم ژوندې وی، تردې پورې چه حج اوکړی، په هغې کښې به د تبليغ دين تکميل فرمائي،

او ملا علی قاری رحمه الله وغيره يو بل مصلحت ليکلې دې، هغه دا چه سنه ۲ ه او سنه ۷ه کښې خو نبی کريم ﷺ ددې وجې نه حج اونه کړې شو، چه تر هغه وخت پورې مکه مکرمه فتح نه وه، او په سنه ۸ ه کښې د نسئ په وجه ادا نه کړې شو، البته هغوی عتاب بن اسيد لره د مسلمانانو د حج کولو دپاره امير حج مقرر کړې وو، او په سنه ۹ه کښې ئې غالبا ددې وجې نه اونه کړو، چه اوسه پورې مشرکينو د بيت الله شريف حج کولو، او هغوی به جامې ويستلې او په بربنډه به ئې حج کولو، نبی کريم ﷺ دا خوښ نه کړو، چه په دې حالت کښې د مشرکينو سره يو ځائې حج اوکړی، ددې وجې نه نبی کريم ﷺ په سنه ۹ه کښې صديق اکبر اوليږلو، دې دپاره چه هغوی هلته کښې لاړ شی، او اعلان اوکړی، چه راتلونکې کال به هيڅ يو مشرک داسې حج نه کوی، دغه شان نور ضروری اعلانات د براءة عن المشرکين متعلق نبی کريم ﷺ په حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه باندې اوکړل، او د دغې انتظاماتو پوره کولو دپاره هغه کال نبی کريم ﷺ حج اونه کړو، دې دپاره چه آئنده کال مکمل انتظام سره حج اوکړی.

او بعضې حضراتو د نبی کريم ﷺ په سنه۹ه کښې حج نه کولو علت نسئ ليکلې دې، ليکن ابن رشد په مقدمات کښې ددې ترديد کړې دې،[1] کما فی الاوجز او د بعضو علماؤ

---

ـه ......ادا وائی اود واجب علی التراخي تقاضا داوه چه ددې وخت ددې دپاره ظرف وی اوپه فوت کيدو سره ګناه ګار نه وی، حالانکه داسې نه ده بلکه ګناهګاريږی په دې وجه وقت الحج ته مشکل وئيلې شوی دی چه ددې وخت نه هلته دې نه دلته، (طحطاوي علي المراقي).

[1] د هغه د کلام نه معلوميږی چه اګر چه دا صحيح ده چه هغه وخت د مشرکينو نسئ روان وو او د صديق اکبر حج فی غير وقت الحج اوشو يعنی په ذی قعده کښې خو نسئ تر هغه وخته پورې منسوخ شوې نه وو او که نسئ هغه وخت منسوخ شوی وو نو صديق اکبر ته دا مشکل وه چه هغه حج په خپل صحيح وخت کښې کړې وې علي هذا القياس، خپله رسول الله ﷺ هم که غوښتلې نو په ۹ هجری ......٢

رائي داده، چه په هغوی کښې حافظ ابن القیم او علامه شامی هم شامل دی، چه د نبی کریم ﷺ په حج کښې تاخیر مطلقا موندلې شوې نه دې، کما مر فی البحث الثالث.

**البحث السابع: (ایا حج ددې امت د خصوصیاتو نه دې؟)**

ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه په دې کښې اختلاف دې، چه حج د شرائع قدیمه نه دې، یا ددې امت د خصائصو نه دې، هغه فرمائي والاظهر الثانی، (ای الخصوصیة) او شیخ ابن حجر مکی قول اول لره اختیار کړې دې، لما ورد ما من نبی الا و حج البیت، ([1])

دغه شان منقول دی، چه حضرت آدم علیه السلام د هندوستان نه پیاده څلویښت حجونه کړې دی، په دې باندې علی قاری رحمه الله فرمائي چه دا استدلال قوی نه دې، اول خو ددې وجې نه چه دې حدیث سره خو صرف د حج مشروع کیدل ثابت شو، مفروض کیدل ثابت نه شو، دویمه دا چه خبره په امم سابقه کښې ده، نه چه په انبیاء سابقینو کښې، کیدې شی چه د تیر شوؤ انبیاؤ په حق کښې حج مشروع یا فرض وو، او دهغوی د امتونو په حق کښې فرض یا مشروع نه وو، والله تعالی اعلم، (بذل)

**البحث الثامن: (د نبی کریم ﷺ د حجونو تعداد)**

په دې باندې د ټولو اتفاق دې، چه نبی کریم ﷺ د هجرت نه پس صرف یو حج کړې دې، چه هغې ته حجة الوداع وئیلې شی، چه په سنه ۱۰ هجری کښې شوې وو، د هجرت نه مخکښې نبی کریم ﷺ څومره حجونه کړې دی، په دې کښې اختلاف دې، ابن الاثیر وائی، چه نبی کریم ﷺ به د هجرت نه مخکښې مکه مکرمه کښې د قیام په زمانه کښې هر کال حج کولو، او حاکم په صحیح سند سره د سفیان ثوری رحمه الله نه نقل کړې دی، حج قبل ان یهاجر حججا، چه نبی کریم ﷺ د هجرت نه مخکښې ډیرحجونه کړې دی، لیکن امام ترمذی په خپل سنن کښې د حضرت جابر رضی الله عنه نه نقل کړې دی، انه حج قبل ان یهاجر حجتین، چه نبی

---

ـــه ......کښې به نې د حج نسی خلاف په ذی الحجه کښې کړې وې خو اصل خبره دا ده چه په دې کال هغه حج کول نه غوښتل د یو بل مصلحت د وجې نه (اختلاط المشرکین وغیره) لا اجل النسئ. اهـ اصل کښې دا مسئله د علماء کرامو ترمینځه اختلافي ده چه د صدیق اکبر حج په ذی الحجه کښې شوې وو یا د نسی د وجې نه په ذی قعده کښې دا مسئله د حدیث شارحینو د دې حدیث د لاندې لیکلې ده چه په هغې کښې دی چه رسول الله ﷺ په یوم النحر کښې خطبه ورکړه چه په هغې کښې نې اوفرمائیل: ان الزمان قد استدار کهیئة یوم خلق الله السموات والارض الخ ... چه زمانه واپس خپل حالت ته راغله، د دې نه په ظاهره کښې هم دا معلومیږی چه د حجة الوداع والا کال باندې د میاشتو حساب برابر شوې وو د دې نه مخکښې نه وو شوې بلکه نسی روانه وه. د لامع الدراری دریم جلد په شروع کښې ص ۳ باندې دا بحث متصرا موجود دی.

[1] یعنی هر یو نبی په خپله زمانه کښې حج اوکړو تردې چه هود علیه السلام او صالح علیه السلام هم، څنګه چه د مسند احمد په روایت کښې ددې تصریح ده کوم چه حضرت شیخ رحمه الله په جزء حجة الوداع کښې ذکر کړې دې، لیکن د درمنثور په یو روایت کښې دی: مامن نبي الا وقد حج غيء هود وصالح فانهما تشاغلا عنه لقومهما، چه حضرت هود او صالح علیهما السلام حج اونه کړې شو دوی دواړه دخپل قوم په سلسله کښې دومره مصروفه وو چه دحج موقع ورته ملاؤ نه شوه. ددې تعارض جواب دادې چه دا دویم روایت د مسند احمد د روایت مقابله نه شی کولې ضعیف دې.

کریم ﷺ هجرت نه مخکښې دوه حجونه کړې دی، او د ابن ماجه په روایت کښې دی، ثلاثا، ددې جواب دادې، چه حضرت جابر رضی اللہ عنہ د خپل علم په اعتبار سره فرمائي(بذل)
زۀ وایم، چه امام ترمذی ددې حدیث په سند باندې کلام کړې دې، او د امام بخاری رحمہ اللہ نه ئې نقل کړې دی، چه دا حدیث دغه رنګې محفوظ نه دې، بلکه دا حدیث فی الواقع مرسل دې
ابن الجوزی فرمائي چه دا خبره یقیني ده، چه نبی کریم ﷺ د هجرت نه مخکښې ډیر حجونه کړې دی، لیکن دهغې تعداد د هیچا په علم کښې نشته، سوا د الله تعالی نه.
الحمد لله ابتدائی بحثونه پوره شو، یو بحث دلته کښې بل هم دې، یعنې د حج حکم، او ددې اسرار و مصالح، په دې موضوع باندې حضرت اقدس شاه ولی الله رحمہ اللہ کلام کړې دې، چه هغې لره حضرت شیخ رحمہ اللہ په اوجز المسالک کښې نقل کړې دې، هغې طرف ته رجوع کول پکار دی. (۱)

## بَاب فَرْضِ الْحَجِّ

### باب: ۱- حج فرض دې

[۱۷۲۱](۲) حَدَّثَنَا زُهَيْرُبْنُ حَرْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، عَنْ سُفْيَانَ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سِنَانٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ الْأَقْرَعَ بْنَ حَابِسٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الْحَجُّ فِي كُلِّ سَنَةٍ أَوْ مَرَّةً وَاحِدَةً؟ قَالَ: "بَلْ مَرَّةً وَاحِدَةً فَمَنْ زَادَ فَهُوَ تَطَوُّعٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هُوَ أَبُو سِنَانٍ الدُّؤَلِيُّ، كَذَا قَالَ عَبْدُ الْجَلِيلِ بْنُ حُمَيْدٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ جَمِيعًا: عَنِ الزُّهْرِيِّ، وَقَالَ عُقَيْلٌ: عَنْ سِنَانٍ.

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ نه مروی دی چه حضرت اقرع بن حابس رضی اللہ عنہ د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو اې دَ الله رسوله ! آیا حج هر کال فرض دې یا هم یو ځل؟ حضور ﷺ اوفرمائیل نۀ - صرف یو ځل( فرض) دې او څوک چه ددې نه زیات( حجونه) اوکړی نو هغه نفل دې-
"امام ابوداود رحمہ اللہ فرمائی چه دَ حدیث راوی( ابو سنان) دا ابو سنان الدؤلی دې - عبد الجلیل بن حُمید او سلیمان بن کثیر ټول دَ زهری نه( ابو سنان) ذکر کوی صرف عُقیل " سنان " وائی -( ابو سنان نۀ وائی) -
**تشریح: قوله:** عن ابن عباس رضی اللہ عنہ ان الاقرع بن حابس رضی اللہ عنہ سا ل النبی(صلی الله علیه وسلم) فقال یا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) الحج فی کل سنة:
آیا حج هر کال فرض دې، د سوال منشاء څه ده، بعضې خو دا وائی، چه د سوال منشاء قیاس الحج علی الزکوة والصوم ده، چه دا دواړه هم هر کال واجب کیږی، زکوة عبادت مالیه دې، او

---

(۱) وفي حاشية التاج الجامع وحكمة الحج غفران الذنوب ونفي الفقر والتعارف بين الاقاليم الاسلامية والعطف علي اهل الحرمين اجابة لدعوة ابراهيم عليه السلام واجعل افئدة من الناس تهوي اليهم وتذكر البعث بالتجرد من ملابسهم وتذاكر الوقوف بين يدي الله تعالي ووقوفهم بعرفة يبتهلون الي الله بالتلبية ويرجون عفوه ورضاه قال الله تعالي ان اول بيت وضع للناس للذي ببكة مباركا وهدي للعلمين فيه آيات بينت مقام ابراهيم ومن دخله كان آمنا ولله علي الناس حج البيت من استطاع اليه سبيلا، ومن كفر فان الله غني عن العلمين وقال تعالي فاذا افضتم من عرفات فاذكروالله عند المشعر الحرام واذكروه كما هداكم وان كنتم من قبله لمن الضالين ثم افيضوا من حيث افاض الناس واستغفروالله ان الله غفور رحيم.اه.
(۲): سنن النسائي/المناسك ۱(۲۶۲۱)، سنن ابن ماجه/المناسك ۲(۲۸۸۶)،( تحفة الأشراف: ۶۵۵۶)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۵۵/۱، ۲۹۰، ۳۰۱، ۳۰۳، ۳۲۳، ۳۲۵، ۳۵۲، ۳۷۰، ۳۷۱)، سنن الدارمي/الحج ۴(۱۸۲۹)(صحيح)

صوم عبادت بدنیه، او حج د دې دواړو نه مرکب دې او بعضو علماؤ د سوال منشاء دا لیکلې ده، چه په اصل کښې د حج په لغوی معنی کښې تکرار موندلې شی، (کما تقدم فی البحث الاول) ددې وجې نه دا سوال اوکړې شو. قال المنذری والحدیث اخرجه النسائی وابن ماجه. ا هـ فی نفسه دا سوال او جواب د صحیح مسلم په یو حدیث کښې هم شته، چه دهغې راوی حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې، لیکن په هغې کښې د سائل تعین نشته.

[۱۷۲۲](١) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنِ ابْنٍ لِأَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لِأَزْوَاجِهِ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ: "هَذِهِ ثُمَّ ظُهُورَ الْحُصُرِ".

د حضرت ابو واقد اللیثی رضي الله عنه نه روایت دې چه ما د رسول الله ﷺ نه واوریدل، هغوی خپلو بیبیانو ته فرمائیل: "حج بس صرف دادې، بیا (د کور) چټایانو لره لازم اونیسئ."
عن ابن الابی واقد اللیثی عن ابیه قال سمعت رسول الله (صلی الله علیه وسلم) یقول لازواجه فی حجة الوداع هذه ثم ظهور الحصر.

## شرح حدیث:

دابوواقد لیثی ځوې چه دهغه نوم واقد دې، د خپل پلار نه روایت کوی، چه نبی کریم ﷺ په حجة الوداع کښې خپلو بیبیانو رضی الله عنهن ته اوفرمائیل: هذه ثم ظهور الحصر، د هذه اشاره هغه حج طرف ته ده، کوم چه نبی کریم ﷺ د خپلو بیبیانو سره ادا کړو، او حصر د حصیر جمع ده، یعنی ددې حج نه پس اوس ستاسو دپاره مناسب د بورو شاګانې دی، یعنی سفر پریخودل او په خپلو خپلو کورنو کښې قیام، ګویا ددې نه پس نبی کریم ﷺ هغوی لره د نورو حجونو کولو نه منع کول، اوس دا چه ددې نه پس د نبی کریم ﷺ د ازواج مطهرات طرز عمل څه وو، هغوی ددې نه پس حج اوکړو او که نه، نو علماؤ لیکلې دی، چه په دې حدیث باندې حضرت سوداء رضي الله عنها او حضرت زینب رضي الله عنها پوره عمل اوکړو، ددې نه پس هغوی بل حج اونه کړو، بلکه دا ئې فرمائیل، لا تحرکنا دابة بعد رسول الله (صلی الله علیه وسلم) چه د رسول الله ﷺ نه پس به موني ته هیڅ سورلۍ حرکت نه راکوی، لیکن حضرت عائشه رضي الله عنها وغیره نورو ازواجو د نبی کریم ﷺ نه پس هم حجونه کړی دی، هغوی د دې حدیث ابوداؤ مطلب دا اخستلې دې، چه ددې نه پس په تاسو باندې حج واجب نه دې، او دا مطلب نه دی، چه تاسو ددې نه پس حج مه کوئ، او ددې مطلب تائید هغې حدیث نه کیږی، چه په هغې کښې داسې دی، چه نبی کریم ﷺ په یوه موقع د حضرت عائشه رضي الله عنها د سوال په جواب کښې اوفرمائیل: لکن افضل الجهاد الحج، چه د زنانو په حق کښې جهاد مشروع نه دې، دهغوی دپاره بهترین جهاد حج دې، خلیفه ثانی حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته په شروع کښې د ازواج مطهراتو په حج کښې تردد وو، چه کول پکار دی، او که نه، بیا وروستو هغوی اجازت ورکړو، او حضرت عثمان رضي الله عنه سره ئې هغوی حج ته اولیږل، کما فی صحیح البخاری، (بذل)

(١) تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٢١٨/٥، ٢١٩، ٣٢٤/٦) (صحيح)

## بَابٌ فِي الْمَرْأَةِ تَحُجُّ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ

### باب: ۲- هغه ښځه کومه چه دَ محرم نه بغير حج اوکړی؟

[۱۷۲۳] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ مُسْلِمَةٍ تُسَافِرُ مَسِيرَةَ لَيْلَةٍ إِلَّا وَمَعَهَا رَجُلٌ ذُو حُرْمَةٍ مِنْهَا".

حضرت ابوهريره رضی الله عنه بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: حلال نهٔ دی د ښځي د پاره چه دَ خپل محرم دَ معيت نه بغير دَ يوې شپې سفر هم اوکړی -"

[۱۷۲۴] (²) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، وَالنُّفَيْلِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنِي مَالِكٌ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ الْحَسَنُ فِي حَدِيثِهِ، عَنْ أَبِيهِ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُسَافِرَ يَوْمًا وَلَيْلَةً"، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَذْكُرِ الْقَعْنَبِيُّ وَالنُّفَيْلِيُّ، عَنْ أَبِيهِ، رَوَاهُ ابْنُ وَهْبٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ مَالِكٍ، كَمَا قَالَ الْقَعْنَبِيُّ.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه نه روايت دي چه حضور ﷺ اوفرمائيل: " کومه ښځه چه په الله او په ورځ دَ آخرت باندي ايمان لری، دَ هغي دپاره حلال نهٔ دی چه دَ يوې ورځي او يوې شپې سفر اوکړي- او دَ مذکوره بالا هم معنیٰ ئي روايت اوکړو -( يعنی دَ هغي سفر کول بغير دَ محرم نه حرام دی -) نفيلی دَ [ عن مالک ] په ځائي باندي په تحديث صراحت کولو سره [ حدثنا مالک ] وئيلي دی - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه نفيلی او قعنبی( په سند کښي دَ سعيد ابی سعيد نه ورستو) " عن ابيه " نهٔ دی وئيلی - ددي نه علاوه ابن وهب او عثمان بن عمر هم دَ حضرت مالک نه داسي روايت کړي دي لکه څنګه چه قعنبی وئيلی دی -( يعنی دَ عن ابيه نه بغير) -"

**تشريح: قوله:** ان ابا هريرة رضی الله عنه قال قال رسول الله(صلی الله عليه وسلم) لا يحل لامرأة مسلمة تسافر مسيرة ليلة الا و معها رجل ذو حرمة منها:

د احاديث الباب مضمون دادي، چه زنانه دپاره بغير د محرم يا خاوند نه سفر کول جائز نه دی، د څومره مسافت سفر جائز نه دي، په دي کښي روايات مختلف دی، چه دهغي توجيه به مونږ مخکښي بيانوو.

### مسئله ثابته بالحديث:

ائمه فقه هم په دي کښي مختلف دی، د شافعيه او حنابله په نزد خو مطلق سفر جائز نه دي، که فاصله لږه وی، اوکه ډيره وی، اوداحناف اومالکيه په نزد په دي کښي سفر شرعی معتبر دي، چه دهغي مقدار د احنافو په نزد ثلثة آيام دي، او د مالکيه په نزد يوم و ليلة.

---

(¹): صحيح مسلم/الحج ٧٤(١٣٣٩)،( تحفة الأشراف: ١٣٠٣٥، ١٤٣١٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ٤(١٠٨٨)، سنن الترمذي/الرضاع ١٥(١٦٦٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧(٢٨٩٩)، موطا امام مالك/الاستئذان ١٤(٣٧)، مسند احمد(٢/٢٣٦، ٣٤٠، ٣٤٧، ٤٢٣، ٤٣٧، ٤٤٥، ٤٩٣)(صحيح)

(²): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٢٩٦٠، ١٣٠١٠، ١٤٣١٧)، انظر حديث رقم(١٧٢٣)(صحيح)

### مسئله مترجم بها او پهٔ دې کښې مذاهب ائمه:

ددې نه پس پوهه شئ، چه په احادیث الباب کښې مطلق سفر ذکر دې، په دې اطلاق کښې د حج سفر هم شامل دې، ددې وجې نه مصنف په دې احادیثو باندې د حج المرءة ترجمة الباب قائم کړې دې، مسئله مختلف فیه ده، د احنافو او حنابله په نزد زنانه دپاره دوجوب حج دپاره محرم یا خاوند ملګرې کیدل شرط دی، ګنی په هغې باندې حج واجب نه دې، او د مالکیه او شافعیه په نزد خاوند یا بل محرم کیدل شرط نه دی، البته امن علی نفسها کیدل شرط دی، که هغه د محرم په ذریعې سره وی، یا د دیانتدارې زنانه په ذریعې سره وی، نو دا دواړه حضرات د زنانه دپاره د حج بالامینات قائل دی، د امام مالک رحمه الله په نزد خو د داسې زنانو جماعت کیدل پکار دی، ( یعنی چه څو زنانه وی) او د امام شافعی رحمه الله په نزد که صرف یوه زنانه وی، نو هم کافی ده، یعنی په دې صورت کښې هغه د دې سره حج کولې شی، لیکن واجب نه دې، او د جماعة النساء په صورت کښې په دې باندې حج واجب دې. احادیث الباب د احنافو او حنابله سره موافق دی، شافعیه وغیره ددې جواب دا ورکوی، چه ددې احادیثو تعلق د حج تطوع سره دې، د حج فرض سره نه دې.

### په مدت مسافت کښې د اختلاف روایات توجیه:

ددې نه پس په دې خبره پوهه شئ، چه په دې احادیثو کښې د سفر د مقدار مسافت په باره کښې سخت اختلاف دې، په بعضو کښې مطلق سفر ذکر دې، او په بعضو کښې د مسیرة یومین قید دې، او په بعضو کښې د ثلثة ایام، او دا ټول روایات مختلفه ددې کتاب نه علاوه په صحیحینو کښې هم دغسې دی، البته د ابوداؤد په یو روایت کښې د بریدا لفظ راغلې دې، چه د یو منزل سفر او برید د نیمې ورځې د مسافت برابر وی، شافعیه خو دا وائی، چه ممانعت د مطلق سفر دې، که طویل وی او که قصیر، او د روایاتو دا اختلاف هغوی محمول کوی، په اختلاف د سائلینو باندې، نه په تحدید باندې، یعنی دا تحدید د نبی کریم ﷺ د طرف نه ابتداء نه دې، بلکه چا چه څرنګه سوال اوکړو، نبی کریم ﷺ هغه ته هم هغسې جواب ورکړو، یو سړې د یوې ورځې د سفر باره کښې سوال اوکړو، نو نبی کریم ﷺ ورته اوفرمائیل: چه او د یوې ورځې سفر هم نشی کولې، چا د دواؤ ورځو باره کښې تپوس اوکړو، چه آیا زنانه د دواؤ ورځو سفر بغیر د محرم نه کولې شی، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل: چه نا، و هکذا، او احناف وائی، چه دا قید د تحدید په طور باندې دې، اوس هرکله چه د تحدید د مودې په روایاتو کښې اختلاف دې، کم او زیات دی، نو په دې صورت کښې کمه موده مشکوکه شوه، او اکثره موده متیقنه شوه، دهغې تقاضه داده، چه د دریو ورځو سفر خو یقینا ممنوع دې، او دهغې نه په کمه کښې منع غیر یقینی ده، لهذا متیقن لره به اختیارولې شی، والله تعالی اعلم.

[۱۷۲۵]([1]) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، عَنْ جَرِيرٍ، عَنْ سُهَيْلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: فَذَكَرَ نَحْوَهُ، إِلَّا أَنَّهُ قَالَ: "بَرِيدًا".

دَ حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مروى دى چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل :...... او دَ مذكوره بالا حديث هم معنىٰ ئې ذكر كړو، مګر دَ " بريدا " لفظ ئې وئيلي دې - يعنى دَ هيڅ مسلمان ښځې دَ پاره دَ خپل محرم نه بغير دَ يو بريد سفر هم حلال نهٔ دې -

[۱۷۲۶]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهَنَّادٌ، أَنَّ أَبَا مُعَاوِيَةَ، وَوَكِيعًا حَدَّثَاهُمْ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُسَافِرَ سَفَرًا فَوْقَ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ فَصَاعِدًا إِلَّا وَمَعَهَا أَبُوهَا أَوْ أَخُوهَا أَوْ زَوْجُهَا أَوِ ابْنُهَا أَوْ ذُو مَحْرَمٍ مِنْهَا".

دَ حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : " كومه ښځه چه په الله او په ورځ دَ آخرت باندې ايمان لوى دَ هغې دَ پاره حلال نهٔ دى، چه دَ خپل پلار، رور، خاوند، ځوى يا دَ بل كوم محرم دَ معيت نه بغير درې ورځې يا دَ هغې نه زيات سفر اوكړى"

[۱۷۲۷]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُسَافِرُ الْمَرْأَةُ ثَلَاثًا إِلَّا وَمَعَهَا ذُو مَحْرَمٍ".

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما دَ نبى كريم ﷺ نه بيان كوى چه حضور ﷺ اوفرمائيل : ښځه دې دَ خپل محرم نه بغير دَ دريو ورځو سفر نهٔ كوى -"

[۱۷۲۸]([4]) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أَحْمَدَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُرْدِفُ مَوْلَاةً لَهُ، يُقَالُ لَهَا: صَفِيَّةُ، تُسَافِرُ مَعَهُ إِلَى مَكَّةَ".

دَ حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې چه هغه به خپله وينځه دَ ځان سره كينوله او سفر به ئې كولو، دَ هغې نوم صفيه وه، هغې به دده سره دَ مكې سفر كولو -"

**تشريح: قوله**: ان ابن عمر كان يردف مولاة له،

يعنى حضرت ابن عمر رضي الله عنهما به خپل ځان سره سفر ته خپله وينزه بوتله، او په خپله سورلئ باندې به ئې شاته سوره كړه، معلومه شوه، چه د وينزې په حق كښې مولى پشان د خاوند دې، لكه څرنګه چه آزاده ښځه خپل خاوند سره سفر كولې شى، دغه شان وينزه د خپل مولى سره تلې شى، په دې كښې د زوج تخصيص نشته.

---

[1]: انظرحديث رقم :(۱۷۲۳)،( تحفة الأشراف: ۱۲۹۶۰)(شاذ)

[2]: صحيح مسلم/الحج ۷۴(۱۳۴۰)، سنن الترمذي/الرضاع ۱۵(۱۱۶۹)، سنن ابن ماجه/المناسك ۷(۲۸۹۸)،( تحفة الأشراف: ۴۰۰۴)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/فضل الصلاة في مسجد مكة والمدينة ۶(۱۱۹۷)، وجزاء الصيد ۲۶(۱۸۶۴)، والصوم ۶۷(۱۹۹۵)، مسند احمد(۵۴/۳)، سنن الدارمي/الأستئذان ۴۶(۲۷۲۰)(صحيح)

[3]: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ۴(۱۰۸۶)، صحيح مسلم/الحج ۷۴(۱۳۳۸)،( تحفة الأشراف: ۸۱۴۷)(صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود(صحيح)

## باب "لَاصَرُورَةَ" فِي الإِسْلَامِ

### باب: ۳-په اسلام کښې [صَرورة] نشته دې

دا ترجمه بلفظ الحديث ده، حديث کښې دی: لا صرورة في الاسلام.

[۱۷۲۹] () حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُوخَالِدٍ يَعْنِي سُلَيْمَانَ بْنَ حَيَّانَ الْأَحْمَرَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عُمَرَ بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَاصَرُورَةَ فِي الْإِسْلَامِ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل: په اسلام کښې "صَرورہ" نشته دې -" (چه يو کس باوجود دَ استطاعت او طاقت نه دَحج کولو نه اعراض اوکړی-)

**شرح حديث:**

علماؤ ددې دوه بلکه درې تفسيرونه ليکلې دی، (۱) صرورة يعنى الذى لم يتزوج غير وادهٔ کړې سړې، چه هغه قصداً نکاح نه وی کړې، په طريقې د تبتل او انقطاع عن الدنيا، پس د حديث مطلب دا شو، چه په اسلام کښې هيڅ يو سړی لره نکاح پريخودل جائز نه دی، ځکه چه نکاح سنت طريقه ده. او ترک نکاح رهبانيت دې، ځکه چه هر مستطيع نکاح والا کيدل پکار دی، البته که څه مانع يا عذر وی نو هغه امر آخر دې، (۲) صرورة بمعنى الذى لم يحج، يعنى هغه سړې چه هغه اوسه پورې حج نه وی کړې، په دې صورت کښې به د حديث مطلب دا وی، چه په اسلام کښې هيڅ يو سړی داسې پکار نه دې، چه هغه غير حاجی وی، بلکه هر صاحب استطاعت لره حج کول پکار دی، مصنف هم دا معنى مراد اخستلې ده، ددې وجې نه دا حديث ئې په کتاب الحج کښې راوړې دې، بعضو ددې دريمه معنى هم ليکلې ده، هغه دا چه د صرورة مصداق خو من لم يحج دې، ليکن مقصود دادې، چه په زمانه دجاهليت کښې دا سې وو، چه که يو سړی به په بل باندې جنايت اوکړو، مثلاً هغه به ئې ناحق قتل کړو، نو هغه جانی به حرم ته لاړو او هلته به ئې پناه واخستله، او که ولى الدم (يعنى د مقتول اولياؤ کښې به يو سړی) هغه سره تعرض کولو، او د انتقام اراده به ئې کوله، نو خلقو به دا وئيل، چه آې وروره! دا سړې خو صروره دې، يعنى دهٔ اوسه پورې يو حج هم نه دې کړې، لهذا دهٔ لره پريږده، چه حج اوکړی، او دهغې نه پس به کتلې شی، نو په دې حديث شريف کښې دهغې رسم جاهليت ترديد شوې دې، چه حج نه کول څه عذر معتبر نه دې، چه مانع وی د حدود او قصاص نه، والله تعالى اعلم.

په صرورة کښې چه کومه هاء ده، دا د تانيث دپاره نه ده، بلکه د مبالغې دپاره ده، ددې وجې نه په سړی او ښځه دواړو باندې ددې اطلاق کيږی، يقال رجل صرورة و امرأة صرورة، او په دې کښې يو لغت صارورة هم دې، رجل صارورة کما فى مختار الصحاح.

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦١٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣١٢/١) (ضعيف)

## باب التزود في الحج

### باب: ...... په حج کښې د لارې د توښې د راخستو تاکید

[۱۷۳۰] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ الْفُرَاتِ يَعْنِي أَبَا مَسْعُودٍ الرَّازِيَّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللهِ الْمُخَرِّمِيُّ وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا شَبَابَةُ، عَنْ وَرْقَاءَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانُوا يَحُجُّونَ وَلَا يَتَزَوَّدُونَ"، قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ: "كَانَ أَهْلُ الْيَمَنِ أَوْ نَاسٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ يَحُجُّونَ وَلَا يَتَزَوَّدُونَ، وَيَقُولُونَ: نَحْنُ الْمُتَوَكِّلُونَ، فَأَنْزَلَ اللهُ سُبْحَانَهُ: وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى سورة البقرة آية ۱۹۷" الْآيَةَ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چه خلق خو به حج ته تلل مگر د لارې توښه به ئې د ځان سره نۀ اخستله ... ابو مسعود رحمه الله فرمائي چه اهلِ یمن، یا څۀ اهلِ یمن به حج تل راتلل مگر دَ لارې توښه به ئې دَ ځان سره نۀ راوړله ... اوونیل به ئې چه مونږ متوکل خلق یو - پس الله تعالیٰ دا آیت نازل اوفرمائیلو : ﴿وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى﴾ [البقرة: ۱۹۷]} " زادِ راه (یعنی اخراجات سفر) دَ ځان سره اخلئ ددې دَ پاره چه بهترینه توښه (زادِ راه) تقویٰ (دَ سوال نه ځان بچ کول) دی -"

یعنی د حج په سفر کښې، په لاره کښې، یا هلته کښې رسیدلو سره که زاد راه (یعنی د سفر خرچه نه وی، نو دهغې انتظام او بندوبست کول جائز دی، بلکه ضروری دی، دې دپاره چه د سوال عن الناس نه بچ شی، او ددې نوبت رانشی، د حصول منافع، او د تکثیر مال دپاره تجارت کول مراد نه دی، لکه چه د حدیث الباب نه معلومیږی، چه ډیر اهل یمن به د حج دپاره راتلل، او د سفر خرچه به ئې ځان سره نه راوړه، چه مونږ د الله تعالی کور ته خو، دهغه میلمانۀ یو، هغه به راته په خپله راکوی، د دې سلسلې یو باب راروان دې، باب الكرى، ابن قدامه حنبلی رحمه الله فرمائي چه تجارة او صناعة فی الحج بالاتفاق جائز دې، زمونږ په علم کښې په دې کښې هیڅ اختلاف نشته، حضرت شیخ په حاشیه دبذل کښې د سعید بن جبیر او د ابومسلم خولانی په دې کښې اختلاف د بعضو کتابونو نه نقل فرمائیلې دې، چه دهغوی په نزد جائز نه دی، فانزل الله عزوجل و تزودوا فان خير الزاد التقوى، یعنی حج ته دتللو په وخت کښې توښه د ځان سره یوسئ، ځکه چه بهترینه توښه د سوال نه ځان بچ کول دی.

## باب التجارة في الحج

### باب: ٤- دَ حج په دوران کښې تجارت جائز دې-

[۱۷۳۱] (٢) حَدَّثَنَا يُوسُفُ بْنُ مُوسَى، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ سورة البقرة آية ۱۹۸ قَالَ: "كَانُوا لَا يَتَّجِرُونَ بِمِنًى فَأُمِرُوا بِالتِّجَارَةِ إِذَا أَفَاضُوا مِنْ عَرَفَاتٍ".

حضرت مجاهد بیان کوی چه حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنهما دا ایت کریمه تلاوت کړو :

[1]: صحيح البخاري/الحج ٦(١٥٢٣)، سنن النسائي/الكبرى/السير (٨٧٩٠)، (تحفة الأشراف: ٦١٦٦)(صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٤٢٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ١٥٠ (١٧٧٠) والبيوع ١(٢٠٥٠) وتفسير القرآن ٣٤(٢٠٩٨)(صحيح)

{لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلا مِنْ رَبِّكُمْ} " په تاسو باندې هيڅ ګناه نشته دې چه دَ خپل رب فضل تلاش کړئ -" اووې فرمائيل چه څۀ خلقو به په منیٰ کښې تجارت نۀ کولو نو هغوی ته حکم ورکړې شو چه کله تاسو دَ عرفات نه واپس شئ نو تجارت کولې شئ -"

## بَابٌ (بِلَا تَرْجَمَةٍ)

### باب --- بغير د ترجمې نه

[۱۷۳۲](1) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ مُحَمَّدُ بْنُ خَازِمٍ، عَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَمْرٍو، عَنْ مِهْرَانَ أَبِي صَفْوَانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ فَلْيَتَعَجَّلْ".

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما بيان کوی چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : څوک چه حج کول غواړی نو پکار دی چه زر تر زره ئې اوکړی -"

عن ابن عباس رضي الله عنهما قال قال رسول الله(صلى الله عليه وسلم) من اراد الحج فليتعجل، په دې باندې کلام د کتاب الحج په ابتدائی مباحثو کښې تير شوې دې.

## بَابُ الْكَرِيِّ

### باب: ٦-(دَ حج په سفر کښې) په کرائې باندې سورلی چلول

الکری بروزن الصبی خپلې سورلئ لره په کرايه باندې ورکول، بمعنی المکاری، کاری، يکاری، مکاراة، په کرايه باندې ورکول، او کری کله د مکتری په معنی کښې هم راځی،(په کرايه باندې اخستونکې) ليکن دلته کښې اوله معنی مراد ده، په دې باندې کلام من حيث الفقه په مخکښې باب کښې تير شوې دې،

[۱۷۳۳](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الْعَلَاءُ بْنُ الْمُسَيَّبِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُمَامَةَ التَّيْمِيُّ، قَالَ: كُنْتُ رَجُلًا أُكَرِّي فِي هَذَا الْوَجْهِ وَكَانَ نَاسٌ يَقُولُونَ لِي: إِنَّهُ لَيْسَ لَكَ حَجٌّ، فَلَقِيتُ ابْنَ عُمَرَ، فَقُلْتُ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، إِنِّي رَجُلٌ أُكَرِّي فِي هَذَا الْوَجْهِ وَإِنَّ نَاسًا يَقُولُونَ لِي إِنَّهُ لَيْسَ لَكَ حَجٌّ، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: أَلَيْسَ تُحْرِمُ وَتُلَبِّي وَتَطُوفُ بِالْبَيْتِ وَتُفِيضُ مِنْ عَرَفَاتٍ وَتَرْمِي الْجِمَارَ، قَالَ: قُلْتُ: بَلَى، قَالَ: فَإِنَّ لَكَ حَجًّا، جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلَهُ عَنْ مِثْلِ مَا سَأَلْتَنِي عَنْهُ، فَسَكَتَ عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يُجِبْهُ حَتَّى نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ سورة البقرة آية ۱۹۸، فَأَرْسَلَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَرَأَ عَلَيْهِ هَذِهِ الْآيَةَ، وَقَالَ: "لَكَ حَجٌّ".

حضرت ابو امامه تيمی بيان کوی چه ما به په سفر کښې د کرائۍ سورلی چلوله نو بعضې خلقو ماته اووې : " ستا حج نۀ دې -" زۀ دَ حضرت ابن عمر رضي الله عنهما سره ملاؤ شوم او دَ هغه نه مې تپوس اوکړو اې ابو عبد الرحمٰن ! زۀ په سفر کښې په کرائۍ باندې سورلی چلوم او بعضې خلق ماته وائی چه ستا حج نشته دې - نو حضرت ابن عمر رضي الله عنهما جواب ورکړو : آيا تۀ احرام نۀ تړې؟ آيا دَ بيت الله طواف نۀ کوې؟ دَ عرفات نه افاضه نۀ کوې؟ او جمرات په

(1): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٦٥٠١)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ١(٢٨٨٣)، مسند احمد(١/٢٢٥، ٣٢٣، ٣٥٥)، سنن الدارمي/الحج ١(١٨٢٥)(حسن)

(2): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٨٥٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/١٥٥)(صحيح)

کنکرو باندې نۀ اولې؟ ما اووې ولې نۀ (دا ټول کارونه کووم) هغوی اوفرمائیل : بې شکه ستا حج (صحیح) دې - یو کس د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې راغلې وو او هغه بالکل هم دا سوال کړې وو کوم چه تا زما نه اوکړو - نو رسول الله ﷺ خاموش وو او د هغې جواب ئې نۀ وو ورکړې تردې پورې چه دا آیت کریمه نازل شو : ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ﴾" په تاسو باندې هیڅ حرج (ګناه) نشته دې چه د خپل رب فضل تلاش کړئ -" نو رسول الله ﷺ هغه ته استاذې اولیږلو او په هغې باندې ئې دا آیت اولوستو اووې فرمائیل : ستا حج (صحیح) دې -

**تشریح: قوله:** کنت رجلا اکری فی هذا الوجه و کان ناس یقولون انه لیس لک حج،

د هذا الوجه نه مراد د حج سفر دې، په اصل کښې وجه وئیلې شی کار ته، او دلته کښې ددې نه مراد سفر دې، یعنی زۀ چه کله په سفر حج کښې یم، نو ورسره دا کار هم کوم، چه خپلې سورلۍ لره په کرایه باندې ورکوم، او په دې طریقې سره ګټه کوم، بعضې خلق دا ګنړی، چه ستا حج نه کیږی، (ځکه چه تۀ د حج په سفر کښې دا کار کوې) چه د حج سره منافی دې، په دې باندې حضرت ابن عمر رضی الله عنه چه څه اوفرمائیل هغه ظاهر دې، د تشریح محتاج نه دې، ددې حدیث نه معلومه شوه، چه په سفر حج کښې تجارت او کسب جائز دې، کما تقدم قریبا،

انه کان یقرأها فی المصحف، ابن عباس فی مواسم الحج په قرآن مجید کښې لوستلو، یعنی دا خبره هغوی بطور تفسیر نه ده فرمائیلې، بلکه د هغوی په قراءت کښې داسې دی.

[۱۷۳۴](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ مَسْعَدَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّاسَ فِي أَوَّلِ الْحَجِّ كَانُوا يَتَبَايَعُونَ بِمِنًى وَعَرَفَةَ وَسُوقِ ذِي الْمَجَازِ وَمَوَاسِمِ الْحَجِّ فَخَافُوا الْبَيْعَ وَهُمْ حُرُمٌ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ: لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ سورة البقرة آية ۱۹۸ فِي مَوَاسِمِ الْحَجِّ"، قَالَ: فَحَدَّثَنِي عُبَيْدُ بْنُ عُمَيْرٍ، أَنَّهُ كَانَ يَقْرَؤُهَا فِي الْمُصْحَفِ.

د حضرت عبد الله بن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه خلقو به مخکښې (قبل از اسلام) د حج په ورځو کښې په منیٰ، عرفات، سوق ذی المجاز او په ایام حج کښې تجارت کولو - (د اسلام راوړو نه پس) هغوی د احرام په حالت کښې په خرید و فروخت کښې حرج اوګنړلو نو الله تعالیٰ دې آیت لره نازل کړو : ﴿لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَبْتَغُوا فَضْلًا مِنْ رَبِّكُمْ﴾ ﴿فِي مَوَاسِمِ الْحَجِّ﴾ " په تاسو باندې هیڅ ګناه نشته دې چه په ایام حج کښې د الله تعالیٰ فضل لره تلاش کړئ -" عبید بن عمیر بیان کوی چه هغوی به د [فی مواسم الحج] د اضافې سره په مصحف کښې تلاوت کولو -

[۱۷۳۵](²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ عُمَيْرٍ، قَالَ أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ: كَلَامًا مَعْنَاهُ، أَنَّهُ مَوْلَى ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّاسَ فِي أَوَّلِ مَا كَانَ الْحَجُّ كَانُوا يَبِيعُونَ"، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ إِلَى قَوْلِهِ: "مَوَاسِمِ الْحَجِّ".

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۸۷۲)(صحیح)

²): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۵۸۷۲)(صحیح)

دَ حضرت عبد الله بن عباس ﷺ نه مروی دی چه خلقو به په مخکښنی زمانه کښي دَ حج په دوران کښي اخستل او خرڅول کول - او دَ مذکوره بالا هم معنیٰ ئې روایت کړو ... [مواسم الحج] پورې -

# بَابٌ فِي الصَّبِيِّ يَحُجُّ

## باب: ۷- وړوکي بچي کوم چه حج کوی-

[۱۷۳٦]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ كُرَيْبٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالرَّوْحَاءِ فَلَقِيَ رَكْبًا فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ، قَالَ: "مَنِ الْقَوْمُ؟" فَقَالُوا: الْمُسْلِمُونَ، فَقَالُوا: فَمَنْ أَنْتُمْ؟ قَالُوا: "رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ"، فَفَزِعَتِ امْرَأَةٌ فَأَخَذَتْ بِعَضُدِ صَبِيٍّ فَأَخْرَجَتْهُ مِنْ مِحَفَّتِهَا، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ لِهَذَا حَجٌّ؟ قَالَ: "نَعَمْ، وَلَكِ أَجْرٌ".

دَ حضرت ابن عباس ﷺ نه منقول دی چه رسول الله ﷺ په مقام روحاء باندې وو چه هغوه سره یو قافلې والا ملاؤ شو - حضور ﷺ هغوی ته سلام اوکړو او تپوس ئې ترینه اوکړو تاسو څوک ئئ؟ هغوی اووې مونږ مسلمانان یو - هغوی تپوس اوکړو تاسو څوک ئئ؟ صحابهٔ کرامو ﷺ اوفرمائیل : دا دَ الله تعالیٰ رسول دې - نو یوې ښځې زر په جلدئ سره خپل بچې دَ مېټ نه اونیولو او دَ خپل پړونی نه ئې راویستلو اووې وئیل : اې دَ الله رسوله! آیا ددهٔ دَ پاره حج شته دې؟ حضور ﷺ اوفرمائیل : هاں - او ستا دَ پاره اجر دې -

**تشریح: قوله**: قال کان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بالروحاء فلقی رکبا فسلم علیهم الخ.

### شرح حدیث :

د مکې مکرمې او د مدینې منورې په مینځ کښې چه کوم منازل دی، په هغې کښې د یو منزل نوم "روحاء" دې،(دا د مدینې نه دویم منزل دې) د حدیث مضمون دادې، چه حضور ﷺ په حجة الوداع کښې کله د سفر حج نه مدینې منورې ته واپس تشریف راؤړو، نو په لاره کښې د یوې قافلې سره د نبی کریم ﷺ ملاقات اوشو، نو نبی کریم ﷺ هغوی ته سلام اوکړو، او تپوس ئې ترې اوکړو، چه تاسو څوک یئ؟ هغوی اوئیل چه مونږ مسلمانان یو، فقال من القوم فقالوا المسلمون فقالوا فمن انتم قالوا رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بیا دغه شان هغوی هم تپوس اوکړو، چه تاسو څوک ئې؟ په دې باندې صحابه کرامو اوئیل، چه دوی رسول الله ﷺ دی، مخکښې په حدیث کښې دادی، چه په دغې قافله کښې یوه ښځه چه په خپله ډولې کښې سوره وه، اویریده،([2]) او په تلوار ئې یو ماشوم راؤویستو، او د نبی کریم ﷺ مخښې ته ئې کړو، او تپوس ئې اوکړو، چه یا رسول الله ﷺ ددهٔ حج کیږی، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل نعم و لک اجر.

دا په لاره کښې د ملاقات قصه د څه وخت ده، حج ته د تللو په وخت کښې ده، یا په واپسئ

---

[1]: صحیح مسلم/الحج ۷۲(۱۳۳٦)، سنن النسائي/المناسك ۱۵(۲٦٤۸)،( تحفة الأشراف: ٦۳۳٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۸۱(۲٤٤)، مسند احمد(۱/۲٤٤، ۲۸۸، ۳٤۳، ۳٤٤)(صحیح)

[2]: اویریده په دې وجه چه هسې نه حضور ﷺ لاړشی او دا خبره پاتې شی.

کښې؟ د نسائی په روایت کښې لفظ صدر واقع دې، چه د هغې معنی واپسی ده، دغه شان په مسند شافعی کښې لفظ د قفل دې، لیکن د حضرت ګنګوهی رحمه الله تقریر په نسائی کښې دادې، چه دا حج ته د تللو په وخت کښې قصه ده، لیکن په روایاتو کښې چه د څه تصریح ده، ظاهر خبره ده، چه ترجیح به هغې ته ورکولې شی، یو سوال دلته کښې دا پیدا کیږی، چه هر کله دا قصه د واپسئ ده، نو ظاهره ده، چه هغې خلقو به حضور ﷺ لیدلې وو، نو بیا دغه وخت هغوی ولې نبی کریم ﷺ اونه پیژندو، قاضی عیاض ددې جواب دا ورکړې دې، چه ممکن ده، د شپې وخت وی، یا که د ورځې قصه ده، نو کیدې شی، چه ددې وجه دا وی، چه هغوی تر اوسه پورې واقعی نبی کریم ﷺ نه وو لیدلې، بلکه اسلام ته داخلیدو نه پس په خپل وطن کښې مقیم وو، هجرت ئې نه وو کړې، او نن ئې په اول ځل لیدلې وی، (یعنی حج هم هغوی د نبی کریم ﷺ سره نه وی کړې) والله تعالی اعلم بالصواب.

## د حج صبی په معتبر کیدو کښې د فقهاء کرام رائې:

ددې حدیث نه معلومه شوه، چه حج الصبی معتبر دې، د هغه احرام او ټول افعال د حج معتبر دی، هغه به خپله دا ټول کارونه کوی، دا مذهب د جمهور علماؤ او د ائمه اربعه دې، لیکن د هغه دا حج به نفلی وی، د بلوغ نه پس که استطاعت ئې اوموندو، نو فرض حج به کوی، د بعضو ظواهرو په نزد بس صرف هم دا حج کافی دې، د صبی نه مراد صبی ممیز دې، که صبی غیر ممیز وی، نو د هغه احرام او افعال معتبر نه دی، بلکه د هغه ولی به د هغه د طرف نه احرام او نور افعال حج ادا کوی، لیکن په حج صبی کښې د جمهورو او د احنافو په مسلک کښې یو فرق دې، هغه دا چه د جمهورو په نزد د محظورات احرام په ارتکاب سره به کفاره او فدیه وغیره واجب وی، او د احنافو په نزد به واجب نه وی، دلته کښې دا سوال پیدا کیږی، چه عام طور باندې د حدیث شارحینو دا لیکلې دی، چه عند الحنفیه حج الصبی معتبر نه دې، آیا دا صحیح دې؟ جواب دادې، چه د هغوی خبره هم په یو اعتبار سره صحیح ده، ځکه چه یو روایت زمونږ په نزد هم دادې، لکه چه حضرت په بذل المجهود کښې د فقهاء احناف عبارتونه نقل کړې دی.

الحاصل د بعضو فقهاء احناف د کلام نه ددې معتبر کیدل، او د بعضو د کلام نه غیر معتبر کیدل معلومیږی، او د تطبیق شکل حضرت په بذل کښې دا لیکلې دې، چه کومو فقهاؤ دا لیکلې دی، چه احرام الصبی منعقد نه دې، د هغوی مراد د نفس انعقاد نفی نه ده، بلکه د لزوم انعقاد نفی مراد ده، چه د احرام نه پس د افعال حج ادا کول په هغه باندې لازم نه دی، دغه شان د محظورات احرام په ارتکاب سره کفاره او فدیه هم په هغه باندې واجب نه ده، ځکه چه صبی غیر مکلف دې، او د هغه دا حج نفلی دې، صرف د تمرین او اعتیاد د پاره دې، والله سبحانه و تعالی اعلم بالصواب.

**فائده**: حضرت شیخ رحمه الله په جزء حجة الوداع کښې د حج الصبی په باره کښې اووه فقهی او اختلافی مسائل لیکلې دی، په شروع کښې ئې خو هغه په اوجز المسالک کښې لیکلې وې، د هغې نه پس په لامع الدراری کښې، او بیا ئې د هلته نه په جزء الحج کښې نقل کړې،

حضرت شیخ رحمه الله به په درس بخاری کښې دا هم فرمائیل، چه بعضې شارحینو چه دا لیکلي دی، چه د احنافو په نزد حج الصبی معتبر نه دې، دا نقل صحیح نه دې، د احنافو په نزد حج الصبی معتبر دې، البته د محظورات احرام نه بچ کیدل زمونږ په نزد په هغه باندې ضروری نه دی.

## بَاب فِي الْمَوَاقِيتِ

### باب: ۸- دَ مواقیتو بیان (یعني دَ کوم ځائې نه چه احرام تړلې شی-)

مواقیت د میقات جمع ده، میقات د وقت نه ماخوذ دې، د څه کار دپاره چه کوم وقت متعین کړې شی، هغه دهغې میقات دې، په دې کښې نور هم وسعت او ګنجائش راؤیستلې شو، او د میقات لفظ د هغې ځائې دپاره هم استعمال کړې شو، چه د څه کار دپاره متعین او مقرر کړې شی، لهذا د میقات معنی شوه، زمان معین یا مکان معین، د حج دپاره میقات زمانی هم دې، یعنی اشهر حج، او میقات مکانی هم دې، لیکن دلته کښې دویمه معنی مراد ده، یعنی میقات مکانی، مواقیت الحج وئیلې شی، مواضع احرام ته، د مکې مکرمې نه څلور واړه طرفونو ته معین ځایونه دی، په هغې باندې بغیر د احرام نه تیریدل هغه سړی دپاره منع دی، چه دهغه قصد حرم مکه ته د داخلیدو وی.

### د احرام حقیقت:

د احرام مطلب دادې، چه یو مخصوص شکل او جامې سره د حج یا عمرې په نیت سره تلبیه وئیل، یا یو داسې عمل کول چه د تلبیې قائمقام وی، یعنی سوق هدی (په حرم کښې د قربانئ په نیت خپل ځان سره څاروی بوتلل) د حج په اسرار او حکم کښې لوئې حکمت د بیت الله شریف تعظیم دې، ددې تعظیم ابتداء د احرام په ذریعې سره د میقات نه شروع کیږی، چه بغیر ددې مخصوص شکل او ارادې نه څوک بیت الله شریف ته داخلیدې نشی، د احرام هیئت د مړی د کفن پشان دې، ګویا په دې کښې دې طرف ته اشاره ده، چه دغې سړی خپل ځان او خپل وجود فنا کړو، دهغې مالک دپاره، د چا د در د زیارت دپاره چه روان دې.

[۱۷۳۷] ([1]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "وَقَّتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ ذَا الْحُلَيْفَةِ وَلِأَهْلِ الشَّامِ الْجُحْفَةَ وَلِأَهْلِ نَجْدٍ قَرْنَ وَبَلَغَنِي أَنَّهُ وَقَّتَ لِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ".

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما نه مروی دی، فرمائی چه رسول الله ﷺ د مدینې والو د پاره "ذوالحلیفه" (موجوده آبار علی)، دَ اهل شام والو دَ پاره "جحفه" دَ اهلِ نجد والو د پاره دَ "قرن المنازل" مقامات متعین فرمائیلي وو - او ماته دا خبر هم رارسیدلې دې چه هغوی دَ اهلِ یمن والو دَ پاره "یلملم" متعین کړې وو -"

---

[1] ): صحیح البخاري/الحج ۸(۱۵۲۵)، صحیح مسلم/الحج ۲(۱۱۸۲)، سنن الترمذي/الحج ۱۷(۸۳۱)، سنن النسائي/المناسك ۱۷(۲۶۵۲)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۳(۲۹۱٤)، (تحفة الأشراف: ۸۳۲۶)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۸(۲۲)، مسند احمد(۲/٤۸، ۵۵، ۶۵)، سنن الدارمي/المناسك ۵(۱۸۳۱)(صحیح)

[۱۷۳۸]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَعَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَا: "وَقَّتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "بِمَعْنَاهُ، وَقَالَ أَحَدُهُمَا: "وَلِأَهْلِ الْيَمَنِ يَلَمْلَمَ"، وَقَالَ أَحَدُهُمَا: "أَلَمْلَمَ"، قَالَ: فَهُنَّ لَهُمْ وَلِمَنْ أَتَى عَلَيْهِنَّ مِنْ غَيْرِ أَهْلِهِنَّ مِمَّنْ كَانَ يُرِيدُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ وَمَنْ كَانَ دُونَ ذَلِكَ. قَالَ ابْنُ طَاوُسٍ: مِنْ حَيْثُ أَنْشَأَ، قَالَ: وَكَذَلِكَ حَتَّى أَهْلُ مَكَّةَ يُهِلُّونَ مِنْهَا.

حماد د عمرو بن دينارنه هغوی د طاوس نه، هغوی د ابن عباس رضي الله عنهما نه ... او ابن طاؤس (عبد الله) د خپل پلار طاؤس نه (هغوی د ابن عباس رضي الله عنهما نه) روایت کوی دي دواړو (عمرو بن دينار او عبد الله بن طاؤس) وئيلي دی : چه رسول الله ﷺ ميقات (مقامات احرام) مقرر فرمائيلي وو ددي دواړو نه يو کس اووې چه د اهل يمن د پاره يلملم او بل کس اووې الملم - حضور ﷺ اوفرمائيل : دا مقامات ددغه ځايونو د اوسيدونکو والو د پاره دی او د نورو ځايونو د هغه خلقو د پاره هم کوم چه په دې مقاماتو باندې تيريږي کوم چه د حج او د عمرې نيت لري- او کوم چه ددې نه (مکې جانب ته) مقيم وی -" ابن طاؤس اووې هغوی دې هم د دغه ځائې نه احرام اوتړی تردې پورې چه اهل مکه دې دخپل ښار او کور نه احرام اوتړي -

**تشريح: قوله:** حدثنا سليمان بن حرب نا حماد عن عمرو عن طاؤس عن ابن عباس رضي الله عنهما و عن ابن طاؤس عن ابيه قالا وقت رسول الله(صلی الله عليه وسلم)

ددې سند حاصل دادې، چه دې حديث لره حماد په دواړو طريقو سره روايت کوی،(۱) عن عمرو عن طاؤس عن ابن عباس رضي الله عنهما،(۲) عن ابن طاؤس عن ابيه، مخکښې د دواړو سندونو متن دادې، وقت رسول الله(صلی الله عليه وسلم) د اول سند په اعتبار سره حديث مسند دې، او د دويم سند په اعتبار سره مرسل دې، ځکه په دې کښې صحابی ذکر نه دې، بلکه آخرى راوی طاؤس دې.

## شرح حديث مع اختلاف ائمه :

**قوله:** فهن لهم و لمن اتی عليهن من غير اهلهن. يعنی دا مواقيت چه د کومو کومو ښهرونو والو دپاره بيان شوې دی، دهغوی دپاره خو دی، او دهغوی نه علاوه هم کوم سړې چه په دې مواقيتو کښې د يو ميقات نه تيريږی، هغه به د هغه ميقات وی، مثلا که شامی مدينې ته داخل شی، او د ذوالحليفې نه تيريږی،(لکه چه نن صبا عام طور باندې شاميان داسې کوی) نو هغه به هم د ذوالحليفې نه احرام تړی، دلته کښې دا سوال پيدا کيږی، چه که شامی په ذوالحليفې باندې تيريږی، او په ذوالحليفه کښې احرام اونه تړی، بلکه په خپل اصلی ميقات يعنی جحفه باندې احرام اوتړی، نو دا هم جائز دی، او که نه؟

**جواب:** د شافعيه رحمهم الله په نزد خو جائز نه دی،[2] که هغه داسې اوکړی، نو دم پرې

[1]: صحيح البخاري/جزاء الصيد ۱۸(۱۸۴۵)، صحيح مسلم/الحج ۲(۱۱۸۳)، سنن النسائي/الحج ۲۰(۲۶۵۵)، ۲۳(۲۶۵۸)،( تحفة الأشراف: ۵۷۳۸، ۱۸۸۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۳۸/۱، ۲۴۹)(صحيح)

[2]: امام نووی خوپه دې باندې دعلماؤ اجماع ليکلې ده په دې باندې حفظ ابن حجر وغيره دتعجب اظهار کړې دی چه په دې کښې د مالکيه اوحنيفه ؤ اختلاف مشهور دې او دغسې د بعضې شافعيه ابوثور او ابن المنذر. بيا اجمع ځنګه اوشوه.

واجبیږي، د مالکیه او احنافو په نزد جائز دی، بلکه د احنافو په نزد خپله د مدني دپاره هم جائز دی، چه هغه د ذوالحلیفه په ځائې جحفې ته لاړ شي،[۱] او هلته نه احرام اوتړي، اګر چه مکروه دی (زیلعی) لیکن د نورو ائمه په نزد دا جائز نه دی، بلکه د هغوی په نزد دادی، چه کوم سړې دخپل اصلي میقات نه تیریږي، هغه دپاره د هغه ځائې نه احرام تړل ضروري دی، هلته نه بغیر احرام تجاوز نشي کولې،

**قوله**: ممن کان یرید الحج والعمرة، په دې باندې به کلام راشي.

**قوله**: و من کان دون ذلک من حیث انشاء یعنی د آفاقی حکم خو دادې، چه د دې مواقیتو نه به احرام تړي، او کوم خلق چه میقات کښې داخل اوسیږي، یعنی د میقات او حرم په مینځ کښ (چه هغې ته حل وئیلې شي) نو هغوی چه د کوم ځائې نه سفر شروع کوي، هغه ځائې نه به احرام اوتړي، یعنی د خپل محل اقامت او مسکن نه، او دهغوی دپاره دا ضروري نه ده، چه هغه روستو لاړ شي، او د میقات نه احرام اوتړي، ددې جملې تشریح خو داده، او د جمهور مسلک هم دادې، لیکن د احنافو په نزد د هغې خلقو دپاره دا ضروري نه ده، چه هغوی دې د خپل محل اقامت نه احرام اوتړي، بلکه د حد ود حرم نه مخکښې آخر حل کښې هم احرام تړلې شي، ځکه چه د میقات نه تر حد ود حرم پورې ټوله حصه د مکان واحد په حکم کښې ده، چه هغې ته حل وئیلې شي.

## شرح حدیث مع اختلاف علماء:

حتی اهل مکة یهلون منها، یعنی داخل میقات اوسیدونکې به د خپل محل اقامت نه احرام تړي، تردې پورې چه کوم خلق د حل نه اخوا ته په حرم کښې اوسیږي، یا دهغې نه هم مخکښې په خاص مکه مکرمه کښ (ځکه چه حرم په ټوله مکه باندې محیط دې) نو هغوی به دهغه ځائې نه احرام تړي.

دا دې جملې تشریح ده، ددې نه پس په دې خبره پوهه شئ، چه په دې باندې خو د ټولو اتفاق دې، چه مکی لره د مکې نه احرام تړل پکار دی، لکه چه په دې حدیث کښې دی، لیکن سوال دادې، چه مکی دپاره داسې کول صرف اولی دی یا ضروري دی؟ جواب: په دې کښې اختلاف دې، د شافعیه په نزد د مکی احرام د مکې نه تړل واجب دی، د مکې نه بهر یعنی د حرم یا حل نه تړل جائز نه دی، ګنی دم پرې واجبیږي، او د احنافو په نزد مکی د حج احرام په مکه کښې او د مکې نه بهر د حرم په حدودو کښې تړلې شي، او د مالکیه او حنابله په نزد نه د مکې قید شته، نه د حرم، بلکه د حل نه هم تړل جائز دی، کذا فی الاوجز نقلا عن کتب الفروع.

**تنبیه**: په ظاهر کښې معلومیږي چه دا حکم عام دې، د حج او عمرې دواړو دپاره، حالانکه داسې نه ده، بلکه دا بالنسبت الی الحج دې، او په عمره کښې د مکی دپاره ضروري ده، چه هغه احرام د مکې نه بهر په حل کښې اوتړي، کما فعلت عائشة رضی الله عنها فی عمرة التنعیم بامر

---

[۱] دحضرت عائشه په باره کښې منقول دی چه هغې دحج دپاره خو احرام د ذوالحلیفه نه تړلو اوکله چه د مدیني نه عمرې دپاره تله نو د ذوالحلیفه په ځائ به ئې د جحفه نه تړلو.

النبي(صلی الله علی وسلم) و هذا عند ائمة الاربعة خلافا لبعض العلماء و منهم الحافظ ابن القيم رحمه الله

## دخول مکه بغير احرام والا بحث:

**قوله: ممن کان يريد الحج والعمرة:** مونږ وعده کړې وه، چه په دې باندې به کلام وروستو کوو، دا حديث متفق عليه دې، په صحيح بخاري او مسلم دواړو کښې دې، چه دهغې صريح مفهوم چه هغې ته منطوق وئيلې شي، دادې، چه د ميقات نه احرام تړلو حکم دهغه سړي دپاره دې، چه مکې مکرمې ته د حج يا عمرې په نيت سره داخليدل غواړي، لهذا ددې مفهوم مخالف دا شو، چه د کوم سړي اراده د حج يا عمرې نه وي، بلکه هغه مکې ته د خپل څه ضرورت نه تلل غواړي، نو هغه بغير د احرام نه ميقات ته تيريدې شي، د حضرت امام شافعي رحمه الله قول راجح دادې، که هغه حاجت متکرر وي يا غير متکرر، دويم قول دهغوی دادې، چه که هغه حاجت متکرره وي، بار بار پيښيدونکې دې، نو بيا خو تجاوز الميقات بغير احرام جائز دې، او د حاجت غير متکرره دپاره جائز نه دې، او هم دا مسلک د حنابله او مالکيه دې، او د احنافو مسلک دادې، چه د احرام نه بغير تيريدل مطلقا ناجائز دې، که هغه حاجت متکرره وي، او که غير متکرره، البته چه کوم خلق په ميقات کښې دننه اوسيږي، دهغوی دپاره جائز دی، چه که هغوی د خپل ضرورت دپاره د مکې ته داخليږي، نو بغير د احرام نه داخليدې شي، لکه خپله اهل مکه، چه که هغوی د خپل ضرورت دپاره مکې نه بهر راوځي، نو هغوی باندې مکې ته داخليدو دپاره احرام تړل ضروري نه دی، حديث الباب د شافعيه دليل، او د احنافو خلاف دې.

## د فريقينو دلائل

د جمهورو استدلال يو خو ددې حديث مفهوم مخالف دې، او دويم دليل دحضور اقدس ﷺ د فتح مکې دپاره په مکه کښې بغير د احرام نه داخليدل دی، کما في رواية مسلم والنسائي انه عليه السلام دخل مکة يوم الفتح وعليه عمامة سوداء، او په خپله په سنن ابوداؤد کښې په کتاب الجهاد کښې راروان دی چه: دخل مکة وعلی راسه مغفرة (بذل ص ۱۸ ج ۲) او دحنفيه دليل د طبراني او مصنف ابن ابي شيبه کښې دحضرت ابن عباس رضي الله عنهما مرفوع حديث دې: لا يجاوز الوقت الا باحرام،، اوپه مسند شافعي کښې د ابوالشعثاء نه روايت دې چه کوم سړې به د ميقات نه بغير د احرام نه تيريدلو ابن عباس رضی الله عنه به هغه واپس کولو.

او دحديث الباب جواب دادې چه دا استدلال بالمفهوم دې، او زمونږ استدلال د منطوق نه دې، وهو اولی من المفهوم، او د دويم دليل جواب دادې چه په خپله هم په دې حديث کښې مذکور دی نبي کريم ﷺ اوفرمائيل: انما احلت لي ساعةً من نهار،، چه په دغه ورځ د نبي کريم ﷺ دپاره لږ وخت دپاره حلال شوې وو، يعنې په هغې کښې قتال او بغير د احرام نه دخول، او يو جواب دا هم ورکړې شوې دې چه ممکن ده چه نبي کريم ﷺ په دغه وخت هم محرم وي خو ضرورةً وقتي طور باندې تغطيه د رأس مباح کړې شوې وي، خو دا لږ بعيد معلوميږي ځکه چه که هم دا خبره وه نو بيا تحلل عن الاحرام منقول کيد پکار وو، حالانکه

په روایاتو کښې ددې ذکر نشته، والله تعالی أعلم.
حضرت امام بخاری رحمه الله په دې مسئله باندې مستقل باب تړلې دې، هغه په دې مسئله کښې د امام شافعی رحمه الله سره دې، علامه قسطلانی لیکلی دی چه د شوافعو په نزد د داسې سړی دپاره دخول مکه بغیر د احرام نه جائز دې. لقوله فی حدیث ابن عباس ممن اراد الحج والعمرة، والمشهور عن الائمة الثلاثة الوجوب...الخ، حاجت متکرره او غیر متکرره سره دوی هیڅ تعرض نه دې کړې.
الحمد لله د حدیث المواقیت ضروری تشریح مع مسائل و اختلاف ائمه په ښه وضاحت سره سر ته اورسیده. والله الموفق.

[۱۷۳۹]()حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ بَهْرَامَ الْمَدَائِنِيُّ، حَدَّثَنَا الْمُعَافَى بْنُ عِمْرَانَ، عَنْ أَفْلَحَ يَعْنِي ابْنَ حُمَيْدٍ، عَنْ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "وَقَّتَ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ ذَاتَ عِرْقٍ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې، چه رسول الله ﷺ د اهلِ عراق والو د پاره د "ذات عرق" مقام متعین کړې وو -(د احرام تړلو د پاره)-

[۱۷۴۰]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَقَّتَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَهْلِ الْمَشْرِقِ الْعَقِيقَ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه مروی دی چه رسول الله ﷺ د اهلِ مشرق د پاره مقام "عقیق" مقرر کړې وو -"
عن عائشة رضي الله عنها ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) وقت لاهل العراق ذات عرق .... عن ابن عباس رضي الله عنهما قال وقت رسول الله(صلی الله علیه وسلم) لاهل المشرق الخ
تیر شوې دواړه احادیث یعنی حدیث ابن عمر رضي الله عنهما، او حدیث ابن عباس رضي الله عنهما متفق علیه دی، په بخاری او مسلم دواړو کښې شته، په هغې کښې صرف د څلورو مواقیتو ذکر دې، ذوالحلیفه، جحفه، قرن، یلملم.

### د ذات عرق توقیت د کوم طرف دپاره دې:

او د ابوداؤد په مذکوره حدیث عائشه رضي الله عنها او حدیث ابن عباس رضي الله عنهما کښې د یو پنځم میقات هم ذکر دې، یعنی ذات عرق، د اهل عراق دپاره، دا حدیث چه ذات عرق په کښې مذکور دې، د سنن روایت دې، په دغې دواړو احادیثو کښې د ابن عباس رضي الله عنهما حدیث د صحاح سته نه په ابوداؤد او ترمذی کښې دې، او عائشه رضي الله عنها والا حدیث د ابوداؤد او نسائی دې، ددې دواړو احادیثو نه معلومیږی، چه د ذات عرق توقیت خپله رسول الله ﷺ فرمائیلې دې، لیکن د صحیح بخاری په حدیث کښې تصریح ده،[۳] چه د ذات عرق توقیت د حضرت

[۱]: سنن النسائي/الحج ۱۹(۲۶۵۴)، ۲۲(۲۶۵۷)،( تحفة الأشراف: ۱۷۴۳۸)(صحيح)
[۲]: سنن الترمذي/الحج ۱۷(۸۳۲)،( تحفة الأشراف: ۶۴۴۳)(ضعيف)
[۳]، او د صحیح مسلم په یو حدیث کښې (حدیث جابر) د ذات عرق ثبوت مرفوعًا موجود دې.....۶

عمر رضي الله عنه د طرف نه دي، د هغوی په زمانه کښې چه کله عراق فتح شو، نو کوفې او بصرې والو خليفه ثاني ته عرض اوکړو، چه حضور ﷺ د اهل نجد دپاره کوم ميقات مقرر کړې دې، که مونږ هغه لار اختيار کړو (يعنی د مکې په سفر کښې) نو زمونږ دپاره ډيره مشکل ده، لهذا زمونږ دپاره مستقل ميقات مقرر کړئ، په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل چه کوم لاره ستاسو دپاره آسانه ده، په هغې لاره باندې د قرن المنازل په برابرئ کښې يو ځائې متعين کړئ، نو د حضرت عمر رضي الله عنه په رائې سره د ذات عرق توقيت په عمل کښې راغلو، بهرحال ددې اختلاف روايات په بناء باندې د علماؤ دوه جماعتونه شول، يو جماعت ومنهم الغزالي والرافعي في شرح المسند والنووی في شرح المسلم و مالک في المدونه د بخاری روايت ته ترجيح ورکوی، او وائی چه د ذات عرق توقيت د خليفه ثاني د طرف نه دې، او دويم جماعت ومنهم الحنفيه والحنابله و جمهور الشافعيه والرافعي في الشرح الصغير والنووی في شرح المهذب د سنن روايات اختيار کړې دی، او ددې نسبت ئې حضور ﷺ ته کړې دې، اودائې وئيلې دی، چه ممکن ده، حضرت عمر رضي الله عنه ته د نبی کريم ﷺ د توقيت علم نه وو، ددې وجې نه هغوی اجتهاد اوکړو، او دهغوی اجتهاد د حديث مرفوع موافق شو.

## په دوؤ احاديثو کښې رفع د تعارض:

دلته کښې يو اشکال دادې، چه د اهل عراق ميقات په حديث عائشه رضي الله عنها کښې ذات عرق مقرر کړې شوې دې، او حديث ابن عباس رضي الله عنه کښې عقيق مقرر کړې شوې دې، خطابی وائی، چه حديث عقيق اثبت دې د دويم حديث په مقابله کښې، او يا دې دا اوئيلې شی، چه په دې کښې احدهما ميقات الاستحباب دې، او دويم ميقات الوجوب، پس په دې کښې چه کوم ابعد دې، يعنی عقيق هغه ميقات الاستحباب دې، او چه کوم اقرب دې، هغه ميقات الوجوب دې، او يا دا وئيل پکار دی، چه د بعضې اهل عراق او اهل بصرې دپاره ميقات ذات عرق دې، او د بعضې اهل مدائن دپاره عقيق دې.[1] والله تعالی اعلم.

[۱۷٤١] ([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يُحَنَّسَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي سُفْيَانَ الأَخْنَسِيِّ، عَنْ جَدَّتِهِ حُكَيْمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ

---

... ليکن راوی ددې حديث په رفع کښې د تردد اظهار کړې دې راوی وائی: احسبه رفع الي النبي ﷺ، چه ددې په بناء باندې دا نه شی وئيلې کيدې چه د صحيح مسلم دحديث نه د ذات عرق ثبوت مرفوعاً دې، ليکن بعضو علماؤ ددې اصولو په لحاظ سره چه دحسبان نه مراد ظن غالب دې او ظن غالب شرعاً معتبر دې د ذات عرق مرفوعاً ثبوت د مسلم دحديث طرف ته منسوب کړې دې عنهم صاحب المشکوة.

[1] يوه توجيه ددې دا کړې شوې ده چه ذات عرق يو کلې او منزل دې چه ددې محل وقوع په شروع کښې وادی عقيق وو، روستو دا آبادی ذات عرق هلته منتقل شوه کومه چه نسبتاً مکې مکرمې ته زياته نزدې ده، لهذا په کوم روايت کښې چه ذات عرق راغلې دې هغه ددې د قديم محل په اعتبار سره دې وهما شئ واحد، خو دا توجيه ښکه صحيح نه ده چه ددې مقتضی داده چه داهل عراق اصل ميقات عقيق وی او دهغوی دپاره د ذات عرق نه احرام تړل صحيح نه وی. حالانکه دا خلاف اجماع دی.

[2]: سنن ابن ماجه /المناسک ٤٩ (۳۰۰۱، ۳۰۰۲)، (تحفة الأشراف: ۱۸۲۵۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲۹۹/٦) (ضعيف)

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنْ أَهَلَّ بِحَجَّةٍ أَوْ عُمْرَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى إِلَى الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ، أَوْ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ"، شَكَّ عَبْدُ اللهِ أَيَّتَهُمَا قَالَ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: يَرْحَمُ اللهُ وَكِيعًا أَحْرَمَ مِنْ بَيْتِ الْمَقْدِسِ، يَعْنِي إِلَى مَكَّةَ.

ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها بيان کوی چه هغوی د رسول الله ﷺ نه واوريدل چه هغوی فرمائيل: چاچه د مسجد اقصیٰ نه د مسجد حرام پورې د حج يا د عمرې احرام اوتړلو، نو د هغه مخکينی ورستونی تمام ګناهونه معاف کولې شی - يائې اوفرمائيل: د هغه د پاره جنت واجب شو -" عبد الله (ابن عبد الرحمٰن بن يحنّس) ته شک دې چه معلومه نۀ ده چه رسول الله ﷺ د دواړو نه کومه يوه خبره فرمائيلې ده -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی: الله تعالیٰ دې په وکيع باندې رحم اوکړی، هغوی د بيت المقدس نه، بيت الله پورې احرام تړلې وو -"

**تشريح: قوله**: انها سمعت رسول الله (صلى الله عليه وسلم) يقول من اهل بحجة او عمرة من المسجد الاقصى الى المسجد الحرام غفرله ما تقدم من ذنبه و ما تاخر.

## په تقديم الاحرام على الميقات کښې اختلاف د علماء:

ددې حديث نه دوه خبرې واضح طور باندې معلوميږی، اول داچه تقديم الاحرام على المواقيت جائز دې، دويم دا چه افضل هم تقديم دې، دواړه مسئلې اختلافی دی، په اوله مسئله کښې د ظاهريه او د بعضې علماؤ اختلاف دې، دهغوی په نزد تقديم الاحرام على المواقيت جائز نه دې، او هم دا قول د اسحق بن راهويه دې، او هم دا رائې د امام بخاری رحمه الله ده، كما قال الحافظ و غيره.

ددې وجې نه هغوی باب تړلې دې، باب ميقات اهل مدينة و لا يهلون قبل ذی الحليفة، او د جمهور علماء او ائمه اربعه په نزد تقديم جائز دې، بلکه ابن المنذر خو په جواز باندې اجماع نقل کړې ده، ليکن اجماع نقل کول صحيح نه دی، لوجود الاختلاف فيه، د قياس تقاضه خو عدم جواز ده، ځکه چه په ميقات زمانی باندې د احرام تقديم بالاتفاق ناجائز دې.

اوس دا چه افضل څه څيز دې، تقديم، كما فی حديث الباب يا د ميقات نه احرام تړل، په دې کښې اختلاف دې، د احنافو او د بعضې شافعيه په نزد تقديم اولې دې، (بان يحرم من دويرة اهله) او د ډيرو صحابه کرامو نه هم تقديم منقول دې، او د مذکوره حديث نه هم دا معلوميږی، اګر چه نبی کريم ﷺ احرام هميشه د ميقات نه تړلې دې، د ملګرو د سهولت او رعايت دپاره، ددې برخلاف د بعضې صحابه کرامو نه او د اکثرو ائمه نه عدم استحباب تقديم منقول دې، دې لره ائمه ثلثه مالک و شافعی و احمد اختيار کړې دې، او بعضې علماء دا فرمائې چه نفس تقديم خو جائز دې، ليکن د مواضع بعيده نه مکروه دې، مخافة الوقوع فی محظور الاحرام، دا حضرات د حديث الباب دا جواب ورکوی، چه دا ضعيف دې، لاجل ابن ابی فديک و محمد بن اسحق

**تنبيه**: علامه عينی رحمه الله په دې مسئله کښې امام شافعی رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره ذکر کړې دې، ليکن حافظ ابن حجر رحمه الله استحباب تقديم صرف بعضې شوافعو ته منسوب کړې

دي، دغه شان امام نووی عليه الرحمة هم إحرام من الميقات لره افضل ليکلي دي، (الحل المفهم) او په کتاب الانوار لاعمال (ص۱۷۷ ج ۱) الابرابر (فی فقه الشافعی) کښې دا تصريح ده، چه مکی دپاره خو احرام من دويرة اهله افضل دې، (په څائي د مسجد حرام) او د آفاقی په حق کښې د علامه رافعی او امام نووی اختلاف دې، د اول الذکر په نزد دهغه په حق کښې هم من دويرة اهله افضل دې، او د ثانی په نزد عدم تقديم اولی دې، وهو المعتمد لان النبی(صلی الله علی وسلم) احرم من الميقات. اهـ

[۱۷٤۲](۱) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، حَدَّثَنَا عُتْبَةُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ السَّهْمِيُّ، حَدَّثَنِي زُرَارَةُ بْنُ كُرَيْمٍ، أَنَّ الْحَارِثَ بْنَ عَمْرٍو السَّهْمِيَّ حَدَّثَهُ، قَالَ: "أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِمِنًى أَوْ بِعَرَفَاتٍ وَقَدْ أَطَافَ بِهِ النَّاسُ، قَالَ: فَتَجِيءُ الْأَعْرَابُ فَإِذَا رَأَوْا وَجْهَهُ، قَالُوا: هَذَا وَجْهٌ مُبَارَكٌ، قَالَ: وَوَقَّتَ ذَاتَ عِرْقٍ لِأَهْلِ الْعِرَاقِ".

حضرت حارث بن عمرو سهمی رضی الله عنه بيان کوی چه زۀ د نبی کريم ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم او هغوی په عرفات يا په منیٰ کښې وو - خلقو دَ هغوی نه گيره (حلقه) اچولې وه، بدوی خلق به دَ هغوی په خدمت کښې حاضريدل، کله چې به ئې دَ هغوی مخ (مبارک) ته کتل نو وئيل به ئي " دا خو مبارک مخ دې -" حارث بيان کوی چه هغوی ﷺ دَ اهلِ عراق دَ پاره مقام ذاتِ عرق ميقات مقرر اوفرمائيلو -"

ان الحارث بن عمرو السهمی حدثه قال اتيت رسول الله(صلی الله عليه وسلم) وهو بمنی او بعرفات و قد اطاف به الناس قال فتجئ الاعراب فاذا راو وجهه قالوا هذا وجه مبارک:

صحابه کرامو نبی کريم ﷺ لره د څلور واړو طرفونو نه گير کړې وو، (د نبی کريم ﷺ د زيارت نه مشرف کيدل، مسائل او دينی معلومات ئې حاصلول) د چا چه هم نظر په مخ مبارک باندې پريوتۀ، نو بې اختياره به د هغه د ژبې نه وتل، چه څومره مبارک مخ دې، ماته په دې باندې د حضرت عبد الله بن سلام رضی الله عنه حديث ياد راځی، هغوی فرمائي چه کله نبی کريم ﷺ هجرت اوکړو، او مدينې منورې ته ئې تشريف راوړو، نو خلق د نبی کريم ﷺ د زيارت په شوق کښې هغوی طرف ته منډې کړې، زۀ هم د زيارت دپاره حاضر شوم، چه کله ما د هغوی د مخ مبارک خليدل اوليدل، نو پوهه شوم، چه دا مخ د دروغژن نشی کيدې، (بلکه د نبی صادق دې) (۲)

## باب الحائض تهل بالحج

### باب: ۹- حائضه ښځه، چه دَ حج دپاره احرام اوتړی-

### په افعال حج کښې د کومو افعالو دپاره طهارت ضروری دی:

د احرام دپاره طهارت بالاتفاق د مستحباتو نه دې، که حدث اصغر وی او که اکبر، يعنی

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۲۷۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴۸۵/۳)(حسن)

(۲) لما استبنت وجه رسول الله عرفت ان وجهه ليس بوجه كذاب وكان اول شئ تكلم به ان قال يايها الناس افشوا السلام واطعموا الطعام وصلوا والناس نيام تدخلوا الجنة بسلام.(ترمذي ص ۷۱ ج ۲)

حیض او نفاس وغیره د صحت احرام نه مانع نه دي، په ارکان حج کښې طهارت صرف د طواف دپاره ضروری دې، د جمهورو په نزد خو شرط دې، بغیر د طهارت نه طواف نه صحیح کیږی، او د احنافو په نزد واجب دې، د صحت دپاره شرط نه دې، لهذا ددې په ترک سره به دم واجبیږی، زمونږ په نزد مسئله داده، چه که یو سړې طواف زیارت د حدث اصغر په حالت کښې اوکړی، نو په هغه باندې شاة واجب دې، او که د حدث اکبر (جنابت، حیض، نفاس) په حالت کښې اوکړی، نو په هغه باندې بدنه واجب ده.

مخکښې په حدیث کښې راروان دی، چه حائضه ټول افعال د حج کولې شی، سوا د طواف نه، او په بعضې روایاتو کښې د سعی هم استثناء ده، لیکن د سعی دپاره طهارت نه د احنافو په نزد شرط دې، نه د جمهورو په نزد، لیکن چونکه د سعی د صحت دپاره دا ضروری ده، چه هغه به بعد الطواف وی، ددې وجې نه ددې هم استثناء کړې شوې ده، لهذا که زنانه د طواف نه فارغیدو نه پس حائضه شی، نو اوس چونکه هغې طواف کړې دې، ددې وجې نه دا سعی به هغې دپاره جائز وی، وهذا عند الائمة الاربعة والجمهور، لیکن د حسن بصری رحمه الله او د بعضې حنابله په نزد د سعی دپاره هم طهارت شرط دې. (بذل و اوجز)

[۱۷٤۳] ([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا عَبْدَةُ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "نُفِسَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ بِمُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ بِالشَّجَرَةِ، فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبَا بَكْرٍ أَنْ تَغْتَسِلَ فَتُهِلَّ".

حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی چه اسماء بنت عمیس رضی الله عنها (زوجهٔ ابو بکر صدیق رضی الله عنه) د شجره په مقام باندې محمد بن ابی بکر رضی الله عنه لره اوزیږولو نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبکر صدیق رضی الله عنه ته اوفرمائیل: دې لره پکار دی چه غسل اوکړی، احرام اوتړی.

عن عائشة رضی الله عنها قالت نفست اسماء بنت عمیس بمحمد بن ابی بکر بالشجرة، د اسماء بنت عمیس رضی الله عنها نه محمد بن ابی بکر پیدا شو په ذی الحلیفه کښې، هلته کښې د بیرې یوه اونه وه، دهغې د وجې نه دغه ځائې ته شجره هم وئیلې شی، حضور صلی الله علیه وسلم هغې ته د غسل حکم ورکړو، چه څرنګه نور خلق د احرام نه مخکښې غسل کوی، ته هم دغسې اوکړه، دا غسل عند الجمهور مستحب دې، او عند الظاهریه واجب دې، او ددې نه مقصود تنظیف دې، ګنی ظاهره خبره ده، چه د حیض او نفاس د زمانې غسل د طهارت فائده نه ورکوی، د حیض او نفاس احکام چونکه مشترک دی، ددې وجې نه مصنف د نفاس والا حدیث په حیض باندې منطبق کړو.

[۱۷٤٤] ([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، وَإِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ أَبُو مَعْمَرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا مَرْوَانُ بْنُ شُجَاعٍ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، وَمُجَاهِدٍ، وَعَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْحَائِضُ

---

[1]: صحیح مسلم/الحج ١٦(١٢٠٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ١٢(٢٩١١)، (تحفة الأشراف: ١٧٥٠٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الحيض ٢٤(٢١٥)، والحج ٥٧(٢٧٦٢)، موطا امام مالك/الحج ٤١(١٢٧، ١٢٨)، سنن الدارمي/المناسك ١١(١٨٤٥)، ٣٤(١٨٩٢)(صحيح)

[2]: سنن الترمذي/الحج ١٠٠(٩٤٥)، (تحفة الأشراف: ٥٨٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٣٦٣)(صحيح)

وَالنُّفَسَاءُ إِذَا أَتَتَا عَلَى الْوَقْتِ تَغْتَسِلَانِ وَتُحْرِمَانِ وَتَقْضِيَانِ الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ الطَّوَافِ بِالْبَيْتِ". قَالَ أَبُو مَعْمَرٍ فِي حَدِيثِهِ: "حَتَّى تَطْهُرَ"، وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ عِيسَى عِكْرِمَةَ وَمُجَاهِدًا، قَالَ: عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، وَلَمْ يَقُلِ ابْنُ عِيسَى كُلَّهَا، قَالَ: "الْمَنَاسِكَ إِلَّا الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه مروی دی چه نبی کریم ﷺ اوفرمائيل : د حيض او د نفاس والا ښځي چه کله ميقات ته اورسی نو غسل دې اوکړی او احرام دې اوتړی او د حج تمام افعال دې سرانجام کړی سوا د بيت الله د طواف نه -" د ابو معمر په روايت کښي دی " تردې پورې چه هغوی پاک شی -" د محمد عيسیٰ په روايت کښي د عکرمه او د مجاهد ذکر نشته دې بلکې ( د هغه سند) عطاء عن ابن عباس دې " هم داسې د ابن عيسیٰ په روايت کښې د [کلها] لفظ نۀ دې راغلې بلکې داسې ئې وئيلې دی [ المناسک الا الطواف بالبيت

## بَابُ الطِّيبِ عِنْدَ الْإِحْرَامِ

### باب: ۱۰- د احرام په وخت کښي خوشبو لګول

[۱۷۴۵](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، وَأَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كُنْتُ أُطَيِّبُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِإِحْرَامِهِ قَبْلَ أَنْ يُحْرِمَ، وَلِإِحْلَالِهِ قَبْلَ أَنْ يَطُوفَ بِالْبَيْتِ".

حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوی چه ما به په حضور ﷺ باندې د احرام تړلو په وخت کښي د احرام نه مخکښي خوشبو لګوله او هم داسې د احرام د کولاؤولو نه پس، د بيت الله شريف د طواف کولو نه مخکښي -"

**تشريح: قوله:** عن عائشة رضي الله عنها قالت كنت اطيب رسول الله(صلى الله عليه وسلم) لاحرامه قبل ان يحرم و لاهلاله قبل ان يطوف.

### په مسئلة الباب کښي اختلاف ائمة:

د عين احرام په حالت کښي د طيب استعمال بالاتفاق منع دې، او قبل الاحرام داسې خوشبو استعمالول چه دهغې لون او اثر وروستو باقی وی، ددې حديث نه معلوميږی، چه هغه جائز بلکه مستحب دې، ([2]) په دې کښي درې مسلکونه دی،

(١) د امام شافعی رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد مطلقا ( فى البدن والثوب) مباح دې، ليکن په

---

[1]): صحيح البخاري/الغسل ١٢(٢٦٧)، ١٤(٢٧٠)، والحج ١٨(١٥٣٩)، ١٤٣(١٧٥٤)، واللباس ٧٣(٥٩٢٢)، ٧٤(٥٩٢٣)، ٧٩(٥٩٢٨)، ٨١(٥٩٣٠)، صحيح مسلم/الحج ٧(١١٨٩)، سنن النسائي/الحج ٤١(٢٦٨٦)، سنن ابن ماجه/المناسك ١٨(٢٩٢٦)، موطا امام مالك/الحج ٧(١٧)، مسند احمد ٦/٩٨، ١٠٦، ١٣٠، ١٦٢، ١٨١، ١٨٦، ١٩٢، سنن الدارمي/المناسك ١٠(١٨٤٤)،( تحفة الأشراف: ١٧٥١٨، ١٧٥١٨، ١٧٥١٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٧٧(٩١٧)(صحيح)

[2]) مسئله مختلف فيه ده، دامام مالک اومحمد په نزد د احرام نه مخکښي داسې خوشبو استعمالول چه دهغې اثر روسته پورې باقی پاتې شی ممنوع ده، په صحابو کښي د عمرو ابن عمرو وغيره مسلک هم دا دې، دائمه ثلاثه ابوحنيفه، شافعی، احمد او ابويوسف په نزد مباح دې، علامه عينی وغيره ډيرو شارحينو مذاهب هم دغسې مجملا ليکلی دی خو حضرت شيخ په اوجز کښي ليکلی دی چه صحيح دادی چه په دې کښي تفصيل دې بيا حضرت دا تفصيل ليکلې دې چه دهغې خلاصه مونږ پورته په متن کښي ليکلې ده.

بدن باندې خو سنت دې، او په ثوب باندې صرف مباح.
(۲) د شيخينو په نزد په بدن باندې مباح بلکه مسنون دې، او په ثوب باندې غير مباح،[1] زمونږ ډيرو فقهاؤ د شيخينو مسلک مطلقا مباح ليکلې دې، د بدن اوثوب فرق ئې نه دې کړې.
(۳) د امام مالک رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد مطلقا ممنوع دې، د امام مالک په نزد حرام دې، او د امام محمد رحمه الله په نزد مکروه، ورجحه الطحاوی، بيا د مالکيه په وجوب فديه کښې دواړه قوله دی، نعم او لا.
د شافعيه او حنابله دليل خو دا حديث دې، او د امام مالک او امام محمد دليل د يعلی بن اميه حديث دې، چه په باب الرجل يحرم فی ثيابه کښې راروان دې، (بذل ص۱۱۵، ج۳) په هغې باندې به کلام به هم دلته کښې راشی، د حديث مضمون دادې، چه حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي: ما به يو ځل د حضور ﷺ په احرام باندې د احرام تړلو نه مخکښې خوشبو پورې کوله، او دويم ځل د تحلل اصغر په وخت کښې د طواف زيارت نه مخکښې، او د باب په دويم حديث کښې دادی، چه عائشه رضي الله عنها فرمائي: چه زۀ د مشک چمک د نبی کريم ﷺ د سر په ويښتو کښې ګويا اوس وينم. ([2])

## (تحلل او ددې اقسام)

د احرام نه بهر راؤتلو ته تحلل وئيلې شی، د تحلل دوه قسمه دی، تحلل اصغر، کوم چه په دې حديث کښې ذکر دې، دويم تحلل اکبر، اوس دلته کښې دوه څيزونه دی، يو دا چه تحلل اصغر په کوم څيز سره حاصليږی، او اکبر په څه سره حاصليږی؟ دويمه خبره داده، چه د تحلل اصغر په مصداق کښې څومره څيزونه ددې، او د تحلل اکبر په مصداق کښې څومره شامل دی، تفصيل به انشاء الله تعالی د باب الرمی (بذل ص ۱۸۱ج ۳) په اخری حديث اذا رمی احدکم جمرة العقبة فقد حل له کل شئ الا النساء لاندې راشی.

[۱۷٤٦]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ الْبَزَّازُ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ الْحَسَنِ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى وَبِيصِ الْمِسْكِ فِي مَفْرِقِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې، فرمائی ګويا چه زۀ د مشکو هغه چمک ته ګورم کوم چی به د رسول الله ﷺ د سر په لاره کښې لګيدلې وه په داسې حال کښې چه هغوی ﷺ به په احرام کښې وو۔"

---

[1]) شيخين فرمائي اوګورئ په دې کښې د استعمال الطيب في البدن مذکور دې په في الثوب نه دې مذکور.

[2]) حضرت عائشه اګرچه تيره شوې واقعه بيانوی خود مضارع صيغې سره چه دحال د پاره ده، دې ته حکايت د حال ماضيه وائی، تيره شوې واقعه داسې نقل کول چه ګويا دا فی الحال راپيښيږی د قوت استحضار ظاهرولو دپاره يا اظهار دمحبت دپاره چه دا نقشه زما په سترګو کښې اوګرځيده.

[3]): صحيح مسلم/الحج ۷(۱۱۹۰)، سنن النسائي/الحج ٤۱(۲٦۹٤)،( تحفة الأشراف: ۱٥۹۲٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/۳۸، ۱۸٦، ۲۱۲، ۱۹۱، ۲۲٤، ۲۲۸، ۲٤٥)(صحيح)

## بَابُ التَّلْبِيدِ

### باب: ۱۱ - دَ احرام دپاره ویښتو لره په څۀ څیز سره دَ جم کولو بیان

د احرام تړلو په وخت کښې د سر په ویښتو کښې د ګوند اوبۀ یا ددې پشان څه بل څیز لګول، دې دپاره چه د احرام په حالت کښې ویښتۀ خوارۀ نه شي، ځکه چه سرې د احرام په حالت کښې خپل سر خو پټولې نشي، نو د کوم سرې چه سنرې وي، که هغه د احرام په وخت کښې د ویښتو راټولو دپاره څه تدبیر اونه کړي، نو ظاهره خبره ده، چه هغه به خوارۀ وي، (دې ته تلبید وئیلې شي)

د شافعیه او حنابله په نزد تلبید مطلقا جائز دې، او د احنافو او مالکیه په نزد تلبید یسیر جائز دې، چه په هغې سره تغطیه راس لازم رانشي (جزء الحج)

[۱۷۴۷] (۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ الْمَهْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ مُلَبِّدًا".

حضرت عبد الله بن عمر ﷛ بیان کوي چه ما رسول الله ﷺ نه واوریدل چه هغوی تلبیه وئیله، او هغوی دَ خپل سر ویښتۀ جم (یوځائې کړي) وو -

[۱۷۴۸] (۲) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَبَّدَ رَأْسَهُ بِالْعَسَلِ".

حضرت عبد الله بن عمر ﷛ بیان کوي چه رسول الله ﷺ په عسل سره خپل ویښتۀ جم کړي وو -"

عن ابن عمر ﷛ ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) لبد راسه بالعسل:

### شرح حدیث:

ددې نه مخکښې حدیث هم د ابن عمر ﷛ وو، په هغې کښې دا وو (یهل ملبدا) د صحیحین الفاظ هم دادي، لیکن په دې دویم روایت کښې لبد راسه بالعسل دې، په دې کښې اشکال دادې، چه شهدو لره خو مچ راځي، ددې جواب بعضې شارحینو دا ورکړې دې، چه د نبی کریم ﷺ په خصائصو کښې یو خصوصیت دادې، لا ینزل علیه ذباب چه (په نبی کریم ﷺ به مچ نه کیناستلو) او بعضې شارحین دا وائي، چه دا لفظ عسل عین مهمله سره نه دې، بلکه غسل بکسر المعجمه و سکون السین دې، غسل وئیلې شي، خطمي وغیره ته، چه هغې سره د سر ویښتۀ وینځلې شي، حضرت سهارنپوري ﷬ فرمائي: که لفظ غسل بالغین المعجمه دې، نو بیا خو هیڅ اشکال نشته، او که بالعسل دې، نو بیا به دا وئیلې شي، چه ددې نه مراد معروف معنی یعنی شهد نه دی، بلکه د عسل معنی صَمْغ العرفط هم راځي، چه یو قسم

---

(۱): صحیح البخاري/الحج ۱۹(۱۵٤۰)، واللباس ٦۹(۵۹۱٤)، صحیح مسلم/الحج ۳(۱۱۸٤)، سنن النسائي/المناسك ٤۰(۲٦۸٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ۷۲(۳۰٤۷)، (تحفة الأشراف: ٦۹۷٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۱۲۱، ۱۳۱)(صحیح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸٤۱٤)(ضعیف)

ګوند وی، (کما فی القاموس) او شهد مراد اخستلو په صورت کښې شارحينو چه کوم جواب ورکړې دې، چه نبی کريم ﷺ د مچ د نزول نه محفوظ وو، داکه په خپل مقام کښې صحيح وی، ليکن فی نفسه په ويښتو کښې شهد لګول، چه په هغې کښې خوږوالې او سليخ وی، د نظيف او لطيف الطبع سړی نا خوښه وی، او د نبی کريم ﷺ نه زيات څوک لطيف او نظيف کيدې ش، (بذل المجهود)

## بَابٌ فِي الْهَدْيِ[1]

### باب: ۱۲- د "قربانئ" بيان

### د هدی تعريف :

**ما يهدی الی الحرم ليتقرب به فيه:**

يعنی هغه مخصوص څاروې چه هغې لره محرم بالحج يا محرم بالعمره د قربانئ په نيت سره حرم ته بوځی، ([2]) د الله تعالی تقرب حاصلولو دپاره، احنافو په نزد سوق هدی ډير زيات اهميت لری، حتی چه دا څيز د هغوی په نزد د تلبيه قائم مقام کيږی.

[۱۷۴۹]([3]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمِنْهَالِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ الْمَعْنَى، قَالَ: قَالَ عَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ أَبِي نَجِيحٍ، حَدَّثَنِي مُجَاهِدٌ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَهْدَى عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي هَدَايَا رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَلًا كَانَ لِأَبِي جَهْلٍ فِي رَأْسِهِ بُرَةُ فِضَّةٍ"، قَالَ ابْنُ مِنْهَالٍ: "بُرَةٌ مِنْ ذَهَبٍ"، زَادَ النُّفَيْلِيُّ: "يَغِيظُ بِذَلِكَ الْمُشْرِكِينَ".

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه مروی دی چه رسول الله ﷺ د صلح حديبيه په کال باندې د قربانئ څاروې (د ځان سره) ليږلې وو - په دې قربانو کښې يو اوښ هغه هم وو کوم چه د ابوجهل وو ....... د هغې په پوزه کښې د چاندئ واګې وو ....... ابن منهال وائی : چه د سرو زرو واګې وو - نفيلی اضافه کړې ده چه حضور ﷺ دې لره د مشرکينو د سوزيدلو د پاره بوتلې وه -(چه د هغوی د سردار اوښ د محمد ﷺ په قبضه کښې دې -)

**تشريح: قوله:** عن ابن عباس ان رسول الله(صلی الله عليه وسلم) اهدی عام الحديبية فی هدايا رسول الله(صلی الله عليه وسلم) جملاکان لابی جهل:

فی هدايا رسول الله(صلی الله عليه وسلم) : د وضع المظهر موضع المضمر د قبيلې نه دې، د قياس تقاضه دا وه، فی هداياه، ددې حديث تعلق د عمرة الحديبيه سره دې، چه په هغې کښې احصار واقع شوې وو، چه دهغې قصه مشهوره ده، په دې سفر کښې چه د نبی کريم ﷺ سره کوم د هدی څاروی وو، په هغې کښې د ابوجهل اوښ هم وو، يغيظ بذلک المشرکين،

[1] ) هديٌ هديٌّ، دواړه لغت دی سکون دال او په تخفيف د ياء، وهو الأصح، او په کسره د دال وتشديد ياء، د أول مفرد هديَةٌ لکه جَديٌ وجَديَةٌ، اود ثانی هديَّةٌ لکه مطيٌّ ومطيَّةٌ.

[2] ) د مالکيه په نزد په هدی کښې جمع بين الحَل والحرم هم ضروری دې يعنی چه دحل نه حرم ته يوړلې شی بيا د حرم نه عرفه ته ، وليس بواجب عند الجمهور.اوجز.

[3] ): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ٦٤٠٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ٩٨(٣١٠٠) مسند احمد(١/٢٦١، ٢٧٣)(حسن) بلفظ: »فضة“

یعنی دغه اوبښ نبی کریم ﷺ قصدا ددې وجې نه حلال کړو، چه کافرانو ته په دې باندې تکلیف اورسی، او هغوی اوسوزی، کما فی قوله تعالی: لیغیظ بهم الکفار:
د ابو جهل اوبښ څومره خوش قسمته وو، چه د حضور ﷺ په عمره مبارکه کښې په کار راغلو، ملا علی قاری رحمه الله ډیره مزیداره خبره فرمائیلې ده:
خاتمة جملة اجمله منه، د ابوجهل د اوبښ خاتمه خپله د ابوجهل د خاتمې نه ډیره بهتره وه،
**تنبیه**: د ترمذی شریف ص ۱۰۱ (باب ما جاء کم حج النبی(صلی الله علی وسلم) په روایت کښې من حدیث جابر رضي الله عنه دادی، چه دا اوبښ نبی کریم ﷺ سره په حجة الوداع کښې وو، محدثینو د ابوداؤد دې حدیث ته ترجیح ورکړې ده، د ترمذی په روایت باندې خپله امام ترمذی کلام فرمائیلې دې، او د امام بخاری رحمه الله نه ئې نقل کړې دی، چه دا حدیث باین سند محفوظ نه دې، په کوکب کښې هم دادی، چه حدیث ترمذی صحیح نه دې، منقول دی، چه دا اوبښ د جنګ بدر په غنیمت کښې حاصل شوې وو، او دا اوبښ د حدیبئې نه مکې مکرمې ته تښتیدلې وو، د حضور ﷺ جمال هغه لره د هلته نه واپس راوستو، (تاریخ خمیس)
برة من فضة: په یو روایت کښې دادی، چه ددهٔ په پوزه کښې د چاندئ یوه کړی (پیزوان) وه، په دویم روایت کښې دادی، چه د سرو زرو وه، ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه ممکن ده یو طرف ته د سرو زرو وه، او بل طرف ته د چاندئ وه، (بذل)

## بَابٌ فِي هَدْيِ الْبَقَرِ

### باب: ۱۳- دغوا میښې قربانی

[۱۷۵۰](1) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَحَرَ عَنْ آلِ مُحَمَّدٍ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بَقَرَةً وَاحِدَةً".

د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښې د آل محمد د طرف نه یوه غوا ذبح کړې وه-
**تشریح**: **قوله**: عن عائشة ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) نحر عن آل محمد(صلی الله علی وسلم) فی حجة الوداع بقرة واحدة. او ددې نه روستنې حدیث چه د حضرت ابوهریره رضي الله عنه دې، دادې (عمن اعتمر من نسائه بقرةواحدة)

### د ازواج تسعه د طرف نه د بقرهٔ واحده قربانی څرنګه صحیح شوه:

دحجة الوداع په موقع د نبی کریم ﷺ سره ټولې ازواج مطهراتې وې، او ټولې متمتعاتې (یعنی حج تمتع کونکې) وې، په ټولو باندې هدی متعه واجبه وه، لیکن حضرت عائشه رضي الله عنها ته مکې مکرمې ته رسیدلو نه لږ شان مخکښې حیض راتلل شروع شو، چه دهغې وجې نه هغې عمره اونه کړې شوه، بهرحال د هغې د طرف نه هم دم ورکول وو، د فسخ د عمرې د

(1): سنن ابن ماجه/الأضاحي ٥(٣١٣٥)،(تحفة الأشراف: ١٧٩٢٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ١١٥(١٧٠٩)، والأضاحي ٣(٥٥٤٨)، صحيح مسلم/الحج ٦٢(١٣١٩)، موطا امام مالك/الحج ٥٨(١٧٩)، مسند احمد(٢٤٨/٦)(صحيح)

وجې نه،(۱) لهذا یوه بقرة خو د ټولو د طرف نه کافی کیدې نشی؟
د صحیح بخاری په حدیث کښې صرف لفظ د البقر وارد دې،(بغیر د تاء نه) او د واحده قید هم نشته، او دلته په ابوداؤد کښې د بقرة واحدة تصریح ده، دغه شان په نسائی کښې هم، ددې وجې نه اشکال پیدا کیږی، چه بقرهٔ واحده د ازواج تسعه د طرف نه څرنګه کافی کیدې شی؟ دا خو صرف د ابن حزم مسلک دې، چه څرنګه بدنه د لسو کسانو د طرف نه کافی ده(عند البعض) بقره هم کافی ده، لکه هغوی د خپل مسلک تائید په دې حدیث سره کړې دې، د حافظ ابن حجر او علامه عینی رحمه الله په کلام کښې ما ددې اشکال جواب تلاش کړو، لیکن ملاؤ نشو، په اصل کښې په بخاری کښې ددې سلسلې ډیر روایات هم نشته، هسې د حافظ ابن حجر میلان وحدة بقره طرف ته دې، حالانکه په دې کښې اشکال دې، لیکن ددې باوجود حافظ دې طرف ته التفات نه دې کړې، او علامه زرقانی په دې باندې ډیر لیکل کړې دی،(کمافی الاوجز) زمونږ حضرت شیخ هم په دې باندې خپل تصانیف (اوجز، جزء الحج، لامع) کښې ښهٔ په دلچسپئ سره کلام فرمائیلې دې، لیکن د نسائی او مسلم په روایتونو سره دا اشکال ختمیږی، ځکه چه د مسلم په یو روایت کښې من حدیث جابر دادی، ذبح رسول الله(صلی الله علیه وسلم) عن عائشة بقرة دې سره اشکال حل شو، هغه داسې چه اوس کم از کم دوه بقرې شوې، د اووهٔ د طرف نه خو یوه شوه، او دویمه چه د حضرت عائشې رضی الله عنها دپاره وه، په هغې کښې اصل خو به عائشه رضی الله عنها وی، باقی یو بله به هم په هغې کښې شامله شوې وی، د حضرت شیخ رحمه الله رائې داده، چه غالبا حضرت سوده رضی الله عنها به ئې شریکه کړې وی، د حضرت سودې رضی الله عنها د حضرت عائشې رضی الله عنها سره یو خصوصیت وو، ځکه چه هغې حضرت عائشې رضی الله عنها ته خپل نمبر ورکړې وو(لکه چه په روایاتو کښې مشهور دی) او د نسائی په یو روایت کښې داسې دی، عن عائشة رضی الله عنها قالت ذبح رسول الله(صلی الله علیه وسلم) عنا یوم حججنا بقرة بقرة، ددې نه معلومیږی، چه نبی کریم ﷺ د ټولو ازواج مطهرات د طرف نه یوه یوه بقرة ذبح کړې وه، اګر چه حافظ ابن حجر دې روایت لره شاذ لیکلې دې، لیکن علامه زرقانی په دې باندې رد کړې دې، او علامه انور شاه کشمیری رحمه الله دا فرمائې، چه د بخاری په روایت کښې خو بقرة(تاء وحدت سره) شته هم نه، او نه پکښې د واحدة تصریح شته، او په کومو روایاتو کښې چه د واحدة تصریح ده، دهغې نه مراد دا نه دی، چه د ټولو ازواج د طرف نه یوه بقرة ذبح کړې وه، بلکه تعدد طرف ته اشاره ده، چه یوه غوا ئې د څو ازواجو د طرف نه قربانی کړې.(۲)

---

(۱) دعائشې داحرام مسئله ډیره معرکة الآراء او مختلف فیه ده، ددې بیان انشاء الله روسته په باب فی افراد الحج کښې راروان دی.
(۲) ابن قیم فرمائی که حضورپاک ﷺ د بیبیانو د طرفه د یو بقره نه زیات قربانی کړې وی بیا خو هیڅ اشکال نشته اوکه یوه ئې کړې وی نو بیا په دې کښې دلیل دې د اسحاق بن راهویه: وهو روایة عن احمد ان البدنة تجزيء عن عشرة. اه. (عون وفیه ما فیه). ځکه چه د اسحاق په نزد دادی: بقرة عن سبعة وبدنة عن عشرة لحدیث ابن عباس عند الترمذي فاشترکنا في البقرة سبعة وفي البعیر عشرة. والله أعلم.

[۱۷۵۱] () حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ، وَمُحَمَّدُ بْنُ مِهْرَانَ الرَّازِيُّ، قَالَا: حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، عَنِ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "ذَبَحَ عَمَّنْ اعْتَمَرَ مِنْ نِسَائِهِ بَقَرَةً بَيْنَهُنَّ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د خپلو بیبیانو د طرف نه، کومو چه عمره کړې وه، یوه غوا ذبح کړې وه.

## بَابٌ فِي الْإِشْعَارِ

**باب: ۱٤ - دَ قربانۍ دَ اوښانو اشعار کول.**

### د اشعار لغوی او اصطلاحی معنی

د اشعار لغوی معنی اعلام ده، (علامت جوړول) شعار بمعنی علامت، او اصطلاحی معنی ئې داده، د هدی د اوښ په قب باندې په نیزې وغیره سره زخم جوړول، او د هغې په وینې سره قب رنګین کول، دې دپاره چه لیدونکو ته معلومه شي، چه دا هدی ده، چه د ورکیدو په صورت کښې، یا د اختلاط په وخت کښې اوپیژندلې شي، او فقیران هم پوهه شي، چه دا هدی ده، که د هلاک کیدو د ویرې په وخت کښې مالک هغه ذبح کړی، او هلته ئې پریږدی، نو فقیران هغې لره اوخوری، او علماؤ دا هم لیکلې دی، چه په دې کښې تعظیم دهدی هم دې، چه د حج او شریعت د شعار نه دې.

### د اشعار باره کښې د امام صاحب رائې:

د هدی اشعار د صحیحینو بلکه د صحاح سته د روایات صحیحه نه ثابت دې، جمهور علماء، ائمه ثلثه او صاحبین ددې د سنتیت قائل دی، حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله ددې قائل نه دې، په هدایه کښې لیکلې دی، چه امام صاحب رحمه الله فرمائي چه دا مثله ده، او مثله منسوخ ده، او که نسخ منلو کښې چاته شک وی، نو بیا به تعارض منل ضروری وی، لهذا ترجیح به محرم ته په مبیح باندې ورکولې شي.

### د امام اعظم رحمه الله په مسلک باندې دوه اشکالات او دهغې جوابات

په دې باندې دوه اشکاله شوې دی:

(۱) یو دا چه هر زخم مثله نه وی، مثله هغه زخم ته وئیلې وی، چه په هغې کښې تشویه خلقة (یعنی شکل خرابول) وی، لکه پوزه یا غوږ پریکول، او اشعار خو د حجامت، اختتان، فصد وغیره د قبیلې نه دې،

(۲) دویم اشکال دا چه د مثلې حرمت د هجرت په اول کښې شوې وو، (یعنی د غزوه احد پس) او اشعار د نبی کریم ﷺ نه د هجرت په اخر کښې ثابت دې، د جمهورو دا دواړ اشکالات قوی دی، ([2])

شیخ ابن الهمام په دې کښې د امام طحاوی رحمه الله رائې اختیار کړې ده، هغه داچه امام

---

[1]: سنن ابن ماجه/الأضاحي ٥(٣١٣٣)، سنن النسائي/الكبري/الحج(٤١٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٥٣٨٦) (صحيح)

[2]: حافظ فرمائی ابن حزم په امام ابوحنیفه رحمه الله باندې سخت تنقید کړې دې او دا چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه مخکښې هیچا داسې نه دی وئیلې، حافظ فرمائی داسې نه ده بلکه ابراهیم نخعی هم به دا مکروه ګنړلو. كما نقل الترمذي في جامعه.

صاحب رحمه الله مطلقا اشعار لره ممنوع نه فرمائيلو، انما کره اشعار اهل زمانه، يعنې عجمو ته د اشعار صحيح طريقه نه راتله، هغوی به په دې کښې مبالغه کوله، چه هغې سره به څاروی ته تکليف رسيدو، او دهغه د هلاکيدو خطره به وه، اصل خبره خو داوه، ليکن ممکن ده، چه سدا للباب و ردعا للعوام على الاطلاق ئې دا منع فرمائيلې وی، چه صرف د يو امر مستحب په تحصيل کښې ارتکاب محظور اوکړې شی، حافظ ابن حجر رحمه الله ته دې الله تعالى جزاء خير ورکړی، هغه د ابن الهمام د رائې ليکلو نه پس فرمائي ويتعين الرجوع الى ما قال الطحاوی فانه اعلم من غيره باقوال الصحابة، ١هـ

[۱۷۵۲](1) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَحَفْصُ بْنُ عُمَرَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ أَبُو الْوَلِيدِ: قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَسَّانَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ ثُمَّ دَعَا بِبَدَنَةٍ فَأَشْعَرَهَا مِنْ صَفْحَةِ سَنَامِهَا الْأَيْمَنِ ثُمَّ سَلَتَ عَنْهَا الدَّمَ وَقَلَّدَهَا بِنَعْلَيْنِ ثُمَّ أُتِيَ بِرَاحِلَتِهِ فَلَمَّا قَعَدَ عَلَيْهَا وَاسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ بِالْحَجِّ".

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ د ماسپخين مونځ د ذوالحليفه په مقام کښې اوکړو - بيا هغوی دَ خپلې قربانئ اوښه طلب اوفرمائيله او دَ هغې دَ قُب په ښی جانب ئې اشعار اوکړو( يعنی هغه ئې لږ غوندې زخمی کړو) او دَ هغې نه ئې وينه راويستله، بيا دَ هغوی ﷺ سورلی راوستلې شوه - کله چه حضور ﷺ په هغې باندې کيناستو او هغې رسول الله ﷺ لره يوړو او بيداء مقام ته اورسيدل نو هغوی دَ حج تلبيه اووئيله -

**تشريح: قوله**: عن ابن عباس رضي الله عنهما......... ثم دعا ببدنه فاشعرها من صفحة سنامها الايمن.

## د اشعار په باره کښې نور اختلاف:

د اشعار په باره کښې دوه مسئلې نورې هم د ذکر قابلې دی، (۱) يو داچه اشعار د ابل سره خاص دې، يا به د غير ابل هم کولې شی، دويمه دا چه محل اشعار د سنام(قب) جانب ايمن دې، او که جانب ايسر؟

امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله فرمائي چه اشعار به ابل او بقر دواړو کښې کولې شی، مطلقا، او د امام مالک په ابل کښې دوه اقوال دی، راجح دادې، چه په ابل کښې خو مطلقا دې، او په بقر کښې دهغوی درې روايتونه دی، (۱) مطلقا اثبات، (۲) مطلقا نفی، (۳) کوم بقر چه ذات سنام(قب والا) وی، دهغه به اشعار کولې شی، او کوم چه نه وی، دهغه به اشعار نه شی کولې، (هامش کوکب)

او په مسئله ثانيه کښې هم اختلاف دې، هغه داچه د امام شافعي رحمه الله په نزد جانب ايمن اولی دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد جانب ايسر اولی دې، او دا د احنافو په نزد هم دې، د امام احمد رحمه الله نه دواړه روايتونه نقل دی، (هامش کوکب ص۲۹۰) د ابن عباس رضي الله عنهما په روايت

---

(1): صحيح مسلم/الحج ۳۲(۱۲۴۳)، سنن الترمذي/الحج ٦۷(۹۰٦)، سنن النسائي/الحج ٦٤(۲۷۷٦)، ٦۷(۲۷۸٤)، ۷۰(۲۷۹۳)، سنن ابن ماجه/المناسك ۹٦(۳۰۹۷)،( تحفة الأشراف: ٦٤٥۹)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ۲۳(۱٥٤۹)، مسند احمد(۱/۲۱٦، ۲٥٤، ۲۸۰، ۳۳۹، ۳٤٤، ۳٤۷، ۳۷۳)، سنن الدارمي/المناسك ٦۸(۱۹٥۳)(صحيح)

کښې الایمن مذکور دی، دغه شان په مسلم کښې دی،([1]) لیکن د ابن عمر رضی الله عنه عمل لکه چه په موطا امام مالک رحمه الله کښې دی، جانب ایسر وو، او د بیهقی په روایت کښې دادی، چه ابن عمر رضی الله عنه به اشعار په جانب ایسر کښې کولو، او که په څه وجه به په دې کښې مشکل وو، نو بیا به ئې په ایمن کښې کولو، (فتح الباری)

**قوله**: ثم سلت عنها الدم: د سلت معنی اوچول او صفا کول دی، لیکن دلته کښې مراد مږل دی، دې دپاره چه ټول قب رنګین شی، ګنی اوچولو او صفا کولو سره خو مقصد نه حاصلیږی. (کوکب)

**قوله**: فلما قعد علیها واستوت به علی البیداء اهل بالحج، سورلئ باندې سوریدو نه پس چه کله نبی کریم ﷺ بیداء ډیرئ ته اورسیدو، نو د حج احرام ئې اوتړو، د احرام تحقق تلبیئ سره کیږی، په دې کښې روایات حدیثیه هم مختلف دی، او ائمه فقه هم، چه احرام څه وخت تړل پکار دی، ددې دپاره مخکښې یو مستقل باب راروان دې، باب وقت الاحرام په دې باندې به کلام انشاء الله هم هلته کښې راشی،

**قوله**: عن عائشة رضی الله عنها ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) اهدی غنما مقلدة :

**په تقلید غنم کښې اختلاف**:

په دې حدیث کښې د تقلید غنم مسئله ذکر ده، تقلید د اشعار پشان یو خیز دې، د دواړو غرض یو دې، (د هدی کیدو علامت لګول) تقلید د نعلینو هم وی، او د صوف هم، یعنی د مالوچو امیل جوړول، او د بزې په غاړه کښې اچول، مصنف صرف د اشعار باب قائم کړې دې، د تقلید([2]) هیڅ باب ئې نه دې قائم کړې، حالانکه امام بخاری رحمه الله او نورو صحاح والو ددې متعدد ابواب قائم کړې دی، او د تقلید الغنم مستقل باب ئې تړلې دې، لیکن د تقلید غنم مسئله د فقهاؤ په مینځ کښې اختلافی ده، حضرت امام شافعی او احمد □ ددې قائل دی، او امام اعظم او امام مالک □ ددې قائل نه دی، حالانکه په صحیحینو بلکه صحاح سته کښې د تقلید غنم روایات موجود دی، علامه سندهی هم په حاشیه د نسائی کښې اشکال کړې دې، چه هرکله تقلید غنم د صحیح حدیث نه ثابت دې، نو ددې د انکار هیڅ وجه نشته، زۀ وایم، د بعضې محدثینو، چه په هغوی کښې ابن عبد البر جلیل القدر محدث هم شامل دې، ددې باره کښې انشراح نشته، بلکه هغوی خو دا وائی، چه د نبی کریم ﷺ نه ابداء غنم هم ثابت نه دې، (چرته ددې تقلید) علامه سرخسی وائی، چه اثر داسود (په کوم کښې چه تقلید غنم مذکور دې) شاذ دې، اسود په دې سره متفرد دې، حافظ چه په فتح الباری کښې په دې سلسله کښې کوم اعتراضات کړې دی، علامه عینی رحمه الله دهغې جوابات ورکړې دی، په بذل المجهود کښې ټول ذکر دی.

---

[1] ولیس في البخاري ذکر الایمن اوالایسر.
[2] تقلید یعنی قلاده (امیل) اچول.

[۱۷۵۳]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ بِمَعْنَى أَبِي الْوَلِيدِ، قَالَ: "ثُمَّ سَلَتَ الدَّمَ بِيَدِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ هَمَّامٌ، قَالَ: "سَلَتَ الدَّمَ عَنْهَا بِأُصْبُعِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مِنْ سُنَنِ أَهْلِ الْبَصْرَةِ الَّذِي تَفَرَّدُوا بِهِ.

شعبه دې حديث لره د ابو الوليد هم معنى روايت كړې دې، فرمائي چه بيا هغوى وينه په خپل لاس سره اوبهوله - امام ابوداود رحمه الله فرمائي : د همام په روايت كښې دى چه هغوى د هغې په خپلې ګوتې سره وينه راويسته - امام ابوداود رحمه الله فرمائي چه دا روايت د اهل بصره د تفرداتو نه دې -

[۱۷۵۴]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، أَنَّهُمَا قَالَا: "خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فَلَمَّا كَانَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ قَلَّدَ الْهَدْيَ وَأَشْعَرَهُ وَأَحْرَمَ".

مسور بن مخرمه او مروان (بن حكم) بيان كوى چه د حديبيه په كال باندې رسول الله ﷺ اووتلو كله چه هغوى ﷺ د ذوالحليفې مقام ته اورسيدل نو هغوى ﷺ قربانئ ته قلاده واچوله، د هغې اشعار ئې اوكړو او احرام ئې اوتړلو -

[۱۷۵۵]() حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ، وَالْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَهْدَى غَنَمًا مُقَلَّدَةً".

حضرت عائشه رضي الله عنها بيان كوى چه رسول الله ﷺ بكرو (چيلو) لره په طور د هديې (حرم طرف ته) اوليږلې او د هغې په څټونو كښې ئې قلادې واچولې -

## بَابُ تَبْدِيلِ الْهَدْيِ

### باب: ۱۵ - د قربانئ د ځاروى تبديل كول څنګه وى؟

په كتب احناف كښې دا ليكلې دى، چه د هدى واجب بدلون جائز دې، او د هدى تطوع بدلون جائز نه دې، ځكه چه د هدى واجب تعلق خو د سړى په ذمه دې، چه بهرحال هغه باندې وركول دى، او هدى تطوع په شراء يا په نيت كولو سره متعين كيږى، ددې وجې نه ددې بدلون جائز نه دې.

[۱۷۵۶]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحِيمِ قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُو عَبْدِ الرَّحِيمِ خَالِدُ بْنُ أَبِي يَزِيدَ خَالُ مُحَمَّدِ بْنِ سَلَمَةَ رَوَى عَنْهُ حَجَّاجُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ جَهْمِ بْنِ الْجَارُودِ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: أَهْدَى عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ نَجِيبًا فَأُعْطِيَ بِهَا ثَلَاثَ مِائَةِ دِينَارٍ، فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٤٥٩) (صحيح)

[2]: صحيح البخاري/الحج ١٠٦ (١٦٩٤)، والمغازي ٣٦ (٤١٥٧، ٤١٥٨)، سنن النسائي/الحج ٦٢ (٢٧٧٣)، (تحفة الأشراف: ١١٢٥٠)، وقد أخرجه: مسند احمد (٤/٣٢٣، ٣٢٧، ٣٢٨، ٣٣١) (صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الحج ١٠٦ (١٧٠١)، م /الحج ٦٤ (١٣٢١)، سنن الترمذي/الحج ٧٠ (٩٠٩)، سنن النسائي/الحج ٦٩ (٢٧٨٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ٩٥ (٣٠٩٦)، (تحفة الأشراف: ١٥٩٤٤، ١٥٩٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٤١، ٤٢، ٢٠٨) (صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٧٤٨)، وقد أخرجه: (حم (٢/١٤٥) (ضعيف)

اللّٰهِ، إِنِّي أَهْدَيْتُ نَجِيبًا فَأُعْطِيتُ بِهَا ثَلَاثَ مِائَةِ دِينَارٍ أَفَأَبِيعُهَا وَأَشْتَرِي بِثَمَنِهَا بُدْنًا، قَالَ: "لَا انْحَرْهَا إِيَّاهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا لِأَنَّهُ كَانَ أَشْعَرَهَا.

دَ حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه حضرت عمر رضی الله عنه یو بُختی اوښ لره په طور دَ هدی (حرم طرف ته) اولیږلو - هغوی رضی الله عنه ته ددې درې سوه دیناره پیش کړې شو ... نو هغوی دَحضور ﷺ په خدمت کښې حاضر شو او تپوس ئې ترینه اوکړو : اې دَ الله رسوله ! ما یو عمده اوښ هدیه کړې دې او ماته دَهغې درې سوره دیناره راکولې شی نو آیا زهٔ دې لره خرڅ کړم او دَ هغې په قیمت باندې بل اوښ واخلم؟ حضور ﷺ اوفرمائیل: نهٔ - هم دې لره ذبح (قربانی) کړه - "امام ابوداود رحمه الله فرمائی دا ددې وجې نه وو چه دَ هغې ئې اشعار کړې وو-

**تشریح: قوله**: اهدی عمربن الخطاب رضی الله عنه بختیا فاعطی بها ثلث مائة دینار الخ

**شرح حدیث**:

د بختی جمع بخت راځی، او د مؤنث دپاره بختیه لفظ استعمالیږی، بختی اوښ هغه اوښ ته وئیلې شی، چه خالص عربی نه وی، بلکه د عربی او عجمی نسل د اختلاط نه پیدا شوې وی، دا بختنصر طرف ته منسوب دې، دې ته ابل خراسانی هم وئیلې شی، مضمون د حدیث دادې، چه حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه فرمائي چه یو ځل زما پلار حضرت عمر رضی الله عنه یو بختی او ډیر قیمتی اوښ په هدی کښې لیږلو (یا خپله ئې روان کړې وو) په لاره کښې چه کله خلقو هغه اولیدو، نو بعضې خلقو دهغې ډیر قیمت ورکولو سره اخستلو ته تیار شو، تردې پورې چه یو سړی دهغه درې سوه دیناره قیمت اولګوؤ، (حالانکه عام طور باندې یو اوښ تقریبا په پنځلس شل دیناره باندې ملاویږی) حضرت عمر رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو، چه که اجازت وی، نو زهٔ به دا خرڅ کړم، او ددې په قیمت به ډیر اوښان واخلم؟ نبی کریم ﷺ د داسې کولو نه منع اوفرمائیله، او وې فرمائیل، چه ددې نحر اوکړه، په ظاهر کښې دا اوښ به د هدی تطوع نه وو، لکه چه مونږ مخکښې مسئله بیان کړې ده، لیکن امام ابوداؤد ددې یوه بله وجه بیان کړې ده، هغه داچه لانه کان اشعرها، چه د دې اوښ اشعار شوې وو، دا د مصنف خپله رائې ده.

## بَابُ مَنْ بَعَثَ بِهَدْيِهِ وَأَقَامَ

**باب: ۱۶ - کوم کس چه هدی اولیږی او خپله لاړ نهٔ شی - ( نو څهٔ حکم دې؟ )**

یعنی کوم سړې چه خپله حج ته نه ځی، بلکه نورو خلقو سره چه تلونکې وی، خپله هدی اولیږی، دې دپاره چه هغوی د دهٔ د طرف نه هغه هدی په حرم کښې ذبح کړی، په داسې کولو کښې هیڅ خرج نشته، بلکه مستحب دی، ډیر د ثواب کار دې، د نبی کریم ﷺ نه ثابت دی، نبی کریم ﷺ به کله کله داسې کول، دا خو صرف د فضیلت خبره شوه.

[۱۷۵۷] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا أَفْلَحُ بْنُ حُمَيْدٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "فَتَلْتُ قَلَائِدَ بُدْنِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِي ثُمَّ أَشْعَرَهَا وَقَلَّدَهَا ثُمَّ بَعَثَ بِهَا إِلَى الْبَيْتِ وَأَقَامَ بِالْمَدِينَةِ فَمَا حَرُمَ عَلَيْهِ شَيْءٌ كَانَ لَهُ حِلًّا".

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی چه ما د رسول الله ﷺ د قربانئ د اوښ د هار رسئ په خپلو لاسونو سره اودلي دی، بیا هغوی ﷺ د هغې اشعار اوکړو او د هغې په ګردن کښې ئې قلاده واچوله، بیا ئې هغې لره بیت الله طرف ته روان کړو او خپله په مدینه کښې مقیم وو نو کوم څیزونه چه د هغوی دپاره حلال وو (هم هغه رنګ حلال پاتې شو) څۀ هم حرام نۀ شو -

[۱۷۵۸] (۲) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدٍ الرَّمْلِيُّ الْهَمْدَانِيُّ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنَّ اللَّيْثَ بْنَ سَعْدٍ حَدَّثَهُمْ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، وَعَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهْدِي مِنَ الْمَدِينَةِ فَأَفْتِلُ قَلَائِدَ هَدْيِهِ ثُمَّ لَا يَجْتَنِبُ شَيْئًا مِمَّا يَجْتَنِبُ الْمُحْرِمُ".

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی چه رسول الله ﷺ به د مدینې نه هدی لیږله، ما به د هغې د قلادو رسئ اودل او بیا به هغوی د هیڅ څیز نه اجتناب نۀ کولو، د کومو نه چه محرم اجتناب او پرهیز کوی -"

[۱۷۵۹] (۳) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا بِشْرُ بْنُ الْمُفَضَّلِ، حَدَّثَنَا ابْنُ عَوْنٍ، عَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ، وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ، زَعَمَ أَنَّهُ سَمِعَهُ مِنْهُمَا جَمِيعًا وَلَمْ يَحْفَظْ حَدِيثَ هَذَا مِنْ حَدِيثِ هَذَا وَلَا حَدِيثَ هَذَا مِنْ حَدِيثِ هَذَا، قَالَا: قَالَتْ أُمُّ الْمُؤْمِنِينَ: "بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْهَدْيِ، فَأَنَا فَتَلْتُ قَلَائِدَهَا بِيَدِي مِنْ عِهْنٍ كَانَ عِنْدَنَا ثُمَّ أَصْبَحَ فِينَا حَلَالًا يَأْتِي مَا يَأْتِي الرَّجُلُ مِنْ أَهْلِهِ".

ام المؤمنین حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی چه رسول الله ﷺ هدی اولیږله او ما د وړئ نه کومه چه زما سره وه، د هغې د قلادو رسئ جوړې کړې، بیا هغوی زما سره هم هغه شان حلال وو - خپل اهل ته به راتلو لکه څنګه چه څوک عام سړې خپل اهل ته راتلل کوی -

**په مسئله مترجم بها کښې اختلاف:**

دویمه خبره دلته کښې فقهی مسئله ده، هغه داچه دا لیږونکې دې لیږلو سره د محرم په حکم کښې کیږی، او که نه؟ جمهور علماء او ائمه اربعه فرمائي چه محرم کیږی نه، لکه چه په حدیث الباب کښې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي، په دې کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما اختلاف دې، دهغوی په نزد لیږونکې د محرم په حکم کښې کیږی، او د محظورات احرام

(۱): صحيح البخاري/الحج ١٠٦(١٦٩٦)، ١٠٧(١٦٩٨)، ١٠٨(١٦٩٩)، ١٠٩(١٧٠٠)، ١١٠(١٧٠١)، والوكالة ١٤(٢٣١٧)، والأضاحي ١٥(٥٥٦٦)، صحيح مسلم/الحج ٦٤(١٣٢١)، سنن النسائي/الحج ٦٢(٢٧٧٤)، ٦٨(٢٧٨٥)، سنن ابن ماجه/المناسك ٩٤(٣٠٩٤)، ٩٦(٣٠٩٨)، وانظر أيضا حديث رقم :(١٧٥٥)،( تحفة الأشراف: ١٧٤٣٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٦٩(٩٠٨)، موطا امام مالك/الحج ١٥(٥١)، مسند احمد(٣٥/٦، ٣٦، ٧٨، ٨٥، ٩١، ١٠٢، ١٢٧، ١٧٤، ١٨٠، ١٨٥، ١٩١، ٢٠٠)(صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الحج(١٦٩٨)، صحيح مسلم/الحج ٦٤(١٣٢١)، سنن النسائي/الحج ٦٥(٢٧٧٧)، سنن ابن ماجه/الحج ٩٤(٣٠٩٤)،( تحفة الأشراف: ١٦٥٨٢، ١٧٩٢٣)، وقد أخرجه:(٦٢/٦)(صحيح)

(۳): صحيح البخاري/الحج(١٧٠٥)، صحيح مسلم/الحج ٦٤(١٣٢١)، سنن النسائي/الحج ٦٥(٢٧٧٨)،( تحفة الأشراف: ١٥٩١٨، ١٧٤٦٦)(صحيح)

نه د هغه دپاره بچ کیدل واجب شو، او تر څو پورې چه دا هدی هلته کښې رسیدلې او ذبح کړې شوې نه وی، دا سړې به نه حلالیږی، حضرت عائشه رضی الله عنها په حدیث الباب کښې په دې باندې رد فرمائي، فما حرم علیه شئ کان له حلالا، ددې تفصیل او تشریح د بخاری شریف په روایت کښې موجود ده، بهرحال چه کومه مسئله حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائي هغه متفق علیه بین الائمه ده.

## یوه بله اختلافی مسئله :

دا مسئله خو دهغې سړې باره کښې وه، چه خپله حج یا عمرې دپاره نه ځی، دلته کښې یوه مسئله بله ده، چه د کوم سړی د نسک(حج یا عمرې) اراده ده، او خپل ځان سره د هدی لیږلو هم اراده ده، نو هغه د خپلې هدی تقلید اوکړو، اوسه پورې هغه نه خو تلبیه وئیلې ده، کومه چه د احرام دپاره وئیلې شی، او نه اوسه پورې ئې هدی روانه کړې ده، نو په دې صورت کښې اکثر علماء و منهم الائمه الثلثة(ابوحنیفه، مالک، شافعی) په نزد صرف په تقلید د هدی سره محرم کیږی نه، تر څو پورې چه د نسک په ارادې سره تقلید او سوق د هدی[1] اونه کړی، او د امام احمد او اسحق بن راهویه په نزد حج ته تلونکې سړې صرف د تقلید د هدی سره محرم کیږی، دا دواړه مسئلې د ځان ځانله پوهیدلو دی.

**تنبیه** : د حدیث الباب تعلق د مسئله اولی سره دې، چه په هغې کښې د ائمه اربعه هیڅ اختلاف نشته، صرف د ابن عباس رضی الله عنهما اختلاف دې، چه په هغې کښې حضرت عائشه رضی الله عنها رد کوی، حضرت اقدس سهارنپوری رحمه الله په بذل المجهود کښې د شرح حدیث په ذیل کښې هم دا تحریر فرمائیلې دی، چه د عائشې رضی الله عنها مقصود په حضرت ابن عباس رضی الله عنهما باندې رد کول دی، لیکن بیا وروستو ئې چه د هدائې کوم عبارت نقل کړې دې، دهغې تعلق د مسئلې ثانیه سره دې، په هغې کښې ائمه ثلثه خو یو طرف ته دی، او امام احمد او اسحق بن راهویه بل طرف ته، والله اعلم، نبه علی هذا شیخنا فی حاشیة البذل.

ددې باب دواړه احادیث متفق علیه دی، شیخینو ددې تخریج کړې دې، دغه شان نسائی او ابن ماجه صرف د اول تخریج کړې دې،(عون عن المنذری)

## بَابٌ فِي رُكُوبِ الْبُدْنِ

### باب: ۱۷ - د قربانۍ په اوښ باندې سورلی کول

بدن په ضم دال او سکون دال دواړو سره وئیلې کیږی، ددې واحد بدنه دې، بدنه د بعضو په نزد ابل سره خاص دې، او بعضې وائی، په اصل کښې خو ابل دې، لیکن ددې اطلاق په بقر باندې هم کیږی، او زیات تر ددې استعمال د هدی په څاروی باندې کیږی.(قسطلانی)

---

[1] یعنی د دریو څیزونو د موجود کیدو نه پس به محرم وی، اراده نسك، تقلید هدي، توجه مع الهدي یعني سوق الهدي.

[۱۷۶۰] (۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ الْأَعْرَجِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يَسُوقُ بَدَنَةً، فَقَالَ: "ارْكَبْهَا"، قَالَ: إِنَّهَا بَدَنَةٌ، فَقَالَ: "ارْكَبْهَا، وَيْلَكَ فِي الثَّانِيَةِ أَوْ فِي الثَّالِثَةِ".

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه بیان دي چه رسول الله ﷺ یو کس لره اولیدو چه هغه خپل د قربانۍ اوښ لره شړلو او روان وو (او خپله پیدل روان وو) نو حضور ﷺ هغه ته اوفرمائیل: په دي باندې سور شه -" هغه اووئیل دا د قربانۍ د پاره ده - حضور ﷺ اوفرمائیل: په دې باندې سور شه -" ... په تا باندې افسوس دې ؛ حضور ﷺ دا (د افسوس لفظ) په دویم یا دریم ځل کښې اوفرمائیلو -"

عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) رآی رجلا یسوق بدنة فقال ارکبها الخ
نبی کریم ﷺ یو سړې اولیدو (دهغه نوم معلوم نه دې) چه بدنه ئې روانه کړې وه، د مسند احمد په روایت کښې دی، قد اجهده المشي، یعنی هغه ته په پیدل تګ کښې جهد او مشقت راتلو، نو نبی کریم ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه په دې باندې سور شه، بعضو علماؤ ددې امر بالرکوب وجه دا لیکلې ده، چه په دې کښې د اهل جاهلیت مخالفت دې، ځکه چه مشرکینو به د سائبې، وصیلې، حام نه فائده نه اخستله، لیکن جمهور شارحینو دې لره نه دې اختیار کړې، ګنی کم از کم دا امر به د استحباب دپاره وو، خو ددې څوک هم قائل نه دی، الا الظاهریة (بلکه هغوی خو د وجوب قائل دی، دغه شان خپله د نبی کریم ﷺ نه هم رکوب د هدی ثابت نه دی، او نه نبی کریم ﷺ عام طور باندې صحابه کرامو ته د رکوب حکم فرمائیلې دې، بلکه عند الجمهور دا امر امر ارشادی دې، د مصلحت دنیویه د وجې نه دې،

**په رکوب د هدی کښې اختلاف ائمه:**

بیا مخکښې په دې مسئله کښې د ائمه اختلاف دې، د امام شافعی رحمه الله په نزد رکوب په هدی عند الحاجة مباح دې، او د امام احمد رحمه الله په نزد په یو روایت کښې مطلقا اباحت دې، او د احنافو او مالکیه په نزد جواز د رکوب عند الاضطرار دې، پس په آئنده روایت کښې دی، اذ الجئت الیها وهی روایة عن احمد الحاصل عند الجمهور والائمة الثلثة رکوب په هدی بلا حاجت مکروه دې.

[۱۷۶۱] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، سَأَلْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ عَنْ رُكُوبِ الْهَدْيِ؟ فَقَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "ارْكَبْهَا بِالْمَعْرُوفِ إِذَا أُلْجِئْتَ إِلَيْهَا حَتَّى تَجِدَ ظَهْرًا".

حضرت ابو الزبیر فرمائی چه ما د حضرت جابر بن عبد الله نه د قربانۍ د څاروی په باره

---

۱): صحیح البخاري/الحج ۱۰۳ (۱۶۸۹)، والوصایا ۱۲ (۲۷۵۵)، والأدب ۹۵ (۶۱۶۰)، صحیح مسلم/الحج ۶۵ (۱۳۲۲)، سنن النسائي/الحج ۷۴ (۲۸۰۱)، (تحفة الأشراف: ۱۳۸۰۱)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ۱۰۰ (۳۱۰۳)، موطا امام مالك/الحج ۴۵ (۱۳۹)، مسند احمد (۲/۲۵۴، ۲۷۸، ۳۱۲، ۴۶۴، ۴۷۴، ۴۷۸) (صحیح)

۲): صحیح مسلم/الحج ۶۵ (۱۳۲۴)، سنن النسائي/الحج ۷۶ (۲۸۰۴)، (تحفة الأشراف: ۲۸۰۸)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۱۷، ۳۲۴، ۳۲۵، ۳۴۸) (صحیح)

کښې تپوس اوکړو نو هغوی اووې ما د رسول الله ﷺ نه اوریدلې دی، هغوی ﷺ فرمائیل کله چه تاسو مجبور شئ نو (د احسان سره او) د معروف انداز سره په هغې باندې سورلی کوئ تردې پورې چه تاسو ته بله کومه سورلی ملاؤ شی۔"

## بَابٌ فِي الْهَدْيِ إِذَا عَطِبَ قَبْلَ أَنْ يَبْلُغَ

### باب: ۱۸- د هدی ځاروې کله چه ځائې ته د رسیدو نه مخکښې هلاکشی نو؟

که هدی خپل محل یعنی حرم شریف ته رسیدو نه مخکښې هلاکیږی، نو څه به کولې شی؟

[۱۷۶۲](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ نَاجِيَةَ الْأَسْلَمِيِّ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ مَعَهُ بِهَدْيٍ، فَقَالَ: "إِنْ عَطِبَ مِنْهَا شَيْءٌ فَانْحَرْهُ، ثُمَّ اصْبُغْ نَعْلَهُ فِي دَمِهِ، ثُمَّ خَلِّ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّاسِ".

د حضرت ناجیه اسلمی ؓ بیان دې چه رسول الله ﷺ د هغوی په لاس باندې خپله قربانئ اولیږله او ورته ئې اوفرمائیل: که چرې ددې نه یو ځاروې هلاک شی نو د هغې نحر اوکړه، او د هغې نوکې د هغې په وینې سره رنګ کړه، بیا دې لره د خلقو د پاره پریږده۔"

**تشریح: قوله**: عن ناجیة الاسلمی ان رسول الله (صلی الله علیه وسلم) بعث معه بهدی،

دا د باب رومبې حدیث دې، ددې راوی ناجیه بن جندب اسلمی دې. او دویم حدیث چه دهغې راوی حضرت ابن عباس ؓ دې، په هغې کښې داسې دی، **بعث رسول الله (صلی الله علیه وسلم) فلانا الاسلمی** په دې کښې د فلان نه مراد ناجیه بن جندب دې، دا دویم حدیث په صحیح مسلم کښې هم شته، هلته کښې هم د نوم تصریح نشته، بلکه **بعث مع رجل** دې، د حدیث خلاصه داده، چه نبی کریم ﷺ هرکله چه هغوی عمرة الحدیبیه ته تشریف اوړو، د خپلو هدایاؤ نګران او سائق ناجیه بن جندب اسلمی ؓ لره مقرر کړو، په دې باندې هغوی د نبی کریم ﷺ نه تپوس اوکړو، چه که په دې کښې څه هدی ضائع یا هلاکیږی، نو هغې سره به څه کولې شی؟ نبی کریم ﷺ اوفرمائیل چه هغه به حلاله کړې شی، او دهغې په وینو به پښې لوندې کړې شی، او وینه به دهغې په قب باندې اولګولې شی، او بیا به هم هلته کښې پریخودلې شی، و **بعث معه بثمان عشرة بدنة** ددې هدایاؤ تعداد اتلس وو، د مسلم په یو روایت کښې خو تعداد هم دا ذکر دې، او په یو روایت کښې **ست عشرة** دې، امام نووی ؒ فرمائې چه کیدې شی، چه تعدد واقعې وی، او بیا مخکښې فرمائې چه دا هم ممکن ده، چه داسې اوئیلې شی، چه مفهوم د عدد معتبر نه دې، په **ست عشر** والا روایت کښې د زائد نفی نشته، دا حدیث او ددې مضمون ترجمة الباب په بخاری شریف کښې نشته، باقی نورو کتب صحاح کښې شته،

**ولا تاکل منها انت ولا احد من رفقتک**: په ترجمة الباب کښې چه کومه مسئله ذکر ده، د حدیث دا حصه ګویا دهغې جواب او حکم دې.

(۱): سنن الترمذي/الحج ۷۱(۹۱۰)، سنن النسائي/الكبرى/الأطعمة(۶۶۳۹)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۰۱(۳۱۰۶)، (تحفة الأشراف: ۱۱۵۸۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۴۷(۱۴۸)، مسند احمد(۳۳۴/۴)، سنن الدارمي/المناسك ۶۶(۱۹۵۰)(صحیح)

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمة:

هغه دا چه دداسې قسمه هدی غوښه نه خو د مهدی دپاره جائز دې، او نه دهغه د ملګرو دپاره، د امام شافعی رحمه الله او امام احمد رحمه الله مسلک خو مطلقا هم دادې، او امام مالک رحمه الله فرمائي چه د مهدی دپاره خو مطلقا جائز نه ده، او د رفقه دپاره مطلقا جائز دې، او احناف وائی، چه د مهدی حکم خو هم دادې، او د ملګرو دپاره دا نهی په هغه صورت کښې ده، چه کله هغوی غنیان وی، او که هغوی فقراء وی، نو خوړلې شی.

دا حکم او اختلاف مذکور په هدی د تطوع کښې دې،[1] او د هدی واجب دا حکم نه دې، بلکه هغې لره مهدی او رفقاء ټول خوړلې شی، ځکه چه د واجب هدی بدل خو په مهدی باندې واجب دې، لهذا په دې کښ(یعنی هلاک کیدونکې ځاروی) کښې هغه ته اختیار دې، چه څه کول غواړی کولې شی.

### تکمیل:

اوس دلته کښې یوه مسئله بله قابل ذکر ده، چه د ترجمة الباب والا مسئلې مقابل ده، هغه داچه کومه هدی خپل محل ته اورسی او ذبح شی، دهغې حکم څه دې؟ هغې لره مهدی خوړلې شی، یا نشی خوړلې؟ جواب دادې، چه په دې کښې تفصیل دې، هغه داچه اما الهدی الذی بلغ محله فیجوز الاکل من دم التمتع والقران والتطوع دون ما سواها اعنی دم الجنایة عندنا الحنفیة والحنابلة و قریب منه مذهب المالکیة و عند الشافعی رحمه الله لا یجوز الاکل من الدماء الواجبة حتی دم التمتع والقران بل یجوز التطوع فقط(من الاوجز)

[۱۷۶۳] ([2]) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا حَمَّادٌ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، وَهَذَا حَدِيثُ مُسَدَّدٍ، عَنْ أَبِي التَّيَّاحِ، عَنْ مُوسَى بْنِ سَلَمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: بَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُلَانًا الْأَسْلَمِيَّ وَبَعَثَ مَعَهُ بِثَمَانِ عَشْرَةَ بَدَنَةً، فَقَالَ: أَرَأَيْتَ إِنْ أُزْحِفَ عَلَيَّ مِنْهَا شَيْءٌ؟ قَالَ: "تَنْحَرُهَا، ثُمَّ تَصْبُغُ نَعْلَهَا فِي دَمِهَا، ثُمَّ اضْرِبْهَا عَلَى صَفْحَتِهَا وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا أَنْتَ وَلَا أَحَدٌ مِنْ أَصْحَابِكَ، أَوْ قَالَ: مِنْ أَهْلِ رُفْقَتِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ مِنْ هَذَا الْحَدِيثِ قَوْلُهُ: "وَلَا تَأْكُلْ مِنْهَا أَنْتَ وَلَا أَحَدٌ مِنْ رُفْقَتِكَ"، وَقَالَ فِي حَدِيثِ عَبْدِ الْوَارِثِ: "ثُمَّ اجْعَلْهُ عَلَى صَفْحَتِهَا مَكَانَ اضْرِبْهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَبَا سَلَمَةَ، يَقُولُ: إِذَا أَقَمْتَ الْإِسْنَادَ وَالْمَعْنَى كَفَاكَ.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مروی دی، چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فلان اسلمی لره اولیږلو او د هغه

---

[1]) تنبیه: امام ترمذی په جامع ترمذی (ص ۱۱۰) کښې ددې تصریح کړې ده اود امام شافعی او احمد دوارو مسلک ئې یو لیکلې دې، هم دغسې قاضی عیاض د امام مالک او جمهورو مسلک لیکلې دې او همدغسې ابن قدامه هم، وهکذا ملهب الشافعی فی کتاب الأم، لیکن امام نووی په شرح مسلم (ص ۴۲۶) کښې د هدی تطوع په ځای د هدی واجب حکم لیکلې دې (ګویا معامله ئې برعکس کړه) او د هدی تطوع باره کښې ئې دا لیکلی دی چه ددې مهدی ته اختیار دې چه څه غواړی اودې کړی او هم ددې موافق علامه قسطلانی او علامه عینی لیکلی دی حضرت شیخ په اوجز المسالک کښې ددې ته ترجیح ورکړې ده کوم چه مونږ په اصل شرح کښې لیکلې دې.

[2]): صحيح مسلم/الحج ٦٦(١٣٢٥)، سنن النسائي/الكبرى/الحج(٤١٣٦)، وانظر أيضا ما قبله،( تحفة الأشراف: ٦٥٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢١٧/١، ٢٤٤، ٢٧٩)(صحيح)

سره ئې اتلس(۱۸) اوښان دَ قربانئ اولیږل - هغه اووې، اوفرمائئ کۀ چرې دَ هغې نه یو( څاروې) خپله خپه راکاږی( یعنی دَ تللو نه عاجز شی او ستړې شی نو؟) حضور ﷺ اوفرمائیل : هغې لره نحر( ذبح) کړه، دَ هغې نوکو لره په وینې سره رنګ کړه او دَ هغې په ڤُب باندې نشان اولګوه او تۀ او ستا دَ ملګرو نه دې، ددې نه څۀ نۀ خوری-" دَ حدیث لفظ [ من اصحابک ] وو یا [ من اهل رفقتک ] وو - امام ابوداودرحمه الله فرمائی چه په دې حدیث کښې دا جمله [ ولا تاۤ کل منها انت ولا احد من اهل رفقتک ] منفرده ده او دَ عبد الوارث په روایت کښې دَ [ ثم اضربها ] په ځائې باندې اجعله علی صفحتها] راغلې دې - امام ابوداودرحمه الله فرمائی چه ما دَ ابو سلمه( موسیٰ بن اسماعیل المنقری) نه اوریدلې دی هغه وئیل چه کله تاسو دَ حدیث سند او دَ هغې معنیٰ په صحیح او درست طور باندې بیان کړئ نو کافی ده( دَ الفاظو په بدلولو سره څۀ فرق نۀ پروځی، یعنی روایت بالمعنیٰ جائز دې)

**تنبیه** : په بعضو نسخو کښې دا باب په حدیث ابن عباس رضی الله عنه باندې ختم شوې دې، او مخکښې چه کوم درې احادیث نور راروان دی، دهغې نه مخکښې په هغې نسخو کښې بسم الله الرحمن الرحیم لیکلې شوې ده، دهغې وجه په ظاهر کښې داده، چه په هغې باندې د سنن ابوداؤد دوه دیرش اجزاؤ کښې لسم جزء ختم شوې دې، او حدثنا هارون بن عبدالله نه الجزء الحادی عشر شروع شوې دې، پس شاید دجزء ابتداء کیدلو د وجې نه بسم الله لیکلې شوې ده، او داسې هم معلومیږی، چه د بسم الله نه پس حدیث شروع کیدو نه مخکښې کیدې شی چه ترجمة الباب وی، چه د ناسخینو نه په لیکلو کښې ساقط شوې دې، ځکه چه اوس کوم درې احادیث په دې باب کښې نور راروان دی، دهغې دې موجوده ترجمة الباب سره هیڅ تعلق نشته.(عون المعبود)

**تشریح: قوله**: عن علی قال لما نحر رسول الله(صلی الله علیه وسلم) بدنه فنحر ثلاثین بیده و امرنی فنحرت سائرها.

[۱۷۶٤]() حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدٌ، وَيَعْلَى ابْنَا عُبَيْدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "لَمَّا نَحَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُدْنَهُ فَنَحَرَ ثَلَاثِينَ بِيَدِهِ، وَأَمَرَنِي فَنَحَرْتُ سَائِرَهَا".

دَ حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ کله خپل اوښ لره نحر کړو نو دیرش اوښان ئې په خپل لاس سره نحر کړل او دَ باقی دَ پاره ئې ماته حکم اوکړو او ما هغې لره نحر کړل-

**فائده** : صحیح تر روایت دادې چه نبی کریم ﷺ درې شپیتۀ اوښان په خپل لاس سره نحر کړې وو او باقی حضرت علی رضی الله عنه -"(صحیح مسلم، الحج، حدیث : ۱۲۱۸)

**د حدیث شرح او د روایات مختلفه توجیه:**

په حجة الوداع کښې د نبی کریم ﷺ د هدایاؤ تعداد یو سل وو، لکه چه روایاتو کښې

---

(۱): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۰۲۲۱)(منکر)

مشهور دی، ددې نه پس پوهه شئ، چه حديث جابر ﷺ چه د حجة الوداع په سلسله کښې ډير طويل حديث دې، او مخکښې په كتاب كښې مستقل باب راروان دې، په هغې کښې دادی، چه نبی کریم ﷺ په سلو اوښانو كښې د ثلاث و ستين نحر په خپلو لاسونو مبارک سره اوكړو، او باقی د اووۀ ديرشو اوښانو نحر حضرت على ﷺ اوكړو، او په دې موجوده روايت كښې دادی، چه نبی کريم ﷺ په خپله صرف ديرش اوښان نحر كړل؟ ددې تعارض ډير جوابات دی،

(۱) تعدد واقعه يعنی كيدې شی، چه دا د حجة الوداع نه علاوه بله څه موقع وی،

(۲) ذكر القليل لا ينفي الكثير

(۳) حديث جابر الطويل ددې حديث په نسبت اصح دې.

(۴) د يو حديث نه پس بل حديث راروان دې، په هغې كښې دادی، چه كله نبی كريم ﷺ د نحر اراده اوفرمائيله، نو وې فرمائيل، ابوحسن(علی ﷺ) لره راؤغواړئ، چه كله هغه راغلو، نو نبی كريم ﷺ هغه ته اوفرمائيل : خذ باسفل الحربة و اخذ رسول الله(صلى الله عليه وسلم) باعلاها نو دواړو په يو ځائې نحر اوكړو، ددې حديث د وجې نه دا وئيلې شی، چه په سلو اوښانو كښې ديرش اوښان نبی كريم ﷺ د علی ﷺ د مدد نه بغير ذبح كړل، او درې ديرش ئې د علی ﷺ په مدد سره ذبح كړل،(دا ټول درې شپيتهٔ شول، چه دهغې ذكر په حديث جابر ﷺ كښې دې) [1] او باقی اووۀ ديرش حضرت علی ﷺ يواځې نحر كړل، الحمد لله په دريو واړو احاديثو كښې تطبيق اوشو.

[۱۷۶۵](۱) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُوسَى الرَّازِيُّ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَخْبَرَنَا عِيسَى، وَهَذَا لَفْظُ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ ثَوْرٍ، عَنْ رَاشِدِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَامِرِ بْنِ لُحَيٍّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُرْطٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِنَّ أَعْظَمَ الْأَيَّامِ عِنْدَ اللَّهِ تَبَارَكَ وَتَعَالَى يَوْمُ النَّحْرِ ثُمَّ يَوْمُ الْقَرِّ"، قَالَ عِيسَى: قَالَ ثَوْرٌ: وَهُوَ الْيَوْمُ الثَّانِي، وَقَالَ: وَقُرِّبَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدَنَاتٌ خَمْسٌ أَوْ سِتٌّ فَطَفِقْنَ يَزْدَلِفْنَ إِلَيْهِ بِأَيَّتِهِنَّ يَبْدَأُ، فَلَمَّا وَجَبَتْ جُنُوبُهَا، قَالَ: فَتَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ خَفِيَّةٍ لَمْ أَفْهَمْهَا، فَقُلْتُ: مَا قَالَ؟، قَالَ: "مَنْ شَاءَ اقْتَطَعَ".

حضرت عبد الله بن قرط ﷺ بيان كوی چه نبی كريم ﷺ اوفرمائيل : د الله تعالىٰ په نزد باندې دَ ورځو نه زياته دَ عظمت والا ورځ يوم النحر(لسم تاريخ دَ ذی الحجې) او دَ هغې نه پس يوم القرّ( يوولسم تاريخ دَ ذی الحجې) ده -" عيسىٰ دَ ثوری نه نقل كړې دی چه دا دويمه ورځ وی - او بيان كوی چه رسول الله ﷺ ته پنځۀ يا شپږ اوښان راوستې شو نو هغه حضور ﷺ ته نزدې شو چه حضور ﷺ ددې نه ابتداء( شروع) اوكړی - كله چه هغه ټول( نحر كړې شو) او په اړخونو باندې پريوتل نو حضور ﷺ په مزه غوندې څۀ اوفرمائيل چه په هغې باندې زۀ پوهه نۀ شوم نو ما اووې حضور ﷺ څۀ اوفرمائيل؟ نو وې وئيل : چه څوک

---

[1] ) نو گويا حديث دجابر كښې چه دادی چه چه حضور په خپله دری شپيته ذبح كړل يعنی مطلقًا كه په يواځې وی اوكه په مدد د علی وی.

(): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۸۹۷۷)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/الحج(۴۰۹۸)، مسند احمد(۴/۳۵۰)(صحيح)

غواړي نو (غوښنه دي) کټ کړی -"(او د ځان سره دې یوسی -)
قوله: و قرب لرسول الله(صلی الله علی وسلم) بدنات خمس او ست فطفقن یزدلفن الیه بایتهن یبدا.
د کومو هدایاؤ چه نبی کریم ﷺ په خپل لاس مبارک سره نحر کړي وو، په هغي کښې پنځه یا شپږ داسې وو، چه په خپله نبی کریم ﷺ ته نزدې راتلې، چه اوګوری، چه د کومې نه نبی کریم ﷺ شروع کوی، الله اکبر څومره خوش قسمته وې دا اوښې، چه په هغوی کښې هرې یوې دا غوختل، چه زۀ د ټولو نه مخکښې د نبیٰ کریم ﷺ په لاس مبارک سره ذبح شم، حضرت شیخ رحمه الله به ددې حدیث لوستلو په وخت کښې په ژړا شو، او دا شعر به ئې وئیلی:

همه آهوان صحراء سر خود نهاده برکف
بامید آنکه روزے بشکار خواهی آمد
نشوو نصیب دشمن که شود هلاک تیغت
سر دوستان سلامت که تو خنجر آزمائی

وایضاً: (۱) داغ جاتے ہیں تو مقتل میں پر اول سب سے دیکھئے وار کرے وہ ستم آرا کس پر

فلما وجبت جنوبها الخ : د وجوب معنی سقوط ده، یعنی چه کله ددې اوښانو اړخونه په زمکه باندې پریوتل، یعنی ذبح کړې شوې، نو نبی کریم ﷺ په مزه آواز سره اوفرمائیل: ممکن ده، چه ددې منشاء رقت وی، چه دهغې په داسې وخت کښې راتلل ظاهر دی.

[۱۷۶۶](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَاتِمٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ حَرْمَلَةَ بْنِ عِمْرَانَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ الْأَزْدِيِّ، قَالَ: سَمِعْتُ عُرْفَةَ بْنَ الْحَارِثِ الْكِنْدِيَّ، قَالَ: شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ وَأُتِيَ بِالْبُدْنِ، فَقَالَ: "ادْعُوا لِي أَبَا حَسَنٍ"، فَدُعِيَ لَهُ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فَقَالَ لَهُ: "خُذْ بِأَسْفَلِ الْحَرْبَةِ"، وَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَعْلَاهَا ثُمَّ طَعَنَا بِهَا فِي الْبُدْنِ فَلَمَّا فَرَغَ رَكِبَ بَغْلَتَهُ وَأَرْدَفَ عَلِيًّا رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

حضرت عرفه بن حارث کندی رضی الله عنه فرمائی چه زۀ په حجة الوداع کښې د نبی کریم ﷺ سره حاضر وُم چه د قربانۍ اوښان راوستلې شو - حضور ﷺ اوفرمائیل : ابو الحسن(علی) لره راوبله -" چنانچه علي رضی الله عنه د هغوی ﷺ د پاره راوبللې شو، نو حضور ﷺ ورته اوفرمائیل : حربه( وړوکي نیزه) د لاندې نه اونیسه، او خپله هغوی ﷺ اعلیٰ طرف د هغې اونیولو، بیا ئې په هغې سره اوښان( په نحر کولو کښې) وهل - هرکله چه هغوی فارغ شو نو په خچر باندې سور شو او حضرت علی رضی الله عنه لره ئې هم د ځان سره کینولو -"

## بَابُ كَيْفَ تُنْحَرُ الْبُدْنُ

### باب: ۲۰ - اوښان دې څنګه نحر کړې شی -

بدن د بدنه جمع ده، دا مخکښې تیر شوې دی، چه په بدنه کښې اصل خو ابل دې، او ددې اطلاق په بقره باندې هم کیږی، لیکن دلته کښې مراد ابل دې.

(۱) دا درې واړه اشعار دحضرت شیخ په تالیف جزء حجة الوداع کښې هم مذکور دی.
(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۰۱۹)(ضعیف)

[۱۷٦٧]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، وَأَخْبَرَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَابِطٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ "كَانُوا يَنْحَرُونَ الْبَدَنَةَ مَعْقُولَةَ الْيُسْرَى قَائِمَةً عَلَى مَا بَقِيَ مِنْ قَوَائِمِهَا".

حضرت ابو خالد احمر، د ابن جريج نه، هغوی د ابو الزبير نه، او هغوی د حضرت جابر رضی الله عنه نه روايت کوی ... او (ابن جريج وئيلي دی) ماته عبد الرحمن بن ثابت خبر راکړې دې ...
چه نبی کريم ﷺ او د هغوی صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم به اوښ لره نحر کولو او هغه (اوښ) به ګسه خپه تړلې شوې وه او په باقی درې خپو باندې به ولاړ وو -

**په نحر او ذبح کښې فرق:**

نحر وئيلې شی: د سينې سره نزدې رګونه په نيزې وغيره سره کټ کولو ته، په داسې طريقې سره چه په يو ځل ئې کار ختم شی، او ذبح وئيلې شی، د زنې نه لاندې رګونه کټ کول،(٢) په دې کښې د عادت مطابق بيا بيا لاس راکاږل وی.

الحاصل محل د نحر د ځټ نه لاندې ځائې دې، او محل د ذبح اعلى العنق يعنی د ځټ نه بره ځائې دې، قال العينی ص٤٧ ج١٠ والذبح هو قطع العروق التی فی اعلى العنق تحت اللحيين والنحر يكون فی اللبة كما ان الذبح يكون فی الحلق،

بيا د نحر دوه صورتونه دی، يو قائمه دويم بارکة، يعنی اوښې لره په ولاړه باندې نحر کول، يا په ناسته باندې، افضل قائما دې، بارکة هم جائز دې، ليکن په قائمة کښې خطره کيدې شی، چه اوښ اوتښتی، په اوښ کښې مسنون نحر دې، او په غنم او بقر کښې ذبح مسنون ده، لهذا د ذبح په ځائې نحر او د نحر په ځائې ذبح مکروه ده، او په ذبح کښې اصل طريقه مضطجعا ده، او قائما خلاف اولی ده، دا ټول تفصيل چه کوم اوليکلې شو، د ائمه اربعه مسلک دې، د ائمه ثلثه او احنافو په دې کښې هيڅ اختلاف نشته، ليکن عام طور باندې شراح حديث دا ليکلې دی، چه د حنفيه په نزد په نحر کښې اطلاق دې، قائمة او بارکة دواړه برابر دی، حالانکه داسې نه ده، زمونږ په نزد هم نحر کښې اصل طريقه او افضله طريقه قائمه ده، لکه چه په کتب احناف کښې مصرح دی، د شارحينو نه په نقل مذهب کښې غلطی شوې ده، دهغې منشاء په ظاهر کښې هغه قصه ده، کومه چه د امام صاحب نه منقول ده، هغه دا چه امام صاحب رحمه الله فرمائي چه ما يو ځل د بدنه نحر کولو قائمة، ليکن ما په هغې باندې قابو اونه موندلو، او هغه اوښ اوتښتيدو، نزدې وه چه ډير خلق دهغه د وجې نه هلاک شوې وې، نو په دې باندې ما پخه اراده اوکړه، چه ائنده به هميشه د اوښ نحر بارکة کوم،

د حسن بصری او عطاء په دې کښې اختلاف دې، علامه باجی د حسن بصری او ابن قدامه د عطاء مسلک دا نقل کړې دې، چه ددې دواړو حضراتو په نزد نحر بارکة اولی دې، (بذل و اوجز)

---

(١): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف: ٢٨٦٨)(صحيح)

(٢) د سکين (چاړه) په ذريعه سره.

### هل يجوز نحر ما يذبح و ذبح ما ينحر؟:

دلته کښې يوه مسئله بله ده، د نحر په ځائې باندې ذبح او د ذبح په ځائې باندې نحر اختيارول څنګه دی، (۱) جواب دادې، چه داسې کول د داؤد ظاهری په نزد حرام دی، او که وې کړل، نو دهغې خوړل حلال نه دی، او د جمهور علماء او ائمه ثلثة په نزد داسې کول صرف مکروه دی، په امامانو کښې د امام مالک رحمه الله په دې کښې اختلاف دې، دهغوی په نزد ابل کښې نحر او غنم کښې ذبح واجب ده، او که ددې خلاف ئې اوکړل، نو بيا دهغې خوړل حلال نه دی، ليکن دا مسئله دهغوی په نزد په اختيار کښې ده، که مجبورا ئې داسې اوکړل، نو هيڅ خرج په کښې نشته، او په بقر کښې دهغوی په نزد ذبح اولی ده، واجب نه ده، لهذا که د بقر نحر اوکړې شي، نو جائز دی، (اوجز ج۳ ص۵۹۴)

[۱۷۶۸] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، أَخْبَرَنِي زِيَادُ بْنُ جُبَيْرٍ، قَالَ: "كُنْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ بِمِنًى فَمَرَّ بِرَجُلٍ وَهُوَ يَنْحَرُ بَدَنَتَهُ وَهِيَ بَارِكَةٌ، فَقَالَ: ابْعَثْهَا قِيَامًا مُقَيَّدَةً سُنَّةَ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

حضرت زياد بن جبير رضی الله عنه فرمائی چه زۀ په منیٰ کښې د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه سره وم چه هغوی په يو سړی باندې تير شو او هغه دخپلې اوښې نحر کول غوښتل په داسې حال کښې چه هغه (اوښه) ملاسته وه - نو حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائيل: " دې له اودروه، چه (يوه) خپه ئې تړلې شوې وی - هم دا دَ محمد ﷺ سنّت دی - "

### شرح حديث:

(**نحوی تحقيق**): ابعثها قياما مقيدة : ابعثها يعنى اقمها او قياما بمعنى دقائمة حال مؤکده دې، او مقيدة يا خو حال ثانی دې، يا د ماقبل دپاره صفت دې، يعنی د حضرت ابن عمر رضی الله عنه تيريدل په يو سړی باندې اوشو، چه د خپل اوښ نحر ئې بارکة (په ناسته) کوؤ، حضرت ابن عمر رضی الله عنه اوفرمائيل چه دۀ له اودروه، په دې حال کښې چه دې مقيد وی،

يعنی ددۀ ګس لاس تړلې شوې وی، لکه چه د نحر په صورت کښې کولې شی،

سنة ابی القاسم (صلی الله علی وسلم) سنة منصوب بنزع الخافض دې، ای علی سنة يا بتقدير الزم او يا مرفوع دې، هی سنة محمد (صلی الله علی وسلم)

[۱۷۶۹] (۳) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ يَعْنِي ابْنَ عُيَيْنَةَ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ الْجَزَرِيِّ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: "أَمَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَقُومَ

---

(۱) وفي الأوجز (ص ۵۹۴ ج ۳) قال الحافظ ونحر البقر جائز عند الجمهور والمستحب الذبح لقوله تعالي ان تذبحوا بقرة وفيه خلاف الحسن بن صالح. آه، اصل کښې په دې کښې اسهل ته کتلې شوی دی چه دکوم حيوان په حق کښې کوم صورت اسهل وو هغه اختيار کړې شوې دې د اوښ په حق کښې اسهل نحر دې په دې وجه دې کښې نحراولی دې اوپه غنم او بقرکښې اسهل ذبح ده په دې وجه دلته ذبح اولی ده.

(۲): صحيح البخاري/الحج ۱۱۸(۱۷۱۳)، صحيح مسلم/الحج ۶۳(۱۳۲۰)، سنن النسائي/الكبري/ الحج(۴۱۳۴)، (تحفة الأشراف: ۶۷۲۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/۳، ۸۶، ۱۳۹) سنن الدارمي/المناسك ۷۰(۱۹۵۵) (صحيح)

(۳): صحيح البخاري/الحج ۱۲۰(۱۷۱۶)، ۱۲۱(۱۷۱۷)، صحيح مسلم/الحج ۶۱(۱۳۱۷)، سنن النسائي/ الكبري/ الحج(۴۱۴۶، ۴۱۴۷)، سنن ابن ماجه/المناسك ۹۷(۳۰۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۰۲۱۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/ ۷۹، ۱۲۳، ۱۳۲، ۱۴۳، ۱۵۴، ۱۵۹)، سنن الدارمي/المناسك ۸۹(۱۹۸۳) (صحيح)

عَلَى بُدْنِهِ وَأَقْسِمَ جُلُودَهَا وَجِلَالَهَا، وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أُعْطِيَ الْجَزَّارَ مِنْهَا شَيْئًا"، وَقَالَ: "نَحْنُ نُعْطِيهِ مِنْ عِنْدِنَا".

حضرت علی رضي الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ ماته امر اوکړو چه زۀ د خپلو اوښانو سره اودریږم: (چه هغه نحر کولې شو) او دَ هغې څرمن او جُهول لره تقسیم کړم - قصاب ته ددې نه هیڅ څیز ورنۀ کړم، هغوی اوفرمائیل چه دَ قصاب مزدوری به مونږ دَ خپل ځان نه ورکوله -" (د قربانئ دَ څاروی نه به مو هیڅ په مزدورئ کښې نۀ ورکول -)

## بَابٌ فِي وَقْتِ الْإِحْرَامِ

### باب: ۲۱ - دَ احرام ترلو وخت -

دلته کښې دوه څیزونه دی، یو مکان احرام، یعنی محل احرام چه هغې ته میقات وئیلې شی، ددې باب په شروع کښې تیر شوې دې، او دویم څیز زمان او وقت احرام دې، چه هغې لره مصنف دلته کښې بیانوی.

په دې خبره پوهیدل پکار دی، چه د احرام مسنون طریقه داده، چه اول دې سرې ګنډلې شوې جامې اوباسی، او د احرام په نوم دې دوه څادرونه واغوندی، او دوه رکعته تحیة الاحرام دې ادا کړی (د احرام په څادر کښې دې سر پټ کړی) بیا دې سلام اړولو نه پس سر ښکاره کړی، او د حج یا عمرې څه چه هم مقصود وی، دهغې په نیت سره دې تلبیه وائی، بس اوس دې محرم شو، خلاصه دا چه د نسک په ارادې سره تلبیه وئیلو نوم احرام دې، دې حاصل دا شو، چه احرام دې دمانځه په ځائې باندې په ناسته قبلې ته مخامخ اوتړی، د احنافو او حنابله په نزد اولی دادی، او د شافعیه په نزد اولی دادی، چه د مونځ نه فارغیدو نه پس، چه کله په سورلئ باندې سور شی، او د میقات نه روانیږی، هغه وخت کښې دې تلبیه اوائی او محرم دې شی، وعن مالک روایتان دا د ترجمة الباب د مسئلې تشریح شوه.

[۱۷۷۰] (۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي ابْنَ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: حَدَّثَنِي خُصَيْفُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْجَزَرِيُّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: قُلْتُ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ: يَا أَبَا الْعَبَّاسِ، عَجِبْتُ لِاخْتِلَافِ أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي إِهْلَالِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَوْجَبَ، فَقَالَ: "إِنِّي لَأَعْلَمُ النَّاسِ بِذَلِكَ، إِنَّهَا إِنَّمَا كَانَتْ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّةٌ وَاحِدَةٌ فَمِنْ هُنَاكَ اخْتَلَفُوا، خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجًّا، فَلَمَّا صَلَّى فِي مَسْجِدِهِ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْهِ أَوْجَبَ فِي مَجْلِسِهِ، فَأَهَلَّ بِالْحَجِّ حِينَ فَرَغَ مِنْ رَكْعَتَيْهِ، فَسَمِعَ ذَلِكَ مِنْهُ أَقْوَامٌ فَحَفِظْتُهُ عَنْهُ، ثُمَّ رَكِبَ فَلَمَّا اسْتَقَلَّتْ بِهِ نَاقَتُهُ أَهَلَّ، وَأَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْهُ أَقْوَامٌ، وَذَلِكَ أَنَّ النَّاسَ إِنَّمَا كَانُوا يَأْتُونَ أَرْسَالًا فَسَمِعُوهُ حِينَ اسْتَقَلَّتْ بِهِ نَاقَتُهُ يُهِلُّ، فَقَالُوا: إِنَّمَا أَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ اسْتَقَلَّتْ بِهِ نَاقَتُهُ، ثُمَّ مَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا عَلَا عَلَى شَرَفِ الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ، وَأَدْرَكَ ذَلِكَ مِنْهُ أَقْوَامٌ، فَقَالُوا: إِنَّمَا أَهَلَّ حِينَ عَلَا عَلَى شَرَفِ الْبَيْدَاءِ، وَايْمُ اللَّهِ، لَقَدْ أَوْجَبَ فِي مُصَلَّاهُ وَأَهَلَّ حِينَ اسْتَقَلَّتْ بِهِ نَاقَتُهُ وَأَهَلَّ حِينَ عَلَا عَلَى شَرَفِ الْبَيْدَاءِ". قَالَ سَعِيدٌ: فَمَنْ أَخَذَ بِقَوْلِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ أَهَلَّ فِي مُصَلَّاهُ إِذَا فَرَغَ مِنْ رَكْعَتَيْهِ.

حضرت سعید بن جبیر رحمه الله فرمائی چه ما حضرت عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ته اووئیل اې ابو العباس ماته تعجب دې چه اصحاب رسول دَ رسول الله ﷺ په احرام کښې اختلاف کوی چه

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۵۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۲۶۰) (ضعيف الإسناد)

هغوی په کوم وخت کښې احرام تړلې وو - هغوی اوفرمائيل : زهٔ په دې باره کښې دَ ټولو نه زيات خبردار يم - په اصل کښې حضور ﷺ هم يو حج کړې دې نو په دې وجه سره اختلاف شوې دې - هغوی ﷺ دَ حج په نيت سره روان شو ، کله چه هغوی په خپل جمات ذوالحليفه کښې دوه رکعته ادا کړل نو حضور ﷺ هم په دې مجلس کښې نيت اوفرمائيلو او ددې دوو رکعتونو دَ فارغ کيدو نه پس ئې دَ حج تلبيه اوونيله - پس څهٔ خلقو دغه واوريدله او هغې لره ئې ياده کړه - بيا هغوی په خپلې سورلئ باندې سوارهٔ شو ، کله چې سورلی اودريدله نو هغوی ﷺ تلبيه اوونيله - څهٔ خلقو دې لره ياد کړل - په حقيقت کښې خلق به ډلې ډلې حضور ﷺ ته راتلل نو کومو خلقو چه دَ هغوی نه تلبيه اوريدله په داسې حال کښې چه هغوی ﷺ په اوښه باندې ناست وو ، نو هغوی هم دا اوګڼرله چه حضور ﷺ په خپله اوښه باندې دَ سوريدو نه پس کله چه هغه اودريدله ، تلبيه ئې اوفرمائيله - بيا رسول الله ﷺ روان شو او کله چه دَ مقام بيداء بلندی ته اورسيدو نو هغوی ﷺ تلبيه اوونيله - څهٔ خلقو دې لره اومنډله نو هغوی اووې چه حضور ﷺ دَ مقام بيداء په بلندئ باندې تلبيه وئيلې ده «سعيد وائی» قسم دې په الله ! حضور ﷺ هم په خپل جائې نماز باندې تلبيه وئيلې وه - بيا چه کله حضور ﷺ په خپله اوښه باندې کيناستو او اوښه پاسيدله نو تلبيه ئې اوونيله - او کله چه دَ مقام بيداء بلندئ ته اورسيدل نو هغوی تلبيه اوونيله - سعيد بن جبير وائی چه کوم خلق دَ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما په بيان باندې عمل پيرا دی نو هغوی دَ خپلودوو رکعتو کولو نه پس په جائې نماز باندې تلبيه وائی -

**تشريح: قوله:** عن سعيد بن جبير قال قلت لعبدالله بن عباس يا ابا العباس عجبت لاختلاف اصحاب رسول الله(صلی الله عليه وسلم) فی اهلال رسول الله(صلی الله عليه وسلم)

## مضمون حديث :

په دې سلسله کښې روايات حديثيه هم مختلف دی، په حديث الباب کښې دادی، چه د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې اختلاف روايات تپوس اوکړې شو ، هغوی چه کوم جواب ارشاد اوفرمائيلو ، دهغې حاصل دادې، چه نبی کريم ﷺ ته بعدالهجرة چونکه صرف د يو حج موقع ملاؤ شوې وه، ددې وجې نه رش وو ، چاچه به اوريدل چه نبی کريم ﷺ حج ته تشريف اوړی، نو هغه به د رسول الله ﷺ په قافله کښې شامليدو ، عرض دا چه ټول خلق په يو ځائې د مدينې منورې نه روان شوې نه وو ، پس کوم خلق چه د شروع نه د نبی کريم ﷺ سره وو ، هغوی نبی عليه السلام ته زيات نزدې وو ، دهغوی بيان خو دادې، چه نبی کريم ﷺ د مانځه دځائې نه احرام تړلې وو ، او کوم خلق چه دهغوی نه لرې وو ،د مسجد ذوالحليفه نه بهر هغوی ته خبر اونشو ، بيا چه د جمات نه بهر دروازې ته نبی کريم ﷺ تشريف راؤړو ، او په سورلئ باندې سوريدو په وخت کښې هغوی تلبيه دوباره وئيله،(۱) نو هغې خلقو دا

---

(۱) د حاجی دپاره دا مستحب دی چه هغه په ټولو تغير د احوالو په وخت کښې تلبيه اووائی، پورته د ختلو په وخت هم، لاندې د راښکته کيدو په وخت هم، د قافلې سره د ملاقات په وخت هم وغيره، وغيره.

اوګڼړل، چه نبی کریم ﷺ د احرام نیت په دې وخت کښې کړې دې، او کوم خلق چه دغه وخت هم موجود نه وو، بلکه نور هم روستو د نبی کریم ﷺ په قافله کښې شامل شوې وو، نو چه کله د نبی کریم ﷺ سورلی په بیداء ډیرئ باندې ختله، او هغه وخت کښې نبی کریم ﷺ بیا تلبیه وئیله، نو هغې خلقو دا اوګڼړل، چه نبی کریم ﷺ د احرام نیت دې وخت کښې کړې دې، و ایم الله لقد اوجب فی مصلاه، په خدائې قسم حقیقت دادې، چه نبی کریم ﷺ احرام د خپل مانځه دځائې نه تړلې وو،

**تشریح: قوله**: بیدائکم هذه التی تکذبون علی رسول الله(صلی الله علیه و سلم) فیها الخ:

حضرت ابن عمر رضی الله عنه دهغې حضراتو تردید فرمائی، کوم حضرات چه دا وائی، چه نبی کریم ﷺ احرام په بیداء ډیرئ دپاسه تړلې وو، ددې روایت د الفاظو متبادره معنی دا په پوهه کښې راځی، چه حضرت ابن عمر رضی الله عنه کله د بیداء ډیرئ په خوا کښې تیریدو، هغې لره لیدلو سره هغوی اوفرمائیل، دا هغه ډیرئ ده، د کومې باره کښې چه بعضې خلق دا غلطه خبره کوی، چه نبی کریم ﷺ ددې ځائې نه احرام تړلې وو، بیا ئې ددې نه پس اوفرمائیل، چه نبی کریم ﷺ خو احرام د مسجد ذوالحلیفه سره نزدې ځائې نه تړلې وو(یعنی عند الرکوب کما فی روایة الصحیحین) په دې حدیث کښې ابن عمر رضی الله عنه بعضې صحابه کرامو طرف ته د کذب نسبت کړې دې، کذب وئیلې شی، خلاف واقع خبر ورکولو ته، که عمدا وی او که سهوا او خطاء وی، والمراد ههنا الثانی.

**تشریح: قوله**: قال المنذری و اخرجه البخاری و مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجه(عون)

[۱۷۷۱](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "بَيْدَاؤُكُمْ هَذِهِ الَّتِي تُكَذِّبُونَ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهَا مَا أَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا مِنْ عِنْدِ الْمَسْجِدِ، يَعْنِي مَسْجِدَ ذِي الْحُلَيْفَةِ".

حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه فرمائی : تاسو خلق ددې میدان بیداء په باره کښې د رسول الله ﷺ متعلق غلطه وائئ - هغوی هم دَ جمات نه تلبیه شروع فرمائیلې وه ... یعنی دَ ذوالحلیفه دَ جمات نه -

[۱۷۷۲](2) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ أَبِي سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ عُبَيْدِ بْنِ جُرَيْجٍ، أَنَّهُ قَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ: "يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، رَأَيْتُكَ تَصْنَعُ أَرْبَعًا لَمْ أَرَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِكَ يَصْنَعُهَا، قَالَ: مَا هُنَّ يَا ابْنَ جُرَيْجٍ؟ قَالَ: رَأَيْتُكَ لَا تَمَسُّ مِنَ الْأَرْكَانِ إِلَّا الْيَمَانِيَيْنِ، وَرَأَيْتُكَ تَلْبَسُ النِّعَالَ السِّبْتِيَّةَ، وَرَأَيْتُكَ تَصْبُغُ بِالصُّفْرَةِ، وَرَأَيْتُكَ إِذَا

[1]): صحیح البخاري/الحج ۲(۱۵۱۵)، ۲۰(۱۵٤۱)، والجهاد ۵۳(۲۸٦۵)، صحیح مسلم/الحج ۳، ٤(۱۱۸٦)، سنن الترمذي/الحج ۸(۸۱۸)، سنن النسائي/الحج ۵٦(۲۷۵۸)، وانظر أیضا ما بعده،( تحفة الأشراف: ۷۰۲۰)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ۱٤(۲۹۱٦)، موطا امام مالك/الحج ۹(۳۰)، مسند احمد(۲/۱۰، ۱۷، ۱۸، ۲۹، ۳٦، ۳۷، ٦٦، ۱۵٤)، سنن الدارمي/المناسك ۸۲(۱۹۷۰) (صحیح)

[2]): صحیح البخاري/الوضوء ۳۰(۱٦٦)، والحج ۲۸(۱۵۵۲) (مختصرا) ۵۹(۱٦۰۹) (مختصرا)، واللباس ۳۷(۵۸۵۱)، صحیح مسلم/الحج ۵(۱۱۸۷)، سنن الترمذي/الشمائل ۱۰(۷٤)، سنن النسائي/الطهارة ۹۵(۱۱۷)، سنن ابن ماجه/اللباس ۳٤(۳٦۲٦)،( تحفة الأشراف: ۷۳۱٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۹(۳۱)، مسند احمد(۲/۱۷، ۲٦، ۱۱۰) (صحیح)

كُنْتَ بِمَكَّةَ أَهَلَّ النَّاسُ إِذَا رَأَوُا الْهِلَالَ، وَلَمْ تُهِلَّ أَنْتَ حَتَّى كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ: أَمَّا الأَرْكَانُ، فَإِنِّي لَمْ أَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمَسُّ إِلَّا الْيَمَانِيَيْنِ، وَأَمَّا النِّعَالُ السِّبْتِيَّةُ، فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبَسُ النِّعَالَ الَّتِي لَيْسَ فِيهَا شَعْرٌ وَيَتَوَضَّأُ فِيهَا، فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَلْبَسَهَا، وَأَمَّا الصُّفْرَةُ فَإِنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْبُغُ بِهَا، فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَصْبُغَ بِهَا، وَأَمَّا الإِهْلَالُ، فَإِنِّي لَمْ أَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُهِلُّ حَتَّى تَنْبَعِثَ بِهِ رَاحِلَتُهُ".

حضرت عبيد بن جريج وائي، چه هغوی حضرت عبد الله بن عمر ﷠ ته اوونيل : اي ابو عبد الرحمٰن زۀ تالره په څلورو کارونو کولو باندې وينم، ستاسو څوک ملګرې دې لره نۀ کوی - هغوی اوفرمائيل : اې ابن جريج هغه څۀ دی؟ هغوی اووې ما تاسو لره ليدې دې چې تاسو ( دَ طواف په دوران کښې) دَ بيت الله شريف صرف دوه کونې [يمانين] ( حجر اسود او رکن يمانی) مسه کوئ، او تاسو مې ليدلې ئې چه تاسو دَداسې څرمنې پيزار په خپو کوئ چه په هغې باندې ويښته نۀ وی، او تاسو مې ليدلې ئې چه تاسو زرد ( زيړ) رنګ استعمالوئ - ( کپړو کښې يا په ويښتو کښې په طور دَ خضاب سره) او ما تاسو لره ليدلې دې چه کله تاسو په مکه کښې ئې نو خلق دَ مياشتې ليدو سره احرام تړی مګر تاسو په اتم ذی الحجې باندې احرام تړئ - حضرت عبد الله بن عمر ﷠ جواب ورکړو : تر کومه پورې چه(په طواف کښې) دَ ارکانو دَ مسه( ښکلولو) تعلق دې نو ما رسول الله ﷺ لره ليدلې دې چه هغوی به صرف دواړو يمانی ارکانو لره مسه کول -( حجر اسود او رکنَ يمانی لره -) او دَ بې وښتو څرمن دَ پيزار ...... نو ما رسول الله ﷺ لره ليدلې دې چه دَ هغوی پيزار به دداسې څرمنې وو چه په هغې باندې به ويښته نۀ وو او هغوی ﷺ به په دې کښې وضوء( اودس) کوله نو زۀ هم داسې پيزار خوښوم - او پاتې شو زرد( زيړ) رنګ ...... نو ما رسول الله ﷺ لره ليدلې دې چه هغوی به په دې سره رنګ کولو، لهذا زۀ هم په دې سره رنګ کول خوښوم - پاتې شوه احرام او تلبيه ... نو ما رسول الله ﷺ لره نۀ دې ليدلې چه هغوی دَ سورلئ دَ پورته کيدو نه مخکښې تلبيه وئيلې وی -"

يا ابا عبد الرحمن رايتک تصنع اربعا لم ارا احدا من اصحابک يصنعها الخ

**مضمون حديث :**

يو سړی د حضرت ابن عمر ﷠ نه تپوس اوکړو، چه زۀ تاسو وينم، چه څلور کارونه داسې کوئ، چه هغې لره ستاسو د ملګرو نه بل هيڅوک نه کوی(په دې حصر باندې اشکال دې، هغې لره به هم مخکښې په تشريح کښې بيان کړو) په دې هغوی ترې تپوس اوکړو، چه هغه څلور کارونه څه څه دی، هغه سړی اوئيل(۱) زۀ وينم، چه تاسو د بيت الله شريف په ارکان اربعه کښې صرف د دواړو رکنين يمانيين استلام کوئ، يعنی د رکنيين شاميين استلام نه کوئ،(۲) او بل دا چه تاسو هميشه سبتی پنړې اچوئ(يعنی د څرمنې صفا پنړې، چه په هغې باندې ويښتۀ نه وی)

(۳) تاسو د زيړ رنګ جامې اغوندئ، يا مطلب دا چه تاسو په خپلو ويښتو کښې خضاب اصفر يعنی زيړ رنګ پورې کوئ(ففيه قولان صبغ الثوب او صبغ الشعر)

(٤) چه کله تاسو په مکه کښې يئ، نو زهٔ وينم چه نور خلق د يکم ذی الحجې نه احرام تړي،[1] او تاسو د يوم الترويه نه مخکښې احرام نه تړئ، بلکه خاص يوم الترويه يعنی اتم ذی الحجه باندې احرام تړئ.

### د جواب خلاصه :

حضرت ابن عمر ﷺ ددې څلورو واړو خبرو ترتيب وار جواب ورکول شروع کړل، په شروع کښې د دريو باره کښې خو د ټولو يو جواب وو، چه ما حضور ﷺ لره اوليدلو، چه داسې ئې کول، او د څلورم څيز باره کښې هغوی خو داسې فرمائيلې نه شو، چه نبی کريم ﷺ داسې کړې وو، ځکه چه نبی کريم ﷺ د ذی قعده په آخره کښې (۲۵ يا ۲۲ ذيقعده فيه قولان) د ذوالخليفه نه د تلو په وخت کښې احرام تړلې وو، ليکن بهرحال د سفر په شروع د سوريدو په وخت کښې ئې تړلې وو، او کوم خلق چه مخکښې نه په مکه کښې مقيم وی (د کومو باره کښې چه خبره کيږي) دهغوی د سفر ابتداء چونکه د يوم الترويه نه کيږي (چه په دغه ورځ هغوی د مکې نه سور شی، او منی طرف ته ځی) ددې وجې نه ابن عمر ﷺ به هم دغه وخت کښې احرام تړلو، دې دپاره چه يو لحاظ سره د حضور ﷺ اتباع اوشی، يعنی عند الرکوب.

په دې افعال اربعه کښې بعضې داسې دی، چه هغې لره ټول حضرات يا کم ازکم اکثر خلق کوی، نو بيا د سائل دا حصر کول، چه ستاسو نه علاوه بل هيڅوک دا نه کوی، څرنګه صحيح ده؟ ددې په جواب کښې يا خو دا وئيلې شی، چه دا خبره سائل د خپل علم په اعتبار سره کړې وه، او يا داسې وئيل پکار دی، چه ددې مراد دادې، چه ددې څلورو مجموعه سوا ستاسو نه بل هيڅوک نه کوی، لهذا د مجموعې په اعتبار سره حصر صحيح شو، (قسطلانی اشارة) په دغې څلورو کښې اول او آخر لږ د تشريح کولو قابل دې، د آخر تشريح خو اوشوه، او د اول تشريح داده.

### د بيت الله ارکان اربعه :

دا خبره پيژندل پکار دی، چه د بيت الله څلور ارکان دی، چه د طواف د ترتيب په اعتبار سره دا دی، رکن حجر اسود، يعنی هغه ګوټ چه په کښې حجر اسود پروت دې، ددې نه د طواف شروع کيږي، رکن عراقی، رکن شامی، دا دواړه د حطيم طرف ته دی، دې دواړو ته تغليبا رکنين شاميين وئيلې کيږي، او څلورم رکن رکن يمانی دی،[2] رکن يمانی او رکن اسود دواړو ته تغليبا يمانيين وئيلې شی، لکه چه دلته په حديث کښې دی، په دې څلورو کښې صرف دوه ارکان، يعنی رکن اسود او رکن يمانی ته دا خصوصيت حاصل دې چه دا په قواعد ابراهيمی باندې دی، او باقی دوه يعنی شاميين په قواعد ابراهيمی باندې نه

---

[1] په دې کښې د ائمه ؤ مذاهب دادی، د امام مالک په نزد په يکم ذی الحجه باندې تړل اولی دی، اود شوافعو او حنابله ؤ په نزد په يوم الترويه باندې، اود احنافو په نزد کلما قدر فهو افضل (حاشيه بذل).

[2] ددې ارکانو د جهات تعين داسې دې: الأول في الجنوب الشرقي والثاني في الشمال الشرقي والثالث في الشمال الغربي والرابع في الجنوب الغربي وباب الكعبة شرقي اه (تکمله منهل)

دی،(۱) ددې وجې نه صرف د یمانیین استلام کیږي، او چونکه د رکن اسود یو فضیلت دا هم دې، چه په دې کښې حجر اسود پروت دې، چه د جنت نه راغلې کاڼړې دې، ددې وجې نه استلام سره ددې تقبیل هم مستحب دې، د جمهور صحابه، تابعین او د ائمه اربعه مشهور مذهب هم دادې، البته بعضې صحابه کرام لکه حضرت معاویه ﷺ او حضرت عبدالله بن زبیر ﷺ به د څلورو واړو ارکانو استلام کوؤ، کما رواه البخاری(۲) تعلیقا والترمذی موصولا، د ترمذی شریف په روایت کښې دی، چه ابن عباس ﷺ کله معاویه ﷺ اولیدو، چه هغه د څلورو واړو ارکانو استلام کولو، نو هغوی پرې اعتراض اوکړو، معاویه ﷺ اوفرمائیل لیس شئ من البیت مهجورا، چه د بیت الله شریف هیڅ یو حصه قابل ترک نه ده، او هم دا خبره د ابن الزبیر ﷺ نه هم منقول ده(کما فی الفتح ج۳ ص۱۷۹) په دې ابن عباس ﷺ اوفرمائیل لقد کان لکم فی رسول الله اسوة حسنة، هم داسې حضرت امام شافعی ﷫ فرمائیلې دی، چه دا ترک استلام هجرا للبیت نه دی، بلکه اتباع رسول ﷺ دې، او هجر څرنګه کیدې شی، هرکله چه هغه د ټول بیت الله شریف طواف کوی.

[۱۷۷۳](۳) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْمُنْكَدِرِ، عَنْ أَنَسٍ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ بِالْمَدِينَةِ أَرْبَعًا وَصَلَّى الْعَصْرَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ بَاتَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ حَتَّى أَصْبَحَ فَلَمَّا رَكِبَ رَاحِلَتَهُ وَاسْتَوَتْ بِهِ أَهَلَّ".

حضرت انس ﷺ بیان کوی چه رسول الله ﷺ په مدینه کښې د ماسپخین مونځ څلور رکعته ادا کړل او په ذوالحلیفه کښې ئې د مازیګر دوه رکعته اوکړل او هم هلته کښې ئې شپه تیره کړه تردې پورې چه صبا شو، بیا کله چه هغوی په خپله سورلئ باندې سوارهٔ شو او سورلی پورته شوه نو هغوی ﷺ تلبیه اوفرمائیله۔"

**تشریح: قوله:** عن انس ﷺ قال صلی رسول الله(صلی الله علیه و سلم) الظهر بالمدینة اربعا و صلی العصر بذی الحلیفة رکعتین،

نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په سفر کښې د مدینې نه د ماسپخین مونځ کولو نه پس روان شو، او ذوالحلیفه(چه د مدینې نه شپږ میله فاصله کښې دې، او د اهل مدینه میقات دې) رسیدلو نه پس ئې د مازیګر دوه رکعت ادا کړل، نبی کریم ﷺ په ذوالحلیفه کښې ټول

(۱) د حضور ﷺ د بعثت نه مخکښې واقعه ده چه د قریش کافرانو د بیت الله شریف سر دوباره تعمیر کړې وو، د تعمیر ابتداء ئې د رکنین یمانین د طرفه کړې وه لیکن موجوده رکنین د شامیین پورې د رسیدو نه پس اندازه اوشوه چه په دې تعمیر باندې دخرچ کولو دپاره کوم طیب مال مونږ جمع کړې دی، که دا عمارت مونږ مخکښې پورې اورسولو تر کوم ځائ پورې چه مخکښې وو نو دا مال به ناکافی شی په دې وجه هغوی ددې تعمیر صرف دهغه ځائ پورې اوساتلو (کوم ځائ پورې چه اوس دې) چه ددې په وجه دا دوه رکن په خپل اصلی قدیم ځائ باندې نه دی (همدا مطلب دې په قواعد ابراهیمی باندې د نه کیدلو).

(۲) فی باب من لم یستلم الا الرکنین الیمانیین.

(۳): صحیح البخاري/الحج ۲۴(۱۵٤٦)، صحیح مسلم/المسافرین ۱(۶۹۰)، سنن النسائي/الصلاة ۱۱(۴۷۸، ٤۷۰)، سنن الترمذي/الصلاة ۲۷٤(٥٤٦)،( تحفة الأشراف: ۱۵۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۳۷/۳، ۳۷۸)(صحیح)

پنځه مونځونه ادا کړل، مازیګر، ماښام، ماسخوتن، سحر، او بیا د بلې ورځې د ماسپخین مونځ ادا کولو نه پس ئې احرام اوتړو، او روان شو، د مسلم په روایت کښې ددې تصریح ده(بذل) او خپله په دې کتاب کښې راتلونکې روایت کښې هم د ماسپخین نه پس د روانیدو ذکر دې، لیکن د ابوداؤد ددې روایت نه شبه کیږي، چه نبی کریم ﷺ د ذوالحلیفه نه په بله ورځ علی الصباح روان شو، حالانکه داسې نه ده.

[۱۷۷۴](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا رَوْحٌ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ، عَنِ الْحَسَنِ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ رَكِبَ رَاحِلَتَهُ، فَلَمَّا عَلَا عَلَى جَبَلِ الْبَيْدَاءِ أَهَلَّ".

د حضرت انس بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د ماسپخین مونځ ادا کړو، بیا په خپله سورلئ باندې سور شو او هر کله چه هغوی ﷺ د مقام بیداء بلندئ ته اورسیدل نو حضور ﷺ تلبیه اووئیله -"

[۱۷۷۵](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا وَهْبٌ يَعْنِي ابْنَ جَرِيرٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ يُحَدِّثُ، عَنْ أَبِي الزِّنَادِ، عَنْ عَائِشَةَ بِنْتِ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ، قَالَتْ: قَالَ سَعْدُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ: "كَانَ نَبِيُّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَخَذَ طَرِيقَ الْفُرْعِ أَهَلَّ إِذَا اسْتَقَلَّتْ بِهِ رَاحِلَتُهُ، وَإِذَا أَخَذَ طَرِيقَ أُحُدٍ أَهَلَّ إِذَا أَشْرَفَ عَلَى جَبَلِ الْبَيْدَاءِ".

حضرت سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه بیان کوی چه نبی کریم ﷺ به کله د " فرع " لار اختیار اوفرمائیله نو په دغه وخت کښې به ئې تلبیه شروع کووله او کله چه به سورلئ هغوی ﷺ له پورته کړو او سورلی به قائمه شوه، او کله چه به ئې دَ احد لاره اختیاروله نو په هغه وخت کښې به ئې تلبیته شروع کووله کله چه به دَ مقام بیداء په ټیلو باندې ختلو -"

قال سعد بن ابی وقاص کان نبی الله(صلی الله علیه و سلم) اذا اخذ طریق الفرع اهل اذا اسقلت به راحتله واذا اخذ طریق احد اهل اذا اشرف علی جبل البیداء.

د محل احرام باره کښې راوی وائی، چه نبی کریم ﷺ د مدینې نه مکې طرف ته سفر کښې کله طریق الفرع اختیاروله، نو احرام به ئې په سورلئ باندې د سوریدو په وخت کښې تړلو، او کله به چه د طریق احد نه نبی کریم ﷺ سفر کولو، نو احرام به ئې جبل بیداء باندې ختلو په وخت کښې تړلو.

د نبی کریم ﷺ دا متعدد سفرونه د حج دپاره خو کیدې نشی، ځکه چه حج خو نبی کریم ﷺ بعد الهجرة صرف یو کړې دې، البته عمرې ئې ډیرې کړې دی.

**د مکې نه مدینې دپاره طرق اربعه** :

ددې نه پس دا پیژندل پکار دی، چه د مدینې نه مکې ته تللو دپاره څلور لارې کتابونو لیکلې دی، په جزء حجة الوداع کښې هم حضرت شیخ رحمه الله لیکلی دی، هغه دادی:

(۱) الطریق الشرقی(۲) الطریق السلطانی(۳) الطریق الفرعی(۴) طریق الغائر.

(1): سنن النسائي/الحج ۲۵(۲۶۶۳)، ۵۶(۲۷۵۶)، ۱۴۳(۲۹۳۴)،( تحفة الأشراف: ۵۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۰۷/۳)، سنن الدارمي/الحج ۱۲(۱۸۴۸)(صحيح لغيره)

(2): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۳۹۵۶)(ضعيف)

ددې اخرى باره کښې ئې ليکلي دى، چه طريق الهجرة هم دا ده، نبى كريم ﷺ مدينې منورې ته هجرت هم په دې لاره باندې فرمائيلې وو، او نن صبا دا لاره په طريق الهجرة نوم سره مشهوره ده، ([1])

دلته کښې دا اشکال کيږى، چه په مذکوره حديث کښې طريق احد ذکر دې، حالانکه په دې طرق اربعه کښې طريق احد نشته، نو بيا دا کومه يوه لاره ده، بله دا چه حضرت په بذل کښې ليکلي دى، چه احد غر خو د مدينې نه شمال طرف ته دې، او مکه مکرمه جنوب طرف ته ده، زمونږ حضرت شيخ رحمه الله به فرمائيل، چه شايد د طريق احد نه الطريق الشرقى مراددې (احد دمدينې نه مشرق شمال طرف ته واقع دې، والله تعالى اعلم بالصواب.

## بَابُ الاِشْتِرَاطِ فِي الْحَجِّ

### باب ٢٢- په حج کښې شرط لګول

اشتراط فى الحج مشهوره اختلافى مسئله ده، او حاصل ددې دا دې، چه که يو سړي ته دا خطره وى، چه پته نه لګى، چه زۀ به احرام تړلو نه پس عافيت سره حج يا عمره اوکړې شم، او که نه؟ مکې مکرمې ته به اورسم، او که نه؟ نو هغه ددې حل داسې کوى، چه د احرام نيت داسې کوى، چه که بالفرض زۀ مکې مکرمې ته اونه رسيدم، نو په لاره کښې چه کوم ځائې کښې راته عذر پيښ شى، حلال به شم.

[١٧٧٦] ([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ الْعَوَّامِ، عَنْ هِلَالِ بْنِ خَبَّابٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ ضُبَاعَةَ بِنْتَ الزُّبَيْرِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ أَتَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَتْ: "يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أُرِيدُ الْحَجَّ أَأَشْتَرِطُ؟ قَالَ: نَعَمْ"، قَالَتْ: فَكَيْفَ أَقُولُ؟ قَالَ: "قُولِي: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، وَمَحِلِّي مِنَ الْأَرْضِ حَيْثُ حَبَسْتَنِي".

حضرت ابن عباس رضي الله عنهما بيان کوى چه (ام حکيم) ضباعه بنت الزبير بن عبد المطلب رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په خدمت کښې راغله اووې وئيل : اې دَ الله رسوله ! زۀ دَ حج اراده لرم، نو آيا څۀ شرط کړم؟ حضور ﷺ اوفرمائيل : او - هغه اووې ځنګه اووايم؟ حضور ﷺ ورته اوفرمائيل : [ لبيک اللهم لبيک ...... زۀ به په لاره کښې هم په هغه ځائې کښې حلاليږم په کوم ځائې کښې چه تۀ ما لره منع کوى -

### اختلاف ائمه او منشاء د اختلاف:

په دې کښې د ائمه اختلاف دې، شافعيه او حنابله ددې اشتراط قائل دى، احناف او مالکيه قائل نه دى، او دا اختلاف متفرع دې، په يو بل اختلاف باندې، چه دهغې باب مخکښې مستقل راروان دې، يعنى احصار، په احصار کښې د ائمه اختلاف دادې، چه

---

[1]) دا لاره د ډير وخت نه غير آباده وه اوس د يو څو کالو راسې تقريبًا د ١٤٠٣ هـ نه دا لاره شروع شوې ده دوباره دا سړک جوړ شوې دې.

[2]): سنن الترمذي/الحج ١٧(٩٤١)، سنن النسائي/الحج ٦٠(٢٧٦٧)،(تحفة الأشراف: ٥٧٥٤، ٦٢١٤، ٦٢٣٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ١٥(١٢٠٨)، سنن ابن ماجه/المناسك ٢٤(٢٩٣٦)، مسند احمد(٣٣٧/١، ٣٥٢)، سنن الدارمي/المناسك ١٥(١٨٥٢)(حسن صحيح)

احنافو خو دا وائی، چه دا د دشمن سره خاص نه دې، بلکه هر عذر او مرض ته شامل دې، لهذا د څه عذر په وجه سره چه محرم حرم شریف ته د تللو نه منع شو، نو ګویا هغه ته احصار لاحق شو، او کوم حکم د احصار چه په قرآن مجید کښې مذکور دې، یعنی دم ورکول او حلالیدل، دا حکم ددې هم دې، لهذا د احرام په وخت کښې د هیڅ شرط لګولو ضرورت نشته، بغیر د شرط نه د قاعدې مطابق هدی ذبح کولو سره محرم حلالیدې شی، او ائمه ثلثه دا فرمائي چه احصار او دهغې کوم حکم چه په قرآن مجید کښې مذکور دې، هغه د دشمن سره خاص دې،[1] د دشمن نه علاوه که څه بل مانع پیښ شی، نو دهغې دا حکم نه دې، آخر ددې حل څه دې؟ نو شافعیه او حنابله فرمائي چه ددې حل اشتراط عند الاحرام دې، چه په حدیث الباب کښې ذکر دې، یعنی د احرام په وخت کښې به دا نیت اوکړی، اللهم محلی من الارض حیث حبستنی، یا الله، په لاره کښې چه کوم ځائې کښې تهٔ مالره د مخکښې تللو نه منع کړې، نو زما د حلالیدو ځائې به هم هغه وی، د شافعیه او حنابله په نزد د اشتراط دوه فائدې دی، یو دا چه اوس به د هغه دپاره حلالیدل جائز وی، دویم دا چه دم پرې هم واجب نه دې، بغیر د هدی نه حلالیدې شی، او د احنافو په نزد اشتراط مطلقا غیر مفید دې، ځکه چه حلالیدل دهغوی په نزد هسې هم جائز دی، او هدی څرنګه چه بغیر اشتراط واجب کیږی، دغه شان بعد الاشتراط هم واجب کیږی، **فلا فائدة فی الاشتراط** او د مالکیه په نزد هم اشتراط غیر مفید دې، دهغوی په نزد که حابس او مانع غیر عدو دې، یعنی د دشمن نه علاوه بل څه عذر ورته پیښ دې، نو بیا تحلل بغیر د طواف نه هیڅ طریقې سره جائز نه دې، که شرط ئې لګولې وی، او که لګولې ئې نه وی.

## د احنافو دلیل او د حدیث الباب توجیه :

د احنافو دلیل د حجاج بن عمرو هغه حدیث مرفوع دې، چه مخکښې په باب الاحصار کښې راروان دې، من کسر او عرج فقد حل، او د شافعیه او حنابله استدلال په حدیث الباب یعنی حدیث ضباعه بنت الزبیر بن عبد المطلب باندې دې،

احنافو وائی، چه که ستاسو مراد په دې حدیث کښې دا وی، چه بعد الاشتراط تحلل جائز کیږی، په داسې طریقې سره چه دم هم ساقطیږی، نو بیا خو دا حدیث او دا حکم صرف دهغوی سره خاص دې، د واقعة حال لا عموم لها د قبیلې نه دې، او که مراد دادې، چه صرف حلال کیدلو دپاره دا شرط لګولې شی، او سقوط دم مراد نه دې، نو بیا په خصوصیت باندې هم د محمولول ضرورت نشته، ځکه چه دا حکم یعنی تحلل بالهدی د ټولو دپاره دې، پاتې شوه دا خبره، چه د احنافو په نزد تحلل بغیر اشتراط هم جائز دې، او دلته کښې حضور ﷺ هغوی ته د اشتراط حکم فرمائي؟ جواب دادې، چه ممکن ده، چه دا امر بالاشتراط صرف د هغوی د تسلئ او تطیب خاطر دپاره وی، بعضې خبرې ښځو ته لږ وروستو په پوهه کښې راځی، که څوک اوائی، چه ددې تاویل حاجت څه دې؟ جواب دادې،

[1] ځکه چه د آیت شان نزول د حدیبیه والاقصه ده او په حدیبیه کښې چه کوم حصر واقع شوې وو هغه بالعدد وو لهذا ددې حصر دا حکم دې چه دم ورکولو سره حلال شی.

دي دپاره چه د من کسر او عرج الحدیث خلاف نه شي، او شافعیه حضرات د من کسر او عرج والا حدیث جواب دا ورکوي، چه دا حدیث مطلقا نه دي، بلکه محمول عند الاشتراط دي، یعني دکسر او او عرج واقع کیدو نه پس هغه دپاره تحلل جائز دې، که چرې عند الاحرام هغه د تحلل شرط کړې وي.

## بَابٌ فِي إِفْرَادِ الْحَجِّ

### باب: ۲۳- دَ حجِ افراد احکام او مسائل

### اقسام حج:

د جمهورو په نزد د نسك يعني د حج درې قسمونه دي، قران، تمتع، او افراد، او د امام احمد رحمه الله په نزد یو څلورم قسم هم دې، فسخ الحج الی العمرة. چه په اصل کښې د تمتع یو خاص قسم دې، امام بخاري رحمه الله څلور واړه قسمونه په یو ترجمة الباب کښې ذکر کړې دي،

(۱) **تعريف القرآن**: د حج او عمرې دواړو په یو ځائې احرام تړل. بان یقول لبيك بحج و عمرة، او که مخکښې صرف د عمرې احرام اوتړي، او بیا روستو د حج نیت هم اوکړي، یعني ادخال الحج علی العمرة نو دا هم بغیر د کراهت نه جائز دې، او که ددې عکس وي (ادخال العمرة علی الحج) نو بیا به هم قران وي، لیکن داسې کول د احنافو په نزد خو صرف مکروه دي، او د شافعیه په قول راجح کښې جائز هم نه دي، بهرحال په قران کښې جمع بین الحج والعمرة وي، [۱] اول عمره کولې شي، (طواف او سعي) د هغې نه فارغ کیدو نه پس چه کله د حج تاریخونه راشي، نو په هغې کښې حج کولې شي، او په مینځ کښې تحلل یعني خروج عن الاحرام نه وي، بلکه قارن په حالت احرام کښې اوسیږي.

(۲) **تعريف التمتع**: په دې کښې هم جمع بین الحج والعمرة فی سفر واحد وي، لیکن اول په اشهر حج کښې صرف د عمرې احرام تړلې شي، دهغې نه فارغیدو نه پس که هغه سائق الهدی نه وو، نو حلالیږي، او چه کله د حج تاریخونه راشي، نو په هغې کښې بیا د احج احرام تړي اوحج کوي،

(۳) **تعريف الافراد**: صرف د حج په نیت سره احرام تړل، او حج کول،

(۴) **فسخ الحج الی العمرة**: دادې، چه سړې شروع کښې د حج احرام اوتړي، او روستو مکې مکرمې ته رسیدو نه پس د حج احرام فسخ کړي، او هغې لره د عمرې احرام مقرر کړي، او د عمرې د افعالو نه فارغیدو نه پس حلال شي، دهغې نه پس په ایام حج کښې دوباره د حج احرام اوتړي، او حج ادا کړي، نبی کریم ﷺ د حجة الوداع په کال په صحابه کرامو باندې داسې طریقه کړې وه، چه دهغې خاص مصلحت وو [۲]

---

[۱] دا خو زمونږ په نزد ده او د جمهورو په نزد په قران کښې عملا خو صرف ارکان حج ادا کولې شي، نیت البته د حج او عمرې دواړو وي او ګویا د افعال حج په ضمن کښې افعال عمره هم ادا کیږي دا مستقل یوه اختلافي مسئله ده کوم چه به وړاندې په خپل ځائې باندې راشي.

[۲] هغه دا چه د جاهلیت د زمانې د حج په میاشتو کښې به عمرې کولو ته افجر فجور (سخته ګناه) ګنړلې شوه ﴿ ويقولون اذا عفا الوبر وبراء الدبر ودخل صفر فقد حلت العمرة لمن اعمر ﴾ نو ........←

د جمهورو په نزد دا صورت د تمتع منسوخ دې، حضرت امام احمد ددې قائل دې، هغه دې لره منسوخ نه مني، دا خو دهغې اقسام حج او انواع نسك تعريف شو، اوس دلته دوه خبرې نورې پاتې شوې، چه نبی کريم ﷺ په دې قسمونو کښې کوم قسم اختيار فرمائيلې وو، دويمه خبره دا چه په دغې انواعو کښې د فضيلت په اعتبار سره ترتيب څه دې، دا دواړه خبرې د حديث الباب لاندې راروانې دی،

[۱۷۷۷](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفْرَدَ الْحَجَّ".

حضرت عائشه ﷵ بيان کوی چه رسول الله ﷺ حج افراد کړې وو۔

**تشريح: قوله**: عن عائشة ﷵ ان رسول الله (صلى الله عليه و سلم) افرد الحج:

د نبی کريم ﷺ په حجة الوداع کښې کوم احرام وو، په دې حديث کښې دهغې بيان دې، يعنی په امرين مذکورين کښې د امر اول.

### د حضور ﷺ په احرام کښې اقوال سته:

په دې کښې د علماؤ شپږ اقوال مشهور دی، چه هغې لره حضرت شيخ په جزء حجة الوداع کښې ليکلې دی،

(١) نبی کريم ﷺ مفرد وو، د اول نه تر آخر پورې، هم دا رائې د امام مالك هم ده، او هم دا په مذکوره حديث کښې هم دی.

(٢) نبی کريم ﷺ متمتع وو، او بعد الفراغ عن العمرة حلال شوې هم وو، ليکن دا قول غلط

---

ـه... رسول الله ﷺ اوغوښتل په لويه مجمع کښې د دې جاهليت د رسم پر زور ترديد اوشي او د ټولو مخکښې دا خبره راشي چه په اشهر حج کښې عمره جائز ده پس رسول الله ﷺ داسې اوکړل چه کومو صحابه کرامو د حج افراد احرام تړلې وو او هغه سائق الهدی هم نه وو (او زيات تر خلق هم داسې وو) دې ټولو ته رسول الله ﷺ اوفرمائيل چه تاسو خلق طواف او سعی کولو سره دا عمره اومنئ يعنی کوم احرام چه تاسو د حج په نيت سره تړلې دې په هغې کښې د حج نيت لره فسخ کولو سره د عمرې نيت اوکړئ او دا احرام حج احرام عمره کړئ او د عمرې نه فارغيدو سره حلال شئ، حلق راس او ګنډلې جامې واغوندئ او دا څو ورځې حلال اوسيدو سره په مکه کښې تير کړئ چه ستاسو د دې حالت مشاهده ټول خلق اوکړی او پوهه شی چه دوی ټول عمره کولو سره حلال شو دی او دا خبره ښکاره مخې ته راشی چه په اشهر حج کښې عمره کول ناجائز او د ګناه خبره نه ده او د رسول الله ﷺ فسخ الحج الي العمرة صرف په هغه خلقو باندې کول کوم چه سائق الهدی نه وو هم په دې وجه وو چه مسئله ښکاره مخې ته راشي ځکه چه د سائق الهدی دپاره حلال کيدل جائز نه دی، او دلته په دې فسخ سره چه د رسول الله ﷺ کوم مقصود وو هغه ښکاره په دې صورت کښې زيات ظاهر وه په داسې حال کښې چه خلق عمره کولو سره حلال هم شي ځکه چه که عمره خو اوکړی خو حلال نه شي نو کتونکو ته به دا څنګه معلومه شی چه هغوی عمره کړې ده او حلال هم هغه څوک کيدې شی چا چه عمره کړې وی. وهذا غاية توضيح للمقام والله ولي المرام. ١٢

(١): صحيح مسلم/الحج ١٧(١٢١١)، سنن الترمذي/الحج ١٠(٨٢٠)، سنن النسائي/الحج ٤٨(٢٧١٦)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣٧(٢٩٦٤)، (تحفة الأشراف: ١٧٥١٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ١١(٣٧)، مسند احمد(٦/٢٤٣)، سنن الدارمي/المناسك ١٦(١٨٥٣)(صحيح الإسناد)

دي، په يوه غلطئ باندې مبنى دې، چه دهغې تشريح راروانه ده،[1] ځکه چه په کثرت سره احاديثو کښې راغلى دى، لو استقبلت من امرى مااستدبرت لما سقت الهدى و لحللت، ددې نه صفا طور باندې معلوميږى، چه نبى کريم ﷺ د سائق الهدى کيدلو د وجې نه په مينځ کښې حلال شوې نه وو،

(۳) نبى کريم ﷺ متمتع وو، ليکن په مينځ کښې حلال شوې نه وو.

(۴) نبى کريم ﷺ د اول نه آخره پورې قارن وو، ابن قيم رحمه الله فرمائي چه د نبى کريم ﷺ قارن کيدل د دولسو صحابه کرامو د رواياتو نه ثابت دى.

(۵) نبى کريم ﷺ ابتداءً مفرد وو، انتهاءً قارن وو، يعنى په شروع کښې نبى کريم ﷺ صرف د حج د احرام نيت فرمائيلې وو، بيا ئې په هغې باندې د عمرې نيت هم اوفرمائيلو، يعنى نبى کريم ﷺ ادخال العمرة على الحج کړې وو،[2]

(۶) نبى کريم ﷺ ابتداء متمتع وو، او انتهاءً قارن، اختاره الامام الطحاوى او په دې کښې قول خامس بعضې محققين شافعيه او مالکيه لکه امام نووى رحمه الله او قاضى عياض مالکى رحمه الله اختيار کړې دې.

د نبى کريم ﷺ د قران يو واضح دليل هغه حديث دې، چه مخکښې په باب القران کښې راروان دې، چه هغې لره ابن عباس رضي الله عنه د عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت کړې دې، چه هغوى اوفرمائيل: اتانى الليلة آت من عند ربى عزوجل قال وهو بالعقيق فقال صل فى هذا الوادى المبارك و قل حجة فى عمرة، دا حديث په بخارى شريف کښې هم شته، ددې نه معلوميږى، چه د نبى کريم ﷺ حج، حج قران وو،[3] بلکه نبى کريم ﷺ په دې مامور من الله تعالى وو، بهرحال راجح هم دا دى، چه نبى کريم ﷺ قارن وو، که په شروع کښې وى او که انتهاء او مآلا.

**د نبى کريم ﷺ په احرام کښې د روايات مختلفه توجيه:**

او د تعارض بين الروايات المختلفه توجيه يا خو داسې کيدې شى، يعنى د ابتداءً او انتهاءً فرق، چه ابتداء مفرد يا متمتع وو، او انتهاء قارن، او يا داسې اوئيلې شى، چه اصل دا ده، چه د سړې د کوم قسم هم احرام وو، د هغې اظهار په تلبيه کښې کول پکار دى، مثلا که مفرد دې، نو اودې وائى: لبيك اللهم لبيك بحج الخ، او که متمتع وى، نو اودې وائى: لبيك بعمرة الخ، او که قارن دې، نو دواړه دې جمع کړى، او اودې وائى: لبيك بحج و عمرة، ليکن قارن دپاره ضرورى نه ده، چه هر ځل بحج و عمرة اوائى، بلکه کله بحج او کله

[1] ددې منشأ هغه حديث دې کوم چه په باب القران کښې راروان دې: عن ابن عباس ان معاوية قال له اما علمت انى قصرت عن رسول الله ﷺ على المروة، ددې تشريح به هلته راځى.

[2] داسې کول عند الشافعيه خو جائز نه دى اود احنافو په نزد جائز مع الکراهة دى، وقد تقدم هذا الاختلاف فى بيان انواع الحج.

[3] اګرچه کوم حضرات د حضور پاک ﷺ د قران قائل نه دى هغوى ددې حديث تاويل کړې دې او بل مطلب ئې اخستې دې هغه دا چه تاسو حج سره هم په دغه کال عمره هم اوکړى يا دا چه تاسو خلقو ته اوفرمايئ چه هغوى غواړى نو حج سره دې عمره هم اوکړى.

صرف بعمرة وئيلې شي، عرض دا چه د قارن دپاره د دواړو ګنجائش شته، ليکن ظاهره خبره ده، چه د تمتع په تلبيه کښې به صرف بعمرة وئيلې شي، او په افراد کښې به صرف بحج وئيلې شي،نوکوم سړې چه د نبی کريم ﷺ نه واؤريدل: لبيك بعمرة، هغه دا اوګڼړل، چه نبی کريم ﷺ متمتع دې، او چا چه واؤريدل: لبيك بحج، نو هغه دا اوګڼړل، چه نبی کريم ﷺ مفرد دې،اوچا چه واؤريدل لبيك بحج و عمرة، نوهغه دا نقل کړل، چه نبی کريم ﷺ قارن وو كما هو فی الواقع كذلك، ځکه چه د غير قارن دپاره لبيك بحج و عمرة وئيل صحيح نه دی.

## په اقسامو د حج کښې د فضيلت په اعتبار سره ترتيب:

دويمه خبره دلته کښې دا بيانول دی، د کومې ذکر چه مخکښې راغلې دې، چه په دې اقسامو کښې د فضيلت په اعتبار سره ترتيب څه دې؟ نو په دې خبره پوهيدل پکار دی، چه د احنافو په نزد ترتيب داسې دې، القران ثم التمتع ثم الافراد، او د شافعيه په نزد بالکل ددې برعکس يعنی الافراد ثم التمتع ثم القران. ليکن د افراد افضليت دهغوی په نزد په دې صورت کښې دې، چه هغه سړې په دغه کال د حج نه فارغيدو نه پس عمره هم اوکړی، ګنی فضيلت نشته،([1]) بلکه په دې صورت کښې به افراد مفضول او مکروه وی، كما فی شرح الاقناع وغيره من كتب الشافعيه، او د مالکيه په نزد ترتيب داسې دې، الافراد ثم القران ثم التمتع، و عند احمد هكذا التمتع ثم الافراد ثم القران، د حنابله دليل دادې، چه نبی کريم ﷺ اوفرمائيل :لولا انی اهديت لاهللت بعمرة، او ددې په شان نور روايات، يعنی دا چه نبی کريم ﷺ د تمتع تمنا فرمائيله،([2]) او ظاهره خبره ده، چه نبی کريم ﷺ د غير افضل تمنا نشوه فرمائيلې، او د شافعيه دليل دادې، چه کوم افراد ته هغوی افضل وائی، په هغې کښې اهتمام زيات دې، ځکه په هغې کښې د حج دپاره د ميقات نه مستقل احرام تړلې شی، او بيا بعد الفراغ من الحج د عمرې دپاره ځانله مستقل د من ادنی الحل نه احرام تړلې شی، په خلاف د تمتع،([3]) چه اګر چه په دې کښې هم د دواړو دپاره ځان ځانله احرام تړل وی، ليکن په مينځ کښې سړې د محظورات احرام نه فائده اخلی، د احرام تسلسل باقی نه پاتې کيږی، او په خلاف د قرآن چه په هغې کښې د عمرې افعال صرف تبعا او ضمنا موندلې کيږی، كما هو مسلك الجمهور.

---

[1]) يعنی د ذی الحجه د ختميدو نه مخکښې ګنی د ذی الحجه نه پس به دويم کال شروع شی په کتب شافعيه کښې ددې تصريح شته.

[2]) ددې جوا دا کيدې شی چه د تمتع تمنا هغوی د يو عارض په وجه کوله هغه داچه صحابو ته په حلال کيدو کښې تردد کيدلو په دې وجه دهغوی د تسلئ دپاره هغوی ﷺ فرمائيلی وو چه که زه هم ستاسو په شان سائق الهدی نه ووم نو زه به هم حلال شوې ووم او فسخ الحج الی العمرة به مې کړې وه او ښکاره ده چه دغه کال فسخ الحج الی العمرة د يو خاص مصلحت په وجه کړې شوې وه. والله تعالی أعلم

[3]) دا دليل صراحت سره دهغوی په کتابونو کښې ماته ملاؤ نه شو، مستنبط کيږی.

[۱۷۷۸](1) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ يَعْنِي ابْنَ سَلَمَةَ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُوَافِينَ هِلَالَ ذِي الْحِجَّةِ، فَلَمَّا كَانَ بِذِي الْحُلَيْفَةِ، قَالَ: "مَنْ شَاءَ أَنْ يُهِلَّ بِحَجٍّ فَلْيُهِلَّ، وَمَنْ شَاءَ أَنْ يُهِلَّ بِعُمْرَةٍ فَلْيُهِلَّ بِعُمْرَةٍ"، قَالَ مُوسَى فِي حَدِيثِ وُهَيْبٍ: "فَإِنِّي لَوْلَا أَنِّي أَهْدَيْتُ لَأَهْلَلْتُ بِعُمْرَةٍ"، وَقَالَ فِي حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ: وَأَمَّا أَنَا فَأُهِلُّ بِالْحَجِّ فَإِنَّ مَعِي الْهَدْيَ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، فَكُنْتُ فِيمَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ، فَلَمَّا كَانَ فِي بَعْضِ الطَّرِيقِ حِضْتُ، فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي، فَقَالَ: مَا يُبْكِيكِ؟ قُلْتُ: وَدِدْتُ أَنِّي لَمْ أَكُنْ خَرَجْتُ الْعَامَ، قَالَ: ارْفُضِي عُمْرَتَكِ وَانْقُضِي رَأْسَكِ وَامْتَشِطِي، قَالَ مُوسَى: وَأَهِلِّي بِالْحَجِّ، وَقَالَ سُلَيْمَانُ: وَاصْنَعِي مَا يَصْنَعُ الْمُسْلِمُونَ فِي حَجِّهِمْ، فَلَمَّا كَانَ لَيْلَةُ الصَّدَرِ أَمَرَ، يَعْنِي رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَذَهَبَ بِهَا إِلَى التَّنْعِيمِ، زَادَ مُوسَى: فَأَهَلَّتْ بِعُمْرَةٍ مَكَانَ عُمْرَتِهَا وَطَافَتْ بِالْبَيْتِ فَقَضَى اللَّهُ عُمْرَتَهَا وَحَجَّهَا. قَالَ هِشَامٌ: وَلَمْ يَكُنْ فِي شَيْءٍ مِنْ ذَلِكَ هَدْيٌ. قَالَ أَبُو دَاوُد: زَادَ مُوسَى فِي حَدِيثِ حَمَّادِ بْنِ سَلَمَةَ: فَلَمَّا كَانَتْ لَيْلَةُ الْبَطْحَاءِ طَهُرَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوی چه د ذوالحجي د میاشتي په راتلو باندي مونږ د رسول الله ﷺ سره اووتلو - کله چه ذوالحلیفه مقام ته راغلو نو حضور ﷺ اوفرمائیل: څوک چه د حج احرام تړل غواړی نو اودې تړی او څوک چه غواړی نو د عمرې نیت دې اوکړی - " ... موسیٰ بن ابراهیم د وهیب په روایت کښې بیان کوی چه ... (حضور ﷺ اوفرمائیل) کۀ ما د ځان سره قربانی نۀ وې راخستې نو ما به د عمرې احرام تړلو -" په وړاندې روایت کولو کښې راویان متفق دی - (حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائی چه) زۀ د هغه افرادو نه وم چاچه د عمرې دپاره احرام اوتړلو - بیا په لاره کښې په یوځائې کښې زما حیض شروع شو - رسول الله ﷺ ماته تشریف راوړو او ما ژړل - هغوی ﷺ تپوس اوکړو ولې ژاړې؟ ما اووې زۀ غوارم چه دا کال نۀ وې راغلې (نو ښۀ به وه) حضور ﷺ اوفرمائیل: خپله عمره پریږده، خپلو ویښتانو لره کولاؤ کړه او ګومنز اوکړه -" موسیٰ وائی: " او د حج نیت اوکړه ... " او سلیمان اووې ... " او داسې اوکړه لکه څنګه چه مسلمان په خپل حج کښې کوی -" الغرض کله چه (د حج نه) د واپسئ ورځ راغله نو رسول الله ﷺ حضرت عبد الرحمٰن (ابن ابی بکر رضي الله عنهما) چه دا د حضرت عائشې رضي الله عنها رور وو) حکم اوکړو، نو هغه دې لره تنعیم ته بوتله - ... موسیٰ مزید اووئیل: پس هغې د عمرې احرام اوتړلو - یعنی د خپلې عمرې په بدله کښې، بیا ئې د بیت الله شریف طواف اوکړو - هشام وائی ... په دې صورت کښې څۀ هدی (فدیه وغیره) نۀ وه -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه موسیٰ د حماد بن سلمه په روایت کښې

[1]: حديث سليمان بن حرب عن حماد بن زيد قد أخرجه: سنن النسائي/الحج ١٨٥(٢٩٩٣)، ١٨٦(٢٩٩٤)، (تحفة الأشراف: ١٦٨٦٣، ١٦٨٨٢)، وحديث موسي بن اسماعيل عن حماد بن سلمة وموسي بن اسماعيل عن وهيب، قد تفرد بهما أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٧٢٩٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحيض ١(٢٩٤)، ٧(٣٠٥)، ١٥(٣١٦)، ١٦(٣١٧)، ١٨(٣١٩)، الحج/٣١(١٥٥٦)، ٣٣(١٥٦٠)، ٣٤(١٥٦٢)، ٧٧(١٦٣٨)، ١١٥(١٧٠٩)، ١٢٤(١٧٢٠)، ١٤٥(١٧٥٧)، العمرة ٧(١٧٨٦)، ٩(١٧٨٨)، الجهاد ١٠٥(٢٩٥٢)، المغازي ٧٧(٤٣٩٥)، صحيح مسلم/الحج ١٧(١٢١١)، سنن النسائي/الطهارة ١٨٣(٢٩١) سنن ابن ماجه/الحج ٣٦(٢٩٦٣)(صحيح)

مزید اوفرمائیل : بیا کله چه د بطحاء ورځ شوه( یعنی په منی کښې د اقامت شپه) نو حضرت عائشه رضي الله عنها پاکه شوې وه -"

**تشریح: قوله**: انها قالت خرجنا مع رسول الله(صلی الله علیه و سلم) موافین هلال ذی الحجة الخ:
مونږ د نبی کریم ﷺ سره د حج د پاره د مدینې منورې نه اوتلو، په دې حال کښې چه مونږ موندونکې وو، د ذی الحجې میاشت لره، یعنی د ذی الحجې میاشت شروع کیدونکې وه، د حافظ ابن قیم رحمه الله تحقیق دادې، چه نبی کریم ﷺ د مدینې منورې نه د خیالې په ورځ ۲۵ ذی قعده باندې روان شو، او د ابن حزم په رائې کښې په ۲۴ ذی قعده یوم الخمیس باندې، یعنی د زیارت په ورځ، لکه چه وارد دی، چه اکثر د نبی کریم ﷺ عادت شریف په یوم الخمیس باندې د سفر شروع کولو وو، او په دې باندې د ټولو اتفاق دې، او په روایاتو کښې تصریح ده، چه مکې مکرمې ته نبی کریم ﷺ ۴ ذی الحجه باندې اورسیدو.

**قوله**: فلما کان بذی الحلیفة قال من شاء ان یهل بحج فلیهل و من شاء ان یهل بعمرة فلیهل بعمرة:
په شروع کښې[1] نبی کریم ﷺ په ذوالحلیفه کښې صحابه کرامو ته اختیار ورکړې وو، چه د چا کوم قسم احرام ته زړه کیږی، هغسې دې اوتړی، بیا مخکښې مکې مکرمې سره نزدې نبی کریم ﷺ د فسخ الحج الی العمرة اشاره اوفرمائیله، چه کله صحابه کرامو داسې اونه کړل،[2] نو بیا مروه ته رسیدلو سره نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته د فسخ الحج الی العمرة امر جازم او قطعی ورکړو، نو هغوی د نبی کریم ﷺ د حکم مطابق دا طواف او سعی لره د عمرې مقرر کړو، او حلال شو.

## د احرام عائشه رضي الله عنها تحقیق :

**فلما کان فی بعض الطریق حضت** : حضرت عائشه رضي الله عنها او ټولې ازواج مطهرات په دې حج کښې متمتعات وې، او په تمتع کښې دا ضروری ده، چه محرم د حج نه مخکښې د عمرې نه فارغ شی، د حضرت عائشې رضي الله عنها دپاره دا ممکن نه وه، ځکه چه دا ټول حضرات مکې مکرمې ته په څلورم ذی الحجه باندې اورسیدل، اوس مخکښې په حج شروع کیدو کښې صرف څلور ورځې باقی وې، او حضرت عائشې رضي الله عنها ته حیض په دریم ذی الحجه باندې راتلل شروع شو، صرف په څلورو پنځو ورځو کښې طهارة عن الحیض او عمره دا ټول کارونه څرنګه کیدې شی، نو بیا عائشې رضي الله عنها څه اوکړل؟ په دې سلسله کښې روایات حدیثیه کښې هم اختلاف دې، او د علماؤ او فقهاؤ په مینځ کښې هم اختلاف دې.

---

[1] ) صحیح صورت حال همدغه دې ګنی ددې موجوده حدیث د ظاهر نه خو دا معلومیږی چه حضور ﷺ صحابؤ ته د فسخ الحج الی العمرة امر په ذوالحلیفه کښې فرمائیلې وو حالانکه داسې نه ده.(کذافي البذل)

[2] ) اوځکه ئې اونه کړل چه هغوی خو دا غوښتل چه په کوم حال کښې تاسو یئ هم په هغه حال کښې هغوی هم وی او هغوی د احرام په حالت کښې وو د سائق الهدی کیدو په وجه حلال کیدې نه شو ځکه هغوی فرمائیلی وو چه: لولا اني اهدیت لأهللت بعمرة وحللت، چه که ماسره هدی نه وه نو ما به صرف د عمره احرام تړلې وو همدا وخت به تاسو سره حلال شوې ووم لیکن زه سائق الهدی یم او سوق هدی د تحلل نه مانع کیږی.

### د احنافو رائې:

د احنافو په نزد خو ددې صرف يو حل وو، هغه دا چه هغه رفض عمره اوکړی، دهغې قضاء به وروستو راؤړی، او د حج احرام دې اوتړی، ځکه چه حيض د عمرې نه خو مانع دې، د حج نه مانع نه دې، په حالت حيض کښې ښځه وقوف عرفه او رمی وغيره ټول کولې شی، البته طواف زيارت به پاکيدو نه پس اوکړی، چه کله هم پاکه شی، احناف خو د عائشې رضي الله عنها په قصه کښې دا صورت اختيار کړې دې، هغوی هم دا وائی، چه عائشه رضي الله عنها عمره پريخودله او مفرد بالحج شوه، او روستو بيا هغې ددې عمرې قضا اوکړه، چه هغې ته عمرة التنعيم وئيلې شی، او په رواياتو کښې مشهوره ده.

### د جمهورو رائې:

او د شافعيه وغيره په نزد دهغوی د مسلك مطابق ددې دوه حل دی، يو خو دا چه کوم احناف وائی، او دويم حل دا دې، چه عائشه رضي الله عنها د رفض عمره په ځائې د عمرې په احرام باندې د حج د احرام نيت هم اوکړی، او قارنه شی، ځکه چه د جمهورو په نزد په قران کښې صرف افعال حج ادا کولې شی، او د حج نه مخکښې د عمرې افعال مستقل نه شی کولې، کما سبق تفصيله في بيان انواع النسك) جمهور علماؤ په احرام عائشه رضي الله عنها کښې دا دويم شکل اختيار کړې دې، يعنی عائشه رضي الله عنها په شروع کښې متمتعه وه، او بيا روستو قارنه شوه، او هغې رفض عمره نه وه کړې، اوس سوال دا پيدا کيږی، چه په آخره کښې د محصب نه هغې چه کومه عمره کړې وه(عمرة التنعيم) هغه څنګه وه؟ ددې باره کښې هغوی دا وائی، چه هغه عمره مستانفه وه، يعنی مستقل عمره [1]، او د عمره مرفوضه قضاء نه وه، څرنګه چه احناف وائی.

د احنافو او شافعيه په دې اختلاف باندې پوهيدلو نه پس اوس مخکښې تاسو روايات اوګورئ، تاسو به دواړه قسمه روايات اوموميئ، د بعضو نه د احنافو تائيد په نظر راځی، او د بعضو نه د شوافعو او جمهورو تائيد ښکاره کيږی، چه کله يو روايت د احنافو خلاف راځی، نو هغوی په هغې کښې تاويل کوی، دغه شان چه کله د شافعيه خلاف روايت راځی، نو هغوی په هغې کښې تاويل کوی،

**فائده** : دا چه کوم مخکښې مونږ د حضرت عائشه رضي الله عنها په احرام کښې اختلاف او دهغې تفصيل ليکلې دې، د کتاب الحج ډير اهم او مشهور بحث دې، عجيبه اتفاق دې، چه څرنګه د حضور صلی الله علیه وسلم په احرام کښې د علماؤ سخت اختلاف دې، دغه شان د نبی کريم صلی الله علیه وسلم د زوجه محترمه حضرت عائشه رضي الله عنها په احرام کښې هم د علماؤ اختلاف او طويل بحث دې.

**قوله**: ارفضي عمرتك وانقضي راسك و امتشطي:

دا ټول الفاظ صريح دی د رفض عمره باره کښې، چه دهغې احنافو قائل دی، شافعيه وغيره ددې تاويل دا کوی، چه مراد دادې، چه د عمرې افعال ترك کړه، د عمرې احرام ترك کول

[1] ځکه چه په قران کښې چه دحج سره کومه عمره کيږی هغه خوضمنًا کيږی دهغه زړه اوغوښتل چه زه مستقل هم يوه عمره اوکړم لکه څنګه چه نورو ازواجو کړې ده.

مراد نه دی، او مطلب دا دې، چه صرف افعال حج ادا کړه، چه دهغې په ضمن کښې به عمره هم ادا شی، لکه چه عند الجمهور په قران کښې کیږی، لیکن په دې باندې اشکال کیږی، چه نبی کریم ﷺ عائشه رضی الله عنها ته د نقض راس(کمسئ پرانستلو) او امتشاط یعنی ږمنز کولو هم حکم فرمائیلې دې، دا دواړه خو د احرام سره منافی دې، ددې په جواب کښې هغوی وائی، چه د نبی کریم ﷺ مراد دادې، چه که ضرورت اوګنړې، نو په مزه مزه ږمنز وغیره اوکړه، په داسې طریقې سره چه ویښته مات نه شی، والله تعالی اعلم.

**قوله**: فاهلت بعمرة مکان عمرتها: په دې سره هم د احنافو تائید کیږی، کما هو ظاهر.

**قوله**: قال هشام و لم یکن فی شئ من ذلك هدی:

په دې جملې سره هم د احنافو تائید کیږی، ځکه که چرې حضرت عائشه رضی الله عنها قارنه وه کما قالوا، نو بیا د هدی نفی ولې کولې شی، په قارن باندې خو دم قران بالاتفاق واجب دې، جناب قاضی عیاض رحمه الله هم ددې اعتراف کړې دې، اګر چه امام نووی رحمه الله دې لره رد کړې دې کما فی الحل المفهم، ابن قیم په جواب کښې وئیلې دی، چه دا جمله د هشام د طرف نه مدرج ده، بعضو نورو راویانو دې لره ذکر کړې نه ده.

**قوله**: فلما کانت لیلة البطحاء طهرت عائشة رضی الله عنها :

لیلة البطحاء خو لیلة المحصب ته وئیلې شی، کوم ځائې چه هغوی د منی نه د وتلو نه پس په لاره کښې حصار شوې وو، او دا د څوارلسمې ذي الحجې شپه وه(په دیارلسم تاریخ باندې نبی کریم ﷺ د منې نه واپس شوې وو)

## په روایت باندې قوی اشکال او جواب :

که مونږ دې روایت لره صحیح اومنو، نو سوال پیدا کیږی، چه حضرت عائشه رضی الله عنها طواف زیارت کله کړې وو؟ ظاهره خبره ده، چه طواف زیارت ئې خو ددې نه ډیر مخکښې کړې وو، او ددې روایت مطابق دهغې مخکښې حالت د حیض وو، او په حیض کښې طواف ممنوع دې، ددې وجې نه ابن حزم دې روایت لره منکر ګرزولې دې.

په دې باندې ټول روایات متفق دی، چه حضرت عائشه رضی الله عنها ته حیض د دخول مکه نه مخکښې په مقام سرف کښې شروع شوې وو، بیا طهر ورته کله حاصل شو، په دې کښې دوه روایتونه دی، په یو روایت کښې دی، یوم عرفه، او په دویم روایت کښې دی، یوم النحر، او وئیلې شوې دی، چه د یوم عرفه د غسل نه مراد خو نفس غسل دې، چه د وقوف عرفه دپاره هغې کړې وو(سره د حیض نه) او په یوم النحر کښې فی الواقع هغې ته طهر حاصل شو.

او د حضرت شیخ والد صاحب مولانا محمد یحیی صاحب دا فرمائې، چه ددې روایت په سیاق کښې تقدیم او تاخیر شوې دې، اصل سیاق ددې هغه دې، چه د څو روایاتو نه پس راروان دې، و لفظه : فلما کانت لیلة البطحاء و طهرت عائشة قالت یا رسول الله(صلی الله علیه و سلم) اترجع صواحبی الخ، په دې روایت کښې طهرت عائشة جمله حالیه ده،[1] ای و قد طهرت عائشة قبلها، سبحان الله څه مزیدار جواب دې.

---

[1] په خلاف د موجوده روایت چه په دې کښې دا جمله د شرط جزا واقع کیږی.فتأمل.

[۱۷۷۹]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ نَوْفَلٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَتْ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ وَمِنَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ، وَأَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ، فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِالْحَجِّ أَوْ جَمَعَ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَلَمْ يَحِلُّوا حَتَّى كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ".

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوي چه د حجة الوداع په کال مونږ د رسول الله ﷺ سره اووتلو، په مونږ کښې بعضو د عمرې احرام اوتړلو، بعضو د حج او د عمرې او بعضو صرف د حج احرام اوتړلو - او رسول الله ﷺ د حج احرام تړلې وو، نو کومو خلقو چه د حج يا د حج او د عمرې احرام تړلې وو هغوی د قربانۍ د ورځې (يوم النحر، لسم تاريخ د ذی الحجې) پورې حلال نه شو-"

قوله: واما من اهل بالحج (²)او جمع الحج والعمرة فلم يحل حتى كان يوم النحر:

په دې حديث کښې هغه صحابه کرام چه مفرد او قارن وو، د هغوی باره کښې دا الفاظ راغلي دی، چه هغوی تر هغه وخته پورې حلال شوې نه وو، تر څو پورې چه هغوی د يوم النحر رمی نه وه کړې، دا خبره د قارنين باره کښې خو بالکل صحيح ده، ځکه چه قران د تحلل نه مانع وی، د رمی نه پس يو تحلل راځی، او د مفرد باره کښې خو فی نفسه دا خبره صحيح ده، ليکن په دغه کال چه کوم صحابه مفرد وو، هغوی ته نبی کريم ﷺ د فسخ الحج الی العمرة حکم ورکولو سره حلال کړل، کما سبق تفصيله، بيا د دغه صحابه کرامو باره کښې دا وئيل څرنګه صحيح دی، چه هغوی د يوم النحر د رمی نه مخکښې حلال شوې نه وو، لهذا ددې توجيه به دا کولې شی، چه په دې حديث کښې د مفرد نه هغه مفرد مراد دې، چا سره چه هدی وه، او هغوی سائق الهدی وو، نو چه کوم صحابه مفرد وو، او هغوی سره هدی هم وه، هغوی ته نبی کريم ﷺ د فسخ الحج حکم نه وو ورکړې، او هغوی واقعی د يوم النحر د رمی نه مخکښې حلال شوې نه وو. والله اعلم.

[۱۷۸۰]() حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ أَبِي الْأَسْوَدِ، بِإِسْنَادِهِ مِثْلَهُ. زَادَ: "فَأَمَّا مَنْ أَهَلَّ بِعُمْرَةٍ فَأَحَلَّ".

مالک د ابوالاسود نه په خپل سند سره ددې په مثل باندې بيان کړې دې او دائې مزيد وئيلې دی: او چا چه د عمرې احرام تړلې وو هغوی حلال شول-"

[۱۷۸۱]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ فَأَهْلَلْنَا بِعُمْرَةٍ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ

---

[1]: صحيح البخاري/البخاري ۳۴(۱۵۶۲)، المغازي ۷۸(۴۴۰۸)، صحيح مسلم/الحج ۱۷(۱۲۱۱)، سنن النسائي/الحج ۴۸(۲۷۱۷)، سنن ابن ماجه/الحج ۳۷(۲۹۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۸۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۶/۶، ۱۰۴، ۱۰۷، ۲۴۳)(صحيح)

[2]) أي واهدي ولا بد من هذا القيد كما اوضحته في الشرح.

[3]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۶۳۸۹)(صحيح)

[4]: صحيح البخاري/ الحج ۳۱(۱۵۵۶)، ۷۷(۱۶۳۸)، صحيح مسلم/الحج ۱۷(۱۲۱۱)، سنن النسائي/ الحج ۵۸(۲۷۶۵)، (تحفة الأشراف: ۱۶۵۹۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۷۴(۲۲۳)، مسند احمد(۳۵/۶، ۱۷۷)(صحيح)

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُهِلَّ بِالْحَجِّ مَعَ الْعُمْرَةِ، ثُمَّ لَا يَحِلَّ حَتّٰى يَحِلَّ مِنْهُمَا جَمِيعًا"، فَقَدِمْتُ مَكَّةَ وَأَنَا حَائِضٌ وَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَلَا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَشَكَوْتُ ذٰلِكَ إِلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "انْقُضِي رَأْسَكِ وَامْتَشِطِي وَأَهِلِّي بِالْحَجِّ وَدَعِي الْعُمْرَةَ"، قَالَتْ: فَفَعَلْتُ، فَلَمَّا قَضَيْنَا الْحَجَّ، أَرْسَلَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ إِلَى التَّنْعِيمِ، فَاعْتَمَرْتُ، فَقَالَ: "هٰذِهِ مَكَانُ عُمْرَتِكِ"، قَالَتْ: فَطَافَ الَّذِينَ أَهَلُّوا بِالْعُمْرَةِ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ ثُمَّ حَلُّوا ثُمَّ طَافُوا طَوَافًا آخَرَ بَعْدَ أَنْ رَجَعُوا مِنْ مِنًى لِحَجِّهِمْ، وَأَمَّا الَّذِينَ كَانُوا جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ فَإِنَّمَا طَافُوا طَوَافًا وَاحِدًا. قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعْدٍ، وَمَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ نَحْوَهُ، لَمْ يَذْكُرُوا: طَوَافَ الَّذِينَ أَهَلُّوا بِعُمْرَةٍ وَطَوَافَ الَّذِينَ جَمَعُوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ.

ام المؤمنين حضرت عائشه رضي الله عنها بيان کوی چه مونږ په حجة الوداع کښې د نبی کريم ﷺ سره اووتلو مونږ د عمرې احرام اوتړلو - بيا حضور ﷺ اوفرمائيل : " د چا سره چه هدی ده هغوی دې د عمرې سره د حج تلبيه هم اووائی، او هغوی به نۀ حلاليږی تردې پورې چه ددې دواړو (حج او عمرې) نه فارغ شی. " لهذا زۀ مکې ته راغلم نو د حيض په کيفيت کښې وُمه - ما د بيت الله طواف اونۀ کړو او نۀ مې د صفا او مروه سعی اوکړه، ما رسول الله ﷺ ته ددې شکايت اوکړو نو هغوی ﷺ اوفرمائيل : خپل سر کولاؤ کړه، ګومنز اوکړه، او د حج احرام اوتړه او عمره پرېږده -" فرمائی : چنانچه ما هم داسې اوکړل - بيا هر کله چه مونږ حج پوره کړو نو رسول الله ﷺ مالره (زما د رور) عبد الرحمن بن ابی بکر رضي الله عنهما سره تنعيم ته اوليږله او ما عمره اوکړه - او هغوی اوفرمائيل : دا ستا د هغه عمرې په بدل کښې ده -" هغه بيان کوی چه (مکې ته د رسيدو نه پس) کومو خلقو چه د عمرې دپاره احرام تړلې وو هغوی د بيت الله طواف اوکړو او د صفا، مروه سعی ئې اوکړه او بيا حلال شو - دغه خلقو د منیٰ نه د واپسئ نه پس د حج د پاره بل طواف اوکړو (طواف افاضه / زياره) مګر کومو خلقو چه د عمرې او د حج د پاره يوځائې احرام تړلې وو (يعنی د حج قران) نو هغوی صرف يو طواف اوکړو.- امام ابوداود رحمه الله فرمائی چه دې لره ابراهيم بن سعد او معمر د ابن شهاب نه هم ددې په مثل باندې روايت کړې دې -، او دوی نۀ دې ذکر کړې طواف د هغه خلقو چه هغوی احرام تړلې وو د عمرې او د هغه خلقو د طواف چه هغوی د حج او د عمرې جمع کړې وه

**ثم قال رسول الله (صلى الله عليه و سلم) من كان معه هدى فليهل بالحج مع العمرة: ليكون قارنا**
**اقول ففيه تحريض على القران على الظاهر والله تعالى اعلم.**

**فقال هذه مكان عمرتك : معناه على الظاهر يعنى عمرة التنعيم ستا د عمرې مرفوضې قضا ده، فهذا مؤيد للحنفية فى احرام عائشة رضي الله عنها.**

**و اما الذين كانوا جمعوا الحج والعمرة فانما طافوا طوافا واحدا :**

## د طواف قارن په باره کښې د جمهورو دليل او د احنافو د طرف نه دهغې توجيه :

دا د جمهورو دليل دې، چه د قارن په ذمه صرف يو طواف او يوه سعی ده، يعنی صرف افعال حج، او ګويا ددې په ضمن کښې په خپله عمره هم ادا شوه، په دې کښې شک نشته، چه د بعضو رواياتو نه په ظاهر کښې هم داسې معلوميږی، مسئله مختلف فيه ده، د صحابه

کرامو په مینځ کښې هم دا مسئله اختلافي ده، لکه چه په شروح حدیث کښې لیکلې دي، د احنافو په نزد خو چونکه د قارن دپاره دوه طوافه او دوه سعي ضروري دي، ددې وجې نه هغوی ددې روایت تاویل کوي، چه سیاق حدیث ته ډیر نزدې دې، هغه دا دې، چه ددې روایت حاصل دادې، چه کومو خلقو فسخ الحج الی العمره کړې وو، هغه دوه ځله حلال شوې وو، یو ځل د طواف عمره او سعي نه پس، او په دویم ځل د طواف حج نه پس، دا خلق ړومبې طواف کولو نه پس حلال شو، او څو ورځې پس ئې د حج احرام اوتړو، او د طواف حج نه دفارغیدو نه پس بیا په دویم ځل حلال شول، دې حضراتو احرام هم دوه ځله تړلې وو، او احلال ئې هم دوه ځله کړې وو، او کوم خلق چه قارنین وو، هغوی اګر چه دوه طوافه اوکړل، لیکن د اول طواف نه پس هغوی حلال نه شو، دهغوی تحلل صرف په دویم طواف باندې مرتب شو، لهذا د هغوی احرام هم یو ځل شو او احلال هم،(۱) و ذلك لان القران مانع عن التحلل ولذا لم یومروا بالفسخ ای بفسخ الحج الی العمرة، والله سبحانه تعالی اعلم، فقهاء احناف او شراح احناف د قارن دپاره د تعدد طواف او تعدد سعي ډیر روایات ذکر کړې دي، فلیراجع الی المطولات، په فیض الباری کښې دا مسئله ښه واضحه او مبرهن طریقې سره لیکلې شوې ده.

مخکښې یو مستقل باب راروان دې، باب طواف القارن، هلته کښې مصنف قصدا هم دا مسئله بیان کړې ده، دلته کښې خو دا مسئله ددې حدیث په ذیل کښې ضمنا راغله.

[۱۷۸۲](۲) حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: لَبَّيْنَا بِالْحَجِّ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِسَرِفَ حِضْتُ، فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبْكِي، فَقَالَ: "مَا يُبْكِيكِ يَا عَائِشَةُ؟" فَقُلْتُ: حِضْتُ، لَيْتَنِي لَمْ أَكُنْ حَجَجْتُ، فَقَالَ: "سُبْحَانَ اللَّهِ! إِنَّمَا ذَلِكَ شَيْءٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ"، فَقَالَ: "انْسُكِي الْمَنَاسِكَ كُلَّهَا غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ"، فَلَمَّا دَخَلْنَا مَكَّةَ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ شَاءَ أَنْ يَجْعَلَهَا عُمْرَةً فَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً إِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ الْهَدْيُ"، قَالَتْ: وَذَبَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نِسَائِهِ الْبَقَرَ يَوْمَ النَّحْرِ، فَلَمَّا كَانَتْ لَيْلَةُ الْبَطْحَاءِ وَطَهُرَتْ عَائِشَةُ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَتَرْجِعُ صَوَاحِبِي بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ وَأَرْجِعُ أَنَا بِالْحَجِّ؟ فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ أَبِي بَكْرٍ فَذَهَبَ بِهَا إِلَى التَّنْعِيمِ فَلَبَّتْ بِالْعُمْرَةِ.

حضرت عائشه رضي الله عنها بیان کوي چه مونږ د حج تلبیه اووئیله تردې پورې چه کله مونږ مقام سَرف ته اورسیدو نو په ما باندې حیض راغې - رسول الله ﷺ ما ته تشریف راوړو نو ما ژړل حضور ﷺ تپوس اوکړو '' عائشه! ولې ژاړې؟ ما اووې ما ته حیض راغلې دې - کاش! چه زۀ دَ حج دپاره نۀ وې راغلې - حضور ﷺ اوفرمائیل : سبحان الله! دا خو یو داسې څیز دې چه دې لره الله تعالیٰ په بنات آدم ( دَ آدم علیه السلام په لوڼو) باندې لیکلې دی - بیا هغوی ﷺ اوفرمائیل : دَ حج تمام اعمال پوره کړه، صرف دَ بیت الله طواف مۀ کوه - '' چنانچه کله چه مونږ بیت الله شریف ته داخل شو نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل : څوک چه دَ خپل دې احرام نه

(۱) پس مطلب دا شو قارنینو د احلال دپاره یو طواف اوکړو.
(۲): صحیح مسلم/الحج ۱۷(۱۲۱۱)،( تحفة الأشراف: ۱۷٤۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۱۹/۶)(صحیح)

دَ عمرې احرام جوړول غواړي نو جوړ دې کړي، سوا دَ هغه چا نه چه دَ هغوی سره قربانی ده.
حضرت عائشه ﷺ فرمائی چه رسول الله ﷺ دَ قربانۍ په ورځ باندې دَ خپلو ازواجو مطهراتو دَ طرف نه غوا ذبح کړه او کله چه دَ بطحاء شپه راغله او عائشه ﷺ پاکه شوله نو هغې رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو : اې دَ الله رسوله ! آیا زما سره راغلی به په حج او عمرې سره واپس کیږي او زهٔ به صرف دَ حج سره واپس کیږم؟ نو رسول الله ﷺ عبد الرحمٰن بن ابی بکر ﷺ ته حکم اوکړو هغه دې لره تنعیم ته بوتله او هغې (عائشې ﷺ) دَ عمرې تلبیه اووئیله -"

**تشریح: قوله:** فلما دخلنا مکة قال رسول الله(صلی الله علیه و سلم) من شاء ان یجعلها عمرة فلیجعلها عمرة:

دلته نه نبی کریم ﷺ د فسخ الحج الی العمرة مشوره ورکول شروع کړل، ددې نه پس ئې نور هم زیات تاکید اوفرمایه، او بیا مروه ته رسیدلو نه پس، کوم ځائې کښې چه د سعی تکمیل کیږي، نبی کریم ﷺ حکما اوفرمائیل چه دې لره عمره اوګرزوئی، (او حلق وغیره کولو نه پس حلال شئ)

**قوله:** و ذبح رسول الله(صلی الله علیه و سلم) عن نسائه البقر:

ددې نه مخکښې باب فی هدی البقر کښې دا حدیث تیر شوې دې، ذبح عمن اعتمر من نسائه بقرة، د ازواج مطهرات د طرف نه چه نبی کریم ﷺ کومه قربانی کړې وه، په هغې باندې تفصیلی کلام هلته کښې تیر شوې دې.

**قوله:** الرجع صواحبی بحج و عمرة و ارجع انا بالحج :

## عمرة التنعیم:

دا مخکښې تیر شوې دی، چه ټول ازواج مطهرات متمتعات وې، ټولو مکې مکرمې ته رسیدلو نه پس عمره کړې وه، سوا د حضرت عائشې ﷺ نه، لاجل الحیض، اوس د واپسۍ په ورځ نبی کریم ﷺ ته حضرت عائشه ﷺ عرض کوی، چه ما سره ملګرې ټولې زنانه خو حج او عمره کولو سره واپس کیږم، او زهٔ صرف حج کولو سره واپس کیږي، په دې خبره نبی کریم ﷺ هغې لره دهغې رور حضرت عبد الرحمن ﷺ سره د محصب نه تنعیم ته اولیږله،[1] دې دپاره چه هلته نه د عمرې احرام اوتړی، او بیا مکې مکرمې کښې د عمرې کولو نه پس دلته محصب ته راشی، دې دپاره چه بیا ټوله قافله د دې ځائې نه مکې مکرمې ته یو ځائې روانه شی، نو حضور ﷺ سره د ټولې قافلې نه دلته کښې حصار وو،[2] او هغوی دواړو د

---

[1]) حضور ﷺ بی بی عائشه رضی الله عنها د عمرې د احرام دپاره د محصب نه تنعیم ته ولې اولیږله؟ جواب دادې چه منی او محصب د حرم په حد کښې داخل دی او مسئله داده چه کوم سړې به مکه یا حرم کښې مقیم وی او عمره کول اوغواړی نو دهغه دپاره ضروری ده چه د حرم نه بهر یعنی حل ته داخل شی دهغه ځائ نه احرام اوتړی مکې ته راشی او د تنعیم تخصیص دې دپاره وو چه هغه ادنی الحل دې یعنی اقرب الحل.

[2]) دحضرت شیخ رحمه الله رائې کومه چه حضرت په حاشیه د لامع اوپه جزء حجة الوداع کښې اختیار کړې ده همدا ده، د شارحینو په دې کښې دویمه رائې ده، چه دا به مونږ د طواف الوداع په باب کښې ذکر کوو.

شپې شپې عمره کولو نه پس دلته محصب ته راغلل، بیا دغې قافلې مکې ته رسیدلو نه پس طواف وداع اوکړه، او بیا د سحر مانځه نه پس د مکې نه مدینې منورې ته روان شو.
دا عمره د احنافو په نزد د عمره مرفوضه قضاء وه، چه په حضرت عائشه رضی الله عنها باندې و جب وه، او د جمهورو په نزد عمره مستقله وه، د عائشې رضی الله عنها د خوشالولو دپاره.([1])

## یو اشکال مع جواب :([2])

دلته کښې یو اشکال پیدا کیږي، هغه دا چه د احنافو په نزد هرکله چه دا عمره قضاء وه، نو بیا خو دا په هغې باندې هرحال کښې واجب وه، نو بیا حضور ﷺ دا عمره په هغې باندې مخکښې ولې اونه کړه، په داسې تنګ وخت کښې، هغه هم د حضرت عائشې رضی الله عنها په وینا باندې؟ جواب دادې، چه حضور ﷺ په دغې ایام حج کښې دومره مشغول او مصروف وو، چه نبی کریم ﷺ ته د عائشې رضی الله عنها د حیض تول قصه یاده نه وه، او دا چه هغې په شروع کښې، چه کله د مدینې نه مکې مکرمې ته اورسیده، نو عمره ئې اونه کړه، دلیل ددې دادې، لکه چه د بخاري وغیره په روایت کښې دي، اوما طفت لیالی قدمنا، یعنی چه کله حضرت عائشې رضی الله عنها نبی کریم ﷺ ته د عمره نه کولو شکایت اوکړو، نو نبی کریم ﷺ هغې ته اوفرمائیل، چه آیا تا په هغه ورځ، کله چه مونږ مکې ته راغلو، طواف نه وو کړې؟

[۱۷۸۳]([3]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ الْأَسْوَدِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا نَرَى إِلَّا أَنَّهُ الْحَجُّ، فَلَمَّا قَدِمْنَا تَطَوَّفْنَا بِالْبَيْتِ. فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ أَنْ يَحِلَّ، فَأَحَلَّ مَنْ لَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ".

حضرت عائشه رضی الله عنها بیان کوی مونږ دَ رسول الله ﷺ سره اووتلو، مونږ صرف حج ګڼړلو - مګر کله چه مونږ مکې ته اورسیدو او دَ بیت الله شریف طواف مو اوکړو نو رسول الله ﷺ حکم اوکړو چه کوم کس قربانی دَ ځان سره نۀ ده راوستې هغوی دې حلال شی -" چنانچه هغه خلق کومو چه قربانۍ دَ ځان سره نۀ وې راوستې، هغوی حلال شو -

## په شرح حدیث کښې دوه اقوال :

**قوله: لا نرى الا انه الحج:** زمونږ مقصد په دې سفر کښې صرف حج کول وو، یعنی اعتمار مو په زړۀ کښې هم نه وو، ځکه د ډیر پخوا نه د خلقو په زړونو کښې دا وو، چه په اشهر حج کښې عمره کول ناجائز دی، ددې معنی تائید ددې نه کیږي، چه مخکښې حدیث د جابر رضی الله عنه طویل راروان دې، لسنا ننوی الا الحج، لسنا نعرف العمرة، او د حضرت ګنګوهی رحمه الله د تقریر نه معلومیږي، چه دلته کښې حج د عمرې په مقابله کښې نه دې، دا دواړه خو هم جنس دی، ځکه چه عمرې ته حج اصغر وئیلې شی، بلکه مطلب دادې، چه په دې سفر کښې زمونږ مقصد د

[1]) ځکه چه عند الجمهور خو عائشې رضی الله عنها رفض عمره کړې هم نه وه بلکه د عمرې په احرام ئې د احرام حج نیت کړې وو، او قارنه شوې وه.
[2]) دا اشکال اوجواب په هیڅ کتاب کښې زما د نظر نه نه دې تیرشوې.
[3]): صحیح البخاري/ الحج ۳۴(۱۵۶۱)، صحیح مسلم/ الحج ۱۷(۱۲۱۱)، سنن النسائي/ الکبري، الحج(۳۷۸۵)،(تحفة الأشراف: ۱۵۹۸۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۸۹/۶، ۱۹۱، ۱۹۲، ۲۱۰)(صحیح)

حج او عمرې نه علاوه بل هيڅ نه وو، مثلا جهاد وغيره،(۱)او دا ددې وجې نه، چه ددې نه مخکښ دا خبره تيره شوه، عائشه ﷺ فرمائي فمنا من اهل بعمره و منا من اهل بحج لهذا که اوله معنی مراد واخستلې شي، نو په روايتينو کښ به تعارض راشي.(والله تعالى اعلم)
او صاحب د عون المعبود اوله معنی مراد اخستلې ده، او دې تعارض لره ئې په بله طريقې سره دفع کړې دې، هغه دا چه لانرى الا انه الحج نه دهغوی مراد دا دی، چه په شروع کښ کله مونږ د مدينې نه روان شو، نو په ذهن کښ مو دا وو، چه صرف حج کول دی، ليکن بيا مخکښ چه لاړو، او حضور ﷺ راته د احرام قسمونه بيان کړل، او دا چه څوك کوم قسم اختيارول غواړی، اختيارولې شی، بيا په مونږ کښ بعضو داسې احرام اوتړو، او بعضو هغسې، اهـ

[۱۷۸۴](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ الذُّهْلِيُّ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، أَخْبَرَنَا يُونُسُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمَا سُقْتُ الْهَدْيَ، قَالَ مُحَمَّدٌ: أَحْسِبُهُ قَالَ: وَلَحَلَلْتُ مَعَ الَّذِينَ أَحَلُّوا مِنَ الْعُمْرَةِ"، قَالَ: أَرَادَ أَنْ يَكُونَ أَمْرُ النَّاسِ وَاحِدًا.

د حضرت عائشې ﷺ نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل : کهٔ چرې ددې خبر ماته د وړاندې نه وې د کومې چه ماته ورستو خبر اوشو نو ما به د ځان سره قربانی نهٔ راوستله محمد بن يحيىٰ اووې : زما خيال دې چه شيخ داهم اووئيلې :" او زهٔ به د عمرې نه پس د حلال کيدونکو والا سره حلال شوې وې -" فرمائی : د هغوی اراده وه چه ټول خلق دې په يو حال باندې وی -"

**لواستقبلت من امری ما استدبرت لما سقت الهدی و لحللت :**
يعنی کومه خبره چه روستو ماته ظاهره شوه، که هغه مخکښ په ذهن کښ راغلې وه، نو ما به سوق هدی نه وه کړې، او په دې وخت کښ به تاسو ټولو سره زهٔ هم حلال شوې اوم، صحابه کرامو ته چه کله نبی کريم ﷺ د فسخ الحج الی العمره حکم ورکړو، نو هغوی ته په دې کښ ډير زيات تردد اوشو، چه که مونږ داسې اوکړل، نو زمونږ حج به د حضور ﷺ د حج موافق نه وی، نبی کريم ﷺ خو به په حالت احرام کښ وی، او مونږ به حلال شو، يعنی غير حالت احرام کښ به شو، او د حج ورځې هم بالکل نژدې دی، د حج کارونه شروع کيدو کښ صرف درې څلور ورځې باقی پاتې دی، زمونږ به د خپلو بيبيانو سره اختلاط وی، د صحبت کولو موقع به راشی، تقطر ذکورنا المنی و نحن نذهب الی عرفات، د صحابه کرامو دا تردد ليدلو نه پس نبی کريم ﷺ دهغوی د تسلئ او تردد ختمولو دپاره هغه جمله ارشاد اوفرمائيله، کومه چه بره ذکر شوه، اوس دا چه په دې فسخ الحج کښ څه حکمت وو، دهغې ذکر په تفصيل ابتدائی بحثونو کښ تير شوې دې.

---

(۱) حضرت خو دفع دتعارض دغسې فرمائيلې ده.
(۲): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٦٧٤٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/٢٤٧)(صحيح)

[۱۷۸۵]() حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "أَقْبَلْنَا مُهِلِّينَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ مُفْرَدًا، وَأَقْبَلَتْ عَائِشَةُ مُهِلَّةً بِعُمْرَةٍ حَتَّى إِذَا كَانَتْ بِسَرِفَ عَرَكَتْ حَتَّى إِذَا قَدِمْنَا طُفْنَا بِالْكَعْبَةِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَأَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَحِلَّ مِنَّا مَنْ لَمْ يَكُنْ مَعَهُ هَدْيٌ"، قَالَ: فَقُلْنَا: حِلُّ مَاذَا؟ فَقَالَ: "الْحِلُّ كُلُّهُ"، فَوَاقَعْنَا النِّسَاءَ وَتَطَيَّبْنَا بِالطِّيبِ وَلَبِسْنَا ثِيَابَنَا وَلَيْسَ بَيْنَنَا وَبَيْنَ عَرَفَةَ إِلَّا أَرْبَعُ لَيَالٍ، ثُمَّ أَهْلَلْنَا يَوْمَ التَّرْوِيَةِ، ثُمَّ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَائِشَةَ فَوَجَدَهَا تَبْكِي، فَقَالَ: "مَا شَأْنُكِ؟" قَالَتْ: شَأْنِي أَنِّي قَدْ حِضْتُ وَقَدْ حَلَّ النَّاسُ وَلَمْ أَحْلُلْ وَلَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ وَالنَّاسُ يَذْهَبُونَ إِلَى الْحَجِّ الْآنَ، فَقَالَ: "إِنَّ هَذَا أَمْرٌ كَتَبَهُ اللَّهُ عَلَى بَنَاتِ آدَمَ، فَاغْتَسِلِي، ثُمَّ أَهِلِّي بِالْحَجِّ"، فَفَعَلَتْ وَوَقَفَتِ الْمَوَاقِفَ حَتَّى إِذَا طَهُرَتْ طَافَتْ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، ثُمَّ قَالَ: "قَدْ حَلَلْتِ مِنْ حَجِّكِ وَعُمْرَتِكِ جَمِيعًا"، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي أَجِدُ فِي نَفْسِي أَنِّي لَمْ أَطُفْ بِالْبَيْتِ حِينَ حَجَجْتُ، قَالَ: "فَاذْهَبْ بِهَا يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ فَأَعْمِرْهَا مِنَ التَّنْعِيمِ وَذَلِكَ لَيْلَةَ الْحَصْبَةِ".

د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دې : مونږ د رسول الله ﷺ سره صرف د حج (حج افراد) په نيت سره روان شو او حضرت عائشې رضي الله عنها د عمرې احرام اوتړلو تردې پورې کله چه مونږ مقام سرف ته اورسيدو نو هغې ته حيض راغې، بيا هر کله چه مونږ مکې ته راغلو او د کعبې طواف ئې اوکړو او د صفا، مروه سعي ئې اوکړه نو رسول الله ﷺ مونږ ته حکم اوکړو چه په مونږ کښې د چا سره قرباني نشته دې هغوی دې ځان حلال کړي، مونږ اووې : حلال کيدل څنګه؟ حضور ﷺ اوفرمائيل : په پوره طور باندې حلال شئ -" ...... چنانچه مونږ د خپلو بيبيانو سره کور والې هم اوکړو، خوشبو مو هم اولګوله او خپلې عام کپړې مو واچولې - حالانکه زمونږ او عرفې ته د تللو په درميان کښې صرف څلور ورځې باقي وې بيا مونږ په اتم تاريخ باندې احرام اوتړلو - رسول الله ﷺ حضرت عائشې رضي الله عنها ته راغې نووې کتل چه هغې ژړا کوله - نو حضور ﷺ تپوس اوکړو چه چه تاله څۀ شوې دې؟ هغې اوفرمائيل : ماته حيض راغلې دې خلق حلال شول، زۀ حلاله نۀ شومه او نۀ مې د بيت الله طواف اوکړو او اوس د حج د پاره ځي - حضور ﷺ اوفرمائيل : دا معامله خو الله تعالیٰ د آدم عليه السلام په لونړو باندې ليکلې ده -تۀ غسل اوکړه او د حج دپاره احرام اوتړه -" چنانچه هغې هم داسې اوکړل او د حج په تمامو مقاماتو باندې ئې وقوف اوکړو تردې پورې چه کله پاکه شوله نو د بيت الله شريف طواف او د صفا، مروه سعي ئې اوکړه - بيا حضور ﷺ اوفرمائيل تاسو د حج او د عمرې ټولو نه حلال شوې يئ -" فرمائي : اې د الله رسوله! زما په زړۀ کښې حسرت دې چه ما کله حج اوکړو نو (په ابتداء) کښې مې طواف اونۀ کړې شو - حضور ﷺ اوفرمائيل : " اې عبد الرحمٰن دې لره بوځه او د تنعيم نه پرې عمره اوکړه -" او دا د حصبه شپه وه -( يعني د ايام تشريق نه پس په کومه شپه چې د مدينې طرف ته د واپسئ دپاره ئې

[1]: صحيح مسلم/الحج ١٦(١٢١٠)، ١٧(١٢١٣)، سنن النسائي/الحج ٥٨(٢٧٦٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ١٢(٢٩١١)،( تحفة الأشراف: ٢٩٠٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٤١(١٢٦)، مسند احمد(٣٩٤/٣)، سنن الدارمي/المناسك ١١(١٨٤٥)(صحيح)

په بطحاء کښې پراؤ اچولې وو -

**تشریح**: **قوله**: فقلنا حل ماذا: حل بکسر الحاء بلا تنوین مابعد طرف ته د مضاف کیدلو د وجې نه، او دا ما استفهامیه دې، یعنی ستاسو ددې حلال کیدلو نه مراد کوم حلال کیدل دی، آیا د ټول محظورات احرام نه، یعنی تحلل اکبر، یا د بعضو محظوراتو نه، یعنی تحلل اصغر، نبی کریم ﷺ اوفرمائیل، الحل کله، یعنی تحلل اکبر مراد دې، بالکل حلال شئ.

**(د جمهورو دلیل او دهغې جواب)**

**قوله**: قد حللت من حجك و عمرتك جمیعا : چه کله حضرت عائشه رضی الله عنها د طواف زیارت وغیره افعال حج نه فارغه شوه، نو نبی کریم ﷺ هغې ته اوفرمائیل، اوس تهٔ د خپل حج او عمرې دواړو نه حلاله شوې، په دې سره په ظاهر کښې د جمهورو تائید کیږی، چه عائشه رضی الله عنها مفرده نه وه، بلکه قارنه وه.

ددې دوه جوابونه کیدې شی:

(۱) اول دا چه اوس تهٔ د دواړو نه حلاله شوې، یعنی د عمرې نه خو په شروع کښې حلاله شوې وې، (د رفض د وجې نه) او د حج نه اوس حلاله شوې، طواف زیارت کولو سره.

(۲) دویم جواب دادې، چه د نبی کریم ﷺ په ذهن مبارك کښې د هغې د حیض وغیره قصه نه وه، په دې بنیاد باندې نبی کریم ﷺ هغې ته دا اوفرمائیل، یدل علیه قوله اوما طفت لیالی قدمنا، کما فی روایة الصحیحین د قد ذکرناه قریبا.

[۱۷۸۶](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرًا، قَالَ: دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَائِشَةَ بِبَعْضِ هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: عِنْدَ قَوْلِهِ: "وَأَهِلِّي بِالْحَجِّ ثُمَّ حُجِّي وَاصْنَعِي مَا يَصْنَعُ الْحَاجُّ غَيْرَ أَنْ لَا تَطُوفِي بِالْبَيْتِ وَلَا تُصَلِّي".

ابو الزبیر وائی چه هغوی د حضرت جابر رضی الله عنه نه واوریدل، فرمائیل ئې چه نبی کریم ﷺ حضرت عائشې رضی الله عنها ته راغې - او ددې قصې ئې څهٔ حصه ذکر کړه ... او دَ [ اهلی بالحج ] " دَ حج دَ پاره احرام اوتړه -" نه پس ئې دا اوفرمائیل : " بیا حج اوکړه او تمام هغه څهٔ اوکړه کوم چه حاجی کوی - صرف دَ بیت الله طواف مهٔ کوه او مونځ مهٔ کوه -"

[۱۷۸۷](۲) حَدَّثَنَا الْعَبَّاسُ بْنُ الْوَلِيدِ بْنِ مَزْيَدٍ، أَخْبَرَنِي أَبِي، حَدَّثَنِي الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ، حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: "أَهْلَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ خَالِصًا لَا يُخَالِطُهُ شَيْءٌ فَقَدِمْنَا مَكَّةَ لِأَرْبَعِ لَيَالٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ فَطُفْنَا وَسَعَيْنَا، ثُمَّ أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَحِلَّ، وَقَالَ: لَوْلَا هَدْيِي لَحَلَلْتُ"، ثُمَّ قَامَ سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَرَأَيْتَ مُتْعَتَنَا هَذِهِ أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِلْأَبَدِ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "بَلْ هِيَ لِلْأَبَدِ"، قَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: سَمِعْتُ عَطَاءَ بْنَ أَبِي رَبَاحٍ يُحَدِّثُ بِهَذَا فَلَمْ أَحْفَظْهُ حَتَّى لَقِيتُ ابْنَ جُرَيْجٍ فَأَثْبَتَهُ لِي.

---

(۱): صحیح مسلم/الحج ۱۷(۱۲۱۳)،( تحفة الأشراف: ۲۸۱۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۰۹/۳)(صحیح)

(۲): سنن ابن ماجه/الحج ۴۱( ۲۹۸۰)،( تحفة الأشراف: ۲۴۲۶، ۲۴۵۹)، وقد أخرجه: صحیح مسلم/الحج ۱۷(۱۲۱۶)، سنن النسائی/الحج ۷۷(۲۸۰۷)(صحیح)

حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه بیان کوی چه مونږ د رسول الله ﷺ سره د خالص حج دپاره احرام اوتړلو، په هغې کښې د هیڅ څیز اختلاط نهٔ وو - بیا د ذولحجي د څلورو شپو د تیریدو نه پس مونږ مکې ته اورسیدو - مونږ طواف او سعي اوکړه، بیا رسول الله ﷺ مونږ ته د حلال کیدو حکم اوکړو اووې فرمائیل کهٔ زما سره قرباني نهٔ وې نو زهٔ به هم حلال شوې وې - بیا حضرت سراقه بن مالک رضی الله عنه اودریدو او تپوس ئې اوکړو اې د الله رسوله! زمونږ دا تمتع (د حج سره عمره کول) ددې کال دپاره دی یا د همیشه همیشه دپاره؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل بلکې د همیشه همیشه دپاره دی - اوزاعي وائي چه ما د عطاء بن ابی رباح نه دا حدیث واوریدو چه هغوی دې حدیث لره بیانولو، مگر ما یاد اونهٔ ساتلې شو تردې پورې چه د ابن جریج سره ملاؤ شوم نو هغوی ماته یاد کړو -

ارایت متعتنا هذه العامنا هذا ام للابد: یا رسول الله ﷺ! دا هم راته اوفرمایئ، چه زمونږ داتمتع صرف زمونږ ددې کال دپاره ده، یا د همیشه دپاره ده، کوم علماء چه د فسخ الحج الی العمره اوس هم قائل دی (مثل احمد) هغوی دې لره هم په دې باندې محمول کوی.

او جمهور علماء وائي، چه د متعه نه مراد دلته کښې اعتمار فی اشهر الحج دې.

[۱۷۸۸] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ جَابِرٍ، (') قَالَ: قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابُهُ لِأَرْبَعِ لَيَالٍ خَلَوْنَ مِنْ ذِي الْحِجَّةِ، فَلَمَّا طَافُوا بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اجْعَلُوهَا عُمْرَةً، إِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ الْهَدْيُ"، فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ أَهَلُّوا بِالْحَجِّ، فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ النَّحْرِ قَدِمُوا فَطَافُوا بِالْبَيْتِ وَلَمْ يَطُوفُوا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ.

حضرت جابر بن عبد الله رضی الله عنه بیان کوی چه رسول الله ﷺ او د هغه اصحاب (مکې) ته اورسیدل او د ذولحجي څلور شپې تیرې شوې وې کله چه هغوی د بیت الله شریف طواف او د صفا، مروه سعي اوکړه نو رسول الله ﷺ اوفرمائیل: دې لره عمره اوګرځوئ، سوا د هغه چانه د چا سره چه قرباني وی -" لهذا کله چه اتم تاریخ راغې نو هغه خلقو د حج د پاره احرام اوتړلو او بیا د قربانئ په ورځ (په لسم تاریخ د ذولحجي) دا خلق مکې ته راغلل او د بیت الله طواف ئې اوکړو مگر د صفا او مروه سعي ئې اونهٔ کړه "

**تشریح: قوله**: عن جابر قال قدم رسول الله (صلی الله علیه و سلم) و اصحابه لاربع خلون من ذی الحجة............ فلما کان یوم النحر قدموا فطافوا بالبیت و لم یطوفوا بین الصفا والمروة.

## په روایت باندې یو اشکال او دهغې توجیه:

د دې روایت د سیاق نه دا معلومیږی، چه کومو حضراتو فسخ الحج الی العمره کړې وه، هغوی خو د عمرې دپاره طواف او سعي دواړه اوکړل، ددې نه پس ئې چه کله د حج افعال ادا کول، نو په هغې کښې ئې صرف طواف زیارت اوکړو، یعنی دهغې نه پس ئې سعي بین الصفا والمروه اونهٔ کړو، په دې باندې لوئې قوی اشکال دې، ځکه چه د متمتع دپاره بالاتفاق دوه طواف او دوه سعي واجب دی، یو طواف او یو سعي د عمرې دپاره، او یو

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۴۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳/۳۶۲) (صحیح)

طواف او يو سعى د حج دپاره، او په دې حديث كښې د دويم طواف نه پس د سعى نفى ده، حالانكه د بخارى شريف په روايت كښې د طواف ثانى نه پس هم د سعى كولو تصريح موجود ده، اوس يا خو دې روايت ته مونږ وهم وايو، او يا په كښې تاويل كوؤ، حضرت په بذل المجهود كښې متعدد تاويلات كړې دى، (١) ددې تعلق د متمتعينو سره يعنى كومو خلقو چه فسخ الحج الى العمره كړې وو، نه دې، بلكه ددې تعلق د قارنينو سره دې، چه هغوى طرف ته اشاره په دې حديث كښې حرف استثناء سره شوې ده الا من كان معه الهدى، يعنى كومو خلقو سره چه هدى وه، او هغوى قارن وو، نبى كريم ﷺ هغوى ته د فسخ الحج الى العمره حكم نه وو فرمائيلې، او د قارن حكم دادې، چه كه هغه د عمرې نه فارغ شى، او طواف قدوم اوكړى، چه په هغې كښې سعى بين الصفا والمروه هم اوكړى، نو بيا هغه ته د طواف زيارت نه پس د سعى حاجت نشته، ځكه چه طواف قدوم د متعلقاتو د حج نه دې، او د حج په سعى كښې تكرار نشته، صرف يوځل ده، كه د طواف قدوم سره كوى، او كه د طواف زيارت نه پس كوى، يو تاويل خو دا شو، (٢) ددې نه مقصود د سعى نفى نه ده، بلكه د ذكر نفى ده، چه راوى د طواف زيارت نه پس د سعى بين الصفا والمروه ذكر نه دې كړې لكن لا بد منه كما لا يخفى، په بذل كښې حضرت صاحب ددې بعضې نور تاويلونه هم كړې دى.

[١٧٨٩]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ، حَدَّثَنَا حَبِيبٌ يَعْنِي الْمُعَلِّمَ، عَنْ عَطَاءٍ، حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهَلَّ هُوَ وَأَصْحَابُهُ بِالْحَجِّ وَلَيْسَ مَعَ أَحَدٍ مِنْهُمْ يَوْمَئِذٍ هَدْيٌ إِلَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَطَلْحَةَ، وَكَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَدِمَ مِنَ الْيَمَنِ وَمَعَهُ الْهَدْيُ، فَقَالَ: أَهْلَلْتُ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يَجْعَلُوهَا عُمْرَةً يَطُوفُوا ثُمَّ يُقَصِّرُوا وَيُحِلُّوا إِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ الْهَدْيُ، فَقَالُوا: أَنَنْطَلِقُ إِلَى مِنًى وَذُكُورُنَا تَقْطُرُ؟ فَبَلَغَ ذَلِكَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: "لَوْ أَنِّي اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا أَهْدَيْتُ، وَلَوْلَا أَنَّ مَعِي الْهَدْيَ لَأَحْلَلْتُ".

حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه بيان كوى چه رسول الله ﷺ او دَ هغه اصحابو دَ حج احرام اوتړلو - په دغه ورځ باندې دَ نبى كريم ﷺ او دَ طلحه رضي الله عنه نه علاوه دَ بل چا سره قربانۍ نۀ وه - او على رضي الله عنه دَ يمن نه راغلې وو او هغوى دَ خپل ځان سره قربانۍ راوستې وه - پس هغوى داسې نيت كړې وو : زۀ هم هغه شان احرام تړم لكه څنګه چه رسول الله ﷺ احرام تړلې دې - او حضور ﷺ خپلو صحابۀ كرامو رضي الله عنهم ته حكم اوكړو چه دَ خپل احرام نه دَ عمرې احرام جوړ كړئ، طواف اوكړئ (دَ صفا مروه سعى هم اوكړئ،) بيا ويښتان كټ كړئ او حلال شئ، سوا دَ هغه چا نه چه دَ هغوى سره قربانى وى - څۀ خلقو اووئيل : آيا مونږ به منىٰ ته په داسې حال كښې ځو چه زمونږ اعضائې تناسل منئ لره غورځوى؟ رسول الله ﷺ ته دا خبره اورسيدله نو حضور ﷺ اوفرمائيل : كۀ چرې ماته دا خبره دَ اول نه معلومه وې نو ما به قربانى دَ ځان سره نۀ راوستله او كۀ زما سره قربانى نۀ وې نو زۀ به (هم) حلال شوې وې -

**تشريح: قوله**: و ليس مع احد منهم هدى الا النبى (صلى الله عليه و سلم) و طلحة الخ

---

١): صحيح البخاري/الحج ٨١(١٦٥١)، (تحفة الأشراف: ٢٤٠٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٣٠٥) (صحيح)

## په حجة الوداع کښې هدی د کومو کومو حضراتو سره وه:

په دې حج کښې د ټولې قافلې نه صرف یو څو صحابه کرامو سره هدی وه، باقي ټول غیر سائق الهدی وو، د چا سره چه هدی وه، په هغوی کښې یو خو خپله نبی کریم ﷺ وو، نور حضرات طلحه بن عبید الله رضی الله عنه، او علی رضی الله عنه وو، ددوی نه علاوه نور هم بعضې صحابه کرام وو، چه دهغوی نومونه حضرت شیخ رحمه الله په جزء حجة الوداع کښې ذکر کړې دی. (۱)

وكان علي رضی الله عنه قدم من اليمن و معه الهدى: نبی کریم ﷺ حضرت علی رضی الله عنه لره د حجة الوداع نه مخکښې یمن ته لیږلې وو لاجل السعاية، (د صدقې وصولولو دپاره) چه دهغې ذکر امام بخاری رحمه الله په یو مستقل ترجمة الباب کښې کړې دې، باب بعث علي بن ابي طالب و خالد بن الوليد الى اليمن قبل حجة الوداع، نو حضرت علی رضی الله عنه د یمن نه براه راست مکې مکرمې ته اورسیدو، نبی کریم ﷺ دهغه نه تپوس اوکړو، چه تا کوم احرام تړلې دې، حضرت علی رضی الله عنه جواب ورکړو، بما اهل به النبي (صلى الله عليه و سلم) یعنی ما خو د احرام په وخت کښې دا نیت کړې وو چه د کوم قسم احرام حضور ﷺ تړلې وی، هم هغسې احرام زۀ هم تړم، او چونکه هغه سره خپله هدی هم وه، ددې وجې نه نبی کریم ﷺ هغه ته د فسخ الحج الى العمره حکم انه فرمائیلو، بلکه هغه د نبی کریم ﷺ پشان په حالت احرام کښې وو.

په روایاتو کښې راځی، چه ابوموسی اشعری رضی الله عنه هم دغه شان احرام تړلې وو، لیکن چونکه هغه سائق الهدی نه وو، ددې وجې نه نبی کریم ﷺ هغه ته دحلال کیدو حکم اوفرمائیلو، داسې قسمه احرام ته احرام معلق وئیلې شی، او یو وی احرام مبهم، چه سړې په شروع کښې د مطلق احرام نیت اوتړی، دهغې تعیین اونه کړی، چه دا احرام د قران دې یا د افراد، بلکه تعیین لره مؤخر کړی، چه روستو به بیا اوکړو، د احرام دا دواړه قسمونه د ائمه اربعه په نزد د راجح قول مطابق جائز دی.

او په علامه عینی باندې تعجب دې، چه هغوی ددې جواز صرف د شافعیه مذهب ګرزولې دې، و قد نبه عليه الشيخ في البذل و شيخنا في حاشية اللامع ايضا.

[۱۷۹۰](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ، عَنْ شُعْبَةَ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: "هَذِهِ عُمْرَةٌ اسْتَمْتَعْنَا بِهَا فَمَنْ لَمْ يَكُنْ عِنْدَهُ هَدْيٌ فَلْيَحِلَّ الْحِلَّ كُلَّهُ، وَقَدْ دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا مُنْكَرٌ، إِنَّمَا هُوَ قَوْلُ ابْنِ عَبَّاسٍ.

حضرت ابن عباس رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه روایت کوی چې دا عمره ده مونږ ددې فائده حاصله کړې ده - لهذا دَ چا سره چه قربانی نۀ وی نو هغه دې حلال شی - په کامل طور باندې

---

(۱) ولم يحمل ابوبكر ولا عمر ولا علي ولا طلحة ولا الزبير رضي الله تعالى عنهم من اجل سوق الهدي كذا في الهدي وزاد الطحاوي عثمان و ذا اليسارة وكذا زاد ذوي اليسار الامام مسلم في صحيح اه، ذوي اليساره ، يعنى بعض متمول صحابه رضى الله عنهم

(۲): صحيح مسلم/الحج ۳۱(۱۲٤۱)، سنن النسائي/الحج ۷۷(۲۸۱۷)،( تحفة الأشراف: ٦٣٨٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/تقصير الصلاة ۳(۱۰۸۵)، والحج/۲۳(۱٥٤٥)، ۳٤(۱٥٦٤)، والشركة ۱٥(۲٥۰٥)، ومناقب الأنصار ۲٦(۳۸۳۲)، سنن الترمذي/الحج ۸۹(۹۳۲)، مسند احمد(۱/۲۳٦۱، ۲٥۳، ۲٥۹، ۳٤۱)، سنن الدارمي/المناسك ۳۸(۱۸۹۸)(صحيح)

حلال - او تر قیامته پورې عمره په حج کښې داخله شوې ده - امام ابوداودرحمه الله فرمائی : دا روایت منکر دې - دا صرف دَ ابن عباس رضي الله عنهما قول دې -

**تشریح: قوله**: عن ابن عباس رضي الله عنهما عن النبي(صلی الله علیه و سلم) **انه قال هذه عمرة استمتعنابها الخ**

قال ابوداؤد هذا حدیث منکر: په دې حدیث کښې د دغې فسخ الحج الی العمره ذکر دې، نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته اوفرمائیل، چه اوس تاسو کوم طواف او سعی اوکړه، هغې لره عمره اوګرزوئ، او حلال شئ، په شرط ددې چه چا سره هدی نه وی، ددې نه پس نبی کریم ﷺ اوفرمائیل و قد دخلت العمرة فی الحج الی یوم القیمة، چه په اشهر الحج کښې د عمرې جواز تر قیامته پورې دې.

**د مصنف په قول باندې قوی اشکال او دهغې توجیه** :

ددې نه پس په دې خبره پوهه شئ، چه دا مشهور حدیث دې، په صحیح مسلم کښې هم موجود دې، لیکن ددې باوجود مصنف دې ته حدیث منکر ولې وائی؟ ددې جواب او حل دادې، چه دا جمله دلته کښې بې محله نقل شوې ده، ددې تعلق د آئنده حدیث سره دې، هغه حدیث داسې دې: عن ابن عباس رضي الله عنهما عن النبي(صلی الله علیه و سلم) **قال اذا اهل الرجل بالحج ثم قدم مکة فطاف بالبیت و بالصفا والمروة فقد حل وهی عمرة**، ددې مطلب دادې: چه کوم سړې د حج احرام اوتړی، او مکې مکرمې ته راشی، او طواف اوکړی، نو هغه په خپله حلالیږی، یعنی دهغه د قصد او ارادې نه بغیر فسخ الحج الی العمره کیږی، یعنی مفرد بالحج مفرد نه پاتې کیږی، بلکه متمتع کیږی، لهذا که چاته حج افراد کول منظور وی، نو هغه لره پکار دی، چه مکې ته داخلیدو نه پس د حج نه مخکښې د بیت الله شریف طواف اونه کړی، او که هغه طواف اوکړو، نو دهغه د حج احرام فسخ شو، او هغه معتمر شو، او دا په صحابه کرامو کښې د هیچا مذهب نه دې، سوا د ابن عباس رضي الله عنهما نه، او نه په ائمه اربعه کښې د چا مذهب دې، ددې سلسلې ډیر روایات په صحیح مسلم کښې شته، لیکن هلته کښې دا ټول روایات موقوفا علی ابن عباس رضي الله عنهما دي، یعنی خپله د ابن عباس رضي الله عنهما رائې او دهغه قول مرفوعا نه دې، او دلته کښې په ابوداؤد کښې دا روایت مرفوعا روایت دې، مصنف ددې وجې نه دې ته منکر اوئیل، چه دا خو قول د ابن عباس رضي الله عنهما دې، د راوی دې لره مرفوعا روایت کول غلط دی، د کلام حاصل دا دې، چه مصنف د نکارة حکم په موجوده حدیث باندې نه دې لګولې، بلکه په راتلونکې حدیث باندې ئې لګولې دې، کوم چه اوس بره ذکر شو، کذا افاد الشیخ قدس سره فی بذل المجهود فلله دره.

[۱۷۹۱](۱) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ مُعَاذٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، حَدَّثَنَا النَّهَّاسُ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا أَهَلَّ الرَّجُلُ بِالْحَجِّ ثُمَّ قَدِمَ مَكَّةَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقَدْ حَلَّ، وَهِيَ عُمْرَةٌ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ عَطَاءٍ، دَخَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُهِلِّينَ بِالْحَجِّ خَالِصًا، فَجَعَلَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمْرَةً.

---

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۵۹٦۵)(صحيح)

حضرت ابن عباس رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ نه نقل کوی چه هغوی ﷺ اوفرمائیل: کله چه سړی د حج احرام اوتړلو بیا مکې ته راغي، د بیت الله طواف ئي اوکړو او د صفا، مروه سعی ئي اوکړه نو هغه حلال شو او دا به عمره وی -" امام ابوداود رحمه الله فرمائی: دې حدیث لره ابن جریج د یو کس په واسطې سره د عطاء نه داسې روایت کړې دې چه د نبی کریم ﷺ اصحابو صرف د حج تلبیه وئیله (مکې ته) داخل شول - پس نبی کریم ﷺ هغې لره عمره اوګرځوله -

[۱۷۹۲](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ شَوْكَرٍ، وَأَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، قَالَ ابْنُ مَنِيعٍ: أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ الْمَعْنَى، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْحَجِّ، فَلَمَّا قَدِمَ طَافَ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ"، وَقَالَ ابْنُ شَوْكَرٍ: "وَلَمْ يُقَصِّرْ"، ثُمَّ اتَّفَقَا: "وَلَمْ يَحِلَّ مِنْ أَجْلِ الْهَدْيِ، وَأَمَرَ مَنْ لَمْ يَكُنْ سَاقَ الْهَدْيَ أَنْ يَطُوفَ وَأَنْ يَسْعَى وَيُقَصِّرَ ثُمَّ يَحِلَّ"، زَادَ ابْنُ مَنِيعٍ فِي حَدِيثِهِ: "أَوْ يَحْلِقَ ثُمَّ يَحِلَّ".

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د حج تلبیه اووئیله - کله چه ئي مکې ته تشریف راوړو او د بیت الله طواف او د صفا مروه سعی ئي اوکړه ... ابن شوکر وائی او هغوی ﷺ خپل وېښتهٔ کم نهٔ کړل ... او بیا ابن شوکر او احمد بن منیع دواړه وائی ... او هغوی د خپلې قربانئ په وجه سره حلال نهٔ شول، -(لیکن) د کومو خلقو سره چه قربانی نهٔ وه، هغوی ته ئي حکم اوکړو چه د طواف او د سعی نه پس خپل وېښتهٔ کټ کړئ او حلال شئ - د ابن منیع په روایت کښې اضافه ده: یا دې وېښتهٔ اوخروی او حلال دې شی"

ولم یحل من اجل الهدی: ددې نه معلومیږی، چه سوق د هدی، مانع عن التحلل دې، نور هم ددې سلسلې بعضې روایات مخکښې تیر شوې دې.

## ایا سوق د هدی د تحلل نه مانع دې:

پس د احنافو او حنابله مسلك هم دادې، لیکن د شافعیه او مالکیه مسلك ددې نه خلاف دې، دهغوی په نزد دسوق هدی د تحلل نه مانع نه دې، افاده النووی رحمه الله فی شرح مسلم، لهذا دا حدیث د هغې دواړو خلاف دې، لیکن امام نووی رحمه الله ددې هیڅ جواب نه دې ورکړې.

[۱۷۹۳](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي حَيْوَةُ، أَخْبَرَنِي أَبُو عِيسَى الْخُرَاسَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ، "أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فَشَهِدَ عِنْدَهُ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي قُبِضَ فِيهِ يَنْهَى عَنِ الْعُمْرَةِ قَبْلَ الْحَجِّ".

د سعید بن مسیب نه روایت دې چه د نبی ﷺ د صحابه ؤ نه یو کس حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه ته راغي او ګواهی ئي اوکړه چه هغه د رسول الله ﷺ نه د هغوی ﷺ په مرض الموت کښې اوریدلې دی چه هغوی به د حج نه مخکښې د عمرې کولو نه منع فرمائیله -"

**تشریح: قوله:** ان رجلا من اصحاب النبی (صلی الله علیه و سلم)...... ینهی عن العمرة قبل الحج.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٤٢٩)، وقد أخرجه: (حم ١/٢٤١، ٣٣٨) (صحيح)
(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٥٨٢) (ضعيف)

**د حديث شرح او د بعضې صحابه کرامو د تمتع نه منع کول:**

د حج نه مخکښې د عمرې ممانعت د هيچا مذهب نه دې، امام خطابی رحمه الله فرمائي[1] ددې حديث په شرح کښې مقال دې، ځکه چه په دې کښې عبد الله بن القاسم دې، چه مجهول دې،[2] شايد چه د حج د اهميت د وجې نه نبی کريم ﷺ داسې اوفرمائيل، اول خو حج فرض دې، دويم د حج وخت مخصوص او متعين دې، چه دهغې په بناء د فوت کيدو خطره ده، په خلاف د عمرې نه، چه اول خو هغه فرض نه ده، دويم هغه هر وخت کيدې شی، ددې جواب خلاصه دا شوه، الاهم فالاهم،[3] حضرت په بذل کښې ليکلې دی، چه شايد ددې حديث نه حضرت عمر رضی الله عنه استنباط فرمائې، او د تمتع نه ئې منع فرمائيلې ده، لکه چه په رواياتو کښې مشهوره ده، چه د صحابه کرامو يو مختصر شان جماعت چه په هغې کښې عمر فاروق رضی الله عنه، عثمان رضی الله عنه، معاويه رضی الله عنه، زيات مشهور دی، به د تمتع نه منع فرمائيله،[1] ځکه چه د حج نه مخکښې عمره په تمتع کښې وی.

[۱۷۹٤](٢) حَدَّثَنَا مُوسَى أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَبِي شَيْخٍ الْهُنَائِيِّ خَيْوَانَ بْنِ خَلْدَةَ مِمَّنْ قَرَأَ عَلَى أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ مِنْ أَهْلِ الْبَصْرَةِ، أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ، قَالَ لِأَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "هَلْ تَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ كَذَا وَكَذَا وَعَنْ رُكُوبِ جُلُودِ النُّمُورِ؟ قَالُوا: نَعَمْ، قَالَ: فَتَعْلَمُونَ أَنَّهُ نَهَى أَنْ يُقْرَنَ بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ؟ فَقَالُوا: أَمَّا هَذَا، فَلَا، فَقَالَ: أَمَا إِنَّهَا مَعَهُنَّ وَلَكِنَّكُمْ نَسِيتُمْ".

حضرت معاويه بن سفيان رضی الله عنه د اصحاب نبی ﷺ ته اووئيل : ايا تاسو پوهيږئ چه رسول الله ﷺ دَ فلاں فلاں کار نه منع فرمائيلې ده او دَ پړانګ په څرمن باندې ئې دَ سوريدو( کيناستو) نه هم منع فرمائيلې ده؟ هغوی اوفرمائيل : او - هغه اووې آيا تاسو خلق دا هم پيژنئ چه نبی کريم ﷺ دَ حج او دَ عمرې دَ يوځائې کولو نه هم منع فرمائيلې ده؟ هغوی اووې نه - دا خبره مونږ نه پيژنو - معاويه اووې : دا خو دَ هغه( ممنوعه څيزونو) سره دی مګر تاسو خلقو هير کړې دی -''

**تشريح: قوله**: ان معاويه بن ابی سفيان قال.....فتعلمون انه نهی ان يقرن بن الحج والعمرة.

مشهوره خو دا ده، چه حضرت معاويه و عمر رضی الله عنهما، دا حضرات د تمتع نه منع فرمائي، کما سبق آنفا، په دې روايت کښې د تمتع په ځائې قران ذکر دې، باقی په دواړو کښې څه خاص فرق نشته، په تمتع او قران دواړو کښې جمع بين الحج والعمره وی، ددې منع توجيه اوس مخکښې تيره شوې ده، فی الحاشيه، يا داسې وئيلې شی، چه ددې نه مقصود د قران د يو

[1] ) ددې منعې يوه توجيه خودا کولې شی چه ددې نه مراد مطلق تمتع نه ده بلکه ددې يوه خاص نوع يعنی فسخ الحج الی العمرة کوم چه عند الجمهور منسوخ ده په دې صورت کښې به دا نهی د تحريم دپاره وی دويمه توجيه دا کړې شوې ده چه دا نهی تنزيهی ده دحج افراد په مقابله کښې، چه دا اختيارول پکار دی ځکه چه دا افضل دې د تمتع نه، او تمتع مفضول دې. فالمقصود ترغيب ما هو الافضل. والله تعالی أعلم.

[2] ): سنن النسائي/الحج ٥٠ مختصراً(٢٧٣٥)،( تحفة الأشراف: ١١٤٥٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/٩٢، ٩٥، ٩٨، ٩٩)،(ضعيف)

خاص صورت نه منع کول دی، یعنی ادخال العمرة علی الحج، چه د احنافو په نزد جائز مع الکراهت دي، او د شافعیه په نزد جائز نه دي، کما سبق فی بیان انواع الحج.

## بَابٌ فِي الْإِقْرَانِ

### د قران بیان

دلته کښې نسخې مختلفې دی، زمونږ په نسخه کښې اقران دي، د باب افعال نه، او په بله نسخه کښې قران دي، په صحیح بخاری کښې هم دوه نسخې دی. حافظ ابن حجر رحمه الله اقران والا نسخه په خطا باندې محمول کړې ده، علامه عینی رحمه الله د ابن الاثیر رحمه الله نه نقل کړې دی، چه هغه وائی، وروی الاقران ایضا، عینی رحمه الله وائی، هرکله چه منقول دي، نو بیا غلط څرنګه شو، دغه شان حضرت په بذل کښې د قاموس نه هم دواړو طریقو سره ثابتیدل نقل کړي دی.

[۱۷۹۵](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَحْيَى بْنُ أَبِي إِسْحَاقَ، وَعَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ صُهَيْبٍ، وَحُمَيْدٌ الطَّوِيلُ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّهُمْ سَمِعُوهُ، يَقُولُ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُلَبِّي بِالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ جَمِيعًا، يَقُولُ: "لَبَّيْكَ عُمْرَةً وَحَجًّا، لَبَّيْكَ عُمْرَةً وَحَجًّا".

دانس ابن مالک رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه ما دنبی علیه السلام نه اوریدلي دی چه دحج او عمرې دپاره يې په يو ځائي باندی تلبيه وئيله ددواړو سره به يې لبيک لبيک وئيل او داسې به يې وئيل «لبيك عمرة وحجا لبيك عمرة وحجا»

**تشریح: قوله**: عن انس بن مالك يقول سمعت رسول الله(صلی الله علیه و سلم) يلبي بالحج والعمرة جميعا يقول لبيك عمرة و حجا،

دا صریح او قوی دلیل دي، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم قارن وو، کما لا یخفی،

بات بها یعنی بذی الحلیفة حتی اصبح ثم رکب، دامطلب نه دي، چه سحر راختلو سره د ذوالحلیفه نه روان شو، بلکه د ماسپخین نه پس روان شو، د باب الاشتراط فی الحج نه مخکښې چه کوم حدیث انس رضی الله عنه تیر شوې دي، په هغې کښې ددې تصریح ده، حضرت شیخ رحمه الله فرمائي چه دلته کښې په دې روایت کښې ثم ښه په غنې سره، اوږده او تجوید سره وایه(د امتداد د صوت سره امتداد زماني طرف ته لطیف اشاره ده)

[۱۷۹۶](۲) حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا وُهَيْبٌ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "بَاتَ بِهَا، يَعْنِي بِذِي الْحُلَيْفَةِ، حَتَّى أَصْبَحَ ثُمَّ رَكِبَ حَتَّى إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ عَلَى الْبَيْدَاءِ حَمِدَ اللَّهَ وَسَبَّحَ وَكَبَّرَ، ثُمَّ أَهَلَّ بِحَجٍّ وَعُمْرَةٍ وَأَهَلَّ النَّاسُ بِهِمَا، فَلَمَّا قَدِمْنَا أَمَرَ النَّاسَ فَحَلُّوا حَتَّى إِذَا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ، أَهَلُّوا بِالْحَجِّ وَنَحَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَبْعَ بَدَنَاتٍ بِيَدِهِ قِيَامًا". قَالَ أَبُو دَاوُد: الَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ، يَعْنِي أَنَسًا، مِنَ

(۱): صحيح مسلم/الحج ۳۴(۱۲۵۱)، سنن النسائي/الحج ۴۹(۲۷۳۰)،( تحفة الأشراف: ۷۸۱، ۱۶۵۳)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الجهاد ۱۲۶(۲۹۸۶)، والمغازي ۶۱(۴۳۵۳)، سنن الترمذي/الحج ۱۱(۸۲۱)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۴(۲۹۱۷)، ۳۸(۲۹۶۸، ۲۹۶۹)، مسند احمد(۹۹/۳، ۲۸۲)، سنن الدارمي/المناسك ۷۸(۱۹۶۴)(صحيح)

(۲): صحيح البخاري/الحج ۲۴، (۱۵۴۷)، ۲۵(۱۵۴۸)، ۲۷(۱۵۵۱)، ۱۱۹(۱۷۱۵)، الجهاد ۱۰۴(۲۹۵۱)، ۱۲۶(۲۹۸۶)، صحيح مسلم/صلاة المسافرين ۱(۶۹۰)، سنن النسائي/الضحايا ۱۳(۴۳۹۲)، ويأتي هذا الحديث برقم(۲۷۹۳)،( تحفة الأشراف: ۹۴۷)(صحيح)

هَذَا الْحَدِيثِ أَنَّهُ: بَدَأَ بِالْحَمْدِ وَالتَّسْبِيحِ وَالتَّكْبِيرِ ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ.

دانس ابن مالک رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام په ذي الحليفة کښې شپه تيره کړه تردې چه صبا شو اوپه خپله سورلئ باندې سور شو کله چه بيداء مقام ته ورسيدو نو دالله حمد يې بيان کړو او تکبير او تسبيح يې اووئيل او بيايې په يوځائې دحج او عمرې دپاره احرام اوتړلو او باقي خلقو هم داسې اوکړل، کله چه مونږ مکې ته راغلو نو نبي عليه السلام خلقو ته داحرام پرانيستلو حکم اوفرمائيلو او کله چه دذي الحجې اتم تاريخ شو نو خلقو دحج دپاره احرامونه وتړل او نبي عليه السلام پخپل لاس مبارک باندې اوه اوښان اودرول او نحريې کړل. امام ابوداؤد فرمائي چاچه تفرد کړې دې په دې حديث باندې يعنې انس بن مالک هغه پخپله په حمد او تسبيح او تکبير باندې شروع کړې ده اوبيايې دحج دپاره احرام وتړلو.

[۱۷۹۷]() حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مُعِينٍ، قَالَ: حَدَّثَنَا حَجَّاجٌ، حَدَّثَنَا يُونُسُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ، قَالَ: كُنْتُ مَعَ عَلِيٍّ حِينَ أَمَّرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْيَمَنِ، قَالَ: فَأَصَبْتُ مَعَهُ أَوَاقِيَ، فَلَمَّا قَدِمَ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: وَجَدَ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَدْ لَبِسَتْ ثِيَابًا صَبِيغًا وَقَدْ نَضَحَتِ الْبَيْتَ بِنَضُوحٍ، فَقَالَتْ: مَا لَكَ؟ فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَمَرَ أَصْحَابَهُ فَأَحَلُّوا، قَالَ: قُلْتُ لَهَا: إِنِّي أَهْلَلْتُ بِإِهْلَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي: "كَيْفَ صَنَعْتَ؟" فَقَالَ: قُلْتُ: أَهْلَلْتُ بِإِهْلَالِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "فَإِنِّي قَدْ سُقْتُ الْهَدْيَ وَقَرَنْتُ"، قَالَ: فَقَالَ لِي: "انْحَرْ مِنَ الْبُدْنِ سَبْعًا وَسِتِّينَ، أَوْ سِتًّا وَسِتِّينَ، وَأَمْسِكْ لِنَفْسِكَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، أَوْ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ، وَأَمْسِكْ لِي مِنْ كُلِّ بَدَنَةٍ مِنْهَا بَضْعَةً".

دبراء بن عازب رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي کله چه نبي عليه السلام علي رضي الله عنه لره دحاکم په طور باندې يمن ته وليږلو په هغه وخت کښې زه دعلي رضي الله عنه سره موجود وم ما هلته يوڅو اوقيې سپين زر جمع کړې وو، کله چه علي رضي الله عنه ديمن نه واپس راغې او دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو نو فاطمه رضي الله عنها يې اوليدله چه رنګينې جامې يې اغوستلې دې او ناسته ده او په کور کښې يې خوشبو يې لګولې ده علي رضي الله عنه ته يې اووئيل په تاباندې څه شوي دې خبره خوپه اصل کښې داسې ده کله چه نبي عليه السلام صحابه کراموته حکم اوکړو نو هغوی احرامونه پرانيستل علي رضي الله عنه چه دا واوريدل نو جواب يې ورکړو نبي عليه السلام چه کوم نيت کړې دې ماهم هغه نيت کړې دې (يعنې حج قران مې کړې دې، نوپه دې وجه باندې احرام نشم پرانيستلې) ددينه پس علي رضي الله عنه دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل اې علي تا څنګه اوکړل علي اوئيل اې دالله رسوله ما هغه نيت کړې دې کوم چه تاکړې دې نبي عليه السلام ورته اوفرمائيل ماخو دځان سره قرباني راوستلې ده او ماحج قران کړې دې ددينه پس علي رضي الله عنه اوئيل چه ماته نبي عليه السلام د ۶۶ يا ۶۷ اوښانو نحر کولو حکم اوکړو او دايې هم راته اوفرمائيل چه ۳۳ يا ۳۴ اوښان دځان دپاره هم وساته او دهر اوښ نه څما دپاره دغوښې يوه ټيکه وساته.

---

() : سنن النسائي/الحج ۵۲(۲۷۴۶)،( تحفة الأشراف: ۱۰۰۲۶)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المغازي ۶۱(۴۳۵۴)(صحيح)

عن البراء بن عازب قال كنت مع علي رضي الله عنه الخ، فقال لي انحر من البدن سبعا و ستين، امام نووي رحمه الله او قرطبي رحمه الله دې لره وهم گرزولې دې، او فرمائيلې دي، چه صحيح هغه دې، چه د مسلم په روايت کښې دي، فنحر ثلاث و ستين و اعطى عليا فنحر ما غبر.

[۱۷۹۸](¹) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، قَالَ: قَالَ الصُّبَيُّ بْنُ مَعْبَدٍ: "أَهْلَلْتُ بِهِمَا مَعًا"، فَقَالَ عُمَرُ: "هُدِيتَ لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دابو وائل نه روايت دې فرمائي چه صبي بن معبد وئيلي دي چه ما دحج او عمرې دپاره احرام وتړلو زما دا عمل چه علي رضي الله عنه اوليدو نو ويې فرمائيل چه تا دنبي عليه السلام دسنت تابعداري کړې ده يعني په سنت نبوي دې عمل کړې دې.

[۱۷۹۹](²) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ أَبِي وَائِلٍ، قَالَ: قَالَ الصُّبَيُّ بْنُ مَعْبَدٍ: كُنْتُ رَجُلًا أَعْرَابِيًّا نَصْرَانِيًّا فَأَسْلَمْتُ فَأَتَيْتُ رَجُلًا مِنْ عَشِيرَتِي، يُقَالُ لَهُ: هُذَيْمُ بْنُ ثُرْمُلَةَ، فَقُلْتُ لَهُ: يَا هَنَاهْ، إِنِّي حَرِيصٌ عَلَى الْجِهَادِ وَإِنِّي وَجَدْتُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ مَكْتُوبَيْنِ عَلَيَّ، فَكَيْفَ لِي بِأَنْ أَجْمَعَهُمَا؟ قَالَ: اجْمَعْهُمَا وَاذْبَحْ مَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ، فَأَهْلَلْتُ بِهِمَا مَعًا، فَلَمَّا أَتَيْتُ الْعُذَيْبَ لَقِيَنِي سَلْمَانُ بْنُ رَبِيعَةَ وَزَيْدُ بْنُ صُوحَانَ وَأَنَا أُهِلُّ بِهِمَا جَمِيعًا، فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِلْآخَرِ: مَا هَذَا بِأَفْقَهَ مِنْ بَعِيرِهِ؟ قَالَ: فَكَأَنَّمَا أُلْقِيَ عَلَيَّ جَبَلٌ حَتَّى أَتَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، فَقُلْتُ لَهُ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ، إِنِّي كُنْتُ رَجُلًا أَعْرَابِيًّا نَصْرَانِيًّا وَإِنِّي أَسْلَمْتُ وَأَنَا حَرِيصٌ عَلَى الْجِهَادِ وَإِنِّي وَجَدْتُ الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ مَكْتُوبَيْنِ عَلَيَّ فَأَتَيْتُ رَجُلًا مِنْ قَوْمِي، فَقَالَ لِي: اجْمَعْهُمَا وَاذْبَحْ مَا اسْتَيْسَرَ مِنَ الْهَدْيِ، وَإِنِّي أَهْلَلْتُ بِهِمَا مَعًا، فَقَالَ لِي عُمَرُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: "هُدِيتَ لِسُنَّةِ نَبِيِّكَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دابو وائل نه روايت دې فرمائي چه صبي بن معبد وئيلي دي چه زه يو باندچي سړې وم او نصراني هم وم کله چه مې اسلام قبول کړو نو خپلې قبيلې يو کس ته راغلم چه هذيم بن ثرملة ورته وئيلې شو، ماورته ووئيل چه دجهاد سره مې ډير شوق دې او حج او عمره مې اوموندل چه په مابانديې فرض کړې شوي دي نو چه دا دواړه جمع کړم نو زما دپاره څه حکم دې؟ راته ئې اوفرمائيل جمع ئې کړه اوکومه قرباني چه درته ميسره وي ذبحه ئې کړه نو ماددواړو دپاره په يو ځاې احرام اوتړلو نو هر کله چه عذيب ته راتلم نو سليمان بن ربيعه احرام تړلې وو نو پدوې کښې يو کس بل ته ووئيل پده کښې خو دخپل اوښ برابر عقل هم نشته راوي وائي چه دعمر بن الخطاب رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم او عرض مې ورته وکړو چه اې اميرالمومنين زه يو باندچي سړې وم او نصراني هم وم بيامې اسلام قبول کړو او دجهاد سره مې ډير شوق دې او حج او عمره مې هم اوموندل چه په مابانديې فرض کړې شوي دي نو دخپلې قبيلې يو کس ته راغلم اوورته مې ووئيل چه دا دواړه جمع کړم نو زما دپاره څه حکم دې؟ راته ئې اوفرمائيل جمع ئې کړه او کومه قرباني چه درته ميسره وي ذبحه ئې کړه نو ما ددواړو دپاره په يو ځاې احرام اوتړلو نو. عمر رضي الله عنه راته او فرمائيل

¹): سنن النسائي/الحج ٤٩(٢٧٢٠، ٢٧٢١، ٢٧٢٢)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣٨(٢٩٧٠)،(تحفة الأشراف: ١٠٤٦٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/١٤، ٢٥، ٣٤، ٣٧، ٥٣)(صحيح)

²): انظر ما قبله،(تحفة الأشراف: ١٠٤٦٦)(صحيح)

دخپل نبی سنت درته خودلی شوی دی.

**قوله**: قال الصبی بن معبد اهللت بهما معا فقال عمر هدیت لسنة نبیك(صلی الله علیه و سلم)

دا روایت دلته کښې ډیر مختصر دې، د حاشیه والا نسخه کښې مطول دې، چه دهغې مضمون دادې، صبی بن معبد وائی، زه یو اعرابی نصرانی سړې وو، الله تعالی زهٔ په اسلام سره خائسته کړم، مسلمانیدو نه پس د جهاد شوق او جذبه مې راؤچته شوه، بیا راته خیال راغلو، چه ما باندې خو حج هم فرض دې، اول به حج اوکړم، پس ما د خپلو رشته دارو او دوستانو په مشورې سره د حج او عمرې دواړو احرام یو ځائې اوتړو(یعنی حج قران) په لاره کښې ماسره سلمان بن ربیعه او زید بن صوحان ملاؤ شو، هرکله چه ما د حج او عمرې دواړو تلبیه وئیله، چه کله هغې دواړو زما تلبیه واؤریده، نو تنقیداً یو بل ته اوئیل، ماهذا بافقه من بعیره، چه دا سړې خو د خپل اوښ نه هم زیاته پوهه نه لری(په اصل کښې دهغوی اشکال په جمع بین الحج والعمره باندې وو) هغه وائی، چه په دې باندې ماته ډیره غصه راغله، فکانما القی علی جبل، ګویا په ما باندې غر راؤغورزولې شو،(لیکن ما اوریدلو سره برداشت اوکړو، څه مې اونه وئیل) وائی، چه زهٔ د حضرت عمر رضی الله عنه په خدمت کښې حاضر شوم او ټوله خبره مې ورته بیان کړه، هغوی چه واؤریده، نو دا ئې اوفرمائیل، کوم چه دلته بره په حدیث کښې ذکر دی، چه تاته الله تعالی دهغه څیز توفیق درکړو، کوم چه سنت دې، ددې نه معلومه شوه چه د حضور صلی الله علیه وسلم حج هم حج قران وو، ددې وجې نه مصنف دې حدیث لره په باب القران کښې راؤړو.

[۱۸۰۰]([1]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مِسْكِينٌ، عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: حَدَّثَنِي عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "أَتَانِي اللَّيْلَةَ آتٍ مِنْ عِنْدِ رَبِّي عَزَّ وَجَلَّ، قَالَ: وَهُوَ بِالْعَقِيقِ، وَقَالَ: صَلِّ فِي هَذَا الْوَادِي الْمُبَارَكِ، وَقَالَ: عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْوَاحِدِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، عَنْ الْأَوْزَاعِيِّ "وَقُلْ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَا رَوَاهُ عَلِيُّ بْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، وَقَالَ: "وَقُلْ عُمْرَةٌ فِي حَجَّةٍ".

دابن عباس رضی الله عنهما روایت دې فرمائی چه دعمر بن الخطاب رضی الله عنه نه مې اوریدلی دی هغه به وئیل چه دنبی علیه السلام نه مې اوریدلی دی چه فرمائیل یې کله چه نبی علیه السلام ته مقام کښې دشپې په وخت کښې یو راتلونکې کس راغې اوویې وئیل چه په دی مبارک مقام کښې مونځ اداکړه او راته یې اووئیل چه په حج کښې دننه عمره هم وی، امام ابوداود وائی چه ولید بن مسلم او عمرو بن عبدالواحد پخپل روایت کښې دامام اوزاعی نه دا جمله هم بطور اضافه نقل کړی ده«وقل عمرة في حجة» امام ابوداود وائی چه همدارنګی علی بن مبارک هم دا جمله«وقل عمرة في حجة» دیحی بن ابی کثیر نه نقل کړی ده.

**تشریح**: **قوله**: اتانی اللیلة آت من عند ربی عزوجل قال وهو بالعقیق:

وادی عقیق ذوالحلیفې سره نزدې دې، هلته کښې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یوه

---

[1] ): صحیح البخاري/الحج ١٦(١٥٣٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤٠(٢٩٧٦)،( تحفة الأشراف: ١٠٥١٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٤/١)(صحیح)

فرښته(حضرت جبرائیل کما فی الفتح) راغلو، هغه عرض اوکړو، چه تاسو په دې وادئ مبارکه کښې مونځ ادا کړئ، وقل عمرة فی حجة، چه ددې متبادر معنی داده، چه تاسو د حج او عمرې دواړو احرام اوتړئ، ګویا نبی کریم ﷺ د الله تعالی د طرف نه په حج قران باندې مامور وو، ددې نه د قران افضیلت معلومیږي.

دلته کښې دا اشکال کړې شوې دې، چه هرکله نبی کریم ﷺ په قرآن مامور وو، نو بیا هغوی لواستقبلت من امری ما استدبرت الخ کښې د تمتع تمنی ولې ظاهره کړې وه، د بنده په نزد ددې آسان جواب دادې، چه د عمرة فی حجة نه مقصود جمع بین الحج والعمرة دې، او دا جمع څرنګه چه په قران کښې وی، دغه شان په تمتع کښې هم وی، لهذا تمتع په دې اعتبار سره د قران سره منافی نه ده، والله تعالی اعلم.

ددې اشکال یو جواب حضرت په بذل المجهود کښې هم لیکلې دې، په هغې باندې هم پوهیدل پکار دی.

[۱۸۰۱]()حَدَّثَنَا هَنَّادُبْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ بْنُ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ، حَدَّثَنِي الرَّبِيعُ بْنُ سَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِعُسْفَانَ، قَالَ لَهُ: سُرَاقَةُ بْنُ مَالِكٍ الْمُدْلِجِيُّ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اقْضِ لَنَا قَضَاءَ قَوْمٍ كَأَنَّمَا وُلِدُوا الْيَوْمَ، فَقَالَ: "إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى قَدْ أَدْخَلَ عَلَيْكُمْ فِي حَجِّكُمْ هَذَا عُمْرَةً فَإِذَا قَدِمْتُمْ فَمَنْ تَطَوَّفَ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَقَدْ حَلَّ إِلَّا مَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ".

ربیع بن سبره دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه مونږ دنبی ﷺ سره روان شو کله چه عسفان مقام ته ورسیدو نو سراقه بن مالک ﷺ اووئیل ای دالله رسوله نن یو داسی مضمون بیان کړه چه داسی اوګڼرلې شی لکه دچاچه اوس پیدائش شوې وی(مطلب یې دا وو چه په واضحه طریقه باندی مونږ پوهه کړه ددی دپاره چه مونږ ښه پوهه شو) نبی ﷺ ورته اوفرمائیل الله تعالی مونږ دپاره په دی حج کښې عمره شامل کړی ده تاسو چه کله په دی وجه په مکه کښې داخل شئ او دبیت الله طواف اوکړئ اوپه صفا مروه کښې سعی اوکړئ نو تاسو به حلال شئ لیکن که چا دځان سره قربانی راوستلی وی هغه کس به حلال نه وی.

**تشریح: قوله:** قال له سراقه بن مالك جعشم یا رسول الله(صلی الله علیه و سلم) اقض لنا قضاء قوم کانهم ولدوا الیوم.

هسې خو نبی کریم ﷺ به صحابه کرامو ته د دین هره خبره ښه پوره توجه سره همیشه دپاره بیانوله، لیکن په دې سفر حج کښې خو د هغوی دا محنت او سعی خپلې انتهاء ته رسیدلې وه، نبی کریم ﷺ به بار بار فرمائیل، خذوا عنی مناسککم لعلی لا اراکم بعد عامی هذا، دغه شان الله تعالی نبی کریم ﷺ ته اصحاب او همنشین هم داسې ورکړې وو، چه د نبی کریم ﷺ په دې تعلیماتو باندې ئې خانونه قربانول، نو په مذکوره حدیث کښې یو صحابی نبی کریم ﷺ ته عرض کوی، یا رسول الله ﷺ، تاسو مونږ ته دا مسائل او نصائح داسې بیان کړئ، لکه چه څه خبره د یوې ورځې ماشوم ته بیانولې شی، الله اکبر! د دغې حضراتو طلب

():تفرد به ابو داود،( تحفة الأشراف: ۳۸۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴۰۴/۳)، سنن الدارمي/المناسك ۱۸۹۹/۳۸)(صحیح)

او رغبت ځومره درجه کښ وو، وفي ذالك فليتنافس المتنافسون.

[۱۸۰۲] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ نَجْدَةَ، حَدَّثَنَا شُعَيْبُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ. ح حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرِ بْنُ خَلَّادٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى الْمَعْنَى، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي الْحَسَنُ بْنُ مُسْلِمٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي سُفْيَانَ أَخْبَرَهُ، قَالَ: "قَصَّرْتُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصٍ عَلَى الْمَرْوَةِ، أَوْ رَأَيْتُهُ يُقَصِّرُ عَنْهُ عَلَى الْمَرْوَةِ بِمِشْقَصٍ". قَالَ ابْنُ خَلَّادٍ: إِنَّ مُعَاوِيَةَ لَمْ يَذْكُرْ أَخْبَرَهُ.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه معاويه بن ابی سفيان اووئيل چه ما دنبی عليه السلام ويښته په مروا غر کښې دغشي په څوکه باندی کټ کړل يايې داسې اووئيل مانبی عليه السلام په مروه غر کښې دويښتو په کمولو باندی ليدلې وو.

**تشريح: قوله**: عن ابن عباس رضي الله عنهما ان معاوية بن ابی سفيان اخبره قال قصرت عن النبی(صلی الله عليه و سلم) بمشقص علی المروه. مشقص وئيلې شی د غشی پيکان ته(يعنی د غشی تيرۀ اړخ ته) په ظاهر کښ ددې نه قينچی مراد ده.

## شرح حديث:

بعضو دې لره په حجة الوداع باندې محمول کړې ده، او بيا ئې ددې نه استدلال کړې دې، په دې خبره باندې، چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم متمتع وو، او عمره کولو نه پس حلال شوې وو، لکه چه دا يو قول دې د اقوال سته نه، (۲)

ليکن دا قول بالکل غلط دې، د احاديث صحيحه د تصريح نه خلاف دی، او صحيح دا ده، چه دا حديث د حجة الوداع سره متعلق نه دی، بلکه دا واقعه د عمرةالجعرانه ده، چه په سنه ۸هـ کښ پيښه شوې وه، دې لره په عمرة القضاء باندې خو ددې وجې نه محمول کولې نه شو، چه تر هغه وخته پورې خو حضرت معاويه رضي الله عنه اسلام راوړې نه وو، ځکه چه د هغوی اسلام د فتح مکه په موقع باندې وو، او په حجة الوداع باندې ددې وجې نه محمول کولې نه شو، چه په هغې کښ خو نبی کريم صلی الله عليه وسلم حلق په منی کښ کړې وو، لکه چه په رواياتو کښ مشهور دی، نه په مروه کښ. (۳)

دا خبره دې واضحه وی، چه د حج نه فارغيدو نه پس حلق په منی کښ کولې شی، حاجی د مخکښ نه هلته کښ موجود وی، رمی، ذبح، حلق دا ټول کارونه په لسم ذی الحجه په منی کښ کولې شی، (۴) او عمرې والا حلق په مروه کښ کولې شی، ځکه چه سعی په مروه باندې

(۱): صحيح البخاري/الحج ۱۲۷(۱۷۳۰)(إلي قوله: «بمشقص»)، صحيح مسلم/الحج ۳۳(۱۲٤٦)، سنن النسائي/الحج ۵۰(۲۷۳۸)، ۱۸۳(۲۹۹۰)، (تحفة الأشراف: ۱۱٤۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۹٦/٤، ۹۷، ۹۸، ۱۰۲)(صحيح)

(۲) د حضور پاک صلی الله عليه وسلم د احرام باره کښې د علماؤ اختلاف په تفصيل سره په باب افراد الحج کښې تيرشو.

(۳) اګرچه بعضې شارحينو دا احتمال هم جائز کړې دې هغه داسې چه دا خو صحيح ده چه په حج کښې حضورپاک صلی الله عليه وسلم حلق په منی کښې کړې وو خو کيدې شی چه دهغوی صلی الله عليه وسلم په سر باندې څه ويښته باقی پاتې شوی وی چه هغه ئې د طواف زيارت نه پس په سعی کښې صفا کړی وی، والله تعالي أعلم.

(۴) په دې حديث باندې دښه پوهيدلو دپاره دا ټول عبارت ليکلې شوې دې کومو خلقو چه حج او عمره کړې وی دهغوی دپاره خو ددې څه خاص ضرورت نشته ليکن چا چه تر اوسه پورې نه دې کړې دهغوی په رعايت کښې ليکلې شوې دې.

پوره کیږی، عام طور باندې خلق د عمرې نه چه فارغ شی، نو په مروه کښې حلق کوی، او حضور ﷺ اګر چه د حج نه مخکښې عمره کړې وه، لیکن د سوق هدی د وجې نه هغوی دغه وخت کښې حلق نه وو کړې، او حلال شوې نه وو.

[۱۸۰۳](¹) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى الْمَعْنَى، قَالُوا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ مُعَاوِيَةَ، قَالَ لَهُ: "أَمَا عَلِمْتَ أَنِّي قَصَّرْتُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِشْقَصِ أَعْرَابِيٍّ عَلَى الْمَرْوَةِ"، زَادَ الْحَسَنُ فِي حَدِيثِهِ: لِحَجَّتِهِ.

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه معاویه بن ابی سفیان راته اووئیل ایا تاته معلومه نه ده چه ما دنبی علیه السلام ویښته دیوباندې چی کس دغشی په څوکه باندې په مروه غرکښې واړه کړی وو. حسن پخپل حدیث کښې ددې الفاظو اضافه کړیده چه : دحج په دوران کښې بمشقص اعرابی علی المروة بحجته: بره په تفصیل سره تیر شو، چه دا واقعه د حجة الوداع نه ده، بلکه د عمرې ده، دا روایت دهغې خلاف دې، جواب دادې، چه په نسائی کښې د بحجة په ځائې بعمرة لفظ دې، وهو الصحیح، یا داسې وئیل پکار دی، چه دلته کښې د حج نه مراد حج اصغر یعنی عمره ده.

**تشریح: قوله:** وبدا رسول الله(صلى الله عليه و سلم) فاهل بالعمرة ثم اهل بالحج:

ددې نه معلومیږی، چه په شروع کښې نبی کریم ﷺ متمتع وو، او په آخره کښې قارن شوې وو، کما هو قول من الاقوال الستة وهو الذى اختاره الطحاوى على ماقيل.

[۱۸۰۴](²) حَدَّثَنَا ابْنُ مُعَاذٍ، أَخْبَرَنَا أَبِي، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ مُسْلِمٍ الْقُرِّيِّ، سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: "أَهَلَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعُمْرَةٍ، وَأَهَلَّ أَصْحَابُهُ بِحَجٍّ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام احرام وتړلو دعمرې په نیت او صحابه کرامو دحج په نیت باندې احرام وتړلو.

[۱۸۰۵](³) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ شُعَيْبِ بْنِ اللَّيْثِ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي، عَنْ عُقَيْلٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، قَالَ: تَمَتَّعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، فَأَهْدَى وَسَاقَ مَعَهُ الْهَدْيَ مِنْ ذِي الْحُلَيْفَةِ، وَبَدَأَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَهَلَّ بِالْعُمْرَةِ، ثُمَّ أَهَلَّ بِالْحَجِّ، وَتَمَتَّعَ النَّاسُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعُمْرَةِ إِلَى الْحَجِّ، فَكَانَ مِنَ النَّاسِ مَنْ أَهْدَى وَسَاقَ الْهَدْيَ، وَمِنْهُمْ مَنْ لَمْ يُهْدِ، فَلَمَّا قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ، قَالَ لِلنَّاسِ: "مَنْ كَانَ مِنْكُمْ أَهْدَى، فَإِنَّهُ لَا يَحِلُّ لَهُ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى يَقْضِيَ حَجَّهُ، وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْكُمْ أَهْدَى فَلْيَطُفْ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، وَلْيُقَصِّرْ وَلْيَحْلِلْ، ثُمَّ لِيُهِلَّ بِالْحَجِّ وَلْيُهْدِ، فَمَنْ لَمْ يَجِدْ هَدْيًا فَلْيَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فِي الْحَجِّ وَسَبْعَةً إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ"،

---

¹): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۴۲۳)(صحیح)

²): صحیح مسلم/الحج ۳۰(۱۲۳۹)، سنن النسائي/الحج ۷۷(۲۸۱۶)، (تحفة الأشراف: ۶۴۶۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۲۴۰)(صحیح)

³): صحیح البخاري/الحج ۱۰۴(۱۶۹۱)، صحیح مسلم/الحج ۲۴(۱۲۲۷)، سنن النسائي/الحج ۵۰(۲۷۳۳)، (تحفة الأشراف: ۶۸۷۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۱۲(۸۲۴)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۴(۲۹۱۶)، مسند احمد(۲/۱۳۹)، سنن الدارمي/المناسك ۸۴(۱۹۷۲)(صحیح)(وبدأ رسول الله صلي الله عليه وسلم فأهل بالعمرة ثم أهل بالحج) په جمله ابن قیم، ابن حجر، او د البانی په نزد شاذ دې (ملاحظه: فتح الباري، وزاد المعاد، وصحیح ابي داود ۶/۶۸)

وَطَافَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ قَدِمَ مَكَّةَ، فَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ أَوَّلَ شَيْءٍ ثُمَّ خَبَّ ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ مِنَ السَّبْعِ وَمَشَى أَرْبَعَةَ أَطْوَافٍ، ثُمَّ رَكَعَ حِينَ قَضَى طَوَافَهُ بِالْبَيْتِ عِنْدَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ فَانْصَرَفَ، فَأَتَى الصَّفَا فَطَافَ بِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ سَبْعَةَ أَطْوَافٍ ثُمَّ لَمْ يَحْلِلْ مِنْ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ حَتَّى قَضَى حَجَّهُ وَنَحَرَ هَدْيَهُ يَوْمَ النَّحْرِ وَأَفَاضَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ، ثُمَّ حَلَّ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ حَرُمَ مِنْهُ، وَفَعَلَ النَّاسُ مِثْلَ مَا فَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَنْ أَهْدَى وَسَاقَ الْهَدْيَ مِنَ النَّاسِ.

دابن عمر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام په حجة الوداع کښې حج تمتع کړې وو يعنې دعمرې نه پس يې حج کړې وو او دځان سره يې اووه قربانۍ راوستلې وې دذوالحليفې نه او نبي عليه السلام اول دعمرې دپاره دلبيک اواز اوکړو مطلب دادې چه نبي عليه السلام داسې اواز اوکړو لبيک بعمرة او بيايې داسې اواز اوکړو لبيک بحجة او نورو کسانو هم په دې طريقه حج اوکړو يعنې تمتع يې اوکړو بعضې کسانو دځان سره قربانۍ راوستې وې او بعضو کسانو دځان سره قربانيانې نه وې راوستلې کله چه نبي عليه السلام مکې ته داخل شو نو خلقو اووئيل چه تاسو کښې چه چا دځان سره قرباني راوستلې وې هغه دې احرام نه پرانيزي هغوی دې طواف اوسعي اوکړه او ويښته دې کم کړي او بيا دې احرام پرانيزي، اوددينه پس دې هغه کسان دحج احرام وتړي او قرباني دې اوکړي او کچرې دقربانۍ طاقت نه لري نودرې روژې دې په حج کښې اونيسي او کله چه واپس شي نو اووه روژې دې په کور کښې اونيسي، بيا چه کله نبي عليه السلام مکې ته راغې نواول يې حجرا سود ښکل کړو بيا په درې چکرونو کښې يې تيز رفتاري اوکړه اوپه څلورو چکرونو کښې په مزه وو، ددينه پس دکعبې دطواف نه فارغ شو، دوه رکعته مونځ يې اوکړو دمقام ابراهيم سره او دسلام ګرځولو نه پس صفا ته لاړو او دصفا او دمروه په مينځ کښې يې اوه چکرونه اولګول او دځرپورې چه د حج نه اورګار شوې نه وو دهغه وخته پورې په احرام کښې وو اودلويې اختر په ورځ يې قرباني اوکړه يعنې په لسم تاريخ او مکې ته راغې او طواف زيارت يې وکړو او بيا يې احرام پرانيزو اوټول کارونه يې پوره کړل يعنې داحرام په حالت کښې ددينه پس يې احرام ختم کړو او کوم کارونه چه يې داحرام په حالت کښې نه کول هغه يې وکړل او دچا سره چه قرباني وه هغوی هم داسې اوکړل څنګه چه نبي عليه السلام کړي وو.

**فمن لم يجد هديا فليصم ثلاثة ايام في الحج و سبعة اذا رجع الى اهله:** په متمتع باندې دم واجب وي، ليکن که هغه سره ددې ګنجائش نه وي، نو بيا به د دم په ځائې لس ورځې روژې اونيسي، په هغې کښې درې روژې د حج نه مخکښې، او اووه روژې د حج نه پس دی، رومبۍ درې روژې د عمرې د احرام نه پس نيول پکار دی، که هغه وخت پورې ئې عمره کړې وي او که نه وي کړې، دا زمونږ په نزد دی، او د شافعيه په نزد د عمرې نه فارغ کيدو نه پس نيول پکار دی، د هغې نه مخکښې نيول جائز نه دی، او انتهاء(آخرې ورځ) ددې روژو يوم عرفه ده، ليکن که چا د عرفې د ورځې پورې روژې اونه نيولې، نو په ايام تشريق کښې نيولې شي او که نه؟ دا مسئله مختلف فيه ده، د احنافو او امام شافعي رحمه الله د قول جديد مطابق دا درې روژې په ايام تشريق کښې نيول جائز نه دی، لهذا اوس په هغه باندې هدی متعين شوه، او د امام مالک، امام احمد او د امام شافعي رحمهم الله د قول قديم مطابق نيول جائز

دی، بیا دویم اختلاف دا دې، چه بیا اووهٔ روژې چه رجوع الی اهله نه پس نیول دی، په دې کښې د رجوع الی اهله نه څه مراد دې؟

عند الشافعی رحمه الله الصحیح المراد به الرجوع الی الوطن والاهل، و عندنا الحنفیه الرجوع من منی الی مکه ای الفراغ عن الحج وهو روایة عن الشافعی رحمه الله.

**تشریح: قوله:** و افاض فطاف بالبیت ثم حل من کل شئ حرم منه:

په دې حدیث کښې تصریح ده ددې خبرې، چه نبی کریم ﷺ د عمرې نه پس حلال شوې نه وو، بلکه د حج نه فارغیدو نه پس یوم النحر کښې حلال شوې وو، وهذا هو الصحیح بیا ددې حدیث په اخره کښې د نبی کریم ﷺ د طواف افاضه یعنی طواف زیارت ذکر دې، لیکن ددې نه پس هغوی سعی بین الصفا والمروه هم کړې وه او که نه؟ ددې تصریح صفا طور باندې هیڅ یو روایت کښې ماته ملاؤ نشوه،[1] اګر چه احناف دې لره خامخا ثابتوی. والله تعالی اعلم.

[۱۸۰٦] [2] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ حَفْصَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا شَأْنُ النَّاسِ قَدْ حَلُّوا وَلَمْ تَحْلِلْ أَنْتَ مِنْ عُمْرَتِكَ؟ فَقَالَ: "إِنِّي لَبَّدْتُ رَأْسِي وَقَلَّدْتُ هَدْيِي فَلَا أُحِلُّ حَتَّى أَنْحَرَ الْهَدْيَ".

دام المومنین حفصة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ما عرض وکړو ای دالله رسوله دخلقو څه حالت او کیفیت دی دعمری د اداکولو نه پس ئی احرامونه پرانستل او نبی علیه السلام احرام نه وو پرانستلی، نبی علیه السلام اوفرمائیل ما دخپل سر تلبید کړی دی او دقربانۍ په غاړه کښې می امیل اچولی دی ما چه تر څو قربانی نه وی کړی تر هغی نشم حلالیدې.

**تشریح: قوله:** فقال انی لبدت راسی و قلدت هدیی:

نبی کریم ﷺ د خپل عدم تحلل علت بیانوی، لیکن تلبید خو فی نفسه مانع عن التحلل نه دې، البته د تلبید راس حاجت هغه وخت کښې وی، چه کله طول احرام وی، دغه شان په قلدت هدیی کښې اصل څیز سوق هدی ده، چه په اصل کښې هم هغه د تحلل نه مانع ده، د تقلید ذکر خو صرف دواقعې د بیان واقع دپاره دې. لم یکن ذلك الا للرکب الذین الخ: یعنی د فسخ الحج الی العمرة اجازت صرف دهغې صحابه کرامو دپاره وو، چه په حج کښې نبی کریم ﷺ سره وو، روستو خلقو دپاره نشته، د جمهور مسلك هم دا دې، خلافا للامام احمد رحمه الله و بعض الظاهریة.

---

[1] د تعدد طواف روایات په کثرت سره موجود نه دی خو د تعدد سعی مسئله مشکل ده، هغوی قارن وو او عند الجمهور خو په قارن باندې صرف یو طواف او سعی ده چه دحج او عمرې دواړو دطرفه کافی ده، ولکن عند الحنفیة لابد للقارن من طوافین وسعیین کما تقدم قبل ذلك.

[2]: صحیح البخاري/الحج ۳۴(۱۵٦٦)، والمغازي ۷۷(٤۳۹۸)، واللباس ٦۹(۵۹۱٦)، صحیح مسلم/الحج ۲۵(۱۲۲۹)، سنن النسائي/الحج ٤۰(۲٦۸۱)، سنن ابن ماجه/المناسك ۷۲(۳۰٤٦)،( تحفة الأشراف: ۱۵۸۰۰)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۵۸(۱۸۰)، مسند احمد(٦/۲۸۳، ۲۸٤، ۲۷۵)(صحیح)

## بَابُ الرَّجُلِ يُهِلُّ بِالْحَجِّ ثُمَّ يَجْعَلُهَا عُمْرَةً

### دحج دپاره ترلی احرام دعمرې په احرام باندې بدلول

[۱۸۰۷]([1]) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ يَعْنِي ابْنَ السَّرِيِّ، عَنِ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، أَخْبَرَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْأَسْوَدِ، عَنْ سُلَيْمِ بْنِ الْأَسْوَدِ، أَنَّ أَبَا ذَرٍّ كَانَ يَقُولُ فِيمَنْ حَجَّ ثُمَّ فَسَخَهَا بِعُمْرَةٍ: "لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ إِلَّا لِلرَّكْبِ الَّذِينَ كَانُوا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دسليم بن الاسود نه روايت دې فرماظي چه ابوذر رضی الله عنه به دهغه چاپه باره کښې فرمائيل څوک چه دحج اراده وکړی اوبيائې په عمره باندې بدل کړې نو عمل ئې درست نه دې ځکه چه داده دهغه قافلې خصوصيت ووکوم چه دنبی علیه السلام سره تلې وو.

[۱۸۰۸]([2]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي ابْنَ مُحَمَّدٍ، أَخْبَرَنِي رَبِيعَةُ بْنُ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنِ الْحَارِثِ بْنِ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، فَسْخُ الْحَجِّ لَنَا خَاصَّةً، أَوْ لِمَنْ بَعْدَنَا؟ قَالَ: "بَلْ لَكُمْ خَاصَّةً".

حارث بن بلال دخپل پلار نه روايت کوی فرمائي ما عرض وکړو ای دالله رسوله! حج په عمره باندې بدلول زمونږ خصوصيت دې اوکه نه دا حکم زمونږ نه دوروسته خلقو دپاره هم دې؟ رسول پاک صلی الله علیه وسلم اوفرمائيل بلکه دا حکم ستاسو خصوصيت دې.

## بَابُ الرَّجُلِ يَحُجُّ عَنْ غَيْرِهِ

### دبل چا دطرفه حج کول (حج بدل)

دلته کښې يوه نوې مسئله شروع کيږی، حج عن الغير، چه هغې ته په عرف کښې حج بدل وئيلې شی، اوس دلته کښې دا مسئله ده، چه په عباداتو کښې استنابة يعنی بل لره د خپل ځان نائب جوړول جائز دی، او که نه؟

### په کومو عباداتو کښې نيابة عن الغير جاری کيدې شی؟

په دې خبره پوهيدل پکار دی، چه په عبادات بدنيه محضه کښې استنابة عند الائمة الاربعة مطلقاً جائز نه دې، نه عند القدرة او نه عند العجز، لکه صلوة او صوم، او عبادة ماليه محضه لکه زکوة، په دې کښې مطلقا جائز دی، که يو سړې خپل زکوة د بل سړی په لاس باندې ادا کړی، نو جائز دې، او ددې دواړو قسمونو (بدنيه محضه، ماليه محضه) نه علاوه لکه حج، په دې کښې د ائمه ثلاثه يعنی امام ابوحنيفه رحمه الله، شافعی رحمه الله، او احمد رحمه الله مسلک دادې، چه په دې کښې استنابة عند العجز خو جائز دې، ليکن عند القدرة جائز نه دې، د امام مالك په دې کښې اختلاف دې، د هغوی په نزد حج عن الغير الحی جائز نه دې، لا عند

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۹۲۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۲۳(۱۲۲٤)، سنن النسائي/الحج ۷۷(۲۸۱۲)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤۲(۲۹۸۵)(صحيح)

[2]): سنن النسائي/الحج ۷۷(۲۸۱۰)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤۲(۲۹۸٤)،(تحفة الأشراف: ۲۰۲۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/۳٦۹)، سنن الدارمي/المناسك ۳۷(۱۸۹۷)(ضعيف)

القدرة و لا عند العجز الا عن ميت اوصى،[۱] ددې تفصيل تعلق فرض حج سره دې، او د نفل حج مسئله ځانله ده، د احنافو په نزد حج نفل عن الغير مطلقا جائز دې، او د شافعيه په نزد صرف عند العجز جائز دې، عند القدرة جائز نه دې، ګويا د شافعي رحمه الله په نزد نفل او فرض حج په دې کښې برابر دی.

و عن احمد روايتان(من الاوجز) ليکن په صوم کښې د امام احمد رحمه الله په نزد دا تفصيل دې، چه په واجب اصلي يعني صوم رمضان کښې نيابة جائز نه دې، او واجب غير اصلي (يعني صوم منذور وغيره) کښې د مړي د طرف نه نيابت جائز دې، که د مړي په ذمه صوم منذور وی، نو دهغه د طرف نه ولی قضا کولې شی (د حديث د طالبانو دپاره د مذاهب ائمه دا تفصيل يادول واجب دی)

[۱۸۰۹] (۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ الْفَضْلُ بْنُ عَبَّاسٍ رَدِيفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَجَاءَتْهُ امْرَأَةٌ مِنْ خَثْعَمٍ تَسْتَفْتِيهِ، فَجَعَلَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا وَتَنْظُرُ إِلَيْهِ، فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَصْرِفُ وَجْهَ الْفَضْلِ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ فَرِيضَةَ اللَّهِ عَلَى عِبَادِهِ فِي الْحَجِّ أَدْرَكَتْ أَبِي شَيْخًا كَبِيرًا لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يَثْبُتَ عَلَى الرَّاحِلَةِ أَفَأَحُجُّ عَنْهُ؟ قَالَ: نَعَمْ"، وَذَلِكَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ.

دعبدالله بن عباس رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه فضل بن عباس رضی الله عنه په حجة الوداع کښې په نبی عليه السلام پسی شاته سور وو او دخشعم قبيلې يوه زنانه راغله او دنبی عليه السلام نه يې دمسئلې تپوس کول شروع کړل، فضل رضی الله عنه هغې ته وکتل او هغه ښځې فضل ته وکتل نو نبی عليه السلام خپل مخ مبارک بل طرف ته ستون کړو هغه زنانه عرض اوکړو ای دالله رسوله الله تعالی پخپلو بندګانو باندی حج فرض کړې وو او زما په پلار باندی په داسی وخت کښې حج فرض شو چه په اوښ باندی سورلی نه شی کولې ايا زه دهغه دطرفه حج کولې شم نبی عليه السلام اوفرمائيل هو، (کولې شې) او دا واقعه په حجة الوداع کښې پيښه شوی وه.

**تشريح: قوله:** فجائته امراة من خثعم تستفتيه...... فقالت يا رسول الله(صلى الله عليه و سلم) ان فريضة الله عزوجل على عباده في الحج ادركت ابي شيخا كبيرا:

د قبيله خثعم يوې زنانه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه ددې مسئلې باره کښې تپوس اوکړو، يا رسول الله صلی الله عليه وسلم ! د الله تعالی چه يوه اهمه فريضه په خپلو بندګانو باندې ده، هغه زما په پلار راغلې ده، په دې حال کښې چه هغه شيخ فانی دې. په سورلۍ باندې کيناستې نشي، نو آيا زۀ دهغه د طرف نه حج کولې شم، نبی کريم صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل : او کولې شې

---

[۱] يعنی دامام مالک په نزد د ژوندی سړی دطرفه مطلقًا جائز نه دی صرف دمړی دطرفه جائز دی په دې شرط چه وصيت ئې کړې وی.

[۲]: صحيح البخاري/الحج ۱(۱۵۱۳)، وجزاء الصيد ۲۳(۱۸۵٤)، ۲٤(۱۸۵۵)، والمغازي ۷۷(٤۳۹۹)، والاستئذان ۲(٦۲۲۸)، صحيح مسلم/الحج ۷۱(۱۳۳٤)، سنن النسائي/الحج ۸(۲٦۳٤)، ۹(۲٦۳٦)، ۱۲(۲٦٤۲)،( تحفة الأشراف: ۵٦۷۰، ٦۵۲۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۸۵(۹۲۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۰(۲۹۰۹)، موطا امام مالك/الحج ۳۰(۹۷)، مسند احمد(۱/۲۱۹، ۲۵۱، ۳۲۹، ۳٤٦، ۳۵۹)، سنن الدارمي/الحج ۲۳(۱۸۷۳)(صحيح)

**د حج علي المعضوب مسئله چه د حديث الباب نه ثابتيږي:**

په دې حديث کښې د حج علی المعضوب مسئله ذکر ده، داسې قسمه ضعيف سړی ته معضوب وئيلې شي، مسئله اختلافی ده، د امام شافعی رحمه الله، احمد رحمه الله، او صاحبينو مسلك دادې، چه که سړې د زاد او راحله مالك په داسې وخت کښې شو، چه په هغه کښې جسمانی طاقت د سفر دپاره بالکل نه وی، په سورلئ باندې سوريدې نه شی، نو ددې حضراتو په نزد په داسې سړې باندې حج واجبيږی، او څونکه هغه په خپله قادر نه دې، ددې وجې نه په هغه باندې حج بدل واجب دې، د امام اعظم رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نزد په داسې سړی حج فرض نه دې، لهذا حج بدل هم واجب نه دې، دا حديث په ظاهر کښې د دغې دوارو امامانو خلاف دې،[1] د هغوی د طرف نه ددې دوه توجيه شوې ده.

(۱) ادرکت ابی شيخا الخ نه دهغه موجوده حالت بيانول مقصود دی، نه دا چه حج په هغه باندې په دغې حالت کښې واجب شوې دې، مطلب دادې، چه دهغه حالت فی الحال دادې، حالانکه حج په هغه باندې ددې نه مخکښې واجب شوې دې،(چه کله په هغه کښې قوت او طاقت وو) لهذا اوس دا حديث د احنافو او مالکيه خلاف نه شو.

(۲) د حديث مطلب دادې، چه حج چه د الله تعالی د طرف نه په بندګانو باندې فرض دې، دهغې انتظام يعنی سورلی وغيره زما پلار ته په داسې حال کښې حاصل شوې دې، چه هغه شيخ کبير يعنی ډير بوډا دې، په دې کښې ددې تصريح نشته، چه حج زما په پلار واجب دې، بلکه فريضة الله علی عباده، ئې اوئيل، او په دې کښې څه شك دې، چه حج فريضة الله علی عباده دې، عرض دا چه په دې حديث کښې د سورلئ د نظم وغيره ذکر دې، چه هغه په دې حالت کښې حاصل شوې دې، په پلار باندې د حج فرض کيدو ذکر نشته، والله تعالی اعلم، او ددې دويمې توجيه په صورت کښې به د حضور ﷺ د جواب حاصل دا وی، چه که تهٔ د هغه د طرف نه حج کول غواړې، نو کولې شې، په دې کښې څه خرج نشته، او په اوله توجيه کښې به د نبی کريم ﷺ مراد دا وی، چه او دهغه د طرف نه تهٔ حج اوکړه، دهغې قضاء واجب ده، سبحان الله دواړه توجيه ډيرې بهترين دی.

[۱۸۱۰](۲) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بِمَعْنَاهُ قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ سَالِمٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ أَوْسٍ، عَنْ أَبِي رَزِينٍ، قَالَ حَفْصٌ فِي حَدِيثِهِ: رَجُلٌ مِنْ بَنِي عَامِرٍ، أَنَّهُ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ أَبِي شَيْخٌ كَبِيرٌ لَا يَسْتَطِيعُ الْحَجَّ وَلَا الْعُمْرَةَ وَلَا الظَّعْنَ، قَالَ: "احْجُجْ عَنْ أَبِيكَ وَاعْتَمِرْ".

دابورزرين رضی الله عنه خوک چه دبنوعامر قبيلی والا دې، نه روايت دې فرمائی چه ماعرض اوکړو ای دالله رسوله ﷺ زما پلار بوډا دې دحج او دعمری کولو دپاره دسفر کولو طاقت نه لری

---

[1] دلته دوه مسئلې دی: اول داچه په معضوب باندې حج فرض کيږی که نه؟ دا مسئله خو اوس تيره شوه. دويمه مسئله دا ده چه د معضوب دطرفه بل سړې حج کولې شی او که نه؟ د ائمه ثلاثه په نزد کولې شی دامام مالك په نزد نه شی کولې خکه چه ددوی په نزد د ژوند دطرفه حج کول جائز نه دی کما تقدم تقريبًا.

[2] ): سنن الترمذي/الحج ۸۷(۹۳۰)، سنن النسائي/الحج ۲(۲۶۲۲)، ۱۰(۲۶۳۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۰(۲۹۰۶)( تحفة الأشراف: ۱۱۱۷۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۰/٤، ۱۱، ۱۲)(صحيح)

نبي ﷺ اوفرمائيل ته دخپل پلار دطرف نه حج او عمره اوکړه.

ولاالظعن: ظعن راحله ته وئيلې شي، او دلته مراد ددې نه رکوب علي الراحله دې.

[۱۸۱۱]([1])حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ الطَّالَقَانِيُّ، وَهَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَ إِسْحَاقُ: حَدَّثَنَا عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ، عَنِ ابْنِ أَبِي عَرُوبَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ عَزْرَةَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا، يَقُولُ: لَبَّيْكَ عَنْ شُبْرُمَةَ، قَالَ: "مَنْ شُبْرُمَةُ؟" قَالَ: أَخٌ لِي، أَوْ قَرِيبٌ لِي، قَالَ: "حَجَجْتَ عَنْ نَفْسِكَ"، قَالَ: لَا، قَالَ: "حُجَّ عَنْ نَفْسِكَ، ثُمَّ حُجَّ عَنْ شُبْرُمَةَ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ ديوکس نه واوريدل چه وئيل يې «لبيك عن شبرمة» نبي ﷺ تپوس اوکړو چه شبرمه څوک دې هغه اووئيل زما ورور دې يايې داسې اووئيل چه زما رشته دار دې نبي ﷺ ورته اوفرمائيل ايا تا دخپل طرف نه حج کړې دې؟ هغه اووئيل نه نو په دې وخت کښې نبي ﷺ ده ته اوفرمائيل اول دځان دطرف حج اوکړه او بيا دشبرمه دطرف نه حج کوه.

**تشريح: قوله**: لبيك عن شبرمة.......... حج عن نفسك ثم حج عن شبرمة.

**په حج الصرورة عن الغير کښې اختلاف د علماء:**

په دې حديث کښې حج الصرورة ([2]) عن الغير مذکور دې، يعنې کوم سړې چه خپله حج نه وي کړې هغه د بل د طرف نه نيابة حج کولې شي او که نه؟ ددې حديث نه معلوميږي، چه جائز نه دې، د شافعيه او حنابله مسلك هم دادې، د احنافو او مالکيه په نزد جائز دې، ليکن زمونږ په نزد مکروه دې، او حديث په کراهت باندې محمول دې، يعنې تنزيهاً دويم جواب د حديث نه دادې، چه په دې کښې د راويانو اختلاف دې، بعضې دې لره مرفوعا او بعضو موقوفا ذکر کړې دې، ورجح الطحاوي الوقف وقال احمد رفعه خطاء (بذل)

د حديث مضمون دادې، چه يو سړې د خپل يو عزيز د طرف نه چه دهغه نوم شبرمه وو، حج کولو، نو هغه په تلبيه کښې وئيل، لبيك عن شبرمة، نبي کريم ﷺ دهغه نه تپوس اوکړو، شبرمه څوك دې؟ (د چا د طرف نه چه ته تلبيه وائې) او بيا ئې اوفرمائيل، اول خپل حج ادا کړه، دهغې نه پس د بل د طرف نه حج کوه په دې حديث کښې يوه دا هم مسئله ده، چه په حج بدل کښې د چا د طرف نه چه سړې حج کوې، دهغه د نوم تصريح کول پکار دي.

# بَابُ كَيْفَ التَّلْبِيَةُ

## باب: د تلبيه بيان

د مصنف رحمه الله مقصود ددې نه د تلبيئ چه کوم الفاظ د نبي کريم ﷺ نه منقول دې، دهغې بيانول دې، او دا چه په هغې کښې کمې زياتې کولې شي، او که نه؟

**المذاهب في التلبية:**

په تلبيه کښې څلور مذاهب دې (۱) د امام شافعي او امام احمد □ په نزد سنت ده، لهذا ددې

[1]: سنن ابن ماجه/المناسك ۹(۲۹۰۳)، (تحفة الأشراف: ٥٥٦٤)(صحيح)

[2] صرورة (صاد مهمله سره) هغه سړې چه حج ئې نه وي کړې. كما تقدم في اول كتاب الحج لا صرورة في الاسلام

په ترک سره به هيڅ نه واجب کيږي، ځکه چه دهغوی په نزد د احرام د تحقق دپاره نطق او تلفظ ضروری نه دی. صرف په نيت سره هم د احرام انعقاد کيږي،(۲) د امام مالک رحمه الله په نزد واجب ده، ددې په ترک سره به دم واجب کيږي،(۳) د احنافو په نزد په شروع کښې يو ځل وئيل ددې فرض دی، ليکن د هغوی په نزد د تلبيې نه علاوه بل ذکر هم ددې قائم مقام کيدې شی، بلکه د قول په ځائې فعل يعنی تقليد و سوق هدی وغيره هم ددې قائم مقام کيږي،(۴) د ظاهريه په نزد تلبيه رکن دې، ددې وجې نه څه بل ذکر ددې قائم مقام نشی کيدې.

[۱۸۱۲](۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، "أَنَّ تَلْبِيَةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ"، قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ يَزِيدُ فِي تَلْبِيَتِهِ: لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ لَبَّيْكَ وَسَعْدَيْكَ وَالْخَيْرُ بِيَدَيْكَ وَالرَّغْبَاءُ إِلَيْكَ وَالْعَمَلُ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه دنبی عليه السلام تلبيه داسی وه «لبيك اللهم لبيك، لبيك لا شريك لك لبيك، إن الحمد والنعمة لك والملك، لا شريك لك» يعنی ای الله زه ستا په خدمت کښې حاضر يم ای الله زه ستاپه در کښې حاضر يم، ای الله زه ستا په در کښې حاضر يم، ستا څوک شريک نشته دې ټول تعريفونه او صفتونه خاص ستا دپاره دی ته بادشاه يې ستا څوک شريک نشته دې، ابن عمر رضی الله عنه به په دی الفاظو کښې دا اظافه کوله «لبيك لبيك لبيك وسعديك والخير بيديك والرغباء إليك والعمل».

عن عبدالله بن عمر رضی الله عنه ان تلبية رسول الله (صلى الله عليه و سلم) الخ د حضور صلی الله عليه وسلم د تلبيې الفاظ خو متعين وو، په هغې کښې حضور صلی الله عليه وسلم کمې زياتې نه کولو. لبيك اللهم لبيك، لبيك لا شريك لك لبيك، ان الحمد والنعمة لك والملك، لا شريك لك، او ابن عمر رضی الله عنه به په دې کښې زياتې کولو، لکه چه په روايت کښې ذکر دی.

## د تلبيې په کلماتو کښې کمې زياتې:

په تلبيه کښې زياتې کول مختلف فيه دی، د امام ابوحنيفه رحمه الله، امام احمد رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد جائز دی، او هم دا قول مشهور دې د امام شافعی رحمه الله. او د امام مالک رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله په نزد زيادة فی التلبيه مکروه دی، وهو قول الشافعی رحمه الله واختاره الطحاوی، او يو روايت د احنافو په نزد دادې، چه زياتوالې مستحب دې، ليکن د حضور صلی الله عليه وسلم د تلبيې په مينځ کښې نه، بلکه دهغې نه پس، يعنی کوم الفاظ چه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم نه منقول دی، هغه به په هغې ترتيب سره اوائی، او دهغې کلماتو نه پس چه کوم زياتوالې په خپل شوق او ذوق سره کول غواړی اوبه کړی.

(۱): صحيح البخاري/الحج ۲٦(۱٥٤۹)، واللباس ٦۹(٥۹٥۱)، صحيح مسلم/الحج ۳(۱۱۸٤)، سنن النسائي/الحج ٥٤(۲۷٤۸، ۲۷٤۹)،(تحفة الأشراف: ۸۳٤٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۱۳(۸۲٥)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱٥(۲۹۱۸)، موطا امام مالك/الحج ۹(۲۸)، مسند احمد(۲/۳، ۲۸، ۲۸، ۳٤، ٤۱، ٤۳، ٤۷، ٤۸، ٥۳، ۷٦، ۷۷، ۷۹، ۱۳۱)، سنن الدارمي/المناسك ۱۳(۱۸٤۹)(صحيح)

[١٨١٣]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: أَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَ التَّلْبِيَةَ مِثْلَ حَدِيثِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: وَالنَّاسُ يَزِيدُونَ ذَا الْمَعَارِجِ وَنَحْوَهُ مِنَ الْكَلَامِ، وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْمَعُ فَلَا يَقُولُ لَهُمْ شَيْئًا.

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام احرام وتړلو بيا جابر رضي الله عنه دابن عمر رضي الله عنه دروايت پشان تلبيه اووئيله او بيايي اوفرمائيل چه خلقوبه دالله په تعريف کښې دا الفاظ زياتول نبي عليه السلام به اوريدل اوددی په باره کښې به يې څه نه وئيل.

[١٨١٤]([2]) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ، عَنْ خَلَّادِ بْنِ السَّائِبِ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَتَانِي جِبْرِيلُ عَلَيْهِ السَّلَامُ فَأَمَرَنِي أَنْ آمُرَ أَصْحَابِي وَمَنْ مَعِي أَنْ يَرْفَعُوا أَصْوَاتَهُمْ بِالْإِهْلَالِ، أَوْ قَالَ: بِالتَّلْبِيَةِ يُرِيدُ أَحَدَهُمَا".

دخلاد بن السائب انصاري رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام اوفرمائيل ماته جبرائيل عليه السلام راغي اوماته يي حکم اوکړو چه زه خپلو ملګرو او صحابه کرامو ته حکم اوکړم چه دوی دی لبيک په تيز اواز سره وائي(البته دزنانو دپاره په ټيټ اواز سره وئيل بهتر دی او دمسنون تلبي الفاظ په پورتني حديث کښې تير شوی دی).

**تشريح: قوله:** ان يرفعوا اصواتهم بالاهلال: رفع الصوت بالتلبيه عند الظاهريه واجب دې، او عند الجمهور مستحب دې.

## بَابُ مَتَى يَقْطَعُ التَّلْبِيَةَ
### تلبيه کله بندول پکاردي

[١٨١٥]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ الْفَضْلِ بْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَبَّى حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام دجمره عقبه دويشتلو پورې تلبيه وئيله(يعنی ددی دويشتلو نه پس يې بنده کړه).

ددې باب تعلق محرم بالحج سره دې، او د راتلونکي باب تعلق محرم بالعمرة سره دې، دا وئيل غواړي، چه محرم بالحج تر کومې پورې تلبيه وئيلې شي، په حديث الباب کښې دی، چه حضور صلى الله عليه وسلم به تلبيه د جمرة العقبه درمی پورې وئيله، يعنی د يوم النحر رمی چه صرف د

[1]): سنن ابن ماجه/المناسك ١٥(٢٩١٩)(كلاهما بدون قوله : «والناس يزيدون الخ)،( تحفة الأشراف: ٢٦٠٤)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ١٩(١٥٤٠)(في سياق حجة النبي صلي الله عليه وسلم الطويل)(صحيح)

[2]): سنن الترمذي/الحج ١٥(٨٢٩)، سنن النسائي/الحج ٥٥(٢٧٥٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ١٦(٢٩٢٢)،( تحفة الأشراف: ٣٧٨٨)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ١٠(٣٤)، مسند احمد(٥٥/٤، ٥٦)، سنن الدارمي/المناسك ١٤(١٨٥٠)(صحيح)

[3]): صحيح البخاري/الحج ٢٢(١٥٤٣)، ٩٣(١٦٧٠)، ١٠١(١٦٨٥)، صحيح مسلم/الحج ٤٥(١٢٨٠)، سنن الترمذي/الحج ٧٨(٩١٨)، سنن النسائي/الحج ٢١٦(٣٠٥٧)، ٢٢٨(٣٠٨١)، ٢٢٩(٣٠٨٤)،( تحفة الأشراف: ١١٠٥٠)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ٦٩(٣٠٤٠)، مسند احمد(٢١٠/١، ٢١١، ٢١٢، ٢١٣، ٢١٤)، سنن الدارمي/المناسك ٦٠(١٩٤٣)(صحيح)

جمرة العقبه وی، د یوم النحر نه پس خو باقي ورځو کښې د جمرات ثلثه رمی کيږي، (کما سیاتی فی محله) په دې مسئله کښې د ائمه ثلثه ابوحنیفه، شافعی او احمد رحمهم الله هم دا مذهب دې، د اولينو په نزد تلبيه د ابتداء د رمی پورې ده، او د امام احمد رحمه الله په نزد فراغ عن الرمی پورې ده، يعنى د امام احمد رحمه الله په نزد د رمی په دوران کښې هم وئيلې شي، د دې درې وارو په مذهب کښې دا لږ شان فرق دې، او د امام مالک رحمه الله مسلک دا نه دې، دهغوی په نزد محرم بالحج لره پکار دی، چه په ۹ ذی الحجه باندې عند الرواح الی عرفه[1] تلبيه منقطع کړي، دهغې نه پس دې نه وائی.

او په محرم بالعمره کښې هم ائمه ثلثه يو طرف ته دی، او امام مالک رحمه الله ځانله دې، ائمه ثلثه فرمائي لکه چه په حديث الباب کښې دی، حتى يستلم الحجر، يعنى د طواف په شروع کښې دې تلبيه ترک کړي، (د طواف ابتداء استلام د حجر اسود نه کيږي) ددې نه معلومه شوه، چه د طواف په دوران کښې، بلکه دهغې نه پس به هم تلبيه نشي وئيلې، او د امام مالک رحمه الله مسلک دا دې، يقطع التلبية حين وقع بصره على البيت،([2]) (کوم وخت چه د معتمر نظر په بيت الله شريف باندې پريوځی، هغه وخت دې تلبيه منقطع کړي.

[۱۸۱٦]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "غَدَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مِنًى إِلَى عَرَفَاتٍ مِنَّا الْمُلَبِّي وَمِنَّا الْمُكَبِّرُ".

دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام سره دعرفات نه منی ته لاړو په دغه وخت کښې په مونږ کښې به بعضو کسانو تلبيه وئيله او بعضو کسانو به تکبير وئيلو.

## بَابٌ مَتَى يَقْطَعُ الْمُعْتَمِرُ التَّلْبِيَةَ

### عمره کونکی به تلبیه کله بنده وی

[۱۸۱۷]([4]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، عَنِ ابْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يُلَبِّي الْمُعْتَمِرُ حَتَّى يَسْتَلِمَ الْحَجَرَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ أَبِي سُلَيْمَانَ، وَهَمَّامٌ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، مَوْقُوفًا.

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی عمره کونکی به دحجر اسود ښکلولو پورې تلبيه وائی. امام ابوداود فرمائی چه ددې حديث روايت عبدالمطلب بن

---

[1] يعنى حاجی چه په ۹ ذی الحجه کله د نمر د زوال نه پس عرفات طرف ته وقوف دپاره لاړ شی دهغه وخت نه واخله تر آخره پورې به تلبيه نه وائی.

[2] دا دهغوی په نزد هغه معتمر دپاره دی دچا احرام چه د تنعيم يا جعرانه نه وی، (وذلك يكون لمن كان مقيما بمكة فانه يحرم للعمرة من الحل) او کوم معتمر چه آفاقی وی، د ميقات نه ئې احرام تړلې وی راځی نو دهغه حکم دادې چه هغه د حرم حد ته اورسيږي تلبيه دې منقطع کړي. (ذكره الامام مالك في المؤطا).

[3] : صحيح مسلم/الحج ٤٦(١٢٨٤)،( تحفة الأشراف: ٧٢٧١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الحج ١٩١(٣٠٠١)، مسند احمد(٢٢/٢)، سنن الدارمي/المناسك ٤٨(١٩١٨)(صحيح)

[4] : سنن الترمذي/الحج ٧٩(٩١٩)،( تحفة الأشراف: ٥٩١٢) موقوفا، و(٥٩٥٨)(ضعيف)

سلیمان او همام په واسطه دعطاء سره دابن عباس رضي الله عنه نه موقوفا کړې دي.

## باب المُحْرِمِ يُؤَدِّبُ غُلَامَهُ

### داحرام په حالت کښې دادب دپاره خپل خادم وهل جائز دي

په قرآن مجید کښې دی، فلا رفث و لا فسوق و لا جدال فی الحج، په خپلو کښې ملګرو سره جنګ جګړه کول هسې هم جائز نه دی، او د حج په سفر کښې هم خاص طور سره ددې نه منع فرمائیلې شوې ده، دې باره کښې مصنف رحمه الله فرمائي چه آیا تادیبا او تنبیها وهل هم په دې کښې داخل دی؟

[۱۸۱۸] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رِزْمَةَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ إِدْرِيسَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبَّادِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ، قَالَتْ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُجَّاجًا حَتَّى إِذَا كُنَّا بِالْعَرْجِ نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَزَلْنَا، فَجَلَسَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا إِلَى جَنْبِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجَلَسْتُ إِلَى جَنْبِ أَبِي وَكَانَتْ زِمَالَةُ أَبِي بَكْرٍ وَزِمَالَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاحِدَةً مَعَ غُلَامٍ لِأَبِي بَكْرٍ، فَجَلَسَ أَبُو بَكْرٍ يَنْتَظِرُ أَنْ يَطْلُعَ عَلَيْهِ فَطَلَعَ وَلَيْسَ مَعَهُ بَعِيرُهُ، قَالَ: أَيْنَ بَعِيرُكَ؟ قَالَ: أَضْلَلْتُهُ الْبَارِحَةَ، قَالَ: فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ: بَعِيرٌ وَاحِدٌ تُضِلُّهُ؟ قَالَ: فَطَفِقَ يَضْرِبُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَبَسَّمُ، وَيَقُولُ: "انْظُرُوا إِلَى هَذَا الْمُحْرِمِ مَا يَصْنَعُ"، قَالَ ابْنُ أَبِي رِزْمَةَ: فَمَا يَزِيدُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَنْ يَقُولَ: "انْظُرُوا إِلَى هَذَا الْمُحْرِمِ مَا يَصْنَعُ" وَيَتَبَسَّمُ.

داسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها نه روایت دې فرمائي چه مونږ دنبی علیه السلام سره حج ته روان شو کله چه مونږ عرج مقام ته داخل شو نو نبی علیه السلام هلته کوز شو او مونږ ورسره هم کوز شو عائشه رضي الله عنها خو دنبی علیه السلام سره په خوا کښې کښیناسته اوزه دخپل پلار ابوبکر رضي الله عنه سره کښیناستم او دنبی علیه السلام او زما دپلار دخوراک سامان شریک وو اوپه یو اوښ باندی ترلې شوې وو او هغه اوښ دابوبکر ، دیو غلام سره وو، ابوبکر رضي الله عنه په دی انتظار کښې کښیناستو چه غلام به راشی کله چه غلام راغې اوښ ورسره نه وو ابوبکر رضي الله عنه ورنه تپوس اوکړو چه اوښ دی چرته دې هغه اووئیل پرون ورک شوې دې ابوبکر ووئیل چه یو اوښ درسره وو او هغه دی هم ورک کړې دې ددی په وئیلو سره ابوبکر رضي الله عنه غلام اووهلو نبی علیه السلام ددی منظر په لیدلو سره اوفرمائیل چه دی احرام تړونکی ته اوګوره څه کوی یعنی داحرام په حالت کښې غلام وهی اوبیایې وخاندل اوددینه علاوه یې نور څه اونه وئیل

د حدیث الباب نه معلومیږی، چه یو دوه چاپړق لګول په دې کښې داخل نه دی، کما فعل الصدیق رضي الله عنه لیکن اولی داده، چه ددې نه هم احتیاط اوکړی، کما اشار الیه رسول الله (صلی الله علیه و سلم) : انظروا الی هذا المحرم ما یصنع، اوګورهٔ دې حاجی صاحب ته، چه څه کوی؟

د حدیث مضمون دادې، حضرت اسماء رضي الله عنها فرمائي: د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره په سفر کښې کله چه مونږ روان شو، په لاره کښې یو منزل باندې، چه دهغې نوم عرج وو، مونږ راکوز شو، زهٔ د خپل پلار ابوبکر صدیق رضي الله عنه سره خوا کښې ناسته اوم، او زما خور حضرت عائشه رضي الله عنها د

(۱): سنن ابن ماجه/المناسك ۲۱(۲۹۳۳)، (تحفة الأشراف: ۱۵۷۱۵)(حسن)

حضور ﷺ سره نزدې ناسته وه، د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه غلام چه هغه سره زماله وه(١) هغه تر هغه وخته پورې رارسيدلې نه وو، مونږ دهغه انتظار کولو، ډير ساعت پس هغه غلام د لرې نه په نظر راغلو، هغه سره هغه زماله نه وه، چه کله هغه نزدې راغلو، نو ابوبکر صديق رضی الله عنه دهغه نه د زماله باره کښې تپوس اوکړو، هغه جواب ورکړو، اضللته البارحة چه هغې لره خو ما تيره شوې شپه اورکه کړې ده، صديق رضی الله عنه ورته اوفرمائيل چه تاسره خو يو اوښ وو، هغه ستا نه اورك شو، او هغه ئې وهل شروع کړل، په دې حضور ﷺ مسکې شو، او وې فرمائيل، اوګوره دې حاجي صاحب ته، چه دې څه کوي، د بنده خيال دادې، چه صديق اکبر رضی الله عنه چه هغه اوهلو، دا د خپلې وجې نه نه وو، بلکه ددې وجې نه وو، چه په هغې باندې د حضور ﷺ سامان هم بار کړې شوې وو، او هغه اوښ هغه اورك کړې وو، ففعل الصديق ما كان ينبغي له و ارشده النبي(صلى الله عليه و سلم) الى ما يليق بشانه الكريم.

## بَابُ الرَّجُلِ يُحْرِمُ فِي ثِيَابِهِ

### دګنډله شووجامو نه داحرام جوړولو بيان

د کتاب په شروع کښې د احرام په بيان کښې تير شوې دي، چه د احرام نيت کولو نه مخکښې سړي لره پکار دي، چه کومې ګنډلې شوې جامې هغه اغوستې دي، اول هغې لره اوباسي، او غير مخيط (يعنى ناګنډلې شوې) جامې اچولو نه پس د احرام نيت اوکړي، په دې باب کښې دا مسئله مذکور ده، چه که يو سړې خپلو زړو جامو کښې د احرام نيت اوکړي، (چه دهغې تحقيق په تلبيه سره کيږي، نو ددې څه حل دې.

[١٨١٩](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ، قَالَ: سَمِعْتُ عَطَاءً، أَخْبَرَنَا صَفْوَانُ بْنُ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِالْجِعْرَانَةِ وَعَلَيْهِ أَثَرُ خَلُوقٍ، أَوْ قَالَ: صُفْرَةٍ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، كَيْفَ تَأْمُرُنِي أَنْ أَصْنَعَ فِي عُمْرَتِي؟ فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوَحْيَ، فَلَمَّا سُرِّيَ عَنْهُ، قَالَ: "أَيْنَ السَّائِلُ عَنِ الْعُمْرَةِ؟" قَالَ: "اغْسِلْ عَنْكَ أَثَرَ الْخَلُوقِ، أَوْ قَالَ: أَثَرَ الصُّفْرَةِ، وَاخْلَعِ الْجُبَّةَ عَنْكَ وَاصْنَعْ فِي عُمْرَتِكَ مَا صَنَعْتَ فِي حَجَّتِكَ".

دیعلاء بن امیه نه روایت دې فرمائي چه يو کس دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او په دې وخت کښې نبي عليه السلام په جعرانه مقام کښې موجود وو او ددغه کس په جامو باندې دخوشبو او دزيړ رنګ اثروو او يوه جبه يې اغوستلې وه دغه کس ورنه تپوس اوکړو اې دالله رسوله زه عمره څنګه ادا کړم؟ په دې وخت کښې په نبي عليه السلام باندې وحي نازليدل شروع شول نبي عليه السلام اوفرمائيل دعمرې په باره کښې تپوس کونکې چرته دې؟ بيايې هغه ته اوفرمائيل چه دخوشبو اثر ووينځه يايې ورته داسې اوفرمائيل چه دزيړ رنګ داغونه اووينځه اوجبه اوباسه او دعمرې اعمال دحج داعمالو په طريقه باندې کوه.

---

١ زماله او زامله د سامان اوښې ته وئيلې شي، په کومې باندې چه مسافر خپل سامان بار کړې وي.

٢): صحيح البخاري/الحج ١٧(١٥٣٦) والعمرة ١٠(١٧٨٩)، وجزاء الصيد ١٩(١٨٤٧)، والمغازي ٥٦(٤٣٢٩)، وفضائل القرآن ٢(٤٩٨٥)، صحيح مسلم/الحج ١(١١٨٠)، سنن الترمذي/الحج ٢٠(٨٣٦)، سنن النسائي/الحج ٢٩(٢٦٦٩)، ٤٤(٢٧١٠)، (تحفة الأشراف: ١١٨٣٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/٢٢٢، ٢٢٤)(صحيح)

**تشریح: قوله:** ان رجلا اتی النبی(صلی الله علیه و سلم) و هو بالجعرانة:

## شرح حدیث:

دا د یعلی بن امیه روایت دې، هغه ته یعلی بن منیه هم وئیلې شی، امیه ئې د پلار نوم دې، او منیه ئې د مور نوم دې، کوم وخت چه نبی کریم ﷺ په جعرانه کښې وو (د کوم ځائې نه چه هغوی عمره کړې وه په ۸هـ کښې) یو سړې د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضر شو، په حالت د احرام کښې، چه دهغه اراده د عمرې کولو وه، لیکن حالت د هغه دا وو، چه په بدن ئې د خلوق اثر هم وو (چه د خوشبو مشهور قسم دې) او هغه جبه(چوغه) هم اغوستې وه، په دې دواړو کښې اول څیز مختلف فیه دې، او ثانی یعنی لبس مخیط، دا بالاتفاق په احرام کښې ممنوع دې، هغه د نبی کریم ﷺ نه سوال اوکړو، چه اوس زهٔ څه اوکړم، په تاسو باندې دې باره کښې څه وحې نازله شوې ده؟ نبی کریم ﷺ هغه ته اوفرمائیل چه چوغه سمدستی اوباسه، او د خلوق اثر په ښه طریقې سره اوینځه، ددې حدیث حواله باب الطیب عند الاحرام د لاندې راغلې ده، او په مسئله د طیب کښې د علماؤ مذاهب هم هلته کښې تیر شوې دی، هلته کښې دا هم تیر شوې دی، چه د یعلی حدیث د امام مالک رحمه الله او امام محمد رحمه الله دلیل دې.

## حدیث د چا خلاف دې:

ددې متعدد جواباب ورکړې شوې دی،(۱) دا حدیث منسوخ دې، ځکه حدیث عائشه رضی الله عنها چه د جواز دپاره دلیل دې، او په باب الطیب کښې تیر شوې دې، هغه روستو قصه ده، یعنی د حجة الوداع، او حدیث یعلی د جعرانه ۸هـ واقعه ده،(۲) دویم جواب دا ورکړې شوې دې، چه دلته کښې طیب په جامو باندې وو، و به نقول انه لا یجوز علی الثوب و یجوز بالبدن(۳) دریم جواب دا ورکړې شوې دې، چه دلته کښې منع د خلوق د وجې نه ده، چه من طیب النساء(د ښځو خوشبوئی) ده، په دې کښې جواب ثانی باندې دا اشکال دې، لو کان الغرض ازالة الطیب عن الثوب لحصل المقصود بخلع الجبة بل الظاهر من لفظ الحدیث هو الازالة عن البدن لقوله اغسل عنك الخ، و یؤید مسلك الشیخین بل الجمهور ما سیاتی فی الباب الآتی من حدیث عائشة رضی الله عنها فنضمد جباهنا بالسُك المطیب عند الاحرام.

[۱۸۲۰]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ أَبِي بِشْرٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، وَهُشَيْمٌ، عَنِ الْحَجَّاجِ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى، عَنْ أَبِيهِ بِهَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ فِيهِ: فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اخْلَعْ جُبَّتَكَ"، فَخَلَعَهَا مِنْ رَأْسِهِ وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

صفوان بن یعلی دخپل پلاره نه پورتنې روایت ددی اضافی سره نقل کړې دې چه: نبی علیه السلام ورته حکم اوکړو چه جبه اوباسه نو هغه اوویستله. او حدیث یې تر اخره پوری بیان کړو

**تشریح: قوله:** اخلع جبتك فخلعها من راسه: چوغې لره به څرنګه اوباسی، عند الجمهور مطلقا. څرنګه چه اوغواړی، و عند النخعی والشعبی بالشق، یعنی هغه به اوشلوی، ددې

[1]): انظر ما قبله، سنن الترمذي/الحج ۲۰(۸۳۵) سنن النسائي/الکبری/ فضائل القرآن(۷۹۸۱)،(من ۱۸۲۰ حتی ۱۸۲۲)،( تحفة الأشراف: ۱۱۸۳٦، ۱۱۸٤٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/۲۲٤)(صحیح)(په حدیث کښې واقع دا لفظ ؟من راسه؟ منکر دی)(اوګورئ: صحیح ابي داود ٦/ ۸٤)

دپاره چه چرته تغطیه راس لازم رانشي.

[۱۸۲۱]([1]) حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَوْهَبٍ الْهَمْدَانِيُّ الرَّمْلِيُّ، قَالَ: حَدَّثَنِي اللَّيْثُ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنِ ابْنِ يَعْلَى ابْنِ مُنْيَةَ، عَنْ أَبِيهِ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ فِيهِ: "فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَنْزِعَهَا نَزْعًا وَيَغْتَسِلَ مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا" وَسَاقَ الْحَدِيثَ.

دیعلی بن امیه یوځوی دخپل پلار نه پورتني روایت ددی اضافی سره نقل کړې دې چه: نبی علیه السلام ورته حکم اوکړو چه جبه اوباسه او جامې دوه پیرې یا درې پیرې اووینځه او حدیث یې تر اخره پورې بیان کړو.

[۱۸۲۲]([2]) حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ جَرِيرٍ، حَدَّثَنَا أَبِي، قَالَ: سَمِعْتُ قَيْسَ بْنَ سَعْدٍ يُحَدِّثُ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ صَفْوَانَ بْنِ يَعْلَى بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْجِعْرَانَةِ، وَقَدْ أَحْرَمَ بِعُمْرَةٍ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ وَهُوَ مُصَفِّرٌ لِحْيَتَهُ وَرَأْسَهُ، وَسَاقَ هَذَا الْحَدِيثَ.

صفوان بن یعلی دخپل پلار نه روایت کوی فرمائي چه یوکس دنبی علیه السلام په خدمت کښې په جعرانه مقام کښې حاضر شو اودعمرې دپاره یې احرام تړلې وو او یوه جبه یې اغوستلې وه، او ږیره او سر یې زیړ کړې وو، او حدیث یې تر اخره پورې بیان کړو.

## بَابُ مَا يَلْبَسُ الْمُحْرِمُ

### باب: دحالت احرام دلباس بیان

[۱۸۲۳]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا يَتْرُكُ الْمُحْرِمُ مِنَ الثِّيَابِ؟ فَقَالَ: "لَا يَلْبَسُ الْقَمِيصَ وَلَا الْبُرْنُسَ وَلَا السَّرَاوِيلَ وَلَا الْعِمَامَةَ وَلَا ثَوْبًا مَسَّهُ وَرْسٌ وَلَا زَعْفَرَانٌ وَلَا الْخُفَّيْنِ إِلَّا لِمَنْ لَا يَجِدُ النَّعْلَيْنِ، فَمَنْ لَمْ يَجِدِ النَّعْلَيْنِ فَلْيَلْبَسِ الْخُفَّيْنِ وَلْيَقْطَعْهُمَا حَتَّى يَكُونَا أَسْفَلَ مِنَ الْكَعْبَيْنِ".

سالم رضی الله عنه دخپل پلار ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کوی فرمائي چه یوکس دنبی علیه السلام نه تپوس اوکړو چه محرم به کوم لباس نه استعمالوی؟ نبی علیه السلام اوفرمائیل نه به قمیص اغوندی او نه به توپئ پسروی اونه به لنګ او عمامه استعمالوی، اونه به هغه جامې اغوندی کوم چه په ورس(ګیا) باندې یا په زعفرانو باندې رنګ شوی وی اونه به موزې اغوندی مګر که دچا سره پیزار نه وی نو موزې اغوندی لیکن دګیټو نه دې ښکته پرې‌یږدی او بره دې پرې‌کړی.

**تشریح: قوله:** فقال لا یلبس القمیص ولا البرنس الخ، د لبس مخیط ممانعت د سړو دپاره دې، د ښځو دپاره ممانعت نشته

---

[1]: انظر حدیث رقم:(۱۸۱۹)،( تحفة الأشراف: ۱۱۸۳٦)(صحیح)

[2]: انظر حدیث رقم :(۱۸۱۹)،( تحفة الأشراف: ۱۱۸۳٦)(صحیح)

[3]: صحیح البخاري/العلم ۵۳(۱۳٤)، والصلاة ۹(۳٦٦)، والحج ۲۱(۱۵٤۲)، وجزاء الصید ۱۳(۱۸۳۸)، ۱۵(۱۸٤۲)، واللباس ۸(۵۷۹٤)، ۱۳(۵۸۰۳)، ۱۵(۵۸۰٦)، صحیح مسلم/الحج ۱(۱۱۷۷)، سنن النسائي/الحج ۲۸(۲٦٦۸)،(تحفة الأشراف: ٦۸۱۷، ۸۳۲۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۱۸(۸۳۳)، سنن ابن ماجه/المناسك ۱۹(۲۹۲۹)، موطا امام مالك/الحج ۳(۸)، ٤(۹)، مسند احمد(۲/٤، ۸، ۲۲، ۲۹، ۳۲، ۳٤، ٤۱، ۵٤، ۵٦، ۵۹، ٦۳، ٦۵، ۷۷، ۱۱۹)، سنن الدارمي/المناسك ۹(۱۸۳۹)(صحیح)

**قوله**: ولا ثوبا مسه ورس ولا زعفران، د ثوب مورّس او مزعفر ممانعت په حالت احرام کښې عام دې، د سړو او ښځو دواړو دپاره دې عند الائمة الاربعة.

**قوله**: فمن لم يجد النعلين فليلبس الخفين: د عدم وجدان نعلين قيد د اکثرو په نزد باندې احترازي دې، وعند الحنفيه و بعض الشافعيه دا قيد اتفاقي دې، لهذا د وجدان نعلين باوجود لبس خفين جائز دې، او د سړي دپاره د لبس خفين جواز د ائمه ثلثه په نزد مقيد دې، په هغې قيد سره کوم چه په حديث کښې دلته ذکر دې، يعنی وليقطعهما اسفل من الكعبين و عند احمد لا حاجة الى القطع لحديث ابن عباس رضي الله عنه الآتي قريبا، حاصل دادې، چه د ابن عمر رضي الله عنه په حديث مرفوع کښې د قطع قيد مذکور دې، هغې لره جمهورو اختيار کړې دې، او د ابن عباس رضي الله عنه په حديث مرفوع کښې د قطع قيد مذکور نه دې، هغې لره امام احمد رحمه الله اختيار کړې دې، يو اختلاف دلته کښې دادې، چه د کعبين نه څه مراد دی، فعندنا الحنفيه معقد الشراك[1] وعند الجمهور مثل الوضوء.

[١٨٢٤](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ.

**ترجمه**: نافع دابن عمر رضي الله عنه نه او هغه دنبی عليه السلام نه دتير شوی روايت پشان هم معنی روايت بيان کړې دې.

[١٨٢٥](٣) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، وَزَادَ: "وَلَا تَنْتَقِبُ الْمَرْأَةُ الْحَرَامُ وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَقَدْ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ: حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ وَيَحْيَى بْنُ أَيُّوبَ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ عَلَى مَا قَالَ اللَّيْثُ، وَرَوَاهُ مُوسَى بْنُ طَارِقٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ عُمَرَ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ وَمَالِكٌ وَأَيُّوبُ مَوْقُوفًا، وَإِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْمَدِينِيُّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "الْمُحْرِمَةُ لَا تَنْتَقِبُ وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْمَدِينِيُّ شَيْخٌ مِنْ أَهْلِ الْمَدِينَةِ، لَيْسَ لَهُ كَبِيرُ حَدِيثٍ.

عبدالله بن عمر رضي الله عنه دنبی عليه السلام نه دتيرشوی روايت نقل کړې دې مګر دی اضافی سره چه: احرام تړونکی ښځه به په مخ باندی پرده نه اچوی يعنی ښکاره مخ به وی او دستانی به لاسونو ته نه اغوندی، امام ابوداود فرمائی چه حاکم بن اسماعيل او يحيبن ايوب هم دنافع نه دمذکوره روايت پشان روايت نقل کړې دې لکه څنګه چه دليث او موسی نه په واسطه دموسی بن عقبه دابن عمر رضي الله عنه نه موقوف روايت نقل کړې دې، اوهمدارنګی عبيدالله بن عمرو او مالک او ايوب موقوفا نقل کړې دې، او ابراهيم بن سعيد المدينی په واسطه

---

[1]: د ښپې شاته لاندې هغه حصه چرته چه د څپلې تسمه (وندنې) تړلې کيږی.

[2]: صحيح البخاري / الحج ١٨(١٥٣٩)، صحيح مسلم /الحج ١(١١٧٧)، سنن النسائي / الحج ٣٠(٢٦٧٠)، سنن ابن ماجه / المناسك ١٩(٢٩٢٩)، (٢٩٣٢)، (تحفة الأشراف: ٨٣٢٥)، وقد أخرجه: موطا امام مالك /الحج ٣(٨)، مسند احمد(٦٣/٢)، دي/المناسك ٩(١٨٣٩)(صحيح)

[3]: صحيح البخاري / الصيد ١٣(١٨٣٨)، سنن النسائي /الحج ٣٣(٢٦٧٤)، سنن الترمذي /الحج ١٨(٨٣٣)، (تحفة الأشراف: ٨٢٧٥)، وقد أخرجه: مسند أحمد(١١٩/٢)(صحيح)

دنافع سره دابن عمر نه مرفوع روایت نقل کړې دې او الفاظ يې داسې دي (الْمُحْرِمَةُ لَا تَنْتَقِبُ وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ) امام ابوداود فرمائی چه داهل مدينه په مشائخو کښې ډېرو په روايت کښې دا الفاظ نه دي مروي.

**قوله:** و تنتقب المرءة الحرام: په حالت احرام کښې په ښځه په خپل مخ باندې نقاب نه اچوي، مخکښې يو مستقل باب راروان دې، باب فى المحرمة تغطى و جهها، په هغې باندې به کلام هلته کښې راشي،

**قوله:** ولا تلبس القفازين، ښځه به دستاني نه اچوي، د ائمه ثلثه مسلك هم دادې، د احنافو په نزد جائز دی، دهغوی په نزد دا نهی تنزيهاده، چه خلاف اولی دی، او د احرام د شان نه خلاف دی، او ددې حديث په رفع او وقف کښې هم د راويانو اختلاف دې، كما ذكره المصنف، دويمه خبره داده، چه په لبس قفازين کښې تغطيه د کفين ده، او تغطيه د کفينو د ښځې دپاره د قميص په لستوڼي وغيره سره جائز ده، او د حضرت سعد رضی الله عنه نه ثابت دی، چه هغه به خپلو لونړو ته قفازين اچول، (كذا فى هامش الشيخ)

[۱۸۲۶] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ سَعِيدٍ الْمَدِينِيُّ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْمُحْرِمَةُ لَا تَنْتَقِبُ وَلَا تَلْبَسُ الْقُفَّازَيْنِ".

نافع دابن عمر رضی الله عنه نه دتیر شوی روايت پشان روايت کړې دې ليکن ددومره اضافې سره چه احرام والا زنانه به په مخ باندې پرده نه اچوي يعنې ښکاره مخ به وي اودستانې به نه اغوندي.

[۱۸۲۷] (²) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: فَإِنَّ نَافِعًا مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ حَدَّثَنِي، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى النِّسَاءَ فِي إِحْرَامِهِنَّ عَنِ الْقُفَّازَيْنِ وَالنِّقَابِ وَمَا مَسَّ الْوَرْسُ وَالزَّعْفَرَانُ مِنَ الثِّيَابِ وَلْتَلْبَسْ بَعْدَ ذَلِكَ مَا أَحَبَّتْ مِنْ أَلْوَانِ الثِّيَابِ مُعَصْفَرًا أَوْ خَزًّا أَوْ حُلِيًّا أَوْ سَرَاوِيلَ أَوْ قَمِيصًا أَوْ خُفًّا". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ نَافِعٍ عَبْدَةُ بْنُ سُلَيْمَانَ وَمُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، إِلَى قَوْلِهِ: "وَمَا مَسَّ الْوَرْسُ وَالزَّعْفَرَانُ مِنَ الثِّيَابِ" وَلَمْ يَذْكُرَا مَا بَعْدَهُ.

نافع (دابن عمر ازاد کړې شوې غلام) دابن عمر رضی الله عنه نه روايت کوی فرمائيلي چه دنبي عليه السلام نه مې اوريدلي دي چه ښځې داحرام په حالت کښې ددستانو اغوستلو اوپه مخ باندې دپردې اچولونه منع کړې وې او دهغه کپړې داستعمال نه چه په ورس (يو قسم گيا) يا په زعفران رنګ شوې وې اوداحرام نه پس به هررنګه جامې اغوندي څنګه چه ددوی زړه غواړي برابره خبره ده چه په زعفران رنګ شوې وي اوکه ريشمي وي اوکه زيور وي لنګ وي اوکه پرتوګ وي اوکه موزې وي اوکه قميص وي (هيڅ باک يې نشته) امام ابوداود فرمائي ددې حديث روايت کړې دې محمد بن اسحق او هغه دمحمد بن مسلمه نه او هغه دعبده نه دومره قدرې

¹): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۴۷۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴۱/۲) (صحيح)

²): صحيح البخاري/جزاء الصيد ۱۳ (۱۸۳۸ تعليقاً)، (تحفة الأشراف: ۸۴۰۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۱۸ (۸۳۳)، مسند احمد (۲۲/۲، ۳۲، ۱۱۹) (حسن صحيح)

جمله نقل کړې ده چه داحرام پرانیستلو نه پس دې په زافرانو یا ورس باندې رنګ شوې کپړه استعمالولې شي، البته راوی په دې پسې ددینه ورستنی جمله نه ده نقل کړې.
ولتلبس بعد ذلك ما احبت من الوان الثياب معصفرا او خزا.
معصفر: په عصفر کښې رنګ کړې شوې جامه، او خز: ريښمينه جامه.

**په لبس معصفر کښې اختلاف ائمه:**

ښځه په حالت احرام کښې ثوب معصفر اغوستلې شي او که نه؟ دا مسئله مختلف فیه ده، د امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد جائز ده، د حنفیه په نزد جائز نه ده، و عن مالك الفرق بين المقدم و غير المقدم یعنی که تیز او شوخ رنګ دې، نو بیا خو جائز نه ده، او که سپك او پیکه رنګ دې، نو جائز ده، دا حدیث د احنافو خلاف دې، ددې متعدد جوابات ورکړې شوې دې (۱) ولتلبس بعد ذلك الخ، دا جمله مدرج ده، ذكرها بعض الرواة دون بعض كما ذكر المصنف (۲) د حضرت عمر رضی الله عنه نه منع ثابته ده (۳) مورّس د معصفر نه من حيث الطيب خفيف دې، پس هرکله چه مورس بالاتفاق ممنوع دې، نو معصفر به په طریقه اولی سره منع وی، قاله الشيخ ابن الهمام رحمه الله، او په هدایه کښې ئې لیکلې دی، چه د اختلاف منشاء دا ده، چه عصفر زمونږ په نزد طیب دې، او د امام شافعي رحمه الله په نزد صرف د لون د قبیلې نه دې، طیب نه دې، (بذل)

[۱۸۲۸] (۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ وَجَدَ الْقُرَّ، فَقَالَ: "أَلْقِ عَلَيَّ ثَوْبًا يَا نَافِعُ، فَأَلْقَيْتُ عَلَيْهِ بُرْنُسًا، فَقَالَ: تُلْقِي عَلَيَّ هَذَا وَقَدْ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَلْبَسَهُ الْمُحْرِمُ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه یوه ورځ دهغه یخنی کیدله نو هغه اووئیل ای نافع څه کپړه راکړه نو نافع ورته دبرنس په نوم باندې یوه کپړه ورکړه عبدالله بن عمر رضی الله عنه چه داولیدله نووې وئیل ته راته برنس راکوې او حالانکه نبی علیه السلام دمحرم دپاره ددې داغوستلو نه منع فرمائیلې ده.

**تشریح: قوله:** عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنه انه وجد القر فقال الق علی ثوبا: حضرت ابن عمر رضی الله عنه ته یو ځل په حالت احرام کښې یخنی محسوس شوه، نو هغوی خپل خادم نافع ته اوفرمائیل، چه په ماباندې څه کپړه واچوه، هغه د ابن عمر رضی الله عنه په بدن باندې برنس واچولو (یعنې څادر پشان ئې ورته باقاعده واغوستولو) په دې باندې هغوی اوفرمائیل: اې! ګنډلې شوې جامه راته اچوې، دا خو په احرام کښې منع ده، دا د حضرت ابن عمر رضی الله عنه احتیاط او تورع ده، ګنی اصل ممانعت په لبس مخیط کښې په هغه صورت کښې دې، چه هغې لره داسې استعمال کړې شي، څرنګه چه دهغې د استعمال طریقه ده، یعنی کومه جامه چه د بدن د ساخت او جوړخت په اعتبار سره ګنډلې شوې وی، هغې لره هغسې واچولې شي، لهذا که محرم مثلاً قمیص د اغوستلو په ځائې د څادر پشان واغوندی، نو جائز دی.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۵۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۱۴۱، ۱۴۸) (صحيح)

[۱۸۲۹](۱) حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "السَّرَاوِيلُ لِمَنْ لَا يَجِدُ الْإِزَارَ، وَالْخُفُّ لِمَنْ لَا يَجِدُ النَّعْلَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثُ أَهْلِ مَكَّةَ وَمَرْجِعُهُ إِلَى الْبَصْرَةِ إِلَى جَابِرِ بْنِ زَيْدٍ وَالَّذِي تَفَرَّدَ بِهِ مِنْهُ ذِكْرُ السَّرَاوِيلِ، وَلَمْ يَذْكُرِ الْقَطْعَ فِي الْخُفِّ.

دابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي فرمائی چه دنبی علیه السلام نه می اوریدلی وو چه فرمائیل یي پرتوګ اغوښتل دهغه چا دپاره پکاردی چه لنګ ورته نه ملاویږی او موزی اغوستل هغه چا لره پکاردی چه پیزار ورته نه ملاویږي.

[۱۸۳۰](۲) حَدَّثَنَا الْحُسَيْنُ بْنُ الْجُنَيْدِ الدَّامِغَانِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُمَرُ بْنُ سُوَيْدٍ الثَّقَفِيُّ، قَالَ: حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ بِنْتُ طَلْحَةَ، أَنَّ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا حَدَّثَتْهَا، قَالَتْ: "كُنَّا نَخْرُجُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى مَكَّةَ فَنُضَمِّدُ جِبَاهَنَا بِالسُّكِّ الْمُطَيَّبِ عِنْدَ الْإِحْرَامِ فَإِذَا عَرِقَتْ إِحْدَانَا سَالَ عَلَى وَجْهِهَا، فَيَرَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَا يَنْهَاهَا".

دعائشه بنت طلحه رضي الله عنها نه روایت دي فرمائی چه ام المومنین عائشه رضي الله عنها راته وئیلی دی چه مونږ دنبی علیه السلام سره مکی ته دتلو په اراده باندی روان شو کله چه مونږه احرامونه تړل شروع کړل نو پخپو تندو باندی مو خوشبو راښکله کله چه به په مونږ کښې یوه تنه خوله شوه نو خوشبو به یي په مخ را اوبهیدله او حالانکه نبی علیه السلام به دی ته کتل اوددینه به یي منع نه فرمائیله.

## شرح حدیث:

**تشریح: قوله:** كنا نخرج مع النبی(صلی الله علیه و سلم) الی مكة فنضمد جباهنا بالسك المطيب الخ: حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي، چه مونږ به د حضور صلی الله علیه وسلم سره د مکي مکرمي سفر کولو(نو د احرام نیت کولو نه مخکښ) به مو په خپل تندی باندې خوشبو پورې کوله، بیا چه به کله مونږ باندې خوله راغله، نو هغه خوشبو به خولې سره په مخ باندې خوره شوه، د نبی کریم صلی الله علیه وسلم به هم په هغې باندې نظر پریوتۀ، لیکن هغوی به ددې نه منع نه فرمائیله.

ددې حدیث حواله دلته کښې نزدې تیره شوې ده، او دا چه دا حدیث د امام محمد او امام مالك رحمه الله خلاف دي.

[۱۸۳۱](۳) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، قَالَ: ذَكَرْتُ لِابْنِ شِهَابٍ، فَقَالَ: حَدَّثَنِي سَالِمُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ كَانَ يَصْنَعُ ذَلِكَ، يَعْنِي يَقْطَعُ الْخُفَّيْنِ لِلْمَرْأَةِ الْمُحْرِمَةِ، ثُمَّ حَدَّثَتْهُ صَفِيَّةُ بِنْتُ أَبِي عُبَيْدٍ، أَنَّ عَائِشَةَ حَدَّثَتْهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ كَانَ "رَخَّصَ لِلنِّسَاءِ فِي الْخُفَّيْنِ"، فَتَرَكَ ذَلِكَ.

[۱]): صحیح البخاري/جزاء الصید ۱۵(۱۸٤۱)، ۱٦(۱۸٤۳)، واللباس ۱٤(۵۸۰٤)، ۳۷(۳۸۵۳)، صحیح مسلم/الحج ۱(۱۱۷۸)، سنن الترمذي/الحج ۱۹(۸۳٤)، سنن النسائي/الحج ۳۲(۲٦۷۲، ۲٦۷۳)، ۳۷(۲٦۸۰)، والزینة ۱۰۰(۵۳۲۷)، سنن ابن ماجه/المناسك ۲۰(۲۹۳۱)،( تحفة الأشراف: ۵۳۷۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۱۵/۱، ۲۲۱، ۲۲۸، ۲۷۹، ۳۳۷)، سنن الدارمي/المناسك ۹(۱۸٤۰)(صحیح)

[۲]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۷۸۷۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۷۹/٦)(صحیح)

[۳]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۷۸٦۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۹/۲، ۳۵، ۳۵/٦)(حسن)

دمحمد بن اسحق نه روایت دي فرمائي چه ماددی روایت په باره کښې دابن شهاب نه تپوس اوکړو نو هغه راته اووئیل چه سالم بن عبدالله ماته حدیث بیان کړې دې دابن عمر رضي الله عنه نه چه هغه به داسې کول، یعنې احرام والا ښځې موزې به یې پریکولې، ابی اسحق وائي چه بیا صفیه بنت ابی عبید ابن شهاب ته حدیث بیان کړو کوم چه هغې دام المومنین عائشې رضي الله عنها نه اوریدلې دې چه فرمائیل یې یقینا نبی علیه السلام ښځوته دموزو اغوستلو اجازت ورکړې وو اوبیا یې موزې پریکول پریخودل.

## بَابُ الْمُحْرِمِ يَحْمِلُ السِّلَاحَ

### باب: دمحرم دپاره داسلحې ترلو بیان

[١٨٣٢]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْبَرَاءَ، يَقُولُ: "لَمَّا صَالَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْلَ الْحُدَيْبِيَةِ، صَالَحَهُمْ عَلَى أَنْ لَا يَدْخُلُوهَا إِلَّا بِجُلُبَّانِ السِّلَاحِ"، فَسَأَلْتُهُ: مَا جُلُبَّانُ السِّلَاحِ؟، قَالَ: "الْقِرَابُ بِمَا فِيهِ".

دابو اسحاق نه روایت دي فرمائي چه دبراء بن عازب رضي الله عنه نه مې اوریدلې دی چه فرمائیل ئې هرکله چه نبی علیه السلام په حدیبیه کښې صلح وکړله په هغې کښې شرط دا وو چه مسلمانان به کعبې ته پداسې حال کښې داخلیږي چه اسلحې به ئې په غلافونو کښې پټې کړې شوې وې (یعنې دبرینډو تورو سره به حرم ته نه داخلیږي).

کوم سړي چه د حج یا عمرې په نیت سره مکې مکرمې ته روان وي (ظاهره خبره ده چه هغه به محرم وي) آیا هغه خپل ځان سره وسله اوړلې شي؟ دا خبره خو ظاهره ده، چه په مکه مکرمه کښې قتال خو قطعاً جائز نه دې، نو بیا آیا وسله هم هلته کښې اوړلې شي او که نه؟ عند الجمهور جائز دي، د حسن بصری رحمه الله په نزد مکروه دی، دهغوی دلیل په مسلم شریف کښې حدیث جابر رضي الله عنه مرفوعا دي، لا یحل لاحدکم ان یحمل بمکة سلاحا، دغه شان په ابوداؤد کښې دکتاب الحج په اخر کښې باب تحریم المدینه کښې راروان دی، ولا یصلح لرجل ان یحمل فیها السلاح لقتال (لیکن ددې حدیث تعلق حرم مدینه سره دې) او د جمهور دلیل حدیث الباب دی، په دې کښې دا دی، چه نبی کریم علیه السلام حدیبیه کښې د مکې کافرانو سره مصالحت اوکړو، نو هغه وخت کښې دا خبر شوې وه، چه آئنده کال چه کله مسلمانان د عمرې کولو دپاره دلته کښې راشي، نو وسلې او برینډو تورو سره به مکه کښې داخلیږي نه، بلکه تورو له به په غلافونو کښې او یا په تهیلو کښې پټې راوړي، ددې نه معلومه شوه، چه مکې ته وسله اوړل جائز دی، ([2]) د حدیث مسلم جواب دا کیدې شي، چه مراد دادې، چه د قتال په نیت سره اوړل ناجائز دی.

---

[1]: صحیح البخاري/جزاء الصید ١٧(١٨٤٤)، والصلح ٦(٢٦٩٨)، والجزیة ١٩(٣١٨٤)، والمغازي ٤٣(٤٢٥١)، صحیح مسلم/الجهاد ٣٤(١٧٨٣)، (تحفة الأشراف: ١٨٧١)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٩/٢، ٢٨٩/٤، ٢٩١)، سنن الدارمي/السیر ٦٤(٢٥٤٩)(صحیح)

[2]: لیکن په دې استدلال کښې ماته دا اشکال دې چه دا مصالحت دهغه وخت دې ترڅو چه مکه مکرمه نه وه فتح شوې، دارالحرب وو، او ممکن ده چه په حدیث دمسلم کښې منع مذکورده دا دفتح مکې نه پس وی. فلیتامل.

## بَابٌ فِي الْمُحْرِمَةِ تُغَطِّي وَجْهَهَا

### کچرې ښځې په حالت احرام کښې پټ مخ وي نو څه حکم دی؟

یو حدیث کښ دی، احرام الرجل فی راسه و احرام المرأة فی وجهها، ددې تقاضا داده، چه د سړی دپاره تغطیة الراس ناجائز دی،[1] او د ښځې دپاره تغطیة الراس خو جائز دی، لیکن تغطیة الوجه جائز نه دې، پس د جمهور علماء یعنی ائمه ثلثه مذهب هم دادې، چه ښځه د نقاب په ذریعې سره خپل مخ نشی پټولې، البته عند حضور الاجانب، سدل ثوب متجافیا عن الوجه کولې شی، او د امام احمد رحمه الله په نزد د تجافی قید نشته، لاصقا بالوجه هم په مخ باندې نقاب اچولې شی

[۱۸۳۳](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَ الرُّكْبَانُ يَمُرُّونَ بِنَا وَنَحْنُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحْرِمَاتٌ، فَإِذَا حَاذَوْا بِنَا سَدَلَتْ إِحْدَانَا جِلْبَابَهَا مِنْ رَأْسِهَا عَلَى وَجْهِهَا، فَإِذَا جَاوَزُونَا كَشَفْنَاهُ".

دام المومنین عائشه رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه په سورلو سواره کسان به زمونږ په خوا کښې تیریدل او مونږ به داحرام په حالت کښې دنبی علیه السلام په خوا کښې موجود وو، کله چه به پدی اس سوارانو کښې یوتن زمونږ سره نژدې تیریدو نو مونږ به خپل نقاب په مخ راخور کړو، کله چه به زمونږ نه تیرشول نو مونږ به بیرته خپل مخونه ښکاره کړل

عن عائشة قالت کان الرکبان یمرون بنا ونحن محرمات الخ:

### شرح حدیث:

حضرت عائشة رضی الله عنها فرمائي، چه کله به مونږ د حضور صلی الله علیه وسلم سره په سفر کښ په حالت احرام کښ وو، نو د مسافرو قافلې به هم تیریدلې، چه کله به هغه مسافر مونږ ته رانژدې شو، نو مونږ به د خپل سر څادرونه لاندې مخ ته راؤخویول، او په مخ باندې به مو واچول، بیا به چه کله هغه قافلې تیرې شوې، نو مونږ په خپل مخونه ښکاره کړل، دا حدیث په ظاهر کښ د مذهب دامام احمد رحمه الله سره موافق دې، ځکه په دې کښ سدل مطلقا ذکر دې، او د تجافی عن الوجه قید په کښ نشته، ددې جواب به دا وی، چه ددې نه مخکښ حدیث کښ تیر شو ولا تنتقب المرأة الحرام، چه په هغې کښ مطلقا د ښځې دپاره په مخ باندې د نقاب اچولو مانعت دې، لهذا د جمع بین الروایتین صورت دادې، چه د نقاب یو شکل لره جائز کړې شی، او یو لره ناجائز(بذل) یعنی متجافیا عن الوجه لره جائز، او متلاصقا بالوجه لره ناجائز، نن صبا داسې نقابونه چه د مخ نه جدا وی، ښځې خپله جوړوی.

---

[1] ، اوس سوال دا پاتې کیږی چه دسړی دپاره تغطیة الوجه، جائز ده که نه؟ عند الشافعی او احمد جائز دې او عندنا او مالک جائز نه دې.

[2]: سنن ابن ماجه/المناسک ۲۳(۲۹۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱۷۵۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۰/۶)(حسن)

# بَابٌ فِي الْمُحْرِمِ يُظَلَّلُ

## محرم لره په حالت احرام کښې په خپل سر با ندې دسورې کولو بیان

تظليل محرم، يعنى د محرم په خپل ځان باندې د څه څيز سورې کول، د نمر وغيره نه د بچ کيدو دپاره، په تظليل کښ چونکه فى الجمله تغطيه راس راځى، ددې وجې نه ددې د بيان ضرورت پيښ شو.

### د تظليل صورتونه مع مذاهب ائمه :

په دې خبره پوهيدل پکار دى، چه د تظليل درې قسمونه دى،(۱) بالثوب المتصل مثلا څه رومال وغيره په سر باندې اچول(۲) تظليل بالسقف و نحوه يعنى د چت لاندې يا خيمه کښ دننه کيناستل، او سورې حاصلول(۳) تظليل بالثوب المنفصل كالشمسية والرحل والهودج يعنى چهترئ يا پالان يا کيجاوه وغيره سره سورې حاصلول، په دې قسمونو کښ قسم اول بالاتفاق ممنوع دې، او قسم ثالث بالاتفاق جائز دې، او درميانه قسم مختلف فيه دې، يجوز عندنا والشافعي و لا يجوز عند مالك واحمد.

[١٨٣٤](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحِيمِ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَبِي أُنَيْسَةَ، عَنْ يَحْيَى بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ أُمِّ الْحُصَيْنِ حَدَّثَتْهُ، قَالَتْ: "حَجَجْنَا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّةَ الْوَدَاعِ، فَرَأَيْتُ أُسَامَةَ وَبِلَالًا وَأَحَدُهُمَا آخِذٌ بِخِطَامِ نَاقَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ رَافِعٌ ثَوْبَهُ لِيَسْتُرَهُ مِنَ الْحَرِّ حَتَّى رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ".

دام الحصين رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه مونږ دحجةالوداع په کال دنبى عليه السلام سره په حج کښې شريک وو نو اسامه بن زيد او بلال رضي الله عنه اوليدل چه په دوى کښې يو کس دنبى عليه السلام دسورلئ واږې نيولې وى اوپه دوى کښې دويم کس دنبى عليه السلام په سر باندى ديوى کپړې سورى کړې وو تردې چه رسول پاک صلى الله عليه وسلم دجمره عقبى دويشتلو نه فارغ شو.

فرايت اسامة و بلالا واحدهما آخذ بخطام ناقة رسول الله(صلى الله عليه و سلم) :

حضرت اسامه او بلال رضي الله عنهما په سفر حج کښ د حضور صلى الله عليه وسلم سورلئ سره وو، په هغوى کښ يو(بلال رضي الله عنه) د حضور صلى الله عليه وسلم د سورلئ مهار نيولې وو، او دويم(اسامه رضي الله عنه) د حضور صلى الله عليه وسلم د سر مبارك دپاسه په کپړې سره سورې کړې وو، تر دې پورې چه نبى کريم صلى الله عليه وسلم د جمرۂ عقبه د رمې نه فارغه شو،(صلى الله عليه و سلم شرف و كرم.

دا حديث په مسئلة الباب کښ د احناف او شافعيه دپاره دليل دې، او د مالکيه او حنابله استدلال د بيهقى يو روايت سره دې، چه دهغه مضمون دادې، چه يو ځل حضرت ابن عمر رضي الله عنه يو محرم اوليدلو، چه په اوښ باندې سور وو، او هغه په خپل ځان باندې سورې کړې وو، دهغه ليدلو سره حضرت ابن عمر رضي الله عنه اوفرمائيل: اضح لمن احرمت له، د کوم ذات دپاره چه تا احرام تړلې دې، يعنى الله تعالى، دهغه دپاره په نمر کښ شه، يعنى سورې کوه

---

(1): صحيح مسلم/الحج ٥١(١٢٩٨)، سنن النسائي/الحج ٢٢٠(٣٠٦٢)،( تحفة الأشراف: ١٨٣١٠)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٠٢/٦)(صحيح)

مهٔ، ددې جواب دادې، چه دا حديث موقوف دې، او كيدې شي، چه هغوی د افضليت په اعتبار سره فرمائيلې وی، (بذل)

## بَابُ الْمُحْرِمِ يَحْتَجِمُ

### دمحرم دپاره دښكر لګولو بيان

[۱۸۳۵] (¹) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عَطَاءٍ، وَطَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام ښكر اولګولو او حال دادې چه هغه په حالت داحرام كښې وو.

[۱۸۳٦] (²) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا هِشَامٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ فِي رَأْسِهِ مِنْ دَاءٍ كَانَ بِهِ".

ترجمه: دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت ديت دې فرمائي چه نبی عليه السلام ښكر اولګولو په سر كښې دهغی بيمارئ په وجه كومه چه په هغه باندی وه، او حال دادې چه هغه په حالت داحرام كښې وو.

په حالت احرام كښې ښكر لګول د ائمه ثلثه په نزد جائز دې، ليكن دهغې دپاره ويښته پريكول جائز نه دی، (³) ګنی فديه وركول به لازم وی، او د امام مالك رحمه الله په نزد جائز نه دې، البته كه ضرورت پيښ شی، نو د عذر په بناء جائز دې، احتجم وهو محرم فی راسه: دا د نبی كريم صلى الله عليه وسلم د حج قصه ده، او مخكښې چه كوم راروان دی علی ظهر القدم، چه نبی كريم صلى الله عليه وسلم ښكر د پښې په شا باندې اولګوؤ، هغه د بل سفر واقعه ده.

[۱۸۳۷] (⁴) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ عَلَى ظَهْرِ الْقَدَمِ مِنْ وَجَعٍ كَانَ بِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ أَحْمَدَ، قَالَ: ابْنُ أَبِي عَرُوبَةَ أَرْسَلَهُ، يَعْنِي عَنْ قَتَادَةَ.

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت ديت دې فرمائي چه نبی عليه السلام ښكر اولګولو په شاه دخپلې خپې باندی دهغی بيمارئ په وجه كومه چه په هغه باندی وه، او حال دادې چه هغه په حالت داحرام كښې وو، امام ابوداود فرمائي چه داحمد نه نه مې اوريدلی دی چه دابن ابی عروبه نه ئې نقل كول چه دا روايت قتاده مرسل بيان كړی دی.

---

[1]): صحيح البخاري/جزاء الصيد ۱۱(۱۸۳۵)، الصوم ۳۲(۱۹۳۸)، الطب ۱۲(۵٦۹۵)، ۱۵(۵۷۰۰)، صحيح مسلم/الحج ۱۱(۱۲۰۲)، سنن الترمذي/الحج ۲۲(۸۳۹)، الصوم ٦۱(۷۷۵)، سنن النسائي/الحج ۹۲(۲۸٤۹)،( تحفة الأشراف: ۵۷۳۷)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ۸۷(۳۰۸۱)، مسند احمد(۱/۲۱۵، ۲۲۱، ۲۲۲، ۲۳٦، ۲٤۸، ۲٤۹، ۲٦۰، ۲۸۳، ۲۸٦، ۲۹۲، ۳۰٦، ۳۱۵، ۳۳۳، ۳٤٦، ۳۵۱، ۳۷۲، ۳۷٤)، سنن الدارمي/المناسك ۲۰(۱۸٦۰)(صحيح)

[2]): صحيح البخاري/الطب ۱۵(۵۷۰۰)، سنن النسائي/ الكبري/ الطب(۷۵۹۹)،( تحفة الأشراف: ٦۲۲٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۲۳٦، ۲٤۹، ۲۵۹، ۲۷۲)(صحيح)

[3]) كوم ځاې چه ښكر لګولې شی اول هلته تيره څيز (چاړه وغيره) لګوی اوكه ويښته وی نوهغه صفا كوی.

[4]): سنن الترمذي/الشمائل ٤۹(۳٤۸)، سنن النسائي/الحج ۹٤(۲۸۵۲)،( تحفة الأشراف: ۱۳۳۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/۱٦٤، ۲٦۷)(صحيح)

## بَابٌ يَكْتَحِلُ الْمُحْرِمُ

### د محرم دپاره په رنځوبا ندی دسترګوتورولو بیان

د محرم دپاره اکتحال جائز دي، په شرط ددې چه هغه کحل غیر مطيب وی (یعنی خوشبودار نه وی) اګر چه هغه اکتحال بغير د ضرورت نه وی، لیکن بغیر د ضرورت نه رانجهٔ لګول خلاف اولی دی، د محرم د شان نه خلاف دی، او که مطيب وی، نو دریې څله لګولو سره په محرم باندې دم واجب کیږی، او صرف یو ځل یا دوه ځله لګولو سره صدقه واجبه کیږی. (بذل)

[۱۸۳۸](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ، قَالَ: "اشْتَكَى عُمَرُ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ مَعْمَرٍ عَيْنَيْهِ، فَأَرْسَلَ إِلَى أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ، قَالَ سُفْيَانُ: وَهُوَ أَمِيرُ الْمَوْسِمِ مَا يَصْنَعُ بِهِمَا؟ قَالَ: اضْمِدْهُمَا بِالصَّبِرِ، فَإِنِّي سَمِعْتُ عُثْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُحَدِّثُ ذَلِكَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دنبیه بن وهب نه روایت دې فرمائي چه دعمر بن عبیدالله بن معمر سترګی خوږ شوی نو هغه ابان بن عثمان ته څوک ولیږلو او ابان پدغه کال دحج امیر وو ددی تپوس کولو دپاره چه زه دسترګو دخوږیدو په تکلیف باندی مبتلی شوی یم زما دپاره څه کول پکاردی، اوددی بیمارئ څنګه علاج وکړم؟ ابان بن عثمان ورته ووئیل چه ته صبر (ترخه اوتروشه میوه) استعمال کړه څکه چه ما دعثمان رضي الله عنه نه اوریدلی وو چه نبی ﷺ به داسی کول.

د حدیث مضمون دادې، چه ابان بن عثمان، چه امیر المواسم وو، یعنی امیر الحاج، د مواسم نه مراد موسم حج دې، دهغه نه ددې مسئلې باره کښې تپوس اوکړې شو، چه د فلانې سړي په سترګو کښې تکلیف دې، څه کول پکار دی؟ هغوی ورته اوفرمائیل، صبر (ایلوا) لره په اوبو کښې واچوه، او په سترګو باندې ئې اولګوه، مصنف ددې نه د جواز اکتحال مسئله مستنبط فرمائیلې ده، چه قرین قیاس ده.

[۱۸۳۹](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ ابْنِ عُلَيَّةَ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ بِهَذَا الْحَدِيثِ.

نافع دنبیه بن وهب نه دتیر شوی روایت پشان روایت بیان کړې دې.

## بَابُ الْمُحْرِمِ يَغْتَسِلُ

### داحرام په حالت کښې دغسل کولو بیان

په حالت احرام کښې سرې د تنظیف (صفایئ) دپاره غسل کولې شی او که نه؟ عند الجمهور والائمة الثلثة لا باس به، په دې کښې د امام مالک رحمه الله اختلاف دی، دهغوی په نزد مکروه دی، په حدیث الباب کښې د غسل راس ذکر دې، هرکله چه غسل راس جائز دې، نو باقی بدن په طریقه اولی سره جائز شو، څکه چه خطره خو په اصل کښې غسل راس کښې ده، چه په دې کښې د ویښتو ماتیدلو احتمال دې.

(١): صحيح مسلم/الحج ١٢(١٢٠٤)، سنن الترمذي/الحج ١٠٦(٩٥٢)، سنن النسائي/الحج ٤٥(٢٧١٢)، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٧)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥٩/١، ٦٥، ٦٨، ٦٩)، سنن الدارمي/المناسك ٨٣(١٩٧١) (صحيح)

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٧٧٧) (صحيح)

[۱۸٤٠]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُنَيْنٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عَبَّاسٍ وَالْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ اخْتَلَفَا بِالْأَبْوَاءِ، فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: يَغْسِلُ الْمُحْرِمُ رَأْسَهُ، وَقَالَ الْمِسْوَرُ: لَا يَغْسِلُ الْمُحْرِمُ رَأْسَهُ، فَأَرْسَلَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبَّاسٍ إِلَى أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ فَوَجَدَهُ يَغْتَسِلُ بَيْنَ الْقَرْنَيْنِ وَهُوَ يُسْتَرُ بِثَوْبٍ، قَالَ: فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ، فَقَالَ: مَنْ هَذَا؟ قُلْتُ: أَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ حُنَيْنٍ، أَرْسَلَنِي إِلَيْكَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عَبَّاسٍ أَسْأَلُكَ: كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ وَهُوَ مُحْرِمٌ؟ قَالَ: فَوَضَعَ أَبُو أَيُّوبَ يَدَهُ عَلَى الثَّوْبِ فَطَأْطَأَهُ حَتَّى بَدَا لِي رَأْسُهُ، ثُمَّ قَالَ: لِإِنْسَانٍ يَصُبُّ عَلَيْهِ اصْبُبْ، قَالَ: فَصَبَّ عَلَى رَأْسِهِ، ثُمَّ حَرَّكَ أَبُو أَيُّوبَ رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ، فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ، ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا رَأَيْتُهُ يَفْعَلُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دعبدالله بن حنین رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه دعبدالله بن عباس رضی الله عنه او دمسور بن مخرمه په مینځ کښې په ابواء مقام کښې اختلاف رائی پیدا شو عبدالله ابن عباس رضی الله عنه اووئیل چه محرم په حالت داحرام کښې خپل سر وینځلي شي نو عبدالله ابن عباس رضی الله عنه عبدالله بن حنین ابو ایوب انصاری ته ولیږل او هغه یې په داسې حال کښې اولیدو چه دوه لرګی یې دیکوهي خواته ودرولي وو او غسل یې کول او دغسل په وخت کښې یې یو څادر په دغه دوه لرګو باندې اچولي وو دپردې دپاره اوپه دې حالت کښې یې غسل کولو، عبدالله بن حنین ورته سلام وکړو ابو ایوب رضی الله عنه تپوس اوکړو چه که څوک یې؟ ده ورته اووئیل چه عبدالله بن حنین یم او زه عبدالله بن عباس تاته ددې دپاره رالیږلي یم چه داتپوس درنه وکړم چه نبی علیه السلام به داحرام په حالت کښې څنګه غسل کول؟ ابو ایوب چه دا واوریدل نوپه کپړه یې خپل لاس کیخودو او دسر دپاره کپړه یې لرې کړه تردې چه سر یې ماته ښکاره شو او بیایې هغه کس ته اووئیل چاچه دهغه په سر باندې اوبه اچولې زما په سر اوبه واچوه، راوی وائی چه دغه کس به دده په سر اوبه اچولې اوده به په خپلو دواړو لاسونو خپل سر مږلو او لاسونه به یې دمخې دطرف نه شاته او دشا دطرف نه مخې ته وړل راوړل اووئیل یې چه ما نبی علیه السلام په داسې عمل کولو باندې لیدلي وو.

**تشریح:قوله:** فوجده یغتسل بین القرنین: د قرنین نه مراد هغه دوه لرګی دي، چه د ښکر په شکل کښې وی، چه د کوهي دپاسه خښولي شي، چه په هغې باندې د اوبو څرخه تاویږي.

په ظاهر کښې دهغې دپاسه حضرت ابوایوب رضی الله عنه پرده زوړنده کړې وه، او د دغې پردې پناه هغه غسل کولو، عبدالله بن حنین دهغه نه د غسل راس دمسئلې په باره کښې تپوس اوکړو، او دا چه حضور صلی الله علیه وسلم په حالت احرام کښې څرنګه غسل راس کولو؟ نو حضرت ابوایوب رضی الله عنه (هغه ته د مشاهده کولو دپاره) په پردې باندې لاس کیخودو، او پرده ئې ښکته کړه، نو عبدالله بن حنین ته دهغوی سر ښکاره شو، ابوأیوب رضی الله عنه خپل خادم ته اوئیل، چه زما په سر اوبهٔ واچوه، هغه خپل سر مږلو او وینځلو سره هغه ته اوښودلو، په دواړو لاسونو ئې خپل سر اومږلو، فاقبل بهما و ادبر، یو ځل ئې لاسونه مخکښې طرف ته یوړل، او یو ځل ئې لاسونه

[1]: صحیح البخاري/جزاء الصید ١٤(١٨٤٠)، صحیح مسلم/الحج ١٣(١٢٠٥)، سنن النسائي/الحج ٢٧(٢٦٦٦)، سنن ابن ماجه/المناسك ٢٢(٢٩٣٤)، موطا امام مالك/الحج ٢(٤)،( تحفة الأشراف: ٣٤٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤١٦/٥، ٤١٨، ٤٢١)، سنن الدارمي/المناسك ٦(١٨٣٤)،(صحيح)

د مخکښې نه وروستو طرف ته راؤړل، بیا هغوی اوفرمائیل چه ما حضور ﷺ لره داسې کولو باندې لیدلې وو.

# بَابُ الْمُحْرِمِ يَتَزَوَّجُ

## داحرام په حالت کښې د نکاح کولو دمما نعت بیان

سړې په حالت احرام کښې خپله یا د بل چا د طرف نه د ولي یا وکیل په حیثیت سره نکاح کولې شي او که نه؟ په دې کښې ډیر لوئې او مشهور اختلاف دې، په هغې باندې محدثین ډیر اوږد بحث کوی، مونږ هغې لره اختصار سره لیکو:

د احنافو په نزد دا نکاح صحیح او منعقد ده(اګر چه د شان دمحرم نه خلاف ده) د جمهور علماء او ائمه ثلثه په نزد دا نکاح فاسد او غیر منعقد ده، دویمه مسئله د وطی ده، په حالت احرام کښې هغه بالاتفاق حرام ده، دریمه مسئله د خطبې(کویژدن) ده، هغه د محرم دپاره بالاتفاق جائز ده.

[۱۸۴۱][1] حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ أَخِي بَنِي عَبْدِ الدَّارِ، أَنَّ عُمَرَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ أَرْسَلَ إِلَى أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ يَسْأَلُهُ وَأَبَانُ يَوْمَئِذٍ أَمِيرُ الْحَاجِّ وَهُمَا مُحْرِمَانِ: إِنِّي أَرَدْتُ أَنْ أُنْكِحَ طَلْحَةَ بْنَ عُمَرَ ابْنَةَ شَيْبَةَ بْنِ جُبَيْرٍ، فَأَرَدْتُ أَنْ تَحْضُرَ ذَلِكَ فَأَنْكَرَ ذَلِكَ عَلَيْهِ أَبَانُ، وَقَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ أَبِي عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ، يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْكِحُ الْمُحْرِمُ وَلَا يُنْكِحُ".

دنبیه بن وهب دعبدالدار ورور نه روایت دې فرمائی چه عمرو بن عبیدالله ابان بن عثمان ته څوک ورورلیږلو او ابان په دې ورځو کښې دحاجیانو امیروو عمرو بن عبیدالله دا تپوس کول غوښتل چه زما دا اراده ده چه دشیبه بن جبیر دلور سره نکاح وکړم او دا غواړم چه ته هم په دې نکاح کښې شریک شي ابان بن عثمان دده په نکاح کولو باندې اعتراض وکړو اوویې وئیل چه ما دعثمان بن عفان رضی الله عنه نه اوریدلې دی چه فرمائیل یې یقینا نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه محرم په حالت داحرام کښې نه پخپله نکاح کولې شي او نه بل څوک په نکاح ورکولې شي.

[۱۸۴۲][2] حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا سَعِيدٌ، عَنْ مَطَرٍ، وَيَعْلَى بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ نُبَيْهِ بْنِ وَهْبٍ، عَنْ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ عُثْمَانَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، ذَكَرَ مِثْلَهُ، زَادَ: "وَلَا يَخْطُبُ".

تنبیه بن وهب د ابان بن عثمان او هغه دخپل پلار عثمان بن عفان رضی الله عنه نه او هغه دنبی علیه السلام نه دتیر شوی روایت پشان روایت نقل کړی مګر ددی اضافی سره چه«ولا يخطب» یعنی محرم به چاته دنکاح پیغام هم نه ورکوی.

[1]: صحيح مسلم/النكاح ٥(١٤٠٩)، سنن الترمذي/الحج ٢٣(٨٤٠)، سنن النسائي/الحج ٩١(٢٨٤٥)، والنكاح ٣٨(٣٢٧٧)، سنن ابن ماجه/النكاح ٤٥(١٩٦٦)، الحج ٢٢(٢٩٣٤)،( تحفة الأشراف: ٩٧٧٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ الحج ٢٢(٧٠)، مسند احمد(١/٥٧، ٦٤، ٦٩، ٧٣)، سنن الدارمي/المناسك ٢١(١٨٦٤)(صحيح)

[2]: انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ٩٧٧٦)(صحيح)

**د جمهورو دليل او د احنافو د طرف نه دهغې جواب :**

د جمهورو استدلال د منع والا حديث نه دې، يعنې د حضرت عثمان رضي الله عنه حديث مرفوع، چه دهغې تخريج امام مسلم رحمه الله، ابوداؤد رحمه الله، ترمذی رحمه الله، او نسائی رحمه الله کړې ده، قال رسول الله(صلی الله عليه و سلم) لا ينكح المحرم و لا ينكح و لا يخطب، قال الترمذی حديث عثمان حديث حسن صحيح والعمل عليه عند بعض اصحاب النبی(صلی الله عليه و سلم) و هو قول بعض الفقهاء التابعين و به يقول مالك والشافعي و احمد قالوا ان نكح فنكاحه باطل.

احناف وائی، چه په دې حديث کښې نهی للتنزيه ده، للتحريم نه ده، چه دهغې دپاره دوه قرينې دی، اول دا چه په دې حديث کښې دريم جزء دادې ولا يخطب، او د محرم دپاره خطبه(پيغام نکاح) بالاتفاق جائز ده، پس څرنګه چه په دې کښې نهی للتنزيه ده، دغه شان په لا ينكح کښې هم نهی للتنزيه پکار ده، مطلب دا چه نکاح د محرم ۱ شان نه خلاف ده، دويمه قرينه داده، چه خپله حضور صلی الله عليه وسلم د حضرت ميمونې رضي الله عنها سره نکاح د عمرة القضاء په سفر کښې د احرام په حالت کښې کړې وه، لکه په صحاح ستة کښې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه حديث روايت دې، ان النبی(صلی الله عليه و سلم) تزوج ميمونة وهو محرم، او قياس هم د جواز تقاضا کوی، چه څرنګه نکاح د آزادې ښځې د حل استمتاع سبب دې، دغه شان په وينځه کښې دهغې شراء د جواز استمتاع ذريعه ده، او په دې دواړو کښې ثانی بالاتفاق د محرم دپاره جائز دې، فكذ الاول ای النكاح. او جمهور علماء په دې حديث کښې نهی للتحريم منی، ددې وجې نه نکاح د محرم لره فاسد او غير منعقد شماروی.

[۱۸۴۳](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ الشَّهِيدِ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ مِهْرَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ الْأَصَمِّ ابْنِ أَخِي مَيْمُونَةَ، عَنْ مَيْمُونَةَ، قَالَتْ: "تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ حَلَالَانِ بِسَرِفَ".

دام المومنين ميمونة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام زما سره نکاح وکړه په سرف مقام کښې او مونږ دواړه حلال وو.

[۱۸۴۴](۲) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "تَزَوَّجَ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې فرمائی چه يقينا نبی عليه السلام دام المومنين ميمونة رضي الله عنها سره نکاح وکړه او هغه په حالت داحرام کښې وو.

[1]: صحيح مسلم/النكاح ۵(۱۴۱۱)، سنن الترمذي/الحج ۲۴(۸۴۵)، سنن النسائي/ الكبري/ النكاح(۵۴۰۴)، سنن ابن ماجه/النكاح ۴۵(۱۹۶۴)،(تحفة الأشراف: ۱۸۰۸۲)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۳۲/۶، ۳۳۳، ۳۳۵)، سنن الدارمي/ المناسك ۲۱(۱۸۶۵)(صحيح)

[2]: صحيح البخاري/جزاء الصيد ۱۲(۱۸۳۷)، والمغازي ۴۳(۴۲۵۸)، والنكاح ۳۰(۵۱۱۴)، سنن الترمذي/الحج ۲۴(۸۴۳)،(تحفة الأشراف: ۵۹۹۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/النكاح ۵(۱۴۱۰)، سنن النسائي/الحج ۹۰(۲۸۴۳، ۲۸۴۴)، والنكاح ۳۷(۳۲۷۳)، سنن ابن ماجه/النكاح ۴۵(۱۹۶۵)، مسند احمد(۲۲/۱، ۲۴۵، ۳۵۴، ۳۶۰، ۳۸۳)، سنن الدارمي/المناسك ۲۱(۱۸۶۳)(صحيح)

## حدیث ابن عباس رضی الله عنه عند الجمهور مرجوح دي او که مؤول دي:

او حدیث ابن عباس رضی الله عنه چه د نکاح میمونه رضی الله عنها په باره کښې دي، ددې هغوی تاویل کوی، یا هغې لره مرجوح ګرزوی، یو تاویل خو دا کړې شوې دې، چه د وهو محرم مطلب دا نه دې، چه په حالت د احرام کښې وو، بلکه د احرام معنی دخول فی الحرم هم راځی، احرم بمعنی دخل فی الحرم، انجد دخل فی النجد، اعرق دخل فی العراق، وقال الشاعر : قتلوا ابن عفان الخلیفة محرما، قاتلینو خلیفه حضرت عثمان رضی الله عنه قتل کړو، په دې حال کښې چه هغه د حرم په حدودو کښې وو، د حرم نه مراد حرم مدینه دې،[1] د حضرت عثمان د اوسیدو کور د مسجد نبوی صلی الله علیه وسلم سره نزدې په حدود حرم کښې وو، او دویم تاویل دا مشهور دې، ای ظهر امر تزویجها وهو محرم یعنی نکاح خو په حالت احلال کښې شوې وه، لیکن ددې نکاح شهرت هغه وخت کښې اوشو، چه کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم محرم وو.

او ترجیح والا جواب دادې، چه هغوی فرمائي، چه د نکاح میمونه رضی الله عنها سلسله کښې دوه روایتونه دی، یو د ابن عباس رضی الله عنه روایت وهو محرم، او دویم حدیث د یزید بن الاصم او ابورافع، ددې دواړو په حدیث کښې دادی، تزوجها وهو حلال، وئیلې شی، چه یزید بن الاصم د حضرت میمونه رضی الله عنها خورئې وو، او ابورافع چه د حضور صلی الله علیه وسلم مولی دې، هغوی فرمائي وکنت الرسول بینهما، یعنی د حضور صلی الله علیه وسلم د طرف نه میمونې رضی الله عنها ته، چه هغه وخت کښې په مکه کښې وه، د نکاح پیغام رسونکې هم زهٔ اوم، نو هرکله چه قاصد هغه وو، نو هغه ته به ددې معلومات زیات وی.

## د احنافو په نزد د حدیث ابن عباس رضی الله عنه وجه د ترجیح:

او د احنافو په نزد ددې برعکس ترجیح حدیث ابن عباس رضی الله عنه ته ده، ځکه چه هغه په صحاح سته کښې موجود دې، په خلاف د یزید بن الاصم رضی الله عنه د روایت، چه دهغې تخریج امام بخاری او نسائی نه دې کړې، صرف په احد الصحیحین کښې دې،(د افراد دمسلم نه دې) او د ابورافع حدیث صرف په سنن کښې دې، اخرجه الترمذی وغیره، ددې نه علاوه په دې دواړو احادیثو کښې اضطراب او اختلاف دې، بعضو راویانو دې لره مسنداً(بذکر الصحابی) او بعضو مرسلا(بدون ذکر الصحابی) روایت کړې دې، ددې تفصیل امام ترمذی بیان کړې دې، په خلاف د حدیث ابن عباس، چه دهغې په سند کښې هیڅ ګړبړ او اختلاف رواة نشته، او بیا هغه متفق علیه یعنی د صحیحینو روایت دې، او څرنګه چه یزید بن الاصم د حضرت میمونه رضی الله عنها خورئې دې، دغه شان ابن عباس رضی الله عنه هم دهغې خورئې دې(کما تقدم فی کتاب الصلوة قول ابن عباس رضی الله عنه بت عند خالتی میمونة) او هغه چه کوم هغوی وائی، چه ابورافع قاصد وو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د طرف نه، ددې جواب دادې، چه دا خو صحیح ده، چه هغه د

---

[1] لیکن اسمعی رحمه الله کوم چه ډیر لوئې لغوی وو په دې باندې رد کول سره اووئیل چه دمحرم معنی ده ذو حرمة یعنی محترم اوبې قصوره، کما فی قوله : ع: قتلوا کسری بلیل محرمًا، فتولی ولم یمتع بالکفن. یعنی کسری شاه فارس د شپې په وخت قتل کړې شو حالانکه هغه بې قصوره وو.(فیض الباری ص ۱۳۸، ج۳).

نکاح پیغام ورونکې وو، لیکن په روایاتو کښې خو دا دی، چه حضرت میمونه ددې نکاح مسئله خپلې خور ام الفضل ته سپارلې وه، ام الفضل خپل خاوند حضرت عباس رضی الله عنه ته اوسپارله، پس د نکاح متولی خو حضرت عباس رضی الله عنه شو، نه ابورافع، او د حضرت عباس رضی الله عنه قصې باندې دهغه ځوې حضرت ابن عباس رضی الله عنه ځومره خبر دې، ظاهره خبره ده، چه بل ځوک دهغې نه دومره نشی خبریدې.

## په تاویل د شافعیه باندې رد:

او دوی چه کوم دا تاویل کوی، ای ظهر امر تزو یجها وهو محرم، چه دهغې تشریح امام ترمذی رحمه الله داسې فرمائیلې ده، چه دا نکاح په طریق مکه اوشوه، په حالت د احلال کښې، دهغې نه پس نکاح ښکاره شوه( د خلقو په علم کښې) هرکله چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم محرم شوې وو، ددې نه پس په واپسئ کښې رخصتی اوشوه په مقام سرف کښې، ددې باره کښې زهٔ وایم، چه ددې شکل سوا ددې نه هیڅ نه جوړیږی، چه دا اومنلې شی، چه دا نکاح په ذوالحلیفه کښې اوشوه، د احرام نه مخکښې، لیکن دا تاویل د نسائی د روایت نه خلاف دې، په هغې کښې دا دی، تزوجها و هو محرم بسرف، مګر دا چه داسې اوئیلې شی، چه د نسائی په روایت کښې د تزوج نه مراد بناء ده، نکاح نه ده، لیکن داسې هم چرته کیدې شی، ځکه اګر چه دا صحیح ده، چه بناء په سرف کښې شوې ده، لیکن حالت احرام خو د بناء نه مانع دې، لهذا په حدیث نسائی کښې د تزوج نه مراد نکاح ده، او ظاهره خبره ده، چه د تللو په وخت کښې په مقام سرف کښې حضور صلی الله علیه وسلم محرم وو، لکه چه په روایت کښې ددې تصریح ده.

## د امام طحاوی بیان کړې شوې وجه د ترجیح:

دغه شان امام طحاوی په شرح معانی الآثار کښې دا حدیث د ابن عباس رضی الله عنه په روایت د مجاهد او عطاء سره د هغوی نه ذکر کړې دې، دهغې مضمون دادې، چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د میمونه بنت الحارث سره تزوج اوکړو وهو حرام( په حالت د احرام کښې) پس نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کښې درې ورځې مقیم وو، نو هغوی ته بعضې قریش مکه راغلل، او وې وئیل، چه درې ورځې پوره شوې دی(او په صلح حدیبیه کښې معاهده د دریو ورځو د قیام وه) لهذا تاسو ددې ځائې نه لاړ شئ، په دې نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : وما علیکم لو ترکتمونی فعرست بین اظهرکم الحدیث، په دې کښې تاسو ته څه تکلیف دې، چه تاسو ماته دلته کښې د قیام نور هم مهلت راکړئ، دې دپاره چه زهٔ دلته کښې بناء اوکړم، او بیا تاسو ته د ولیمې دعوت اوکړم، هغوی جواب ورکړو، لا حاجة لنا الی طعامك فاخرج عنا، په دې باندې نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره د میمونه رضی الله عنها نه روان شو، تردې پورې چه هغوی مقام سرف ته اورسیدل، او هلته ئې بناء اوکړه، په دې باندې حضرت په بذل کښې لیکلې دی، چه ددې روایت نه معلومیږی، چه نکاح مکې ته رسیدلو نه مخکښې په لاره کښې شوې وه، ځکه خو نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مکه کښې د دعوت ولیمه اراده ظاهره کړې وه،(افتراه اراد الولیمة قبل النکاح)

[۱۸۴۵]([1]) حَدَّثَنَا ابْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنْ رَجُلٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، قَالَ: وَهِمَ ابْنُ عَبَّاسٍ فِي تَزْوِيجِ مَيْمُونَةَ وَهُوَ مُحْرِمٌ.

دسعید بن المسیب نه روایت دې فرمائی چه ابن عباس رضی الله عنهما نه وهم شوی دی په باره دنکاح دنبی علیه السلام کښې دمیمونې سره په حالت دحرام کښې.

**تشریح: قوله**: عن سعید بن المسیب قال وهم ابن عباس فی تزویج میمونة وهو محرم:

ابن المسیب رحمه الله فرمائي، ابن عباس رضی الله عنهما ته په دې روایت کښې وهم شوې دې، زمونږ د طرف نه بعضو خلقو جواب ترکی بترکی ورکړې دې،([2]) چه ابن شهاب د عمروبن دینار په مخکښې په زیر بحث مسئله کښې د ابن عباس رضی الله عنهما په مقابله کښې د یزید بن الاصم روایت پیش کړو، نو هغه اوفرمائیل اتجعل اعرابیا بوالا علی عقبیه الی ابن عباس(بذل)

## بَابُ مَا يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ مِنَ الدَّوَابِّ

### دمحرم دپاره په احرام کښې دکوم قسم ځناور قتل کول جائز دی؟

دلته کښې دوه مسئلې دی،(۱) الاصطیاد للمحرم یعنی په حالت د احرام کښې ښکار کول(۲) اکل لحم الصید، د محرم سړی د بل سړی ښکار کړې شوې غوښه خوړل، په دې باب کښې اوله مسئله ذکر ده، او په راتلونکې باب کښې دویمه مسئله ذکر ده.

[۱۸۴۶]([3]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَمَّا يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ مِنَ الدَّوَابِّ، فَقَالَ: "خَمْسٌ لَا جُنَاحَ فِي قَتْلِهِنَّ عَلَى مَنْ قَتَلَهُنَّ فِي الْحِلِّ وَالْحَرَمِ: الْعَقْرَبُ وَالْفَأْرَةُ وَالْحِدَأَةُ وَالْغُرَابُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ".

سالم دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه دنبی علیه السلام نه تپوس وکړې شو چه محرم په احرام کښې کوم قسم ځناور وژلې شی؟ نبی علیه السلام او فرمائیل پنځه ځناور داسې دی چه دهغې په قتل کولو کښې ګناه نشته برابره خبره ده چه دحرم نه بهر وی اوکه په حرم کښې وی او هغه ځناور دادی : لړم، منږک، تپوس او کارغه او چیچونکې سپې.

سئل النبی(صلی الله علیه و سلم) عما یقتل من الدواب فقال خمس الخ :

په دې خبره پوهیدل پکار دی، چه محرم دپاره صید البر(د اوچې ښکار) حرام دې، سوا دهغې بعضې حیواناتو نه، د کومو استثناء چه ددې باب په حدیث کښې ذکر ده، او صید البحر(د دریاب ښکار) جائز دې، او دا دواړه احکام د نص قرآن نه ثابت دې، احل لکم صید البحر و طعامه متاعا لکم و للسیارة و حرم علیکم صید البر ما دمتم حرما، دغه شان د حیوان اهلی(پاللې شوې څاروی) باره کښې هم اتفاق دې، چه دهغې حلالول محرم دپاره جائز دی.

---

[1]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۵۹۹۰)(صحیح)

[2] اول خو دا روایت ضعیف دې ځکه چه په دې سند کښې یو رجل مبهم دې، هسې هم هغه داسې جرأت نه شی کولې چه دحضرت ابن عباس طرف ته د وهم نسبت اوکړی.

[3]: صحیح مسلم/الحج ۹(۱۱۹۹)، سنن النسائي/الحج ۸۸(۲۸۳۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۹۱(۳۰۸۸)،( تحفة الأشراف: ۶۸۲۵)، وقد أخرجه: صحیح البخاري/جزاء الصید ۷(۱۸۲۶)، وبدء الخلق ۱۶(۳۳۱۵)، موطا امام مالك/الحج ۲۸(۸۸، ۸۹)، مسند احمد(۲/۸، ۳۲، ۳۷، ۴۸، ۵۰، ۵۲، ۵۴، ۵۷، ۶۵، ۷۷)، سنن الدارمي/ المناسك ۱۹(۱۸۵۷)(صحیح)

ددې نه پس پوهیدل پکار دی، چه د مذهب احناف تفصیل داسې دې، د صید البر دوه قسمه دی، ماکول، او غیر ماکول، په دې کښې د قسم اول ښکار کول ممنوع دی بغیر د څه استثناء نه، او قسم ثانی یعنی غیر ماکول کښې تفصیل دادې، چه په هغې کښې کوم ځناور داسې دی، چه هغه د انسان په حق کښې ضرری او مبتدی بالاذی دی،[1] یعنی ابتداء (بغیر د چیړلو نه) په انسان باندې حمله کوی، او هغه ته نقصان رسوی، مثلا زمرې او شرمخ، مار، لړم وغیره، محرم دپاره ددې ځیزونو قتل جائز دې، (په حدیث کښې د خمس قید د حصر دپاره نه دې) [2] او کوم ځناور چه مبتدی بالاذی نه دی، دهغې قتل کول جائز نه دی، لکه ضبع (لیوۀ) ثعلب (لومبړه) دا ځناور مبتدی بالاذی نه دی، بلکه دا خو سړی لیدلو سره تښتی، تر هغې پورې چه څوك دا اونه چیړی، (بدائع)

العقرب والغراب والفارة والحداة: بروزن عنبه، په دې کښې دا تاء د تانیث دپاره نه ده، لکه چه په تمرة کښې تاء تانیث دپاره نه ده، و فی روایة الحدیا، تصغیر حداة، والکلب العقور، او په دویم روایت کښې د الغراب په ځائې الحیه ذکر دې، د غراب نه کوم کارغۀ مراد دې، په دې کښې اختلاف دې، ځکه چه د غراب ډیر قسمونه دی، په دې کښې فقهاؤ او شراح حدیث تفصیلی کلام کړې دې، د صحیح مسلم په روایت کښې د غراب سره د الابقع قید مذکور دې، ددې وجې نه د اکثر علماؤ په نزد ددې مطلق نه مقید مراد دې، غراب ابقع هغه کارغۀ دې، چه نجاست او مرداره خوری، دهغه د بدن بعضې حصه سپینه وی، او هغه غراب چه غله دانه وغیره خوری، چه هغه ته غراب الزرع او زاغ هم وئیلې شی، چه ټول په ټوله تور وی، سپین والی په هغه کښې نه وی، د جمهورو په نزد په حدیث کښې هغه مراد نه دې، ځکه چه دا قسم ماکول او حلال دې، د محرم دپاره ددې ښکار جائز نه دې.

الکلب العقور: ددې په تفسیر کښې هم اختلاف دې، بعضې وائی، چه ددې نه معروف معنی مراد ده، او بعضو علماؤ ددې تفسیر په اسد سره کړې دې، او بعضو په ذئب سره، او امام مالك رحمه الله په مؤطا کښې ددې تفسیر فرمائیلې دې: کل ما عقر الناس و عدا علیهم و اخافهم مثل الاسد والنمر والفهد والذئب، ددې حاصل دا دې، چه د کلب عقور نه السبع العادی (هر هغه درنده چه په انسان باندې حمله کوی) مراد دې، دا ټول څلور اقوال شو.

او په هدایه کښې دادی: وئیلې شوې دی، چه د کلب عقور نه مراد ذئب دې، او یا داسې اووائې، چه ذئب هم په دې حکم کښې داخل دې، بیا مخکښې فرمائي، چه د امام ابوحنیفه رحمه الله نه مروی دې، چه کلب عقور او غیر عقور، مستانس او متوحش ټول برابر دی، ځکه چه اعتبار جنس لره دې، او په شرح لباب کښې دا لیکلې دی، چه د کلب عقور په قتل کښې نه خو فدیه شته، او نه ګناه شته، او د غیر عقور په قتل کښې فدیه خو نشته، لیکن ګناه شته، عقور بمعنی عاقر یعنی جارح، د بعضو فقهاؤ د کلام نه معلومیږی، چه کلاب خو ټول په

---

[1] یعنی السبع الصائل المبتدي بالاذي، فقهاؤ دا ټول قیاس کړی دی په کلب عقور باندې.

[2] او وئیلې شوې دی چه قید خود قصر په طور وو لیکن بیا روسته حضور ﷺ په دې باندې د بعضو ځناورو اضافه فرمائیلې ده لکه چه په نورو روایاتو کښې دی.

تو له عقور او عاقر وي(ګویا دا صفت صفت کاشفه دې) او د بعضو د کلام نه فرق معلومیږي، د امام شافعي رحمه الله په کتاب کښې دا دي، چه د غیر عقور قتل هم د محرم دپاره جائز دې، او د امام نووي رحمه الله کلام په دې کښې مضطرب دې، په شرح مهذب کښې یو ځائې کښې خو دا لیکلې دي، چه د غیر عقور قتل کول حرام دي، او په بل ځائې کښې لیکلې دي، چه جائز دې، او یو ځائې کښې لیکلې دي، چه جائز خو دې، لیکن مکروه تنزیهي دې(اوجز)

والفویسقة : دا د فاسقة تصغیر دې، ددې نه مراد فاره(مږه) ده، تصغیر د تحقیر دپاره دې، د فسق اصل معنی خروج ده، فاسق ته فاسق وئیلې شي لخروجه عن طاعة الله تعالی، او فاره ته فاسقه ددې وجې نه اوئیلې شوه، لخروجها عن حجرها علی الناس للافساد، او په بذل المجهود کښې لیکلې دي، چه دې دواب خمسه ته په حدیث کښې فواسق وئیلې شوي دي، ځکه چه دا ځناور د نورو حیواناتو د حکم نه خارج او مستثنی دي په جواز د قتل کښې، یا په اعتبار د فساد او ایذاء سره د نورو حیواناتو نه خارج او ممتاز دي.

[۱۸۴۷](۱) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَجْلَانَ، عَنِ الْقَعْقَاعِ بْنِ حَكِيمٍ، عَنْ أَبِي صَالِحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "خَمْسٌ قَتْلُهُنَّ حَلَالٌ فِي الْحَرَمِ: الْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْحِدَأَةُ وَالْفَأْرَةُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ".

ابوهریرة رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه یقینا نبي علیه السلام فرمائیلي دي : پنځه ځناور داسې دي چه په کوم حرم کښې ئې قتلول جائز دي، مار، لړم، تپوس، مږه، او چیچونکي سپي.

[۱۸۴۸](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا هُشَيْمٌ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ أَبِي نُعْمٍ الْبَجَلِيُّ، عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَمَّا يَقْتُلُ الْمُحْرِمُ، قَالَ: "الْحَيَّةُ وَالْعَقْرَبُ وَالْفُوَيْسِقَةُ وَيَرْمِي الْغُرَابَ وَلَا يَقْتُلُهُ وَالْكَلْبُ الْعَقُورُ وَالْحِدَأَةُ وَالسَّبُعُ الْعَادِي".

دابو سعید خدري رضي الله عنه نه روایت دې فرمائي چه دنبي علیه السلام نه تپوس وکړې شو چه د محرم دپاره دکوم کوم قسم ځناور وژل په حالت داحرام کښې جائز دي؟ نبي علیه السلام او فرمائیل: مار، لړم، منږک او کارغه به شړي وژني به ئې نه او همدارنګې چیچونکي سپي او تپوس او هر یو حمله کونکې ځناور.

و یرمي الغراب ولا یقتله: د غراب باره کښې مشهور روایاتو کښې جواز د قتل وارد دې، دا روایت دهغې ټولو روایاتو نه خلاف دې، په ظاهر کښې مطلب دادې، چه غراب سره نفس تعرض مثلا تنفیر(یعنی شړل وغیره) خو جائز دې، لیکن د کارغهٔ قتل جائز نه دې، بعضې محدثینو دې زیاتوالي(ولا یقتله) له منکر ګرزولې دې، یا ئې دا تاویل کړې دې، چه ددې نه مراد غراب زرع دې، والله تعالی اعلم.

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۲۸۶٦)(حسن صحيح)

(۲): سنن الترمذي/الحج ۲۱(۸۳۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۹۱(۳۰۸۹)، (تحفة الأشراف: ۴۱۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۱۰۴، ۳/۳، ۳۲، ۷۹)(ضعيف) وقوله: «يرمي الغراب ولا يقتله» منكر(يزيد ضعيف هي ب)

## بَابُ لَحْمِ الصَّيْدِ لِلْمُحْرِمِ

### باب: دمحرم دپاره دښکار دغوښې مسئله

دا هغه دویمه مسئله ده، د کومې ذکر چه مونږ د باب سابق په شروع کښې کړې وو.

## په مسئلة الباب کښې مذاهب علماء:

په دې خبره پوهیدل پکار دی، چه کوم ښکار محرم په خپله اوکړی، هغه د میته په حکم کښې دې، دهغې اکل حرام دې، د محرم او غیر محرم ټولو دپاره،[1] او کوم ښکار چه غیر محرم اوکړی، دهغې دوه قسمونه دی، الاول ما صاده لاجل المحرم یعنی ښکار کونکې خو غیر محرم دې، لیکن هغه دا ښکار د محرم په نیت سره کړې دې، والثانی ما صاده لنفسه او لشخص آخر غیر محرم، یعنی یعنی ښکار کونکې هم غیر محرم دې، او د چا دپاره چه ئې ښکار کړې دې هغه هم غیر محرم دې، د احنافو په نزد دواړه قسمونه جائز دې، محرم دغې دواړو لره خوړلې شی، د ائمه ثلثه او جمهورو په نزد قسم اول ناجائز او صرف قسم ثانی جائز دې، او بعضې صحابه او تابعین لکه حضرت علی، حضرت ابن عباس، حضرت ابن عمر رضی الله عنهم، او حضرت سفیان ثوری، او حضرت اسحق بن راهویه □ په نزد محرم دپاره د دې دواړو قسمونو خوړل جائز نه دی، ددې تفصیل نه معلومه شوه، چه په دې کښې د علماؤ درې مذاهب دی.

[١٨٤٩]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كَثِيرٍ، عَنْ حُمَيْدٍ الطَّوِيلِ، عَنْ إِسْحَاقَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْحَارِثِ، عَنْ أَبِيهِ، وَكَانَ الْحَارِثُ خَلِيفَةَ عُثْمَانَ عَلَى الطَّائِفِ فَصَنَعَ لِعُثْمَانَ طَعَامًا فِيهِ مِنَ الْحَجَلِ وَالْيَعَاقِيبِ وَلَحْمِ الْوَحْشِ، قَالَ: فَبَعَثَ إِلَى عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، فَجَاءَهُ الرَّسُولُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْبِطُ لِأَبَاعِرَ لَهُ فَجَاءَهُ وَهُوَ يَنْفُضُ الْخَبَطَ عَنْ يَدِهِ، فَقَالُوا لَهُ: كُلْ، فَقَالَ: "أَطْعِمُوهُ قَوْمًا حَلَالًا فَإِنَّا حُرُمٌ"، فَقَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: أَنْشُدُ اللَّهَ مَنْ كَانَ هَاهُنَا مِنْ أَشْجَعَ، أَتَعْلَمُونَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَهْدَى إِلَيْهِ رَجُلٌ حِمَارَ وَحْشٍ وَهُوَ مُحْرِمٌ فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَهُ؟ قَالُوا: نَعَمْ.

اسحاب بن عبدالله بن حارث دخپل پلار نه روایت کوی چه حارث دعثمان رضی الله عنه دطرف نه دطائف گورنر وو هغه دعثمان دپاره دخوراک انتظام اوکړو او دځنګلی مرغو اود وحشی غواغوښه یې تیاره کړه او علی رضی الله عنه ته یې یو قاصد هم اولیږلو قاصد چه دهغه خواته اورسیدو نو هغه دخپول اوښانو دپاره پاڼړی رڅندلې او هغه راغلل دلاسونو نه یې ګردو غبار څنډلو هغوی ته اووئیل خوریځ نو هغه جواب ورکړو دا خوراک داسې خلقو ته ورکړئ کوم چه په احرام کښې نه وی مونږ خوپه احرام کښې یو بیا هغه اوفرمائیل زه قسم درکوم اووایم چه دقبیله اشجع نه څوک دلته شته دې ایا تاسو پوهیږئ چه یوکس رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دوحشی غوا غوښه په حالت داحرام کښې هدیه کړې وه نونبی کریم صلی الله علیه وسلم دهغې دخوړلو نه انکار فرمائیلې وو هغه خلقو اووئیل هو دا خبره ریښتیاده.

---

[1] لهذا دا نوع خو د بحث نه خارج ګنړل پکار دی دمصنف مقصد هم دا بیانول نه دی.

[2] تفرد به أبو داود (تحفة الأشراف: ١٠١٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١٠٠، ١٠٣) (صحيح)

**تشريح: قوله:** فقال على رضي الله عنه انشد الله من كان ههنا من اشجع اتعلمون ان رسول الله (صلى الله عليه و سلم) اهدى اليه رجل حمار وحش و هو محرم فابى ان ياكله قالوا نعم:

حضرت على رضي الله عنه اوفرمائيل، زۀ په الله تعالىٰ قسم وركولو سره هغې خلقو ته تپوس كوم، كوم چه دلته د قبيله اشجع نه موجود دى، چه آيا تاسو ته ددې خبرې پته ده، چه د رسول الله ﷺ په خدمت كښې يو سړى حمار وحشى (زيبرا) پيش كړو، په دې حال كښې چه نبى كريم ﷺ محرم وو، نو هغوى د هغې د خوړلو نه انكار اوكړو، هغې ټولو خلقو اوئيل، چه او هم داسې ده.

## د احاديث الباب تجزيه او تفصيل:

مصنف رحمه الله په دې باب كښې څلور احاديث ذكر كړې دى، په هغې كښې حديث على رضي الله عنه (كوم چه بره ذكر دې) او حديث ابن عباس رضي الله عنه، دا دواړه دهغه حضراتو دپاره مستدل دې، كوم حضرات چه د محرم دپاره د ښكار د غوښې د مطلقا عدم جواز قائل دى، لكه چه د بعضو صحابه كرامو او تابعينو مسلك دې، دهغوى نومونه بره تير شوې دى، او دريم حديث چه د جابربن عبدالله رضي الله عنه دې، هغه د ائمه ثلثه دليل دې، او څلورم حديث يعنى حديث ابوقتاده رضي الله عنه، د احنافو مستدل دې، فلله در المصنف، چه هغوى د ټولو مذاهبو دلائل په يو باب كښې جمع كړې دى.

د حديث اول مضمون دادې، چه د حضرت عثمان رضي الله عنه د ضيافت دپاره خوراك تيار كړې شو، په هغې كښې د مرغو غوښه هم وه، (حجل يوه مرغۍ ده، چه هغې ته چكور [1] وئيلې شى، او يعاقيب، د يعقوب جمع ده، حجل او يعقوب د يوې مرغۍ دوه نومونه دى، صرف د نر او مادې فرق دې، حجل ماده وى، او يعقوب نر) چه كله دا خوراك د حضرت عثمان رضي الله عنه مخښې ته راوړلې شو، نو هغوى حضرت على رضي الله عنه پسې هم سړى اوليږه، او راوې غوختلو، كوم وخت چه قاصد حضرت على رضي الله عنه ته لاړو، نو وې ليدل، چه هغه د خپلو اوښانو دپاره د اونې نه پاڼړى څنډلې (اباعر، د ابعرة جمع ده، او ابعره د بعير جمع ده، لهذا اباعر جمع الجمع شوه) چه كله حضرت على رضي الله عنه تشريف راوړو، او هغه ته اوئيلې شو، چه تاسو هم اوخورئ، نو هغوى عذر ظاهر كړو، او وې وئيل، چه كوم خلق غير محرم وى، هغوى بانديې اوخوروه، مونږ خو محرم يو، او بيا هغوى د حضور ﷺ دا مذكوره حديث بيان كړو، (چه دهغې ترجمه بره ليكلې شوې ده) ددې حديث نه په ظاهر كښې دا معلوميږى، چه محرم دپاره لحم صيد مطلقا ممنوع دې، حضرت على رضي الله عنه لره شارحينو په هغې صحابه كرامو كښې شمار كړې دې، چه د مطلقا منع قائل دى.

[۱۸۵۰] ([2]) حَدَّثَنَا أَبُوسَلَمَةَ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ قَيْسٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّهُ قَالَ: يَا زَيْدَ بْنَ أَرْقَمَ، هَلْ عَلِمْتَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُهْدِيَ إِلَيْهِ عُضْوُ صَيْدٍ فَلَمْ يَقْبَلْهُ؟ وَقَالَ: "إِنَّا حُرُمٌ"، قَالَ: نَعَمْ.

---

[1] چكور د تيتر پشان يو مارغه دې د تيتر نه وروكې دې پشتوكښې ورته زرك وائى. (مترجم)

[2] ): سنن النسائي/الحج ۷۹(۲۸۲۳)،( تحفة الأشراف: ۳٦۷۷)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۸(۱۱۹۵)، مسند احمد(٤/۳٦۷، ۳٦۹، ۳۷۱)(صحيح)

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي هغوی اووئيل اې زيد بن ارقم رضي الله عنه ايا تاته معلومه ده چه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته دښکار شوی حيوان يو اندام هديه کړې شوې وو او نبی عليه السلام هغې لره قبول کړې نه وو؟ او فرمائيلې يې وو مونږ په احرام کښې يو، زيد رضي الله عنه جواب ورکړو هو.

**تشريح: قوله:** اهدى اليه عضو صيد فلم يقبله : يعنی د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کښې د ښکار غوښه پيش کړې شوه، نو هغوی هغه قبوله نه کړه.

## د هديه صيد په سلسله کښې د قبول او رد والا رواياتو کښې تطبيق:

په دې سلسله کښې روايات مختلف دی، د بعضو نه د ښکار قبلول ثابتيږی، او د بعضو نه رد کول ثابتيږی، په جمع بين الروايات المختلفه کښې علماء مختلف دی، حضرت امام بخاری رحمه الله او بيهقی رحمه الله تطبيق داسې کړې دې، چه د رد روايات ئې په ژوندې ښکار باندې محمول کړې دی، او د قبول روايات ئې په لحم صيد باندې محمول کړې دی، ددې وجې نه امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې، اذا اهدى للمحرم حمارا وحشيا حيا لم يقبل، ليکن امام نووی رحمه الله په شرح مسلم کښې په دې توجيه باندې سخت رد کړې دې، ځکه چه د صحيح مسلم په بعضې رواياتو کښې د لحم صيد د تصريح باوجود دا دی، چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم هغه رد کړه، دغه شان دلته په ابوداؤد کښې د عضو صيد په باره کښې د عدم قبول روايت ذکر دې، لهذا دا توجيه خو واقعی صحيح نه ده، او دويمه توجيه هغه ده، چه ائمه ثلثه او جمهورو د خپل مسلك د وجې نه اختيار کړې ده، چه د رد رواياتو لره ئې په ماصيد لاجل المحرم باندې محمول کړې دې، او د قبول روايات ئې دهغې نه علاوه باندې.

[۱۸۵۱](۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي الإِسْكَنْدَرَانِيَّ الْقَارِيَّ، عَنْ عَمْرٍو، عَنِ الْمُطَّلِبِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ: "صَيْدُ الْبَرِّ لَكُمْ حَلَالٌ مَا لَمْ تَصِيدُوهُ أَوْ يُصَدْ لَكُمْ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: إِذَا تَنَازَعَ الْخَبَرَانِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنْظَرُ بِمَا أَخَذَ بِهِ أَصْحَابُهُ.

دجابر بن عبدالله نه روايت دې چه ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه واوريدل چه فرمائيل ئی داوچې ښکار ستا سو دپاره حلال دې خو په دی شرط سره چه تاسو هغی لره ښکار کړې نه وی يا ستاسو دپاره ښکار کړې شوې نه وی.

عن جابر بن عبدالله رضي الله عنه قال سمعت رسول الله (صلى الله عليه و سلم) ليتول صيد البر لكم حلال مالم تصيدوه او يصاد لكم الخ:

په اکثرو نسخو کښې داسې دی او يصاد لکم، په نسائی کښې هم داسې دی، ليکن د قواعدو تقاضا داده، چه اويصد لكم پکار وو، ځکه چه ددې عطف په مجزوم باندې دې، او دا د لم لاندې دې، لکه چه په ترمذی شريف کښې اويصد لکم دې.

(۱): سنن الترمذي/الحج ۲۵(۸٤٦)، سنن النسائي/الحج ۸۱(۲۸۳۰)،( تحفة الأشراف: ۳۰۹۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/۳٦۲، ۳۸۷، ۳۸۹)(ضعيف)

## د ائمه ثلاثه دليل او د احنافو د طرف نه دهغې جواب :

بهر حال ددې حديث نه ائمه ثلثه استدلال کړې دې، ځکه چه ددې حديث صريح مفهوم دادې، چه صيد البر ستاسو دپاره يعني د محرم دپاره حلال دې، ترڅو پورې چه هغه ښکار تاسو خپله اونه کړئ، او نه هغه ستاسو دپاره شوې وى، زمونږ د طرف نه ددې دوه جوابه دى:(۱) اول دا چه دا حديث متکلم فيه دې، منقطع دې، د مطلب بن عبدالله بن حنطب سماع د حضرت جابر رضي الله عنه نه ثابت نه ده، کما نقل الترمذی عن شيخه الامام البخاری رحمهما الله تعالی، دغه شان امام شافعی رحمه الله دې لره روايت کړې دې، عن عمرو عن رجل من الانصار عن جابر رضي الله عنه، (۲)ممکن ده چه د لکم مطلب دا وى، بامرکم او باشارتکم(۳) ددې حديث نه استدلال په دې باندې موقوف دې، چه ددې الفاظ داسې وى، او يصد لکم(په دې صورت کښې به دا جمله د نفی لاندې وى) حالانکه په رواياتو کښې اويصادلکم دې، لهذا د اويصادلکم مطلب دادې، الا ان يصاد لکم، يعنى الا دا چه که هغه ښکار ستاسو دپاره اوکړې شى(نو بيا په دې صورت کښې جائز دې) يعنی که تاسو خپله کوئ، نو ناجائز دې، او که بل څوک ستاسو دپاره اوکړى، نو هغه جائز دې، ددې وجې نه بذل کښې ئې ليکلې دى، چه ددې حديث نه خو د احنافو تائيد کيږى.

قال ابوداؤد اذا تنازع الخبران عن النبی(صلی الله عليه و سلم) ينظر الی ما عمل به اصحابه.

د مصنف رحمه الله بعينه هم داسې عبارت په کتاب الصلوة کښې ابواب السترة کښې قطع الصلوة بمرور الحمار والمرأة لاندې راغلې دې، مطلب ددې واضح دې، چه هرکله په دې مسئله کښې احاديث مرفوعه خپلو کښې مختلف او متعارض دى، نو په داسې صورت کښې د صحابه کرامو طرز عمل لره کتل پکار دى، چه هغه څه دې.

[۱۸۵۲](۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ أَبِي النَّضْرِ مَوْلَى عُمَرَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ التَّيْمِيِّ، عَنْ نَافِعٍ مَوْلَى أَبِي قَتَادَةَ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي قَتَادَةَ، أَنَّهُ كَانَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى إِذَا كَانَ بِبَعْضِ طَرِيقِ مَكَّةَ تَخَلَّفَ مَعَ أَصْحَابٍ لَهُ مُحْرِمِينَ وَهُوَ غَيْرُ مُحْرِمٍ، فَرَأَى حِمَارًا وَحْشِيًّا فَاسْتَوَى عَلَى فَرَسِهِ، قَالَ: فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُنَاوِلُوهُ سَوْطَهُ فَأَبَوْا، فَسَأَلَهُمْ رُمْحَهُ فَأَبَوْا، فَأَخَذَهُ ثُمَّ شَدَّ عَلَى الْحِمَارِ فَقَتَلَهُ فَأَكَلَ مِنْهُ بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبَى بَعْضُهُمْ، فَلَمَّا أَدْرَكُوا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَأَلُوهُ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَ: "إِنَّمَا هِيَ طُعْمَةٌ أَطْعَمَكُمُوهَا اللهُ تَعَالَى".

دابو قتاده رضي الله عنه انصارى نه روايت دې چه هغه دنبى کريم صلى الله عليه وسلم سره وو تردې پورې چه دمکې په لاره کښې يو ځائې کښې هغه دخپلو ملګرونه روستو پاتې شو په داسې حال کښې چه دوى په احرام کښې وو اودې بغير داحرام نه وو ابوقتاده رضي الله عنه يو ځنګلى غوا اوليدله اوپه خپل اس باندې سور شو اوملګرو ته يې اووئيل چه ماته خپله کوړا راکړئ هغوى دکوړې

(۱): صحيح البخاري/جزاء الصيد ۲(۱۸۲۱)، ۵(۱۸۲۴)، والهبة ۳(۲۵۷۰)، والجهاد ٤٦(۲۸۵٤)، ۸۸(۲۹۱٤)، والأطعمة ۱۹(۵٤۰۷)، والذبائح ۱۰(۵٤۹۰)، ۱۱(۵٤۹۱)، صحيح مسلم/الحج ۸(۱۱۹٦)، سنن الترمذي/الحج ۲۵(۸٤۷)، سنن النسائي/الحج ۷۸(۲۸۱۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۹۳(۳۰۹۳)،( تحفة الأشراف:۱۲۱۳۱)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۲٤(۷٦)، مسند احمد(۵/۳۰۰، ۳۰۷)، سنن الدارمي/المناسك ۲۲(۱۸٦۷)(صحيح)

دراخستو نه انکار اوکړو بیایې نیزه اوغوښتله هغوی ددې(دور کولو نه) هم انکار اوکړو اخر یې پخپله باندی اوچته کړه اوپه هغه وحشی غوا پسې ورپسی شو پس هغه یې قتل کړه نو بعض اصحاب کرامو دهغی نه خوراک اوکړو او څه اصحابه کرامو انکار اوکړ بیا چه هر کله دوی دنبی کریم ﷺ سره یوځای شو نو ورنه ئې ددې په باره کښې پوښتنه اوکړه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل داخو هغه رزق دې کوم چه الله تعالی په تاسو باندی خوړلې دې.

**تشریح: قوله**: عن ابی قتادة انه کان مع رسول الله(صلی الله علیه و سلم)........... تخلف مع اصحاب له محرمین وهو غیر محرم.

دا د باب هغه څلورم حدیث د ابوقتاده رضی الله عنه دې، چه د احنافو دلیل دې، د حدیث مضمون خو واضح دې، د هغې دلیکلو حاجت نشته، دا واقعه د عمره حدیبیه د سفر ده، کما فی روایة البخاری زمونږ ددې حدیث نه استدلال په دې طریقې سره دې، چه ظاهره خبره ده، چه ابوقتاده رضی الله عنه به د وحشی خر ښکار یواځې د خپل ځان دپاره نه وی کړې، بلکه هغه ښکار کولو نه پس سمدستی هغه ښکار خپلو ملګرو ته راؤړو، بعضو هغې لره قبول کړو، او وې خوړو، او بعضو هغه وخت کښې اونه خوړو، بیا چه کله حضور ﷺ سره ملاؤ شو، نو دهغوی نه ئې تپوس اوکړو، حضور ﷺ د قتاده نه څه تپوس کولو نه بغیر[1] دهغې د خوړولو اجازت ورکړو.

## یو مشهور اشکال او جواب:

په دې روایت باندې یو مشهوراشکال دې، هغه دا چه د ابوقتاده رضی الله عنه ملګرو خو احرام تړلې وو، خپله هغوی ولې احرام نه وو تړلې؟ ددې متعدد جوابات ورکړې شوې دی.(۱) لم یجاوز المیقات، یعنی تر اوسه پورې هغه د میقات نه تجاوز نه وو کړې.(۲) ممکن ده، چه تر دغه وخت پورې د حضور ﷺ د طرف نه د مواقیت تعیین نه وو شوې.(۳) دهغوی دا سفر د دخول مکه او عمرې په ارادې سره نه وو، بلکه حضور ﷺ هغه لره څه ځائې ته بل کار دپاره لیږلې وو، ففی روایة بعثه فی وجه، و فی روایة بعثه علی الصدقة، او ممکن ده، چه شروع کښې ئې ددې وجې نه تړلې نه وی، بیا روستو چه کله ئې د عمرې اراده اوکړه، نو احرام ئې تړلې وی.(بذل) الحمد لله باب پوره شو.

## بَابٌ فِي الْجَرَادِ لِلْمُحْرِمِ

### باب: دمحرم دپاره دملخا نو ښکار څنګه دی

[۱۸۵۳]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عِيسَى، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ جَابَانَ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "الْجَرَادُ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ".

ابوهریره رضی الله عنه دنبی کریم ﷺ نه روایت کوی فرمائی چه ملخ دسمندری ښکار(داقسامونه یو قسم) دې.

[1] اود ابوقتاده نه ئې دا تپوس اونه کړو چه تا دا په کوم نیت سره ښکار کړې دې.
[2]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٤٦٧٥، ١٩٢٣٨)(ضعیف)

**تشریح: قوله:** عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی(صلی الله علیه و سلم) قال الجراد من صید البحر:

د ابوسعید خدری رضی الله عنه او عروة بن الزبیر رضی الله عنه مسلك هم دادې، چه جراد (ملخان) بحری ښناور دې، چه د مهیانو نه پیدا کیږي، بیا دریاب هغې لره بهر په غاړه باندې غورزوي، لهذا د محرم دپاره دهغې ښکار جائز دې، فدیه پرې واجبیږي نه، او د جمهور علماء ومنهم الائمة الاربعة په نزد د اوچې ښکار دې، د محرم دپاره ددې ښکار جائز نه دې، که وې کړو، نو فدیه پرې واجبیږي، د فدیې مقدار یو تمر دې، لکه چه په مؤطا امام مالك رحمه الله کښې د حضرت عمر رضی الله عنه فیصله مذکوره ده، تمرة خیر من جرادة (چه هغې لره تا په شرح جامی کښې غالبا د مبتدا د تعریف او تنکیر په بحث کښې لوستلې دې)

مصنف رحمه الله دې حدیث لره په دواؤ طریقو سره ذکر کړې دې، اول طریق د میمون بن جابان دې، میمون غیر معروف راوی دې، او کله هغه دې حدیث لره مرفوعا روایت کوی او کله موقوفا علی ابی هریرة رضی الله عنه، په دویم طریق کښې ابو المهزم راوی دې، چه ضعیف بلکه متروک دې، خپله مصنف دواړو احادیثو لره وهم ګرزولې دې، کما فی المتن، په دې وجهو سره دا حدیث قابل استدلال نه دې، دویم جواب دادې، چه ددې حدیث نه مقصود تشبیه ده، بیان د خلقت او حقیقت نه دې، او تشبیه په دې امر کښې ده، چه څرنګه میتة البحر حلال دی، هغې لره د حلالولو حاجت نشته، هم دغه حال د جراد هم دې، لقوله علیه السلام احلت لنا المیتان السمك والجراد، الحدیث.

[۱۸۵٤] [1] حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ حَبِيبٍ الْمُعَلِّمِ، عَنْ أَبِي الْمُهَزِّمِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: أَصَبْنَا صِرْمًا مِنْ جَرَادٍ، فَكَانَ رَجُلٌ مِنَّا يَضْرِبُ بِسَوْطِهِ وَهُوَ مُحْرِمٌ، فَقِيلَ لَهُ: إِنَّ هَذَا لَا يَصْلُحُ، فَذُكِرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ "إِنَّمَا هُوَ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ". سَمِعْتُ أَبَا دَاوُد، يَقُولُ: أَبُو الْمُهَزِّمِ ضَعِيفٌ وَالْحَدِيثَانِ جَمِيعًا وَهْمٌ.

دابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې چه مونږ نه دملخ دل ملاو شو نوزمونږ یو کس کوم چه په احرام کښې وو هغه په خپلې کوړې سره اووهلو، او هغه په احرام کښې وو، خلقو ورته ووئیل چه دا عمل جائز نه دې، بیا ددې نه پس دنبی علیه السلام په وړاندې دا واقعه بیان کړې شوه نو نبی علیه السلام اوفرمائیل ملخ دسمند دښکار نه دې. امام ابوداود فرمائی چه دحدیث راوی ابو المهزم ضعیف دې اودواړه روایتونه دراوی وهم دې.

[۱۸۵۵] [2] حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ مَيْمُونِ بْنِ جَابَانَ، عَنْ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ كَعْبٍ، قَالَ: "الْجَرَادُ مِنْ صَيْدِ الْبَحْرِ".

دکعب بن مالک رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه ملخ دسمندر دښکارنه دې.

---

[1]: سنن الترمذي/الحج ۲۷ (۸۵۰)، سنن ابن ماجه/الصيد ۹ (۳۲۲۲)، (تحفة الأشراف: ۱٤۸۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۲/۳۰٦، ۳٦٤، ۳۷٤، ٤۰۷) (ضعيف جدا)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱٤٦۷۵، ۱۹۲۳۸) (ضعيف)

# بَابٌ فِي الْفِدْيَةِ

## دفدیې بیان

[۱۸۵۶]() حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ الطَّحَّانِ، عَنْ خَالِدٍ الْحَذَّاءِ، عَنْ أَبِي قِلَابَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ، فَقَالَ: "قَدْ آذَاكَ هَوَامُّ رَأْسِكَ؟" قَالَ: نَعَمْ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "احْلِقْ ثُمَّ اذْبَحْ شَاةً نُسُكًا، أَوْ صُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ أَطْعِمْ ثَلَاثَةَ آصُعٍ مِنْ تَمْرٍ عَلَى سِتَّةِ مَسَاكِينَ".

دکعب بن عجره رضی الله عنه نه روایت دي چه دحدیبیه په ورځو کښې نبی کریم ﷺ په وه باندې تیر شو اووې فرمائیل په تحقیق سره ستا دسر هوامو تاته تکلیف درکړې دې هغه اوویل هو نونبی کریم ﷺ اوفرمائیل سر او خر وه او یایوه چیلۍ قربانی کړه یا درې ورځې روژې اونیسه یا درې صاع کجوری په شپږ مسکینانو کښې تقسیم کړه.

**تشریح: قوله**: عن کعب بن عجرة ان رسول الله(صلی الله علیه و سلم) مربه زمن الحدیبیة فقال قد آذاك هوام راسك:

### شرح حدیث او په هغې باندې کلام من حیث الفقه:

هوام د هامة جمع ده ([2]) (لکه په دې حدیث کښې من کل شیطان وهامة) یعنی زهریله ځناور، مثلاً مار، لړم وغیره، دلته کښې ددې نه مراد د سر سپږې دی، دا حدیث تقریبا په ټولو صحاح ستة کښې شته، د کعب بن عجره په سر کښې تکلیف ورکونکې ځناور(سپږې) شوې وې، دا د عمرة الحدیبیه د سفر قصه ده، هغه اوبۀ ګرمولو دپاره د دیګچی لاندې اور بلولو، او سپږې دهغه د سر نه دورېدې، په روایت کښې راځی، والقمل یتهافت علی وجهه وهو یوقد تحت قدر، نبی کریم ﷺ چه کله دهغه خوا کښې تیر شو، نو تپوس ئې ترې اوکړو، نو هغه خپل حالت بیان کړو، په دې نبی کریم ﷺ اوفرمائیل : احلق ثم اذبح شاة نسکا او صم ثلثة ایام او اطعم ثلثة اصع من تمر علی ستة مساکین، په دې روایت کښې اختصار دې، مخکښې دا راروان دی، فانزل الله عزوجل فی فمن کان منکم مریضا او به اذی من راسه ففدیة الآیة، یعنی زما په باره کښې دا آیت مبارك نازل شو، په دې حضور ﷺ زۀ راؤغوختلم، او راته ئې اوفرمائیل، چه د خپل سر ویښته حلق کړه، او فدیه ورکړه، فدیه چه دلته کښې ذکر ده، هغه درې څیزونه دی، نسك یعنی دم، صوم ثلثه ایام، اطعام ستة مساکین.

---

[1]): صحیح البخاري/المحصر ۵(۱۸۱٤)، ٦(۱۸۱۵)، ۷(۱۸۱٦)، ۸(۱۸۱۷)، والمغازي ۳۵(٤۱۵۹)، وتفسیر البقرة ۳۲(٤۵۱۷)، والمرضي ۱٦(۵٦٦۵)، والطب ۱٦(۵۷۰۳)، وکفارات الأیمان ۱(٦۸۰۸)، صحیح مسلم/الحج ۱۰(۱۲۰۱)، سنن الترمذي/الحج ۱۰۷(۹۵۳)، سنن النسائي/الحج ۹٦(۲۸۵٤)،(تحفة الأشراف: ۱۱۱۱٤)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ۸٦(۳۰۷۹)، موطا امام مالك/الحج ۷۸(۲۳۷)، مسند احمد(٤/۲٤۲، ۲٤۳، ۲٤٤)(صحیح)

[2]) د هوام مقابل سوام دې هوام او سوام خو دواړه زهریله وی خو فرق ئې دا لیکلې دې چه اول قاتل وی لکه ماران وغیره، او دویم قاتل نه وی لکه مچې وغیره

## د فدئ سره متعلق څو مسائل فقهیه اختلافیه:

اوس دلته کښ څو مسائل اختلافی دی(۱) دا دم مطلق نسیکه او ذبیحه دې د امام مالك او امام احمد په نزد، او د احناف او شافعیه په نزد هدی ده، لهذا د رومبو دواؤ امامانو په نزد کوم ځائې چه غوارې دې لره ذبح کولې شی، په خلاف د احنافو او شافعیه، د دوی په نزد ددې محل د ذبح حرم دې،(۲) د طعام مقدار څه دې؟ د ائمه ثلثه په نزد لكل مسكين نصف صاع من كل شئ فالمجموع ثلثة آصع كما في الحديث،(۱) و عندنا لكل مسكين مثل صدقة الفطر فمن التمر والشعير صاع و من البر نصف صاع(۳) ددې اشياء ثلثه په مینځ کښ ترتیب واجب دې اوکه نه؟ جواب دادې، چه که حلق د ضرورت او عذر د وجې نه وی، نو بیا خو هیڅ ترتیب واجب نه دې باتفاق ائمه اربعه، لهذا په فدیه کښ چه څه ورکول غوارې ورکولې شی، او که حلق بغیر د عذر نه وی، په دې صورت کښ اختلاف دې، د احنافو په نزد په دې صورت کښ دم مقدم دې، که په دې باندې قدرت نه وی، نو بیا په باقی دوارو کښ اختیار دې، د احنافو دلیل په ورپسې روایت کښ دې، په هغې کښ دادی، امعك دم قال لا، او عند الشافعيه والحنابله روايتان ولا يجب الترتيب عند مالك مطلقا(تراجم بخاری) دا مسائل ددې مقام سره ډیر مناسب دی، ددې وجې نه اولیکلې شو.

[۱۸۵۷](۱) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ دَاوُدَ، عَنِ الشَّعْبِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهُ: "إِنْ شِئْتَ فَانْسُكْ نَسِيكَةً، وَإِنْ شِئْتَ فَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، وَإِنْ شِئْتَ فَأَطْعِمْ ثَلَاثَةَ آصُعٍ مِنْ تَمْرٍ لِسِتَّةِ مَسَاكِينَ".

د کعب بن عجره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ده ته اوفرمائیل که غوارې نو قربانی اوکړه اوکه غوارې نو درې ورځې روژې اونیسه اوکه غوارې نو درې صاعه کجورې شپږو مسکینانو ته ورکړه.

[۱۸۵۸](۲) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ. ح وحَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، وَهَذَا لَفْظُ ابْنِ الْمُثَنَّى، عَنْ دَاوُدَ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِهِ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ، فَذَكَرَ الْقِصَّةَ، فَقَالَ: "أَمَعَكَ دَمٌ؟" قَالَ: لَا، قَالَ: "فَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ تَصَدَّقْ بِثَلَاثَةِ آصُعٍ مِنْ تَمْرٍ عَلَى سِتَّةِ مَسَاكِينَ بَيْنَ كُلِّ مِسْكِينَيْنِ صَاعٌ".

د کعب بن عجره رضی الله عنه نه روایت دې چه دحدیبیه په دورځو کښې پهه ده باندې رسول الله ﷺ تیر شو او قصه یې بیان کړه رسول الله ﷺ تپوس اوکړو ایا تاسو سره څاروې شته هغه اووئیل نه نبی علیه السلام اوفرمائیل درې ورځې روژې اونیسه یا درې صاعه کجورې په شپږو مسکینانو ته یو صاع ورکړه.

(۱) لهذا حدیث الباب د جمهورو دلیل شو اود احنافو دلیل دادې چه په دې کښې اختلاف د روایاتو دې، کما في البذل (ص ۱٤٥) عن الحافظ ابن حجر ففي رواية للطبراني نصف صاع من تمر وفي رواية نصف صاع طعام وفي رواية نصف صاع حنطة، لهذا احتیاط په دې کښې دې کوم چه احنافو اختیار کړې دې. والله أعلم

(۱): أنظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱٤)(صحيح)

(۲): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲٤۱/٤، ۲٤۳)(صحيح)

[۱۸۵۹] (۱) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ أَخْبَرَهُ، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، وَكَانَ قَدْ أَصَابَهُ فِي رَأْسِهِ أَذًى فَحَلَقَ، "فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُهْدِيَ هَدْيًا بَقَرَةً".

دکعب بن عجرة رضي الله عنه نه روايت دې او دهغوی حالت داوو چه په سر کښې يې اذيت وو (يعنی سپږې په کښې شوی وی) نو هغوی خپل سر خرئيلې وو پس نبی کريم ﷺ هغه ته حکم کړې وو چه يوه غوا قربانی کړه.

[۱۸۶۰] (۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَنْصُورٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي أَبَانُ يَعْنِي ابْنَ صَالِحٍ، عَنْ الْحَكَمِ بْنِ عُتَيْبَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، قَالَ: أَصَابَنِي هَوَامُّ فِي رَأْسِي وَأَنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ حَتَّى تَخَوَّفْتُ عَلَى بَصَرِي، فَأَنْزَلَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى فِيَّ: فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ بِهِ أَذًى مِنْ رَأْسِهِ سورة البقرة آية ۱۹۶ الْآيَةَ، فَدَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ لِي: "احْلِقْ رَأْسَكَ وَصُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، أَوْ أَطْعِمْ سِتَّةَ مَسَاكِينَ فَرَقًا مِنْ زَبِيبٍ، أَوِ انْسُكْ شَاةً"، فَحَلَقْتُ رَأْسِي ثُمَّ نَسَكْتُ.

دکعب بن عجر رضي الله عنه نه روايت دې چه زما په سر کښې سپږې اوشوی اوزه دحديبيه په کال باندی (په دغه سفر کښې) دنبی کريم ﷺ سره ووم او (دسراذيت دومره شديد وو) چه ماته دخپل نظر انديښنه پيدا شوې وه پس الله تعالی زما په باره کښې دا ايت اوفرمائيلو: «فمن كان منكم مريضا أوبه أذى من رأسه» پس رسول الله ﷺ زه رااوبللم اوويې فرمائيل خپل سر اوخريه يا دری روژې اونيسه يا شپږ مسکينانو باندی يوه توکرئ اوځکې اوخوروه يايوه چيلئ قربانی کړه چانچه ما خپل سر اوخرئيلو او بيامی قربانی اوکړه.

[۱۸۶۱] (۳) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ مَالِكٍ الْجَزَرِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى، عَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ، فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، زَادَ: "أَيَّ ذَلِكَ فَعَلْتَ أَجْزَأَ عَنْكَ".

دکعب بن عجرة رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائی ددې نه (دريو کارونو) چه کوم يو هم کوئ نو ستاسو نه به کفايت کوی.

## بَابُ الْإِحْصَارِ

### باب د حج نه د بنديدلو (منع کولو) بيان.

### د احصار تعريف او په دې کښې اختلاف د علماء:

د احصار لغوی معنی حبس او منع ده، چا لره د څه کار نه منع کول، او په کتاب الحج کښې ددې نه مراد محرم لره دهغه د نسک (حج يا عمره، د کوم احرام ئې چه تړلې وی) نه منع کول، که دا منع کونکې څيز دشمن وی، يا مرض وغيره وی، دا مسلك د احنافو دې، وروی عن ابن عباس رضي الله عنهما و ابن مسعود رضي الله عنه و زيد بن ثابت رضي الله عنه، او د اکثر علماء ومنهم الائمة الثلثة په نزد يختص الاحصار بالعدو، دهغوی په نزد د دشمن نه علاوه که بل يو څيز محرم لره حرم ته د رسيدلو نه منع کړی، نو دا احصار شرعی نه دې، او داسې سړې ته به د جمهورو په نزد محصر نشی

(۱): انظر حديث رقم: ۱۸۵٦، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱٤) (ضعيف) (وقوله: «بقرة» منكر)
(۲): انظر حديث رقم: ۱۸۵٦، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱٤) (حسن)
(۳): انظر حديث رقم: ۱۸۵٦، (تحفة الأشراف: ۱۱۱۱٤) (صحيح)

وتیلې، او د احصار چه کوم حکم شرعي دې، هغه به په دهٔ باندې نه جاري کیږي. (بذل)

[۱۸۶۲]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ حَجَّاجٍ الصَّوَّافِ، حَدَّثَنِي يَحْيَى بْنُ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ الْحَجَّاجَ بْنَ عَمْرٍو الْأَنْصَارِيَّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ فَقَدْ حَلَّ وَعَلَيْهِ الْحَجُّ مِنْ قَابِلٍ". قَالَ عِكْرِمَةُ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ وَأَبَا هُرَيْرَةَ عَنْ ذَلِكَ، فَقَالَا: صَدَقَ.

دحجاج بن عمرو انصاري رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه دچا هډوکې مات شي یا په خپو باندې ګوډ شي نوهغه حلال شو (یعنی دهغه دپاره حلال کیدل مباح دي) اودائنده دپاره په هغه باندې حج دې . عکرمه فرمائي چه ما دابن عباس او ابوهریره رضی الله عنهما نه په دې باره کښې تپوس اوکړو نودې دواړه (دحجاج دروایت) تصدیق اوکړو.

من کسر او عرج[2] فقد حل: د کوم محرم چه په لاره کښې یو اندام مات شي، یا هغه ګوډ شي، نو د هغه دپاره شرعا حلالیدل جائز دي.

## په حدیث باندې کلام من حیث الفقه:

د ظاهریه په نزد دا حدیث بالکل په خپل ظاهر باندې دې، د هغوی په نزد نفس کسر او عرج سره سرې حلالیږي، عند الجمهور داسې نه ده، بلکه مطلب دادې، جاز له التحلل کما فی قوله علیه السلام اذا اقبل اللیل من ههنا و ادبر النهار من ههنا فقد افطر الصائم، ای حل له الافطار و دخل فی وقت الافطار، لیکن په دې جواز تحلل کښې د فقهاؤ په مینځ کښې تفصیل دې، عند الحنفیه یحل بالنیة والذبح والحلق، یعنی د حلالیدو په نیت سره ذبح او حلق اوکړي، نو هله به حلال شي، او د شافعیه او حنابله په نزد دا حدیث په اشتراط باندې محمول دې، یعنی که هغه د احرام تړلو په وخت کښې د حلالیدو شرط لګولې وو، نو اوس حلالیدې شي، او دم یعنی هدی به هم واجب نه وي، او د امام مالک رحمه الله په نزد شخص مذکور د طواف نه پس حلالیدې شي، بغیر د طواف نه حلالیدې نشي، په دې مسئله باندې به ډیر کلام په باب الاشتراط فی الحج کښې تیر شوې دې، هغې طرف ته رجوع کول پکار دي.

په دې حدیث کښې احصار بالمرض مذکور دې، چه دهغې احناف قائل دي، لهذا دا حدیث د ائمه ثلثه خلاف دې، هغوی ددې تاویل کوي، کما تقدم قریبا و فیه تامل کما لا یخفی،

وعلیه الحج من قابل: دا د محصر بالحج دپاره دې، چه په دې وخت کښې خو بغیر د نسك ادا کولو نه حلال شي، او بیا به آئنده کال حج کوي، د احنافو په نزد محصر بالحج باندې آئنده کال حج او عمره دواړه واجب دي، او عند الجمهور صرف حج پرې واجب دې.

[1]): سنن الترمذي/الحج ۹۶(۹۴۰)، سنن النسائي/الحج ۱۰۲(۲۸۶۳)، سنن ابن ماجه/المناسك ۸۵(۳۰۷۸)،( تحفة الأشراف: ۳۲۹٤، ٦۲٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/٤٥٠)، سنن الدارمي/المناسك ۵۷(۱۹۳٦)(صحیح)

[2]) عرج که د باب نصر نه وي نو ددې معنی ده دخه عارض په وجه ګوډ کیدل، اوکه د باب سمع نه وي نو ددې معنی به وي خلقة (پیدائشي) ګوډ کیدل، دلته اوله معنی مراد ده لهذا دا په فتحې د راء وئیل پکار دي.

## په محصر بالعمرة باندې څه واجبيږي:

او که يو سړې محرم بالعمره وی، نو دهغه حکم په راتلونکي حديث کښې ذکر دې، دهغې تفصيل دادې، چه عند الحنفيه په محصَر بالعمرة باندې هدی او(د زوال عذر نه پس) د عمرې قضاء دواړه څيزونه واجب دی، وهو المشهور عن احمد، او د مالکيه په نزد دواړه واجب نه دی، نه هدی او نه د عمرې قضاء، او د امام شافعی رحمه الله په نزد هدی خو واجب ده، قضاء واجب نه ده، وهو رواية عن احمد،

د احنافو دليل د حضور ﷺ عمرة القضاء ده، چه هم په دې نوم سره مشهور ده، معلومه شوه چه د عمرې قضاء وی، شافعيه ددې جواب ورکوی، په عمرة القضاء کښې د قضاء نه مراد قضيه او فيصله ده، دا هغه قضاء نه ده، کومه چه د اداء مقابل وی،

دا خبره دې هم واضحه وی، چه د شافعيه او حنابله په نزد دا حکم يعنی وجوب د دم په هغې صورت کښې دې، چه کله احصار بالعدو وی، او که احصار بالمرض وی، نو په دې صورت کښې چونکه دهغوی په نزد اشتراط ضروری دې، او اشتراط سره دهغوی په نزد دم هم ساقطيږی. کما تقدم قريبا.

[۱۸٦۳](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُتَوَكِّلِ الْعَسْقَلَانِيُّ، وَسَلَمَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَافِعٍ، عَنِ الْحَجَّاجِ بْنِ عَمْرٍو، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَنْ كُسِرَ أَوْ عَرِجَ أَوْ مَرِضَ"، فَذَكَرَ مَعْنَاهُ، قَالَ سَلَمَةُ بْنُ شَبِيبٍ: قَالَ: أَنْبَأَنَا مَعْمَرٌ.

حجاج بن عمرو دنبی کريم ﷺ نه روايت کوی چه هغه اوفرمائيل چه دچا هډوکی مات شو يا هغه ګوډ شو يابيمارشو لود پورته ذکر شوی حديث په شان ئې روايت کړو. سلمه بن شبيب په خپل سند کښې د انبا(يعنی مونږ ته ئې خبر راکړو) کلمه استعمال کړې ده(په دې شان سره هغوی دخپل شيخ نه دسماع کولو تصريح کړې ده.

[۱۸٦٤](2) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سَلَمَةَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا حَاضِرٍ الْحِمْيَرِيَّ يُحَدِّثُ أَبِي مَيْمُونَ بْنَ مِهْرَانَ، قَالَ: خَرَجْتُ مُعْتَمِرًا عَامَ حَاصَرَ أَهْلُ الشَّامِ ابْنَ الزُّبَيْرِ بِمَكَّةَ وَبَعَثَ مَعِي رِجَالٌ مِنْ قَوْمِي بِهَدْيٍ، فَلَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَى أَهْلِ الشَّامِ مَنَعُونَا أَنْ نَدْخُلَ الْحَرَمَ، فَنَحَرْتُ الْهَدْيَ مَكَانِي ثُمَّ أَحْلَلْتُ ثُمَّ رَجَعْتُ، فَلَمَّا كَانَ مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ خَرَجْتُ لِأَقْضِيَ عُمْرَتِي، فَأَتَيْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: "أَبْدِلِ الْهَدْيَ، فَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَصْحَابَهُ أَنْ يُبْدِلُوا الْهَدْيَ الَّذِي نَحَرُوا عَامَ الْحُدَيْبِيَةِ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ".

عمروبن ميمون وائی. ماد ابوحاضر حميری نه واوريدل هغه زما دپلار ميمون بن مهران نه بيان کولو چه په کوم کال اهل شام په مکه کښې ابن زبير په محاصره کړې وو زه دعمرې په غرض سره روان شوم زماسره دقوم څوافرادو خپلې قربانئ هم ليږلې و کله چه مونږ اهل شام ته اورسيدو نوهغوی مونږ حرم ته دداخليدونه بند کړو اوزه دعمرې دقضاء دپاره لاړم نوابن

(1): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ۳۲۹٤، ۳۲٤۱، ٦۲٤۱)(صحيح)
(2): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۵۸۷۳)(ضعيف)

عباس ته ورغلم او دهغوی نه مې پوښتنه اوکړه نوهغوی اوفرمائيل دخپلې قربانی هم بدل ورکړه بې شکه رسول الله ﷺ په عمره قضاء کښې خپلو صحابه کراموته فرمائیلی وو چه دحدیبیه په کال باندې هغوی کومې قربانی کړې وې چه دهغې عوض قربانی هم اوکړی

**تشریح: قوله:** عن عمرو بن ميمون قال سمعت اباحاضر الحميرى يحدث ابى ميمون بن مهران قال خرجت معتمرا عام حاصر اهل الشام ابن الزبير رضی الله عنه بمكة:

## شرح حديث:

میمون لره منصوب لوستل پکار دی، دا په ترکیب کښې د ابی نه بدل واقع دې، عمرو بن میمون وائی، چه ابوحاضر حمیری یوه ورځ زما پلار یعنی میمون بن مهران ته واقعه بیانوله، هغې لره ما هم اوریده،(هغه واقعه داده) ابوحاضر وائی، په کوم کال چه اهل الشام د عبدالله بن زبیر رضی الله عنه په مکه مکرمه کښې محاصره کړې وه، په هغه کال زهٔ د عمرې په ارادې سره دخپل وطن نه روان شوم، څه خلقو چه زمونږ د قوم نه وو، ماسره خپلې خپلې هدایا اولیږلې، دې دپاره چه زهٔ دهغوی د طرف نه قربانی اوکړم، چه کله زمونږ قافله شامی لښکر ته نزدې اورسیده، نو هغوی مونږ لره حرم ته د داخلیدو نه منع کړو( دا احصار عن العمره شو) لهذا ما خپله هدی هم هغه ځائې کښې ذبح کړه، بیا حلال شوم او خپل وطن ته واپس راغلم، بیا آئنده کال زهٔ دهغې عمرې د قضاء دپاره روان شوم، او د حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه مې د مسئلې باره کښې تپوس اوکړو، نو هغوی راته اوفرمائیل، چه د مخکښنئ هدی بدل هم ځان سره بوځه، ځکه چه حضور ﷺ هم هغې صحابه کرامو ته، کومو چه په حدیبیه کښې خپلې هدایا ذبح کړې وې، آئنده کال په عمرة القضاء کښې د تیر شوې کال هدی بدل ورکولو حکم فرمائیلې وو.

## ذكر ما يستفاد من الحديث:

ددې حدیث نه څو مسائل معلوم شول(۱) د محصر بالعمرة په ذمه د عمرې قضاء شته(۲) په هغه باندې دم(هدی) هم واجب ده، په دې دواړو مسئلو کښې دا حدیث د احناف او حنابله موافق دې(۳) د دم احصار محل ذبح حرم دې، او چونکه ابوحاضر چه اول کال کوم هدی ذبح کړې وه، هغه بې محله ذبح شوې وه، ددې وجې نه ابن عباس رضی الله عنه دهغې اعتبار اونه کړو، او هغه ته ئې حکم ورکړو، چه دوباره هدی بوځه، او هغې لره په حرم کښې ذبح کړه، د احنافو په نزد مسئله هم داده، د جمهورو په دې کښې اختلاف دې، دهغوی په نزد د دم احصار محل ذبح خپله محل حصر دې، دهغې په حرم کښې ذبح کول ضروری نه دی،(۴) څلورمه مسئله ددې نه دا معلومیږی، چه حدیبیه خارج حرم ده، ددې وجې نه حضور ﷺ د تیر شوې کال هدایاؤ اعتبار اونه فرمائیلو، ځکه چه هغه په حدیبیه کښې ذبح شوې وې، دا مسئله هم اختلافی ده، کوم چه ماته یاد دی،

مذاهب دادی: عند الحنفيه والشافعيه بعض الحديبية من الحرم و بعضها من الحل و عند مالك الكل من الحرم و عند احمد الكل من الحل، والله سبحانه و تعالى اعلم.

## په حدیث کښې یو تاریخي واقعې طرف ته اشاره:

دا خو په حدیث باندې کلام شو من حیث الفقه، او ددې حدیث یو بل جزء تاریخي دې، عام حصر اهل الشام، دا واقعه د ٧٣ھ ده، ددې خلاصه داده، د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه حکومت په حجاز او عراق باندې وو،[١] او د عبدالملك بن مروان په مصر او شام باندې حکومت وو، عبدالملك د عبدالله بن زبیر حکومت نه برداشت کولو، هغه په حجاز او عراق باندې هم خپله غلبه غوختله، د حضرت عبدالله بن زبیر رضي الله عنه قیام په مکه مکرمه کښې وو، نو هغه یعنی عبد الملك لوئې لښکر تیار کړو، دهغې امیر ئې حجاج بن یوسف الثقفي جوړ کړو، او په مکې مکرمې باندې د حملې کولو دپاره ئې اولیږلو، یوه میاشت پورې محاصره او زبردسته مقابله اوشوه، حجاج ته غلبه حاصله شوه، او هغه عبدالله بن زبیر په سولئ اوخیژولو، انا لله و انا الیه راجعون، عبدالله بن الزبیر رضي الله عنه د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه نمسي او ډیر زیات عبادت ګزار او ډیر لوئې بهادر او زړور وو، رضی الله عنه، او د دغې محاصرې په وخت کښې چه کله د حج وخت نزدې راغلو، نو عبدالملك خلقو لره د حج کولو نه او مکې مکرمې ته د داخلیدو نه منع کړل، چه هسې نه دا خلق حج ته لاړ شي، او هلته د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه په لاس باندې بیعت اوکړي، لکه چه په حدیث الباب کښې مذکور دی، او ددې وجې نه مصنف دې لره په باب الاحصار کښې ذکر کړې دې.

---

[١] اصل کښې عبدالله بن زبیر رحمه الله د هغه خلقو نه دې چا چه د یزید د بیعت نه انکار کړې وو او د مدینې منورې نه مکې معظمې ته راغلو او هلته ئې پناه واخستله. (هم په دې وجه هغه ته عائذ البیت وئیلې شي) چه په دې باندې یزید د هغه نه سخت خفه شوې وو، د یزید استخلاف په ٦٠ھ کښې شوې وو او په ٦٤ھ کښې څلور کلونو پورې هغه خلیفه وو، هم په دې دوران کښې ئې د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه سره د قتال کوشش کولو خو په مقصد کښې کامیاب نه شو تردې چه په ٦٥ھ کښې وفات شو. علامه زرقاني رحمه الله لیکي چه د یزید د مرګ نه پس د هغه خوئې معاویه بن یزید بن معاویه خلیفه شو او صرف درې میاشتې پس هغه هم وفات شو، پس هغه څوک هم خپل ولی عهد جوړ نه کړو په دې وجه د هغه د وفات نه پس دوه میاشتو پورې خو خلق هم داسې بغیر د خلیفه نه وو بیا د دې نه پس د مکې مکرمې ارباب حل وعقد د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه سره بیعت اوکړو پس په حجاز او عراق باندې د هغه حکومت وو او اهل مصر او شام د مروان په لاس بیعت اوکړو او د هغه حکومت په مصر او شام باندې شو. اهـ او په تاریخ الخلفاء للسیوطي کښې دی چه د یزید په وفات باندې اهل حجاز او عراق او خراسان د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه په لاس باندې بیعت اوکړو، اهل مصر وشام دې وختـه پورې د هغه سره بیعت نه وو کړې مګر د معاویه بن یزید د وفات نه پس هغوی هم دهغه سره بیعت کړې وو لیکن مروان بن الحکم بغاوت اوکړو او شام او مصر ئې ګیر کړل او دخپل مرګه پورې په هغې باندې قبضه ساتلې وه. آه، لیکن زه وائم چه عبدالله بن الزبیر سره بیعت په رجب ٦٤ھ کښې اوشو لکه څنګه چه د تاریخ په کتابونو کښې دی او مروان سره په ذیقعده ٦٤ھ کښې یعنی د ابن الزبیر نه څلور میاشتې پس، په دې وجه مروان ته باغي وئیلې شوی دی باقي د مروان خلافت زیات اونه چلیدو بلکه هغه د خپل خلافت نه نهه میاشتې پس د دنیا نه رخصت شو دهغه نه پس دهغه خوئې عبدالملك بن مروان په ٦٥ھ کښې خلیفه شو، ددهٔ خلافت تقریبا شل کاله وو د ٦٥ھ نه ٨٦ھ پورې، اود عبدالله بن الزبیر خلافت د ٦٤ھ نه واخله تر ٧٣ھ پورې یعنی نهه کاله پورې وو. په ٧٣ھ کښې ددهٔ د قتل قصه پیښه شوه چه هغې طرف ته په حدیث الباب کښې اشاره شوې ده. فسبحان من لا فناء لملکه.١٢.

## بَابُ دُخُولِ مَكَّةَ

### باب په مکه کښې د داخلیدو بیان

[۱۸۶۵]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ إِذَا قَدِمَ مَكَّةَ بَاتَ بِذِي طَوًى حَتَّى يُصْبِحَ وَيَغْتَسِلَ ثُمَّ يَدْخُلَ مَكَّةَ نَهَارًا، وَيَذْكُرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ فَعَلَهُ.

دابن عمرنه روایت دي چه هغوی به کله مکې ته راتلل نوپه وادئ ذی طوی کښې به ئې شپه تیروله تردې پورې چه صبابه شو اوغسل به ئې وکړو بیا به دورځی مکې ته داخلیدو اودنبی کریم ﷺ متعلق به ئې بیان کولو چه هغوی به هم داسې کول.

**قوله:** ان ابن عمر کان اذا قدم مکة بات بذی طوی حتی یصبح و یغتسل ثم یدخل مکة نهار الخ:

### د دخول مکه درې آداب مع اختلاف علماء:

مصنف ترجمة الباب مطلقادخول مکه قائم کړې دی ،بیا ئې دهغې لاندې چه کوم احادیث راوړې دی، دهغې نه د دخول مکه درې آداب مستفاد کیږی، د دخول مکه نه مخکښې غسل کول، دخول نهارا یعنی د ورځې داخلیدل، د ثنية العليا نه مکې ته داخلیدل، او د ثنية السفلى نه خارج کیدل، امام بخاری دې څلورو لره په څان څانله مستقل بابونو کښې ذکر کړې دی، ددې څلورو واړو تفصیل دادې:(۱) د دخول مکه دپاره غسل کول بالاتفاق مستحب دې، بیا ډیر علماء دا فرمائي چه د غسل په ځائې اودس هم کافی کیدې شی، او شافعیه وائی، که د غسل نه عاجز وی، نو تیمم دې اوکړی،(بذل) دا غسل د مالکیه په نزد لاجل الطواف دې(ځکه چه مکې ته داخلیدو سره سمدستی طواف کولې شی، او دا د مسجد حرام تحیه ده) او د باقی ائمه ثلثه په نزد د دخول مکه دپاره دې

(۲) په دې کښې د علماؤ درې اقوال دی، د احناف او مالکیه په نزد دخول مکه نهارا مستحب دې، وهو اصح الوجهين للشافعيه، دویم قول دادې، هما سواء، یعنی دخول لیلا او نهارا دواړه برابر دی، ددې قائل دی، طاؤس، ثوری، ابوالحسن ماوردی رحمهم الله من الشافعيه واليه ميل الحنابلة، دریم قول دادې، چه دخول لیلا اولی دې، دې لره ختیار کړې دې، حضرت عائشه رضي الله عنها، او عمربن عبدالعزیز رحمه الله او سعید بن جبیر رحمه الله، څلورم قول چه د بعضو علماؤ نه منقول دې، هغه دادې، چه کوم سړې د خپل وخت امام او مقتدی وی، دهغه دپاره دخول نهارا اولی دې، دې دپاره چه خلق هغه سره ملاقات اوکړی، او د هغه نه مستفید شی.

حافظ ابن حجر رحمه الله لیکلي دی، چه د نبی کریم ﷺ معمول په دې کښې دخول نهارا وو، او دخول لیلاً د هغوی نه صرف یو ځل یعنی عمرة الجعرانه کښې ثابت دی، لکه امام نسائی د

---

[1]: صحیح البخاري/الصلاة ۸۹(۴۸۴)، والحج ۳۸(۱۵۷۳)، ۳۹(۱۵۷۴)، ۱۴۸(۱۷۶۷)، ۱۴۹(۱۷۶۹)، صحیح مسلم/الحج ۳۸(۱۲۵۹)، سنن النسائي/الحج ۱۰۳(۲۸۶۲)،( تحفة الأشراف: ۷۵۱۳)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۳۱(۸۵۴)، سنن ابن ماجه/المناسك ۲۶(۲۹۴۰)، موطا امام مالك/الحج ۲(۶)، مسند احمد(۲/ ۸۷)، سنن الدارمي/المناسك ۸۰(۱۹۶۸)(صحیح)

دخول مكة ليلا مستقل باب تړلې دې، او په هغې کښې ئې د محرش کعبی حديث راوړلې دې، د عمرة الجعرانه والا (من تراجم البخاری) دريم او څلورم ادب په مخکښې حديث کښې راروان دې.

[۱۸٦٦] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ جَعْفَرٍ الْبَرْمَكِيُّ، حَدَّثَنَا مَعِنٌ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَابْنُ حَنْبَلٍ، عَنْ يَحْيَى. ح وحَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ جَمِيعًا، عَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَدْخُلُ مَكَّةَ مِنَ الثَّنِيَّةِ الْعُلْيَا"، قَالَا: عَنْ يَحْيَى، إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَدْخُلُ مَكَّةَ مِنْ كَدَاءٍ مِنْ ثَنِيَّةِ الْبَطْحَاءِ وَيَخْرُجُ مِنَ الثَّنِيَّةِ السُّفْلَى"، زَادَ الْبَرْمَكِيُّ: "يَعْنِي ثَنِيَّتَيْ مَكَّةَ"، وَحَدِيثُ مُسَدَّدٍ أَتَمُّ.

دابن عمرنه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ به دغونډۍ دپورتنۍ حصې دطرف نه مکې ته تشريف راوړلو مسدد اواحمدبن حنبل ديحيٰ نه نقل کوی او وائی چه نبی کريم ﷺ و به د بطحا دغونډۍ نه دکداء په طرف مکې ته تشريف راوړلو اودغونډۍ په لاندې طرف به واپس تللومکی ته (عبدالله بن جعفر) مزيد وائی چه دمکې دوه غونډۍ مراد دی اودمسدد روايت زيات کامل دې

**تشريح**: **قوله**: كان يدخل مكة من الثنية العليا: د ثنية عليا نوم كداء دې (۲) (بفتح الكاف المد) او د ثنية سفلى نوم كدیٰ دې، (بضم الكاف والقصر) په صحيح بخاری کښې ددې برعکس دې، يعنی کدی لره ئې اعلی مکه او کداء لره ئې اسفل مکه ليکلې دې، علماؤ دهغې تخطيه کړې ده، چه دا سهو ده، مخکښې حديث عائشة رضي الله عنها راروان دې.

و دخل فى العمرة من كُدیٰ: د ابوداؤد په دې روايت کښې دادی، چه نبی کريم ﷺ د فتح مکه په موقع مکې ته د کُداء نه داخل شوې وو، او په سفر عمره کښې د کدی نه داخل شوې وو، دا دعائشې رضي الله عنها دمشهورحديث نه خلاف دی، باقی په ټولو کښې مطلقًا دا دی، (۳) چه نبی کريم ﷺ مکې ته د علی مکې نه يعنی بره لارې نه داخل شوې وو، (که سفر د حج وو او که د عمرې) حافظ ابن قيم په زاد المعاد کښې د ابوداؤد ددې روايت لاندې ليکلې دی، چه نبی کريم ﷺ عمره کښې مکې مکرمې ته د کدی نه داخل شوې وو، حالانکه دا خبره د تحقيق نه خلاف ده، حضرت په بذل کښې په دې باندې په تفصيل سره کلام فرمائيلې دې، او د ابوداؤد دې روايت لره ئې غيرمعتمد ګرزولې دې، او دا ئې هم ليکلې دی، چه د ابوداؤد دا روايت د

---

(۱): صحيح البخاري/الحج ٤٠(١٥٧٦)، ٤١(١٥٧٧)، صحيح مسلم/الحج ٣٧(١٢٥٧)، سنن النسائي/الحج ١٠٥(٢٨٦٦)،( تحفة الأشراف: ٧٨٦٩، ٨١٤٠، ٨٣٨٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٣٠(٨٥٣)، سنن ابن ماجه/المناسك ٢٦(٢٩٤٠)، مسند احمد(٢/١٤، ١٩)، سنن الدارمي/المناسك ٨١(١٩٦٩)(صحيح)

(۲) هم ددې نوم حجون هم دې او دا په لاره د معلی (کومه چه د مکې والو قبرستان دې) باندې راکوزیږی، او نن صبا دا ځائې په معاهده نوم باندې مشهور دې هم دلته قصر الملک هم دې او د رابطه اسلامی مرکز هم (جزء الحج).

(۳) لکه چه په خپله ابوداؤد کښې ددې نه پس دعائشې رضی الله عنها حديث راروان دې په هغې کښې هم مطلق دخول مذکور دې.

بيهقي د روايت نه خلاف دي[1]، سره ددې نه چه طريق کښې اتحاد دي.

[۱۸٦٧] [2] حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَخْرُجُ مِنْ طَرِيقِ الشَّجَرَةِ وَيَدْخُلُ مِنْ طَرِيقِ الْمُعَرَّسِ".

دعبدالله ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي کريم ﷺ به (دمديني منورې نه وتلو نو دشجره لاربه ئې اختياروله (يعني دذوالحليفه په لاره په دغه زمانه کښې دغلته کښې يوه اونه هم نه وه) او د معرس په لاره باندې به داخليدو مدينې ته.

**تشريح: قوله**: كان يخرج من طريق الشجرة و يدخل من طريق المعرس: ددې حديث تعلق د دخول مکه سره نه دې، بلکه د دخول و خروج عن المدينه سره دې، په اصل کښې دا د اول حديث ټکړه ده، مصنف دې لره د هغې نه جدا کړه، په صحيح مسلم کښې دا دواړه مضامين په يو حديث کښې ذکر دی، فثبت المناسبة بين الحديث والترجمة.(بذل)

## شرح حديث:

دا شجره په ذوالحليفه کښې ده، او د معرس تفسير[3] بعضو خو په مسجد ذوالحليفه سره کړې دې، او د بعضو د کلام نه معلوميږي، چه هغه مستقل ځائې دې، مسجد ذوالحليفه سره نزدې، حافظ رحمه الله وائي، چه شجره او معرس، په دې دواړو کښې هر يو د مدينې نه شپږ ميله فاصله کښې دې، زۀ د شارحينو د کلام نه پوهه شوم، چه ذوالحليفه يو لوئې ځائې دې، او هلته کښې څه قدر فاصله سره دا دواړه لارې دی(يعني طريق الشجرة وطريق المعرس) د يوې لارې نه د نبي کريم ﷺ معمول د خروج وو، او بلې لارې باندې معمول د دخول وو، په عون المعبود کښې ئې ليکلې دی، مطلب دادې، چه کله به نبي کريم ﷺ د مدينې نه وتلو، نو په طريق الشجره به وتلو، چه مسجد ذوالحليفه سره نزدې ده، او چه کله به داخليدو، نو په طريق المعرس به داخليدو، او دا لاره د مسجد ذوالحليفه نه لرې لاندې ده، ابن بطال وائي، او دا هم داسې ده، لکه څرنګه به چه نبي کريم ﷺ د اختر په ورځ عيد ګاه ته تلو راتللو کښې لاره بدلوله.(چه دهغې مصلحتونه مشهور دی) قال المنذري و اخرجه مسلم والبخاري(عون)

[۱۸٦٨] [4] حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: "دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ الْفَتْحِ مِنْ كَدَاءٍ مِنْ أَعْلَى مَكَّةَ وَدَخَلَ فِي الْعُمْرَةِ مِنْ كُدًى"، قَالَ: وَكَانَ عُرْوَةُ يَدْخُلُ مِنْهُمَا جَمِيعًا، وَكَانَ أَكْثَرُ مَا كَانَ يَدْخُلُ مِنْ كُدًى، وَكَانَ أَقْرَبَهُمَا إِلَى مَنْزِلِهِ.

دعائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله ﷺ دفتح په کال باندې دهغې دپورتنې حصې نه دکداء په طرف باندې داخل شوې وو او په عمره کښې په کدئ طرف (يعني په لاندې طرف

---

[1]: خو دا خبره صحيح نه ده، په اصل کښې دلته په بذل المجهود کښې د بيهقي روايات نقل کولو کښې خلط شوې دې کنې په واقع کښې د ابوداؤد دا روايت د بيهقي مطابق دې.

[2]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۷۸۷۰)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۳۷(۱۲۵۷)، مسند احمد(۲/۲۹-۳۰)(صحيح)

[3]: په دې باندې نور کلام دکتاب الحج په آخرى حديث کښې هم راروان دې.

[4]: صحيح البخاري/الحج ۴۱(۱۵۷۸)، والمغازي ۴۹(۴۲۹۰)، صحيح مسلم/الحج ۳۷(۱۲۵۷)،( تحفة الأشراف: ۱٦۷۹۷)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۳۰(۸۵۳)، مسند احمد(٦/۵۸، ۲۰۱)(صحيح)

راغلی وو او عروه به په دواړه لاروباندې راتللو(کله په یوطرف اوکله په بل طرف) اودا په اکثرو وختونو کښې کندې طرف ته(لاندې طرف باندې) داخلیدو اوداطرف دهغوی منزل ته زیات قریب وو.

[۱۸۶۹]()[1] حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا دَخَلَ مَكَّةَ دَخَلَ مِنْ أَعْلَاهَا وَخَرَجَ مِنْ أَسْفَلِهَا".

عائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ به کله مکې ته داخلیدو نو دهغې دپورتنې حصې نه به ئې تشریف راوړو(په دې لاره کښې دمکې معروف قبرستان دې او په دې طرف باندې راتلو کښې هغوی ته اسانی وه او په واپسئ کښې به په لاندې طرف باندې وتلو.

## بَابٌ فِي رَفْعِ الْيَدَيْنِ إِذَا رَأَى الْبَيْتَ

### باب: د بیت الله په لیدوسره د لاسونو پورته کولو بیان

دا ترجمة الباب ماته په صحاح سته کښې صرف په دواؤ کتابونو کښې ملاؤ شوې دې، سنن ابوداؤد او سنن ترمذی، امام ابوداؤد د مطلق رفع الیدین باب قائم کړې دې، او امام ترمذی په کراهة د رفع سره ترجمة الباب قائم کړې دې، باب فی کراهیة رفع الید اذا رآی البیت، او بیا ئې تحت الباب صرف حدیث د جابر رضي الله عنه چه په منع باندې دلالت کوی، راوړې دې، امام ابوداؤد حدیث د جابر رضي الله عنه نه علاوه یو هغه حدیث هم ذکر کړې دې، چه په هغې کښې د رفع الیدین ثبوت دې، یعنی د باب دریم حدیث ثم اتی الصفا فعلاه حیث ینظر الی البیت فرفع یدیه: لیکن په دې باندې دا اشکال کړې شوې دې، چه دا رفع خو دعاء علی الصفا دپاره وه، نه چه عند رؤیة البیت دپاره، دا ځانله خبره ده، چه هلته نه بیت الله شریف په نظر راتلو، بعضو وئیلې دی، چه دا خبره نشته، بلکه په دې کښې دواړه طرفونه دی، دا رفع للدعاء هم وه، او عند رؤیة البیت هم وه، ځکه چه دعاء په صفا باندې هغه ځائې کښې غوختلې شی، د کوم ځائې نه چه بیت الله شریف په نظر راځی.

[۱۸۷۰]()[2] حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، أَنَّ مُحَمَّدَ بْنَ جَعْفَرٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا قَزَعَةَ يُحَدِّثُ، عَنِ الْمُهَاجِرِ الْمَكِّيِّ، قَالَ: سُئِلَ جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ عَنِ الرَّجُلِ يَرَى الْبَيْتَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ، فَقَالَ: مَا كُنْتُ أَرَى أَحَدًا يَفْعَلُ هَذَا إِلَّا الْيَهُودَ، وَقَدْ حَجَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَكُنْ يَفْعَلُهُ".

دعبدالله بن جابر رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو چه خلک بیت الله اووینی نولاس دی اوچتوی هغوی اوفرمائیل ما د یهودو نه علاوه په داسې عمل کولو باندې بل څوک نه دی لیدلی(هغه خلق بیت المقدس ته ګوری اولاسونه پورته کوی او مونږ د رسول الله ﷺ په موجودګئ کښې دهغه سره حج کړې دې نوهغوی داسې نه کول.

---

[1]: صحیح البخاري/الحج ٤١(١٥٧٧)، صحیح مسلم/الحج ٣٧(١٢٥٨)، ن الکبري/ الحج ٢٩(٤٢٤١)، سنن الترمذي/الحج ٣٠(٨٥٣)،(تحفة الأشراف: ١٦٩٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٠/٦)(صحیح)

[2]: سنن الترمذي/الحج ٣٢(٨٥٥)، سنن النسائي/الحج ١٢٢(٢٨٩٨)، سنن الدارمي/المناسك ٧٥(١٩٦١)،( تحفة الأشراف: ٣١١٦)(ضعیف)

سئل جابر بن عبدالله عن الرجل يرى البيت يرفع يديه فقال ما كنت ارى احدا يفعل هذا الا اليهود:
په دې مسئله کښې د فقهاؤ اختلاف دې، او روايات حديثيه هم مختلف دی، د حضرت جابر رضي الله عنه په دې حديث کښې خو نفی مذکور ده، ليکن مثبتين رفع ددې حديث تضعيف کړې دې، د دواؤ وجهو نه، يو دا چه ددې په سند کښې مهاجر مکي دې، چه مجهول دې، دويم ددې وجې نه، چه په اکثر رواياتو کښې ثبوت د رفع دې، دهغې تولو نه هغه حديث چه په کتاب الصلوة کښې د رفع اليدين په مسئله کښې تير شوې دې، يعنی حديث ابن عباس رضي الله عنه مرفوع ترفع الايدى فى سبعة مواطن افتتاح الصلوة و استقبال البيت الخ، امام بيهقی په خپل سنن کښې دواړه قسمه روايات ذکر کولو نه پس فرمائيلې دی، چه د ثبوت روايات اګر چه مرسل دی، ليکن د اهل علم په نزد هم هغه اشهر دی. اهـ

## په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

او په فقهاؤ کښې حضرت امام احمد ددې قائل دې، يو روايت د احنافو هم داسې دې، ليکن راجح عندنا نفی ده، صرح به الطحاوی، دغه شان مالکيه هم ددې قائل دی، د شافعيه دواړه روايتونه دی، امام نووی رحمه الله او بيهقی رحمه الله ثبوت ته ترجيح ورکړې ده.
روايات متعارضه کښې تطبيق په څو طريقو سره کړې شوې دې،(۱) ملا علی قاری رحمه الله فرمائي د ثبوت رفع روايات په اول کرت باندې محمول دی، او د نفی په هرکرت باندې محمول دی، يعنی په بيت الله باندې چه کله اول کرت نظر پريوته نو نبی کريم ﷺ رفع يدين اوکړل، او بيا هر کرت نظر پريوتلو سره ئې نه دی کړې.(۲) حضرت سهارنپوری رحمه الله فرمائي د ثبوت رفع د رواياتو تعلق هغې رفع يدين سره دې، چه د دعا په وخت کښې لاسونه اوچتولې شی، او د نفی تعلق هغې رفع سره دې، چه تعظيما للبيت وی، څرنګه چه په افتتاح الصلوة کښې وی.

**تشريح: قوله**: ما كنت ارى احدا يفعله الا اليهود:
يعنی مسلمانان بيت الله شريف ليدلو سره چرته رفع اليدين کوی، دا خو د يهوديانو طريقه ده، چه کله هغوی خپله قبله اوينی، چه بيت المقدس ده، نو رفع يدين کوی، او که مراد دا دې، چه هغوی بيت الله شريف ليدلو سره رفع يدين کوی، نو په دې صورت کښې به په ظاهر کښې مطلب دا وی، چه هغوی تحقيرا داسې کوی، اشارة الى هدمه، نه تعظيما، ځکه چه هغوی خو د مسلمانانو د قبلې مخالف او دشمنان دی.(بذل)

[۱۸۷۱]()[1] حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا سَلَّامُ بْنُ مِسْكِينٍ، حَدَّثَنَا ثَابِتٌ الْبُنَانِيُّ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ الْأَنْصَارِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمَّا دَخَلَ مَكَّةَ طَافَ بِالْبَيْتِ وَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ خَلْفَ الْمَقَامِ، يَعْنِي يَوْمَ الْفَتْحِ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم ﷺ کله مکې ته داخل شو نو د بيت الله طواف ئې اوکړو او دمقام ابراهيم شاته په دوه رکعته اوفرمائيل يعنی دفتح مکې په ورځ باندې.

[1]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۳۵۶۲)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الجهاد ۳۱(۱۷۸۰)، مسند احمد(۵۳۸/۲)(صحيح)

[۱۸۷۲]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا بَهْزُ بْنُ أَسَدٍ، وَهَاشِمٌ يَعْنِي ابْنَ الْقَاسِمِ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ الْمُغِيرَةِ، عَنْ ثَابِتٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ رَبَاحٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: "أَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَخَلَ مَكَّةَ، فَأَقْبَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْحَجَرِ فَاسْتَلَمَهُ، ثُمَّ طَافَ بِالْبَيْتِ، ثُمَّ أَتَى الصَّفَا فَعَلَاهُ حَيْثُ يَنْظُرُ إِلَى الْبَيْتِ، فَرَفَعَ يَدَيْهِ فَجَعَلَ يَذْكُرُ اللَّهَ مَا شَاءَ أَنْ يَذْكُرَهُ وَيَدْعُوهُ"، قَالَ: وَالْأَنْصَارُ تَحْتَهُ، قَالَ هَاشِمٌ: فَدَعَا وَحَمِدَ اللَّهَ وَدَعَا بِمَا شَاءَ أَنْ يَدْعُوَ.

عبدالله بن رباح دابوهريره ﷺ نه روايت کوی فرمائی چه رسول الله ﷺ تشريف راوړو او مکې ته داخل شو اود حجراسود طرف ته ورغې هغه ئې ښکل کړو بيائې دبيت الله طواف اوکړو بياصفا طرف ته راغې اوپه هغه باندې بره اوختلو دکوم ځائې نه چه بيت الله شريف په نظر راتلو بيا هغوی خپل دواړه لاسونه پورته کړل اودالله ذکرئې کولو څومره چه دالله پاک خوښه وه اودعائې کوله اوانصاردهغه سره وو د حديث راوی هاشم وائی دعائې اوفرمائيله اودالله حمدئې اوکړو اوڅه چه ئې خوښ وو هغه ئې دالله تعالی نه اوغوښتل.

والانصاب تحته : دا د احجار صفت دې، يعنی احجار منصوبه(نصب کړې شوې کاڼړی) دهغوی لاندې وو، غالبا ددې نه هغه کاڼړی مراد دې، چه په صفا ډهيرئ باندې ختلو دپاره هلته کښې ايخودلې شوې وو، د پوړو پشان، او د حضرت رائې په بذل کښې داده، چه شايد ددې نه مراد اصنام دی(مورتی) چه هلته کښې صفا باندې د مخکښې نه کافرانو ايخودلې وو، او د تحته مطلب دادې، چه نبی کريم ﷺ په هغې باندې اودريدلو، هغه د ښپو لاندې کولو دپاره، او په بعضو نسخو کښې د انصاب په ځائې انصار دې، يعنی حضور ﷺ خو صفا باندې وو، او بعضې انصاری صحابه کرام د هغوی مخښې ته د ډهيرئ نه لاندې ولاړ وو،(۲) دا واقعه د فتح مکه د موقع ده.

## بَابٌ فِي تَقْبِيلِ الْحَجَرِ

### باب د حجر اسود ښکلول

[۱۸۷۳]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَابِسِ بْنِ رَبِيعَةَ، عَنْ عُمَرَ، أَنَّهُ جَاءَ إِلَى الْحَجَرِ فَقَبَّلَهُ، فَقَالَ: "إِنِّي أَعْلَمُ أَنَّكَ حَجَرٌ لَا تَنْفَعُ وَلَا تَضُرُّ، وَلَوْلَا أَنِّي رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُكَ مَا قَبَّلْتُكَ".

---

[1]: انظر حديث رقم(۱۸۷۱)،( تحفة الأشراف: ۱۳۵٦۲)(صحيح)

[2]، په دې باندې به سوال کيږی چه دا صحابه کرام د حضورپاک ﷺ سره صفا ته ولې نه اوختل؟ جواب که دا ختل د سعی بين الصفا والمروه دپاره وې نو صحابه به هم پورته ختلې وې ليکن دا ختل خو دبل غرض دپاره وو يعنی دعا او صحابؤ ته دخطاب وغيره دپاره او ددې نه مخکښې چه کوم طواف حضور ﷺ کړې وو هغه دعمرې طواف نه وو چه دهغې نه پس حضور ﷺ سعی کړې وې. والله أعلم (بذل)

[3]: صحيح البخاري/الحج ۵۰(۱۵۹۷)، ۵۷(۱٦۰۵)، ٦۰(۱٦۱۰)، صحيح مسلم/الحج ٤۱(۱۲۷۰)، سنن الترمذي/الحج ۳۷(۸٦۰)، سنن النسائي/الحج ۱٤۷(۲۹٤۰)،( تحفة الأشراف: ۱۰٤۷۳)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ۲۷(۲۹٤۳)، موطا امام مالك/الحج ۳٦(۱۱۵)، مسند احمد(۲۱/۱، ۲٦، ۳٤، ۳۵، ۳۹، ٤٦، ۵۱، ۵۳، ۵٤)، سنن الدارمي/المناسك ٤۲(۱۹۰٦)(صحيح)

ترجمه: دعمر رضي الله عنه روايت دي چه هغوی دحجر اسود خواته راغلل او هغه ئې ښکل کړو بيائي اوفرمائيل بې شکه زه پوهيږم چه ته صرف يو کاڼړې ئې نه نفع ورکولې شې او نه نقصان که چرې ما رسول الله ﷺ لره نه وې ليدلې چه ته ئې ښکل کړې وې نوما به ته نه وې ښکل کړې.

عن عمر رضي الله عنه انه جاء الى الحجر فقبله فقال انى اعلم انك حجر لا تنفع و لا تضر الخ:

حضرت عمر رضي الله عنه يو ځل د حجر اسود تقبيل اوکړو، او دهغې نه پس ئې اوفرمائيل، زهٔ پوهيږم، چه تهٔ يو کاڼړې ئې، نه تهٔ نفع رسولې شې، او نه نقصان رسولې شې، دا حديث په صحاح سته کښې موجود دې، په صحاح کښې خو بس دومره قدرې دې، حافظ رحمه الله وائي، د حاکم په روايت کښې دا زياتوالې دې، چه د حضرت عمر رضي الله عنه دې فرمائيلو نه پس حضرت على رضي الله عنه اوفرمائيل بل يا امير المؤمنين انه ينفع و يضر، او بيا ئې د حضور ﷺ ارشاد نقل کړو، چه ما دهغوی نه واؤريدل، چه حجر اسود لره به د قيامت په ورځ ميدان حشر ته راؤړلې شى، او دهٔ ته به ګويائى ورکړې شى، کومو خلقو چه په ايمان او توحيد سره ددهٔ استلام کړې وى، دهغوی په حق کښې به دې ګواهى ورکوى، علماؤ ليکلې دى، حضرت عمر رضي الله عنه چه څه دې باره کښې اوفرمائيل هغه ددې مصلحت د وجې نه، چه کوم خلق نوې نوې مسلمانان شوې دى، د استلام حجر د وجې نه چرته هغوی په شك او تردد کښې مبتلاء نشى، او دې لره د عبادت اصنام د قبيلې نه اونه ګڼړى.

د حجر اسود په فضائلو کښې روايات په صحيحينو کښې خو نشته، په ابوداؤد کښې هم نشته، البته په ترمذى شريف او نور کتابونو د احاديثو کښې شته، په بذل المجهود کښې حضرت بعضې نقل کړې دى، هلته کښې دې اوکتلې شى، دلته کښې بخوف اطالة مونږ نه ليکلو.

ولولا انى رايت رسول الله (صلى الله عليه و سلم) يقبلك ما قبلتك:

شارحينو ليکلې دى، چه ددې نه يوه قاعده کليه معلومه شوه، هغه دا چه په امورو د دين کښې اصل څيز اتباع د شارع ده، که مونږ ته دهغې کار علت او حکمت معلوم وى، او که نه، د شارع مخښبې ته سر ټيټول پکار دى.

## باب استلام الأركان

### باب د کعبې د ارکانو استلام (لاس لګول او ښکلولو) بيان

د بيت الله په ارکان اربعه باندې کلام او دهغې تعارف په باب وقت الاحرام کښې رايتك تصنع اربعا لم اراحدا من اصحابك يصنعها الخ د لاندې تير شوې دې، استلام يا خو سلام بمعنى د تحيه نه ماخوذ دې، (ګويا کاڼړې ښکلول، دهغې تعظيم او سلام کول دى) يا سلام بکسر السين بمعنى الحجارة يعنى مس الحجارة، او وئيلې شوې دى، چه دا ماخوذ دې د لامه نه، بمعنى دوسلې، نو څرنګه چه انسان د دوسلې په ذريعې سره د دشمن نه محفوظ کيږى، دغه شان کوم سړې چه حجر اسود مس کړى، هغه ګويا د عذاب نه محفوظ کيږى. (اوجز)

[۱۸۷٤]() حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، حَدَّثَنَا لَيْثٌ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "لَمْ أَرَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ مِنَ الْبَيْتِ إِلَّا الرُّكْنَيْنِ الْيَمَانِيَيْنِ".

دابن عمر نه روایت دې چه ما رسول اللهﷺ لره اولیدلو چه هغوی د بیت الله شریف صرف د دور یمانی ارکانو استلام کولو.

[۱۸۷٥]() حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَالِمٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، "أَنَّهُ أُخْبِرَ بِقَوْلِ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، إِنَّ الْحِجْرَ بَعْضُهُ مِنَ الْبَيْتِ، فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ: وَاللَّهِ إِنِّي لَأَظُنُّ عَائِشَةَ إِنْ كَانَتْ سَمِعَتْ هَذَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، إِنِّي لَأَظُنُّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَتْرُكِ اسْتِلَامَهُمَا إِلَّا أَنَّهُمَا لَيْسَا عَلَى قَوَاعِدِ الْبَيْتِ، وَلَا طَافَ النَّاسُ وَرَاءَ الْحِجْرِ إِلَّا لِذَلِكَ".

ابن عمر رضی الله عنه ته دعائشې رضی الله عنها دابیان اوښودلې شو چه دحجر څه حصه دبیت الله نه ده نوهغوی اوفرمائیل قسم په الله باندې زماخیال دې چه عائشې رضی الله عنها نه که داخبره د رسول اللهﷺ نه اوریدلې ده نوزه پوهیږم چه رسول اللهﷺ هم ددې ارکانو استلام صرف ددې وجې نه ترک فرمائیلې وو چه دادبیت الله شریف په اصل بنیادونو باندې نه دی اوخلق هم دحجر نه بهر په دې بناء باندې طواف کوي.

**ان الحجر بعضه من البیت:** دا حجر د حاء په کسرې سره دې، چه هغې ته حطیم هم وئیلې شی، چه د خانه کعبې شمال طرف ته د نصف دائرې په شکل کښې د احاطې په طور باندې یو دیوال دې، تقریبا د یو سړی د قد برابر اوچت، د بیت الله شریف د عمارت نه لره فاصله کښې، دا دیوال ددې ظاهرولو دپاره قائم کړې شوې دې، چه ددې دننه حصه هم په خانه کعبه کښې داخل ده، اګر چه د کعبې شریفې عمارت ددې نه مخکښې پوره شوې دې، ددې منشاء مخکښې چرته دیو حدیث دلاندې تیره شوې ده، ددې وجې دې حصې لره هم په طواف کښې شاملولې شی.

[۱۸۷٦]() حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ أَبِي رَوَّادٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدَعُ أَنْ يَسْتَلِمَ الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ وَالْحَجَرَ فِي كُلِّ طَوْفَةٍ"، قَالَ: وَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهُ.

دابن عمرنه روایت دې چه رسول اللهﷺ به په هیڅ یوچکر کښې درکن یمانی او حجراسود استلام نه پریخودلو، عبدالله بن عمر به هم داسې کول.

[1]: صحيح البخاري/الحج ٥٧(١٦٠٦)، ٥٩(١٦١١)، صحيح مسلم/الحج ٤٠(١٢٦٨)، سنن النسائي/الحج ١٥٧(٢٩٥٢)،(تحفة الأشراف: ٦٩٠٦، ٦٩٨٨)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ٢٧(٢٩٤٦)، مسند احمد(٢/٨٦، ٨٩، ١١٤، ١١٥، ١٢٠)(صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٦٩٥٨)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ٥٩(١٦٠٨)، صحيح مسلم/الحج ٤٠(١٣٣٥)، سنن النسائي/الحج ١٥٦(٢٩٥١)، سنن ابن ماجه/المناسك ٢٧(٢٩٤٦)، مسند احمد(٢/٨٦، ١١٤، ١١٥)، سنن الدارمي/المناسك ٢٥(١٨٨٠)(صحيح)

[3]: سنن النسائي/الحج ١٥٦(٢٩٥٠)،( تحفة الأشراف: ٧٧٦١)(حسن)

## بَابُ الطَّوَافِ الْوَاجِبِ

### باب: د واجب طواف بيان

د طواف واجب نه مراد طواف زيارت دي، دې ته طواف افاضه هم وئيلې شي، په حج کښې درې طوافونه وی، طواف قدوم، طواف زيارت، طواف وداع.

[۱۸۷۷]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُتْبَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "طَافَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ عَلَى بَعِيرٍ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په حجة الوداع کښې په اوښ باندې سور شو او طواف ئې اوکړو هغوی ته به په امسا باندې رکن مسه کولو.

عن ابن عباس ان رسول الله(صلى الله عليه و سلم) طاف في حجة الوداع على بعيره:

### په حديث کښې امور اربعه وضاحت طلب:

په دې حديث کښې څو امور او مسائل دی، (۱) د طواف ماشيا کيدل ضروری دی او که غير ضروری(۲) نبی کريم ﷺ طواف راکبا ولې کړې وو؟ په دې کښې څه مصلحت وو.(۳) دا طواف چه نبی کريم ﷺ راکباً کړې وو، کوم يو وو.(۴) نبی کريم ﷺ په دې حج کښې ټول څومره طوافونه کړې وو.

### بحث اول: (طواف په ماشياً وی)

د طواف ماشيا کول د احنافو او مالکيه په نزد واجب دی، بغير د عذر نه راکبا جائز نه دې، و يعيد ما دام بمكة والا يجب الدم، او د امام شافعي رحمه الله په نزد مشی صرف مستحب ده، وعن الحنابلة روايتان.

### بحث ثانی: (د نبی کريم ﷺ د طواف راکباً مصلحتونه)

په طواف راکبا کښې چه کوم مصلحتونه وو، هغه په رواياتو کښې مصرح دی ليراه الناس و ليشرف و يسالوه، يعنی دې دپاره چه خلق د نبی کريم ﷺ په آسانئ سره زيارت اوکړی، او دې دپاره چه د نبی کريم ﷺ نظر هم په ټولو باندې وی، او په سوال او جواب کښې آسانی وی، او په يو روايت کښې دی، كراهية ان يضرب عنه الناس، طواف پيدل کولو په صورت کښې د خلقو ټيل وهل، او اخوا ديخوا کول وو، ځکه چه خلق د زيارت په شوق کښې ډير زيات راتلل، د رکوب په صورت کښې دهغې نه امن دې، مخکښې په يو روايت کښې دا راروان دی، انه قدم مكة وهو يشتكى، ددې نه معلوميږی، چه ددې علت د طبيعت ناسازی وه، ليکن دا حديث ضعيف دې.

[1]: صحيح البخاري/الحج ٥٨(١٦٠٧)، ٦١(١٦١٢)، ٦٢(١٦١٣)، ٧٤(١٦٣٢)، الطلاق ٢٤(٥٢٩٣)، صحيح مسلم/الحج ٤٢(١٢٧٢)، سنن النسائي/المساجد ٢١(٧١٤)، الحج ١٥٩(٢٩٥٧)، ١٦٠(٢٩٥٨)، سنن ابن ماجه/المناسك ٢٨(٢٩٤٨)، (تحفة الأشراف: ٥٨٣٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٤٠(٨٦٥)، مسند احمد(١/٢١٤، ٢٣٧، ٢٤٨، ٣٠٤)، سنن الدارمي/المناسك ٣٠(١٨٨٧)(صحيح)

**بحث ثالث**: (د نبی کریم ﷺ طواف ماشیا کوم طواف وو؟)
ظاهره خبره داده، چه دا طواف زیارت وو، هم دا رائي د حضرت ده په بذل کښ، او هم دا رائي د حافظ ابن قیم هم ده، وبه جزم النووی فی مناسکه، او ددې تائید ددې نه کیږي، چه مخکښې باب طواف الافاضه کښ چه کوم حدیث راروان دې، په هغې کښ ددې خبرې تصریح ده، چه نبی کریم ﷺ په دې طواف کښ رمل نه وو کړې، دهغې وجه داده، چه نبی کریم ﷺ په هغې کښ راکب وو، په خلاف د طواف قدوم، چه په هغې کښ د هغوی رمل کول، په حدیث د جابر رضی الله عنه کښ ذکر دی، او رمل په طواف ماشیا کښ کیدې شی، (بذل و هامشه)

**بحث رابع**: (په حج کښې د نبی کریم ﷺ ټول طوافونه)
نبی کریم ﷺ خو درې طوافه بالاتفاق کړې وو، د ټولو نه مخکښې مکې مکرمې ته رسیدلو سره نبی کریم ﷺ چه کوم طواف کړې وو، هغه عند الجمهور طواف قدوم وو، او عند الحنیفه طواف عمره وو، ځکه چه هغوی قارن وو، او عند الجمهور په قران کښې طواف عمره مستقل نه وی (کما تقدم الخلاف) او دویم طواف زیارة ئې کړې وو، او دریم طواف وداع، دا درې طوافه د روایات کثیره نه ثابت دی، په دې کښې هیڅ تردد نشته، علی مسلک الجمهور خو خبره صفا او واضحه ده، لیکن علی مسلک الحنفیه څلور طوافه کول پکار دی، د طواف عمره نه پس طواف قدوم هم د ددوی په نزد د قارن دپاره مسنون دې، اوس داچه ددې ثبوت هم شته او که نه، د طحاوی د ظاهر کلام نه خو د ثبوت انکار معلومیږی، لیکن حضرت شیخ په جزء الحج کښې لیکلې دی، چه د حجة الوداع په کال نبی کریم ﷺ مکې ته په څلورم ذی الحجه باندې رسیدلې وو، او د هغه وخت نه تر یوم الترویه پورې تقریبا څلور ورځې دهغوی په مکه مکرمه کښې قیام وو، په یوم الترویه باندې منی ته روان شو، نو د هغوی د احوالو نه دا خبره بعیده معلومیږی، چه په دې څلورو ورځو کښې نبی کریم ﷺ د عمرې نه علاوه بل هیڅ یو طواف نه وی کړې، حالانکه په ایام منی کښې هم (چه په هغې کښې د حاجی قیام په منی کښې وی) د بعضو روایاتو نه معلومیږی، چه نبی کریم ﷺ مکې مکرمې ته تشریف راوړې دې، او طواف ئې کړې دې، فکیف لا هو بمکة والله سبحانه و تعالی اعلم.

[۱۸۷۸] (۱) حَدَّثَنَا مُصَرِّفُ بْنُ عَمْرٍو الْيَامِيُّ، حَدَّثَنَا يُونُسُ يَعْنِي ابْنَ بُكَيْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ جَعْفَرِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي ثَوْرٍ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، قَالَتْ: "لَمَّا اطْمَأَنَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ عَامَ الْفَتْحِ طَافَ عَلَى بَعِيرٍ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ فِي يَدِهِ، قَالَتْ: وَأَنَا أَنْظُرُ إِلَيْهِ".

دصفیه بنت شیبه رضی الله عنها نه روایت دې چه دفتح مکې په کال هرکله چه رسول الله ﷺ ته اطمینان حاصل شونو نبی علیه السلام په خپل اوښ باندې طواف اوکړو، فرمائی چه ما نبی کریم ﷺ لره لیدلو چه په خپلې عصا سره به ئې درکن استلام کولو.

(۱): سنن ابن ماجه/المناسك ۲۸(۲۹۴۷)، (تحفة الأشراف: ۱۵۹۰۹)(حسن)

يستلم الركن بمحجن: محجن هغه لرګی ته وئيلې شي، چه دهغې سر کوږ او تاؤ شوې وی (لکه د کونټئ پشان) په طواف راکبا کښې خو د حجر اسود تقبيل کيدې نشی، استلام باليد هم نشی کيدې، ددې وجې نه نبی کريم ﷺ د استلام باليد په ځائې استلام بالمحجن کولو، يعنی په لرګی سره ئې حجر اسود مسه کوؤ، بيا ئې دهغې محجن تقبيل کولو، ګويا د حجر اسود تقبيل بالواسطه اوشو، لکه چه مخکښې د ابوالطفيل په حديث کښې راروان دی، يستلم الركن بمحجنه ثم يقبله، دغه شان طواف ماشيا کښې هم که د رش د وجې نه تقبيل نه شی کولې، نو په استلام باليد باندې دې اکتفا اوکړی، او که دا هم نه کيږی، نو د طواف په دوران کښې چه کله د حجر اسود محاذات ته اورسی، نو دهغې استقبال دې اوکړی، او د تکبير تحريمې پشان دې رفع يدين اوکړی،(۱) او بسم الله الله اکبر دې اوائی، امام ترمذی رحمه الله فرمائې، والعمل على هذا عند اهل العلم يستحبون تقبيل الحجر فان لم يمكنه ان يصل اليه استلمه بيده و قبل يده، و ان لم يصل اليه استقبله اذا حاذى به و كبر وهو قول الشافعي. اهـ

## د استلام سره متعلق څو فروع مختلف فيها:

اوس دلته کښې په څو امورو کښې د علماؤ اختلاف دې،(۱) د کوم څيز په ذريعې سره چه د حجر اسود استلام کولې شی،(يد يا محجن) دهغې تقبيل عند الجمهور مستحب دې، او د امام مالک رحمه الله په نزد مستحب نه دې،(۲) په کوم صورت کښې چه دا وئيلې شوې دی، چه استقبال حجر دې اوکړی تکبير سره، هغه وخت کښې به اشاره باليد هم کوی او که نه، د ائمه ثلثه په نزد اشاره مستحب ده، خلافا لمالک رحمه الله فلا يستحب عنده، او اشاره باليد کولو نه پس تقبيل د يد هم مستحب دې او که نه، د احنافو او شافعيه په نزد مستحب دې، ولا يستحب عند احمد(جزء الحج)

[۱۸۷۹](۲) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ مَعْرُوفٍ يَعْنِي ابْنَ خَرَّبُوذَ الْمَكِّيَّ، حَدَّثَنَا أَبُو الطُّفَيْلِ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ بِالْبَيْتِ عَلَى رَاحِلَتِهِ يَسْتَلِمُ الرُّكْنَ بِمِحْجَنِهِ ثُمَّ يُقَبِّلُهُ"، زَادَ مُحَمَّدُ بْنُ رَافِعٍ: "ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ فَطَافَ سَبْعًا عَلَى رَاحِلَتِهِ".

ابوالطفيل نه وائی چه مانبی علیه السلام لره اوليدو چه هغه په خپل اوښ باندې سور وو او دبيت الله طواف کښې کولو په خپلې عصاسره ئې درکن اسلام کولو اوبيابه ئې هغې لره ښکلولو محمد بن رافع مزيد وائی بيا هغوی صفا مروه طرف ته تشريف يوړو اوپه خپله سورلئ باندې ئې دهغې په مابين کښې اوه چکرې اولګولې.

**تشريح: قوله:** ثم خرج الى الصفا والمروة فطاف سبعا على راحلته: دا سعی بين الصفا والمروه راکبا ده، په دې کښې هم مذاهب د علماء هم هغه دی، کوم چه په طواف بالبيت راکبا کښې دی، د احنافو او مالکيه په نزد بغير د عذر نه جائز نه دی، د امام شافعی رحمه الله په نزد جائز

---

(۱) په دې طريقه چه د لاسونو تلی حجر اسود طرف ته وی

(۲) صحيح مسلم/الحج ۳۹(۱۲۷۵)، سنن ابن ماجه/المناسك ۲۸(۲۹۴۹)،( تحفة الأشراف: ۵۰۵۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۵/۴۵٤)(صحيح)

دی، وعن احمد روايتان.

[۱۸۸۰] (١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ عَلَى رَاحِلَتِهِ بِالْبَيْتِ وَبِالصَّفَا وَالْمَرْوَةِ لِيَرَاهُ النَّاسُ وَلِيُشْرِفَ وَلِيَسْأَلُوهُ فَإِنَّ النَّاسَ غَشُوهُ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دې چه نبی کريم صلى الله عليه وسلم په حجة الوداع کښې په خپله سورلئ باندې سورشو دبيت الله طواف ئې اوکړو او د صفا مروه سعی ئې اوکړه ددې دپاره چه خلق هغوی له اووينی او هغه دخلقو نه لوړ وی او خلق دهغه نه پوښتنی اوکړی ځکه چه خلقو هغوی له په ګيره کښې راوستې وو.

[۱۸۸۱] (٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدِمَ مَكَّةَ وَهُوَ يَشْتَكِي فَطَافَ عَلَى رَاحِلَتِهِ، كُلَّمَا أَتَى عَلَى الرُّكْنِ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ بِمِحْجَنٍ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ طَوَافِهِ أَنَاخَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلى الله عليه وسلم مکه مکرمې ته تشريف راوړو او دهغه طبيعت برابر نه وو چنانچه هغه په خپلې سورلئ باندې طواف اوکړو هغه و چه به کله هم د حجراسود خواته تللو نو په خپلې امساسره به ئې دهغی استلام کولونو کله چه هغه دخپل طواف نه فارغ شو نو (خپله اوښه ئې کينوله او دوه رکعتونه ئې اداکړل.

[۱۸۸۲] (٣) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ نَوْفَلٍ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهَا قَالَتْ: شَكَوْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِّي أَشْتَكِي، فَقَالَ: "طُوفِي مِنْ وَرَاءِ النَّاسِ وَأَنْتِ رَاكِبَةٌ"، قَالَتْ: فَطُفْتُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَئِذٍ يُصَلِّي إِلَى جَنْبِ الْبَيْتِ وَهُوَ يَقْرَأُ بِ: الطُّورِ وَكِتَابٍ مَسْطُورٍ.

دام المومنين ام سلمه نه روايت دې فرمائی چه ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته اووئيل چه زما طبيعت خراب دې نو نبی عليه السلام او فرمائيل په سورلئ باندې سورشو او دخلقو شاته طواف اوکړه وائی چه ما طواف اوکړو او رسول په دغه وخت کښې دبيت الله شريف په طرف کښې مونځ کولو او هغه د (الطور وکتاب مسطور) قرائت فرمائيلو.

عن ام سلمة انها قالت شكوت الى رسول الله (صلى الله عليه وسلم)........... قالت فطفت و رسول الله (صلى الله عليه وسلم) حينئذ يصلى الى جنب البيت وهو يقرأ بالطور و كتاب مسطور.

## طواف د ام سلمه رضي الله عنها راکبا:

حضرت ام سلمه رضي الله عنها د خپل څه عذر (مرض) وغيره د وجې نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اجازت

---

[1]): صحيح مسلم/الحج ٤٢(١٢٧٣)، سنن النسائي/الحج ١٧٣(٢٩٧٨)، (تحفة الأشراف: ٢٨٠٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/٣١٧، ٣٣٤)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٢٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٢١٤، ٣٠٤)(ضعيف)

[3]): صحيح البخاري/الصلاة ٧٨(٤٦٤)، الحج ٦٤(١٦١٩)، ٧١(١٦٢٦)، ٧٤(١٦٣٣)، تفسير سورة الطور ١(٤٨٥٣)، صحيح مسلم/الحج ٤٢(١٢٧٦)، سنن النسائي/الحج ١٣٨(٢٩٢٨)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣٤(٢٩٦١)، (تحفة الأشراف: ١٨٢٦٢)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٤٠(١٢٣)، مسند احمد(٦/٢٩٠، ٣١٩)(صحيح)

اوغوختلو، او طواف راکبا ئې اوکړو، دا طواف وداع وو، د ۱۴ ذی الحجې واقعه ده، او د نبی کریم ﷺ دا مونځ د سحر مونځ وو، رسول الله ﷺ د منی نه وتلو نه پس په محصب کښې حصار شو، بیا د هلته نه په اخیره شپه کښې ئې د طواف وداع دپاره مکې مکرمې ته تشریف راوړو، او د سحر مونځ ئې هم ادا کړو، کوم وخت چه رسول الله ﷺ د سحر مونځ ادا کولو، عین په دغه وخت کښې ام سلمه رضی الله عنها طواف کولو،[1] مونځ د بیت الله شریف سره بالکل متصل ادا کیدو، او ام سلمه رضی الله عنها طواف راکبا د خلقو شاته کولو، دې دپاره چه تباعد عن الرجال او تستر حاصل شی، او په سورلئ سره مونځ گزار ته تکلیف اونه رسی.

**فائده** : په حجة الوداع کښې د حضور ﷺ دمکی مکرمې نه واپسی مدینې منورې ته چه په کومه ورځ اوشوه، دهغې ورځې د نبی کریم ﷺ د سحر د مونځ ذکر په کتب صحاح کښې هیڅ روایت کښې نشته، سوا د ام سلمه رضی الله عنها ددې روایت نه، یا کم از کم ماته نه دې ملاؤ شوې، قال المنذری والحدیث اخرجه البخاری و مسلم و النسائی وابن ماجه(عون)

## بَابُ الْاِضْطِبَاعِ فِي الطَّوَافِ

### باب: په طواف کښې د اضطباع بیان

[۱۸۸۳]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنِ ابْنِ يَعْلَى، عَنْ يَعْلَى، قَالَ: "طَافَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُضْطَبِعًا بِبُرْدٍ أَخْضَرَ".

د یعلی بن امیه رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ طواف - اوکړو په داسې حال کښې چه هغوی اضطباع کړې وه او څادر دشین رنګ وو.

په اصل کښې په مناسک حج کښې بعضې څیزونه داسې دی، چه د انبیاؤ او اولیاؤ یادګار دې، مثلا سعی بین الصفا والمروه، دغه شان رمی جمرات علی هذا رمل واضطباع، دا دواړه څیزونه هم حضور ﷺ د یو خاص وقتی مصلحت د وجې نه په عمرة القضاء کښې اختیار فرمائیلې وو، لیکن ددې سلسله روستو هم شروع شوه، لکه منخکښې د حضرت عمر رضی الله عنه ارشاد دې، فیما الرملان و الکشف عن المناکب الخ، اګر چه په دې زمانه کښې د رمل او اضطباع (چه په هغې کښې کشف مناکب وی) حاجت نشته، ځکه چه الله تعالی اسلام ته مضبوطوالې ورکړې دې،[3] لیکن کوم کار چه مونږ د حضور ﷺ په زمانه کښې کولو، هغه به نه پریږدو.

---

[1] په دې کښې مصلحت هم دا وو چه سړی په خپل کار کښې مشغول اوسی او دوی په خپل کار کښې، اود طواف راکبا په وجه چه کومه بې پردګی کیدې هغه نه وو.(نووی)

[2] ): سنن الترمذي/الحج ٣٦(٨٥٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣٠(٢٩٥٤)،( تحفة الأشراف: ١١٨٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٢٢/٤، ٢٢٣، ٢٢٤)، سنن الدارمي/المناسك ٢٨(١٨٨٥)(حسن)

[3] ) اودا هم وئیلې شوی دی چه حضور ﷺ په عمرة القضاء کښې خو اضطباع د اظهار تشجع دپاره کړې وه او ددې نه پس په حجة الوداع کښې د امن دحصول باوجود اظهار د تشکر یعنی د نعمت د تذکره دپاره، لکه څنګه چه په محصب کښې د قیام هم یوه وجه دا بیانولې شی.

[۱۸۸٤]([1]) حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ اعْتَمَرُوا مِنَ الْجِعْرَانَةِ فَرَمَلُوا بِالْبَيْتِ وَجَعَلُوا أَرْدِيَتَهُمْ تَحْتَ آبَاطِهِمْ قَدْ قَذَفُوهَا عَلَى عَوَاتِقِهِمُ الْيُسْرَى".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ او دهغه صحابو دمقام جعرانه نه عمره اوکړه او د بيت الله کښې هغوی رمل اوکړو اوخپل څادرونه ئې دخپلو ترخونو لاندې ګرځولي وو او په ګسه اوګه باندې ئې اچولي وو.

اضطباع ([2]) دې ته وئيلې شي، چه د احرام څادر دهغې د مينځ نه د ښي ترخ لاندې راؤباسي، او دهغې يو سر مخکښې سينې طرف ته او دويم سر شاته ملا طرف ته په ګسه اوګه باندې واچوی، چونکه په دې کښې ابداء ضبعين وی، د سرې دواړه لاسونه او يوه اوګه ښکاری، ددې وجې نه دې ته اضطباع وئيلې شی، رمل او اضطباع دواړه د اظهار تشجع (يعنی بهادری ښکاره کولو دپاره) کولې شی، ددې مقصد مخکښې په روايت کښې راروان دې، او بعضو د اضطباع حکمت دا ليکلې دې، چه دا په اسراع د مشی کښې معين دې، په دې حالت کښې تيز تلل اسان وی،

اضطباع عند الائمة الثلثه مسنون دې، او امام مالک رحمه الله ددې قائل نه دې، اضطباع د طواف په ټولو شوطونو کښې کولې شی، او رمل صرف د شروع په درې اشواطو کښې، اضطباع د رمل په شان عند الحنفيه والشافعيه على الراجح صرف په هغه طواف کښې مستحب دې، چه دهغې نه پس سعی وی.

**فائده** : اضطباع د سنن د روايتو نه ثابت دې، په صحيحين او سنن نسائی کښې ددې حديث او باب نشته، امام ترمذی رحمه الله د اضطباع حديث ته حسن صحيح ليکلې دی، په خلاف د رمل چه هغه نه صرف د صحيحينو نه بلکه د صحاح سته نه ثابت دې.

## بَابٌ فِي الرَّمَلِ ([3])

### باب په طواف کښې د رمل بيان

په دې کښې څو بحثونه دی، **معنى الرمل، حکمه، لمن، فى اى طواف، فى کم اشواط، فى کم جوانب، حكمة الرمل**، دا اووه بحثونه دی،

### بحث اول: (د رمل معنی)

**هو اسراع المشى مع تقارب الخطى وهز المنكبين،** اوګې خوزولو سره واړهٔ واړهٔ قدمونه اخستل، او معمولی شان تيز رفتار سره تلل، څرنګه چه د مقابلې په وخت کښې پهلوانان تلل کوی.

---

[1]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٥٥٣٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٢٩٥،٣٠٦، ٣٧١)(صحيح)

[2] افتعال من الضبع بسكون الباء الموحدة وهو العضد.(نووي).

[3] رَمَل بفتحتين از باب نصر.

**بحث ثاني**: (د رمل حکم)

د ائمه اربعه په نزد سنت دی، د ابن الماجشون مالکی او ابن حزم په نزد واجب دی، د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نه ددې انکار منقول دې، لکه چه د باب په رومبی حدیث کښې راروان دی.

**بحث ثالث**: (رمل دچا دپاره دې؟)

د ائمه ثلثه په نزد مکی او آفاقی دواړو دپاره دې، د امام احمد رحمه الله په نزد صرف آفاقی دپاره دې. (۱)

**بحث رابع**: (رمل به په کوم طواف کښې وی؟)

د امام احمد رحمه الله په نزد صرف طواف قدوم کښې، د احنافو او شافعیه په نزد فی کل طواف بعده سعی، دهر هغه طواف نه پس، چه دهغې نه پس سعی کولې شی.

ددې تفصیل دادې، مثلا په حج افراد کښې صرف یوه سعی وی، که د طواف قدوم نه پس اوکړې شی، او که د طواف زیارت نه پس، پس که د چا اراده د طواف قدوم نه پس د سعی کولو وی، نو رمل به په هغه طواف قدوم کښې کوی، او طواف وداع کښې هم رمل نشته، ځکه چه ددې نه پس سعی بین الصفا والمروه نه وی، او د امام مالک رحمه الله په نزد په طواف قدوم کښې شته، او که په دې کښې ئې اونه کړه، نو په طواف زیارت کښې به ئې کوی، حضرت شیخ خو داسې لیکلې دی، لیکن د دوی په مسلک کښې ددې نه زیات تفصیل معلومیږی، کما یظهر من الاوجز.

**بحث خامس**: (د طواف په څومره چکرونو کښې به رمل کولې شی؟)

رمل د ائمه اربعه په نزد د شروع په اشواط ثلثه کښې دې، که په هغې کښې ئې اونه کړو، نو بیا ددې قضا او تلافی په نورو اشواطو کښې نشی کولې، ځکه چه په باقی اشواطو کښې د سکون او وقار هیئت اختیارول مسنون دی، په دې کښې د عبدالله بن زبیر رضي الله عنه اختلاف دې، دهغوی په نزد رمل په ټولو اشواطو کښې سنت دې، (منهل عن النووی)

**بحث سادس**: (رمل به د بیت الله د څلورو واړو طرفونو نه کولې شی)

رمل عند الائمه الاربعه د بیت الله په جوانب اربعه کښې مسنون دې، خلافا لبعض التابعین، اذ قالوا یمشی فیما بین الرکنین، یعنی د رکن یمانی او رکن حجر اسود په مینځ کښې به رمل نه وی، هلته کښې به خپل معتاد (د عادت مطابق) تګ سره تګ کوی، ددې منشاء به مخکښې معلومه شی.

**بحث سابع**: (د رمل بعضې حکمتونه)

د رمل حکمت او مصلحت اظهار د جلادة او قوت (بهادرئ) دې، ددې منشاء مخکښې په

---

(۱) حضرت شیخ همدا لیکلی دی لیکن زرقانی مالکی د امام مالک مشهول قول هم لیکلې دې، او دویم قول هغه کوم چه جمهورو دې چه د مکی په حق کښې مستحب دې.

روایت کښې راروانه ده، دا خو د ابتداء په اعتبار سره دي،(١) واما الآن فحکمته تذکر نعمة الامن و حصول الغلبة علی الکفار.

[١٨٨٥](٢) حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ الْغَنَوِيُّ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، قَالَ: قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ: "يَزْعُمُ قَوْمُكَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ رَمَلَ بِالْبَيْتِ وَأَنَّ ذَلِكَ سُنَّةٌ، قَالَ: صَدَقُوا وَكَذَبُوا، قُلْتُ: وَمَا صَدَقُوا وَمَا كَذَبُوا؟ قَالَ: صَدَقُوا، قَدْ رَمَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَكَذَبُوا: لَيْسَ بِسُنَّةٍ، إِنَّ قُرَيْشًا قَالَتْ زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ: دَعُوا مُحَمَّدًا وَأَصْحَابَهُ حَتَّى يَمُوتُوا مَوْتَ النَّغَفِ، فَلَمَّا صَالَحُوهُ عَلَى أَنْ يَجِيئُوا مِنَ الْعَامِ الْمُقْبِلِ فَيُقِيمُوا بِمَكَّةَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، فَقَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْمُشْرِكُونَ مِنْ قِبَلِ قُعَيْقِعَانَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِهِ: ارْمُلُوا بِالْبَيْتِ ثَلَاثًا وَلَيْسَ بِسُنَّةٍ، قُلْتُ: يَزْعُمُ قَوْمُكَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَلَى بَعِيرِهِ وَأَنَّ ذَلِكَ سُنَّةٌ، فَقَالَ: صَدَقُوا وَكَذَبُوا، قُلْتُ: مَا صَدَقُوا وَمَا كَذَبُوا؟ قَالَ: صَدَقُوا، قَدْ طَافَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ عَلَى بَعِيرِهِ، وَكَذَبُوا: لَيْسَ بِسُنَّةٍ كَانَ النَّاسُ لَا يُدْفَعُونَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا يُصْرَفُونَ عَنْهُ، فَطَافَ عَلَى بَعِيرٍ لِيَسْمَعُوا كَلَامَهُ وَلِيَرَوْا مَكَانَهُ وَلَا تَنَالُهُ أَيْدِيهِمْ".

دابوطفیل نه روایت دي چه ما عبد الله بن عباس ته اووئیل ستاسو دقوم خیال دي چه رسول الله په طواف کښې رمل کړې دي اودا چه داسنت دی نوهغه اوفرمائیل چه هغه رښتیا وئیلي دی اوځه غلط، ما اووئیل چه څه ئې رښتیاوئیلی دی - اوڅه غلط و ئې فرمائیل داخو رښتیا دی چه رسول - الله و رمل کړې وو مګرسنت وئیل غلط دی په و حقیقت کښې قریشو دحدیبیه په زمانه کښې وئیلی ا وو چه محمد اودهغه اصحابو لره پرېږدی ترڅو پورې چه هغه خپله دخاروو په مرګ باندې مړه شي بیاچه کله هغوی دنبی ﷺ سره صلح اوکړه چه داخلق به کله راځی او په مکه کښې به درې ورځې مقیم وی چنانچه رسول الله ﷺ تشریف راوړو نومشرکینو دکوه قعقعان دطرف نه کتل نوپه دغه وخت کښې رسول الله ﷺ خپلو صحابو ته اوفر مائیل دبیت الله شریف نه په دریو چکروکښې رمل اوکړئ یعنی خپلې اوږې وهی اوپه مزه مزه باندې منډې وهئ داخوځه سنت نه دی مااووئې ستاسو دقوم خیال دې چه رسول الله ﷺ دصفا اودمروه سعی کړې وه په داسې حال کښې چه هغه په اوښ باندې سور وو اوداهم سنت دی نوهغه اوفرمائیل رښتیا دادی چه رسول الله ﷺ دصفا او مروه سعی په اوښ باندې سور ور کړې ده اودوی دروغ وئیلی دی چه داسنت دی خلق د رسول الله ﷺ نه نهٔ شولړې کولې اونه ترینه اړولې شو اوخلقو په هغه باندې ازدهام ګڼه جوړه کړې وه نوهغه په اوښ باندې سور شو او سعی ئې کوله ددې دپاره چه داخلق دهغوی خبره واوری هغه لره اووینی اوددوی لاسونه دهغوی پورې اونه رسی.

**تشریح: قوله**: عن ابی الطفیل قال قلت لابن عباس........ قال صدقوا و کذبوا.

(١) یعنی رمل کولو سره دا خبره په ذهن کښې راځی چه یو وخت هغه وو چه دلته په مکه مکرمه کښې د کافرانو او مشرکانو تسلط وو او دهغوی د استهزاء او تمسخر دفعه کولو دپاره مونږ ته د رمل کولو هدایت راکړې شوې وو او یو وخت الحمد لله دادی چه هرڅه مو په خپله قبضه کښې دی.

(٢): صحيح مسلم/الحج ٣٩(١٢٦٤)،( تحفة الأشراف: ٥٧٧٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/المناسك ٢٩(٢٩٥٣)، مسند احمد(١/٢٢٩، ٢٣٣، ٢٩٧، ٢٩٨، ٣٦٩، ٣٧٢، ٣٧٣)(صحيح)

## شرح حديث:

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو، چه ډير خلق دا وائي، چه حضور ﷺ د بيت الله شريف په طواف کښې رمل کړې دې، او دا چه رمل مستقل سنت دې، هغوی په جواب کښې اوفرمائيل، په دې کښې يوه خبره رشتيا ده، او يوه خبره دروغ ده، سائل ددې تشريح اوغوختله، نو وې فرمائيل، چه دا خو صحيح ده، چه نبی کريم ﷺ رمل کړې دې، ليکن دا خبره چه دا مستقل سنت دې، غلطه ده (بيا ددې نه پس هغوی د رمل ابتداء او دهغې د مشروعية علت بيان کړو) چه د عمرة القضاء په کال کله چه حضور ﷺ د صحابه کرامو يو جماعت سره مکې مکرمې ته د عمرې دپاره تشريف راوړو، نو چونکه د کافرانو په ذهن کښې د مخکښې نه دا خبره وه، چه مدينه يو وبائی ښهر دې، دهغه ځائې تبه ډيره سخته وی، ددې وجې نه هغوی وئيل، چه د مدينې تبه وهونکې طواف دپاره راغلي دی، وهنتهم حمی يثرب، چالره چه د يثرب تبې کمزورې کړې دی (هغوی به څرنګه طواف اوکړی) ددې نه علاوه دا ئې هم اوکړل، چه حطيم طرف ته چه کومه ډهيرئ ده، چه هغې ته جبل قعقعان وئيلې شی، په هغې باندې دغه کافران کيناستل، چه کله مسلمانان دلته راشی، او طواف کوی، نو مونږ به هغوی پورې ټوقې کوؤ، الله تعالی حضور ﷺ د کافرانو ددې وينا نه خبردار کړو (دشمن چه کند چو مهربان باشد دوست) پس نبی کريم ﷺ دهغوی دې افواه او منصوبې لره ناکامه کولو دپاره صحابه کرامو ته هدايت اوفرمائيلو، چه په دې طواف کښې رمل اوکړئ، او په ټوپونو ټوپونو سره طواف اوکړئ، او په روستنی روايت کښې دا هم دی، چه نبی کريم ﷺ ورته د اضطباع حکم هم اوفرمائيلو.

## (رمل مستقل سنت دې)

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د جواب حاصل دادې، چه رمل نبی کريم ﷺ د يو وقتی ضرورت او مصلحت د وجې نه کړې وو، او هغه علت اوس موجود نه دې، لهذا دا سنت مستقله نه دې، جمهور دا وائی، چه نبی کريم ﷺ رمل دهغې نه پس په حجة الوداع کښې هم کړې دې، ددې وجې نه دا سنت مستقله دې.

**قوله:** حتی يموتوا موت النغف: تر دې پورې چه هغوی هلاک شی، په دومره کثرت سره، څرنګه چه اوښان او ګډې بزې هلاکيږی د نغف د وجې نه، نغف يو چينجې وی، چه د اوښانو او بزو په پوزه کښې پيدا کيږی، دهغې د وجې نه په لږ ساعت کښې په ډيرونو مړۀ کيږی،

**قوله:** قلت يزعم قومک ان رسول الله (صلی الله عليه وسلم) طاف بين الصفا والمروة علی راحلته وان ذلک سنة: دا دويم سوال دې، چه د سعی سره متعلق دې، ددې باره کښې هم هغوی هم دا اوفرمائيل، چه نبی کريم ﷺ سعی راکبا د يوې مجبورئ د وجې نه فرمائيلې وه، چه خلق ډير زيات وو، خلق د هغوی د زيارت د شوق په وجه مخکښې راتلل، او لرې کولو سره لرې کيدل نه، نو نبی کريم ﷺ سعی راکبا اوفرمائيله، ليسمعوا کلامه و ليروا مکانه الخ، دې دپاره

چه خلق په آسانئ سره دهغوی خبره واوري، او د لرې نه دهغوی زيارت هم اوکړې شي، او د خلقو لاسونه هغوی ته اونه رسي، بخلاف سعي ماشيا، چه په دې صورت کښې به لويه پريشاني وه، چا به د نبي کريم ﷺ لاس نيولو، او چابه لمن نيوله، الله اکبر، د صحابه کرامو د شوق او جانثارئ عجيبه حالت وو، صلى الله عليه و سلم شرف کرم و ضى عن اصحابه و ارضاهم، قال المنذري وابوالطفيل هو عامر بن واثلة وهو آخر من مات من الصحابه رضى الله عنهم و قد اخرج هذا الحديث مسلم في صحيحه(عون)

[١٨٨٦]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، أَنَّهُ حَدَّثَ عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَدِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ وَقَدْ وَهَنَتْهُمْ حُمَّى يَثْرِبَ، فَقَالَ الْمُشْرِكُونَ: إِنَّهُ يَقْدَمُ عَلَيْكُمْ قَوْمٌ قَدْ وَهَنَتْهُمُ الْحُمَّى وَلَقُوا مِنْهَا شَرًّا، فَأَطْلَعَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى مَا قَالُوهُ، فَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرْمُلُوا الْأَشْوَاطَ الثَّلَاثَةَ، وَأَنْ يَمْشُوا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ، فَلَمَّا رَأَوْهُمْ رَمَلُوا، قَالُوا: هَؤُلَاءِ الَّذِينَ ذَكَرْتُمْ أَنَّ الْحُمَّى قَدْ وَهَنَتْهُمْ، هَؤُلَاءِ أَجْلَدُ مِنَّا"، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: "وَلَمْ يَأْمُرْهُمْ أَنْ يَرْمُلُوا الْأَشْوَاطَ كُلَّهَا إِلَّا إِبْقَاءً عَلَيْهِمْ".

د عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ مکې ته تشريف راوړو اودې خلقو لره ديثرب تبې کمزورې کړې وو نومشرکينو اووئيل تاسوته يوداسې قوم راغلى دې چه هغوى لره تبې کمزورى کړې دى اوهغه ته ددې نه زيات اذيت رسيدلې دې الله تعالى دمشرکينو ددې وينا کومه چه هغه کړې وه خپل پيغمبرته اطلاع ورکړه پس نبي عليه السلام هغه ته حکم اوکړو چه تاسو په دريو چکرو کښې رمل اوکړئ اودرکن يماني اوحجراسود په مينځ کښې په عام رفتارسره ځئ لهذا هرکله چه دې خلقو هغوى لره په رمل کولوباندې اوليدل نووئې وئيل ددې خلقو په باره کښې تاسو وائى چه دوى لره تبې کمزورى کړې دى داخو زمونږ نه زيات طاقتور دې، ابن عباس نه فرمائى چه نبي عليه السلام په خپلو اصحابو کراموباندې شفقت اوفرمائيلو اوپه تمامو چکرو کښې ئې درمل حکم اونه فرمائيلو.

عن سعيد بن جبير انه حدث عن ابن عباس.......... وان يمشوا بين الركنين،

د رکن يماني او رکن حجر اسود په مينځ کښې خپل تګ سره تلل، يعنى رمل نه کول، ددې وجه په بل روايت کښې دا راروانه ده، چه کافرانو د کتلو دپاره په کومه ډهيرئ باندې ناست وو، هغه حطيم طرف ته وه، چه د رکنين يمانيين جانب مقابل دې، نو صحابه کرامو به د طواف کولو په وخت کښې چه کله دغه طرف ته راغلل، نو چونکه په مينځ کښې به د بيت الله شريف عمارت حائل وو، نو هغوى به کافرانو ته په نظر نه راتلل، او د رمل نه مقصود هغوى ته ښودل وو، ددې وجې نه په دې طرف کښې رمل اونه کړې شو، ددې وجې نه بعضې علماء دا فرمائى، چه رمل به صرف په جوانب ثلثه کښې وى، کما تقدم فى البحث السادس، جمهور دا وائى، چه نبي کريم ﷺ په حجة الوداع کښې په جوانب اربعه کښې رمل کړې دې، لهذا په هغې باندې به عمل کولې شى.

[1] ): ● تخريج: صحيح البخاري/الحج ٥٥(١٦٠٢)، والمغازي ٤٤(٤٢٥٦)، صحيح مسلم/الحج ٣٩(١٢٦٦)، سنن النسائي/الكبري/ الحج(٣٩٤٢)،(تحفة الأشراف: ٥٤٣٨)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٣٩(٨٦٣)، مسند احمد(٢٢١/١، ٢٥٥، ٣٠٦، ٣١٠، ٣١١، ٣٧٣)(صحيح)

هؤلاء اجلد منا: دا خو زمونږ نه هم زیات قوی دی، او مخکښې دهغوی مقوله دا راروانه ده، کانهم العزلان، چه دوی خو د هوسئ د بچو پشان توپونه وهی،(غزلان بروزن غلمان جمع غزال، د هوسئ بچې)

الا الابقاء علیهم: د ابقاء معنی شفقت ده، یعنی په ټولو اشواطو کښې د رمل حکم شفقة نه دې ورکړې شوې، ګنې ستړې کیدل لازمی دی.

قال المنذری واخرجه البخاری و مسلم والنسائی.

[۱۸۸۷]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَلِكِ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ سَعْدٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: سَمِعْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ، يَقُولُ: "فِيمَ الرَّمَلَانُ الْيَوْمَ وَالْكَشْفُ عَنِ الْمَنَاكِبِ، وَقَدْ أَطَّأَ اللَّهُ الْإِسْلَامَ وَنَفَى الْكُفْرَ وَأَهْلَهُ مَعَ ذَلِكَ، لَا نَدَعُ شَيْئًا كُنَّا نَفْعَلُهُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

اسلم عدوی رضی الله عنه فرمائی چه ما دعمربن خطاب بدنه نه واوریدل هغوی فرمائیل نن صبادا اوګې وهل اوددې، بربندول ولې دی(ددی خوڅه ضرورت نشته دې) و حالانکه الله تعالی دین لره قوی اومضبوط کړې دې اوکفر اوکفارولره ئې دې ځائې نه ویستلی دی سره ددې نه مونږ هغه عمل نه شو پریخودلې کوم چه مونږ د رسول الله ﷺ په دور کښې کولو.

[۱۸۸۸]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي زِيَادٍ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِنَّمَا جُعِلَ الطَّوَافُ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَرَمْيُ الْجِمَارِ لِإِقَامَةِ ذِكْرِ اللَّهِ".

دعائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل دبیت الله طواف دصفا مروه سعی اوجمراتو - و لره په ګیټوباندې ویشتل داټول دالله دذکرد قائمولو دپاره دی.

عن عائشة رضی الله عنها قالت قال رسول الله(صلی الله علیه وسلم) انما جعل الطواف بالبیت و بین الصفا والمروة و رمی الجمار لاقامة ذکر الله.

د بیت الله شریف طواف، سعی بین الصفا والمروه او رمی جمار ددې دپاره مشروع شوې دی، چه دې تاریخی او مقدس مقاماتو کښې الله تعالی یاد کړې شی، لهذا دا ټول کارونه په پوره توجه سره کول پکار دی، نه په غفلت سره، علماؤ لیکلې دی، چه اګر چه د ټولو عباداتو نه مقصود ذکر الله دې، ددې امورو تخصیص ددې وجې نه اوکړې شو، چه دا کارونه په ظاهر کښې عبادت نه معلومیږی.

[۱۸۸۹]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سُلَيْمٍ، عَنِ ابْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اضْطَبَعَ فَاسْتَلَمَ وَكَبَّرَ، ثُمَّ رَمَلَ ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ، وَكَانُوا إِذَا بَلَغُوا الرُّكْنَ الْيَمَانِيَ وَتَغَيَّبُوا مِنْ قُرَيْشٍ مَشَوْا ثُمَّ يَطْلُعُونَ عَلَيْهِمْ يَرْمُلُونَ، تَقُولُ قُرَيْشٌ: كَأَنَّهُمُ الْغِزْلَانُ"، قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: فَكَانَتْ سُنَّةً.

[1]): سنن ابن ماجه/المناسك ۲۹(۲۹۵۲)،( تحفة الأشراف: ۱۰۳۹۱)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۴۵)(حسن صحیح)

[2]): سنن الترمذي/الحج ۶۴(۹۰۲)،( تحفة الأشراف: ۱۷۵۳۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۶/۶۴، ۷۵، ۱۳۸)، سنن الدارمي/المناسك ۳۶(۱۸۹۵)(ضعیف)

[3]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۵۷۷۷، ۵۷۷۹)(صحیح)

دابن عباس ته نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اضطباع اوکړه خپل څادرئې دښئ اوګې لاندې کړو اودګسي اوګې دپاسه ئې واچولوبيائې دحجراسود استلام اوکړو او الله اکبر کښې اووئيل بيا ئې په دريو چکرو کښې رمل اوکړو صحابه کرام چه کله رکن يماني ته اورسيدل اودقريشو د نظرونونه به غائب شول نوپه عام رفتار سره به تلل بياچه به کله دهغوی مخې ته راتلل نوپه مزه مزه باندې به ئې منډه وهله قريشو اووئيل داخوګوياچه اوسئ دي. ابن عباس نه اوفرمائيل داسنت دي.

[۱۸۹۰]([1]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ اعْتَمَرُوا مِنَ الْجِعْرَانَةِ فَرَمَلُوا بِالْبَيْتِ ثَلَاثًا وَمَشَوْا أَرْبَعًا".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اودهغه اصحابو د جعرانه نه عمره اوکړه اوهغوی په بيت الله کښې رمل اوکړواوپه څلورو چکرو کښې په خپل عام رفتارسره تلل.

[۱۸۹۱]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ أَخْضَرَ، حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، "أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَمَلَ مِنَ الْحَجَرِ إِلَى الْحَجَرِ، وَذَكَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَلَ ذَلِكَ".

دنافع نه روایت دې چه ابن عمره دحجر اسود نه ترد حجراسود پورې رمل اوکړو(يعنى په پوره چکرکښې) اوذکرئې کړل چه رسول الله ﷺ داعمل کړې وو

## بَابُ الدُّعَاءِ فِي الطَّوَافِ

### د طواف په دوران کښې دعاکول

باب الدعاء فى الطواف په صحاح سته کښې يو کتاب کښې هم ماته ملاؤ نشو، البته باب الکلام فى الطواف په بخارى او نسائى کښې موجود دې، او امام ترمذى په باب بلاترجمه کښې د کلام فى الطواف حديث ذکر کړې دې، امام بخارى په باب الکلام فى الطواف کښې د ابن عباس رضي الله عنهما حديث ذکر کړې دې، دهغې مضمون دادې، چه يو ځل دطواف کولو په وخت کښې د حضور ﷺ تيريدنه په يو داسې سړى اوشوه، چه طواف ئې کولو، او هغه خپل لاس د تسمې وغيره په ذريعې سره د بل سړى لاس سره تړلې وو، او هغه دواړو په داسې حالت کښې طواف کولو، نبى کريم ﷺ هغه تسمه په خپل لاس مبارک سره قطع کړه، او په ژبه مبارکه ئې دا اوفرمائيل، خذبيده، چه د تړلو په ځائې دده لاس اونيسه، ددې حديث نه د کلام فى الطواف ثبوت اوشو، ځکه چه نبى کريم ﷺ د طواف کولو په دوران کښې هغه ته اوفرمائيل خذبيده، او امام ترمذى رحمه الله د ابن عباس رضي الله عنهما يو روايت مرفوعه ذکر کړې دې، الطواف حول البيت مثل الصلوة الا انکم تتکلمون فيه فمن تکلم فيه فلا يتکلم الا بخير، او هم دا

---

[1] ): سنن ابن ماجه/ الحج ۲۹(۲۹۵۳)،( تحفة الأشراف: ۵۷۷۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۴۷/۱، ۲۹۵، ۳۰۵، ۳۰۶، ۳۱۴)(صحيح)

[2] ): صحيح مسلم/الحج ۳۹(۱۲۶۲)،( تحفة الأشراف: ۷۹۰۶)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ۶۳(۱۶۱۶)، سنن النسائي/الحج ۱۵۰(۲۹۴۳)، سنن الترمذي/الحج ۳۳(۸۵۶)، سنن ابن ماجه/المناسك ۲۹(۲۹۵۰)، موطا امام مالك/الحج ۳۴(۱۰۸)، مسند احمد(۱۰۰/۲، ۱۱۴)، سنن الدارمي/المناسك ۲۷(۱۸۸۲)(صحيح)

دوارہ روایتونه امام نسائی رحمه الله ذکر کړي دی، په هغې کښې داسې دی، الطواف بالبيت صلوة فاقلوا من الکلام، معلومه شوه، چه کلام فی الطواف جائز دې، د جمهور علماء ائمه اربعه هم دا مذهب دې، ددې تمهيد نه پس دا پيژندل پکار دی، چه په طواف کښې څه دعا غوختل پکار دی، په حديث الباب کښې دا دی، چه حضور صلی الله علیه وسلم د طواف کولو په وخت کښې کله رکنين يمانيين ته اورسيدو، نو هغه وخت ئې ربنا آتنا فى الدنيا حسنة الخ اولوستلو، په دې سلسله کښې د حج چه کوم کتابونه چاپ شوې دی، او د حج په زمانه کښې چه هلته کښې تقسيمېږي، په هغې کښې د طواف د هر هر شوط دپاره ځان ځانله دعا ليکلې دی، ليکن دهغې دعاګانو ثبوت حديث کښې نشته، په قسطلانی شرح بخاری کښې دی، ابن المنذر فرمائي، چه طواف کښې د حضور صلی الله علیه وسلم نه هيڅ دعا ثابته نه ده، سوا د ربنا آتنا فى الدنيا حسنه الخ نه بين الرکنين يمانيين، بيا هغوی مخکښې ليکلې دی، چه د رافعی نه نقل دی، چه په طواف کښې قراءة د قران افضل دې، د دعاء غير ماثور نه، او دعاء ماثور افضل ده د تلاوت د قران نه، او صاحب هدايه ليکلې دی، چه په طواف کښې ذکر الله افضل دې، بنسبت د تلاوت، او د مالکيه په نزد طواف کښې قراءة مکروه دې ١هـ مختصراً

[١٨٩٢](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ يَحْيَى بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا بَيْنَ الرُّكْنَيْنِ: "رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ".

عبدالله بن سائب رضی الله عنه فرمائی چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه واوريدل چه هغه درکن يمانی او د حجراسود په مينځ کښې دادعافرمائيله: (ربنا آتنا فى الدنيا حسنه وفى الآخرة حسنة وقنا عذاب النار) اې زمونږه ربه مونږ ته په دنيا کښې خير عنايت اوفرمائی او په آخرت کښې هم خير راکړې او مونږ لره د اُور دعذاب نه محفوظ اوساتې.

[١٨٩٣](٢) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ إِذَا طَافَ فِي الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ أَوَّلَ مَا يَقْدَمُ فَإِنَّهُ يَسْعَى ثَلَاثَةَ أَطْوَافٍ وَيَمْشِي أَرْبَعًا ثُمَّ يُصَلِّي سَجْدَتَيْنِ".

ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم حج او په عمره کښې (مکې ته) تشريف راوړو اوکوم اول طواف (طواف قدوم) چه به ئې کولونو دهغې په دريو چکرو کښې به ئې په مزه مزه باندې منډه وهله او په څلورو کښې به په عام رفتار سره تلو بيابه ئې دوه رکعته ادا کول.

ثم يصلى سجدتين: دا هغه دوه رکعته دی، چه د طواف نه پس کولې شی، (تحية الطواف) دا مونځ چونکه د متعلقاتو د طواف نه دې، او مونځ په دعا باندې مشتمل وی، پس ګويا په هغې کښې دعا غوختل دعاء فى الطواف ده، (بذل)

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٣١٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبرى/ الحج(٣٩٣٤)، مسند احمد(٤١١/٣)(حسن)

(٢): صحيح البخاري/ الحج ٦٣(١٦١٦)، صحيح مسلم/ الحج ٣٩(١٢٦١)، سنن النسائي/ الحج ١٥١(٢٩٤٤)،( تحفة الأشراف: ٨٤٥٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(١١٤/٢)(صحيح)

تحية الطواف د احنافو په نزد واجب دې، او د امام احمد رحمه الله په نزد سنت دې، او د شافعیه نه دواړه اقوال نقل دی، او دریم قول دا دې، چه د طواف واجب نه پس واجب دې، او د غیر واجب نه پس سنت دې، د مالکیه په نزد دا ټول اقوال دی، (جزء الحج)

## بَابُ الطَّوَافِ بَعْدَ الْعَصْرِ

### بابه د مازیګر نه پس د طواف کولو بیان

[١٨٩٤] (١) حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَالْفَضْلُ بْنُ يَعْقُوبَ وَهَذَا لَفْظُهُ، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بَابَاهُ، عَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، يَبْلُغُ بِهِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تَمْنَعُوا أَحَدًا يَطُوفُ بِهَذَا الْبَيْتِ وَيُصَلِّي أَيَّ سَاعَةٍ شَاءَ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ". قَالَ الْفَضْلُ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ لَا تَمْنَعُوا أَحَدًا".

جبیر بن مطعم رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت کوی چه هغه اوفرمائیل چالره مه منع کوئ په کوم وخت په کښې چه هم څوك ددې کور طواف کول غواړی اوکه مونځ کول اوغواړی (نواودی کړي) ورځ وی که شپه، خواه که هر وخت وي.

**تشريح: قوله:** عن جبير بن مطعم بلغ به النبی (صلی الله علیه وسلم) قال لا تمنعوا احدا يطوف بهذا البيت و يصلی ای ساعة شاء من ليل او نهار:

**قوله:** د لا تمنعوا خطاب بنو عبدمناف ته دې، لکه چه په بعضو روایاتو کښې دی، یا عبد مناف لا تمنعوا الخ، په دې حدیث کښې بنوعبدمناف ددې خبرې نه منع کړې شوې دی، چه هغوی چالره منع کړی، د بیت الله شریف د طواف کولو نه، یا په مسجد حرام کښې د مونځ کولو نه، په هر وخت کښې، که شپه وی او که ورځ وی.

دا حدیث د سنن اربعه روایت دې، په دې سره شافعیه په دې باندې استدلال کړې دې، چه په مکه مکرمه کښې هیڅ یو وخت وقت مکروهه نه دې، بلکه هلته کښې هر وخت مونځ کولې شی، کما تقدم فی کتاب الصلوة، ددې جواب او مذاهب ائمه هلته کښې تیر شوی دی، علامه سندهی رحمه الله د حدیث مطلب دا لیکلې دې، چه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم مراد دادې، چه کوم سړی هم مسجد حرام ته د طواف یا مونځ په ارادې سره داخلیدل غواړی، په ورځ کښې یا شپه کښې، هر وخت کښې، نو تاسو لره د هغه د منع کولو حق نشته، او دا مطلب نه دې، چه په مکه کښې که څوك هر وخت مونځ یا طواف کول غواړی، نو کوی دې، او دا مطلب ددې وجې نه اخستلې شوې دې، چه دا حدیث د احادیث النهی خلاف نشی، او د حرم شریف چه کوم دربان وو، هغوی به خپل حکومت چلوؤ، هر سړی ته به ئې هر وخت د داخلیدو اجازت نه ورکوؤ، ددې وجې نه هغوی ته تنبیه ورکړې شوه، (كذا سمعت من بعض الاساتذة)

ددې نه پس پوهه شئ، چه طواف بعد العصر یا بعد الفجر بالاتفاق جائز دې، البته په تحیة الطواف کښې اختلاف دې، د احنافو او مالکیه په نزد مکروه دې، د شافعیه او حنابله په

---

١): سنن الترمذي/الحج ٤٢(٨٦٨)، سنن النسائي/المواقيت ٤١(٥٨٦)، والحج ١٣٧(٢٩٢٧)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٤٩(١٢٥٦)، (تحفة الأشراف: ٣١٨٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤/٨٠، ٨١، ٨٤)، سنن الدارمي/المناسك ٧٩(١٩٦٧)(صحيح)

نزد هغه هم بلاکراهت جائز دې، دهغوی استدلال دهغه حديث دجبيربن مطعم نه دې، چه دهغې جواب مونږ بره ليکلې دې. والله تعالى اعلم.

## بَابُ طَوَافِ الْقَارِنِ

### باب: دقران کونکی دطواف بيان

دا مشهوره اختلافي مسئله ده، چه مخکښې ځو ځايونو کښې تيره شوې ده.[1] عند الجمهور په قارن باندې صرف يو طواف او يوه سعى ده، او عند الحنفيه لا بد له من طوافين و سعيين.

### د طواف قارن په سلسله کښې د فريقينو د استدلال جائزه:

په دې باب کښې مصنف رحمه الله درې احاديث ذکر کړې دی، حديث جابر بن عبدالله رضي الله عنه، او دوه احاديث د حضرت عائشی رضي الله عنها، په هغې کښې اول حديث د سنن اربعه او د صحيح مسلم دې، او دويم حديث د نسائی شريف، او دريم حديث د صحيح مسلم دې، ددې نه علاوه کوم حديث په دې سلسله کښې چه متفق عليه دې، د کوم تخريج چه بخاری او مسلم دواړو کړې دې، هغې لره مصنف په باب الافراد کښې راوړې دې، يعنی حديث عائشه رضي الله عنها چه دهغې په آخر کښې دادی، واما الذين جمعوا بين الحج والعمرة فانما طافوا طوافا واحدا، امام بخاری رحمه الله په باب طواف القارن کښې اول دا حديث ذکر کړې دې، ددې حديث چه کومه توجيه زمونږ د طرف نه کولې شی، هغه مونږ په باب الافراد کښې ليکلې ده، او الحمدلله هغه توجيه د سياق حديث سره ډيره نزدې ده، بلکه په فيض الباری کښې د شاه صاحب نه دا نقل شوې دی، چه د بعضو رواياتو الفاظ په دې کښې صريح دی، حضرت امام بخاری رحمه الله په باب مذکور کښې چه کوم دويم حديث ذکر کړې دې، هغه حديث د ابن عمر دې، چه هغوی يو ځل حج قران اوکړو، او د هغې دپاره ئې صرف يو طواف او يوه سعی اوکړه، بيا ئې اوفرمائيل هکذا فعل رسول الله(صلی الله عليه وسلم).

ددې په جواب کښې شاه صاحب فرمائي (کما فی فيض الباری) چه دې معامله کښې زيات اهميت د علی رضي الله عنه روايت نه کيدې شی، ځکه چه اول خو حضرت علی رضي الله عنه حضرت علی دې، او حضرت ابن عمر رضي الله عنه ابن عمر دې، دويم دا چه د علی رضي الله عنه احرام هم هغه وو، کوم چه د حضور صلی الله عليه وسلم وو، لکه چه په رواياتو کښې مشهور او معروف دی، او د حضرت علی رضي الله عنه مسلک دادې، القارن يطوف طوافين و يسعى سعيين، دغه شان د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه هم دا منقول دی. رواهما الطحاوی باسانيد قوية، حتی چه حافظ ابن حجر رحمه الله هم ددې اعتراف کړې دې. او ابن حزم دا وئيلې دی، چه په دې سلسله کښې د حضور صلی الله عليه وسلم او دهغوی د صحابه کرامو نه هيڅ ثابت نه دی، په دې باندې حافظ صاحب فتح الباری کښې فرمائي

---

[1] قال الحافظ شمس الدين ابن القيم في تهذيب السنن، اختلف العلماء في طواف القارن والمتمتع علي ثلثة مذاهب احدها ان علي كل منهما طوافين وسعيين وروي ذلك عن علي وابن مسعود وهو قول سفيان ثوري وابي حنيفة واهل الكوفه والأوزاعي واحدي الروايات عن الامام احمد الثاني ان عليهما كلهما طوافًا واحدًا وسعيًا واحدًا نص عليه الامام احمد في رواية ابنه عبدالله وهو ظاهر حديث جابر هذا الثالث ان علي المتمتع طوافين وسعيين وعلي القارن سعيٌ وحدٌ وهذا هو المعروف عن عطأ وطاؤس والحسن وهو مذهب مالك والشافعي وظاهر مذهب احمد.

(قلت) لکن روی الطحاوی وغیره مرفوعا عن علي و ابن مسعود ذلک باسانید لا باس بها، او شیخ ابن الهمام او علامه عینی حدیث علی رضی الله عنه د نسائی د سنن کبری په حوالې سره نقل کړې دې، هکذا عن حماد بن عبد الرحمن الانصاری عن ابراهیم بن محمد بن الحنفیه قال طفت مع ابی و قد جمع الحج والعمرة فطاف لهما طوافین و سعی سعیین و حدثنی ان علیا رضی الله عنه فعل ذلک و حدثه ان رسول الله(صلی الله علیه وسلم) فعل ذلک قال العلامة ابن الهمام و حماد هذا و ان ضعفه الازدی فقد ذکره ابن حبان فی الثقات فلا ینزل حدیثه عن درجة الحسن مع انه روی عن علی رضی الله عنه بطرق کثیرة مضعفة ترتقی الی الحسن. اهـ
علامه قسطلانی په شرح بخاری کښې د شیخ ابن الهمام مذکوره بالا کلام ذکر کولو نه پس فرمائي ولا ریب ان العمل بما فی صحیح البخاری.

**فلما كان بذی الحلیفة قال من شاء ان یهل بحج فلیهل و من شاء ان یهل بعمرة فلیهل بعمرة:**
په شروع کښې نبی کریم ﷺ په ذوالحیفه کښې صحابه کرامو ته اختیار ورکړې وو، چه د چا کوم قسم احرام ته زړهٔ کیږی، هم هغسې دې اوتړی، بیا وروستو مخکښې تللو نه پس نبی کریم ﷺ د فسخ الحج الی العمرة اشاره اوفرمائیله، چه کله صحابه کرامو داسې اونه کړل، نو بیا مروه ته رسیدلو نه پس نبی کریم ﷺ صحابه کرامو ته د فسخ الحج الی العمره امر جازم او قطعی ورکړو، نو هغوی د نبی کریم ﷺ د حکم مطابق دې طواف او سعی لره عمره اوګرځوله، او حلال شو،
اولی من حدیث لم یکن علی رسم الصحیح علی مالا یخفی اه لیکن زمونږ علماء دا وائی چې حدیث د بخاری خو مؤول دې او که دا په ظاهر باندې کیخودې شی نو د ټولو به خلاف شی نه صرف د ائمه فقه بلکه د ټولو روایات حدیثیه هم (کما تقدم توضیحه فی باب الطواف الواجب)
اصل خبره دا ده چې پیغمبر ﷺ مکې مکرمې ته د رسیدلو په ورځ کوم طواف کړې وو چې هغوی ئې هم منی او مونږ هم دې باره کښې دا وا و چې هغه طواف عمره وو او هغوی دا وائی چې هغه طواف قدوم وو([1]) هغوی په خپله رائې باندې قرینه دا حدیث پیش کوی اما الذین جمعوا بین الحج والعمرة طافوا طوافاً واحداً او احناف د خپل رائې په تائید کښې هغه روایات پیش کوی چې په هغې کښې تعدد د طواف او سعی مذکور دې هغه ګویا سنداً دومره قوی نهٔ دی څومره چې دا دی لیکن اول خو هغه صریح دی مؤول نهٔ دی دویم دا چې د قیاس موافق هم هغه دی والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب

[۱۸۹۵]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "لَمْ يَطُفِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا أَصْحَابُهُ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ إِلَّا طَوَافًا وَاحِدًا طَوَافَهُ الْأَوَّلَ".

---

[1] په دې باندې انورشاه فرمائی چه دا اختلاف رائې نه دې بلکه اختلاف د تخریج دې د شافعیه د مشائخو تخریج دادې اود احنافو مشائخو تخریج هغه دې.

[2] صحیح مسلم/الحج ۱۷ (۱۲۱۳)، سنن النسائي/الحج ۱۸۲ (۲۹۸۹)، (تحفة الأشراف: ۲۸۰۲)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۱۰۲ (۹۴۷)، سنن ابن ماجه/المناسك ۳۹ (۲۹۷۲)، مسند احمد (۳/۳۱۷) (صحیح)

دجابر بن عبدالله نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اودهغه صحابه کرامو دصفا اودمروه په مینځ کښې به صرف یوسعی کړې وه یعنی په اول ځل طواف قدوم یاطواف عمرې سره.

قَالَ: سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "لَمْ يَطُفِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَا أَصْحَابُهُ بَيْنَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةِ إِلَّا طَوَافًا وَاحِدًا طَوَافَهُ الْأَوَّلَ".

دا د باب اولنې حدیث دې چې په دې کښې د طواف ذکر نشته بلکه سعی بین الصفا والمروه مذکور ده چې پیغمبر علیه السلام صرف یو سعی اوفرمائیله زمونږ له طرفه د دې جواب دا دې چې مراد دا دې چې پیغمبر علیه السلام دحج دپاره صرف یو سعی اوکړه او دا صحیح ده ځکه چې په حج کښې خو طوافونه ډیر وی (طواف قدوم، طواف زیارت او طواف وداع) لیکن سعی صرف یو ځل وی لیکن که یو سړې حج سره عمره هم کوی کما فی القران والتمتع،

نو ښکاره خبره ده چې د هغې دپاره به طواف او سعی هم جدا او مستقل کوی د نورو دلائلو په بناء باندې

[۱۸۹۶](١) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا مَالِكُ بْنُ أَنَسٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِينَ كَانُوا مَعَهُ لَمْ يَطُوفُوا حَتَّى رَمَوُا الْجَمْرَةَ".

دعائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه اصحاب رسول کوم چه دهغه سره وو هغه جمرې لره په ګیتو سره دویشتلونه. پس طواف کړې وو.

**تشریح: قوله**: عَنْ عَائِشَةَ، "أَنَّ أَصْحَابَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّذِينَ كَانُوا مَعَهُ لَمْ يَطُوفُوا حَتَّى رَمَوُا الْجَمْرَةَ". دا دویم حدیث دې، د دې مضون دا دې چې صحابه کرامو کښې چا هم د بیت الله طواف د جمره عقبه د رمی نه مخکښې نۀ دې کړې په دې روایت باندې اشکال ظاهر دې ځکه چې د نورو روایتونو نه خو دا معلومیږی چې هغې تولو حضراتو په څلورمه (۴ ذی الحجه) باندې مکې ته د رسیدلو سره طواف کړې وو بیا دا وئیل څنګه صحیح دی چې د رمی جمره نه مخکښې ئې طواف نۀ وو کړې لهذا د دې مطلب به دا اخستلې شی چې د دې نه د راوی مقصود د مطلق طواف نفی نۀ ده بلکه د طواف افاضه نفی مراد ده ځکه چې په یوم النحر کښې چې کوم افعال اربعه کبری (رمی، ذبح، حلق او طواف) په هغې کښې دا طواف زیارت د رمی نه پس اوکړې شو د رمی نه قبل چا هم اونکړو او یا دا اووئیلې شی چې د دې نه مراد هغه صحابه دی چې د هدی بوتلونکې وو او مطلب دا دې چې هغې خلقو طواف للاحلال د رمی نه پس اوکړو (او د دې نه مخکښې اګرچه هغوی طواف کړې وو لیکن هغه لاجل الاحلال نۀ وو ځکه چې سوق هدی د تحلل نه مانع ده) یا دا اووئیلې شی چې د دې تعلق هغې صحابو سره دې چې غیرسائق الهدی وو او مطلب دا دې چې هغوی د حج دپاره طواف د رمی نه مخکښې نۀ وو کړې (او د دې نه مخکښې ئې اګرچه طواف کړې وو لیکن هغه د حج دپاره نۀ وو بلکه د عمرې دپاره وو) (٢) (بذل)

---

(١): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ١٦٦٠١)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤١٧٢، ٤١٧٣)(صحيح)

(٢) ځکه چه داخلق د فسخ الحج الی العمره مامور وو دغې خلقو خو د عمرې طواف او سعی په شروع کښې کړې وه بیا ئې روستو چه کوم طواف زیارت اوکړو هغه ئې د رمی جمره نه پس اوکړو. والله اعلم

[۱۸۹۷](۱) حَدَّثَنَا الرَّبِيعُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْمُؤَذِّنُ، أَخْبَرَنِي الشَّافِعِيُّ، عَنْ ابْنِ عُيَيْنَةَ، عَنْ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهَا: "طَوَافُكِ بِالْبَيْتِ وَبَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ يَكْفِيكِ لِحَجَّتِكِ وَعُمْرَتِكِ"، قَالَ الشَّافِعِيُّ: كَانَ سُفْيَانُ رُبَّمَا قَالَ: عَنْ عَطَاءٍ، عَنْ عَائِشَةَ، وَرُبَّمَا قَالَ: عَنْ عَطَاءٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

دعائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ د هغه ته فرمائیلی وو ستاد بیت الله طواف او د صفا مروه سعی ستا حج او عمرې لره کافی دی شافعی فرمائی چه سفیان کله سند داسې بیانوی عن عطاءعن عائشة رضي الله عنها او کله داسې وائی قال لعائشة رضی الله عنها.

**تشریح: قوله**: عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لَهَا: "طَوَافُكِ بِالْبَيْتِ ....... أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

د دې حدیث نه هم جمهور استدلال کوی چې د قارن دپاره یو طواف او یو سعی ده زمونږ له طرفه د دې چې جواب دا دې چې دا استدلال خو په دې مبنی دې چې حضرت عائشه رضي الله عنها قارنه وه او زمونږ په نزد داسې نۀ ده بلکه زمونږ تحقیق دا دې چې هغه مفرده وه (كما سبق مفصلاً فی احرام عائشة) لهذا مطلب دا دې چې اګرچه تاسو صرف حج کړې دې عمره مو نۀ ده کړې لیکن شروع کښې اراده خو د دواړو وه په دې وجه دا طواف او سعی من حیث الاجر و النية دواړو دپاره کافی دې (۲) او یا دا اووئیلې شی چې د دوی دا ګمان حضرت عائشې رضي الله عنها ته په دې ګمان باندې وو چې هغوی په شروع کښې طواف عمره کړې وو او د هغوی د حیض وغیره قصه د پیغمبر علیه السلام ذهن کښې نۀ وه یدل علیه قوله صلی الله علیه وسلم اوماطفت لیالی قدمنا (۳) كما فی بعض الروايات والله تعالى اعلم (بذل) قال المنذری واخرجه مسلم فی صحیحه (عون)

## بَابُ الْمُلْتَزَمِ

### باب: د ملتزم بیان

دا باب په صحاح سته کښې صرف په دواؤ کتابونو کښې دې دلته په سنن ابوداؤد کښې او سنن ابن ماجه کښې او د ملتزم متعلق حدیث هم د صحاح سته صرف په دې دواؤ کتابونو کښې دې هسې بیهقی وغیره کښې هم دې بیهقی کښې د ابن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې مابین الرکن والباب (۴) ته ملتزم وئیلې کیږی چې کوم کس هم دې سره پیوست شی (۵) او دعا غواړی نو هغه قبلیږی (تهذيب السنن لابن القيم) او علامه زرقانی په حواله د ابن عبدالبراس د ابن عباس نه مرفوعاً روایت کړې دې (کما فی الاوجز ص ۷۳۵ ج۳) د مناسک حج په کتابونو کښې امام نووی او ملاعلی قاری لیکلې دی چې د طواف وداع نه فارغ کیدو نه پس حاجی دپاره

---

(۱): تفرد به أبوداود، (تحفة الأشراف: ۱۷۳۸۱) (صحيح)

(۲) په دې جواب باندې دا اشکال کیږی چه که داسې وو نو بیا ددې ارشاد ګرامی فائده څه ده؟

(۳) وقد تقدم الاستدلال بهذا الحديث في باب الافراد ذيل عمرة التنعيم.

(۴) یعنی د بیت الله د دیوال هغه حصه کومه چه دبیت الله د دروازې اود حجر اسود په مینځ کښې ده.

(۵) د پیوست کیدو صورت په حدیث الباب کښې دا مذکوردې چه دغه ځای کښې خپل مخ، او سینه او د دواړو لاسونو مروندونه خواره کړی دغه حصې سره ئې اولګوی او په ژړا ژړا دعاګانې اوغواړی.

مستحب دی چې عتبة البیت( د بیت الله شریف د دروازې چوکهټ) ښکل کړی او ملتزم شریف سره پیوست شی او دعا اوغواړی د حضرت شاه ولی الله صاحب دهلوی قدس سره په المسلسلات کښې هم استجابة الدعاء عند المتلزم په حدیث مرفوع په روایت ابن عباس کښې موجود دی چې په هغې کښې دا دی چې هر راوی د روایت په وخت خپل شاګرد ته دا اووې چې ما هلته دعا غوښتلې ده او قبول شوې ده تذکرة الخلیل کښې لیکلې دی حضرت سهارنپوری رحمه الله به فرمائیل چې په ملتزم باندې ما د الله تعالی نه درې دعاګانې غوښتلې وې چې په هغې کښې مې د دواؤ[1] قبلیدل خو اولیدل او د دریمې د الله تعالی د ذات نه توقع ده

[۱۸۹۸](۲) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ عَبْدِ الْحَمِيدِ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ صَفْوَانَ، قَالَ: "لَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ، قُلْتُ: لَأَلْبَسَنَّ ثِيَابِي، وَكَانَتْ دَارِي عَلَى الطَّرِيقِ، فَلَأَنْظُرَنَّ كَيْفَ يَصْنَعُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَانْطَلَقْتُ، فَرَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ خَرَجَ مِنَ الْكَعْبَةِ هُوَ وَأَصْحَابُهُ وَقَدِ اسْتَلَمُوا الْبَيْتَ مِنَ الْبَابِ إِلَى الْحَطِيمِ، وَقَدْ وَضَعُوا خُدُودَهُمْ عَلَى الْبَيْتِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسْطَهُمْ".

عبدالرحمن بن صفوان رضی الله عنه فرمائی چه رسول الله ﷺ کله مکه فتح کړه نوما اووئیل زه خپلې کړې ضرور اغوندم زما کور هم لاره کښې وو اوخامخابه ګورم چه رسول الله ﷺ به څنګه کوی چنانچه زه لاړم نبی کریم ﷺ ته مې کتل چه نبی علیه السلام اودهغه صحابه کرام دبیت الله شریف نه وتلی وو اوددروازې نه ترحطیم پورې ئې دبیت الله شریف استلام کولو هغه خپل مخ دکعبې سره لګولی وو اورسول الله ﷺ دهغه په مینځ کښې وو.

**تشریح:** **قوله**: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ صَفْوَانَ، قَالَ: "لَمَّا فَتَحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ، ........... وَقَدْ وَضَعُوا خُدُودَهُمْ عَلَى الْبَيْتِ، وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَسْطَهُمْ".

عبدالرحمن بن صفوان وائی چې په کومه ورځ رسول الله ﷺ مکه مکرمه فتح کړه نو ما خپل زړهٔ کښې سوچ اوکړو چې زهٔ به اوس په خوشحالئ کښې کپړې واچوم او اوبه ګورم چې اوس حضور اکرم ﷺ څهٔ کوی هغوی وائی چې زمونږ کور په لار کښې وو

وقد استلموا البیت من الباب الی الحطیم نو ما اولیدل پیغمبر علیه السلام او د هغوی صحابه چې د کعبې نه بهر راوتلو نه پس د بیت الله شریف هغې حصې سره پیوست وو چې د باب کعبه او حطیم مینځ کښې دې په دې روایت باندې اشکال دا دې چې ملتزم خو د هغې حصې نوم دې چې من الباب الی الحجر دې نه چې من الباب الی الحطیم؟ د دې جواب بعضې علماؤ دا ورکړې دې چې دا ضروری نه ده چې حضور علیه السلام هم په هغې خلقو کښې شامل وو( بلکه پیغمبر علیه السلام په اصل ملتزم باندې موجود وو) او حضرت سهارنپوری د دې دا

---

[1] اول دا چه په دغه زمانه کښې په حجاز کښې د شریف حسین د بغاوت په وجه کومه سخته بدآمنی وه دهغې امن سره بدلیدل، دویم تصنیف د بذل المجهود تکمیل د مدینې منورې په قیام کښې، دریم د مدینې مرګ ملاویدل، الله تعالی په خپل فضل سره دا دریمه دعا هم قبوله کړه.

[2] تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۹۷۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/۴۳۰، ۴۳۱)(ضعیف)

توجیه کړې ده چې ممکن ده اصل روایت کښې خو من الباب الی الحجر وی لیکن یو راوی ته اشتباه شوې وی چې هغهٔ حجر ( بفتح الحاء ) لره حجر ( بکسر الحاء ) ګنړلې وی او حجر ( بالکسر ) حطیم ته وئیلې کیږی بیا ئې دا اوکړل چې دا روایت ئې بالمعنی ذکر کړو او وې وئیل چې من الباب الی الحطیم ( د کوم ځائې نه کوم ځائې ته خبره اورسیده ) [1] والله تعالی اعلم بالصواب ۱۲

[۱۸۹۹] ( [2] ) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عِيسَى بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا الْمُثَنَّى بْنُ الصَّبَّاحِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "طُفْتُ مَعَ عَبْدِ اللَّهِ، فَلَمَّا جِئْنَا دُبُرَ الْكَعْبَةِ، قُلْتُ: أَلَا تَتَعَوَّذُ؟ قَالَ: نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ، ثُمَّ مَضَى حَتَّى اسْتَلَمَ الْحَجَرَ وَأَقَامَ بَيْنَ الرُّكْنِ وَالْبَابِ فَوَضَعَ صَدْرَهُ وَوَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ وَكَفَّيْهِ هَكَذَا وَبَسَطَهُمَا بَسْطًا، ثُمَّ قَالَ: هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ".

عمرو بن شعیب رحمه الله د خپل پلار نه روایت کوی چه به ما د عبدالله بن عمرو نه سره طواف اوکړو کله چه و مونږ د کعبې په شا طرف باندې راغلو نو ما ووئیل و آیا تاسو تعوذ نه کوئ هغه اوفرمائیل مونږ په الله سره و پناه غواړو د دوزخ نه بیا روان شو تردې پورې چه و دحجراسود استلام ئې اوکړو او دحجراسود او د دروازې په مینځ کښې اودریدو بیائې خپله سینه او مخ په هغې باندې کیخودو او خپلو لاسونو اوتلو لره ئې داسې کړل اودې لره ئې ښه خواره کړل بیائې اووئیل ما رسول الله ﷺ لره په داسې کولو سره لیدلې دې.

[۱۹۰۰] ( [3] ) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ بْنِ مَيْسَرَةَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا السَّائِبُ بْنُ عُمَرَ الْمَخْزُومِيُّ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ السَّائِبِ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ كَانَ يَقُودُ ابْنَ عَبَّاسٍ فَيُقِيمُهُ عِنْدَ الشُّقَّةِ الثَّالِثَةِ مِمَّا يَلِي الرُّكْنَ الَّذِي يَلِي الْحَجَرَ مِمَّا يَلِي الْبَابَ، فَيَقُولُ لَهُ ابْنُ عَبَّاسٍ: أُنْبِئْتُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي هَاهُنَا، فَيَقُولُ: نَعَمْ، فَيَقُومُ فَيُصَلِّي".

محمد بن سائب دخپل پلار نه روایت کوی چه هغه دعبدالله بن عباس رضی الله عنه لاس نیولې وو اوتلل اوهغوی لره ئې د دریم ګوټ سره اودرولو کوم چه دحجراسود سره ددروازې دکعبې سره دې نو ابن عباس رضی الله عنه به هغوی ته وئیل آیا خبر درکړې شوې دې تاسو ته چه رسول الله ﷺ به دلته کښې مونځ کولو سه نو هغه به وئیل او بیا به هغه اودریدلو او مونځ به ئې و کولو.

**تشریح: قوله**: کان یعقود ابن عباس فیقیمه عند الشقة الثالثة الشقة الثالثه ( دریمه ټکړه )

---

[1] ) خو بعض نورو شارحینو لیکلې دی چه ملتزم خو ما بین الباب والرکن الاسود ته وئیلې شی دا خبره متعین دې، خو د حطیم په مصداق کښې اختلاف دې یو قول دا دې چه د کعبې شمالی طرف ته چه کوم دیوال دې کوم چه د بیت الله دا حصهٔ ګیره کړې ده کوم چه په تعمیر سره وړوکې شوې دې، دویم قول دا دې چه حطیم او حجر د هغه زمکې نوم دې کوم چه دې دیوال راګیر کړې دې، او دریم قول دا دې چه حطیم ما بین الرکن الاسود والباب ته وئیلې شی ( کوم ته چه ملتزم وئیلې شی ) لهذا په دې اخری قول باندې د ابوداود په دې روایت باندې هیڅ اشکال نشته. ۱۲

[2] ): سنن ابن ماجه /المناسك ٣٥ (٢٩٦٢)، ( تحفة الأشراف: ٨٧٧٦ ) ( حسن )

[3] ): سنن النسائي /الحج ١٣٣ (٢٩٢١)، ( تحفة الأشراف: ٥٣١٧ )، وقد أخرجه: مسند احمد (٣/٤١٠) ( ضعيف )

## د حديث شرح :

حضرت سهارنپوری په بذل المجهود کښې فرمائی ملتزم د بيت الله د ديوال دريمه ټکړه په دې لحاظ سره ده چې د بيت الله په کوم ديوال کښې دروازه ده د هغې درې حصې دغه شان شوې چې يو ټکړه خو د هغې ديوال ده چې د رکن عراقی نه تر د بيت الله د دروازې د بازو پورې ده او دويمه ټکړه هغه چې په هغې کښې په خپله دروازه ده او دريمه ټکړه هغه ده چې د دروازې د دويم بازو نه تر د رکن حجر اسود پورې ده او هم دې ته ملتزم وئيلې شی

**قوله**: مما يلی الرکن الذی يلی الحجر مما يلی الباب

د بيت الله شريف د ديوال هغه حصه چې هغې کونې سره متصل ده چې هغې سره متصل حجر اسود دې (يعنی يو طرف سره او دويم طرف سره متصل دې باب کعبه سره)

حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما آخر کښې نابينا شوې وو په دې وجه به عبدالله بن السائب د هغوی لاس نيولو او هغې ځائې ته به ئې راوستلو ابن عباس ترې تپوس اوکړو چې تاسو ته پته ده چې نبی علیه السلام به دلته مونځ کولو نو بيا به ابن عباس رضی الله عنهما هم هلته مونځ کولو د دې حديث نه معلومه شوه چې څنګه د ملتزم التزام کولې شی دغه شان د هغې نزدې مونځ کول هم پکار دی .

## بَابُ أَمْرِ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ

### باب: د صفا او مروه بيان

د صفا مروه په مينځ کښې سعی کول دا د حضرت هاجره رضی الله عنها يادګار دې چې د اوبو په تلاش کښې ئې دلته منډه وهلې وه مشهور واقعه ده[1]

په سعی کښې درې بحثونه دی. (١) حکمه (٢) د صفا نه مروه او بيا د مروه نه صفا دا دواړه يو چکر دې يا دوه چکرونه دی(٣) بين الصفا والمروة سعی يعنی منډه وهل ضروری دی يا پياده تګ هم جائز دې.

## بحث اول :

د صفا او مروه مينځ کښې د سعی په حکم کښې اختلاف دې په دې کښې څلور اقوال دی د امام شافعی (١) او امام مالک رحمهم الله د مشهور قول مطابق سعی رکن دې لا يتم الحج الا به اصح الروايتين عن احمد هم دا دې او (٢) د احنافو په نزد واجب دې چې د دې په ترک

[1] ) چه کله ابراهيم علیه السلام د الله پاک په حکم سره سيده هاجره رضی الله عنها او د هغه وړوکې ځوئې سيدنا اسماعيل علیه السلام په وادی غير ذی ذرع (بيابان) کښې چرته چه اوس مسجد حرام دې پريخودلو نو کومې اوبه چه د هغې سره په مشک کښې وې چه کله هغه ختمې شوې نو اوس هغه د اوبو په لټون کښې اوتله مخامخ ورته صفا غونډئ وه هغې ته اوختله خو اوبه ورته ملاؤ نه شوې، بيا ئې د ماشوم په فراق کښې لاندې راکوزه شوه او په منډه د خپل ماشوم ليدو لره راغله بيا دوباره مروه غونډئ ته هم د دې اوبو په لټون کښې اوختله دغه شان اووه کرته صفا او مروه ته اوختله او په اووم کرت باندې چه هلته راغله نو ګوری چه ماشوم چرته خپې وهی هلته د الله پاک په رحمت سره چينه راوتله کومې ته چه زمزم وئيلې شی، الحاصل الله پاک ته د هغې دا ادا خوښه شوه او د هميشه دپاره په حج کښې د سعی سنت جاری شو. ١٢

سره دم واجب کیږي هم دا د امام مالک رحمه الله هم یو روایت دې (۳)د سفیان ثوری رحمه الله په نزد چې په هیره سره ترک کړې شی نو په دم سره تلافی کیدې شی البته قصداً چې پریخودې شی نو بیا نۀ کیږي هم دا د عطاء قول دې (۴)د ابن عباس رضی الله عنهما په نزد سنت دې وهو روایة عن احمد( لامع وفتح الباری) د وجوب دلیل د مسند احمد روایت دې حبیبه بنت ابی تجراة مرفوعاً روایت کوی ما د پیغمبر علیه السلام نه اوریدلې دی چې کله ئې سعی کوله کتب علیکم السعی فاسعوا ...،، دغه شان حدیث د مسلم دې ما اتم الله الحج امرئ ولا عمرته لم یطف بین الصفا والمروة(عون)

## بحث ثاني :

د صفا نه مروه یو چکر شمارلې شی او بیا د مروه نه صفا ته واپسی دا دویم چکر دې هکذا عندالجمهور خلافاً لبعض الشافعیه والطحاوی من الحنفیه د هغوی په نزد د صفا نه مروه پورې او بیا د مروه نه صفا پورې دا دواړه یو چکر دې

## بحث ثالث :

بطن وادی[۱] کښې سعی کول یعنی منډه وهل مستحب دی که څوک د دې په ځائې تگ اختیار کړی نو بالاتفاق جائز دې لیکن صرف خلاف اولی کار دې

[۱۹۰۱](۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ حَدِيثُ السِّنِّ: أَرَأَيْتِ قَوْلَ اللَّهِ تَعَالَى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ۱۵۸؟ فَمَا أَرَى عَلَى أَحَدٍ شَيْئًا أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا، قَالَتْ عَائِشَةُ: كَلَّا، لَوْ كَانَ كَمَا تَقُولُ، كَانَتْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَنْ لَا يَطَّوَّفَ بِهِمَا، إِنَّمَا أُنْزِلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي الْأَنْصَارِ، كَانُوا يُهِلُّونَ لِمَنَاةَ وَكَانَتْ مَنَاةُ حَذْوَ قُدَيْدٍ وَكَانُوا يَتَحَرَّجُونَ أَنْ يَطُوفُوا بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ، فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ، سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ۱۵۸.

عروه بن زبیر رضی الله عنه فرمائی چه ما عائشې رضی الله عنها ته اووئیل اوزه په دغه ورځو کښې نوجوان ووم ماته خبر راکړئ دالله تعالی ددې فرمان په باره کښې:«إن الصفا والمروة من شعائر الله») نه زه داګڼړم که چرې څوک ددې په مینځ کښې سعی اونه کړی چه په هغه باندې څه حرج نشته عائشې رضی الله عنها اوفرمائیل بالکل نه لکه چرې داخبره داسې وه لکه څنګه چه ته وائې نوبیا به

[۱] ) یعنی ددواړو غرونو دمینځ هغه حصه کومه چه هواره ده چه په هغې کښې ښکته پورته نشته، اود کوم ځای نه چه ښکته راکوزیدل شروع کیږي هلته سعی مستحب نه ده بلکه مشی اګرچه نن صبا تقریبا ټوه حصه هواره کړې شوې ده په دې وجه بطن وادی کښې دوه نښې لګولې شوی دی کوم ته چه میلین اخضرین وئیلې شی.

[۲] ): صحيح البخاري/الحج ۷۹(۱۶۴۳)، والعمرة۱۰(۱۷۹۰)، وتفسيرالبقرة ۲۱(۴۴۹۵)، وتفسير النجم ۳(۴۸۶۱)، سنن النسائي/الحج ۱۶۸(۲۹۷۱)،( تحفة الأشراف: ۱۶۸۲۰، ۱۷۱۵۱)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۴۳(۱۲۷۷)، سنن الترمذي/تفسير سورة البقرة(۲۹۶۹)، سنن ابن ماجه/المناسك ۴۳(۲۹۸۶)، موطا امام مالك/الحج ۴۲(۱۲۹)، مسند احمد(۶/۱۴۴، ۱۶۲، ۲۲۷)(صحيح)

آیت کریمه داسي وو («فلا جناح علیه أن لا يطوف بهما») که چرې دوی ددې سعی اونکړي نو په : دوی باندې څه ګناه نشته دې په اصل کښې دا آیت دانصارو په باره کښې نازل شوې وو دې خلقوبه دمنات په اراده سره احرام تړلو اودابت دمقام قدید کښې بالمقابل نصب وو اوبیابه دوی دصفا اودمروه په مینځ کښې په سعی کولو کښې حرج ګڼړلو کله چه اسلام راغې نوهغوی د رسول اللهﷺ نه ددې په باره کښې تپوس اوکړو نوالله تعالی دایت نازل اوفرمائیلو :(«إن الصفا والمروة من شعائر الله»).

**تشريح: قوله:** فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ، سَأَلُوا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَلِكَ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ تَعَالَى: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ۱۵۸.

## د عروه او عائشې رضی الله عنه په مابین کښې سوال وجواب

دا حدیث یعنی د عروه د حضرت عائشې ﷺ نه د دې آیت په باره کښې سوال وجواب مختلف طریقو سره ټولو صحاح سته کښې موجود دې د صحیح مسلم په بعضو طریقو کښې څۀ ګړ بړ هم شته عروه د حضرت عائشې ﷺ خوريئ او ډير محبوب او بې تکلف شاګرد دې د عائشې ﷺ نه کثير الرواية دې هغوی يو ځل د حضرت عائشې ﷺ نه سوال اوکړو چې په آیت کریمه ان الصفا والمروة من شعائر الله الخ کښې په ظاهر دا معلومیږی چې حج کښې سعی بين الصفا والمروة ضروری نۀ ده دې لره سرې ترک کولې هم شی څکه چې فرمائی فلا جناح عليه ان يطوف بهما چې څوک حج کښې د دې دواړو مینځ کښې سعی اوکړی نو په هغۀ باندې هیڅ ګناه او حرج نشته حضرت عائشې ﷺ جواب ورکړو چې تا غلطه اوګڼړله(١) که داسې وې څنګه چې تۀ وائې نو بیا داسې کیدل پکار وو فلا جناح عليه ان لا يطوف بهما چونکه دلته طالبعلمانه سوال دا وو چې هرکله سعی ضروری ده نو بیا آیت کښې دا طرز ولې اختیار کړې شو چې سعی کولو کښې صرف د حرج نفی کړې شوې ده په دې وجه حضرت عائشې ﷺ د دې وضاحت اوکړو انما انزلت هذه الاية في الانصار كانوا يهلون لمناة الخ چې اصل خبره دا ده چې د جاهلیت په زمانه کښې د انصارو دوه ډلې وې يو ډلې به د منات نومې بت حج کولو او دویمې ډلې به د اساف او نائله حج کولو د مناة محل وقوع مشلّل وه( څنګه چې د صحیح بخاری شریف په روایت کښې دی) على شط البحر (٢) یعنی د سمندر په غاړه د قُدَيْد مخامخ او د هغې په محاذات کښې او اساف او نائله په صفا او مروه باندې کيخودلې شوې وو، د اساف او نائله والا به منات ته نزدې نۀ شو تلې او منات والا به اساف او نائله ته نزدې نشو ورتلې بیا چې کله دا دواړه ډلې اسلام کښې داخل شوې نو دواړو ته د صفا مروه سعی کولو کښې اشکال اوشو چې دا څیز خو د جاهلیت رسم دې نو په دې باندې الله تعالی دا آیت کریمه نازل کړو او د دې حرج نفی ئې اوفرمائیله چې کوم

١) څکه چه فاعل د سعی نه د اثم نفی مستلزم نه ده تارک د سعی نه نفی د اثم لره.
٢) د صحیح مسلم په يو روایت کښې د اساف او نائله باره کښې دادی چه دا دواړه على شط البحر وو قاضی عیاض دې لره وهم ګرځولې دې (بذل).

د هغوی په ذهن کښې وو الحاصل د قرآن کریم دا طرز بیان او تعبیر د مخاطبینو د مافی الذهن په لحاظ سره دې

**تنبیه** : دا ټول مضمون دلته د ابوداؤد په روایت کښې نشته مونږ په دې سلسله کښې ټول روایات وړاندې کیخودلو سره لیکلې دی او دې لره هم دغه شان یادول پکار دی او ځان پرې پوهه کول پکار دی ورنه بعضې روایات مبهم او بعضې مختصر او بعضو کښې وهم واقع شوې دې والله الموفق .

[۱۹۰۲]() عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اعْتَمَرَ فَطَافَ بِالْبَيْتِ وَصَلَّى خَلْفَ الْمَقَامِ رَكْعَتَيْنِ وَمَعَهُ مَنْ يَسْتُرُهُ مِنَ النَّاسِ"، فَقِيلَ لِعَبْدِ اللَّهِ: أَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَعْبَةَ؟ قَالَ: لَا.

دعبدالله بن ابی اوفی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ عمره اوکړه اودبیت الله طواف ئې اوکړو او دوه رکعته ئې اوکړل اودهغه سره هغه خلق ووچه هغه نبی علیه السلام لره دخلقونه بچ کړې وو دعبدالله رضی الله عنه نه تپوس اوکړې شوچه ایارسول الله ﷺ کښې ته داخل شوې وو هغه اووئیل نه

**تشریح**: **قوله**: أَدَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَعْبَةَ؟ قَالَ: لَا:

دا سوال و جواب د عمرة القضاء سره متعلق دې چې په دې موقع باندې پیغمبر علیه السلام بیت الله شریف ته داخل شو که نه؟

## د حجة الوداع په سفر کښې حضور صلی الله علیه وسلم بیت الله شریف ته داخل شو که نه؟

ځان پوهول پکار دی چې مدینې منورې ته د هجرت کولو نه پس مکې مکرمې ته د پیغمبر علیه السلام درې ځله تشریف آوری شوې ده اولاً عمرة القضاء دپاره ۷ هـ کښې هغه وخت پورې چونکه مکه مکرمه فتح شوې نۀ وه او په بیت الله شریف کښې مشرکینو بتان کیخودلې وو په دې وجه ورته هغه وخت پیغمبر علیه السلام داخل نۀ شو څنګه چې دې روایت کښې مذکور دی دویم سفر په اتمه(۸) هـ کښې د پیغمبر علیه السلام فتح مکه دپاره اوشو هغه وخت پیغمبر علیه السلام بالاتفاق بیت الله شریف ته داخل شوې وو او اول ترې پیغمبر علیه السلام هغه ټول بتان بهر راؤغورزول د دې نه پس بیت الله شریف ته داخل شو دریمه حاضری د پیغمبر علیه السلام لسمه(۱۰) هـ کښې د حجة الوداع په موقع اوشوه په دې سفر کښې دوی بیت الله شریف ته داخل شو یا نۀ؟ په دې کښې د علماؤ اختلاف دې بعضې د دې قائل دی او بعضې منکر د کتاب الحج په آخر کښې یو باب راځی باب الصلوة فی الکعبة هلته په دې سلسله کښې څو روایات دی هغه دې اوکتلې شی هلته یو حدیث د حضرت عائشې رضی الله عنها راځی ان النبی صلی الله علیه وسلم خرج من عندها وهو مسرور ثم رجع الی وهو کئیب د دې روایت باره کښې د

---

[1] ): صحيح البخاري/الحج ٥٣(١٦٠٠)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤٤(٢٩٩٠)،( تحفة الأشراف: ٥١٥٥، ٥١٥٦)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ٦٨(١٣٣٢)، مسند احمد(٣٥٣/٤، ٣٥٥، ٣٨١)، سنن الدارمي/المناسك ٧٧(١٩٦٣)(صحيح)

شراح حديث دا اختلاف کيږي چې دا حديث د پيغمبر ﷺ کوم سفر سره متعلق دې چې کوم حضرات دا وائي چې دا حديث د فتح مکې والا سفر سره متعلق دې د هغې حضراتو رائې خو دا ده چې پيغمبر ﷺ د حجة الوداع په موقع بيت الله شريف ته نۀ وو داخل شوي ځکه چې د دې حديث نه علاوه بل يو حديث داسې نشته چې د هغې نه د حجة الوداع په کال بيت الله شريف کښې د پيغمبر ﷺ دخول ثابت وي نو هرکله چې دا حديث د حجة الوداع سره متعلق نۀ دې نو بيا به هم دا منل ضروري وي چې په دې موقع باندې پيغمبر ﷺ نۀ وو داخل شوي

او چې کوم شراح دا وائي چې د دې حديث تعلق هم د حجة الوداع سره دې نو هغوی د دې قائل دی چې په دې سفر کښې پيغمبر ﷺ بيت الله شريف کښې داخل شوي وو او ظاهره هم دا ده چې دا حديث د حجة الوداع سره متعلق دې چې وجه به ئې موږ هم دلته ليکو

[١٩٠٣]() حَدَّثَنَا تَمِيمُ بْنُ الْمُنْتَصِرِ، أَخْبَرَنَا إِسْحَاقُ بْنُ يُوسُفَ، أَخْبَرَنَا شَرِيكٌ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أَبِي خَالِدٍ، قَالَ: سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ أَبِي أَوْفَى، بِهَذَا الْحَدِيثِ، زَادَ: "ثُمَّ أَتَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ فَسَعَى بَيْنَهُمَا سَبْعًا ثُمَّ حَلَقَ رَأْسَهُ".

اسماعيل بن ابي خالد فرمائي چه ما دعبدالله بن ابي اوفى نه دا روايت واوريدلو او دائي مزيد اووئيل بيانبى ﷺ صفا، مروه طرف ته راغې اودهغې په در ميان کښې ئې اووه چکرونه اولګول او بيائې خپل سراوخرئيلو.

[١٩٠٤]() حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا عَطَاءُ بْنُ السَّائِبِ، عَنْ كَثِيرِ بْنِ جُمْهَانَ، أَنَّ رَجُلًا، قَالَ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ بَيْنَ الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، إِنِّي أَرَاكَ تَمْشِي وَالنَّاسُ يَسْعَوْنَ، قَالَ: "إِنْ أَمْشِ، فَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي، وَإِنْ أَسْعَ، فَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْعَى، وَأَنَا شَيْخٌ كَبِيرٌ".

دکثير بن جمهان رضي الله عنه نه روايت دې چه يو کس دعبدالله بن عمر، نه دصفا اودمروه په مينځ کښې دسې په باره کښې تپوس اوکړو اې ابوعبدالرحمن زه تاسوته ګورم چه تاسو روان يئ اوخلق منډې وهى هغه اوفرمائيل که زه روان يم نو ما خونبى ﷺ لره په تللو باندې ليدلې دې اوکه چرې زه منډې وهم نوماهغه لره په سعى(منډې) سره ليدلې دې اوزه اوس بوډا شوې يم.

## د حديث مبارك تشريح:

قوله: يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ، إِنِّي أَرَاكَ تَمْشِي وَالنَّاسُ يَسْعَوْنَ..الخ:

دا مخکښې تير شو چې د صفا مروه مينځ کښې سعى کول مستحب دى او تګ هم جائز دې په دې کښې څۀ حرج نشته

يو سړي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چې تاسو د صفا او مروه درميان کښې تګ کوئ او نور خلق سعى کوى دا ولې؟ نو هغوى جواب ورکړو چې که زۀ تګ اوکړم نو بيا صحيح ده او که سعى اوکړم نو بيا هم صحيح ده ځکه چې ما پيغمبر ﷺ په سعى کولو

(١): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ٥١٥٥، ٥١٥٦)(صحيح)

(٢): سنن الترمذي/الحج ٣٩(٨٦٤)، سنن النسائي/الحج ١٧٤(٢٩٧٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤٣(٢٩٨٨)،( تحفة الأشراف: ٧٣٧٣، ٧٣٧٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/٥٣)(صحيح)

باندې هم لیدلې دې او په تګ باندې مې هم لیدلې دې شارحینو د دې مطلب دا لیکلې دې چې د ابن عمر رضی الله عنهما مراد دا دې چې حضور اکرم ﷺ به مسعی کښې سعی کوله او په ممشی کښې به ئې مشی کوله [1] او د دې نه پس چې ئې اوفرمائیل وانا شیخ کبیر د دې باره کښې ئې دا لیکلې دی چې دا دویم جواب دې هغه دا چې ماته دا عذردې په دې وجه سعی نۀ کوم قال المنذری واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه قال الترمذی حدیث حسن صحیح ولفظ الترمذی رایت ابن عمر یمشی فی المسعی فقلت اتمشی فی المسعی الخ( عون)

## بَابُ صِفَةِ حَجَّةِ النَّبِیِّ صلی الله علیه وسلم

### باب د نبی اکرم صلی الله علیه وسلم د حج کا طریقه

په دې باب کښې مصنف صرف یو حدیث ذکر کړې دې چې د هغې راوی حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه دې چونکه دا حدیث ډیر اوږد دې په دې کښې د حضور اکرم ﷺ د حج قصه د اول نه آخر پورې پوره تفصیل سره مذکور ده په دې وجه دا حدیث د جابر الطویل په نوم سره مشهور دې. [2]

دا حدیث د افراد مسلم نه دې امام بخاری صاحب رحمه الله د دې تخریج نۀ دې کړې [3] صحاح سته کښې دریو ځایونو کښې صحیح مسلم، سنن ابوداؤد او ابن ماجه کښې دا حدیث د اوږدوالی سره مذکور دې او مام ترمذی او نسائی متعدد مقاماتو او ابوابو کښې د دې قطعات ذکر کړې دی صاحب مشکوة هم دا حدیث ذکر کړې دې

دا حدیث ډیر جامع دې حضرت جابر رضی الله عنه د حضور ﷺ د حج دا قصه د اهل بیت د یو فرد حضرت امام محمد باقر چې د امام زین العابدین ځوې او د حضرت حسین رضی الله عنه نمسې دې په فرمائش باندې ډیره تفصیل او دلچسپئ سره اوروله وه امام نووی شرح مسلم

---

[1] خو ماته د دې په مطلب کښې دا اشکال دې چه په دې صورت کښې دا اولنې جواب څنګه شو؟ په دې سره د سائل اشکال حل شو ځکه چه د سائل مقصد هم دا وو چه هغه ته په مسعی کښې سعی او په ممشی کښې مشی کول پکار وو (کما هو مقتضي لفظ الترمذي) حال دا چه هغه به په ټول مسافت کښې مشی کوله په دې وجه زما ناقص خیال دا دې چه ابن عمر رضی الله عنهما دلته په خپل کلام کښې په طریقه د ظرافت توریه استعمال فرمائیلې ده، څه ګول مول خبره ئې کړې ده چه د رسول الله ﷺ نه هم دواړه قسم ثابت دې، سعی هم او مشی هم (اشکال ولې کوې) بیا د دې نه پس هغوی چه کوم اصل او تحقیقی جواب وو هغه کړې دې چه ﴿ انا شیخ کبیر والله تعالی اعلم ﴾ په توریه کښې دا وی چه متکلم د خپل کلام ظاهر یو څه اخلی او مراد بل څه اخلی. ۱۲

[2] حدیث جابر الطویل د دی نه علاوه یو بل دې چه په هغې باندې امام نووی رحمه الله باب حدیث جابر الطویل ترجمه تړلې ده د مسلم جلد ثانی بالکل په اخر کښې. ۱۲

[3] په ظاهره کښې ځکه چه د دې حدیث طویل مدار په جعفر بن محمد باندې دې، او د جعفر روایت امام بخاری په صحیح بخاری کښې نه دې اخستلې. دا حدیث د جعفر بن محمد نه علاوه په نورو طرقو سره هم نقل دې، خو نورو راویانو دا مطولا نه دې ذکر کړې بلکه مختصرا. پس امام بخاری رحمه الله دا د امام عطاء بن ابی رباح او د مجاهد په طریق سره ذکر فرمائیلې دې، واضحه دې وی چه دا حدیث د جابر رضی الله عنه نه روایت کولو والا د محمد باقر نه علاوه شپږ راویان نور دی. ابو الزبیر، عطاء، مجاهد، محمد بن المنکدر، ابو صالح ذکوان، ابو سفیان طلحه بن نافع الواسطي (ناصر الدین البانی) په دوی کښې د اکثرو روایات په صحاح کښې موجود دی او ټول مختصر دی.

کښې د دې حدیث ډیر تعریف او اهمیت بیان کړې دې چې ډیر جامع دې په ډیرو فوائدو او اهم قواعدو باندې مشتمل دې فرمائی چې ډیرو علماء کرامو د دې حدیث نه کثرت سره د فقهې مسائل مستنبط کړې دی او ابن المنذر په دې باندې يو مستقل جزء تاليف کړې دې چې په هغې کښې د يو نيم سل نه زيات مسائلو استخراج کړې دې او که د کلام استقصاء ئې کوله نو تقريباً دومره مسائل به ئې نور هم مستنبط کړې وو (نووی)

حضرت شيخ په جزء حجة الوداع کښې ليکی شيخ ابن الهمام په فتح القدير کښې د کتاب الحج په شروع کښې اولاً دا پوره حديث ذکر کړو او وې فرمائيل چې زهٔ د کتاب الحج افتتاح د دې حديث مبارک نه کوم فانه اصل کبير واجمع حديث فی الباب اه ډيرو حضرات محدثينو او مؤرخينو چې په حجة الوداع باندې ليکل کړې دی نو اکثرو په کښې هم دا حديث د خپل تاليف اساس او بنياد ګرځولې دې

## د حجة الوداع اسماء عديده

څان پوهول پکار دی چې د حضور ﷺ د دې حج مشهور نوم حجة الوداع دې د دې نه علاوه نور هم نومونه دی پس ديته حجة الاسلام هم وئيلې شی د حجة الاسلام اطلاق د فقهاء په نزد په فرضی حج باندې کيږی يعنی هغه حج چې د اسلام يو اهم رکن دې پيغمبر عليه السلام چونکه د حج فرض کيدلو نه پس صرف هم دا يو حج کړې دې په دې وجه ورته حجة الاسلام وئيلې کيږی او حجة البلاغ هم ځکه چې په دې کښې پيغمبر عليه السلام خلقو ته د احکام شرعيه خصوصاً د حج مسائل رسولې دی قولاً وفعلاً او حجة التمام والکمال هم شايد په دې وجه سره چې آيت کريمه اليوم اکملت لکم دينکم واتممت عليکم نعمتی په دې حج کښې نازل شو ليکن ډير مشهور نوم حجة الوداع دې(د واؤ په فتحه سره او کسره هم جائز ده) د دې نوم وجه تسميه ئې دا ليکلې ده چې په دې حج کښې پيغمبر عليه السلام مسلمانانو ته رخصت ورکړې وو نو پيغمبر عليه السلام اوفرمائيل خذوا عنی مناسککم لعلی لا اراکم بعد عامی هذا چې زما نه د حج مناسک بنهٔ طريقې سره ياد کړئ شايد چې د دې نه پس زما تاسو سره ملاقات اونهٔ شی

**فائده اولی**: صحيح بخاری کښې د ابن عمر رضی الله عنهما مقوله مروی ده کنا نتحدث بحجة الوداع والنبی صلی الله عليه وسلم بين اظهرنا ولا ندری ما حجة الوداع چې د حضور ﷺ په ژوند کښې مونږ د حجة الوداع تذکره خو به کوله ليکن مونږ ته دا خبر نهٔ وو چې د دوی دا حجة الوداع په کوم لحاظ سره ده او ولې دې ته حجة الوداع وئيلې کيږی حافظ ابن حجر د دې په شرح کښې ليکی يعنی بيا چې کله د دې نه پس قريب د پيغمبر عليه السلام وفات اوشو نو مونږ پوهه شو چې دې ته به دې لحاظ سره حجة الوداع وئيلې کيدو( چې پيغمبر عليه السلام د دنيا نه رخصتيږی) د حضرت ګنګوهی رحمه الله په يو تقرير کښې دی چې حضور اکرم ﷺ د انتهائی محبت او عشق په وجه صحابه کرام رضی الله عنهم په شروع کښې د وداع دا لفظ په معنی باندې محمول کولو ته تيار نهٔ وو ليکن بيا مجبوراً منل وو.[1]

---

[1]) ولنعم ما قال شيخ الهند في مرثية شيخه القطب الګنګوهي رحمه الله.

نہ کہتے تھے کہ اس جان جہاں سے یوں جدا ہوگے ... یہ سننے کو چلے آئے تھے اک دن جان ہی جائی

**دویمه فائده** : د ابن عباس رضي الله عنهما نه منقول دی چې هغوی به دا تسمیه یعنی حجة الوداع مکروه ګڼړله دغه شان په نیل المآرب( فی فقه الحنابله) کښې ئې هم دا وجه تسمیه مکروه لیکلې ده په ظاهره د دې وجه دا ده چې په وداع کښې د ترک معنی مونده کیږي او ښکاره خبره ده چې د حج په شان عظیم عبادت د رخصت کولو او پریخودلو څیز نه دې بلکه بار بار د نیکئ کولو یو څیز دې نه دا چې بس یو ځل اوکړې شو او بیا چهټی

**دریمه فائده** : حضرت امام بخاری صاحب رحمه الله د باب حجة الوداع ترجمه د کتاب المغازی په آخر کښې ذکر کړې ده د مغازی نه پس سرایا او بیا وفود لره ترتیب وار ذکر کولو نه پس ئې اخر کښې حجة الوداع ذکر کړې ده ځکه چې دا د پیغمبر علیه السلام په سفرونو کښې آخری سفر دې د پیغمبر علیه السلام زیات تر سفرونه به دغزوات یا د حج او عمرې دپاره وو حاصل دا چې د امام بخاری صاحب رحمه الله دې باب لره هلته ذکر فقهی حیثیت سره نۀ دی بلکه تاریخی حیثیت سره دی والله تعالی اعلم

[١٩٠٥]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، وَهِشَامُ بْنُ عَمَّارٍ، وَسُلَيْمَانُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الدِّمَشْقِيَّانِ وَرُبَّمَا زَادَ بَعْضُهُمْ عَلَى بَعْضٍ الْكَلِمَةَ وَالشَّيْءَ، قَالُوا: حَدَّثَنَا حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا جَعْفَرُ بْنُ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "دَخَلْنَا عَلَى جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، فَلَمَّا انْتَهَيْنَا إِلَيْهِ سَأَلَ عَنِ الْقَوْمِ حَتَّى انْتَهَى إِلَيَّ، فَقُلْتُ: أَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، فَأَهْوَى بِيَدِهِ إِلَى رَأْسِي فَنَزَعَ زِرِّي الْأَعْلَى ثُمَّ نَزَعَ زِرِّي الْأَسْفَلَ ثُمَّ وَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ وَأَنَا يَوْمَئِذٍ غُلَامٌ شَابٌّ، فَقَالَ: مَرْحَبًا بِكَ وَأَهْلًا يَا ابْنَ أَخِي، سَلْ عَمَّا شِئْتَ فَسَأَلْتُهُ وَهُوَ أَعْمَى،

د محمد بن جعفرنه روایت دې فرمائی چه مونږ بی دجابر بن عبدالله انصاری په خدمت کښې حاضر شو مونږ چه کله دهغه خواته اورسیدو هغه دیو یوکس نه تپوس اوکړو څوک ئې تردې چه ماته راورسیدو نوزمانه ئې هم تپوس اوکړو ماورته اووئیل - زه محمد بن علی بن حسین یم نوهغه خپل لاس زماپه د سرباندې کیخودو زمامخکنۍ لمن اوبیائې وروستنی و لمن اوچته کړه او بیائې زماپه دواړو تشوباندې لاسونه و کیخودل اوزه په دې وخت کښې ځوان هلك وم، او راته ئې اووئیل پخیر راغلې دی وی تاته اوخوشحاله اوسی پخپل اهل کښې، اې وراره څه چه دی زړه غواړی تپوس اوکړه مادهغه نه تپوس کول غوښتل اوهغه ړوند هم وو.

وَجَاءَ وَقْتُ الصَّلَاةِ فَقَامَ فِي نِسَاجَةٍ مُلْتَحِفًا بِهَا، يَعْنِي ثَوْبًا مُلَفَّقًا، كُلَّمَا وَضَعَهَا عَلَى مَنْكِبِهِ رَجَعَ طَرَفَاهَا إِلَيْهِ مِنْ صِغَرِهَا فَصَلَّى بِنَا وَرِدَاؤُهُ إِلَى جَنْبِهِ عَلَى الْمِشْجَبِ، فَقُلْتُ: أَخْبِرْنِي عَنْ حَجَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ بِيَدِهِ: فَعَقَدَ تِسْعًا، ثُمَّ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَثَ تِسْعَ سِنِينَ لَمْ يَحُجَّ، ثُمَّ أُذِّنَ فِي النَّاسِ فِي الْعَاشِرَةِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجٌّ، فَقَدِمَ الْمَدِينَةَ بَشَرٌ كَثِيرٌ كُلُّهُمْ يَلْتَمِسُ أَنْ يَأْتَمَّ بِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيَعْمَلَ بِمِثْلِ عَمَلِهِ، فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَخَرَجْنَا مَعَهُ حَتَّى أَتَيْنَا ذَا الْحُلَيْفَةِ، فَوَلَدَتْ أَسْمَاءُ بِنْتُ عُمَيْسٍ مُحَمَّدَ بْنَ أَبِي بَكْرٍ فَأَرْسَلَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ أَصْنَعُ، فَقَالَ: اغْتَسِلِي وَاسْتَذْفِرِي

---

[1]: صحيح مسلم/الحج ١٩(١٢١٨)، سنن النسائي/الحج ٤٦(٢٧١٣)، ٥١(٢٧٤١)، ٥٢(٢٧٤٤)، ٧٣(٢٨٠٠)، سنن ابن ماجه/المناسك ٨٤(٣٠٧٤)، (تحفة الأشراف: ٢٥٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/٣٢٠، ٣٣١، ٣٣٣، ٣٤٠، ٣٧٣، ٣٨٨، ٣٩٤، ٣٩٧)، سنن الدارمي/المناسك ١١(١٨٤٦)(صحيح)

بِثَوْبٍ وَأَحْرِمِي، فَصَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتَّى إِذَا اسْتَوَتْ بِهِ نَاقَتُهُ عَلَى الْبَيْدَاءِ،

خو په دی وخت کښې دمونځ وخت راغې دمونځ دپاره ئې څادر وغوړولو اودومره ورکرتې څادر وو که چرې دا څادر دده په ولو غوړيدلې وې نوغورزيدلی به وو بهرحال څادر ئې تړول کړو او په يو تپائی باندې ئې کيخودو اوبيائې مونځ ورکړو ماورته عرض اوکړو چه ماته دنبی علیه السلام حج بيان کړه؟ نو پخپل لاس کښې اشاره اوکړه او نهه ئې وشميرل، بيائې اووئيل نبی علیه السلام په مدينه کښې نهه کاله اوسيدلې وو خوحج ئې نه وو کړې ددې نه پس په لسم کال باندې اعلان وکړې شو چه نبی علیه السلام حج ته تلونکې دې ډير صحابه کرام په مدينه منوره کښې جمع شول اود هريو دا خواهش وو چه دنبی علیه السلام اتباع اوکړی اوچه کوم عمل نبی علیه السلام کوی هغه اختيارکړی بهرحال نبی علیه السلام حج ته روان شو او نورخلق ورسره هم روان شول تردې چه ذوالحليفه مقام ته ورسيدل دلته په ذوالحليفه کښې داسماء بنت عميس خوی محمد بن أبی بکر پيداشو اسماء نبی علیه السلام ته څوك اوليږو چه ماله څه کول پکاردی نبی علیه السلام په جواب کښې اووئيل غسل اوکړه اويوجانګې واغونده او احرام وتړه ددې نه پس نبی علیه السلام په جوماټ کښې مونځ اوکړو اوپه قصوی اوښه باندې سور شو کله چه اوښه په بيداء مقام کښې اودريده.

قَالَ جَابِرٌ: نَظَرْتُ إِلَى مَدِّ بَصَرِي مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ مِنْ رَاكِبٍ وَمَاشٍ وَعَنْ يَمِينِهِ مِثْلُ ذَلِكَ وَعَنْ يَسَارِهِ مِثْلُ ذَلِكَ وَمِنْ خَلْفِهِ مِثْلُ ذَلِكَ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا وَعَلَيْهِ يَنْزِلُ الْقُرْآنُ وَهُوَ يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ فَمَا عَمِلَ بِهِ مِنْ شَيْءٍ عَمِلْنَا بِهِ، فَأَهَلَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالتَّوْحِيدِ: لَبَّيْكَ اللَّهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيْكَ لَا شَرِيكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَالنِّعْمَةَ لَكَ وَالْمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لَكَ، وَأَهَلَّ النَّاسُ بِهَذَا الَّذِي يُهِلُّونَ بِهِ، فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِمْ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا مِنْهُ وَلَزِمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَلْبِيَتَهُ، قَالَ جَابِرٌ: لَسْنَا نَنْوِي إِلَّا الْحَجَّ، لَسْنَا نَعْرِفُ الْعُمْرَةَ حَتَّى إِذَا أَتَيْنَا الْبَيْتَ مَعَهُ اسْتَلَمَ الرُّكْنَ فَرَمَلَ ثَلَاثًا وَمَشَى أَرْبَعًا ثُمَّ تَقَدَّمَ إِلَى مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ فَقَرَأَ: وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى سورة البقرة آیه ۱۲۵ فَجَعَلَ الْمَقَامَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْبَيْتِ،

نوجابر او وئيل څومره پورې چه زمانظر رسيدو ماد نبی علیه السلام بنئ اوکس مخکښې اوشاته طرفونه اوليدل چه دپيدل خلقونه ډك وو اونبی علیه السلام زمونږ په مينځ کښې وو او قرآن کريم وربانديې نازليدو اوهغه ددې په مطلب پوهيدو مونږ به صرف هغه کارونه سرته و رسول کوم چه به هغه کول. هغه لبيك په اوچت آواز سره اووئيلوچه اې الله زه ستاپه دركښې حاضريم ستاپه دربار کښې حاضريم ستاسره څوك شريك نشته اوزه ستا په حضور کښې حاضريم، تمام تعريفونه اونعمتونه ستا شان دې اوحکومت هم ستادې ستاسره هيڅوك شريك نشته اوخلقوهم په تيز اواز سره لبيك وئيل شروع کړل چاچه به په لا ډير تيز آواز سره وئيل نبی علیه السلام به هغوی نه منع کول ليکن پخپله به ئې لبيك وئيل. جابر ته وائی چه مونږ صرف دحج نيت کړې وو مونږ عمره نه پيژندو مونږ چه دنبی علیه السلام سره کله کعبې ته داخل شو نوهغه د اول حجراسود بښکل کړو اوبيائې په اولنو دری چکرونوکښې تيزرفتاری اوکړله اوباتی څلور چکرونه ئې داعتدال په حال کښې الله وکړل بيادمقام ابراهيم طرف ته روان

شول اودا آيت كريمه ئې تلاوت كړو:(واتخذوا من مقام ابراهيم) مقام ابراهيم دنبى عليه السلام اودكعبې په مينځ كښې وو.

قَالَ: فَكَانَ أَبِي، يَقُولُ: قَالَ ابْنُ نُفَيْلٍ وَعُثْمَانُ: وَلَا أَعْلَمُهُ ذَكَرَهُ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ سُلَيْمَانُ: وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا، قَالَ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَتَيْنِ بِ: قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ وَقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى الْبَيْتِ فَاسْتَلَمَ الرُّكْنَ ثُمَّ خَرَجَ مِنَ الْبَابِ إِلَى الصَّفَا، فَلَمَّا دَنَا مِنَ الصَّفَا قَرَأَ: إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللَّهِ سورة البقرة آية ١٥٨ نَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللَّهُ بِهِ، فَبَدَأَ بِالصَّفَا فَرَقِيَ عَلَيْهِ حَتَّى رَأَى الْبَيْتَ فَكَبَّرَ اللَّهَ وَوَحَّدَهُ، وَقَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ أَنْجَزَ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ، ثُمَّ دَعَا بَيْنَ ذَلِكَ وَقَالَ مِثْلَ هَذَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ،

نبى عليه السلام په دوه ركعتونو كښې(قل هوالله احد) او(قل يا ايها الكافرون) اولوستل اوبياد حجراسود طرف ته راغي اوحجر اسود ئې ښكل كړو بيا دجومات ددروازى دطرف نه دصفا غرطرف ته روان شو كله چه صفا ته نزدې شونودا آيت كريم:(إِنَّ الصَّفَا والمروة من شعائر الله) تلاوت و كړو، اوبيائې اوفرمائيل مونږ به سعى ددې غرنه ذى شروع كوو دكوم چه الله تعالى مخكښې نوم اخستلى ذى دې نودصفانه ئې شروع اوكړله اود صفا ډيرئ ته وختلو تردې چه بيت الله ورته ښكاره شونودتكبير آواز ئې وكړو او دالله تعالى توحيد ئې بيان كړو، اوبيائى به او فرمائيل چه الله يودې دهغه نه علاوه بل څوك حقدار دبندګئ نشته دهغه څوك شريك نشته اوهغه د لره بادشاهى ده اود تعريف مستحق هم الله تعالى دې اوهم هغه ژوندى كول اومړه كول كوى اوهغه په. هرڅه باندې قادردې، دهغه نه علاوه څوك رښتونى بل معبودنشته هغه يواځى دې اوهغه خپله وعده پوره ئې كړه اودخپل نبى امداد ئې وكړو، او د كفارو ډلونه يواځې د الله شكست وركړو او ددې په مينځ كښې ئې بيا دعا وكړه، او دغسې ئې درې ځله اووئيل.

ثُمَّ نَزَلَ إِلَى الْمَرْوَةِ حَتَّى إِذَا انْصَبَّتْ قَدَمَاهُ رَمَلَ فِي بَطْنِ الْوَادِي حَتَّى إِذَا صَعِدَ مَشَى حَتَّى أَتَى الْمَرْوَةَ فَصَنَعَ عَلَى الْمَرْوَةِ مِثْلَ مَا صَنَعَ عَلَى الصَّفَا حَتَّى إِذَا كَانَ آخِرُ الطَّوَافِ عَلَى الْمَرْوَةِ، قَالَ: إِنِّي لَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ لَمْ أَسُقِ الْهَدْيَ وَلَجَعَلْتُهَا عُمْرَةً، فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ لَيْسَ مَعَهُ هَدْيٌ فَلْيُحْلِلْ وَلْيَجْعَلْهَا عُمْرَةً، فَحَلَّ النَّاسُ كُلُّهُمْ وَقَصَّرُوا إِلَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ، فَقَامَ سُرَاقَةُ بْنُ جُعْشُمٍ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلِعَامِنَا هَذَا أَمْ لِلْأَبَدِ؟ فَشَبَّكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَصَابِعَهُ فِي الْأُخْرَى، ثُمَّ قَالَ: دَخَلَتِ الْعُمْرَةُ فِي الْحَجِّ هَكَذَا مَرَّتَيْنِ، لَا بَلْ لِأَبَدِ أَبَدٍ، لَا بَلْ لِأَبَدِ أَبَدٍ،

بياد مروه دتلو دپاره دصفانه راكوزشو، كله چه دنبى عليه السلام قدمونه دمرو په خاوره كښې داخل شول نوپه جلتئ سره لاړو، كله چه دمخ خكته تلونه فارغ شو او پورته ختل ئې شروع كړل نوپه معتدل رفتارسره روان شوتردې چه مروه ته ورسيدواوكوم اعمال چه ئې په صفاكښې كړى وو هغه شان ئې دلته هم وكړل كله چه په مروه كښې آخرنى چكرختم شول نو اوئى فرمائيل: كه چرې ماته هغه حال معلوم وى كوم چه راته اوس معلوم شو نو دځان سره به مې قربانى نه وو راوستلې، اودحج په ځاى به مو عمره كړى وه ليكن په تاسوكښې چه و دچاسره قربانى نه وى هغه كسان دى احرام پرانيزى اوحج دى په عمره بدل كړى چنانچه

ټولو خلقو احرامونه لرې کړل اوويختنه ئې کم کړل مګر علاوه دنبي عليه السلام او دهغه چانه چه دچاسره قرباني موجوده وه په دې وخت کښې سراقه بن جعشم پاڅيدو او عرض ئې وکړو اې دالله رسوله داعمل (حج ختمول بر او عمره کول) صرف ددې کال دپاره دی او که دهميشه دپاره دی نونبي عليه السلام ديو لاس ګوتې دبل لاس په ګوتو کښې واچولې او وئې فرمائيل: عمره په حج کښې داخل شوه، يو ځل دوه ځله نه بلکه دهميشه دپاره.

قَالَ: وَقَدِمَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مِنَ الْيَمَنِ بِبُدْنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا مِمَّنْ حَلَّ وَلَبِسَتْ ثِيَابًا صَبِيغًا وَاكْتَحَلَتْ، فَأَنْكَرَ عَلِيٌّ ذَلِكَ عَلَيْهَا، وَقَالَ: مَنْ أَمَرَكِ بِهَذَا؟ فَقَالَتْ: أَبِي، فَكَانَ عَلِيٌّ، يَقُولُ بِالْعِرَاقِ: ذَهَبْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُحَرِّشًا عَلَى فَاطِمَةَ فِي الْأَمْرِ الَّذِي صَنَعَتْهُ مُسْتَفْتِيًا لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الَّذِي ذَكَرَتْ عَنْهُ فَأَخْبَرْتُهُ أَنِّي أَنْكَرْتُ ذَلِكَ عَلَيْهَا، فَقَالَتْ: إِنَّ أَبِي أَمَرَنِي بِهَذَا، فَقَالَ: صَدَقَتْ صَدَقَتْ، مَاذَا قُلْتَ حِينَ فَرَضْتَ الْحَجَّ؟ قَالَ: قُلْتُ: اللَّهُمَّ إِنِّي أُهِلُّ بِمَا أَهَلَّ بِهِ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَإِنَّ مَعِيَ الْهَدْيَ فَلَا تَحِلَّ،

راوی وائي چه علی رضي الله عنه ديمن نه دنبي عليه السلام اوښې راوستلې وې او وحج ته راغلي وو نو فاطمة رضي الله عنها ئې اوليدله چه احرام ئې پرانستلی وو او رنګ دار لباس ئې اغوستلی وو او سترګې ئې توری کړی وې علی رضي الله عنه ته دفاطمی داعمل ښه ښکاره نشونو اوئې وئيل تاسو ته چاوئيلي دی چه داسې وکړئ؟ هغې ووئيل نبي عليه السلام، جابر رضي الله عنه ووئيل چه علی رضي الله عنه به په عراق کښې وئيل چه زه دنبي عليه السلام په خدمت کښې حاضر شوم چه فاطمه داسې وائي اوماته ښه نه ښکاري، اوهغه وائي چه زما پلار وئيلي دی، نبي عليه السلام اوفرمائيل فاطمی رښتيا وئيلي دی، تاداحرام تړلو په وخت کښې دڅه شي نيت کړی وو؟ علی رضي الله عنه ووئيل ماداسې نيت کړی وو چه و اې زما دهغه عمل په نيت احرام تړم دکوم عمل دپاره چه نبي عليه السلام احرام تړلی دی، نبي عليه السلام اوفرمائيل چه زماسره خوهديه يعنې قرباني ده ته هم اوس احرام مه ختموه.

قَالَ: وَكَانَ جَمَاعَةُ الْهَدْيِ الَّذِي قَدِمَ بِهِ عَلِيٌّ مِنَ الْيَمَنِ وَالَّذِي أَتَى بِهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمَدِينَةِ مِائَةً فَحَلَّ النَّاسُ كُلُّهُمْ وَقَصَّرُوا إِلَّا النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ كَانَ مَعَهُ هَدْيٌ، قَالَ: فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ التَّرْوِيَةِ وَوَجَّهُوا إِلَى مِنًى أَهَلُّوا بِالْحَجِّ، فَرَكِبَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِمِنًى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ وَالصُّبْحَ ثُمَّ مَكَثَ قَلِيلًا حَتَّى طَلَعَتِ الشَّمْسُ وَأَمَرَ بِقُبَّةٍ لَهُ مِنْ شَعْرٍ فَضُرِبَتْ بِنَمِرَةَ فَسَارَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَا تَشُكُّ قُرَيْشٌ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفٌ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ بِالْمُزْدَلِفَةِ كَمَا كَانَتْ قُرَيْشٌ تَصْنَعُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، فَأَجَازَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَتَى عَرَفَةَ فَوَجَدَ الْقُبَّةَ قَدْ ضُرِبَتْ لَهُ بِنَمِرَةَ فَنَزَلَ بِهَا حَتَّى إِذَا زَاغَتِ الشَّمْسُ أَمَرَ بِالْقَصْوَاءِ فَرُحِلَتْ لَهُ فَرَكِبَ حَتَّى أَتَى بَطْنَ الْوَادِي، فَخَطَبَ النَّاسَ،

جابر رضي الله عنه وئيلي دی چه نبي عليه السلام دمدينې نه دومره دقربانۍ څاروی راوستلي وو او څومره چه علی رضي الله عنه راوستلي وو، دټولو څاروو تعداد سلوته ورسيدو، تمام صحابه کرام حلال شول اوويختنه ئې کم کړل او احرامونه ئې پرانستل، مګر نبي عليه السلام او هغه کسان دچاسره چه قربانياني موجودې وې هغوی داحرام په حالت کښې پاتې شول، کله چه يوم الترويه تمام عازمين حج منی ته متوجه شول أود ارکان حج دادا کولو دپاره ئې احرامونه وتړل او نبي عليه السلام په خپله سورلۍ سور شو او دماسپخين اومازيګر اوماښام اوماسخوتن مونځونه ئې

په منی کښې وکړل په ورپسې ورځ ئې دسحر مونځ وکړواودنمرختوپورې ايسار ووبيائې په نمره مقام کښې دخپلې خيمې لګولوحکم وکړوکومه چه دوړئ نه جوړه وه اوبيا و دمنی نه عرفات ته روان شو او د قريشوخلقوپه دې کښې شك نه کولوچه نبی عليه السلام به په مزدلفه، دمشعرالحرام سره نزدې قيام کوی لکه څنګه چه به د قريشود جاهليت په دور کښې هلته قيام کولو نبی عليه السلام نور هم مخکښې لاړو تردې چه عرفات د ته ورسيدونووی ليدل چه په نمره مقام کښې خيمه « ودرولی شوی ده هغه دلته دمه وکړله کله چه نمر ښه ګرم شو نودقصوی اوښې د راوستو حکم ئې وکړو چنانچه په هغه اوښه باندې پالان (زين) ايښودلی شوی وو ،نبی عليه السلام ورباندې سور شو " تردې چه وادی مقام ته راغی اوهلته ئې خطبه ورکړه.

فَقَالَ: إِنَّ دِمَاءَكُمْ وَأَمْوَالَكُمْ عَلَيْكُمْ حَرَامٌ كَحُرْمَةِ يَوْمِكُمْ هَذَا فِي شَهْرِكُمْ هَذَا فِي بَلَدِكُمْ هَذَا، أَلَا إِنَّ كُلَّ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الْجَاهِلِيَّةِ تَحْتَ قَدَمَيَّ مَوْضُوعٌ وَدِمَاءُ الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعَةٌ وَأَوَّلُ دَمٍ أَضَعُهُ دِمَاؤُنَا دَمُ، قَالَ عُثْمَانُ: دَمُ ابْنِ رَبِيعَةَ، وَقَالَ سُلَيْمَانُ: دَمُ رَبِيعَةَ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، وَقَالَ بَعْضُ هَؤُلَاءِ: كَانَ مُسْتَرْضَعًا فِي بَنِي سَعْدٍ، فَقَتَلَتْهُ هُذَيْلٌ وَرِبَا الْجَاهِلِيَّةِ مَوْضُوعٌ وَأَوَّلُ رِبًا أَضَعُهُ رِبَانَا رِبَا عَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ فَإِنَّهُ مَوْضُوعٌ كُلُّهُ، اتَّقُوا اللَّهَ فِي النِّسَاءِ فَإِنَّكُمْ أَخَذْتُمُوهُنَّ بِأَمَانَةِ اللَّهِ وَاسْتَحْلَلْتُمْ فُرُوجَهُنَّ بِكَلِمَةِ اللَّهِ وَإِنَّ لَكُمْ عَلَيْهِنَّ أَنْ لَا يُوطِئْنَ فُرُشَكُمْ أَحَدًا تَكْرَهُونَهُ فَإِنْ فَعَلْنَ فَاضْرِبُوهُنَّ ضَرْبًا غَيْرَ مُبَرِّحٍ وَلَهُنَّ عَلَيْكُمْ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوفِ، وَإِنِّي قَدْ تَرَكْتُ فِيكُمْ مَا لَنْ تَضِلُّوا بَعْدَهُ إِنِ اعْتَصَمْتُمْ بِهِ: كِتَابَ اللَّهِ وَأَنْتُمْ مَسْئُولُونَ عَنِّي، فَمَا أَنْتُمْ قَائِلُونَ؟، قَالُوا: نَشْهَدُ أَنَّكَ قَدْ بَلَّغْتَ وَأَدَّيْتَ وَنَصَحْتَ، ثُمَّ قَالَ بِأُصْبُعِهِ السَّبَّابَةِ يَرْفَعُهَا إِلَى السَّمَاءِ وَيَنْكُبُهَا إِلَى النَّاسِ: اللَّهُمَّ اشْهَدْ، اللَّهُمَّ اشْهَدْ، اللَّهُمَّ اشْهَدْ،

او وئې فرمائيل اې خلقو ستاسو ځانونه او مالونه په تاسوکښې په يوبل باندې حرام دی لکه څنګه چه نن ورځ ده په دې مياشت کښې او په دې ښارکښې. يوهه شئ دجاهليت ددور هر رسم زمادخپرونه الی لاندې کړې شو اوچاچه دجاهليت په دورکښې څومره قتلونه کړې وی ټول معاف دی او اولنې خون کوم خونونه چه په علاقه کښې شوی دی هغه معاف کوم اوهغه خون د ربيعه بن حارث بن عبد المطلب دې(د نبی عليه السلام دتره څوې) بعضوئيلی دی چه ربيعه بن حارث دبنی سعد قبيلې پئ څکلی وو لله اودهزيل قبيلی والا کسانوقتل کړې وو، بله داخبره سوق ده چه څومره سود دجاهليت ددور دخلقو په ذمه لله د هغه معاف شو، اواولنې سود چه زه ئې معاف کوم هغه خپل سود دې کوم چه دعباس بن عبد المطلب دې ځکه چه سود بالکل بند کړې شوې دې بله داچه اې خلقو تاسو ټول دزنانوو په باره کښې دالله نه ويره وکړئ ځکه چه تاسودوی لره دالله تعالی په امان سره په قبضه کښې اخستلی دی(مراد ئې دزنانوو دحقوقو د ادا کولو وعده کول دي) اودالله په حکم سره تاسوددوی شرم ګاهونه حلال کړی دی اوستاسو دپاره په زنانوو باندې داحق دې چه دوی ستاسو بسترونه داسې څوك نه راولی دچا راتلل چه تاسو بدګنړئ، اوکه چرې دوی داسې اوکړی نوتاسو دوی لره اووهئ اوداسې سخت وهل مه ورکوئ چه هډوکی يسې مات شي ياښکاره زخم جوړ شي، اودزنانودپاره په تاسوباندې داحق دې چه دوی ته درواج مطابق خوراك څښاك اولباس ورکړئ اوزه په تاسوکښې يوداسې شې پريږدم که چرې تاسوهغه مضبوط اونيسئ نوګمراه به نه شئ اوهغه دالله تعالی کتاب دې اوستاسونه به دقيامت په ورځ زما

په باره کښې تپوس کيږي بيابه څه جواب ورکوئ؟ ټولو خلقو جواب ورکړو يقينا تا دالله تعالى پيغام اورسوو اوخپل فرض دى اداکړل اونصيحت دى اوکړو نبى ﷺ دشهادت په ګوته باندې اشاره اوکړه اوداسمان طرف ته ئې پورته کړه اوبيائې دخلقو طرف ته راښکته کړه اوبيائې اوفرمائيل اې الله ګواه شه، اې الله ګواه شه، اې الله ګواه شه،

ثُمَّ أَذَّنَ بِلَالٌ ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الظُّهْرَ ثُمَّ أَقَامَ فَصَلَّى الْعَصْرَ وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتَّى أَتَى الْمَوْقِفَ فَجَعَلَ بَطْنَ نَاقَتِهِ الْقَصْوَاءِ إِلَى الصَّخَرَاتِ وَجَعَلَ حَبْلَ الْمُشَاةِ بَيْنَ يَدَيْهِ فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتَّى غَرَبَتِ الشَّمْسُ وَذَهَبَتِ الصُّفْرَةُ قَلِيلًا حِينَ غَابَ الْقُرْصُ، وَأَرْدَفَ أُسَامَةَ خَلْفَهُ فَدَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ شَنَقَ لِلْقَصْوَاءِ الزِّمَامَ حَتَّى إِنَّ رَأْسَهَا لَيُصِيبُ مَوْرِكَ رَحْلِهِ وَهُوَ يَقُولُ بِيَدِهِ الْيُمْنَى: السَّكِينَةَ أَيُّهَا النَّاسُ، السَّكِينَةَ أَيُّهَا النَّاسُ، كُلَّمَا أَتَى حَبْلًا مِنَ الْحِبَالِ أَرْخَى لَهَا قَلِيلًا حَتَّى تَصْعَدَ حَتَّى أَتَى الْمُزْدَلِفَةَ فَجَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِأَذَانٍ وَاحِدٍ وَإِقَامَتَيْنِ، قَالَ عُثْمَانُ: وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا شَيْئًا، ثُمَّ اتَّفَقُوا،

ددې نه پس بلال اذان اوکړو اواقامت ئې اوکړو اونبى ﷺ دماسپخين مونځ اوکړو اوبيائې تکبير اوکړو اودمازيګرمونځ ئې اوکړو او په مينځ کښې ئې نوافل اوکړل بيا په قصوى اوښه باندې سور شو اوميدان عرفات ته لاړو دخپلې اوښې خيټه ئې دکاڼوطرف ته کړه اودجبل مشاة طرف ته ئې مخامخ کړه او قبلې ته ئې ورله مخ کړو او اودريدو تردې چه نمرپريوتو اوزيړوالې کم شو، کله چه نمر پريوتو نواسامه ئې په ځان پسې سور کړو اودعرفات نه مزدلفې ته واپس شو او داوښې واګې ئې سختې کړې تردې چه سر به ئې دزن سره لګيدو او په خپل ښې لاس به ئې خلقوته اشاره کوله چه په مزه مزه ځئ کله چه به په کوم لوړ ځائې باندې ختلو نوداوښ واګې به ئې لږې سستې کړې ددې دپاره چه پورته اوختلې شى بهرحال مزدلفې ته راورسيدو اوهلته ئې دماښام او د ماسخوتن مونځ په يواذان اودوه تکبيرونو سره جمع کړو، عثمان وئيلى دى چه د دواړو مونځو په مينځ کښې ئې نفل ياسنت اونکړل، په باقى روايت کښې ټول راويان متفق دى.

ثُمَّ اضْطَجَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ، فَصَلَّى الْفَجْرَ حِينَ تَبَيَّنَ لَهُ الصُّبْحُ، قَالَ سُلَيْمَانُ: بِنِدَاءٍ وَإِقَامَةٍ، ثُمَّ اتَّفَقُوا، ثُمَّ رَكِبَ الْقَصْوَاءَ حَتَّى أَتَى الْمَشْعَرَ الْحَرَامَ فَرَقِيَ عَلَيْهِ، قَالَ عُثْمَانُ وَسُلَيْمَانُ: فَاسْتَقْبَلَ الْقِبْلَةَ، فَحَمِدَ اللَّهَ وَكَبَّرَهُ وَهَلَّلَهُ، زَادَ عُثْمَانُ: وَوَحَّدَهُ، فَلَمْ يَزَلْ وَاقِفًا حَتَّى أَسْفَرَ جِدًّا ثُمَّ دَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ،

چه بيا نبى ﷺ ارام اوکړو تردې چه سهرشو کله چه نمر روښانه شو نودسحرمونځ ئې اوکړو سليمان وئيلى دى په اذان اواقامت سره، او بيا په قصوى اوښه باندې سور شوتردې چه مشعرالحرام ته راورسيدو او په هغې اوختلو سليمان وئيلى دى چه قبيلې ته پر مخ کړو دالله تعالى تعريف ئې اوکړو اوتکبيرئې اووئيلو اوعثمان دا اضافه کړې ده چه توحيد کښې بيان کړو اوبيائې قيام اوکړو تردې چه ښه رڼرا شوه بيا دنمرختونه مخکښې ددغه ځائې نه روان شو.

وَأَرْدَفَ الْفَضْلَ بْنَ عَبَّاسٍ: وَكَانَ رَجُلًا حَسَنَ الشَّعْرِ أَبْيَضَ وَسِيمًا، فَلَمَّا دَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ الظُّعُنُ يَجْرِينَ فَطَفِقَ الْفَضْلُ يَنْظُرُ إِلَيْهِنَّ، فَوَضَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ عَلَى وَجْهِ الْفَضْلِ وَصَرَفَ

الْفَضْلُ وَجْهَهُ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ وَحَوَّلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدَهُ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ وَصَرَفَ الْفَضْلُ وَجْهَهُ إِلَى الشِّقِّ الْآخَرِ يَنْظُرُ حَتَّى أَتَى مُحَسِّرًا فَحَرَّكَ قَلِيلًا ثُمَّ سَلَكَ الطَّرِيقَ الْوُسْطَى الَّذِي يُخْرِجُكَ إِلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرَى حَتَّى أَتَى الْجَمْرَةَ الَّتِي عِنْدَ الشَّجَرَةِ فَرَمَاهَا بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ مِنْهَا بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ فَرَمَى مِنْ بَطْنِ الْوَادِي،

اوفضل بن عباس ئې په څان پسې سور کړو فضل يو داسې سړې وو چه ډير ښائسته ويښته ئې وو او تک سپين خوبصورته سړې وو کله چه نبي ﷺ ددغه ځائې نه روان شو نو زنانه دخپلو اوښانو په کجاوو کښې کيناستى فضل دې زنانوته کتل نبي ﷺ خپل لاس مبارک دفضل په مخ باندې کيخودو په دې سره فضل خپل مخ بل طرف ته ستون کړو بيانبى ﷺ خپل لاس بل طرف ته کيخودو هغه بيابل طرف ته مخ کړو نبي ﷺ هم خپل لاس وروګرځولو تردې چه وادى محسر مقام ته ورسيدو بيائې خپله سورلئ تيزه کړه او په يوه بله مينځنى لار باندې روان شو کومه چه جمراء عقبى ته تلى وه تردې چه هغه جمرى ته ورسيدو کومه چه دونې سره نزدې ده بيانبى ﷺ اوه ګيټئ ورويشتلى اود هرى ګيټئ سره به ئې الله اکبر وئيل اوهره يوه ګيټى به داسې وه کومه چه په ګوتو کښې دويشتلودپاره اېښودلې شي ليکن ګيټى ئې په وادى کښې دننه ويشتلې.

ثُمَّ انْصَرَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْمَنْحَرِ فَنَحَرَ بِيَدِهِ ثَلَاثًا وَسِتِّينَ، وَأَمَرَ عَلِيًّا فَنَحَرَ مَا غَبَرَ، يَقُولُ: مَا بَقِيَ وَأَشْرَكَهُ فِي هَدْيِهِ، ثُمَّ أَمَرَ مِنْ كُلِّ بَدَنَةٍ بِبَضْعَةٍ فَجُعِلَتْ فِي قِدْرٍ فَطُبِخَتْ فَأَكَلَا مِنْ لَحْمِهَا وَشَرِبَا مِنْ مَرَقِهَا، قَالَ سُلَيْمَانُ: ثُمَّ رَكِبَ، ثُمَّ أَفَاضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى الْبَيْتِ فَصَلَّى بِمَكَّةَ الظُّهْرَ، ثُمَّ أَتَى بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ وَهُمْ يَسْقُونَ عَلَى زَمْزَمَ، فَقَالَ: انْزِعُوا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ، فَلَوْلَا أَنْ يَغْلِبَكُمُ النَّاسُ عَلَى سِقَايَتِكُمْ لَنَزَعْتُ مَعَكُمْ فَنَاوَلُوهُ دَلْوًا فَشَرِبَ مِنْهُ".

بيادغه ځائې نه دقربانئ ځائې ته لاړو او پخپل لاس مبارک ئې ۹۳ اوښان نحرکړل او علي رضي الله عنه ئې په قربانۍ کښې شامل کړو اوبيائې دهر اوښ نه ديوى يوى تيکى دغوښې اخستلو حکم اوکړو هغه ټولې تيى په يو ديګ کښې پخې کړې شوې، نبي ﷺ او علي رضي الله عنه اوخوړلې او دهغې شوروا ئې وڅکله اوبيا پخپله سورلئ سور شو اوکعبې ته لاړو سليمان وئيلى دى نبي ﷺ چه مې ته راغې نودماسپخين مونځ ئې اداکړو اوبياد عبدالمطلب داولاد طرف ته لاړو وئې فرمائيل اې دعبدالمطلب اولاده اوبه راوباسئ که چرې دا ويره نه وې چه خلق به په تاسو زوروز شي په تاسو باندې داوبو په ورکولو کښې نومابه هم ستاسو سره خلقوته اوبه ورکولې او راويستلې به مو هغوى يوه جدا بوکه راوويستله اونبي ﷺ ته ئې پيش کړه اوهغه ددې نه اوبه وڅکلې

**تشريح: قوله:** حدثنا عبدالله بن محمد النفيلي وعثمان بن ابى شيبة ...الخ :

دا حديث مصنف رحمه الله ته د متعدد شيوخو نه رسيدلې دې حتّٰى انتهى الٰى،، تردې چې زما نمبر راغې ما خپل نوم اووئيلو چې زۀ محمد بن علي بن حسين يم حضرت جابر رضي الله عنه د هغوى په نوم نسب اوريدلو سره د اهل بيت سره نزدې تعلق او محبت په وجه سره خوشحاله شو او دهغه د ګريوان تڼئ ئې خلاصې کړې اوپه سينه ئې ورله لاس د شفقت تيرکړو. حضرت په بذل کښې هم دا ليکلې دى چې دا لاس راښکل حبًّاواکرامًا لأهل البيت وو او امام

نووی دا ليکلي دی چې چونکه د عمر په لحاظ سره وړوکې وو په دې وجه ئې تانيساً دغه شان اوکړل ورنه د ځوان سړی په سينه باندې دغه شان لاس وهل مناسب نه دی(بذل)

قلت والا ظهر هو الاول فقام في نساجة،، د نساجه تفسير کتاب کښې مذکور دی ثوب ملفق يعنی ډبل څادر، دوه غبرګې، ممکن ده چې د هغې دواړه سرونه دې دپاره ګنډلې شوې وو چې هغه درديده وی د ټولو حاصل دا دې چې هغوی يو معمولي څادر واغستو او مونځ ئې اوکړو چې د وړوکوالی له وجې د هغوی په اوږو باندې قائم نۀ پاتې کيدو بلکه لاندې به پريوتلو حالانکه يو بل لوې او غټ څادر هغوی سره نزدې په تپائی باندې پروت وو( پته نشته چې داسې کولو کښې څۀ مصلحت وو) د دې حديث نه په صلوة فی ثواب واحد باندې هم استدلال کړې شوې دې باوجود د دې چې د يو نه زياته کپړه موجود وی

فقال بيده فعقد تسعاً قال بمعنی اشار يعنی هغوی په خپلو ګوتو سره شمار کولو سره اوښودل او وې وئيل چې پيغمبر ﷺ د هجرت نه پس دومره کالونه يعنی نهو کالو پورې اوسيدلو حج ئې اونکړو بيا چې کله لسم کال شو نو په هغې کښې پيغمبر ﷺ عام اعلان اوکړو چې په دې کال به زۀ حج کوم نو مدينه منوره کښې بې شماره خلق جمع کيدل شروع شو( چې د هغوی په تعداد کښې مختلف اقوال دی کم نه کم لس کم يو لاکھ او زيات نه زيات يو لاکھ ديرش زره خلق وو)

کلهم يلتمس ان ياتم برسول الله صلی الله عليه وسلم الخ هر سړی دا غوښتل چې په دې حج کښې د نبی کريم ﷺ پوره پوره اتباع اوکړی او چې کوم قسم احرام د پيغمبر ﷺ وی نو چې هم هغه قسم زما هم وی فخرج رسول الله صلی الله عليه وسلم وخرجنا معه د دې نه مخکښې باب الافراد کښې په حديث د عائشه رضي الله عنها کښې فخرجنا مع رسول الله صلی الله عليه وسلم موافين هلال ذی الحجة دې حديث کښې د مدينې منورې نه د روانيدو تاريخ بيان شوې دې فولدت اسماء بنت عميس الخ دا مضمون باب الحائض تهل بالحج کښې تير شوې دې ورسول الله صلی الله عليه وسلم بين اظهرنا وعليه ينزل القرآن

## انتهائی بابرکت او مقدس منظر

څلور واړو طرفته د صحابه کرام رضي الله عنهم مجمع او مينځ کښې فخرالانبياء او سيدالرسل فخرموجوات نبی کريم ﷺ تشريف فرما دې او په دې حال کښې چې قرآن هم نازليږی جبرائيل امين عليه السلام بار بار تشريف راوړی څومره عظيم القدر او بابرکت منظر وو چې د هغې مثال نۀ تيرو شوو زمانو کښې موندلې شوې دې او نۀ به آئنده دې دنيا کښې د دې مثال راشی واهل الناس بهذا الذی يهلون به يعنی صحابه کرامو به خپله خپله تلبيه لوستله( چې خپل شوق ذوق سره به ئې د تلبيه په الفاظو کښې اضافه کوله) او نبی کريم ﷺ خپله تلبيه لازم نيولې وه يعنی پيغمبر عليه السلام په کښې هيڅ قسم کمی زياتی نه کولو لسنا ننوی الا الحج تقدم الکلام عليه فی باب الافراد فی الحج تحت قوله لا نری الا انه الحج

**قوله:** حتی اذا اتينا البيت معه دا حديث جابر اګرچه ډير مفصل او جامع دې ليکن دلته په

کښې اختصار شوې دې مدينې منورې نه روانيدو نه پس مکې مکرمې ته رسيدلو کښې اتۀ ورځې صرف کېږي په دې دوران کښې چې کوم واقعات دوی ته پيښ شو په دې حديث کښې د هغې مطلقاً ذکر نشته البته نورو روایاتو کښې شته چې هغه حضرت شيخ صاحب په جزء حجة الوداع کښې ذکر کړې دی

**قوله:** استلم الركن دا د پيغمبر ﷺ په مکه مکرمه کښې داخليدو سره اولنې طواف دې چې جمهور ورته طواف قدوم وائی او احناف ورته طواف عمره وائی، د طواف ابتدا د حجر اسود د استلام (١) نه کيږی فرمل ثلثا د دې نه معلومه شوه چې دا طواف ماشياً يعنی د پيدل وو ځکه چې رمل صرف په طواف ماشياً کيدې شی يعنی تګ کولو کښې بعضې طوافونه پيغمبر ﷺ د سورلئ په حالت کښې هم کړې دی كما تقدم الكلام عليه في باب الطواف الواجب قال فكان ابی يقول د دې قائل حضرت جعفر بن محمد دې او د ابی نه مراد محمد دې چې دا قصه د حضرت جابر نه روايت کوی شرح السند قال ابن نفيل وعثمان

چونکه د مصنف شيوخ په دې حديث کښې متعدد دی په دې وجه د كان ابی يقول نه پس چې کوم عبارت دې په هغې کښې د مصنف د شيوخو اختلاف دې مصنف هغه بيانوی هغه دا چې ابن نفيل او عثمان خو دا اووې ولا اعلمه ذكره الا عن النبی صلى الله عليه وسلم او د مصنف دريم استاذ سليمان اووې ولا اعلمه الا قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم مطلب د دې تولو دا دې چې د جعفر پلار محمد وائی چې وراندې کومه خبره زۀ کول غواړم يعنی د تحية الطواف په دواؤ رکعتونو کښې د سورة کافرون او اخلاص قراءت دا جابر (٢) د حضور اکرم ﷺ نه نقل کړې دې چې هغوی به دې دواؤ رکعتونو کښې سورة کافرون او اخلاص لوستلو او د سليمان د الفاظو نه دا معلوميږی چې په دې رکعتونو کښې د دې دواؤ سورتونو لوستل د پيغمبر ﷺ نه قولاً روايت دې يعنی پيغمبر ﷺ اوفرمائيل چې دې دواؤ رکعتونو کښې دې دا دوه سورتونه لوستلې کيږی ليکن د صحيح مسلم په روايت کښې د الا قال قال رسول الله په ځائې الا قال كان رسول الله دې په دې صورت کښې به دا روايت قولی نۀ وی بلکه فعلی به وی وهو الموافق للسياق كما لا يخفى

ثم رجع الى البيت فاستلم الركن د دې نه معلومه شوه چې د سعی ابتداء هم د استلام دحجر نه کول پکار دی زمونږ فقهاء کرامو هم د دې د استحباب تصريح کړې ده بلکه ابن قدامه په دې باندې د ائمه اربعه اتفاق ليکلې دې ثم خرج من الباب الى الصفا د باب نه مراد باب الصفا دې كما فى رواية الطبرانی دا باب د حجر اسود بالکل مخامخ دې او صفا ته د تلو

---

(١) دغه شان د طواف اختتام هم په استلام باندې کيږی لهذا په يو طواف کښې اته ځله استلام کيږی، بيا که د طواف نه پس سعی هم کول وی لکه چه دلته په روايت کښې ذکردی نو ددې په شروع کښې هم چونکه استلام مستحب دې لهذا ټول به نهه ځله شی ليکن په بذل المجهود کښې دې آخری استلام ته نې استلام ثامن ليکلې دې چه دا په ظاهر سبقت دقلم دې د ثامن په ځائې تاسع کيدل پکار دی.

(٢) دا حصر د حديث د راوی جابر ﷺ په لحاظ سره دې يعنی محمد د جابر نه د دواړو سورتونو کوم قراة نقل کړې دې هغه د حضور ﷺ د مونځ متعلق دې نه چه د جابر ﷺ د مونځ.

دپاره د ټولو نه نزدې هم دا دروازه ده په دې دروازې باندې وتل مستحب دی

**قوله**: نبدا بما بدالله به د سعی ابتداء د صفا نه کول په نزد د ائمه اربعه واجب ده خلافاً لبعض التابعین

**قوله**: حتی اذا انصبت قدماه رمل فی بطن الوادی په صفا باندې د دعاء نه د فارغیدو نه پس پیغمبر ﷺ لاندې تشریف راؤړو او بطن وادی کښې ئې رمل اوفرمائیلو او منډه ئې اووهله بیا چې کله د مروه چړهائی شروع شوه نو د سعی په ځائې ئې مشی اوکړه

## د طواف او سعی نه پس د پیغمبر ﷺ له طرفه د فسخ الحج امر جازم

قوله: فمن کان منکم لیس معه هدی فلیحلل:

د سعی مکمل کیدو نه پس پیغمبر ﷺ هغې صحابو ته د حلالیدو حکم اوفرمائیلو چاچې ځان سره ځاروې نه ؤو بوتلې او دا چې دا طواف او سعی عمره اوګرځوی یعنی په ځائې د دې چې هغوی ئې طواف قدوم اوګرځوی او دې سعی لره د حج سعی اوګرځوی چې د طواف قدوم نه پس هم جائز ده څنګه چې د طواف زیارت نه پس هم کولې شی د دې ټولو نوم فسخ الحج الی العمره دې او دا زیات تر هغه حضرات وو چې مفرد حج والا وو ومن کان معه هدی دې حضراتو تعیین مونږ سره مخکښې په باب فی أفراد الحج کښې تیر شوې دې دخلت العمرة فی الحج د دې نه د اکثرو په نزد مراد جواز الاعتماد فی اشهرالحج دې چې د هغې د ظاهر او ثابت کولو دپاره پیغمبر ﷺ فسخ الحج الی العمره کړې وو د دې نورې معنې هم اخستلې شوې دی(١) کما فی البذل

فوجد فاطمة رضی الله عنها ممن حل...............فانکر علی رضی الله عنه ذلک علیها الخ

حضرت علی رضی الله عنه چې اول پیغمبر ﷺ یمن ته لیږلې وو د هغه ځائې نه واپسئ کښې مکې ته راؤرسیدل خپلې او د پیغمبر ﷺ هدې راؤړلو سره او دلته اکثر صحابه چې په هغې ازواج مطهرات او حضرت فاطمه رضی الله عنهن هم شامل وو د پیغمبر ﷺ په حکم سره فسخ الحج الی العمره کولو سره حلال شوې وو حضرت علی رضی الله عنه چونکه د دې نه پس بیا راؤرسیدلو او د دې واقعې خبر ورته نۀ وو نو چې څنګه ئې حضرت فاطمه رضی الله عنها اولیدله چې هغه د خپل احرام نه حلاله شوې ده نو په دې خبره خفه شو او وې فرمائیل چې دا تا څه کړې دی؟ نو په دې باندې حضرت فاطمه رضی الله عنها اوفرمائیل چې ما د خپل پلار په وینا داسې کړې دی حضرت علی رضی الله عنه فرمائی چې زۀ د دې په اوریدلو سره ناراض شوم او پیغمبر ﷺ ته

(١) فقیل معناه جواز القران والمراد بالدخول دخول افعال العمرة في افعال الحج کما هو عند الجمهور خلافا للحنفیه وقیل معناه جواز فسخ الحج الي العمرة الي الأبد کما هو مسلك الحنابلة والظاهریة وضعف هذین المعنیین النووي کما في البذل، خو حافظ ابن قیم په زاد المعاد کښې دې لره په فسخ الحج الی العمره باندې محمول کړې دې او ډیر په زور او شور سره ئې وئیلې دی چه که په مونږ کښې څوک د حج احرام اوتړی نو زه په هغه باندې فرض او واجب ګرځوم چه هغه دا فسخ کړی او عمره ئې اوګنړی، او درسول الله ﷺ ددې ناراضګئ نه ېچ شی کومه چه حضور ﷺ په هغه صحابو باندې ښکاره کړې وه چاته چه په فسخ الحج کښې شک وو، الي آخر ماقال-

ورغلم او ټوله خبره مې حضور اکرم ﷺ ته عرض کړه نو پيغمبر ﷺ اوفرمائيل صدقت صدقت،، چې فاطمه رشتيا وائی هغه زما په حکم سره حلال شوې ده قال فكان علی يقول بالعراق راوی وائی چې کله حضرت علی ﷛ په خپله دارالخلافه عراق کښې وو نو هغه وخت به ئې دا خبره بيانوله چې زۀ د فاطمه نه ناراض شوم او حضور اکرم ﷺ ته ورغلم..الخ.

**قوله:** ماذا قلت حين فرضت الحج پيغمبر ﷺ د حضرت علی ﷛ د جواب ورکولو نه پس اوفرمائيل چې تۀ خپله اووايه ! چې تا کله احرام تړلې وو نو څۀ نيت دې کړې وو يعنی کوم قسم احرام دې تړلې وو هغوی عرض اوکړو چې ما د احرام تړلو په وخت دا نيت کړې وو چې يا الله ! کوم قسم احرام ستا د نبی ﷺ دې هم د هغې احرام زۀ هم نيت کوم( دې ته احرام معلق وائی) په احرام معلق او احرام مبهم باندې مونږ خبره کړې ده حضور ﷺ حضرت علی ته اوفرمائيل چې چونکه زۀ او تاسو دواړه سائق الهدی يو لهٰذا مونږ حلال نۀ يو او باقی ټول خلق چې غيرسائق الهدی وو نو په عمرې کولو سره حلال شو

**قوله:** فلما كان يوم التروية ووجهوا الی منی اهلوا بالحج چې کوم خلق په عمره کولو سره څلورمه ذی الحجه باندې حلال شوې وو هغوی( د دريو ورځو تيريدلو نه پس څلورمه ورځ) يوم الترويه يعنی اتمه ذی الحجه باندې چې کله هغوی د منی د تللو اراده اوکړه نو دوباره ئې نوې احرام د حج دپاره اوتړلو او منی ته چې لاړل نو ټولو د ماسپخين مونږ او بيا د مازيګر په وخت کښې د مازيګر مونځ دغه شان د ماښام، ماسخوتن او بيا د سحر مونځ يې اوکړو د دې نه معلومه شوه چې د حج مسنون طريقه دا ده چې د مکې مکرمې نه منی ته په اتمه ذی الحجه د ماسپخين نه مخکښې اورسی او هلته يو شپه تيره کړی او د ماسپخين نه سحر پورې پنځه مونځونه هلته اوکړی څنګه چې پيغمبر ﷺ اوکړل

**قوله:** حتی طلعت الشمس بيا په نهمه ۹ ذی الحجه په سحر د طلوع شمس نه پس نبی عليه السلام د دې ځائې نه عرفات ته روان شو

## د حج پنځۀ ورځې او د هغې ورځو کارونه

د حج پنځه مشهورې ورځې دی چې په هغې کښې د حج ټوله کاروائی شروع شی او پوره شی يعنی د اتمې ذی الحجې نه دولسمې ذی الحجې پورې، حاجی په اتمه ذی الحجه باندې منی ته لاړ شی هلته يو شپه تيره کړی نو بيا په نهم تاريخ سحر د طلوع آفتاب نه پس د هغۀ ځائې نه عرفات او بيا د نمر پريوتلو نه پس واپسئ کښې مزدلفه کښې شپه تيرول او بيا په يوم النحر يعنی لسمه ذی الحجه باندې د صبح صادق نه پس د سحر مونځ کولو نه پس مشعر حرام سره نزدې لږ ساعت وقوف کول د دې نه پس د طلوع شمس نه مخکښې د مزدلفې نه منی ته واپس کيدل او منی ته راتللو سره په اوله ورځ (لسمه ذی الحجه) رمی جمرة العقبه يعنی صرف د غټ شيطان ويشتل، د دې نه پس ذبح يعنی قربانی کول بيا حلق بيا مکه مکرمه کښې طواف زيارت کول دا څلور کارونه دې ترتيب سره په لسمه ذی الحجه

باندې کولې شي، حاجی په دې ورځ باندې د ټولو نه زیات مشغول وی چې مسلسل څلور کارونه کول وی بیا په یوولسمه او دولسمه ذی الحجه باندې د دریو واړو شیطانانو ویشتل دا ټولې پنځه ورځې شوې اوس حاجی ته اختیار دې که غواړی نو په دیارلسمه ذی الحجه هم پاتې کیدې شی او په هغه ورځ دې رمی اوکړی او که غواړی نو په دولسمه ورځ د منی نه مکې مکرمې ته هم واپس راتلې شی قال تعالی فمن تعجل فی یومین فلا اثم علیه ومن تاخر فلا اثم علیه.

دولسمې ذی الحجې ته یوم النفر الاول، دیارلسمې ته یوم النفر الثانی او ۱۱، ۱۲او ۱۳ دې دریو واړو ورځو ته ایام منی وئیلې شی اوس د حاجی په ذمه صرف یو کار کول دی یعنی د مکې مکرمې نه چې کله وطن ته واپس کیږی نو طواف وداع کول، دا کارونه د حج اجمالی ترتیب دې ([1])

## د حدیث تشریح :

**قوله:** وامر بقية له من شعر فضربت بنمرة..الخ:

پیغمبر ﷺ د منی نه د روانیدو نه مخکښې دا ترتیب جوړ کړو چې خپل ځان دپاره ئې عرفات ته نزدې په نمره مقام کښې د ویښتو نه جوړه شوې یو خیمه اولګوله چې هلته رسیدلو سره آرام اوکړی او بیا چې کله د وقوف عرفات وخت راشی نو د دې ځائې نه غسل وغیره اوکړی او تیار روان شی نو هلته رسیدلو سره پیغمبر ﷺ هلته پاتې شو زوال شمس پورې، د زوال نه پس پیغمبر ﷺ د دې ځائې نه سور شو او بطن عرنه ته اورسیدل هلته کښې ئې خطبه اولوسته د خطبې نه پس ئې د ماسپخین او مازیګر دواړه مونځونه په جمع ادا کړل لیکن واضحه دې وی چې اوسه پورې وقوف عرفات شروع شوې نۀ وو ځکه چې بطن عرنه د جمهورو په نزد د عرفات نه خارج ده په دې وجه په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم د دې ځائې وقوف معتبر نۀ دې کما فی الاوجز، دغه شان نمره هم چرته چې پیغمبر ﷺ قبه قائم کړې وه د جمهورو په نزد د عرفات نه خارج ده البته د احنافو په نزد عرفات کښې داخل ده وقیل عندمالک ایضاً

بهرحال چې پیغمبر ﷺ کله د خطبه او جمع بین الصلوتین نه فارغ شو نو د خپل وقوف ځائې ته ئې تشریف یوړو یعنی د جبل رحمت لمن ته چې د میدان عرفات په مینځ کښې واقع دې نو پیغمبر ﷺ په خپله اوښه باندې د سوریدو په حالت کښې نمر پریوتلو پورې دې ځائې کښې وقوف اوکړو د دې ټولو ذکر مخکښې روایت کښې راغې مونږ د مضمون د تکمیل دپاره ټول دلته یوځایئ ذکر کړل

ولا تشک قریش ان رسول الله صلی الله علیه وسلم واقف عندالمشعر الحرام ځان پوهول پکار دی چې حاجی اولاً د مکې مکرمې نه منی ته راځی بیا هلته یو شپه کولو نه پس

---

[1] کومو خلقوچه تر اوسه پورې حج نه وی کړې هغوی ته دکتاب الحج احادیث باندې پوهیدل لږ مشکل وی ځکه چه دحج نقشه ئې مخې ته نه وی دداسې خلقو دپاره مونږ دا اجمالی کیفیت لیکلې دې.والله الموفق

میدان عرفات ته ځی د منی او عرفات مینځ کښې مزدلفه واقع ده څنګه چې منی د مکې مکرمې نه درې میله فاصله باندې ده دغه شان د منی نه مزدلفه هم درې میله فاصله باندې ده بیا دغه شان د مزدلفې نه وړاندې عرفات هم درې میله فاصله باندې دې

د دې نه پس ځان پوهه کړئ اچې منی او مزدلفه دا دواړه خو د حرم په حدود کښې داخل دی او عرفات د حرم نه خارج دې د اسلام نه وړاندې دا دستور وو چې عامو خلقو به وقوف هم عرفات کښې کوو لیکن قریشو دې معامله کښې خپل ځان سره خصوصی سلوک کولو هغوی به وئیل نحن قطین الله،، یعنی دا چې مونږ د بیت الله اوسیدونکی او ګاونډیان یو د حج سره چې څومره متعلق کارونه دی نو هغه ټول به زمونږ دپاره د حرم په حدودو کښې دننه وی نو هغوی به د عرفات وقوف د عرفات په ځائې په مزدلفه کښې کولو او بیا به د دې ځائې نه منی ته واپس تلل، د کفار قریش اسلام راؤړلو نه پس پیغمبر ﷺ صرف یو حج کړې دې چې هغې ته حجة الوداع وئیلې شی نو دې حج کښې چې کوم قریش پیغمبر ﷺ سره وو هغوی دا ګنړل چې پیغمبر ﷺ به هم وقوف په مزدلفه کښې کوی لیکن کار داسې اوشو چې کله لار کښې مزدلفه راغله نو پیغمبر ﷺ هغه پریخودله او خپل ټول لښکر او مجمع سره سیدهه عرفات ته اورسیدل ټول قریش حیران پاتې شو دا راوی بیانوی ولا تشک قریش ان رسول الله صلی الله علیه وسلم واقف عند المشعرالحرام د دې باره کښې قرآن کریم فرمائی ثم افیضوا من حیث افاض الناس یعنی ټولو خلقو ته هم دا پکار دی چې هغوی په عرفات کښې وقوف اوکړی او د هغه ځائې نه واپس شی

## د عرفات د خطبې د بعضې جملو تشریح

**قوله:** ان دمائکم واموالکم علیکم حرام کحرمة یومکم هذا ...الخ:

یعنی څنګه چې ستاسو په نزد په دې مخصوص ورځو او د ذی الحجه په میاشت کښې او خاص د حرم شریف په حد کښې د یو بل په مال جان باندې حمله کول حرام دی دغه شان دا کار د الله تعالی په نزد او نورو ورځو او میاشتو کښې هم حرام دې لهذا هر وخت او هر ځائې کښې د یو بل په مال او جان باندې ناحق حمله کول او ناحق قبضه کول حرام ګنړل پکار دی الا ان کل شئ من امرالجاهلیة تحت قدمی موضوع پیغمبر ﷺ دې خطبه کښې ډیر طاقت والا او مؤثر جملې ارشاد اوفرمائیلې او د اسلام بنیادی تعلیمات ئې واضح کړل سبحان الله ! د رسالت حق ئې ادا کړو ارشاد فرمائی د جاهلیت رسمونه د جاهلیت د زمانې ټول رسمونه او رواجونه او عادات، زۀ د خپلو قدمونو لاندې چخنړی کوم او پامال کوم، دغه شان د جاهلیت په زمانه کښې چې کوم جنګونه اوشو چې د هغې انتقام او قصاص په ذهنونو کښې دې هغه ټول موضوع او ساقط دی مضی مامضی یعنی چې تیر شو نو هغه هیر شو اوس به د هغې بدله نۀ اخستلې کیږی

**قوله**: واول دم اضعه من دمائنا فرمائی او د دې قصاص او بدلې پرېښودلو ابتداء او شروع زهٔ د خپل ځان نه کوم لهذا زهٔ د ربیعه بن الحارث[1] ځوې (چې نوم ئې اياس دې) د هغهٔ خون معاف کوم چې هغه هذیل قتل کړې وو (لهذا اوس به زهٔ د هذیل نه د هغهٔ قصاص يا ديت نهٔ اخلم)

واول رباً اضع ربانا ربا عباس بن عبدالمطلب فرمائی دغه شان د سودی معاملې په سلسله کښې زما د ترهٔ عباس چې کومه پيسه دې مد کښې په دې خلقو ده هغه ساقط ده نهٔ صرف د سود رقم بلکه د هغوی په حق کښې پيغمبر ﷺ دا فيصله اوکړه چې هغوی به راس المال هم نهٔ اخلی کما هو مصرح فی بعض الروايات په خلاف د نورو خلقو چې هغوی به صرف د سود رقم نه اخلی وان لکم ان لا یوطئن فرشکم یعنی د سړو حقوق په ښځو باندې دا دی چې هغوی ستاسو بسترې داسې خلقو باندې پامال نهٔ کړی چې هغه تاسو نهٔ خوښوئ يعنی د خاوندانو په غير موجودګئ کښې به ښځې داسې سړو ته اجازت نهٔ ورکوی چې د هغوی کور کښې داخليدل خاوند ته ناخوښ وی د جاهليت په زمانه کښې چې هرکله ډيره زياته بې پردګی وه د خاوند په غيرموجودګئ کښې به هم ښځې نور سړی کور ته راغوښتل او خپلو کښې به ئې بلاتکلف خبرې اترې کولې پيغمبر ﷺ دې خطبه کښې د دې خراب او بد عادت نه منع فرمائی د ايطاء مجرد وطأ دې يعنی پامال کول د ايطاء فرش نه مراد دا دې چې څهٔ مونږ ذکر کړل او دا د زنا نه کنايه نهٔ ده ورنه بيا خو به ئې سزا حد او رجم وو نهٔ چې وهل (بلل) دغه شان به دې صورت کښې د تکرهونه قيد هم بې ځايه شی ځکه چې زنا مطلقاً هر سړی باندې حرام ده وانتم مسئولون عنی پيغمبر ﷺ فرمائی چې د قيامت په ورځ باندې به ستاسو نه زما باره کښې سوال کيږی چې ستاسو پيغمبر د الله تعالی احکامات رسولې وو که نه؟ د رسالت حق ئې ادا کړې وو که نه؟ نو تاسو به څه جواب ورکوی؟ ټولو يو ځل باندې اووې چې مونږ به دا ګواهی ورکوو چې بيشک تاسو ټول احکامات راؤرسول او امانت مو پوره کړو او امت سره مو پوره پوره خيرخواهی اوفرمائيله چې کله پيغمبر ﷺ د صحابه کرامو ﷺ دا جواب واؤريدلو نو په دې ئې الله تعالی ګواه جوړ کړو خپلې ګوتې مبارکې سره به ئې آسمان طرفته اشاره کوله او بيا به ئې دحاضرينو طرفته ښکته کوله اودا به ئې وئيل اللهم اشهد اې الله تهٔ ګواه اوسې د دې ټولو په دې اعتراف باندې کوم چې دوی د رسالت د رسولو باره کښې کوی

**فائده**: دا خطبه د عرفات والا خو دلته دې روايت کښې هم دومره ده هسې پيغمبر ﷺ حجة الوداع کښې مختلف مقاماتو باندې مختلف خطبې ارشاد فرمائيلې دی، د منی په ورځو کښې چې پيغمبر ﷺ کومې خطبې ارشاد فرمائيلې دی د هغې ذکر مصنف رحمه الله وړاندې يو څو مستقل بابونو کښې کړې دې، کتب صحاح کښې خو دا جملې مجمل او

[1] ربيعه بن الحارث دهغوی د تره ځوې دې، د ربيعه ځوې اياس په ماشوموالی کښې په قبيله بنوسعد کښې پيۍ څکلی وو (د يوې داينړې) ددغه قبيلې د قبيله هذيل سره جنګ روان وو، اتفاق سره داسې اوشو چه يوه ورځ دا ماشوم په ځړپوسو روان وو چه اچانک د هذيل د طرفه يو کاڼړې راغې هغه پرې اولګيدو او مړشو.

مختصر دی لیکن د حدیث په نورو کتابونو مسند احمد وغیره کښې قدر تفصیل سره ملاویږی هغې کښې ډیرو خطبو لره حضرت مولنا حبیب الرحمن اعظمی رحمه الله زمونږ د حضرت شیخ صاحب په وینا باندې جمع کړې دی یو مستقل رساله د جزء خطبات النبی ﷺ په نوم سره د جزء حجة الوداع تکمله ګرځولې شوې ده

**قوله**: ثم اذن بلال ثم اقام د دې خطبې نه چې کله فارغ شو نو د ماسپخین په وخت ئې د ماسپخین او مازیګر دواړه مونځونه په جمع سره اوکړل

## جمع بین الصلوتین بعرفه

دې حدیث کښې دی چې پیغمبر ﷺ دلته دا دواړه مونځونه اذان او اقامت سره ادا کړل د ائمه ثلثه ابوحنیفه، شافعی او احمد رحمهم الله مسلک هم دا دې د امام مالک صاحب په نزد دا جمع باذانین واقامتین ده د دې جمع دپاره یو شرط هم دې هغه دا چې د جماعت مونځ وی او دې سره سره د امام المسلمین یا د هغهٔ د نائب په اقتداء کښې وی لیکن دا شرط د امام ابوحنیفه،سفیان ثوری او ابراهیم نخعی په نزد دې د ائمه ثلثه او صاحبینو په نزد نهٔ دې د هغوی په نزد منفرد هم جمع کولې دی دلته یو بل اختلاف هم دې هغه دا چې دا جمع د ائمه ثلثه په نزد للنسک ده( د دې تعلق د حج سره دې) لهذا په دې کښې مسافر او مقیم برابر دې او د امام شافعی صاحب په نزد دا جمع للسفر ده لهذا څوک چې د مکې مکرمې مقیم وی نو هغهٔ دپاره به دا جمع بین الصلوتین جائز نهٔ وی

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی چې مزدلفه کښې کومه جمع بین الصلوتین کیږی په هغې کښې د ائمه مسلک هم هغه دې چې کوم په جمع بین الصلوتین بعرفه کښې دې یعنی د شافعیه او حنابله په نزد باذان واقامتین او د امام مالک صاحب په نزد باذانین و اقامتین لیکن د احنافو په نزد دې دواړو جمعو کښې فرق دې اول ځائې کښې باذان واقامتین او مزدلفه کښې باذان واقامة یعنی اذان هم یو او اقامت هم یو په خلاف د عرفات چې هلته اذان یو او اقامت دوه، چې د دې اصل وجه خو د روایاتو اختلاف دې دویمه وجه موافقت دقیاس دې ځکه چې اول ځائې کښې خو مازیګر د خپل وخت نه مخکښې کیږی په دې وجه د هغې دپاره مزید اطلاع ضروری ده په خلاف د مزدلفې چې دلته دویم مونځ په خپل وخت کښې کیږی فلا حاجة الی تکرار الاعلام

**قوله**: ولم یصل بینهما شیئاً د دواړو مونځونو په مینځ کښې به بالاتفاق څهٔ نفل یا سنت وغیره نشی کولې ثم رکب القصواء حتی اتی الموقف بیا پیغمبر ﷺ د دې ځائې یعنی عرنه نه په قصوی اوښه سور شو او موقف یعنی هغه خاص ځائې ته چرته چې پیغمبر ﷺ وقوف کول غوښتل ئې تشریف یوړو فجعل بطن ناقته[۱] القصواء الی الصخرات د دې نه د راوی مقصد دا دې چې پیغمبر ﷺ اوښه کوم ځائې او څنګه اودروله؟ هغه دا چې پیغمبر ﷺ خپله اوښه( د جبل رحمت لاندې) هغه ځائې کښې اودروله چرته چې کاڼړی خوارهٔ وارهٔ وو

---

[۱] حضور پاک ﷺ د خپلې اوښې خیټه صخرات طرف ته کړه دهغې خیټه به صخرات طرف ته هغه وخت وی کله چه هغه په صخرات باندې ولاړه وی او دهغې لاندې به صخرات وی،کما لا یخفی.

وجعل حبل المشاة[1] د حبل المشاة نه مراد حبل الرمل دې يعنې شګلونه زمکه د دې نسبت مشاة طرفته ځکه اوکړې شو چې په داسې لار کښې صرف پيدل تلونکی خلق تلې شی د سوارلۍ په ذريعې سره په دې باندې تلل ډير مشکل دی د کلام خلاصه دا شوه چې اوښه داسې ځائې کښې ولاړه وه چرته چې کانړی خوارهٔ وارهٔ وو او د هغې وړاندې شګلونه زمکه وه او د اوښې مخ قبلې طرفته وو فلم يزل واقفاً حتى

غربت الشمس په عرفات کښې نمر پريوتلو پورې ايساريدل واجب دی د نمر پريوتلو نه پس د دې ځائې نه روانيدل پکار دی په عرفات کښې د کوم وخت نه کوم وخت پورې ايساريدل ضروری دی او د دې وقوف فرض مقدار څومره دې او واجب مقدار څومره دې؟ د دې تفصيل به د ائمه کرامو د اختلاف سره باب الوقوف بعرفه کښې راشی.

واردف اسامه خلفه پيغمبر ﷺ د عرفات نه مزدلفې ته واپسۍ کښې خپل رديف (شاته دوئم كس کينول) حضرت اسامه جوړ کړو او د مزدلفې نه منئ ته د روانيدو په وخت کښې حضرت فضل بن عباس (كما سياتى قريباً) وقد شنق للقصواء الزمام شنق يعنى ضيق يعنى كوم وخت چې د عرفات نه روان شو نو د پيغمبر ﷺ په اوښه شريفه په ډير زور وه او ډير قوت او جوش سره روانه وه[2] حالانکه پيغمبر ﷺ د هغې واګې وغيره ډير تنګ ساتلې وو (او خپل طرفته ئې راښکلې وې) تردې پورې چې د اوښې سر د کجاوې وړاندې حصې[3] سره لګيدو وهو يقول بيده اليمنى السكينة خلقو د عرفات نه د روانيدو په وخت مزدلفې ته جلدۍ سره د رسيدلو په اهتمام کښې) خپلې خپلې سورلۍ ښهٔ تيزې کړې وې نو وړاندې روايت کښې رآخي والناس يضربون الابل يميناً وشمالاً .

او دويم روايت کښې دی فقال يا ايهاالناس عليكم بالسكينة فان البر ليس بايجاف الخيل والابل دلته روايت کښې دی يقول بيده بذل المجهود کښې د يقول تفسير ئې يشير سره کړې دې چې د هغې وجه دا ده چې په روايت کښې د بيده لفظ موجود دې د دې تقاضه خو دا ده ليکن چونکه نورو رواياتو نه معلوميږی څنګه چې مخکښې راروان دی چې دا هدايت پيغمبر ﷺ قولاً او لساناً ورکولو په دې وجه د يقول بيده مطلب دا اخستل پکار دی يقول بلسانه مشيراً بيده يعنې ژبې مبارکې سره ئې فرمائيل د لاس په اشارې سره والله تعالى اعلم

كلما اتى حبلا من الحبال چې تللو تللو کښې به کله د شګو ډيرۍ راغله نو پيغمبر ﷺ به د سورلۍ واګې سست کړې چې په آسانه سره اوخيژی

[1] مشاة د ماشئ جمع ده لکه څنګه چه قضاة د قاضئ جمع ده، او حبل د حاء مهمله په فتحې اود باء موحده په سکون سره په معنی د الرمل المستطيل د شګې اوږده سلسله او دا جبل بالجيم وبفتحتين هم وئيلې شی يعنی لاره.
[2] ممکن ده چه د شهسوار روحانيت په اوښه کښې اثر انداز شوې وی يا په سبب د افتخار سره چه ددې شهسوار د دوارو جهانو سردار وو.
[3] مورک په فتحه دميم او کسرې د راء سره د کجاوې مخکښې هغه حصه په کوم چه شهسوار د ستړی کيدو په وخت خپې ايږدی چه دا د څرمنې تسمه شان وی.

## جمع بين الصلوتين بمزدلفه

حتى اتى المزدلفة فجمع بين المغرب والعشاء باذان واحدٍ واقامتين

د اذان او اقامت باره کښې د ائمه اربعه د جمع بين الصلوتين بعرفة په باب کښې تير شو يعنې د امام شافعي او احمد په نزد يو اذان او دوه اقامتونه (کمافي هذه الرواية) او د حنفيه په نزد يو اذان او يو اقامت او د امام مالک په نزد دوه اذانونه او دوه اقامتونه دلته يعنې په مزدلفه کښې جمع بين الصلوتين کښې درې قولونه نور دی (١) باقامة فقط به قال الثورى واحمد فى رواية، (٢) باقامتين فقط به قال اسحاق واحمد فى رواية، (٣) لا اذان ولا اقامة اختاره بعض السلف

ولم يسبح بينهما شيئاً د دواړو مونځونو په مينځ کښې به بالاتفاق څه سنت يا نفل مونځ نۀ شی کولې البته بيا روسته د ماښام او د ماسخوتن سنت او وتر کولې شی عندالحنفيه والشافعيه دون المالكيه

ثم اضطجع رسول الله صلى الله عليه وسلم حتى طلع الفجر يعنى په مزدلفه کښې چې کله د جمع بين الصلوتين نه فارغ شو نو نبی ﷺ تکيه اولګوله او د سحر د راختلو پورې ئې ارام اوکړو

## ليلة المزدلفة کښې نبی عليه السلام تهجد کړې وو يا نه؟

د دې د ظاهر نه دا معلوميږی چې په دې شپه کښې نبی ﷺ قيام الليل نۀ وو کړې يعنى د شپې ئې تهجد نۀ وو کړې د حضرت شاه ولى الله قدس سره هم دا رائې ده شاه صاحب فرمائی چې نبی ﷺ به بعضې مستحبات په مجامع کښې ترک کول د خلقو د آسانتيا دپاره ورنه بيا به تول د نبی ﷺ په اتباع کښې د دې په کولو باندې مجبور وو اګرچه بعضو ته په کښې عذر وی او هم دا خبره علامه قسطلانی په مواهب لدنيه کښې هم ليکلې ده کما فى البذل د دې نه پس حضرت سهانپوری رحمه الله ليکی په دې روايت کښې خو د سنت او وتر ذکر هم نشته (حالانکه د وتر او د سنت تول قائل دی) لهذا يا خو دې دا توجيه اوکړې شی چې دا نفی په علم د راوی باندې مبنی ده او ظاهر دا ده چې نبی ﷺ قيام الليل فرمائيلې وو او يا دې کم از کم دومره تسليم کړې شی چې د راوی مراد دا دې چې نبی ﷺ د فرض مونځ نه پس سنت او وتر اوکړل او بيا اودۀ شو د تهجدو دپاره بيدار نۀ شول د مطلق مونځ نفی مراد نۀ ده والله تعالى اعلم

فصلى الفجر حين تبين له الصبح چې سحر څنګه را اوختلو نو نبی ﷺ د سحر مونځ اوکړو په دې باندې د تولو اتفاق دې چې دلته د سحر په مانځه کښې تغليس مسنون دې

حتى اتى المشعر الحرام وړاندې په باب الصلوة بجمع کښې د المشعر الحرام په ځائې لفظ قزح دې ووقف على قزح فقال هذا قزح معلومه شوه چې مشعرحرام او قزح يو څيز دې امام نووی صاحب رحمه الله فرمائی چې دا په مزدلفه کښې يو مشهور غر دې

دلته دوه څيزونه دی يو مبيتِ مزدلفه يعنى په مزدلفه کښې شپه تيرول او دويم

وقوف عرفه یعني د صبح صادق نه پس د سحر د مونځ نه پس لږ وخت دپاره د مشعرحرام نزدې وقوف کول، د دې دواړو په حکم کښې د ائمه کرامو اختلاف دې چې هغه به مونږ آئنده د دې په مناسب باب کښې ذکر کوو

**قوله**: ثم دفع قبل ان تطلع الشمس د مزدلفې نه نبی ﷺ د طلوع شمس نه مخکښې روان شو او هغه وخت نبی ﷺ خپل د ترۀ ځوې فضل بن عباس په خپله سورلۍ باندې وروستو کینوو (او د عرفات نه د روانیدلو په وخت کښې ئې اسامه په خپله سورلۍ باندې سور کړې وو) كما سبق

یاد ساتل پکار دی چې په باب الصلوة بجمع کښې د حضرت عمر رضي الله عنه حدیث راروان دې كان اهل الجاهلية لا يفيضون حتى يروا الشمس على ثبير یعني په زمانه د جاهلیت کښې به چې مشرکینو کله حج کوو نو د مزدلفې نه به هغه وخت پورې نۀ روانیدل چې ترڅو به طلوع آفتاب نه وو شوې نبی ﷺ د هغوی مخالفت اوکړو او د دې ځائې نه د طلوع آفتاب نه مخکښې روان شو

**قوله**: من الظعن يجرين: ظعن[1] د ظعینه جمع ده دا مضمون د دې نه مخکښې په باب الرجل يحج عن الغير کښې د ابن عباس رضي الله عنهما په روایت سره دغه شان تیر شوې دې فجائته امراة من خثعم تستفتيه فجعل الفضل ينظر اليها

## د حدیث شرح او په نظر الرجل الی المرأة وعکسه کښې مذاهب ائمه

د دې نه معلومیږي چې د فضل بن عباس نظر په تولو تیریدونکو ښځو باندې نۀ پریوتلو بلکه صرف په هغه ښځه باندې چې کومه د نبی ﷺ مخې ته راغلې وه د مسئلې د تپوس کولو دپاره نو د دې سوال وجواب په وخت کښې ورته هغوی اوکتل او عادتاً دغه شان کیږي چې کله یو سړې وړاندې یعني مخامخ راشي او چاسره خبرې اترې کوي نو دې کس سره د ناست سړي نظر هم خامخا په هغې خبرې کوونکي باندې پریوځي او دې وخت کښې عام طور سره په داسې موقع باندې مقصود متکلم ته کتل نۀ وي بلکه په کتلو سره مقصود هغې متکلم خبرې اوریدل وي لیکن بیا هم احتیاطًا نبی ﷺ دوی لره هغې طرفته د نظر کولو نه منع کړل لیکن د بعضې روایاتو د سیاق او الفاظو نه معلومیږي چې فضل هم د دې خثعمیه حسن ته کتل[2] لیکن دا د راوي خپل ګمان دې بهرحال که داسې وي نو بیا هم څۀ خاص د اشکال خبره نۀ ده ځکه چې د اکثر ائمه کرامو په نزد نظر الرجل الی المراة، د مخ او د کفینو په حق کښې جائز دې.[3] په دې شرط چې د فتنې او فساد ویره نۀ وي او نه دا کتل د

---

[1] د دې مزید تحقیق په باب الرجل یحج عن الغیر کښې ﴿ لا يستطيع الحج والعمرة ولا الظعن ﴾ د لاندې تیر شوې دې

[2] قال الحافظ (ص ۵۷ ج ۲) وفي رواية وكان الفضل رجلا وضيا اي جميلا واقبلت لمراءة من خثعم وضيئة فطفق الفضل ينظر اليها واعجبه حسنها. اهـ

[3] په دې سلسله کښې د مذاهب ائمه تحقیق ان شاء الله دا دې : نظر الرجل الي المراءة، په دې کښې خلاصة المذاهب دې چه په شوافعو کښې د امام نووي رحمه الله په نزد مطلقا حرام او ناجائز دې......٦

لذت او شهوت په قصد سره وی وههنا کذلک یعنی دلته هم دغه شان خبره وه لکه د ترمذی شریف په روایت کښې راځی چې کله نبی علیه السلام د فضل مخ د هغه طرفنه واړؤو نو د دوی تره حضرت عباس رضی الله عنه سوال اوکړو چې یا رسول الله! تاسو د خپل تره د ځوی مخ واړوو نو نبی علیه السلام اوفرمائیل رایت شاباً فلم آمنِ الشیطان علیهما د دې نه معلومه شوه چې دا د مخ اړول صرف د فتنې د ویرې په وجه وو نۀ چې د فتنې د واقع کیدو په وجه هم دا خبره شارح د مسلم هم فرمائیلې ده او هغوی په امام نووی او قاضی عیاض باندې رد کړې دې چې د هغوی د کلام نه دا وضاحت کیږی چې دلته نبی علیه السلام د امر منکر تغییر بالید فرمائیلې دې ابی فرمائی وقوع نۀ وه بلکه د وقوع خوف وو لکه څنګه چې قرطبی لیکلې دی والله تعالی اعلم (من الاوجز ص ۴۵۴ ج۳)

شارحینو لیکلې دی چې د سړی په فطرت کښې دا خبره ده د ښائسته او حسین صورت طرفته د کتلو رغبت او دا ګناه هم نۀ ده په دې شرط چې د لذت او د شهوت قصد او اراده نۀ وی ورنه بیا ناجائز او ممنوع دی

**تنبیه**: د صحیحین وغیره[1] اکثرد احادیث د کتابونو نه معلومیږی چې پیغمبر علیه السلام کله د فضل په مخ باندې لاس کیخودلو نو هغوی خپل مخ بل طرفته واړوو او د هغې طرفنه ئې کتل نو نبی علیه السلام د هغې طرفنه هم منع کړو فقط

او دلته د ابوداؤد په روایت کښې مزید دا دی چې کله نبی علیه السلام هغوی لره د دویم طرف د کتلو نه هم منع کړل نو بیا هغوی د هغې دویم طرفته کتل شروع کړل دا دریم ځل باندې کتل بنده ته د ابوداؤد د روایت نه بغیر بل ځائې نۀ دی ملاؤ شوې لهذا زما غالب ګمان دا دې چې دا زیادتی شاذ او غیرمعتمد ده والله سبحانه وتعالی اعلم او حضرت په بذل المجهود کښې د دې دا توجیه کړې ده چې په دې دریم ځل کښې د ینظر نه مراد نظر الی ذلک الجانب دې ۱ه

**قوله**: قلت ولم آل جُهداً فی تحقیق هذا المقام وتشریحه ولم اره مجموعاً فی شرح من شروح الحدیث فلله الحمدوالمنه

---

ـــه....که د فتنې ویره وی یا نه وی، که شهوة وی او که نه وی، او هم دا د امام احمد رحمه الله رائې ده کمافي المغني. او په شوافعو کښې د علامه رافعی رائې دا ده چه د سړی نظر د زنانه مخ او لاسونو ته کتل جائز دی بشرط عدم الشهوة واللذة. او هم دا مسلک د احنافو او مالکیانو دې، نظر المراءة الي الرجل، په شوافعو کښې د امام نووی په نزد مطلقا جائز او حرام دی. (کعکسه) او د احنافو او مالکیانو په نزد زنانه د سړی د بدن هغه حصې ته کتلې شی. څومره چه انسان خپلې محرم زنانه ته کتلې شي (یعني وجه او کفین کښې انحصار نشته) او د حنابله یو روایت خو هم دا دې او دویم دا دې چه صرف مخ او لاسونه کتلې شی (وهي روایة عن الشافعیة (ملخصا من الاوجز ص ۴۱۳، ج ۴) بزیادة من الروضة المحتاجین).

[1] پس هم دا حدیث د جابر طویل کوم چه مونږ سره روان دې په دې کښې د مسلم په روایت کښې داسې دی ﴿فوضع رسول الله صلي الله علیه وسلم یده علي وجه الفضل فحول الفضل وجهه الي الشق الاخر ینظر فحول رسول الله صلي الله علیه وسلم یده من الشق الاخر علي وجه الفضل یصرف وجهه من الشق الاخر ینظر﴾ او په صحیح بخاری کښې د ابن عباس په روایت کښې داسې دی ﴿فجعل الفضل ینظر الیها وتنظر الیه فجعل النبي صلي الله علیه وسلم یصرف وجه الفضل الي شق الاخر﴾ اهـ

## د وادي محسر (وجه تسميه او ددي) نه د تيز تللو وجه.

حتى اتى محسراً په وادي محسر کښې نبي ﷺ خپله سورلی لږه تيزه اوچلوله د دې په وجه تسميه کښې مشهور قول دا دې چې په دې ځائې کښې په اصحاب فيل باندې حسر واقع شوې وو يعنى هغوى چې دلته راؤرسيدل نو اودريدل او په دې ځائې کښې په هغوى باندې عذاب نازل شوې وو نو د هغوى د محل عذاب کيدلو په وجه نبي ﷺ دې ځائې کښې جلدئ سره تير شول لکه څنګه چې ديارِ عاد وثمود سره نبي ﷺ تيز تلي وو ليکن ملاعلي قاري رحمه الله د دې وجه تسميه ترديد کړې دې هغوى فرمائى صحيح دا ده چې اصحاب فيل دحرم شريف حد ته نۀ وو رسيدلى د دې نه مخکښې په دوى باندې عذاب نازل شوې وو او دا وادي محسر په حرم کښې ده بلکه د دې ځائې نه د دې تيز تللو وجه دا ده چې يو سړي دلته ښکار کړې وو نو په هغه باندې د آسمان نه اور وريدلې وو په دې وجه دې ته وادي نار هم وئيلې شي (بذل)

ثم سلک الطريق الوسطى الذى يخرجک الى الجمرة الکبرى دلته د رارسيدلو نه پس اوس منى ته دوه لارې تلې دی د يو نوم طريق ضب دې او د دويمې نوم طريق المازمين دې د راتلو په وخت کښې چې کله پيغمبر ﷺ د منى نه عرفات ته راتلل نو هغه وخت کښې نبي ﷺ د ضب لار اختيار کړې وه او په واپسئ کښې ئې طريق المازمين چې د دې مصلحت په خپله په روايت کښې موجوددې چې اې مخاطبه! هغه لار داسې لار ده چې تاله به نيغ جمرة الکبرى ته اورسوى زۀ وايم چې تلل هم هغوى ته په دې لاره وو په دې وجه په دې ورځ باندې صرف د دې جمره رمى وى

بمثل حصى الخذف وئيلې شى کانړې د دواؤ ګوتو په مينځ کښې په زور سره[1] غورزول يعنى ويشتل لکه څنګه چې وارۀ ماشومان په لوبو کښې دغه شان کوى نو مطلب دا شو چې کوم مقدار دغه شان اولى (چې د هغې مقدار د تولو په ذهنونو کښې دې) هم دغه شان کانړو سره نبي ﷺ رمى اوکړه

فرمى من بطن الوادى يعنى نبي ﷺ وادئ ته راکوز شو او رمى ئې اوکړه يعنى د پورته نه ئې اونکړه (د هغې ځائې په زمکه او لارو کښې ښکته پورته والې دې)

## د جمره عقبه د رمى کيفيت او په دې کښې اختلاف

ځان پوهول پکار دی چې د جمره عقبه د رمى صحيح صورت چې علماؤ اختيار کړې دې هغه دا دې چې سړې د جمره په طرف مخ کړې داسې ولاړ وی چې د هغۀ ښى طرفته منى وى او ګس طرفته مکه مکرمه وى کما فى روايت الصحيحين جعل البيت عن يساره ومنى عن يمينه او د سنن ترمذى په روايت کښې دی چې د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دې چې هغوى رمى مستقبل القبله اوکړه يعنى د رمى په وخت ئې مخ مبارک قبلې طرفته کړو په دې صورت کښې به منى شا طرفته او مکه مکرمه وړاندې طرفته وى نو بعضې شوافعو او

[1] د ګوتې په سر باندې کانړې ايخودل په ګوته باندې زور ورکول او لرې غورزول.

حنابله دې لره مستحب ګرځولې دی مستدلاً بروایة الترمذی لیکن علماؤ د ترمذی دا روایت ضعیف ګرځولې دې(لاجل المسعودی وهو عبدالرحمن بن عبدالله بن عتبه بن مسعود) د رمی په وخت کښې تکبیر هم مستحب دې باسم الله الله اکبر رضي للرحمن ورغماً للشیطن.

## (دا رمی راکبا وه)

په دې حدیث کښې دا نشته چې نبی ﷺ رمی د رکوب په حالت کښې اوکړه یا پیدل لیکن په روایاتو کښې مشهوره دا ده چې نبی ﷺ رمی د رکوب په حالت کښې اوکړه او د بعضو روایاتو نه دا معلومیږی چې د یوم النحر رمی نبی ﷺ د رکوب په حالت کښې کړې وه او د دې نه پس ئې پیدل،د دې تفصیل به په باب الرمی کښې راشی

ثم انصرف رسول الله صلی الله علیه وسلم الی المنحر د رمی کولو نه پس نبی ﷺ د اوښانو قربانی اوکړه،نبی ﷺ د سلو اوښانو قربانی کړې وه د قربانۍ غوښه خوړل سنت دی او ښکاره خبره ده چې د ټولو نه خوراک کول مشکل وو په دې وجه نبی ﷺ د هغې دپاره دا تدبیر اوفرمائیلو چې د هر یو نه ئې یو یو بوټۍ واخستې او هغه ئې په کټوۍ کښې پخه کړه بیا د هغې نه څۀ غوښه او باقی ښوروا اوڅکله

ثم افاض رسول الله صلی الله علیه وسلم الی البیت یوم النحر(۱۰ ذی الحجه) کښې څلور مناسک ادا کولې شی چې د هغې ترتیب دا دې اول د جمره عقبه رمی کول، بیا ذبح، بیا حلق او بیا طواف کول(طواف افاضه و زیارت)

په دې حدیث د جابر کښې په دې کښې د دریو څیزونو ذکر دې د حلق ذکر په دې کښې پاتې شوې دې په دې افعالو کښې مذکوره ترتیب سنت دې یا واجب؟ مسئله مختلف فیه ده په باب من قدم شیئاً قبل شيءٍ کښې راروانه ده

## په یوم النحر کښې نبی علیه السلام د ماسپخین مونځ کوم ځائې اوکړو؟

فصلی بمکة الظهر په لسم تاریخ باندې نبی ﷺ مکې ته راغې او اول ئې طواف زیارت اوکړو د دې نه پس ئې د ماسپخین مونځ چرته اوکړو هم په مکه مکرمه کښې یا واپس راتلو سره په منی کښې؟ په دې کښې روایات مختلف دی په دې د حدیث جابر کښې دا دی چې هم په مکه مکرمه کښې ئې اوکړو دغه شان په باب رمی الجمار کښې د حضرت عائشه رضي الله عنها حدیث راځی په هغې کښې هم دا دی چې په مکه مکرمه کښې ئې اوکړو د دې برخلاف حدیث د ابن عمر رضي الله عنهما چې په باب الافاضه فی الحج کښې راځی په هغې کښې دا دی فافاض یوم النحر ثم صلی الظهر بمنی یعنی راجعاً دا حدیث د ابن عمر د صحیحینو روایت دې او حدیث د جابر د افراد د مسلم نه دې لیکن حدیث د عائشه ئې تاکید کوی اوس خو یا جمع بین الروایتین کول پکار دی چې ممکن ده چې په مکه مکرمه کښې نبی ﷺ کوم تحیة الطواف کړې وو نو هغه راوی د ماسپخین مونځ ګنړلې دې یا دې طریق ترجیح اختیار کړې شی په دې طور سره چې د ابن عمر حدیث متفق علیه دې لهذا هغه راجح دې او یا په دې طور سره چې د حدیث د جابر تاکید کوونکې حدیث عائشه موجود دې بله داچه په مکه

مکرمه کښې مونځ کول د منی نه غوره دی لهذا حديث د جابر رضی الله عنه راجح دې والله تعالی اعلم

ثم اتی بنی عبدالمطلب وهم يسقون علي زمزم فقهاء کرام فرمائی چې د طواف نه د فراغت نه پس اول تحية الطواف کول بیا د آب زمزم نه اوبۀ څکل مستحب او سنت دی لیکن دلته په دې روایت کښې د طواف کولو نه پس د تحية الطواف ذکر نشته او نۀ بنده ته په بل یو حدیث کښې ملاؤ شوې دی(هسې زيات تلاش مې هم نۀ دې کړې) شارحينو دې سره هم تعرض نۀ دې کړې

حضرت شيخ هم په جزء حجة الوداع کښې په دې باندې څه نۀ دی لیکلي البته د دې نه وړاندې په شروع کښې چې کوم ځائي د طواف قدوم ذکر راغلې وو هلته تحية الطواف مذکور دې لیکن هلته د شرب زمزم ذکر نشته

د بنوعبدالمطلب نه مراد اولاد عباس دې چې د سقاية الحاج خدمت به ئې کوو نبی عليه السلام چې کله هغوی اوليدل چې په حاجيانو باندې اوبه څکوی نو خوشحاله شو او په دې کار ئې د هغوی همت افزائی اوکړه چې تکړۀ شئ په حاجيانو باندې اوبه اوڅکوئ او که ماته دا ويره نۀ وې چې خلق به په تاسو باندې غالب راشي(او ستاسو نه به بوقه او رسئ په خپله راښکی يعني زما په اتباع کښې) نو زۀ به هم تاسو سره په راښکلو کښې شريک شوې ووم امام نووی رحمه الله د دې جملې دويمه معنی ليکلې ده چې که زۀ داسې اوکړم نو خلق به دا په مناسک حج کښې ضروری کار اوګڼړی او بيا به ئې هر کس د ادا کولو کوشش کوی

په دې باندې دا اشکال دې چې د بعضې رواياتو نه معلوميږی چې نبی عليه السلام هم په خپل لاس مبارک سره راښکلې وو لکه څنګه چې صاحب هدايه ليکلې دی شيخ ابن الهمام د دې توجيه کړېده چې ددې حديث د جابر تعلق د طواف افاضه سره دې او د دويم حديث تعلق د طواف وداع سره دې(بذل) نو د اثبات او د نفی د هر يو محمل جدا جدا دې

د الله تعالی په فضل سره د حجة الوداع حديث پوره شو الله تعالی دې مونږ ته او تاسو ته د دې په برکت سره حج مبرور نصيب کړی او په دې شرح کښې چې د احقر نه څۀ قصور او بې ادبی شوې وی نو هغه دې الله تعالی معاف کړی آمين

[١٩٠٦](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ يَعْنِي ابْنَ بِلَالٍ ح وحَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ الثَّقَفِيُّ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، "أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ بِأَذَانٍ وَاحِدٍ بِعَرَفَةَ وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا وَإِقَامَتَيْنِ، وَصَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِجَمْعٍ بِأَذَانٍ وَاحِدٍ وَإِقَامَتَيْنِ وَلَمْ يُسَبِّحْ بَيْنَهُمَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ أَسْنَدَهُ حَاتِمُ بْنُ إِسْمَاعِيلَ فِي الْحَدِيثِ الطَّوِيلِ، وَوَافَقَ حَاتِمَ بْنَ إِسْمَاعِيلَ عَلَى إِسْنَادِهِ مُحَمَّدُ بْنُ عَلِيٍّ الْجُعْفِيُّ، عَنْ جَعْفَرٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، إِلَّا أَنَّهُ، قَالَ: "فَصَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعَتَمَةَ بِأَذَانٍ وَإِقَامَةٍ".

جعفر رحمه الله دخپل پلار نه روايت کوی چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم په عرفات کښې ماسپخين او د مازيګر مونځ په يو اذان او دوو اقامتونو سره ادا کړې وو او وددې په مينځ کښې ئې څه سنت مونځ نه وړکړې اودماښام اودماسخوتن مونځونه ئې په مزدلفه کښې په يو اذان او دوو

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٩٣٢٠) (ضعيف)

اقامتونوسره کړې وو اوددې په مینځ کښې ئې څه سنت نه وو کړي. ابوداودفرمائی چه دی، روایت لره حاتم بن اسماعیل په خپل طویل حدیث و کښې مسند بیان کړې دې (اوداسند مرسل دې حاتم دجابر رضی الله عنه نه مسند روایت کړې دې) اودحاتم دروایت د مسند کیدو موافقت محمد بن علی الجعفی هم کړې دې اودجعفر عن أبیه عن جابر په سند سرا سې روایت کړې دې فرق صرف دومره دې چه جعفی وئیلی دی فصلی المغرب والعتمة باذان واقامة هغه د ماښام اودماسخوتن مونځ په یواذان اویواقامت سره ادا کړل.

[١٩٠٧](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا جَعْفَرٌ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: ثُمَّ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَدْ نَحَرْتُ هَاهُنَا وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ" وَوَقَفَ بِعَرَفَةَ، فَقَالَ: "قَدْ وَقَفْتُ هَاهُنَا وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ" وَوَقَفَ بِالْمُزْدَلِفَةِ، فَقَالَ: "قَدْ وَقَفْتُ هَاهُنَا وَمُزْدَلِفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې چه بیانبی علیه السلام اوفرمائیل مادلته تحرکړې دې اومنی ټول په ټوله دقربانی ځائې دې هغه په عرفات کښې وقوف اوکړو اووئې فرمائیل مادلته کښې وقوف کړې دې اوټول عرفات دوقوف ځائې دې نبی علیه السلام په مزدلفه کښې وقوف اوکړو اووئې فرمائیل ماپه دې ځائې باندې وقوف کړې دې اوتمامه مزدلفه جائې وقوف دې.

[١٩٠٨](2) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ جَعْفَرٍ بِإِسْنَادِهِ، زَادَ: "فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ".

حفص بن غیاث دجعفر صادق نه دهغه په سند سره روایت کړې دې اودا اضافه ئې کړې ده پس تاسو په خپل خپل پړاو باندې نحر اوکړئ.

[١٩٠٩](3) حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ جَعْفَرٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَابِرٍ، فَذَكَرَ هَذَا الْحَدِيثَ وَأَدْرَجَ فِي الْحَدِيثِ عِنْدَ قَوْلِهِ: وَاتَّخِذُوا مِنْ مَقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى سورة البقرة آية ١٢٥، قَالَ: "فَقَرَأَ فِيهِمَا بِالتَّوْحِيدِ وَقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ"، وَقَالَ فِيهِ: قَالَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ بِالْكُوفَةِ: قَالَ أَبِي: هَذَا الْحَرْفُ لَمْ يَذْكُرْهُ جَابِرٌ، فَذَهَبْتُ مُحَرِّشًا، وَذَكَرَ قِصَّةَ فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا.

دجعفر رضی الله عنه نه روایت دې چه ماته زما پلار جابر بیان کړې دې اوداحدیث ئې بیان کړو او په خپل حدیث باندې ئې د«واتخذوا من مقام إبراهیم مصلی» په ځائې باندې داخبره دخپل طرف نه زیاته کړې ده چه هغه په دې رکعاتو کښې دتوحید قل هو الله احد اود (قل یا أیها الکافرون) تلاوت وکړو او په دې کښې ئې بیان کړې دې چه علي رضی الله عنه دا واقعه په کوفه کښې بیان کړې ده زما پلار وائی جابر رضی الله عنه دالفظ هم نه وو وئیلی چه زه دغصې په حالت کښې په تیزئ سره تلې وم او د فاطمې رضی الله عنها واقعه ئې بیان کړه.

---

(1): صحیح مسلم/الحج ١٩(١٢١٨)، سنن النسائي/الحج ٥١(٢٧٤١)، (تحفة الأشراف: ٢٥٩٦)(صحیح)

(2): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٢٥٩٦)(صحیح)

(3): انظر حدیث رقم(١٩٠٥)، (تحفة الأشراف: ٢٥٩٣)(صحیح)

## بَابُ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ

### باب: په عرفات کښې د وقوف (ایساریدلو) بیان

[۱۹۱۰]() حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "كَانَتْ قُرَيْشٌ وَمَنْ دَانَ دِينَهَا يَقِفُونَ بِالْمُزْدَلِفَةِ، وَكَانُوا يُسَمَّوْنَ الْحُمْسَ، وَكَانَ سَائِرُ الْعَرَبِ يَقِفُونَ بِعَرَفَةَ، قَالَتْ: فَلَمَّا جَاءَ الإِسْلَامُ، أَمَرَ اللَّهُ تَعَالَى نَبِيَّهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَأْتِيَ عَرَفَاتٍ فَيَقِفَ بِهَا ثُمَّ يُفِيضَ مِنْهَا، فَذَلِكَ قَوْلُهُ تَعَالَى: ثُمَّ أَفِيضُوا مِنْ حَيْثُ أَفَاضَ النَّاسُ سورة البقرة آية۱۹۹".

د عائشه رضي الله عنها نه روایت دې چه قریش او دهغوی هم مذهبو به په مزدلفه کښې وقوف کولو او خپل ځان ته به یې، حمس وئیلو او نورو ټولو عربو به په عرفات کښې وقوف کولو بیان کوی چه کله اسلام راغی نو الله تعالی خپل نبی ته حکم اوکړو چه عرفات ته راشي او وقوف اوکړی بیا دهغه ځائې نه واپس شی چنانچه هم دا تفسیر دې د الله تعالی ددې فرمان «ثم أفیضوا من حیث أفاض الناس» بیا واپس شئ دهغه ځائې نه دکوم ځائې نه چه خلق راواچس کیږي. الاية.

**تشریح: قوله:** کانت قریش ومن دان دینها قریش او کوم خلق چې د هغوی طور طریقې اختیاروونکی وو یعنی د هغوی تابع او هم مسلک وو وکانوا یُسمون الحُمسَ، د قریش لقب حمس وو، حمس د احمس جمع ده ماخوذ دې د حماسه نه چې د دې معنی ده شجاعت او بهادری د هغوی دا لقب ځکه وو چې هغوی په خپل مذهب او دین کښې متصلب او پاخهٔ وو د دې روایت مضمون دا دې چې قریشو به د عرفات په ځائې په مزدلفه کښې وقوف کوو د دې وضاحت په سابقه باب ولا تشک قریش الخ کښې تیر شوې دې

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی چې وقوف عرفه بالاتفاق د حج یو رکن دې چې د دې په فوت کیدو سره حج فوت کیږی

## د وقوف وقت ابتداءً وانتهاءً او مقدار د وقوف وجوباً وفرضاً

اوس دا چې د دې وخت د کوم وخت نه کوم وخت پورې دې او د وقوف څومره مقدار فرض دې په دواړو مسئلو کښې اختلاف دې هر چه اولنۍ مسئله ده یعنی وقت الوقوف ابتداءً وانتهاءً نو د جمهور او د ائمه ثلاثه په نزد د وقوف وخت د عرفې په ورځ د زوال نه تر د یوم النحر د سحر پورې دې (په نهم تاریخ د زوال نه تر د لسم تاریخ د صبح صادق پورې) او د امام احمد په نزد د یوم عرفه د سحر نه تر د یوم النحر د سحر پورې (یعنی د نهم تاریخ د سحر نه د لسم تاریخ د صبح صادق پورې د وقوف وخت دې)

**قوله:** واما المسئلة الثانیه اعنی مقدارالوقوف نو مقدار د وقوف دوه دی یعنی د دې دوه درجې دی یو فرض او یو واجب چې کوم مقدار فرض دې په هغې کښې کمی کولو سره خو به

[1]: صحیح البخاري/الحج ۹۱(۱۶۶۵)، وتفسیر البقرة ۳۵(۴۵۲۰)، م /الحج ۲۱(۱۲۱۹)، سنن النسائي/ الحج ۲۰۲(۳۰۱۵)،(تحفة الأشراف: ۱۷۱۹۵)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۵۳(۸۸۴)، سنن ابن ماجه/المناسك ۵۸(۳۰۱۸)(صحیح)

وقوف نۀ کیږی او چې کوم مقدار واجب دې نو په هغې کښې کمې کولو سره به وقوف ناقص وی نو مقدار واجب د حنفیه او حنابله په نزد امتداد الوقوف من الزوال الی الغروب دې یعنی د زوال نه تر دَ نمر پریوتلو پورې مسلسل هلته ایساریدل واجب دی لیکن فرض به د دې نه په کم وقوف سره هم ادا شی لیکن واجب مقدار هم دا دې

او د شافعیه و مالکیه په نزد الجمع بین اللیل والنهار فی ای وقتٍ منهما یعنی څه حصه د شپې او څۀ حصه د ورځې هلته ایساریدل واجب دی(شرعاً د شپې ابتداء د نمر پریوتلو نه کیږی) لیکن د شافعیه په نزد که صرف په ورځ کښې(د زوال نه پس) یا صرف په شپه کښې وقوف اوکړی نو فرض وقوف به ادا شی او ترک د واجب به لازم راشی او د مالکیه په نزد صرف په ورځ کښې وقوف سره فرض نۀ ادا کیږی البته صرف په شپه کښې وقوف کولو سره فرض ادا کیږی

د دې تفصیل نه معلومه شوه چې د نمر پریوتلو نه پس وقوف د ائمه ثلثه په نزد صرف واجب دې او د مالکیه په نزد فرض دې انشاء الله د دې مسئلې تحقیق او تفصیل هم دا دې چې مونږ کوم اولیکۀ.

## بَاب الْخُرُوجِ إِلَى مِنًى

### باب: د مکې مکرمې نه د منی طرفته د روانیدو بیان

د دې باب نه تر د باب التعجیل من جمیع پورې ټول اتۀ بابونه دی دا ابواب مصنف علیه الرحمة هم په هغه ترتیب سره قائم کړېدی چې په کوم ترتیب سره حج کیږی په دې اتو بابونو کښې هغه ټول افعال او مناسک راغلې دی چې کوم د حج په پنځو ورځو کښې کیږی د اتمې ذې الحجه [١] نه تر دولسمې یا دیارلسمې ذی الحجه پورې، فلله در المصنف،، د سنن ابوداؤد ترتیب زما په نزد په صحاح سته کښې د ټولو نه غوره دې.

[١٩١١]([٢]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا الْأَحْوَصُ بْنُ جَوَّابٍ الضَّبِّيُّ، حَدَّثَنَا عَمَّارُ بْنُ رُزَيْقٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَعْمَشِ، عَنْ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ وَالْفَجْرَ يَوْمَ عَرَفَةَ بِمِنًى".

دابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د تروئې په ورځ د ماسپښین مونځ اودعرفې په ورځ دسحرمونځ په منی کښې اداکړې وو.

[١] په ٨ ذوالحجه دټولو نه اول دا کار کیږی چه حاجی دمکې نه منی ته راځی دې لره مصنف په دې رومبی باب کښې بیانوی، دحج د پنځو ورځو افعال په ترتیب سره مونږ ددې نه مخکښې بیان کړی دی لهذا تاسوهغه ترتیب په ذهن کښې اوساتئ او دا ابواب په هغې باندې منطبق کړئ. طالب علم له په خپله هم څه محنت کول پکار دی بغیر دهمت اومحنت نه هیڅ کارنه کیږی.

[٢]: سنن الترمذي/الحج ٥٠(٨٨٠)،( تحفة الأشراف: ٦٤٦٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٢٥٥، ٢٩٦، ٢٩٧، ٣٠٣)، دي/المناسك ٤٦(١٩١٣)(صحيح)

[١٩١٢]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ الْأَزْرَقُ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ، قَالَ: سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ، قُلْتُ: أَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ عَقَلْتَهُ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، "أَيْنَ صَلَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الظُّهْرَ يَوْمَ التَّرْوِيَةِ؟ فَقَالَ: بِمِنًى، قُلْتُ: فَأَيْنَ صَلَّى الْعَصْرَ يَوْمَ النَّفْرِ؟ قَالَ: بِالْأَبْطَحِ، ثُمَّ قَالَ: افْعَلْ كَمَا يَفْعَلُ أُمَرَاؤُكَ".

عبدالعزیز بن رفیع وائی چه ما انس نشته اووئیل ماته هغه خبره بیان کړه کومه چه تا د رسول الله ﷺ نه یاده کړی وی دترویې(اتم تاریخ دذی الحجې) په ورځ باندې رسول الله ﷺ دماسپخین مونځ کوم ځائې اداکړې وو، هغوی اوفرمائیل په منی کښې ما اووئیل دنفر په ورځ(یعنی دواپسئ ورځ دیارلسم ذی الحجه) هغه دمازیګر مونځ کوم ځائې اداکړې وو ده اووئیل په وادئ ابطح کښې بیائې اوفرمائیل هم داسې عمل اوکړه لکه څنګه چه ستاامراء کوی.

**تشریح: قوله**: اخبرنی بشئ عقلته عن رسول الله صلی الله علیه وسلم د حضرت انس رضی الله عنه نه چا سوال اوکړوچې تاسو نبی علیه السلام سره حج کړې دې لهذا نبی علیه السلام سره د حج کولو په دوران کښې چې تاسو څه لیدلې دی او په څهٔ باندې پوهه شوې ئې په هغې کښې د دې سوال جواب راکړئ چې نبی علیه السلام په یوم الترویه یعنی په اتمه ذی الحجه باندې د ماسپخین مونځ چرته کړې وو په مکه مکرمه کښې یا په منی کښې؟ یعنی د ماسپخین مونځ کولو نه پس منی ته روان شوې وو یا ئې منی ته په رسیدلو سره مونځ کړې وو؟ هغوی جواب ورکړو چې منی ته لاړل او هلته ئې مونځ اوکړو(دا مخکښې تیر شوې دی چې منی ته په رسیدلو سره پنځهٔ مونځونه د ماسپخین نه تر سحر پورې کول مسنون دی)

**قوله**: قلت این صلی العصر یوم النفر(دویم سوال ئې دا اوکړو چې دا هم اووایئ چې د منی نه په واپسئ باندې نبی علیه السلام د مازیګر مونځ کوم ځائې کړې وو هم په منی کښې یا په محصب کښې په دې دواړو سوالونو کښې مناسبت دا دې چې د یو سوال تعلق د حج پنځو ورځو کښې اولنئ ورځ سره دې او د دویم سوال تعلق د آخری ورځ سره دې نو یو سوال د ابتداء سره متعلق شو او دویم د انتهاء سره

د دې سوال په جواب کښې هغوی اوفرمائیل چې په دغه ورځ باندې د مازیګر مونځ نبی علیه السلام په محصب کښې فرمائیلې وو د دې سوال و جواب نه په ظاهره دا معلومیږی چې هرکله د مازیګر باره کښې دا تردد دې چې دا مونځ ئې کوم ځائې کړې وو په منی کښې یا محصب کښې نو د ماسپخین باره کښې ګویا دا متعین شوه چې هغه ئې په منی کښې لوستلې وو حالانکه داسې نهٔ ده بلکه هغه ورځ د ماسپخین مونځ هم نبی علیه السلام په محصب کښې اداکړې وو چه د هغې دلیل دا دې چې د باب التحصیب آخری حدیث چې د ابن عمر رضی الله عنهما نه مروی دې په هغې کښې وضاحت موجود دې چې نبی علیه السلام په هغه ورځ د ماسپخین نه تر ماسخوتن پورې ټول مونځونه په محصب کښې اداکړې وو و ثم قال افعل کما

[1]: ● تخریج: صحیح البخاري/الحج ٨٣(١٦٥٣)، ١٤٦(١٧٦٣)، صحیح مسلم/الحج ٥٨(١٣٠٨)، سنن الترمذي/الحج ١١٦(٩٦٤)، سنن النسائي/الحج ١٩٠(٣٠٠٠)،(تحفة الأشراف: ٩٨٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٠٠/٣)، سنن الدارمي/المناسك ٤٦(١٩١٤)(صحیح)

یفعل امراؤک مطلب دا دي چې محصب کښې د دې مونځونو کول صرف سنت دی واجب نهٔ دی او د امیر اطاعت واجب دي لهذا که ستاسو د حج امیر بالفرض د دې خلاف اوکړی نو تاسو ته د هغهٔ اطاعت کول پکار دی د نبی علیه السلام مبارک له طرفه مونږ ته دا هدایت دې

## بَابُ الْخُرُوجِ إِلَى عَرَفَةَ

### باب: (د منی نه) عرفات ته د تلو بیان

یعنی په دویمه ورځ په نهم تاریخ باندې د منی نه عرفات طرفته روانګی،
یاد ساتئ چې په دې ورځ باندې د منی نه روانګی نیغ عرفات ته نهٔ وی بلکه په لاره کښې یو بل منزل دې یعنی نمره هلته د ایساریدلو نه پس حاجی بیا وړاندې ځی لهذا دلته په ترجمة الباب کښې د عرفه نه مراد قربِ عرفه دې او د دې نه وړاندې ترجمة الباب کښې چې د کومې روانګئ ذکر دې نو هغه دلته د نمره نه مراد دې نو په دواړو ترجمو کښې فرق ظاهر شو چې په اولنی باب کښې د روانګئ نه مراد د منی نه نمره ته ده (چې عرفات ته نزدې مقام دې) او په راتلونکی باب کښې د روانګئ نه مراد د نمره نه عرفات ته ده دا خبره هم یاد ساتئ چې دلته هم روانګی د نمره نه براه راست عرفات ته نهٔ وی بلکه حاجی د نمره نه لاړ شی نو په لار کښې بطن عرنه کښې حصار شی او بیا عرفات ته ځی لکه څنګه چې د حجة الوداع په حدیث کښې تیر شو دې بطن عرنه ته چې اورسی نو د حج امیر اول خطبه ورکړی د دې نه پس جمع بین الصلوتین یعنی ماسپخین او مازیګر دواړه د ماسپخین په وخت کښې ادا کړی بیا د دې ځائې نه د وقوف په نیت د عرفات میدان ته ځی بنهٔ ځان پوهه کړئ

[۱۹۱۳] (۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "غَدَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مِنًى حِينَ صَلَّى الصُّبْحَ صَبِيحَةَ يَوْمِ عَرَفَةَ حَتَّى أَتَى عَرَفَةَ فَنَزَلَ بِنَمِرَةَ وَهِيَ مَنْزِلُ الْإِمَامِ الَّذِي يَنْزِلُ بِهِ بِعَرَفَةَ، حَتَّى إِذَا كَانَ عِنْدَ صَلَاةِ الظُّهْرِ رَاحَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُهَجِّرًا فَجَمَعَ بَيْنَ الظُّهْرِ وَالْعَصْرِ، ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ، ثُمَّ رَاحَ فَوَقَفَ عَلَى الْمَوْقِفِ مِنْ عَرَفَةَ".

دابن عمر رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دعرفې په ورځ په منی کښې دصبا مونځ اداکړو بیاعرفات طرف ته ئې تشریف راوړو او په وادئ نمره کښې ئې دمه اوکړه په هغه مقام کښې په کوم چه په عرفات کښې امام راکوزیږی تردې پورې چه کله دماسپخین وخت شو نو رسول الله ﷺ دماسپخین په ګرمئ کښې دهغه ځائې نه روان شو اودماسپخین اومازیګر مونځونه ئې یوځائې اداکړل بیائې خلقوته خطبه او فرمائیله بیا دهغه ځائې نه روان شو او په عرفات کښې خپل موقوف ته راغلل او وقوف ئې اوکړو.

## بَابُ الرَّوَاحِ إِلَى عَرَفَةَ

### باب: (د نمره نه) عرفات دپاره د تلو بیان

دې باب سره متعلق خبرې اترې مخکښینی باب کښې اوشوې رواح وائی د زوال نه پس تلو ته لکه څنګه چې د نمره مقام نه د زوال نه پس ځی په تیر شوې باب کښې که چرته د خروج

(۱): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۸٤١٦)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۲۹/۲) (حسن)

په څائې باب الغدو الی عرفة وې نو ډیر ښکلې او عمده تقابل به وو ځکه چې د منی نه روانګی د سحر په وخت کښې وی

[١٩١٤](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، حَدَّثَنَا نَافِعُ بْنُ عُمَرَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ حَسَّانَ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "لَمَّا أَنْ قَتَلَ الْحَجَّاجُ ابْنَ الزُّبَيْرِ، أَرْسَلَ إِلَى ابْنِ عُمَرَ أَيَّةَ سَاعَةٍ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُوحُ فِي هَذَا الْيَوْمِ؟ قَالَ: إِذَا كَانَ ذَلِكَ رُحْنَا فَلَمَّا أَرَادَ ابْنُ عُمَرَ أَنْ يَرُوحَ، قَالُوا: لَمْ تَزِغِ الشَّمْسُ، قَالَ: أَزَاغَتْ؟ قَالُوا: لَمْ تَزِغْ، أَوْ زَاغَتْ، قَالَ: فَلَمَّا قَالُوا: قَدْ زَاغَتْ، ارْتَحَلَ".

دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دې چه کله حجاج ابن الزبیر لره شهید کړو نوابن عمر رضی الله عنه ته ئې استاذې اولیږلو چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په دې ورځ باندې په کوم وخت کښې ددې ځائې نه واپس کیدو هغوی أووئیل چه کله وخت راشی نو مونږ به څنو بیا کله چه ابن عمر رضی الله عنه دتللو اراده اوکړه نوملګری اووئیل نمرنه دې زائله شوې بیائې تپوس اوکړو ایانمرزائله شوې. د هغه اووئیل نه دې زائله شوې یا زائله شوې دې پس کله چه هغوی اووئیل چه زائله شوې دې نوهغوی روان شول

**تشریح: قوله:** لماان قتل الحجاج ابن الزبیر: د دې واقعې څه قدرې تشریح په باب الاحصار کښې تیره شوې ده

**قوله:** ارسل الی ابن عمر ایة ساعة کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یروح: په دې روایت کښې اختصار دې د نسائی په روایت کښې د دې حدیث ابتدائی حصه مذکور ده پوره مضمون دا دې چې کله حجاج بن یوسف ابن زبیر رضی الله عنه لره په سولۍ باندې خیژولو او قتل کولو نه فارغ شو او اوس په حجاز باندې هم د عبدالملک بن مروان حکومت شو نو عبدالملک حجاج بن یوسف ته دا هدایت اولیږلو چې هغه د حج په مسئلو کښې د ابن عمر رضی الله تابعداری اوکړی چې څنګه هغوی فرمائی نو هم هغه شان په خلقو باندې حج اوکړئ او په هیڅ مسئله کښې د هغوی مخالفت اونکړئ(٢) نو په نهم تاریخ چې په کوم وخت کښې حجاج په وادی نمره کښې وو نو حجاج بن یوسف د ابن عمر رضی الله عنه نه دا معلوم کړل چې اوس د دې ځائې نه عرفات ته کله تلل دی نو هغوی اوفرمائیل چې کله د تللو وخت راشی نو مونږ به خود او تاسو ته به د هغې اطلاع درکړو

(١): سنن ابن ماجه/المناسك ٥٤(٣٠٠٩)،(تحفة الأشراف: ٧٠٧٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ٨٧(١٦٦٠)، موطا امام مالك/الحج ٦٤(١٩٥)، مسند احمد(٢/٢٥)(حسن)

(٢) ځکه چه دحکومتونو کوم په خپل مینځ کښې جنګونه کیږی لکه دلته چه د ابن الزبیر رضی الله عنه او عبدالملک په مینځ کښې وو په دې کښې به عوامو زیات دخل نه کولو، خوپه مسائل شرعیه کښې عوام د علماؤ او مفتیانو خبره منی په دې کښې د حکامو خبره نه چلیږی، په دې وجه عبدالملک، حجاج بن یوسف ته کوم چه هغه وخت امیرالحج وو دتجربې دا خبره اولیکله چه هغه دې دحج په مناسکو کښې دحضرت ابن عمر رضی الله عنه سره مشوره کوی اوهم دهغې مطابق دې په خلقو باندې حج اوکړی ګنی خلق به ئې مخالفت کوی او انتشار به پیدا شی. کذا سمعت من شیخي مولانا محمد زکریا رحمه الله تعالی.

## بَابُ الْخُطْبَةِ عَلَى الْمِنْبَرِ بِعَرَفَةَ

### په عرفات کښې د خطبې بيان

مشهوره خو دا ده چې د حج په خطباتو کښې يوه خطبه هغه ده چې په عرفات کښې کيږي لکه څنګه چې مصنف دلته په ترجمة الباب کښې فرمائي ليکن دا خطبه په بطن عرنه کښې کيږي چې د جمهورو په نزد د عرفات نه خارج ده ليکن چونکه عرفات ته بالکل قريب ده بلکه د هغې کناره ده نو شايد چې په دې وجه ورته خطبه عرفه وئيلى شى والله تعالى اعلم(ولم ارمن نبه عليه)

## د حج د خطبو تعداد او تعيين او د امامانو اختلاف

د حج د خطبو په تعداد کښې د فقهاؤ اختلاف دې د حنفيه ومالکيه په نزد درې دى په دې تاريخونو کښې ٧، ٩ او ١١ ذى الحجه او د شافعيه په نزد څلور خطبې دى په دې تاريخونو کښې ٧، ٩، ١١، او ١٢ او د امام زفر په نزد درې دى اولنۍ په اتمه ذى الحجه، دويمه په نهمه او دريمه په لسمه ذى الحجه باندې خطبې سره متعلق دا اولنې باب دې د باقى خطبو ذکر وړاندې مستقل بابونو کښې راروان دې

[١٩١٥](١) حَدَّثَنَا هَنَّادٌ، عَنْ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ بَنِي ضَمْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ أَوْ عَمِّهِ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ بِعَرَفَةَ".

دبنى ضمره يوکس دخپل پلار يادخپل تره نه روايت کوى فرمائى چه ما رسول الله ﷺ لره دعرفات په ورځ باندې په منبرباندې ناست ليدلې وو.

قوله: وهو على المنبر بعرفة..الخ: نبى ﷺ خطبه په عرفات کښې په قصواء نومې اوښه باندې لوستلې وه لکه څنګه چې دجابر رضي الله عنه په اوږد حديث کښې تير شو او دا خبره متعين ده چې د نبى ﷺ په زمانه کښې په عرفات کښې منبر نۀ وو شارحين فرمائى يا خو دا د راوى وهم دې او يا دا اووايئ چې د راوى مراد د منبر نه هم دا اوښه ده.

[١٩١٦](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ سَلَمَةَ بْنِ نُبَيْطٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنَ الْحَيِّ، عَنْ أَبِيهِ نُبَيْطٍ، أَنَّهُ "رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاقِفًا بِعَرَفَةَ عَلَى بَعِيرٍ أَحْمَرَ يَخْطُبُ".

ابن سلمه بن نبيط دخپلې قبيلې ديوکس نه هغه ددوى لط دپلار نبيط نه روايت کوى چه هغه نبى کريم ﷺ لره په عرفات کښې په وقوف کولوباندې اوليدو هغه په سور اوښ باندې وو اوخطبه ئې فرمائيله.

قوله: على بعير احمر يخطب..الخ: دا هم خلاف مشهور ده بعير خو اوښ ته وئيلې شى حالانکه نبى ﷺ په اوښه باندې وو او د نسائى په روايت کښې چې هم په دې سند سره دې د بعير په ځائې جمل احمر دې حالانکه امام نسائى په خپله په دې باندې باب خطبة يوم عرفة

---

(١): تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ١٥٧٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٩٤/٢، ٣٦٩، ٤٣٠)(ضعيف)

(٢): سنن النسائي/الحج ١٩٨(٣٠١٠)، ١٩٩(٣٠١١)،(تحفة الأشراف: ١١٥٨٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ١٥٨(١٢٨٦)، مسند احمد(٣٠٥/٤، ٣٠٦)(صحيح)

علی الناقة قائم کړې دې ممکن ده چې د بعیر اطلاق په ناقه یعنی اوښه باندې هم کیدې شی او یا دا چې راوی د لرې نه لیدلې وی او اوښ ئې ګڼرلې وی والله تعالی اعلم په سند کښې چې کوم راوی دې خالد بن العداء بن هوذة دا په مقلوب الاسماء کښې دې صحیح د دې عکس دې یعنی العداء بن خالد کما فی التقریب

[١٩١٧]([1]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، قَالَا: حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ، قَالَ: حَدَّثَنِي الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ، قَالَ هَنَّادٌ: عَنْ عَبْدِ الْمَجِيدِ أَبِي عَمْرٍو، قَالَ: حَدَّثَنِي خَالِدُ بْنُ الْعَدَّاءِ بْنِ هَوْذَةَ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ يَوْمَ عَرَفَةَ عَلَى بَعِيرٍ قَائِمٌ فِي الرِّكَابَيْنِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: رَوَاهُ ابْنُ الْعَلَاءِ، عَنْ وَكِيعٍ، كَمَا قَالَ هَنَّادٌ.

خالد بن عدا رضی الله عنه نه روایت دې چه ما دعرفې په ورځ باندې رسول الله ﷺ لره اولیدو چه هغه په خپل اوښ باندې ناست وو اودهغې په رکابونوکښې ئې خپې پرتې وې اوخطبه ئې فرمائیله. ابوداود فرمائی چه ابن العلاء دوکیع نه داسې روایت کړې دې لکه څنګه چه هناد وئیلې دې.

[١٩١٨]([2]) حَدَّثَنَا عَبَّاسُ بْنُ عَبْدِ الْعَظِيمِ، حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْمَجِيدِ أَبُو عَمْرٍو، عَنْ الْعَدَّاءِ، بِمَعْنَاهُ.

عبد المجید بن عمرو دعداء بن خالد نه روایت کړې دې اودپورتنې روایت په شان روایت ئې بیان کړې دې.

## بَاب مَوْضِعِ الْوُقُوفِ بِعَرَفَةَ

### په عرفات کښې د وقوف (یعنی ایساریدلو) ځائ

[١٩١٩]([3]) حَدَّثَنَا ابْنُ نُفَيْلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَمْرٍو يَعْنِي ابْنَ دِينَارٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ صَفْوَانَ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ شَيْبَانَ، قَالَ: "أَتَانَا ابْنُ مِرْبَعٍ الْأَنْصَارِيُّ وَنَحْنُ بِعَرَفَةَ فِي مَكَانٍ يُبَاعِدُهُ عَمْرٌو عَنِ الْإِمَامِ، فَقَالَ: أَمَا إِنِّي رَسُولُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَيْكُمْ، يَقُولُ لَكُمْ: قِفُوا عَلَى مَشَاعِرِكُمْ، فَإِنَّكُمْ عَلَى إِرْثٍ مِنْ إِرْثِ أَبِيكُمْ إِبْرَاهِيمَ".

د زید بن شیبان نه روایت دې چه ابن مربعه انصاری و مونږ ته تشریف راوړو او مونږ په عرفات کښې په داسې ځائې باندې وقوف کړې وو چه عمرو بن عبدالله هغې لره دامام دموقف نه لرې ګڼړلو (ابن مربعه) اوفرمائیل بې شکه زه ستاسو طرف ته درسول الله ﷺ پیغام رسوونکې راغلې یم هغه تاسو ته فرمائی په خپل مقاماتو باندې وقوف اوکړئ بې شکه تاسو د خپل پلار ابراهیم علیه السلام دوراثت نه په یووراثت کښې یئ.

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٤٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٠/٥)(صحیح)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٨٤٩)(صحیح)
[3]: سنن الترمذي/الحج ٥٣(٨٨٣)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٥(٣٠١١) سنن النسائي/ الحج ٢٠٢(٣٠١٧)، (تحفة الأشراف: ١٥٥٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٣٧/٤)(صحیح)

## د حديث شرح

اتانا ابن مربع الانصاری ونحن بعرفة فی مکان(١) يباعده عمرو عن الامام

د حديث شريف مضمون دا دې يزيد بن شيبان چې صحابی دې فرمائی چې د حجة الوداع په موقع کوم وخت چه مونږ په عرفات کښې وو نو مونږ ته ابن مربع انصاری(قيل اسمه زيد وقيل يزيد وقيل عبدالله) راغې او وې فرمائيل چې زۀ نبی ﷺ راليږلې يم او دا پيغام مې د پيغمبر ﷺ راوړې دې فرمائی چې تاسو خلق کوم ځائې موجود ئې نو هم دلته اوسئ ځکه چې تاسو د حضرت ابراهيم ﷺ په ميراث باندې ئې يعنی د هغوی په طريقه باندې او ستاسو دا وقوف د هغوی د سنت مطابق دې سوال دا کيږی چې نبی ﷺ دا خبره ولې ارشاد اوفرمائيله؟ د دې د وضاحت دپاره راوی يو جمله په حديث کښې درج کړه(٢) فی مکان يباعده عمرو عن الامام د عمرو نه عمرو بن عبدالله مراد دې مطلب دادې چې عمرو بن عبدالله وائی چې په کوم ځائې کښې دې خلقو په عرفات کښې وقوف کوو نو هغه ځائې د امام د موقف نه لرې وو امام د دوی نه په کافی فاصله باندې وو په دې وجه نبی ﷺ ته د دوی د تسلئ دپاره د دې خبرې کولو ضرورت پيښ شو

اصل کښې عرفات ډير اوږد او پلن ميدان دې په دې کښې چې کوم ځائې کښې هم وقوف اوشی نو صحيح دې په عرفات کښې د وقوف دپاره خيمې د مخکښې نه نصب کولې شی دې حضراتو خيمې داسې ځائې کښې لګولې وې چې هغه د حضور ﷺ د موقف نه لرې وې او بيا ښکاره خبره ده چې د دې ځائې نه په منتقل کيدو کښې حرج وو په دې وجه نبی ﷺ هغوی ته تسلی ورکړه او دا خبر ئې ورته راؤليږلو چې تاسو کوم ځائې ئې نو هم هلته اوسئ امام صاحب سره خوا کښې وقوف کول څه ضروری نۀ دی او اصل خو په دې کښې د حضرت ابراهيم ﷺ اتباع کول دی نو هغه خو بحمدالله حاصل ده په خلاف د قريش چې هغوی به د ابراهيم ﷺ د سنتو خلاف په مزدلفه کښې وقوف کوو چې شرعاً ورله هيڅ اعتبار نشته والله تعالی اعلم

سبحان الله! نبی ﷺ به څومره قدرې د خپلو صحابه کرامو زړۀ ساتلو جزی الله سيدنا ومولنا محمداً عنا بما هو اهله قال المنذری واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه(عون)

---

(١) دا د عمرو بن دينار مقوله ده کوم چه هغه د عمرو بن عبدالله نه نقل کوی، ترجمه دا خلق په داسې ځائې کښې وقوف کوی کوم ته چه عمرو بن عبدالله د امام د ځائې نه لرې ښائی، حضرت په بذل کښې د دې جملې په تشريح کښې کلام طويل فرمائيلې دې چه د هغې وجه دا ده چه په بعض کتب حديث کښې دا جمله په نورو الفاظو کښې ده

(٢) د ابوداود د روايت نه هم دا مستفاد کيږی چه دا جمله مدرج ده او د نسائی سياق د دې نه مختلف دې د هغې نه مدرج کيدل نه معلوميږی په هغې کښې داسې دی ﴿ان يزيد بن شيبان قال کنا وقوفا بعرفة مکانا بعيدا من الموقف الخ ﴾ د دې تقاضه دا ده چه دا جمله خپله د اصل راوی يزيد بن شيبان ده د لاندې راوی د طرف نه مدرج نه ده، غالبا صحيح صورت حال هم هغه دې کوم چه د ابوداود په روايت کښې دې. والله تعالي اعلم

**تنبیه**: د بذل المجهود په نسخه کښې داسې دی فانکم علی ارث من ارث ابراهیم ،، په دې کښې لفظ د ابیکم پاتې شوې دې، من ارث ابیکم ابراهیم لکه څنګه چې په نورو نسخو کښې دی او د نسائی په روایت کښې هم

# بَابُ الدَّفْعَةِ مِنْ عَرَفَةَ

## بابه د عرفات د واپس کیدلو بیان

یعنی د عرفات نه مزدلفې طرفته واپس کیدل(مزدلفه د منی او عرفات په مینځ کښې ده) د دې باب د اولنی حدیث شرح د حجة الوداع والا په حدیث کښې تیره شوې ده

[١٩٢٠](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ. ح وحَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ الْأَعْمَشُ الْمَعْنَى، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ مِقْسَمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "أَفَاضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ وَعَلَيْهِ السَّكِينَةُ وَرَدِيفُهُ أُسَامَةُ، وَقَالَ: أَيُّهَا النَّاسُ، عَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ، فَإِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِإِيجَافِ الْخَيْلِ وَالْإِبِلِ"، قَالَ: فَمَا رَأَيْتُهَا رَافِعَةً يَدَيْهَا عَادِيَةً حَتَّى أَتَى جَمْعًا، زَادَ وَهْبٌ: ثُمَّ أَرْدَفَ الْفَضْلَ بْنَ الْعَبَّاسِ، وَقَالَ: "أَيُّهَا النَّاسُ، إِنَّ الْبِرَّ لَيْسَ بِإِيجَافِ الْخَيْلِ وَالْإِبِلِ، فَعَلَيْكُمْ بِالسَّكِينَةِ"، قَالَ: فَمَا رَأَيْتُهَا رَافِعَةً يَدَيْهَا حَتَّى أَتَى مِنًى.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې چه رسول الله ﷺ د عرفات نه روان شو او په ډیر ارام او سکون سره روان شو اسامه هغه پسې وروستو ناست وو نبی علیه السلام اوفرمائیل اې خلقو په ارام سره ځئ نیکی په اس او اوښ زغلولو کښې نشته او ما اوکتل چه خپلې دواړه خپه نه وې اوچتې کړې چه منډې ئې وهلې تردې پورې چه نبی علیه السلام مزدلفت ته اورسیدل وهب زیاتوی چه بیا هغه فضل بن عباس نه لره ځان پسې وروستو کینولو اووئې فرمائیل اې خلقو نیکی د اس او د اوښ په زغلولو کښې نشته دې په سکون سره ځئ اومانه دی لیدلی چه هیڅ یوې سورلې خپې اوچتې کړې وی اوتلی وی تردې پورې چه هغه منی ته راغې.

[١٩٢١](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ وَهَذَا لَفْظُ حَدِيثِ زُهَيْرٍ، حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُقْبَةَ، أَخْبَرَنِي كُرَيْبٌ، أَنَّهُ سَأَلَ أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ، قُلْتُ: أَخْبِرْنِي كَيْفَ فَعَلْتُمْ أَوْ صَنَعْتُمْ عَشِيَّةَ رَدِفْتَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ قَالَ: جِئْنَا الشِّعْبَ الَّذِي يُنِيخُ النَّاسُ فِيهِ لِلْمُعَرَّسِ، فَأَنَاخَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَاقَتَهُ ثُمَّ بَالَ، وَمَا قَالَ زُهَيْرٌ: أَهْرَاقَ الْمَاءَ، ثُمَّ دَعَا بِالْوَضُوءِ فَتَوَضَّأَ وُضُوءًا لَيْسَ بِالْبَالِغِ جِدًّا، قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الصَّلَاةَ، قَالَ: الصَّلَاةُ أَمَامَكَ، قَالَ: رَكِبَ حَتَّى قَدِمْنَا الْمُزْدَلِفَةَ فَأَقَامَ الْمَغْرِبَ، ثُمَّ أَنَاخَ النَّاسُ فِي مَنَازِلِهِمْ وَلَمْ يَحُلُّوا حَتَّى أَقَامَ الْعِشَاءَ وَصَلَّى، ثُمَّ حَلَّ النَّاسُ". زَادَ مُحَمَّدٌ فِي حَدِيثِهِ، قَالَ: قُلْتُ: كَيْفَ فَعَلْتُمْ حِينَ أَصْبَحْتُمْ؟ قَالَ: رَدِفَهُ الْفَضْلُ وَانْطَلَقْتُ أَنَا فِي سُبَّاقِ قُرَيْشٍ عَلَى رِجْلَيَّ.

د کریب نه روایت دې چه ما اسامه بن زید ته اوفرمائیل ماته دا اوښائی چه په کومه شپه ته

(1): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف:٦٤٧٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ٢٢(١٥٤٤)، صحيح مسلم/الحج ٤٥(١٢٨٢)، سنن الترمذي/الحج ٧٨(٩١٨)، سنن النسائي/الحج ٢٠٤(٣٠٢٢)، مسند احمد(١/٢٣٥، ٢٥١، ٢٦٩، ٢٧٧، ٣٢٦، ٣٥٣، ٣٧١)(صحيح)

(2): سنن النسائي/ الحج ٢٠٧(٣٠٣٣)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٩(٣٠١٩)،( تحفة الأشراف: ١١٦)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ٣٥(١٣٩)، والحج ٩٥(١٦٦٦)، صحيح مسلم/الحج ٤٧(١٢٨٠)، سنن الترمذي/الحج ٥٤(٨٨٥)، موطا امام مالك/الحج ٦٥(١٩٧)، مسند احمد(٥/٢٠٠، ٢٠٢، ٢٠٨، ٢١٠)، سنن الدارمي/المناسك ٥١(١٩٢٢)(صحيح)

رسول الله ﷺ پسې وروستو ناست وې نوتاسو خلقو څنګه فعل کولو هغه اوفرمائيل چه مونږ د غونډۍ ته راغلو په کوم کښې چه خلق سورلۍ کينه وی هغه ځائې ته معرس وائی رسول الله ﷺ خپله اوښه کينوله بيائې بول اوکړل اسامه بن داهراق الماء الفاظ نه دی ذکرکړې بيا هغه اوبه طلب کړې او اودس ئې اوکړو اندامونه ئې يوځل دوه او وينځل ماوونيل اې دالله رسوله مونځ هغه اوفرمائيل مونځ ستاسو مخ ته دې بياهغه سور شو تردې پورې چه مزدلفی ته اورسيدلو نو بياهغه هلته دماښام مونځ اداکړو بياخلقو خپلو . سورلو لره په خپل خپل پړاو کښې کينولې مګر دهغې بوجونه ئې کولاو نه کړل تردې پورې چه دماسخوتن اقامت اووئيلې شواومونځ ئې اداکړو بياخلقو خپل بوجونه کولاو کړل محمدبن کثير په خپل روايت کښې مزيد وئيلی دی ماتپوس اوکړو کله چه تاسو صبا کړو نو څنګه فعل موکړې وو هغه اووئيل فضله هغه پسې ورستو سور شو اوزه دقريشو دهغه افرادو سره پيدل لاړم کوم چه دنورو خلقونه مخکښې روان شوې وو.

قوله: قلت اخبرنی کيف فعلتم عشيةً ردفتَ..الخ:

يعنی د عرفې په ماښام چې کله تاسو نبی ﷺ پسې شاته سوارۀ شوئ او مزدلفې ته روان شوئ نو په لاره کښې مو څه اوکړل يعنی کوم ځائې کښې حصار شوئ يا بس مسلسل روان وی(د دې حال بيان کړئ) قال جئنا الشعب الذی ينيخ فيه الناس اللمعرس يعنی په لاره کښې چې کله مونږ هغې ګهاټئ ته اورسيدو چرته چې نن صبا خلق يعنی بنواميه تعريس کوی نو نبی ﷺ هلته کوز شو او بول ئې اوکړل او مختصر شان اودس ئې اوفرمائيلو( چې په هغې کښې ئې زياتې اوبه استعمال نه کړې) د دې نه پس فوراً د هغې ځائې نه وړاندې لاړل( دې دپاره چې جلدئ سره مزدلفې ته اورسی او هلته ماښام او ماسخوتن جمع کړی) په دې کلام کښې تعريض دې دې طرفته چې امراء د بنواميه خلاف سنت دلته تعريس کوی صرف دا نۀ بلکه هلته د ماښام مونځ هم کوی لکه څنګه چې د مسلم شريف په روايت کښې د دې تصريح موجود ده لکه په يو روايت کښې دی چې کوم ځائې نبی ﷺ د بولو ځائې ګرځولې وو نو هغه تاسو د مونځ ځائې ګرځوئ څومره د تعجب خبره ده قال الصلوة امامک مونځ دلته نۀ وړاندې کول دی وړاندې په روايت کښې دا دی چې کله بيا نبی ﷺ مزدلفې ته اورسيدۀ نو رسيدلو سره ئې د ماښام مونځ اوکړود دې نه پس ئې سورلۍ کينولې چې تردغه وخت پورې ولاړې وې ليکن د هغې نه ئې سامان کوز نکړو بيا ئې د ماسخوتن مونځ اوکړو او د هغې نه ئې سامان او کجاوې وغيره کوزې کړې د دې نه معلومه شوه چې مزدلفې ته په رسيدلو سره په مونځ کولو کښې لږ شان تاخير هم کول پکار نۀ دی بلکه د ټولو نه مخکښې دا کار کول پکار دی نن صبا خلق په مونځ کولو کښې ډير تاخير کوی داسې نۀ دی کول پکار

## د ماښام مونځ د مزدلفه په لار کښې او په دې کښې څلور مذهبونه

د ماښام مونځ د مزدلفه په لار کښې کولې شی يا نۀ؟ دې مسئله کښې هم اختلاف دې د طرفينو(امام ابوحنيفه و امام محمد)په نزد صحيح نۀ دې او د امام ابويوسف صاحب په نزد جائز دی(قدوری) او د ائمه ثلثه يعنی امام شافعی،مالک و احمد په نزد هم جائزدی بلکه د

دي حضراتو په نزد خو جمع بين المغرب والعشاء هم جائز ده د امام شافعي واحمد په نزد خو مطلقاً ولو في وقت المغرب او د امام مالک په نزد ماښام خو بهرحال صحيح دي او جمع بين المغرب والعشاء هغه وخت صحيح ده چې کله د ماسخوتن وخت شي ورنه صرف ماښام به صحيح وي او ماسخوتن نه (منهل وتحفة الاحوذی)

قلت کيف فعلتم حين اصبحتم سائل تپوس اوکړو بيا چې کله په مزدلفه کښې د شپې تيرولو نه پس سحر شو نو تاسو څهٔ اوکړل يعنی اوس د دې نه وړاندې کارګذاری بيان کړئ نو په دې باندې حضرت اسامه رضی الله عنه جواب ورکړو چې د مزدلفې نه وړاندې زهٔ نبی عليه السلام سره نهٔ ووم بلکه د دې ځائې نه د نبی عليه السلام رديف فضل بن عباس شو (لهذا د دې تفصيل به هغوی بيان کړی) زهٔ خو په هغه نوجوانانِ قريش کښې ووم چې د مزدلفې نه منی ته په وخت باندې پيدل روان شوې وو لکه وړاندې په باب التعجيل کښې راروان دی ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی قدمنا رسول الله صلى الله عليه وسلم ليلة المزدلفة أُغيلمة بني عبدالمطلب على جمراتٍ ...الخ.

[١٩٢٢](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: ثُمَّ أَرْدَفَ أُسَامَةَ فَجَعَلَ يُعْنِقُ عَلَى نَاقَتِهِ وَالنَّاسُ يَضْرِبُونَ الْإِبِلَ يَمِينًا وَشِمَالًا لَا يَلْتَفِتُ إِلَيْهِمْ، وَيَقُولُ: السَّكِينَةَ أَيُّهَا النَّاسُ، وَدَفَعَ حِينَ غَابَتِ الشَّمْسُ.

دعلی رضی الله عنه نه روايت دې هغه اوفرمائيل بيانبی عليه السلام اسامه رضی الله عنه دځان پسې ورستو سور کړو بات بيا هغه په خپله اوښه باندې په درميانی تګ سره روان شو اوخلقو بنی اوګس طرف ته اوښانو لره وهل هغه به دوی طرف ته نه کتل اوفر مائيل به يې، اې خلقو په سکون سره تلل کوئ اوهغه دعرفات نه د نمر د نمر پريوتلو نه پس روان شول.

فجعل يُعنق على ناقته عنق وئيلې شی درميانه رفتار ته يعنی نبی عليه السلام خپله اوښه درميانی رفتار سره چلوله او نورو خلقو خپلې سورلئ وهلې او په وهلو وهلو ئې په منډه کړې وې نبی عليه السلام هغوی ته په سکون سره د تللو ترغيب ورکولو

لا يلتفت اليهم نبی عليه السلام به هغوی ته په شا باندې نهٔ کتل بلکه صرف په ژبې مبارکې سره به ئې اشاره فرمائيله چې جلدی مهٔ کوئ او مسند احمد دغه شان ترمذی شريف کښې د لا يلتفت په ځائې يلتفت دې دواړو روايتونو ملاؤولو سره دا مطلب راوځی چې نبی عليه السلام به کله توجه کوله او کله نهٔ والله اعلم

[١٩٢٣](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّهُ قَالَ: سُئِلَ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَأَنَا جَالِسٌ، كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسِيرُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ حِينَ دَفَعَ؟ قَالَ: "كَانَ يَسِيرُ الْعَنَقَ، فَإِذَا وَجَدَ فَجْوَةً نَصَّ". قَالَ هِشَامٌ: النَّصُّ فَوْقَ الْعَنَقِ.

---

(١): سنن الترمذي/الحج ٥٥٤(٨٨٥)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٧٢، ٧٥، ٧٦، ٨١)(حسن)

(٢): صحيح البخاري/الحج ٩٣(١٦٦٦)، والجهاد ١٣٦(٢٩٩٩)، والمغازي ٧٧(٤٤١٣)، صحيح مسلم/الحج ٤٧(١٢٨٦)، سنن النسائي/الحج ٢٠٥(٣٠٢٦)، ٢١٤(٣٠٥٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٨(٣٠١٧)، (تحفة الأشراف: ١٠٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٥٧(١٧٦)، مسند احمد(٥/٢٠٥، ٢١٠)، سنن الدارمي/المناسك ٥١(١٩٢٢)(صحيح)

د عروه رضي الله عنه نه روايت دې چه داسامه رضي الله عنه نه تپوس اوکړې شو اوزه ناست وم چه رسول الله ﷺ به په الوداع کښې کله چه هغه دعرفې نه روان شو په کوم و رفتار سره تللو هغه اوفرمائيل په درمياني رفتارسره کله چه به ئې فراخي بياموندله نوڅه قدرې تيزيه تللو، هشام اووئيل چه دنص والارفتار د تنق نه څه قدرې تيز وي.

**تشريح: قوله**: النص فوق العنق..الخ: د فجوه ميدان يعني کوم ځائې کښې چې به رش وو نو هلته به نبي عليه السلام لږ په مزه رفتار سره تلو(دې ته عنق وئيلې شي) او چې کوم ځائې کښې به کهولاؤ ميدان وو نو هلته به نبي عليه السلام رفتار تيزولو.

[١٩٢٤]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنِ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ عُقْبَةَ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُسَامَةَ، قَالَ: "كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا وَقَعَتِ الشَّمْسُ دَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

د اسامه رضي الله عنه نه روايت دې چه زه نبي کريم ﷺ و پسې ورروستو سور وم کله چه نمر پريوتونو رسول الله ﷺ دهغه ځائې نه روان شو..

**تشريح: قوله**: فلما وقعت الشمس دفع رسول الله صلى الله عليه وسلم..الخ:

يعني د عرفات نه نبي عليه السلام د نمر پريوتلو نه پس روان شو د دې نه مخکښې نه،او هم دا واجب دی د حنفيه او حنابله په نزد وقد تقدمت المذاهب في مقدارالوقوف في باب الوقوف بعرفة که يو سړې د نمر پريوتلو نه مخکښې روان شي يصح عندالائمة الثلثة ويجب الدم وعندالامام مالک لا يصح حجه اذ فرض الوقوف عنده لا يحصل الا بالوقوف بعدالغروب اعني ليلة المزدلفة

[١٩٢٥]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ كُرَيْبٍ مَوْلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَبَّاسٍ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، أَنَّهُ سَمِعَهُ، يَقُولُ: "دَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ عَرَفَةَ، حَتَّى إِذَا كَانَ بِالشِّعْبِ نَزَلَ فَبَالَ فَتَوَضَّأَ، وَلَمْ يُسْبِغْ الْوُضُوءَ، قُلْتُ لَهُ: الصَّلَاةُ، فَقَالَ: الصَّلَاةُ أَمَامَكَ فَرَكِبَ، فَلَمَّا جَاءَ الْمُزْدَلِفَةَ نَزَلَ فَتَوَضَّأَ فَأَسْبَغَ الْوُضُوءَ، ثُمَّ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ، ثُمَّ أَنَاخَ كُلُّ إِنْسَانٍ بَعِيرَهُ فِي مَنْزِلِهِ، ثُمَّ أُقِيمَتِ الْعِشَاءُ فَصَلَّاهَا وَلَمْ يُصَلِّ بَيْنَهُمَا شَيْئًا".

کريب چه دعبدالله بن عباس رضي الله عنه ازاد کرده غلام دې دوی داسامه بن زيدونه واوريدل هغه فرمائيل چه رسول الله ﷺ دعرفات نه روان شو تردې پورې چه هغه دغره غاښې ته اورسيدو نوهغه کوز شو بول ئې اوکړل بيائې اودس اوکړو خوپه هغې کښې څه مبالغه نه وه ماعرض اوکړو مونځ نبي عليه السلام اوفرمائيل مونځ ستاسو مخکښې دې بياهغوی سواره به شو کله چه مزدلفه ته اورسيدو نوکوز شواودس ئې اوکړو کامل اودس بيادمونځ اقامت اووئيلې شو نودمابنام مونځ ئې اوکړو بياهر کس خپل خپل اوښ لره په خپل خپل پړاو کښې کينولو بيا د ماسخوتن اقامت اووئيلې شونوهغه مونځ اداکړو اودده په مينځ کښې ئې څه ادانه کړل.

---

(): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١١٧)(حسن صحيح)

(): صحيح البخاري/الوضوء ٣٥(١٣٩)، والحج ٩٥(١٦٦٦)، صحيح مسلم/الحج ٤٧(١٢٨٠)، سنن النسائي/ الحج ٢٠٦(٣٠٢٧، ٣٠٢٨)، سنن الترمذي/الحج ٥٤(٨٨٥)،( تحفة الأشراف: ١١٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٩٩/٥، ٢٠٨، ٢١٠)(صحيح)

## بَابُ الصَّلَاةِ بِجَمْعٍ

### باب: په مزدلفه کښې دمونځ بيان

### (د مزدلفه وجه تسميه)

مزدلفه ته جمع ځکه وئيلې شي چې د نزول من السماء نه پس حضرت آدم او حوا عليهما السلام دلته ملاؤ شوي وو او دې ته مزدلفه ځکه وائي د ازدلاف معنى قرب يعنى نزديکت ده چې حاجيان صاحبان دلته په وقوف کولو او شپې تيرولو سره د الله تعالى قرب او نزديکت حاصلوي او يا په دې وجه چې هلته په رسيدلو سره حاجيان منى ته نزدې شي په خلاف د عرفات چې کله هلته وو نو د منى نه لرې وو

په دې باب کښې مصنف هغه احاديث بيان کړې دى چې په کومو کښې هغه امور مذکور دى چې کوم په مزدلفه کښې کولې شي يعنى جمع بين الصلوتين نيز د دې دواړو په يو اذان او يو اقامت سره کيدل يا د اذان او اقامت تعدد سره کيدل چې اختلافي مسئله ده مونږ سره د دې نه مخکښې ئې دوه ځله تذکره شوې ده او بيا د صبح صادق نه پس مشعرحرام ته نزدې لږ شان وقوف کول او بيا د دې نه پس د طلوع شمس نه مخکښې د هغه ځائې نه منى ته روانيدل

[۱۹۲۶] (۱) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، "أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِالْمُزْدَلِفَةِ جَمِيعًا".

دعبدالله بن عروه رضي الله عنهما نه روايت دې چه رسول الله ﷺ په مزدلفه کښې دماښام او د ماسخوتن مونځ يوځائې ادا کړو.

[۱۹۲۷] (۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ خَالِدٍ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، وَقَالَ: "بِإِقَامَةٍ إِقَامَةٍ جَمَعَ بَيْنَهُمَا"، قَالَ أَحْمَدُ: قَالَ وَكِيعٌ: "صَلَّى كُلَّ صَلَاةٍ بِإِقَامَةٍ".

زهري په خپل سند سره پورته ذکر شوى حديث روايت کړې دې اوفرمائي په يويو اقامت سره ئې دې دواړو مونځونو لره جمع اوفرمائيل. احمدفرمائيلي دى چه وکيع بيان کړې دې چه نبي عليه السلام هريو مونځ لره داقامت سره ادا کړل

[۱۹۲۸] (۳) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا شَبَابَةُ. ح وحَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ خَالِدٍ الْمَعْنَى، أَخْبَرَنَا عُثْمَانُ بْنُ عُمَرَ، عَنِ ابْنِ أَبِي ذِئْبٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ بِإِسْنَادِ ابْنِ حَنْبَلٍ، عَنْ حَمَّادٍ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "بِإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ لِكُلِّ صَلَاةٍ، وَلَمْ يُنَادِ فِي الْأُولَى وَلَمْ يُسَبِّحْ عَلَى إِثْرِ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا"، قَالَ مَخْلَدٌ: "لَمْ يُنَادِ فِي وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا".

---

[۱]: صحيح مسلم/الحج ۴۷(۷۰۳)، سنن النسائي/ الصلاة ۱۸(۴۸۲)، ۲۰(۴۸۴، ۴۸۵)، سنن النسائي/ الصلاة ۱۸(۴۸۲)، ۲۰(۴۸۴، ۴۸۵)، المواقيت ۴۹(۶۰۷)، والأذان ۱۹(۶۵۸)، والحج ۲۰۷(۳۰۳۳)،(تحفة الأشراف: ۶۹۱۴)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ۹۶(۱۶۷۴)، سنن الترمذي/الحج ۵۶(۸۸۸)، سنن ابن ماجه/المناسك ۶۰(۳۰۲۰)، موطا امام مالك/الحج ۶۵(۱۹۶)، مسند احمد(۲/ ۳، ۶۲، ۷۹، ۸۱)(صحيح)

[۲]: صحيح البخاري/ الحج ۹۶(۱۶۷۳)، سنن النسائي/ الأذان ۲۰(۶۶۱)، الحج ۲۰۷(۳۰۳۱)،( تحفة الأشراف: ۶۹۲۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/ ۵۶، ۱۵۷)، دي/ المناسك ۵۲(۱۹۲۶)(صحيح)

[۳]: انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ۶۹۲۳)(صحيح)

عثمان بن عمر دابن أبي زئب نه هغه دزهري نه يعني د(عن احمد بن حنبل عن حماد) په سند سره ددې ما حديث په شان روايت ذکرکړو چه دهريومونځ دپاره ئې جدا اقامت اووئيلو او په اول کښې ئې اذان اونکړواونه ئې په کښې ديونه وروستو سنت اولوستل. مخلد فرمائی په دې کښې ئې ديودپاره اذان اونه کړو.

[١٩٢٩](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا وَالْعِشَاءَ رَكْعَتَيْنِ، فَقَالَ لَهُ مَالِكُ بْنُ الْحَارِثِ: مَا هَذِهِ الصَّلَاةُ؟ قَالَ: صَلَّيْتُهُمَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْمَكَانِ بِإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ".

دعبدالله بن مالك بن حارث نه روايت دې چه بن مادعبدالله بن عمر ﷺ سره مونځ وکړو د ماښام درې اودماسخوتن دوه رکعته مالك بن حارث هغه ته و اووئيل داځنګه مونځ دې هغه اوفرمائيل مادې لره د نبی ﷺ سره په دې ځائ کښې هم په يوتکبير سره کړی دې.

[١٩٣٠](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا إِسْحَاقُ يَعْنِي ابْنَ يُوسُفَ، عَنْ شَرِيكٍ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، وَعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَالِكٍ، قَالَا: "صَلَّيْنَا مَعَ ابْنِ عُمَرَ بِالْمُزْدَلِفَةِ الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ، فَذَكَرَ مَعْنَى حَدِيثِ ابْنِ كَثِيرٍ".

د سعيد بن جبير اودعبدالله بن مالك دواړو نه روايت ابی دې چه مونږ دابن عمر ﷺ سره په مزدلفه کښې لا دماښام اودماسخوتن مونځونه په يوتکبير سره و اداکړل اودمحمدبن کثير دروايت په شان يې بيان اوکړو.

[١٩٣١](٣) حَدَّثَنَا ابْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ، قَالَ: "أَفَضْنَا مَعَ ابْنِ عُمَرَ، فَلَمَّا بَلَغْنَا جَمْعًا صَلَّى بِنَا الْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ بِإِقَامَةٍ وَاحِدَةٍ ثَلَاثًا وَاثْنَتَيْنِ، فَلَمَّا انْصَرَفَ، قَالَ لَنَا ابْنُ عُمَرَ: هَكَذَا صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي هَذَا الْمَكَانِ".

سعيد بن جبير اوفرمائيل مونږ دابن عمر ﷺ په معيت قال کښې واپس شو کله چه مزدلفې ته اورسيدو نوهغه مونږ ته د ماښام اودماسخوتن مونځ درې رکعته اودوه رکعته په يوتکبير سره ادا کړل کله چه فارغ شو نوابن عمر ﷺ اووئيل چه رسول الله ﷺ په دې ځائې کښې مونږ ته داسې مونځ راکړې وو.

[١٩٣٢](٤) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ شُعْبَةَ، حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، قَالَ: "رَأَيْتُ سَعِيدَ بْنَ جُبَيْرٍ أَقَامَ بِجَمْعٍ فَصَلَّى الْمَغْرِبَ ثَلَاثًا ثُمَّ صَلَّى الْعِشَاءَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: شَهِدْتُ ابْنَ عُمَرَ صَنَعَ فِي هَذَا الْمَكَانِ مِثْلَ هَذَا، وَقَالَ: شَهِدْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَنَعَ مِثْلَ هَذَا فِي هَذَا الْمَكَانِ".

سلمه بن کهيل اووئيل چه ماسعيد بن جبير په مزدلفه کښې اوليدو چه هغه اقامت اووئيلو اودماښام درې رکعته ئې اداکړل بيائې دماسخوتن دوه رکعته اوکړل بيائې اووئيل

---

(١): سنن الترمذي/ الحج ٥٦(٨٨٧)،( تحفة الأشراف: ٧٢٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٨/٢، ٣٣، ٧٨، ١٥٢)(صحيح)

(٢): صحيح مسلم/ الحج ٤٧(١٢٨٨)، سنن الترمذي/ الحج ٥٦(٨٨٨)، سنن النسائي/ الحج ٢٠٧(٣٠٣٣)،( تحفة الأشراف: ٧٠٥٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٨٠/١، ٢/٢، ٣، ٣٣، ٥٩، ٦٢، ٧٩، ٨١)(صحيح)

(٣): انظر حديث رقم(١٩٣٠)،( تحفة الأشراف: ٧٠٥٢)(صحيح)

(٤): انظر حديث رقم(١٩٣٠)،( تحفة الأشراف: ٧٠٥٢)(صحيح)

چه زه دابن عمر سره حاضرشوې وم هغه په دې ځائې کښې داسې کړې وو او هغه بیان کړل چه زه د رسول اللهﷺ سره وم او رسول اللهﷺ په دې ځائې کښې داسې کړې وو.

[١٩٣٣](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا أَبُو الْأَحْوَصِ، حَدَّثَنَا أَشْعَثُ بْنُ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: "أَقْبَلْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ مِنْ عَرَفَاتٍ إِلَى الْمُزْدَلِفَةِ فَلَمْ يَكُنْ يَفْتُرُ مِنَ التَّكْبِيرِ وَالتَّهْلِيلِ حَتَّى أَتَيْنَا الْمُزْدَلِفَةَ، فَأَذَّنَ وَأَقَامَ، أَوْ أَمَرَ إِنْسَانًا فَأَذَّنَ وَأَقَامَ، فَصَلَّى بِنَا الْمَغْرِبَ ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ، ثُمَّ الْتَفَتَ إِلَيْنَا، فَقَالَ: الصَّلَاةُ، فَصَلَّى بِنَا الْعِشَاءَ رَكْعَتَيْنِ، ثُمَّ دَعَا بِعَشَائِهِ، قَالَ: وَأَخْبَرَنِي عِلَاجُ بْنُ عَمْرٍو بِمِثْلِ حَدِيثِ أَبِي، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: فَقِيلَ لِابْنِ عُمَرَ فِي ذَلِكَ. فَقَالَ: صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَكَذَا".

اشعث بن سلیم دخپل پلار نه روایت کوی چه زه دابن عمر سره دعرفات نه مزدلفې ته لاړم هغه په دې دوران کښې تکبیر اوتهلیل نه دې پریخودلې تردې پورې چه مونږ مزدلفې ته اورسیدو بیائې اذان او اقامت وکړل یائې چاته حکم اوکړو چه اذان او اقامت اوکړئ بیائې مونږ ته د ماښام درې رکعته راکړل بیا مونږ ته متوجه شو اووئې فرمائیل مونځ بیائې مونږ ته د ماسخوتن مونځ راکړو بیائې دشپې خوراك طلب کړو وائې چه زما پلار دابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړې دې دابن عمرنه ددې په باره کښې تپوس اوکړې شو نو هغه اووئیل ماد رسول اللهﷺ سره هم داسې مونځ کړې وو.

[١٩٣٤](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ عَبْدَ الْوَاحِدِ بْنَ زِيَادٍ، وَأَبَا عَوَانَةَ، وَأَبَا مُعَاوِيَةَ حَدَّثُوهُمْ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ عُمَارَةَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةً إِلَّا لِوَقْتِهَا، إِلَّا بِجَمْعٍ فَإِنَّهُ جَمَعَ بَيْنَ الْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ بِجَمْعٍ وَصَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ مِنَ الْغَدِ قَبْلَ وَقْتِهَا".

دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چه ما رسول اللهﷺ لره هیڅ کله نه دی لیدلی چه هغه کوم مونځ بې وخته کړې وی هغه به همیشه په وخت باندې مونځ کولو مګرپه مزدلفه کښې هغه دماښام اودماسخوتن مونځونه یوځائې اداکړل او د راتلونکې صبامونځ ئې دخپل وخت نه مخکښې اداکړو.

[١٩٣٥](٣) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ آدَمَ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَيَّاشٍ، عَنْ زَيْدِ بْنِ عَلِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي رَافِعٍ، عَنْ عَلِيٍّ، قَالَ: "فَلَمَّا أَصْبَحَ، يَعْنِي النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَوَقَفَ عَلَى قُزَحَ، فَقَالَ: هَذَا قُزَحُ وَهُوَ الْمَوْقِفُ وَجَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ، وَنَحَرْتُ هَا هُنَا وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ، فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ".

دعلی رضی الله عنه نه روایت دې چه کله نبی کریمﷺ صبا کړو او په جبل قزح باندې ئې وقوف اوکړو نووئې فرمائیل داقزح دې اودوقوف ځائې دې اومزدلفه ټول دوقوف ځائې دې ماپه دې ځائې کښې قربانی کړې ده اومنی ټول قربان ګاه ده لهذا په خپل خپل پړاو باندې قربانی اوکړئ.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٧٠٩١)(صحيح)

(٢): صحيح البخاري/الحج ٩٩(١٦٨٢)، صحيح مسلم/الحج ٤٨(١٢٨٩)، سنن النسائي/المواقيت ٤٩(٦٠٦)، والحج ٢٠٧(٣٠٣٠)، ٢١٠(٣٠٤١)، (تحفة الأشراف: ٩٣٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٨٤/١، ٤٢٦، ٤٣٤)(صحيح)

(٣): سنن الترمذي/الحج ٥٤(٨٨٥)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٥(٣٠١٠)، (تحفة الأشراف: ١٠٢٢٩)(حسن صحيح)

قوله: هذا قزح وهو الموقف...الخ: قزح وئیلې شي مشعر حرام ته چې په مزدلفه کښې یو غر دې کوم ځائې چې نبی ﷺ وقوف کړې وو د ارشاد عالي مطلب دا دې چې خاص په هغه ځائې کښې چه ما وقوف کړې دې هر سړی ته هلته وقوف کول ضروری نۀ دی بلکه پوره مزدلفه محل د وقوف دې چې کوم ځائې کښې ستاسو خوښه شي نو کوئ دغه شان په منی کښې کوم ځائې چې ما قربانی اوکړه نو دا ضروری نۀ ده چې ټول خلق دغه خاص ځائې کښې قربانی اوکړي د صحابه کرام شوق او ذوق چونکه دا وو چې کوم کار نبی ﷺ کوم ځائې کښې او څنګه کړې دې نو چې مونږ ئې هم هغه شان په هغه ځائې کښې اوکړو او ښکاره خبره ده چې په دې صورت کښې ټولو ته پریشانی پیښیده په سختئ او تنګئ کښې به مبتلا کیدل په دې وجه د صحابه کرامو ﷺ د آسانئ دپاره نبی ﷺ دا تعلیم اوفرمائیلو

[۱۹۳۶]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ غِيَاثٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَابِرٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "وَقَفْتُ هَاهُنَا بِعَرَفَةَ وَعَرَفَةُ كُلُّهَا مَوْقِفٌ، وَوَقَفْتُ هَاهُنَا بِجَمْعٍ وَجَمْعٌ كُلُّهَا مَوْقِفٌ، وَنَحَرْتُ هَاهُنَا وَمِنًى كُلُّهَا مَنْحَرٌ، فَانْحَرُوا فِي رِحَالِكُمْ".

دجابر ﷺ نه روایت دې چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل ما په عرفات کښې په دې ځائې باندې وقوف کړې دې اوعرفات ټول په ټوله ځائې دوقوف دې ما په مزدلفه کښې په دې ځائې باندې وقوف کړې دې او مزدلفه ټول په ټوله ځای د وقوف دې اوما په دې ځائې باندې قربانی کړې ده اومنی ټوله په ټوله قربان ګاه ده پس تاسو په خپل خپل پړاو باندې قربانی اوکړئ

[۱۹۳۷]([2]) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، عَنْ عَطَاءٍ، قَالَ: حَدَّثَنِي جَابِرُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "كُلُّ عَرَفَةَ مَوْقِفٌ وَكُلُّ مِنًى مَنْحَرٌ وَكُلُّ الْمُزْدَلِفَةِ مَوْقِفٌ وَكُلُّ فِجَاجِ مَكَّةَ طَرِيقٌ وَمَنْحَرٌ".

د جابر بن عبد الله ﷺ نه روایت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل عرفات ټول مقام وقوف دې اومنی ټوله قربان ګاه ده او مزدلفه ټوله دوقوف ځائې دې اودمکې ټولې لارې (دلته کښې دراتلو) لاری هم دی او قربان ګاه هم

[۱۹۳۸]([3]) حَدَّثَنَا ابْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ عَمْرِو بْنِ مَيْمُونٍ، قَالَ: قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: كَانَ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ لَا يُفِيضُونَ حَتَّى يَرَوُا الشَّمْسَ عَلَى ثَبِيرٍ، فَخَالَفَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَفَعَ قَبْلَ طُلُوعِ الشَّمْسِ".

دعمربن خطاب ﷺ نه روایت دې چه اهل جاهلیت به ترهغه وخته پورې نه روانیدل ترڅو چه به هغه په کوهی ثبیر باندې نمرلره اونه لیدلو لهذا نبی نه ددوی مخالفت اوکړو اودنمر

[1]: صحيح مسلم/ الحج ۱۹(۱۲۱۸)، سنن النسائي/ الحج ۵۱(۲۷٤۱)،( تحفة الأشراف: ۲۵۹۶)، وقد أخرجه: سنن الدارمي/المناسك ۵۰(۱۹۲۱)(صحیح)

[2]: سنن ابن ماجه/ المناسك ۷۳(۳۰٤۸)،( تحفة الأشراف: ۲۳۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۲۶۳)(حسن صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الحج ۱۰۰(۱٦۸٤)، ومناقب الأنصار ۲٦(۳۸۳۸)، سنن الترمذي/الحج ٦۰(۸۹٦)، سنن النسائي/الحج ۲۱۳(۳۰۵۰)، سنن ابن ماجه/المناسك ٦۱(۳۰۲۲)،( تحفة الأشراف: ۱۰٦۱٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱٤/۱، ۲۹، ۳۹، ٤۲، ۵۰، ۵۲)، سنن الدارمي/المناسك ۵۵(۱۹۳۲)(صحيح)

دراختونه وړاندې ددې ځائې نه روان شړل

قوله: قال قال عمر بن الخطاب رضی الله عنه كان اهل الجاهلية...الخ: د دې حديث مضمون او حواله مونږ سره د حجة الوداع والا په حديث کښې تيره شوې ده

د حضرت عمر رضي الله عنه دا اثر د صحيح مسلم نه سوا په ټولو صحاح سته کښې شته او په ابن ماجه کښې صرف د يو لفظ اضافه ده اشرق ثبير کيما نغير،، ثبير مزدلفه کښې يو غر دې د مکې مکرمې په غرونو کښې د ټولو نه لوې هم دا دې دا منصرف دې ليکن دلته په دې باندې تنوين نشته ځکه چې دا منادي مفرد معرفه ده په اصل کښې يا ثبير دې اشرق په معنی د ادخل فی وقت الشروق سره دې يعنی پکار ده چې په تا باندې جلدئ سره د نمر رڼړا پريوځي دې دپاره چې بيا مونږ د دې ځائې نه تيزئ سره روان شو او بعضو د کيماتغير مطلب دا ليکلې دې چې مونږ تيزئ او جلدئ سره د قربانئ په غوښه باندې لوټ مار اوکړو

## بَابُ التَّعْجِيلِ مِنْ جَمْعٍ

### باب د مزدلفه نه منی ته د زر واپس کيدلو بيان

ليلة المزدلفه(د يوم النحر شپه چې په دې کښې حاجی په مزدلفه کښې وی) دلته دوه خيزونه دی(۱) مبيتِ مزدلفه يعنی دا شپه په مزدلفه کښې تيرول(۲) وقوف مزدلفه يعنی د شپې تيرولو نه پس د صبح صادق په وخت کښې دلته لږ وخت دپاره وقوف کول د دې دواړو په حکم کښې اختلاف دې

### په مبيت مزدلفه او وقوف مزدلفه کښې د ائمه کرامو اختلاف

د جمهورو په نزد خو په دې کښې اولنې واجب دې[۱] او دويم يعنی وقوف سنت دې او د حنفيه په نزد د دې برعکس دې يعنی وقوف واجب دې او مبيت سنت دې او د ابن حزم په نزد وقوف مزدلفه رکن دې د دې په فوت کيدلو سره حج فوت کيږی بيا د جمهورو په نزد په دې کښې اختلاف دې چې د مبيت څومره مقدار واجب دې د امام شافعی و احمد په نزد الی مابعد نصف الليل وهذا لمن ادركه قبل النصف والا فالحضور ساعةً فی النصف الاخير كافٍ، (جزء الحج) او د امام مالک صاحب په نزد مقدار يسير بقدر حط الرحال( چې په څومره وخت کښې انسان د خپلې سورلئ نه خپل سامان کوزولې شی)

[۱۹۳۹](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ، أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَ عَبَّاسٍ، يَقُولُ: "أَنَا مِمَّنْ قَدَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ فِي ضَعَفَةِ أَهْلِهِ".

دابن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چه زه درسول الله ﷺ انا په اهل کښې په هغه ضعيف افرادو کښې شاملوم کومولره چه نبی عليه السلام دمزدلفې په شپه باندې مخکښې دوخت نه روان کړې وو.

---

[۱] اوبعضې مالکيه لکه ابن الماجشون او ابن العربی دهغوی په نزد په مزدلفه کښې شپه تيرول فرض دی.

[۲]: صحيح البخاري/الحج ۹۸(۱۶۷۸)، وجزاء الصيد ۲۵(۱۸۵۶)، صحيح مسلم/الحج ۴۹(۱۲۹۳)، سنن النسائي/الحج ۲۰۸(۳۰۳۲)،(تحفة الأشراف: ۵۸۶۴)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۵۸(۸۹۳، ۲۹۲)، سنن ابن ماجه/المناسك ۶۲(۳۰۲۵)، مسند احمد(۲۲۱/۱، ۲۲۲، ۲۴۵، ۲۷۲، ۳۳۴، ۳۴۶)(صحيح)

[۱۹۴۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، قَالَ: حَدَّثَنِي سَلَمَةُ بْنُ كُهَيْلٍ، عَنِ الْحَسَنِ الْعُرَنِيِّ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "قَدَّمَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْلَةَ الْمُزْدَلِفَةِ أُغَيْلِمَةَ بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ عَلَى حُمُرَاتٍ فَجَعَلَ يَلْطَحُ أَفْخَاذَنَا، وَيَقُولُ: أُبَيْنِيَّ لَا تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ". قَالَ أَبُو دَاوُد: اللَّطْحُ: الضَّرْبُ اللَّيِّنُ.

د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دي چه رسول الله ﷺ د مزدلفي په شپه مونږ دبني عبد المطلب وړو هلکانو - لره په خرو باندي سواره کړو اومخکښي ئي اوليږلو په دي موقع باندي هغه مونږ لره په ورون باندي په مزه کښي مزه وهلو اوفرمائيل ئي بچو دنمر دراختونه مخکښي جمرې لره په ګيټو باندي مه اولئ. ابوداود فرمائي دااللطح معنی ده په نرم اندازه کښي وهل

**تشریح: قوله**: عن ابن عباس قال...الخ: ([1])ابن عباس رضی الله عنهما فرمائي مونږ يعني د بنو عبد المطلب هلكانو لره د مزدلفه په شپه نبي كريم ﷺ د مزدلفه نه منى ته مخكښي روان كړي وو په دي باندي د ټولو اتفاق دي چي په ماشومانو او ښځو باندي هلته شپه تيرول واجب نۀ دي هغوی هم په شپه كښي د مزدلفه نه منى ته راتلي شي على حمرات فجعل يلطح افخاذناً نبي عليه السلام مونږ په خرو باندي كينولو او د روانولو په وخت كښي به نبي عليه السلام زمونږ پنډو باندي لاس راښكلو ويقول أبينى([2])لا ترموا الجمرة حتى تطلع الشمس د روانولو په وخت كښي نبي عليه السلام مونږ ته هدايت كولو زما بچوا چي منى ته اورسئ نو د طلع شمس نه مخكښي رمى جمره مۀ كوئ په اوله ورځ يعني په يوم النحر كښي صرق جمرة العقبه وي چي هغي ته جمرة الكبرى هم وئيلي شي او بيا د دي نه پس ايام تشريق كښي( د يوولسمي نه دیارلسمي پورې) د جمرات ثلثه رمى كيږي

## د رمی یوم النحر او رمی ایام التشریق وخت او د امامانو اختلاف

بيا ځان پوهول پكار دي چي د يوم النحر د رمى وخت جدا دي او د ايام تشريق د رمى وخت جدا دي رمى يوم النحر د امام شافعي واحمد رحمهما الله په نزد د نصف ليل نه پس كيدي شي يعني په ليلة المزدلفه كښي او د حنفيه او مالكيه په نزد د شپې تيريدلو نه پس د سحر د راختلو نه پس د دي وخت شروع كيږي د دي نه مخكښي جائز نۀ دى د ابراهيم نخغي او سفيان ثوري په نزد د طلوع شمس نه پس د دي وخت شروع كيږي او په دي باندي د ټولو اتفاق دي چي غوره د طلوع شمس نه پس ده ځكه چه نبي عليه السلام هم داسي كړي وو

او د ايام تشريق د رمى وخت بالاتفاق د زوال شمس نه پس وى البته يوم النفر الثاني يعنى ۱۳ ذى الحجه باندي اول خو په منى كښي پاتني كيدل د چا په نزد هم ضروري نۀ دى ليكن كۀ يو كس حصار شي نو بيا د جمهورو(الائمة الثلثه والصاحبان) په نزد د دي ورځي رمى هم د

[1]): سنن النسائي/الحج ۲۲۲(۳۰۶۶)، سنن ابن ماجه/ المناسك ۶۲(۳۰۲۵)،( تحفة الأشراف: ۵۳۹۶)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ۵۸(۸۹۳)، مسند احمد(۱/۲۳۴، ۳۱۱، ۳۴۳)(صحيح)

[2]) اغيلمة : تصغير دي د غلمة، او غلمة جمع ده د غلام.

[3]) ددي لفظ په تحقيق كښي اختلاف دي (۱) بتشديد الياء: دا تصغير دي د ابناء جمع د ابن،(۲) د ابن تصغير ابين دي چه ددي جمع ابيين دي بيا ددي اضافت شوي دي ياء د متكلم ته، نون دجمع ساقط شو ابيني شو.

زوال نه پس کولې شی د دې نه مخکښې نۀ لیکن صرف د امام ابوحنیفه په نزد د دې ورځ رمی د زوال نه مخکښې کولې شی جائز ده لیکن د کراهت سره

[١٩٤١]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ عُقْبَةَ، حَدَّثَنَا حَمْزَةُ الزَّيَّاتُ، عَنْ حَبِيبِ بْنِ أَبِي ثَابِتٍ، عَنْ عَطَاءٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَدِّمُ ضُعَفَاءَ أَهْلِهِ بِغَلَسٍ وَيَأْمُرُهُمْ يَعْنِي لَا يَرْمُونَ الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ".

د ابن عباس رضی الله عنه نه روایت دې چه نبی علیه السلام به دخپل اهل ضعیف افرادو لره په تیاره کښې وړاندې و لیږلو اوهغه ته به ئې حکم کولو چه دنمر دراختونه مخکښې جمرې لره په ګیټو باندې نه اولې.

[١٩٤٢]([2]) حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي فُدَيْكٍ، عَنِ الضَّحَّاكِ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "أَرْسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأُمِّ سَلَمَةَ لَيْلَةَ النَّحْرِ فَرَمَتِ الْجَمْرَةَ قَبْلَ الْفَجْرِ ثُمَّ مَضَتْ فَأَفَاضَتْ وَكَانَ ذَلِكَ الْيَوْمُ الْيَوْمَ الَّذِي يَكُونُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعْنِي عِنْدَهَا".

د عائشې رضی الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ ام سلمه رضی الله عنها لره دنحر والا په شپه دسحر نه مخکښې اولیږله پس هغې دصبانه مخکښې جمرې لره په ګیټو باندې : اویشتله بیاهغه لاړله اوطواف افاضه ئې اوکړو د او دا دهغې د نمبر ورځ وه چه نبی علیه السلام دهغې سره وو.

**تشریح: قوله**: ارسل النبی صلی الله علیه وسلم بام سلمة لیلة النحر فرمت الجمرة..الخ:

نبی علیه السلام حضرت ام سلمه رضی الله عنها په شپه کښې د مزدلفه نه منی ته لیږلې وه نو هغوی چې منی ته راغلل نو د سحر نه مخکښې ئې رمی اوکړه دا حدیث د امام شافعی و احمد موافق او مؤید دې په مذکوره پورته مسئله کښې

## د حنفیه له طرفه د حدیث توجیه

د حنفیه و مالکیه په نزد د دې توجیه دا کولې شی چې د قبل الفجر نه مراد قبل صلوة الفجر دې قبل طلوع الفجر نۀ دې یا دې داسې اووئیلې شی چې دا د هغوی خپل فعل دې د نبی علیه السلام د اجازت نه بغیر لکه پورته هم اوس تیر شوې دی چې نبی علیه السلام هغې هلکانو ته دا فرمائیلې وو ابینی لا ترموالجمرة حتی تطلع الشمس چه کوم هلکان ئې وړاندې لیږلې وو په جزء حجة الوداع کښې دی چې دا حدیث صرف په سنن ابوداؤد کښې دې ابوداؤد په دې سره متفرد دې ابن قیم دې لره وهم او منکر ګرځولې دې دغه شان امام طحاوی او بیهقی هم د دې حدیث نه انکار کړې دې والله تعالی اعلم فافاضت او طواف افاضه ئې اوکړو

**قوله**: وکان ذلک الیوم الذی یکون رسول الله صلی الله علیه وسلم تعنی عندها، دې سره راوی اشاره کوی د تعجیل علت طرفته چې دوی لره مخکښې لیږلو کښې دا مصلحت وو چې دا ورځ د هغوی د نمبر وه دې دپاره چې هغوی زر د رمی وغیره نه فارغ شی نو هغوی د طلوع شمس نه وړاندې منی ته لاړل اورمی ئې اوکړه او بیا ئې هم په ورځ کښې طواف افاضه اوکړو په خلاف

[1]: سنن النسائي/الحج ٢٢٢(٣٠٦٧)، (تحفة الأشراف: ٥٨٨٨)(صحيح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٦٩٦١)(ضعيف)

دباقي ازواج مطهرات چې هغوی طواف افاضه په راتلونکی شپه کښې اوکړو (بذل)

## يو اشکال او د هغې جواب

دلته يو سوال دې هغه دا چې دې حديث نه خو دا استفاده کيږی چې يوم النحر د ام سلمه رضي الله عنها د نمبر ورځ وه او په باب الافاضة فی الحج کښې يو حديث راروان دې چې په هغې کښې ام سلمه رضي الله عنها په خپله دا فرمائی کانت ليلتی التی يصير الی فيها رسول الله صلی الله عليه وسلم مساء يوم النحر چې د يوم النحر په ماښام باندې يعنی د دې نه پس راتلونکی شپه کښې زما د نمبر شپه وه نو چې هرکله د يوم النحر نه پس راتلونکی شپه کښې د هغوی باری وه نو د دې تقاضه خو دا ده چې د يوم النحر نه پس والا ورځ يعنی يوولسمه د هغوی د بارئ ورځ وی، اشکال ظاهر دې د دې جواب حضرت شيخ صاحب په لامع او جزء حجة الوداع کښې دا ورکړې دې او په درس بخاری کښې ئې دا هم فرمائيلې وو چې فقهاؤ تصريح کړې ده د دې خبرې چې اګرچه شپې د راتلونکی ورځو تابع وی ليکن د حج په زمانه کښې د دې برعکس وی يعنی شپې د ايام ماضيه تابع وی لهذا د يوم النحر نه پس چې کومه شپه راځی هغه به د يوم النحر شپه شمار وی نۀ چې د راتلونکی ورځې والله تعالی اعلم

[۱۹۴۳](۱) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَلَّادٍ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عَطَاءٌ، أَخْبَرَنِي مُخْبِرٌ، عَنْ أَسْمَاءَ، "أَنَّهَا رَمَتِ الْجَمْرَةَ، قُلْتُ: إِنَّا رَمَيْنَا الْجَمْرَةَ بِلَيْلٍ، قَالَتْ: إِنَّا كُنَّا نَصْنَعُ هَذَا عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

يوخبرورکونکی بيان کړې دې چه اسماء الله ماء دجمرې رې اوکړه نوماأووئيل مونږ خوپه شپه کښې ئې رمی کړې ده هغې جواب راکړو چه درسول الله ﷺ په زمانه کښې به مونږ داسې کول.

## د حديث شرح

قوله: اخبرنی مخبر عن اسماء انها رمت الجمرة قلت..الخ:

په اولنی حديث کښې چې کومه قصه ذکر وه هغه د ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضي الله عنها متعلق وه دا دويمه قصه د حضرت اسماء بنت ابی بکر رضي الله عنها متعلق ده چې په صحيحينو کښې ډيره په تفصيل سره ده هغه دا چې عبدالله چې د اسماء مولی دې هغه وائی چې کله حضرت اسماء په مزدلفه کښې وه نو د شپې څۀ وخت پورې ئې نفلونه کول بيا ئې تپوس اوکړو چې هل غاب القمر (سپوږمئ په نظر راځی يا نه) ما اووې اوسه پورې نۀ ده غائبه شوې، په نظر راځی هغوی بيا د نفلو نيت اوتړۀ د سلام نه پس ئې تپوس اوکړو هل غاب القمر ما اووې چې اوسه پورې نۀ، نو هغوی بيا د نفلو نيت اوتړۀ

د سلام اړولو نه پس ئې بيا تپوس اوکړو هل غاب القمر نو ما ورته اووې چې غائبه شوه وې فرمائيل چې ښۀ ده ددې مقام نه لاړشئ نو د هغه ځائې نه منی ته راغله هلته د رمی جمره نه

(۱): سنن النسائي/الحج ۲۱۴(۳۰۵۳)،(تحفة الأشراف: ۱۵۷۳۷)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ۹۸(۱۶۷۹)، صحيح مسلم/الحج ۴۹(۱۲۹۱)، موطا امام مالك/الحج ۵۶(۱۷۲)، مسند احمد(۶/۳۴۷، ۳۵۱)(صحيح)

چې فارغه شوه نو خپلې خیمې ته راغله او د سحر مونځ ئې ادا کړو.
فقلت لها یا هنتاه ما اراانا الا قد غلسنا ما ورته اووې داسې معلومیږی چې مونږ په رمی کښې جلدی اوکړه( په غلس کښې مو اوکړه) په دې باندې هغې اوفرمائیل چې هیڅ خبره نۀ ده حضور علیه السلام ښځو او ماشومانو ته د دې اجازت ورکړې دې(بخاری)

## د شافعیه د استدلال جواب

د دې حدیث نه شافعیه وحنابله(فی روایة) په دې باندې استدلال اوکړو چې د یوم النحر رمی د نصف لیل نه پس کولې شی د حنفیه مالکیه او احمد فی روایة په نزد داسې جائز نۀ دی د دې جواب دا دې د میاشتې لسم تاریخ باندې سپوږمۍ سحر راختلو ته نزدې غائبیږی شی نو چې هرکله د سحر د راختلو نه مخکښې مزدلفې ته روان شو نو ښکاره خبره ده چې سحر د راختلو نه پس به منی ته رسیدلې وی هغه وخت چې منی ته اورسیدل نو رمی ئې اوکړه نو دا رمی د سحر د راختلو نه پس شوه نۀ چې مخکښې د سحر د راختلو نه.او د دې تائید د لفظ غلسنا نه هم کیږی چې د لیل نه مراد( چې د ابوداؤد په روایت کښې دی) غلس دی نۀ چې حقیقةً شپه(افاده ابن القیم رحمه الله تعالی فی تهذیب السنن)

[١٩٤٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: "أَفَاضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلَيْهِ السَّكِينَةُ، وَأَمَرَهُمْ أَنْ يَرْمُوا بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ وَأَوْضَعَ فِي وَادِي مُحَسِّرٍ".

دجابر رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مزدلفې نه روان شو اودیر په سکون او ارام سره تلو اوخلقوته ئې حکم اوکړو چه ورې ورې ګیټۍ اولئ اودوادئ محسنه په تیزئ سره وتلې وو.

## بَاب يَوْمِ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ
### باب د حج اکبر ورځ کومه ده؟

[١٩٤٥]([2]) حَدَّثَنَا مُؤَمَّلُ بْنُ الْفَضْلِ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ يَعْنِي ابْنَ الْغَازِ، حَدَّثَنَا نَافِعٌ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ يَوْمَ النَّحْرِ بَيْنَ الْجَمَرَاتِ فِي الْحَجَّةِ الَّتِي حَجَّ، فَقَالَ: "أَيُّ يَوْمٍ هَذَا؟"، قَالُوا: يَوْمُ النَّحْرِ، قَالَ: "هَذَا يَوْمُ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ".

دعبدالله بن عمرو رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپل حج کښې دقربانئ په ورځ باندې د جمراتو په - ورځ اودریدو اوتپوس ئې اوکړوداکومه ورځ ده و خلقو اووئیل دادقربانئ ورځ ده نبی علیه السلام ته اوفرمائیل داد حج اکبر ورځ ده

قوله: فقال ای یوم هذا قالوا یوم النحر قال هذا یوم الحج الاکبر ..الخ: د بنده په خیال کښې دلته دوه څیزونه جدا جدا دی الحج الاکبر دویم یوم الحج الاکبر[3] اګرچه شارحینو ددې تصریح او وضاحت نۀ دې کړې بلکه دواړه ئې ګډوډ کړې دی په یوم الحج الاکبر کښې درې اقوال

---

[1]: سنن النسائي/ الحج ٢٠٤(٣٠٢٤)، سنن ابن ماجه/ المناسك ٦١(٣٠٢٣)،( تحفة الأشراف: ٢٧٤٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/ ٣٠١، ٣٣٢، ٣٦٧، ٣٩١)، سنن الدارمي/المناسك ٥٩(١٩٤٠)(صحيح)
[2]: صحيح البخاري/ الحج ١٣٢(١٧٤٢ تعليقاً)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٦(٣٠٥٨)،( تحفة الأشراف: ٨٥١٤)(صحيح)
[3]: ددې تائید دباب دویم حدیث نه کیږی په هغې کښې دادی: یوم الحج الاکبر یوم النحر والحج الاکبر الحج.

دی یوم النحر، یوم عرفه او یوم حج ابی بکر یعنی ابوبکر صدیق رضی الله عنه چې په کومه ورځ باندې حج اوکړو په نهمه(٩) هـ کښې ځکه چې په دې ورځ مسلمانانو، مشرکانو او اهل کتاب یهودیانو او نصاری ټولو حج کړې وو د دې نه پس بیا چرته ټول طوائف او اهل ملل یعنی د ټولو ملتونو والا نۀ دی جمع شوې بلکه د مشرکینو د حج د بندش اعلان کړې شوې وو الا لا یحجن بعدالعام مشرک.

او په الحج الاکبر کښې هم درې اقوال دی قیل هو القران والحج الاصغر الافراد وقیل الحج الاکبر هو الحج والحج الاصغر هو العمرة وقیل الحج الاکبر هو وقفة الجمعه یعنی چې په کوم حج کښې وقوف عرفه د جمعة المبارک ورځ وی چې د دې فضیلت زیات دې په دې وجه ملاعلی قاری رحمه الله په دې باندې مستقل یو تصنیف کړې دې الحظ الاوفر فی الحج الاکبر[١] چې د هغې ذکر هغوی په شرح لُباب کښې کړې دې

[١٩٤٦](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، أَنَّ الْحَكَمَ بْنَ نَافِعٍ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا شُعَيْبٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، حَدَّثَنِي حُمَيْدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ، قَالَ: "بَعَثَنِي أَبُو بَكْرٍ فِيمَنْ يُؤَذِّنُ يَوْمَ النَّحْرِ بِمِنًى أَنْ لَا يَحُجَّ بَعْدَ الْعَامِ مُشْرِكٌ، وَلَا يَطُوفَ بِالْبَيْتِ عُرْيَانٌ، وَيَوْمُ الْحَجِّ الْأَكْبَرِ يَوْمُ النَّحْرِ وَالْحَجُّ الْأَكْبَرُ الْحَجُّ".

دابوهریره نه روایت دې چه ابوبکرصدیق زه تې د هغه خلکو سره اولیږلم کوموچه دقربانۍ په ورځ باندې په منی کښې دا اعلان کړې وو چه ددې کال نه پس دې هیڅ مشرک دحج دپاره نه راځی اوهیڅ یوکس دې په بربنډه د بیت الله طواف نه کوی اودقربانۍ ورځ دحج اکبر ورځ ده اودحج اکبرنه مراد حج دې.

## بَابُ الْأَشْهُرِ الْحُرُمِ

### د حرمت والا د میاشتو بیان

[١٩٤٧](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ، عَنْ مُحَمَّدٍ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ فِي حَجَّتِهِ، فَقَالَ: "إِنَّ الزَّمَانَ قَدِ اسْتَدَارَ كَهَيْئَتِهِ يَوْمَ خَلَقَ اللَّهُ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضَ، السَّنَةُ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا، مِنْهَا أَرْبَعَةٌ حُرُمٌ: ثَلَاثٌ مُتَوَالِيَاتٌ: ذُو الْقَعْدَةِ وَذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ وَرَجَبُ مُضَرَ الَّذِي بَيْنَ جُمَادَى وَشَعْبَانَ".

دابوبکره رضی الله عنه نه روایت دې چه رسول الله ﷺ په خپل حج کښې خطبه فرمائیله نوارشاد ئې اوفرمائیلو ئې شکه زمانه په خپل دې کیفیت باندې راګرځیدلې ده(په کوم کیفیت باندې چه په اوله ورځ کښې وه) اوالله تعالی اسمانونه او زمکې لره پیداکړې وو په کال کښې

---

[١] اود شرح الباب په حاشیه ،ارشاد الساری الی مناسک ملا علی قاری،، کښې او پوره رساله ئې نقل کړې ده. بیا حضرت شیخ نورالله مرقده په خپل آخری ژوند کښې دا مستقل جدا چاپ کړې وه.

[٢]: صحيح البخاري/الصلاة ١٠(٣٦٩)، والحج ٦٧(١٦٢٢)، صحيح البخاري/الجزية ١٦(٣١٧٧)، والمغازي ٦٦(٤٣٦٣)، وتفسير البرائة ٢(٤٦٥٦)، ٣(٤٦٥٥)، وتفسير البرائة ٤(٤٦٥٧)، صحيح مسلم/الحج ٧٨(١٣٤٧)، سنن النسائي/الحج ١٦١(٢٩٦٠)، مسند احمد(٢٩٩/٢)،( تحفة الأشراف: ٦٦٢٤)(صحيح)

[٣]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١١٧٠٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ١٣٢(١٧٤٢)، وبدء الخلق ٢(٣١٩٧)، والمغازي ٧٧(٤٤٠٣)، وتفسير سورة التوبة ٨(٤٦٦٢)، والأضاحي ٥(٥٥٥٠)، والتوحيد ٢٤(٧٤٤٧)، صحيح مسلم/القسامة ١٠(١٦٧٩)، سنن النسائي/الكبري/المحاربه/(٣٥٩٥)، مسند احمد(٣٧/٥)، سنن الدارمي/المناسك ٧٢(١٩٥٧)(صحيح)

دولس میاشتی دی او په دې کښې څلور میاشتې دحرمت والادی درې میاشتې متواتر دی، یعنی ذوالقعده ذوالحجه او محرم او(څلورمه میاشت) مضر رجب دې کومه چه دجمادینو او د شعبان په مینځ کښې وي.

اشهر حرم څلور میاشتې دی رجب، ذی قعده، ذی الحجه او محرم اهل جاهلیت به د دې میاشتو تعظیم کوو په دې کښې به ئې قتل و قتال ناجائز او حرام ګڼړلو د اسلام په ابتداء کښې هم د دې رعایت کولې شو پس په دې وجه د جهاد د مشروعیت په ابتدا کښې په دې میاشتو کښې جهاد او قتال ممنوع وو

لیکن مشرکینو به په دې کښې ګړ بړ کوو چې ورته نسئ وئیلې شی یعنی تقدیم و تاخیر قال الله تعالی انما النسئ زیادة فی الکفر وفی الحدیث یجعلون المحرم صفراً چې کله به ئې په محرم کښې د قتال اراده کوله نو دې دپاره به ئې دا حیله کوله داسې به ئې وئیل چې دې کال کښې د صفر میاشت د محرم نه وړاندې راغله لیکلې دی چې دوی به هرکال دغه شان کول تردې چې د محرم میاشت به د کال په ټولو میاشتو کښې ګرځیدله او په دې ګرځیدلو ګرځیدلو کښې به خپل وخت ته هم راغله په دې وجه به حج هم کله کله په خپل وخت کښې اوشو او کله به په غیروخت کښې اوشو لیکن په کوم کال کښې چې نبی ﷺ حج اوکړو نو هغه کال د میاشتو حساب صحیح وو او حج په خپل وخت کښې شوې وو([1]) دې ته دوی فرمائی ان الزمان قد استدار کهیئته چې زمانه په ګرځیدلو سره خپل اصلی حالت ته راغلې ده ورجب مضر د رجب نسبت قبیله مضر طرفته ځکه کولې شی چې هغوی به د نورو قبیلو په نسبت د دې تعظیم زیات کوو الذی بین جُمادی وشعبان دا قید ځکه زیات کړې شوې دې دپاره چې معلومه شی چې د رجب نه اصلی رجب مراد دې او نسی والا رجب مراد نۀ دې چې د خپل صحیح وخت نه لرې شوې وی

[۱۹۴۸]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَيَّاضٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ، حَدَّثَنَا أَيُّوبُ السَّخْتِيَانِيُّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ سِيرِينَ، عَنِ ابْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمَّاهُ ابْنُ عَوْنٍ، فَقَالَ: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ، عَنْ أَبِي بَكْرَةَ، فِي هَذَا الْحَدِيثِ.

محمدبن سیرین د ابن ابی بکر رضی الله عنه نه هغه دخپل پلار) ابوبکر رضی الله عنه نه هغه دنبی کریم ﷺ و نه دمذکور بالاحدیث په شان روایت نقل کوي

## بَابُ مَنْ لَمْ يُدْرِكْ عَرَفَةَ

### باب چاته چه د عرفات وقوف ملاؤ نه شی دهغه د حکم بیان

وقوف عرفه بالاتفاق د حج رکن دې بلکه د حج په ارکانو کښې لوې رکن دې لیکن د دې د وخت ابتداء او انتهاء او د وقوف د مقدار مسئله کښې د امامانو په مینځ کښې اختلاف دې چې د هغې تفصیل په باب الوقوف بعرفه کښې تیر شوې دې

[1]) ددې نه معلومیږی چه ددې نه مخکښې په ۹ هـ کښې حج د ابوبکر په غیر وقت کښې شوې و، په دې باندې څه قدرې کلام زمونږ د کتاب الحج په ابتدائی بحثونو کښې شوې دې

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱٦۸٦)(صحیح)

[١٩٤٩](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنِي بُكَيْرُ بْنُ عَطَاءٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَعْمَرَ الدِّيلِيِّ، قَالَ: "أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ بِعَرَفَةَ، فَجَاءَ نَاسٌ أَوْ نَفَرٌ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ، فَأَمَرُوا رَجُلًا فَنَادَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، كَيْفَ الْحَجُّ؟ فَأَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا فَنَادَى: الْحَجُّ، الْحَجُّ يَوْمُ عَرَفَةَ، مَنْ جَاءَ قَبْلَ صَلَاةِ الصُّبْحِ مِنْ لَيْلَةِ جَمْعٍ فَتَمَّ حَجُّهُ أَيَّامُ مِنًى ثَلَاثَةٌ، فَمَنْ تَعَجَّلَ فِي يَوْمَيْنِ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ، وَمَنْ تَأَخَّرَ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ، قَالَ: ثُمَّ أَرْدَفَ رَجُلًا خَلْفَهُ فَجَعَلَ يُنَادِي بِذَلِكَ". قَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ مِهْرَانُ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: "الْحَجَّ الْحَجَّ مَرَّتَيْنِ"، وَرَوَاهُ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ، عَنْ سُفْيَانَ، قَالَ: "الْحَجَّ مَرَّةً".

دعبدالرحمن بن يعمر الديلى ﷛ نه روايت دي چه زه ايا د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوهغه په ميدان عرفات کښې وو په دې دوران کښې دنجد و دطرف نه څه خلق راغلل اوهغه يوکس ته اووئيل اوهغه اواز اوکړو اووئي وئيل اې دالله رسوله حج څنګه دې؟ نو رسول الله ﷺ هم يوکس ته حکم اوکړو اوهغه اواز اوکړو اووئيل ئې حج د عرفات ورځ ده کوم کس چه دمزدلفې په شپه دسحردمانځه نه مخکښې مخکښې دلته راغې نودهغه حج پوره شو، ثم دمنى درې ورځې دى کوم کس چه دوه ورځې پس په تيزئ سره واپس شي نوپه هغه باندې هيڅ ګناه بيان نشته دې او څوك چه تاخير اوکړى نوپه هغه باندې هم څه ګناه نشته دې بياهغه خپل ځان پسې ورستو يو کس لره سور کړو کوم چه ددې خبرې اواز کولو، ابوداود فرمائي چه مهران دسفيان نه داسې روايت کړې دې الحج الحج يعنى دوه ځله اويحيى بن سعيد القطان دسفيان نه دا لفظ يوځل بيان کړې دې.

من جاء قبل صلوة الصبح من ليلة جمع فتم حجه چې کوم کس د مزدلفه په شپه کښې(٢) د سحر د مانځۀ نه مخکښې د دې نه مراد د سحر د راختلو نه مخکښې دې (ځکه چې هلته د سحر مونځ بالکل غلس اول وخت کښې وى) چې ميدان عرفات ته اورسيدۀ نو داسې اوګڼړه چې ګويا حج ئې بيا مونده ايام منى ثلثة درې ورځې يعنى د يوولسمې ذى الحجه نه ديارلسمې ذى الحجه پورې ورځو ته ايام منى وئيلې شي يوم النحر يعنى لسمه ذى الحجه په دې کښې داخل نۀ ده او ايام النحر هم د جمهورو په نزد درې دى د لسمې ذى الحجه نه دولسمې ذى الحجه پورې او د شافعيه په نزد ايام نحر څلور ورځې دى ديارلسم تاريخ هم په دې کښې شامل دې

[١٩٥٠](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا عَامِرٌ، أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ مُضَرِّسٍ الطَّائِيُّ، قَالَ: أَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَوْقِفِ، يَعْنِي بِجَمْعٍ، قُلْتُ: جِئْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مِنْ جَبَلِ طَيِّئٍ أَكْلَلْتُ مَطِيَّتِي وَأَتْعَبْتُ نَفْسِي وَاللَّهِ مَا تَرَكْتُ مِنْ حَبْلٍ إِلَّا وَقَفْتُ عَلَيْهِ، فَهَلْ لِي مِنْ حَجٍّ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

---

[١]: سنن الترمذي/الحج ٥٧(٨٨٩)، سنن النسائي/الحج ٢٠٣(٣٠١٩)، ٢١١(٣٠٤٧)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٧(٣٠١٥)،(تحفة الأشراف: ٩٧٣٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٠٩/٤، ٣١٠، ٣٣٥)، سنن الدارمي/المناسك ٥٤(١٩٢٩)(صحيح)

[٢]) ددې نه په ظاهره دامام مالک د مسلک تائيد کيږى چه دهغه په نزد باندې د فرض وقوف اداکول په ليلة المزدلفه کښې وقوف سره کيږى اوپه ورځ کښې وقوف دهغوى په نزد په واجباتو کښې دى فرض نه دى، کما تقدم في باب الوقوف. والله تعالى أعلم.

[٣]): سنن الترمذي/الحج ٥٧(٨٩١)، سنن النسائي/الحج ٢١١(٣٠٤٢، ٣٠٤٣، ٣٠٤٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٧(٣٠١٦)،(تحفة الأشراف: ٩٩٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٥/٤، ٢٦١، ٢٦٢)، سنن الدارمي/المناسك ٥٤(١٩٣٠) (صحيح)

وَسَلَّمَ: "مَنْ أَدْرَكَ مَعَنَا هَذِهِ الصَّلَاةَ وَأَتَى عَرَفَاتَ قَبْلَ ذَلِكَ لَيْلًا أَوْ نَهَارًا فَقَدْ تَمَّ حَجُّهُ وَقَضَى تَفَثَهُ".

د عروه بن مضرس الطائی نه روايت دې فرمائی چه زه د مزدلفې په ورځ باندې دوقوف په وخت د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم اوعرض مې اوکړو اې دالله رسوله زه دقبيله دوو غرونونه راغلې يم ماخپه سورلئ کلاله کړې ده اوخپل ځان مې ډير ستړې کړې دې قسم په الله ماهيڅ غونډئ نه ده د پريخودلې مګر په هغې باندې مې وقوف کړې دې نو آيا زما حج اوشو؟ رسول الله ﷺ اوفرمائيل چاچه زمونږ سره دامونځ اومندلو اوددې نه خپل مَيل کچيل(خِيرې) لرې کړو(هغه مناسك حج ئې پوره کړو اوس دمابعد نور اعمال حج دې اوکړې اواحرام دې کولاؤ کړې.

## د حديث مبارك تشريح:

**تشريح: قوله:** اخبرنی عروة بن مضرسٍ الطائی...الخ:

د حجة الوداع والا په کال چې کله نبی کريم ﷺ د حج دپاره مکې مکرمې ته تشريف اوړلې وو نو عروة بن مضرس نومې صحابی ته د دې پته اولګيده نو فوراً د خپل وطن نه د حج دپاره روان شو دې دپاره چې حضور ﷺ سره يوځايئ حج اوکړې ليکن دوی ته دا معلومه نۀ وه چې وقوف حج کوم ځائې او په کوم ميدان کښې وی په دې وجه دوی په لاره کښې په هره شګلنه(ريت والا) علاقه کښې ايساريدل په دې خيال سره چې شايد دې مقام کښې به وقوف کيږی او خپله سورلی به ئې ډيره تيزله چلوله حضور اقدس ﷺ ته ئې مزدلفه ته ځان اورسوو رسيدلو سره ئې د نبی ﷺ نه تپوس اوکړو يا رسول الله! ما خپل ځان او خپله سورلی په منډو باندې ستړې کړه او په هر ميدان کښې حصاريدم دې وخت کښې تاسو ته راؤرسيدم يا رسول الله دا اووايئ چې زما حج اوشو که نه؟ په دې باندې نبی ﷺ(روحی فداه) ارشاد اوفرمائيلو من ادرک معنا هذه الصلوة په دې جمله کښې وقوف مزدلفه ذکر دې چې کوم سرې مونږ سره دا مونځ صلوة الفجر اوموندلو واتی عرفاتٍ قبل ذلک په دې جمله کښې وقوف عرفه ذکر دې دا دويم خو بالاتفاق فرض او رکن دې او په وقوف مزدلفه[1] کښې اختلاف دې د ائمه ثلثه په نزد دا وقوف سنت دې د حنفيه په نزد واجب دې د ابن الماجشون،مالکی و ابن العربی مالکی په نزد فرض دې او د ظاهريه په نزد رکن دې(جزء الحج) د شعبی،نخعی،ابن خزيمه،ابن جرير الطبری په نزد هم رکن دې د دې نه بغير حج نۀ کيږی(عون)

**قوله:** ليلاً ونهاراً: [2] د نهار د عموم نه امام احمد استدلال کړې دې چې خواه هغه وقوف قبل الزوال وی نو په دې وجه د هغوی په نزد د وقوف عرفه ابتداد يوم عرفه د صبح صادق نه کيږی او د امام ثلثه په نزد د زوال نه کما تقدم يعنی مخکښې چې څنګه تير شو څکه چې حضور ﷺ او د هغوی نه پس خلفاء راشدينو ټولو هميشه وقوف د زوال نه پس شروع کړې

---

[1] د سحر راختلو نه پس لږ وخت په مزدلفه کښې ايساريدل.

[2] د دې نه د وقوف عرفه تحقق معلوم شو، دا د وقوف ليلا او وقوف نهارا هر يو نه کيدې شی لکه چه د ائمه ثلاثه مسلک دې په خلاف د مالکيانو چه د هغوی په نزد د فرض وقوف تحقق په وقوف ليلا سره وی. کما سبق في محله. ١٢

دې نۀ چې د دې نه مخکښې
فقد تم حجه وقضى تفثه: (١) د پوره حديث مطلب دا شو چې کوم کس وقوف عرفه او وقوف مزدلفه دواړه اوکړل نو د هغۀ حج پوره شو او ازالۀ تفث(خيرې(ميل کچيل) لرې کول د غسل وغيره په ذريعه سره) د هغۀ دپاره جائز شو( د دې جملې تشريح مونږ په حاشيه کښې کړې ده) قال المنذری والحديث اخرجه الترمذی والنسائي وابن ماجه وقال الترمذی حديث حسن صحيح اهـ

## بَابُ النُّزُولِ بِمِنًى

### باب: په منى کښې د پړاؤ کولو بيان

[١٩٥١](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ حُمَيْدٍ الأَعْرَجِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: خَطَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّاسَ بِمِنًى وَنَزَّلَهُمْ مَنَازِلَهُمْ، فَقَالَ: "لِيَنْزِلِ الْمُهَاجِرُونَ هَا هُنَا، وَأَشَارَ إِلَى مَيْمَنَةِ الْقِبْلَةِ، وَالأَنْصَارُ هَا هُنَا، وَأَشَارَ إِلَى مَيْسَرَةِ الْقِبْلَةِ، ثُمَّ لِيَنْزِلِ النَّاسُ حَوْلَهُمْ".

عبدالرحمن بن معاذ د يوصحابى رضي الله عنه نه روايت کوى هغه وائي چه نبى کريم ﷺ خلقوته په منى کښې خطبه اووئيله اوخلقو ته ئې په خپلو ځپلو مقاماتو باندې دنازليد و ارشاد اوفرمائيلو نبى ﷺ اوفرمائيل مهاجرين دى دلته کښې پړاو ا اوکړى اوخى طرف ته ئې اشاره اوفرمائيله اوانصار، دى دلته کښې پړاو اوکړى اودقبلې ګس طرف ته اشاره اوفرمائيله اونور خلق دى ددوى نه ګير چاپيره نازل شي.

**تشريح: قوله**: ونزلهم منازلهم په منى کښې چونکه د حاجيانو قيام مسلسل درېو ورځو پورې وى په خلاف د عرفه او مزدلفه په دې وجه پيغمبر ﷺ تول خلق د هغوى په مناسب منزلونو کښې کوز کړل يعنى مختلف ډلو کښې ئې هر يو چې کوم ځائې مناسب اوګڼړل نو د هغوى د ځائې تعين ئې اوکړو دا اجمال دې وړاندې د دې تفصيل دې هغه دا چې مهاجرينو ته ئې اوفرمائيل چې هغوى د قبلې ښى طرفته اودرېږى او انصارو ته ئې اوفرمائيل چې هغوى د قبلې ګس طرفته حصار شى وړاندې باب کښې راځى چې نبى ﷺ مهاجرينو لره مقدم مسجد يعنى مسجد ثقيف ته مخامخ طرف کښې کوز کړل او انصار ئې د مسجد نه شاته لهذا حديث الباب کښې هم د ميمنة القبل نه د مقدم مسجد ښې طرف او د ميسرة القبله نه به مراد د مسجد مؤخر ګس طرف مراد وى(بذل)

**قوله**: ثم لينزل الناس حولهم د مهاجرينو او انصارو دپاره د ځائې د متعين کولو نه پس نورو خلقو ته نبى ﷺ اوفرمائيل چې هغوى د دوى نه ګيرچاپيره قيام اوکړى يعنى د باقى خلقو دپاره ئې څۀ تخصيص اونۀ فرمائيلو والله اعلم

---

(١) والتفث في الاصل بمعني الوسخ والمحرم ما دام محرما ممنوع عن ازالة التفث، فمعني الكلام كما في حاشية السندي علي النسائي انه قضي مدة ابقاء التفث فقد جاز له ازالة التفث. والله تعالي اعلم. يعني د بدن د خيرو د لرې کولو چه کومه موده وه هغه ئې پوره کړو، اوس د هغې دپاره ازاله تفث جائز شوه يعنى د احرام نه بهر راتلل جائز شو د تکميل حج د وجې نه.

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٢٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦١/٤)(صحيح)

## باب أي يوم يخطب بمنى

### باب: په منى کښې به خطبه په کومه ورځ وائي؟

[١٩٥٢]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ نَافِعٍ، عَنْ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ رَجُلَيْنِ مِنْ بَنِي بَكْرٍ، قَالَا: "رَأَيْنَا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ بَيْنَ أَوْسَطِ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ وَنَحْنُ عِنْدَ رَاحِلَتِهِ وَهِيَ خُطْبَةُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي خَطَبَ بِمِنًى".

ابن ابی نجیح دخپل پلار نه هغه دبنوبکر ددوو و کسانونه روایت کوی هغه بیان کوی چه مونږ نبی علیه السلام لره دایام تشریق په درمیانی ورځ کښې و اولیدو اوهغه خطبه فرمائیله مونږ دهغه دسورلی سره نزدې وو اودا د رسول الله ﷺ هغه خطبه وه کومه چه هغه په منی کښې ارشاد فرمائیلې وه.

یخطب بین اوسط ایام التشریق یعنی دولسمه ذی الحجه د حج خطبې څومره دی او په کوم کوم تاریخ باندې دی په دې کښې د علماء کرامو اختلاف تیر شوې دې په دولسمه ذی الحجه باندې خطبه د امام شافعی و احمد په نزد شته د مالکیه په نزد نشته د دې جواب دا دې چې دا خطبه لغوی وه([2]) یعنی سوال و جواب خطبه عرفی نه وه

[١٩٥٣]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، حَدَّثَنَا رَبِيعَةُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حُصَيْنٍ، حَدَّثَتْنِي جَدَّتِي سَرَّاءُ بِنْتُ نَبْهَانَ وَكَانَتْ رَبَّةَ بَيْتٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ، قَالَتْ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الرُّءُوسِ، فَقَالَ: "أَيُّ يَوْمٍ هَذَا؟" قُلْنَا: اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ، قَالَ: "أَلَيْسَ أَوْسَطَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ؟". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ قَالَ عَمُّ أَبِي حُرَّةَ الرَّقَاشِيِّ: "إِنَّهُ خَطَبَ أَوْسَطَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ".

ربیعه بن عبدالرحمن بن حصین دخپلې نیاسراء بنت نبهان نه روایت کوی دابښځه مخکښې داسلام نه دیوکور نګرانه وه هغه بیان کوی چه رسول الله ﷺ دروؤس په ورځ مونږ ته خطبه راکړه هغه اوفرمائیل داکومه ورځ ده مونږ اووئیل الله اودهغه رسول ښه پوهیږی نبی علیه السلام اوفرمائیل ایادا دایام تشریق درمیانی ورځ نه ده؟ ابوداود وائی چه دابوحره رقاشی، تره هم داسې روایت کړې دې چه هغه دایام تشریق په درمیانی ورځ خطبه او فرمائیله

**تشریح: قوله:** حدثتنی سراء بنت نبها ن....الخ

## د حدیث مبارک تشریح

سراء بنت نبهان صحابیه ده د بیت نه مراد بیت الصنم دې یعنی په زمانه جاهلیت کښې دا د مندر والا وه یعنی د دوی په کور کښې بت کیخودلې شوې وو دا فرمائی چې نبی علیه السلام په یوم الرؤس کښې خطبه اولوستله یوم الرؤس([4]) یوولسمې ذی الحجه ته وئیلې شی دا حدیث

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٥٦٨٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٥/٣٧٠) (صحیح)

[2]: لأنها خوطب بها بعض الناس.

[3]: تفرد به أبو دواد، (تحفة الأشراف: ١٥٨٩١) (ضعيف)

[4]: د سر او خپو (پانچو) ورځ، عام طور په روميې ورځ خلق د قربانئ غوښه خوری بیا د شپې سر خپې (پانچې) پخولې شی چه دا بیا په راروانه ورځ (په ١١ ذی الحجه) خوری، غالبا په دې وجه دې ورځ ته یوم الرؤس وئیلې شی

مبارک د حنفیه د مسلک مطابق دي هم دا خبره د سنن ابی داؤد په نسخه مطبوعات مجتبائیه په حاشیه کښې لیکلې ده دا حاشیه د حضرت شیخ الهند طرفته منسوب ده په جزء حجة الوداع کښې هم حضرت شیخ صاحب هم دا لیکلي دی لیکن په بذل المجهود کښې د دې مصداق دولسمه ذی الحجه ښودلې ده دا خبره قابل اشکال ده البته د اوسط ایام تشریق نه مراد دولسمه ذی الحجه ده لکه څنګه چې د دې نه وړاندې حدیث کښې ذکر شوې دی

## بَابُ مَنْ قَالَ خَطَبَ يَوْمَ النَّحْرِ

**باب: نبی اکرم صلی الله علیه وسلم په یوم النحر خطبه ورکړه ددې د قائلینو د دلیل بیان**

[١٩٥٤][1] حَدَّثَنَا هَارُونُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ عَبْدِ الْمَلِكِ، حَدَّثَنَا عِكْرِمَةُ، حَدَّثَنِي الْهِرْمَاسُ بْنُ زِيَادٍ الْبَاهِلِيُّ، قَالَ: "رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ عَلَى نَاقَتِهِ الْعَضْبَاءِ يَوْمَ الْأَضْحَى بِمِنًى".

هرماس بن زیاد باهلی رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه د ما رسول الله صلی الله علیه وسلم لره اولیدو چه هغه په منی کښې - دقربانۍ په ورځ په خپله غضباء اوښه باندې خطبه ورکوله.

[١٩٥٥][2] حَدَّثَنَا مُؤَمَّلٌ يَعْنِي ابْنَ الْفَضْلِ الْحَرَّانِيَّ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ، حَدَّثَنَا ابْنُ جَابِرٍ، حَدَّثَنَا سُلَيْمُ بْنُ عَامِرٍ الْكَلَاعِيُّ، سَمِعْتُ أَبَا أُمَامَةَ، يَقُولُ: "سَمِعْتُ خُطْبَةَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى يَوْمَ النَّحْرِ".

د ابوامامه رضی الله عنه نه روایت دي چه ما په منی کښې : دقربانۍ په ورځ درسول الله صلی الله علیه وسلم خطبه واوریدله.

## بَابُ أَيِّ وَقْتٍ يَخْطُبُ يَوْمَ النَّحْرِ

**باب: دقربانۍ په ورځ د خطبې ورکولو وخت**

[١٩٥٦][3] حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَهَّابِ بْنُ عَبْدِ الرَّحِيمِ الدِّمَشْقِيُّ، حَدَّثَنَا مَرْوَانُ، عَنْ هِلَالِ بْنِ عَامِرٍ الْمُزَنِيِّ، حَدَّثَنِي رَافِعُ بْنُ عَمْرٍو الْمُزَنِيُّ، قَالَ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ النَّاسَ بِمِنًى حِينَ ارْتَفَعَ الضُّحَى عَلَى بَغْلَةٍ شَهْبَاءَ، وَعَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُعَبِّرُ عَنْهُ وَالنَّاسُ بَيْنَ قَاعِدٍ وَقَائِمٍ".

درافع بن عمرونه نه روایت دي چه مارسول الله صلی الله علیه وسلم اولیدو چه هغه په منی کښې په خپلې سپین قچر باندې ناست وو او خلقو ته ئې خطبه ورکوله اوصبا ښه واضح شوې وو او علیه به دهغه خبره مخکښې رسوله، خلق څه ناست وو اوڅه ولاړ وو.

رایت رسول الله صلی الله علیه وسلم یخطب الناس بمنی علی بغلة شهباء شهباء هغه اوښه چې د هغې سپین والې په سیاهۍ یعنی توروالی باندې غالب وی د دې نه وړاندې حدیث شریف کښې وو علی ناقة العضباء فی نفسه نو د هغې توجیه دا کیدې شی چې په مخکښینی حدیث کښې د یوم الاضحی یعنی د یوم النحر تصریح وه دلته په روایت کښې د ورځ تصریح نشته نو کیدې شی چې دا د بلې ورځې واقعه وی لیکن دا توجیه د ترجمة المصنف خلاف ده

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٧٢٦)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤٠٩٥)، مسند احمد(٤٨٥/٣)(حسن)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٤٨٦٧)(صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٥٩٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/الحج(٤٠٩٤)(صحيح)

هغوی دا هم په يوم النحر باندې محمول کړې ده لهذا اوس د دې توجيه دا کيدې شی چې ممکن ده چې په دې ورځ باندې نبی ﷺ دوه ځله خطبه ورکړې وی يو ځل په عضباء باندې او يو ځل په په بغله شهباء باندې(منهل)

## بَابُ مَا يَذْكُرُ الإِمَامُ فِي خُطْبَتِهِ بِمِنًى

### باب: د منی په خطبه کښې به امام څه بيان کوی؟

[١٩٥٧] (١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ حُمَيْدٍ الْأَعْرَجِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ مُعَاذٍ التَّيْمِيِّ، قَالَ: "خَطَبَنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ بِمِنًى فَفُتِحَتْ أَسْمَاعُنَا حَتَّى كُنَّا نَسْمَعُ مَا يَقُولُ وَنَحْنُ فِي مَنَازِلِنَا، فَطَفِقَ يُعَلِّمُهُمْ مَنَاسِكَهُمْ حَتَّى بَلَغَ الْجِمَارَ فَوَضَعَ أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَتَيْنِ، ثُمَّ قَالَ: بِحَصَى الْخَذْفِ، ثُمَّ أَمَرَ الْمُهَاجِرِينَ فَنَزَلُوا فِي مُقَدَّمِ الْمَسْجِدِ، وَأَمَرَ الْأَنْصَارَ فَنَزَلُوا مِنْ وَرَاءِ الْمَسْجِدِ، ثُمَّ نَزَلَ النَّاسُ بَعْدَ ذَلِكَ".

عبدالرحمن بن معاذ تيمينه نه روايت دې چه نبی ﷺ مونږ ته خطبه اوفرمائيله په داسې حال الله کښې چه مونږ په منی کښې وو اوهغه زمونږ غوږونه کولاو کړل مونږ په خپل خپل پړاو باندې وو اوهغه. هرڅه مو اوريدل کوم چه نبی ﷺ فرمائيل هغه مونږ ته داعمال حج تعليم راکولو تردې پورې چه جمراتو پورې اورسيد و نوهغه خپله دشهادت والا وين ګوته کيخودله اووئې فرمائيل وړې وړې ګيټۍ اولۀ من هغه مهاجرينوته حکم اوفرمائيلونوهغه دمسجد مخ ته نازل شول اوانصاروته ئې حکم اوکړو نوهغه دجومات شاته نازل شو بيانور خلق ددوی نه پس نازل شول.

**تشريح**: **قوله**: ففتحت اسماعُنا حتى كنا نسمع ما يقول زمونږ غوږونه کهلاؤ شو يعنی د نبی ﷺ د خطبې آواز مونږ ټولو ته په آسانۍ سره رارسيدۀ تردې چې مونږ د نبی ﷺ خبره اوريدله سره د دې چې په خپلو منزلونو کښې وو د منزلونو نه مرادخيمې دی چې په منی کښې د قيام دپاره حاجيان عارضی طور قائموی

**قوله**: فطفق يعلمهم مناسكهم نبی ﷺ په دې خطبه کښې خلقو ته د حج د مناسک او د مسائلو تعليم ورکوو تردې چې د رمی جمار تعليم ته اورسيدو نو د کنکری مقدار باره کښې ئې هدايت بيانولو په وخت کښې اوچت اواز سره په غوږونو کښې ګوتې ورکړې او وې فرمائيل بمثل حصى الخذف[٢] چې رمی داسې کنکرو سره اوکړې شی چې د خذف د کنکرو برابر وی الله اکبر! په تعليم و تفهيم کښې څومره قدرې اهتمامِ بليغ اختيار کړې شو چې د هغې نظير ناممکن دې جزى الله سيدنا ومولنا محمداً عنا بما هو اهله

[١]: سنن النسائي/الحج ١٨٩(٢٩٩٩)، (تحفة الأشراف: ٩٧٣٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦١/٤)، سنن الدارمي/المناسك ٥٩(١٣٩٣)(صحيح)

[٢] د يوې ګوتې په سر باندې کانړې ايخودل په ګوته باندې نيول او تيز غورزول ښکاره ده چه داسې قسم کانړې وړوکې وی د کرښې (چنړې) برابر.

## بَابُ يَبِيتُ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنًى

### باب: د منی شپه په مکه کښې د تيرولو بيان

ايام منی يوولسمه، دولسمه او ديارلسمه ذی الحجه ته وئيلې شی په دې ورځو کښې حاجی په منی کښې وی د رمی کولو په غرض سره په دې وجه دې ته ايام منی وئيلې شی اصل خو دا ده چې څنګه په دې تاريخونو کښې د حاجی ورځ دلته تيريږی دغه شان مبيت يعنی شپه هم دلته تيرول پکار دی اوس دا خبره چې داسې کول ضروری دی يا صرف سنت دی نو په دې کښې اختلاف دې

### د منی د مبيت په حکم کښې د علماء کرامو اختلاف

د حنفيه په نزد د منی په شپو کښې په منی کښې شپه تيرول سنت مؤکد دی او د جمهورو په نزد واجب دی دغه شان يو روايت د شافعيه و حنابله په نزد د عدم وجوب دې نو چې د چا په نزد په منی کښې شپه تيرول واجب دی د هغوی په نزد به د دې په ترک کولو سره دم واجبيږی او د حنفيه په نزد به نهٔ واجبيږی

[١٩٥٨](١) حَدَّثَنَا أَبُوبَكْرٍ مُحَمَّدُ بْنُ خَلَّادٍ الْبَاهِلِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، حَدَّثَنِي حَرِيزٌ، أَوْ أَبُو حَرِيزٍ الشَّكُّ مِنْ يَحْيَى، أَنَّهُ سَمِعَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ فَرُّوخٍ يَسْأَلُ ابْنَ عُمَرَ، قَالَ: "إِنَّا نَتَبَايَعُ بِأَمْوَالِ النَّاسِ فَيَأْتِي أَحَدُنَا مَكَّةَ فَيَبِيتُ عَلَى الْمَالِ؟ فَقَالَ: أَمَّا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَاتَ بِمِنًى وَظَلَّ".

عبدالرحمن بن فروخ دابن عمر رضی الله عنه نه تپوس اوکړو زمونږ دخلقوسره اخستل خرڅول کوو، نو زمونږ چه څوک مې ته راشی اودخپل مال سره شپه تيره کړی نوهغه جواب ورکړو چه نبی علیه السلام خوپه منی کښې شپې تيری کړی وی او ورځې هم

د باب په اولنی حديث کښې دا دی چې يو سړی د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما نه تپوس اوکړو چې مونږ خلق د خريدوفروخت دپاره د ايام منی په دوران کښې مکې مکرمې ته راځو بيا بعضې وخت کښې د اخستلې شوی مال د حفاظت دپاره چې کوم په مکه مکرمه کښې پروت وی هغه شپه په مکه مکرمه کښې تيروو په منی کښې د تيرولو په ځايې (او بيا د ورځې منی ته راشو او رمی کوو) نو ايا داسې کولې شو نو ابن عمر رضی الله عنهما جواب ورکړو اما رسول الله صلی الله عليه وسلم فبات بمنی وظل يعنی حضور علیه السلام خو شپه هم دلته په منی کښې تيره کړې ده او ورځ هم نو مطلب دا شو چې ستاسو دا کار او عمل خلاف سنت دی

[١٩٥٩](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ نُمَيْرٍ، وَأَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "اسْتَأْذَنَ الْعَبَّاسُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيتَ بِمَكَّةَ لَيَالِيَ مِنًى مِنْ أَجْلِ سِقَايَتِهِ، فَأَذِنَ لَهُ".

د ابن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې چه ابن عباس فقه درسول الی الله و نه اجازت طلب کړې وو چه خلقو وربانديې - دابو څښلو په غرض سره دمنی شپې په مکه کښې تيری کړی نونبی علیه السلام

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٦٨٧)(ضعيف)

(٢): حديث ابن نمير أخرجه صحيح البخاري/الحج ١٣٣(١٧٤٥)، صحيح مسلم/الحج ٦٠(١٣١٥)، سنن ابن ماجه/المناسك ٨٠(٣٠٦٥)، مسند احمد(٢٢/٢)، وحديث أبو أسامة أخرجه: صحيح البخاري/ الحج ١٣٣(١٧٤٥ تعليقا)، صحيح مسلم/الحج ٦٠(١٣١٥)، سنن الدارمي/المناسك ٩١(١٩٨٦)، (تحفة الأشراف: ٧٨٢٤)(صحيح)

هغه ته اجازت ورکړې وو.

استاذن العباس رسول الله صلی الله علیه وسلم د نبی ﷺ تره حضرت عباس رضی الله عنه د نبی ﷺ نه په مکه مکرمه کښې د شپې تیرولو اجازت طلب کړو د سقایة الحاج دپاره (چې هغوی به حاجیانو باندې اوبۀ څکولې) نو نبی ﷺ هغوی ته اجازت ورکړو دغه شان په باب رمی الجمار کښې یو حدیث راځی د عاصم بن عدی رضی الله عنه چې د هغې نه معلومیږی چې نبی ﷺ رعاة یعنی شپونکو ته هم د منی نه علاوه د شپې تیرولو اجازت ورکړې وو لهذا د رعاة او سقاة دپاره خو بالاتفاق د دې اجازت دې په حدیث شریف کښې د وضاحت راتلو په وجه سره لیکن د دې دواؤ نه علاوه د یو بل غرض دپاره هم د مبیت ترک کول جائز دی یا نۀ؟

## د سقایة او رعایة نه علاوه بل غرض دپاره ترک مبیت؟

د مالکیه په نزد خو دا اجازت هم دې دواؤ سره خاص دې او د شافعیه و حنابله په نزد د مال د حفاظت او د مرض په وجه باندې هم جائز دې او د حنفیه په نزد خو دا مبیت بالکل واجب نۀ دې کما سبق اولاً د استیذان عباس والا روایت په باره کښې منذری فرمائی واخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجه اهـ

# باب الصلاة بمنی

### په منی کښې د مونځونو کولو بیان

## د ترجمة الباب تشریح او د هغې غرض

حاجیان عام طور سره اکثر مسافر وی د هغې ځائې مقامی خلق خو ډیر کم وی لهذا د قصر فی الصلوٰة د مسئلې د بیانولو ضرورت پیښ شو د حج دوران کښې په عرفات او مزدلفه کښې جمع بین الصلوتین هم کیږی د جمهورو په نزد خو جمع بین الصلوتین په هر سفر کښې کیږی لیکن دلته د احنافو په نزد[1] هم کیږی ځکه چې دا جمع بین الصلوتین د جمهورو او د ائمه ثلثه په نزد (ابوحنیفه، مالک، احمد) لاجل النسک ده د سفر په وجه نۀ ده لهذا دا جمع د ټولو حاجیانو دپاره ده په دې کښې د امام شافعی صاحب رحمه الله اختلاف دې د هغوی په نزد دا جمع د سفر په وجه ده لهذا د دوی په نزد چې کوم حاجی د هغې مقام وی نو د هغۀ دپاره به دا جمع جائز نۀ وی بلکه دواړه مونځونه به په خپل خپل وخت کښې کوی

## په منی کښې په مانځۀ کښې د قصر باره کښې د امام مالک رحمه الله تحقیق

اوس د قصر مسئله پاتې شوه نو قصر د ائمه اربعه په نزد د سفر په وجه دې په عرفات کښې وی یا په منی کښې مزدلفه وی یا مکه مکرمه که حاجی مسافر دې نو قصر به کوی ورنه پوره کول دی صحیح خبره خو دا ده لیکن د شارحینو په نزد مشهوره دا ده چې دا قصر د امام مالک په نزد د نسک په وجه دې لکه په بذل المجهود کښې هم حضرت هم دا لیکلی دی زمونږ حضرت شیخ په درس کښې او په خپلو تصانیفو کښې په دې باندې تنبیه

[1] چه ددې څه شرطونه دی بغیر دهغې نه د احنافو په نزد دا جمع جائز نه ده.

کړې ده چې داسې نۀ ده بلکه د امام مالک رحمه الله په نزد هم دا قصر د سفر په وجه دې البته د جمهورو او امام مالک په مسلک کښې فرق دا دې چې د جمهورو په نزد خو حاجی کۀ د مسافة قصر نه راغلې دې نو بیا خو به قصر کوی ورنه نۀ،او د امام مالک صاحب په نزد دا قید ملحوظ نۀ دې بلکه مطلق سفر کافی دې مسافة د قصر وی یا نۀ وی په دې وجه د هغوی په نزد چې اهل مکه کله مزدلفه وغیره ته راشی نو په مانځه کښې به قصر کوی لیکن که یو کس هم په منی کښې اوسیږی هلته مقیم دې نو په منی کښې به د حج په زمانه کښې قصر نۀ کوی دغه شان اهل مکه به هم په مکه مکرمه کښې قصر نۀ کوی د دې نه معلومه شوه چې د امام مالک په نزد دا قصر دې نو د سفر په وجه باندې لیکن سفر عام دې مختصر وی یا اوږد او کۀ د هغوی په نزد دا قصر د نسک په وجه وې[1] نو بیا د حج په زمانه کښې اهل مکه ته هم په مکه مکرمه کښې قصر کول پکار ؤو لکه څنګه چې په منی کښې قصر کوی والله تعالی اعلم افاده الشیخ رحمه الله تعالی

[١٩٦٠]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، أَنَّ أَبَا مُعَاوِيَةَ، وَحَفْصَ بْنَ غِيَاثٍ حَدَّثَاهُ وَحَدِيثُ أَبِي مُعَاوِيَةَ أَتَمُّ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، قَالَ: "صَلَّى عُثْمَانُ بِمِنًى أَرْبَعًا، فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: "صَلَّيْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكْعَتَيْنِ، وَمَعَ أَبِي بَكْرٍ رَكْعَتَيْنِ وَمَعَ عُمَرَ رَكْعَتَيْنِ، زَادَ عَنْ حَفْصٍ، وَمَعَ عُثْمَانَ صَدْرًا مِنْ إِمَارَتِهِ ثُمَّ أَتَمَّهَا، زَادَ مِنْ هَاهُنَا عَنْ أَبِي مُعَاوِيَةَ: ثُمَّ تَفَرَّقَتْ بِكُمُ الطُّرُقُ، فَلَوَدِدْتُ أَنْ لِي مِنْ أَرْبَعِ رَكَعَاتٍ رَكْعَتَيْنِ مُتَقَبَّلَتَيْنِ، قَالَ الْأَعْمَشُ: فَحَدَّثَنِي مُعَاوِيَةُ بْنُ قُرَّةَ، عَنْ أَشْيَاخِهِ، أَنَّ عَبْدَ اللَّهِ صَلَّى أَرْبَعًا، قَالَ: فَقِيلَ لَهُ: عِبْتَ عَلَى عُثْمَانَ ثُمَّ صَلَّيْتَ أَرْبَعًا، قَالَ: الْخِلَافُ شَرٌّ".

عبدالرحمن بن یزید بیان کړې دي چه عثمان نه بن په منی کښې څلور رکعته ادا کړل نوعبدالله بن ال مسعود اووئیل ماد نبی عليه السلام سره و دابوبکر رضي الله عنه سره اودعمر رضي الله عنه سره دوه دوه رکعتونه د کړی دی دحفص بن غیاث نه مزید داهم وئیلی دی د اودعثمان سره هم چه هغه په ابتدائی دوره خلافت ع کښې(قصرکولو) بیا په آخر کښې هغه پوره(مونځ) ن اداکړې وو دلته کښې دابومعاویه نه دااضافه کړې لی ده چه(ابن مسعودنه اوفرمائیل) بیا ستاسو لاری د مختلف شوې اوماته دوه رکعته کوم چه دالله په و نزد باندې) قبول شی دڅلورو رکعتونه و بهتر معلومیږی اعمش وائی چه ماته معاویه بن قره دخپلو مشرانو نه بیان کړې دي چه عبدالله بن مسعوده هم څلور رکعته ادا کړل اوهغه ته اووئیلې شو چه تاسو په عثمان باندې عیب لګوئ اوبیاهم څلور رکعته کوئ هغه اوفرمائیل اختلاف کول بدکار دي.

**تشریح: قوله:** صلی عثمان بمنی اربعاً فلوددت ان لی من اربع رکعات دا د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مقوله ده چې کله هغوی حضرت عثمان رضي الله عنه پسې د دواؤ په ځائې څلور رکعته اوکړل

---

[1]) زه وائم، امام مالک خو عام سفرونو کښې د مسافت قصر په اعتبار سره دجمهوروسره دې، صرف دحج په سفر کښې هغوی دا عموم اختیار کړې دې چه مسافت دقصر وی اوکه نه وی قصربه کولې شی، لهذا دا وئیلې شی چه د امام مالک په نزد دا قصر لاجل النسک دې، فتأمل.

[2]): صحیح البخاري/تقصیر الصلاة ٢(١٠٨٤)، والحج ٨٤(١٦٥٧)، صحیح مسلم/المسافرین ٢(٦٩٥)، سنن النسائي/تقصیر الصلاة ٣(١٤٥٠)،(تحفة الأشراف: ٩٣٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٧٨/١، ٤١٦، ٤٢٢، ٤٢٥، ٤٦٤)، سنن الدارمي/المناسك ٤٧(١٩١٦)(صحیح)

نو هغه وخت هغوی دا جمله فرمائیلې وه چې د دې دوه مطلبه کیدې شی(۱) کاش چې په دې څلورو رکعتونو کښې دوه رکعته قبول کړې شی(چې اصل دی)(۲) کاش چې عثمان د دې څلورو رکعتونو په ځائې دوه رکعته کړې وې چې مقبول وې( د دې څلورو خو خبر نشته چې قبول به وی یا نۀ ځکه چې خلاف سنت دی) قال الخلاف شر چا حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ ته عرض اوکړو چې تاسو خو به د حضرت عثمان ﷺ په څلورو رکعتونو باندې اعتراض کوو نو اوس مو په خپله هغوی پسې څلور رکعته څنګه اوکړل په دې باندې هغوی اوفرمائیل الخلاف شر چې د امیر په مخالفت کښې شر او فتنه ده قال المنذری، واخرجه البخاری ومسلم والنسائی مختصرًا ومطولًا.

[١٩٦١]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، "أَنَّ عُثْمَانَ إِنَّمَا صَلَّى بِمِنًى أَرْبَعًا لِأَنَّهُ أَجْمَعَ عَلَى الْإِقَامَةِ بَعْدَ الْحَجِّ.

دامام زهری ﷺ نه روایت دې چه عثمانه په منی اې کښې څلور رکعته ځکه کړې وو چه هغه د حج نه پس هلته کښې د اقامت عزم کړې وو.

## حضرت عثمان ﷺ به په منی کښې مونځ ولې پوره کوو؟

قوله: ان عثمان انما صلی بمنی اربعاً لانه اجمع علی الاقامة بعد الحج..الخ:

امام ابوداؤد ﷫ چې د حضرت عثمان ﷺ د اتمام باره کښې کوم وجوه او اسباب منقول کړې دی په هغې کښې ئې بعضې دلته ذکر کړې دی دوه وجوهات خو مصنف د امام زهری نه نقل کړې دی(۱) حضرت عثمان ﷺ په طائف کښې د خپل ځان دپاره څۀ اموال باغ یا زمکه وغیره پریخودلې وه چې د هغې د نګرانئ دپاره په مکه مکرمه کښې د قیام کولو نوبت راتلو نو په هغه زمانه کښې به په قیام کښې هغوی اتمام یعنی پوره والې کوو(۲) یو کال داسې اوشو چې په مکه مکرمه کښې اعراب په کثرت سره جمع شو نو د هغې په رعایت کښې ئې څلور رکعته اوکړل چې چرته دوی په غلط فهمئ کښې مبتلا نۀ شی او رباعی مونځونه ثنائی اونګنړی(۳) یو وجه ابراهیم نخعی نقل کړې ده لانه اتخذها وطناً چې هغوی مکه مکرمه خپل وطن جوړ کړې وو دا څۀ مستقل وجه نۀ ده بلکه دا او اولنئ وجه یو شان ده دا لږه مجمل ده(۴) یو وجه دا بیانولې شی انه تاهل بمکة چې د حضرت عثمان ﷺ بعضې اهل وعیال هلته وو په دې وجه به چې کله هغوی مکې مکرمې ته راتلل نو پوره والې به ئې کوو په دې باندې حافظ منذری دا اشکال کړې دې چې نبی ﷺ هم د خپلو بیبیانو سره سفر کړې دې نو باوجود د خپلو بیبیانو سره د سفر کولو نبی ﷺ هلته پوره والې اونکړو او حافظ ابن قیم ﷫ په تهذیب السنن کښې دا داسې رد کړې ده چې دا خبره چې د حضرت عثمان ﷺ بعضې اهل وعیال په مکه مکرمه کښې مقیم وو لهذا چې کله به حضرت عثمان مکې مکرمې ته تلو نو هلته به یې د خپل اعیال و عیال کیدو په وجه پوره والې کوو دا خبره خلاف مشهور ده مشهوره خو دا ده چې د حضرت عثمان صاحب په اهل

---

[1]: تفرد به أبوداود(ضعيف)

و عيال کښې هلته يعنې په مکه مکرمه کښې څوک نۀ وو او نۀ ئې هلته څۀ مال وو څکه چې په موطا امام مالک کښې يو روايت دا راغلې دې چې بعضې وختونو کښې به داسې کيدل چې حضرت عثمان به کله مکې مکرمې ته د عمرې دپاره راتلو نو د سورلئ نه به د کجاوې وغيره کوزولو نوبت هم نۀ راتلو تردې چې واپس به شو[1] (نو کۀ هلته د دوی بعضې اهل وو نو داسې ئې ولې کول) دغه شان حضرت عثمان په اولنو مهاجرينو کښې دې هغوی دپاره په مکه مکرمه کښې قيام اختيارول کله جائز وو(۵) ابن عبدالبر صاحب فرمائي چې صحيح توجيه دا ده چې عثمان ﷺ به په سفر کښې قصر او اتمام دواړه مباح ګنړل(۲) او بعضو دا وئيلي دی چې د عثمان او عائشې ﷺ اعتقاد د نبی ﷺ د قصر باره کښې دا وو چې هغه نبی ﷺ د رخصت کيدو په حيثيت سره رفقاً بالامة اختيار فرمائيلي وو په دې وجه دې دواړو په خپل حق کښې عزيمت ته ترجيح ورکړه چې د نبی ﷺ په رخصت باندې عمل کول خو د امت د مصلحت په وجه سره وو نۀ چې د افضل يا متعين کيدو په وجه

[١٩٦٢]([2]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ أَبِي الْأَحْوَصِ، عَنْ الْمُغِيرَةِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، قَالَ: "إِنَّ عُثْمَانَ صَلَّى أَرْبَعًا لِأَنَّهُ اتَّخَذَهَا وَطَنًا".

دابراهيم نخعي ﷺ نه منقول دی چه دعثمانه ا دڅلورو رکعتوکولو وجه داوه چه هغه دې ځائې لره وطن ګرځولي وو.

[١٩٦٣]([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ الْمُبَارَكِ، عَنْ يُونُسَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: "لَمَّا اتَّخَذَ عُثْمَانُ الْأَمْوَالَ بِالطَّائِفِ وَأَرَادَ أَنْ يُقِيمَ بِهَا صَلَّى أَرْبَعًا، قَالَ: ثُمَّ أَخَذَ بِهِ الْأَئِمَّةُ بَعْدَهُ".

د امام زهري ﷺ نه منقول دی چه عثمان نه کله په وال طائف کښې خپل جائيداد واخستو اودلته کښې ئې به داقامت نيت اوکړو نو څلور رکعته ئې اداکړل دهغه نه پس نورو ائمه و دا عمل اختيار کړو.

[١٩٦٤]([4]) حَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، "أَنَّ عُثْمَانَ بْنَ عَفَّانَ أَتَمَّ الصَّلَاةَ بِمِنًى مِنْ أَجْلِ الْأَعْرَابِ لِأَنَّهُمْ كَثُرُوا عَامَئِذٍ فَصَلَّى بِالنَّاسِ أَرْبَعًا لِيُعَلِّمَهُمْ أَنَّ الصَّلَاةَ أَرْبَعٌ".

د امام زهري ﷺ نه روايت دې چه عثمان په منی کښې به دبدوی خلقو په وجه سره پوره مونځ کړې وو څکه ما چه هغه په دغه کال باندې ډير زيات په کثير تعداد کښې حج ته راغلی وو نوهغه خلقو ته څلور رکعته مونځ ورکړو ددې دپاره چه دې بدوی خلقوته معلومه وی چه مونځ څلور رکعته دې.

## بَابُ الْقَصْرِ لِأَهْلِ مَكَّةَ

### د اهل مکه والو قصر کول

په ظاهره دا باب تير شوې باب سره متعلق دې يعنې په منی کښې مسافر امام چې کله قصر

[1] ) قد ذكره مالك في الموطأ انه بلغه ان عثمان بن عفان كان اذا اعتمر ربما لم يحطط راحلته حتي رجع.

[2] ): تفرد به أبو داود(ضعيف)

[3] ): تفرد به أبوداود(ضعيف)

[4] ): تفرد به أبوداود(حسن لغيره)

مونځ اوکړی نو ایا مکی خلق به ورپسې هم قصر کوی؟ جواب دا دې چې د جمهور علماء ثلثه په نزد خو به هغوی اتمام کوی لیکن د امام مالک په نزد به هغوی هم قصر کوی کما تقدم فی الباب السابق

[١٩٦٥]([1]) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي حَارِثَةُ بْنُ وَهْبٍ الْخُزَاعِيُّ وَكَانَتْ أُمُّهُ تَحْتَ عُمَرَ فَوَلَدَتْ لَهُ عُبَيْدَ اللَّهِ بْنَ عُمَرَ، قَالَ: "صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمِنًى وَالنَّاسُ أَكْثَرُ مَا كَانُوا، فَصَلَّى بِنَا رَكْعَتَيْنِ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: حَارِثَةُ مِنْ خُزَاعَةَ وَدَارُهُمْ بِمَكَّةَ.

دحارثه بن وهب الخزاعی رضي الله عنه موردعمر رضي الله عنه په زوجیت کښې وه اودهغې نه دهغه خوئې عبیدالله بن عمر پیداشوې وو حارثه وائی چه مادرسول الله ﷺ سره په منی کښې مونځ اداکړو دخلقو تعداد ډیرزیات وو نوهغه مونږ ته په حجة الوداع کښې دوه رکعته ادا اوفرمائیل ابوداود وائی چه حارثه دقبیله خزاعه فرد سره په منی کښې مونځ اداکړو دخلقو تعداد ډیرزیات وو نوهغه مونږ ته په حجة الوداع کښې دوه رکعته ادا اوفرمائیل ابوداود وائی چه حارثه دقبیله خزاعه فرد وو اودهغه کور په مکه کښې وو.

## د حدیث مبارک تشریح

**تشریح: قوله:** حدثنی حارثة بن وهب الخزاعی:

د حارثه بن وهب مور صاحبه ام کلثوم ده دا اول د وهب په نکاح کښې وه بیا د حضرت عمر رضي الله عنه په نکاح کښې راغله او بیا ترینه عبیدالله بن عمر پیدا شو نو ګویا حارثه د عبیدالله بن عمر اخیافی ورور شو د حارثه کور په مکه مکرمه کښې وو لکه څنګه چې د ابوداؤد په بعضو نسخو کښې دی نو ظاهره دا ده چې د حارثه قیام به هم په مکه مکرمه کښې وی(اګرچه ضروری نۀ ده)، په دې وجه مصنف دې حدیث لره د ترجمة الباب لاندې راوړو چې حارثه د اهل مکه نه وو والله اعلم

صلیت مع رسول الله صلی الله علیه وسلم بمنی والناس اکثر ما کانوا حارثه دا وائی چې ما د نبی ﷺ سره په منی کښې قصر مونځ په داسې حالت کښې اوکړو چې د خلقو زیات کثرت هلته د مخکښې نه وو یعنی دومره کثرت د خلقو هلته د دې نه مخکښې چرته نۀ وو دې کثرت بیانولو سره هغوی دې خبرې طرفته اشاره کول غواړی چې په مانځه کښې قصر کول د خوف(ویرې)سره خاص نۀ دی لکه څنګه چې د قرآن د ظاهر نه معلومیږی([2]) بلکه په حالت د امن او په کثرت کښې به هم په سفر کښې قصر کولې شی

[1]): صحیح البخاري/تقصیر الصلاة ٢(١٠٨٣)، والحج ٨٤(١٦٥٦)، صحیح مسلم/المسافرین ٢(٦٩٦)، سنن الترمذي/الحج ٥٢(٨٨٢)، سنن النسائي/تقصیر الصلاة ٢(١٤٤٦)،( تحفة الأشراف: ٣٢٨٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٠٦/٤)(صحیح)

[2]) ﴿ واذا ضربتم في الارض فلیس علیکم جناح ان تقصروا من الصلاة ان خفتم ان یفتنکم ..... الآیة ﴾ اوګورئ ددې نه په ظاهره کښې هم دامعلومیږی چه قصر فی الصلاة دویرې په صورت کښې دې هسې نشته.

## د حديث نه د مالکيه استدلال او د جمهورو له طرفه د هغې جواب

د دې حديث د ترجمة الباب سره مناسبت دا دې چې حارثه مکی وو او بيا هم هغوی د نبی عليه السلام سره په منی کښې قصر اوکړو لهذا دا حديث د مالکيه دليل شو په بذل کښې د جمهورو له طرفه د دې متعدد جوابات ليکلې شوې دی(۱) فصلي بنا رکعتين کښې ضروری نۀ ده چې اهل مکه هم شامل وی او که وی هم نو بيا هم دا ضروری نۀ ده چې نبی عليه السلام سره ئې دوه رکعتونه کړې وی او باقی دوه رکعتونه ئې د اتمام دپاره نۀ وی کړې(۲) د هغوی کور په مکه مکرمه کښې وو دې سره دا لازم نۀ راځی چې هغوی دې په مکه مکرمه کښې مقيم هم وی(بذل) خطابی وائی چې هغوی واقعی دوه رکعته اوکړل نو کيدې شی دا د هغوی خپل اجتهاد وی د نبی عليه السلام نه هغوی چونکه د خپل ځان باره کښې څۀ پوښتنه اونکړه نو په دې وجه به نبی عليه السلام هم نۀ وی فرمائيلې وړاندې فرمائی چې د حضرت عمر رضی الله عنه معمول وو چې کله به هغوی د منی په سفر کښې مونځ ورکوو نو قصر به ئې کوو اتموا يا اهل مکة فانا قوم سفر(عون)

## بَابٌ فِي رَمْيِ الْجِمَارِ[1]

### جمرات په کيڼو(کانړو) باندې ويشتل

د رمی ورځې څلور دی او چې د کومو جمارو رمی کيږی هغه درې دی الجمرة الاولی، الجمرة الوسطی، الجمرة الکبری دې دريم ته جمرة العقبه او جمرة القصوی والاخری هم وئيلې شی جمره اولی مسجد خيف او مزدلفه ته نزدې ده او جمرة العقبه يعنی دريمه جمره دا مکې مکرمې ته نزدې او د منی نه لرې ده په دې وجه ورته جمرة القصوی وئيلې شی يعنی د منی نه لرې د رمی ابتدا د جمره اولی نه کيږی بيا د وسطی او بيا د کبری دا ترتيب د حنفيه په يو قول کښې سنت او په دويم قول کښې واجب دې(شرح لباب) په دې جمراتو کښې اولنۍ ورځ(يوم النحر) کښې صرف د جمرة العقبه رمی کيږی(حاجيان چې کله د مزدلفه نه منی ته راشی نو په لاره کښې جمرة الاولی او وسطی پريږدی او نيغ په دې جمره باندې راؤرسی او رمی کوی) او په باقی دريو ورځو کښې د جمرات ثلثه رمی کيږی

بيا ځان پوهه کړئ دلته درې مسئلې قابل ذکر دی د رمی حکم، د رمی وخت او رمی راکباً غوره ده يا ماشياً يعنی په حالت د سورلۍ کښې يا پيدل

---

[1] جمار د جمره جمع ده په معنی د ګيټکی (وړوکې کانړې) مګر دلته د دې نه مراد د منی هغه خاص مقامات دی د کومو چه رمی کولې شی بيا په دغه مواضع باندې د علاماتو دپاره د انسان د قد برابر ستنې جوړې کړې شوې دی، نو اصل کښې جمار د کومو چه رمی کول مقصود دې هغه دا ستن نه ده لکه چه اکثر عوام خيال کوی بلکه چه په کوم ځائې باندې دا ستن قائم ده هغه او د هغې خواته ځائې مقصود بالرمی دې. د دې رمی مقصود هغه دې کوم چه ابن خزيمه په خپل صحيح کښې د ابن عباس رضی الله عنه په روايت نقل کړې دې چه سيدنا ابراهيم عليه السلام د افعال حج أدا کولو دپاره راغلو نو اولا جمرة العقبة باندې هغه ته شيطان په نظر راغلو نو هغه په اووه کانړو باندې ويشتلو چه هغې سره هغه په زمکه کښې ننوتلو بيا نور وړاندې لاړو نو بيا ورته په نظر راغلو نو بيا ئې هغه په کانړو ويشتلو (دا جمرة الوسطی شو) بيا چه وړاندې لاړو نو په دريم کرت ورته په نظر راغلو نو دلته ئې بيا په کانړو باندې ويشتلو. (دا جمرة الاولی شو) (معلم الحجاج)

## مسئله اولی: (د رمی حکم)

رمی د ائمه ثلثه په نزد واجب ده او د امام مالک په نزد سنت مؤکده او د ابن الماجشون مالکی په نزد د یوم النحر رمی رکن او فرض ده

## مسئله ثانیه: (د رمی وخت)

خان پوهول پکار دی چې د یوم النحر د رمی وخت جدا دې او د ایام تشریق[1] د رمی وخت جدا دې د دې تفصیل سره د اختلاف ائمه په ائمه باب التعجیل کښې تیر شو

## مسئله ثالثه: (رمی راکبا افضل ده که ماشیا)

د حنفیه په نزد دې کښې درې اقوال دی مطلقا د سورلۍ په حالت کښې غوره دی، مطلقاً پیدل رمی کول غوره دی کل رمی بعده رمی فماشیاً والا فراکباً لهذا د جمره اولی او وسطی رمی به ماشیاً غوره وی او د جمرة العقبه به راکباً

او د شافعیه په نزد په اولنۍ او آخری ورځ راکباً او مینځ کښې دوه ورځې یوولسمه او دولسمه باندې ماشیاً غوره ده د امام احمد په نزد په اولنۍ ورځ باندې راکباً او باقی کښې ماشیاً او د امام مالک په نزد په اولنۍ ورځ علی حاله السابق ان کان راکباً فراکباً وان ماشیاً فماشیاً [2] وفی الباقی المشی.

[١٩٦٦]([3]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ مُسْهِرٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، أَخْبَرَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ، عَنْ أُمِّهِ، قَالَتْ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي الْجَمْرَةَ مِنْ بَطْنِ الْوَادِي وَهُوَ رَاكِبٌ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ، وَرَجُلٌ مِنْ خَلْفِهِ يَسْتُرُهُ، فَسَأَلْتُ عَنِ الرَّجُلِ: فَقَالُوا: الْفَضْلُ بْنُ الْعَبَّاسِ، وَازْدَحَمَ النَّاسُ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ، لَا يَقْتُلْ بَعْضُكُمْ بَعْضًا، وَإِذَا رَمَيْتُمُ الْجَمْرَةَ فَارْمُوا بِمِثْلِ حَصَى الْخَذْفِ".

دسلیمان بن عمرو الاحوص مور بیان کوی چه ما رسول اللهﷺ لره دوادۍ په مینځ کښې اولیدو چه هغه په ګیټو سره جمرې ویشتلې اوهغه په سورلۍ باندې وو هغه به دهرې ګیټۍ سره الله اکبر فرمائیلویو کس هغه لره دشانه پټ کړې وو - مادهغه کس په باره تپوس اوکړو نو خلقو اووئیل دافضل بن عباس دې خلقو ډیرزیات ازدحام جوړ کړې وو نونبی کریمﷺ وفرمائیل اې خلقو یوبل لره مه وژنۍ اوکله چه تاسو جمرې په ګیټو سره اولۍ نو په وړو

---

[1]) ایام نحر درې دی د ذی الحجه لسم، یولسم او دولسم تاریخ، او ایام تشریق هم درې دی، یولسم، دولسم او دیارلسم. لهذا لسم د ذی الحجه خو صرف یوم النحر دې او دیارلسم ذی الحجه صرف یوم التشریق دې او په مینځ کښې دوه یعنی یولسم، دولسم ذی الحجه یوم النحر هم دې او یوم التشریق هم او دا څلور ورځې د لسم نه دیارلسم پورې ایام رمی دی چه په هغې کښې اخری ورځ اختیاری ده په دې کښې ایساریدل په منی کښې ضروری نه دی خو که ایسار شو نو بیا به رمی واجب وی.

[2]) په اوله ورځ یعنی په یوم النحر کښې که په اوله ورځ باندې سور دې او هم په دې حال کښې جمره ته رسیدلې دې نو په دې صورت کښې د دې جمره رمی هم په سوریدو سره افضل ده او که ماشی وی نو ماشیا افضل دی. ١٢

[3]): سنن ابن ماجه/المناسک ٦٣(٣٠٢٨)، (تحفة الأشراف: ١٨٣٠٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(٥٠٣/٣، ٢٧٠/٥، ٣٧٩، ٣٧٩/٦)(حسن)

وړو ګیټو سره اولئ.

يرمي الجمرة من بطن الوادى رمى ئې د وادى يعنى په نشيب کښې په ولاړه کوله ورجل من خلفه يستره چې کوم وخت نبى عليه السلام رمى کوله نو هغه وخت فضل بن عباس د نبى عليه السلام بچاؤ کوو يعنى د حجاره نه چې کوم خلق کانړى اولى نو په هغې باندې چرته پيغمبر عليه السلام اونة لګى او د دې نه وړاندې په باب فى المحرم يظلل کښې دا تير شوې دى چې بچاؤ کوونکې حضرت اسامه وو او حضرت بلال د اوښې واګې نيولې وې ليکن هلته دا هم تير شو يستره من الحر يعنى د نمر د دهوپ او د ګرمئ نه ئې بچ کوو ،نو يوځايئ کښې د ستر نه ستر من حر الشمس او دويم ځائې کښې د ستر نه ستر من الحجارة مراد دې(بذل)

[١٩٦٧]() حَدَّثَنَا أَبُو ثَوْرٍ إِبْرَاهِيمُ بْنُ خَالِدٍ، وَوَهْبُ بْنُ بَيَانٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عُبَيْدَةُ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْأَحْوَصِ، عَنْ أُمِّهِ، قَالَتْ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ جَمْرَةِ الْعَقَبَةِ رَاكِبًا، وَرَأَيْتُ بَيْنَ أَصَابِعِهِ حَجَرًا فَرَمَى وَرَمَى النَّاسُ".

دسليمان بن عمرو بن الاحوص مور بيان کوى چه مانبى عليه السلام لره دجمره عقبه سره اوليدو هغه په سورلئ باندې وومادهغه په ګوتوکښې کانړى اوليدل چه نبى عليه السلام هغې لره اويشتل نوبياخلقو هم رمى اوکړه

[١٩٦٨]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ أَبِي زِيَادٍ بِإِسْنَادِهِ فِي مِثْلِ هَذَا الْحَدِيثِ، زَادَ: "وَلَمْ يَقُمْ عِنْدَهَا".

يزيد بن زياد په خپل سند سره ددې په مثل روايت کوى او اضافه ئې کړې ده چه هغه دجمرې سره ولاړ نه وو.

ولم يقم عندها يعنى د جمرة العقبه د رمى کولو نه پس پيغمبر عليه السلام دعا وغيره دپاره حصار نهٔ شو په خلاف د جمرة اولى او وسطى چې هلته نبى عليه السلام د رمى نه فارغ شو نو هغې سره لږه شان فاصله باندې اودريدل او په دعا کښې مشغول شو،په دې وجه فقهاء کرامو دا هم ليکلې دى چې د جمرة اولى او وسطى سره نزدې په ولاړه دعا غوښتل پکار دى او په جمرة العقبه نهٔ دى ايساريدل پکار والله اعلم بحکمته .(٣)

[١٩٦٩]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ يَعْنِي ابْنَ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّهُ "كَانَ يَأْتِي الْجِمَارَ فِي الْأَيَّامِ الثَّلَاثَةِ بَعْدَ يَوْمِ النَّحْرِ مَاشِيًا ذَاهِبًا وَرَاجِعًا، وَيُخْبِرُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ".

[1]): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ١٨٣٠٦)(صحيح)

[2]): انظر حديث رقم: ١٩٦٦،( تحفة الأشراف: ١٨٣٠٦)(صحيح)

[3]) ددې په حکمت کښې د علماؤ درې اقوال دى. (١) توسط الدعاء بين العبادتين: او ښکاره ده چه کومه دعا د دوه عبادتونو په مينځ کښې کيږى هغه به اسرع الى الاجابت وى، (٢) د جمرة العقبه محل وقوع تنګه ده او ممرالناس ده، لهذا هلته به ايساريدلو کښې خلقو ته تکليف وى، (٣) د تغائل په طور دعا پريږدى چه د رمى نه فارغ کيدو سره به انشاء الله تولې دعاګانې قبولې شوې وى.والله تعالى أعلم.

[4]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٧٧٢٧)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٦٣(٨٩٩)، مسند احمد(٢/١١٤، ١٣٨، ١٥٦)(صحيح)

دحضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روایت دې چه هغه د یوم النحر نه پس په دریو ورځو کښې د جمرات د رمی دپاره پیدل راغلې وو او پیدل به واپس تلو اوهغه به دا وئیل چه نبی کریم ﷺ به په خپله داسې کول.

[١٩٧٠](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، سَمِعْتُ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي عَلَى رَاحِلَتِهِ يَوْمَ النَّحْرِ، يَقُولُ: "لِتَأْخُذُوا مَنَاسِكَكُمْ فَإِنِّي لَا أَدْرِي لَعَلِّي لَا أَحُجُّ بَعْدَ حَجَّتِي هَذِهِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دې چه ما رسول الله ﷺ لره اولید و چه هغه دقربانئ په ورځ په خپلې سورلئ باندې سور وو اورې ئې کوولې اوفرمائیل به ئې زمانه خپل اعمال دحج زده کړئ ماته نه ده معلومه شائد چه زه ددې خپل حج نه پس بل حج اونه کړې شم.

[١٩٧١](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي أَبُو الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ، يَقُولُ: "رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرْمِي عَلَى رَاحِلَتِهِ يَوْمَ النَّحْرِ ضُحًى، فَأَمَّا بَعْدَ ذَلِكَ فَبَعْدَ زَوَالِ الشَّمْسِ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روایت دې چه ما رسول الله ﷺ لره اولیدو چه هغه دقربانئ په ورځ دڅاښت په وخت کښې په خپلې سورلئ باندې رې کوله مګر ددې نه په وروستو ورځو کښې ئې دنمر دزوال نه پس رمی اوکړه.

[١٩٧٢](3) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ الزُّهْرِيُّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مِسْعَرٍ، عَنْ وَبَرَةَ، قَالَ: "سَأَلْتُ ابْنَ عُمَرَ: مَتَى أَرْمِي الْجِمَارَ؟ قَالَ: إِذَا رَمَى إِمَامُكَ فَارْمِ، فَأَعَدْتُ عَلَيْهِ الْمَسْأَلَةَ، فَقَالَ: كُنَّا نَتَحَيَّنُ زَوَالَ الشَّمْسِ، فَإِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ رَمَيْنَا".

وبره وائي چه ما دابن عمر نه تپوس اوکړو چه زه په کوم وخت کښې د جمراتو رې کوم هغه اوفرمائیل کله چه ستاسو امام رې کوی نوتاسو هم رمی اوکړئ ما خپل سوال دوباره کړو نوهغه اوفرمائیل مونږ به دنمر دزوال انتظار کولو چه کله به نمر زائله شونو رې به مو کوله.

[١٩٧٣](4) حَدَّثَنَا عَلِيُّ بْنُ بَحْرٍ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ سَعِيدٍ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا أَبُو خَالِدٍ الْأَحْمَرُ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "أَفَاضَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ آخِرِ يَوْمِهِ حِينَ صَلَّى الظُّهْرَ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مِنًى فَمَكَثَ بِهَا لَيَالِيَ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ يَرْمِي الْجَمْرَةَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ، كُلَّ جَمْرَةٍ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ يُكَبِّرُ مَعَ كُلِّ حَصَاةٍ، وَيَقِفُ عِنْدَ الْأُولَى وَالثَّانِيَةِ فَيُطِيلُ الْقِيَامَ وَيَتَضَرَّعُ وَيَرْمِي الثَّالِثَةَ وَلَا يَقِفُ عِنْدَهَا".

دعائشې رضي الله عنها نه روایت دې چه رسول الله ﷺ دماسپخین دمونځ کولو نه پس دورځې په

[1]: صحيح مسلم/الحج ٥٣(١٢٩٧)، سنن النسائي/الحج ٢٢٠(٣٠٦٤)،( تحفة الأشراف: ٢٨٠٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٥٩(٨٩٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٥(٣٠٥٣)، مسند احمد(٣/٣١٣، ٣١٩، ٤٠٠)، سنن الدارمي/المناسك ٥٨(١٩٣٧)(صحيح)

[2]: صحيح مسلم/ الحج ٥٣(١٢٩٩)، سنن الترمذي/ الحج ٥٩(٨٩٤)، سنن النسائي/ الحج ٢٢١(٣٠٦٥)، سنن ابن ماجه/ ٧٥ المناسك(٣٠٥٣)،(تحفة الأشراف: ٢٧٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣/٣١٢، ٣٩٩)، دي/ المناسك ٥٨(١٩٣٧)(صحيح)

[3]: صحيح البخاري/الحج ١٣٤(١٧٤٦)،( تحفة الأشراف: ٨٥٥٤)(صحيح)

[4]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٧٥٢٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/٩٠)(صحيح)

اخری حصه کښې طواف افاضه اوکړو بیاهغه منی ته واپس راغی اودا ایام تشریق شپې ئې دلته کښې تیرې کړې دنمر دزوال نه پس به ئې الله اکبر فرمائیل داولې اود دویمې جمرې سره به ئې کافي وخت پورې وقوف کولو اودخپلې عاجزی اوتضرع اظهاربه ئې کولو بیابه ئې دریمې جمرې لره په کیڼو باندې ویشتله مګردهغې سره به ئې وقوف نه فرمائیلو.

عن عائشه قالت افاض رسول الله صلى الله عليه وسلم من آخر يومه نبی علیه السلام طواف افاضه اوکړو د یوم النحر په آخری حصه کښې د اخری حصې نه مراد بعدالزوال دې بیا ئې د ماسپخین مونځ اوکړو او منی ته واپس شو په دې ورځ نبی علیه السلام د ماسپخین مونځ چرته کړې وو په مکه مکرمه کښې یا واپس په منی کښې په دې سلسله کښې مختلف روایات دی او په دې باندې کلام د حضرت جابر رضي الله عنه په اورد حدیث مبارک کښې تیر شو

په دې روایت کښې د دې خبرې وضاحت دې چې نبی علیه السلام طواف زیارة یوم النحر کښې د ماسپخین په وخت کښې اوکړو او د دې نه پس په باب الافاضه کښې یو حدیث راځی چې په هغې کښې دا دی اخر طواف یوم النحر الی الیل په دې باندې په کلام انشاء الله هم دې ځائې کښې راشی

[١٩٧٤]() حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، وَمُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنِ الْحَكَمِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ يَزِيدَ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "لَمَّا انْتَهَى إِلَى الْجَمْرَةِ الْكُبْرَى جَعَلَ الْبَيْتَ عَنْ يَسَارِهِ وَمِنًى عَنْ يَمِينِهِ وَرَمَى الْجَمْرَةَ بِسَبْعِ حَصَيَاتٍ"، وَقَالَ: هَكَذَا رَمَى الَّذِي أُنْزِلَتْ عَلَيْهِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ.

دعبدالله بن مسعود نه روایت دې چه کله هغه بن جمری کبری ته اورسیدل نوهغه بیت الله لره خپل د ګس طرف ته اومنی لره ئې ښی طرف ته کړله: اوبیائې جمره په اوه ګیڼو اویشتله ابن مسعود رضي الله عنه اوفرمائیل اوپه دې شان سره ئې رمی اوکړه هغه ذات په کوم باندې چه سورة بقره نازل شوې وه.

## د جمراتو د رمی کیفیت او د امامانو اختلاف

لما انتهی الی الجمرة الکبری جعل البیت عن یساره ومنی عن یمینه

په دې حدیث مبارک کښې د رمی جمره کیفیت ذکر دې چې څنګه اودریدل او څنګه رمی کول پکار دی؟ هغه داسې چې د جمره په طرف باندې به مخ کړی او داسې به ولاړ وی چې مکه مکرمه ئې ګس طرفته وی او منی ئې ښی طرفته وی لیکن دا کیفیت د جمرة العقبه د رمی دې کما فی الحدیث، او د جمرة الاولی او وسطی رمی به مستقبل القبله وی(کما فی العرف الشذی) او د حنابله په نزد کما فی الروض المربع مستحب دا دی چې د ټولو جمراتو رمی دې مستقبل القبله وی او د شافعیه په نزد مستحب دا ده چې په یوم النحر کښې د جمرة العقبه رمی خو مستقبل الجمره وی وی او په باقی ورځو کښې د ټولو جمراتو رمی مستقل القبله وی چې په هغې کښې جمرة العقبه هم شامل ده

(): صحيح البخاري/الحج ١٣٥(١٧٤٧)، ١٣٨(١٧٥٠)، صحيح مسلم/الحج ٥٠(١٢٩٦)، سنن الترمذي/الحج ٦٤(٩٠١)، سنن النسائي/المناسك ٢٢٦(٣٠٧٣، ٣٠٧٥)، سنن ابن ماجه/المناسك ٦٤(٣٠٣٠)،( تحفة الأشراف: ٩٣٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٣٧٤، ٤٠٨، ٤١٥، ٤٢٧، ٤٣٠، ٤٣٢، ٤٣٦، ٤٥٦، ٤٥٨)(صحيح)

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی چې دا حدیث د ابو داوٗد نه علاوه په ترمذی او صحیحینو کښې هم شته په صحیحینو کښې خو دغه شان دې لکه څنګه چې په ابوداوٗد کښې دې، لیکن په ترمذی کښې د دې خلاف دې په هغې کښې داسې دې لما اتی عبدالله جمرة العقبه استبطن الوادی واستقبل القبلة الحدیث د استقبال قبله په صورت کښې به منی شی طرفته نهٔ وی بلکه شا طرفته به وی اګرچه د حنابله او د بعضې شافعیه مسلک هم دا دې کما قال النووی لیکن د ترمذی شریف د روایت الفاظ د مشهور روایت خلاف دی او نهٔ په دې باندې د جمهور فقهاؤ عمل دې د ترمذی په روایت کښې یو راوی دې المسعودی(عبدالرحمن بن عبدالله بن عتبة بن مسعود الکوفی) دا ضعیف دې

[١٩٧٥](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَاصِمٍ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَخَّصَ لِرِعَاءِ الْإِبِلِ فِي الْبَيْتُوتَةِ، يَرْمُونَ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ يَرْمُونَ الْغَدَ وَمِنْ بَعْدِ الْغَدِ بِيَوْمَيْنِ وَيَرْمُونَ يَوْمَ النَّفْرِ".

ابو البداح بن عاصم رضی الله عنه ته د خپل پلارنه روایت کوی چه رسول الله ﷺ داوښانو شپونکو لره په منی کښې در دشپو تیرولونه رخصت ورکړې وو دوی دې د قربانی ورځ باندې رمی اوکړی بیا په صبائې ورځ بیا دهغې نه پس صباورځ دې پریږدی اودر وانګی په ورځ دې د دوو ورځو رمی اوکړی.

**تشریح: قوله**: ان رسول الله صلی الله علیه وسلم رخص لرعاء الابل فی البیتوتة یرمون یوم النحر د دې حدیث حواله مونږ سره دلته نزدې په استاذن العباس رسول الله صلی الله علیه وسلم....الخ کښې تیره شوې ده او مسئله هم هلته تیره شوې ده هغه دا چې د رعاة او سُقاة دپاره ترک مبیت بمنی جائز دې د دې حدیث شریف د مزید وضاحت ضرورت دې هغه دا چې د شپونکو دپاره نبی علیه السلام د دې خبرې اجازت ورکړو چې هغوی د منی په ځائې په مکه مکرمه کښې شپه تیرولې شی او دغه شان دا هم هغوی ته اجازت دې چې هغوی د دواؤ ورځو رمی په یو ورځ کښې اوکړی هغوی ته روزانه د مکی مکرمې نه منی ته د راتللو ضرورت نشته لهذا هغوی دې یوم النحر باندې رمی اوکړی او بیا دې یوولسمه او دولسمه د دواؤ ورځو رمی په یو ورځ کښې اوکړی چې د دې دوه صورتونه کیدې شی یو تقدیماً او دویم تاخیراً د تقدیم مطلب دا دې چې هغوی د یوولسم او دولسم دواړو تاریخونو رمی په یوولسم باندې اوکړی او د تاخیراً مطلب دا دې چې د دواړو ورځو رمی په دولسم تاریخ باندې اوکړی لیکن مسئله دا ده چې تقدیم د رمی په ائمه اربعه کښې د چا په نزد هم جائز نهٔ دې البته د ابن حزم ظاهری په نزد جائز دې لهذا دلته د تقدیم

(١): سنن الترمذي/الحج ١٠٨(٩٥٤ و ٩٥٥)، سنن النسائي/الحج ٢٢٥(٣٠٧)، سنن ابن ماجه/المناسك ٦٧(٣٠٣٦، ٣٠٣٧)،(تحفة الأشراف: ٥٠٣٠)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٧٢(٢١٨)، مسند احمد(٤٥٠/٥)، سنن الدارمي/المناسك ٥٨(١٩٣٨)(صحیح)

والا صورت نهٔ شي مراد کيدی.(١)

اوس دلته دا سوال پاتې شو چې تقديم د رمی خو بالاتفاق ناجائز دې او د تاخير رمی څهٔ حکم دې؟ جواب دا دې چې په دې مسئله کښې اختلاف دې د امام ابوحنيفه او امام مالک په نزد د هرې ورځ رمی هغه ورځ سره مؤقت ده(٢) چې څنګه تقديم جائز نهٔ دې نو دغه شان تاخير هم جائز نهٔ دې(الا لمن رخص) او د امام شافعي و احمد او صاحبينو په نزد د هرې ورځ رمی هغه ورځ سره مؤقت نهٔ ده بلکه يجوز التاخير الى آحر ايام التشريق اليوم الرابع من ايام الرمی اعنی ١٣ ذی الحجه

[١٩٧٦](٣) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ، وَمُحَمَّدُ ابْنَيْ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهِمَا، عَنْ أَبِي الْبَدَّاحِ بْنِ عَدِيٍّ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَخَّصَ لِلرِّعَاءِ أَنْ يَرْمُوا يَوْمًا وَيَدَعُوا يَوْمًا".

ابوالبداح بن عدی دخپل پلارنه روايت کوی چه بن رسول اللهﷺ شپونکولره رخصت ورکړې وو چه د يوه ورځ دې رمی اوکړی اويوه ورځ دې ترک کړي.

[١٩٧٧](٤) حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْمُبَارَكِ، حَدَّثَنَا خَالِدُ بْنُ الْحَارِثِ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ، عَنْ قَتَادَةَ، قَالَ: سَمِعْتُ أَبَا مِجْلَزٍ، يَقُولُ: سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ عَنْ شَيْءٍ مِنْ أَمْرِ الْجِمَارِ، قَالَ: "مَا أَدْرِي أَرَمَاهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسِتٍّ أَوْ بِسَبْعٍ".

دابومجلز نه روايت دې چه ما دابن عباس رضي الله عنهما نه درمي جمارپه باره کښې تپوس کړې وو نو هغه اووئيل ماته معلومه نه ده چه رسول الله په شپږو کانړوباندې ري کړې وه يا په اووه سره.

**قوله**: ما ادری ارماها رسول الله صلى الله عليه وسلم بست او بسبع، دا حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د خپل علم په اعتبار سره فرمائی ورنه د سبع(اووهٔ) ثبوت خو په رواياتو کښې موجود دې او د جمهورو په نزد استيفاء سبعه واجب ده البته د امام احمد نه مختلف روايتونه نقل دی(١) د يو يا دواؤ کمی جائز ده(٢) که هير شی نو جائز دی قصداً نهٔ(٣) دريم قول د جمهور په شان د اوو(٧) پوره کول ضروری دی اذا رمی احدکم جمرة العقبة فقد حل له كل شئ الا النساء

---

(١) پس امام مالک رحمه الله په موطاء کښې د دې حديث په تشريح کښې هم دا فرمائی چه د يولسم او دولسم دوه ورځو رمی دې په دولسم تاريخ باندې اوکړی. خو په ترمذی شريف کښې داسې دی (قال مالك ظننت انه قال في الاول منها) خو دا تفسير د موطاء خلاف دې او د مذاهب فقهاء هم، پس يا خو به ونيلې شی چه په ترمذی کښې چه څه دی هغه وهم دې او يا به دا ونيلې شي چه په ترمذی کښې امام مالک دخپل استاذ قول نقل کوی او په موطاء کښې چه دی هغه د امام مالک خپله رائې ده. والله اعلم

(٢) د امام صاحب په نزد د ايام تشريق د رمی وخت د مستحب زوال نه روستو تر غروب پورې دې او بعد الغروب الي طلوع الفجر جائز مع الكراهة دې. او د طلوع نه روستو ناجائز دې، دم به واجبيږی. او د امام مالک په نزد د غروب پورې وقت ادا دې او د هغې نه روستو به قضاء دم واجب شی ګويا د شپې شروع کيدو سره د هغه په نزد رمی قضاء کيږی او د امام صاحب په نزد شپه هم وقت ادا دې. (جزء حجة الوداع)

(٣): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ٥٠٣٠)(صحيح)

(٤): سنن النسائي/الحج ٢٢٧ (٣٠٨٠)،( تحفة الأشراف: ٦٥٤١)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٧٢/١)(صحيح)

[١٩٧٨](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنِ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا الْحَجَّاجُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا رَمَى أَحَدُكُمْ جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ فَقَدْ حَلَّ لَهُ كُلُّ شَيْءٍ إِلَّا النِّسَاءَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا حَدِيثٌ ضَعِيفٌ، الْحَجَّاجُ لَمْ يَرَ الزُّهْرِيَّ وَلَمْ يَسْمَعْ مِنْهُ.

دعائشې رضي الله عنها نه روايت دې چه رسول الله او فرمائيل كله چه په تاسو كښې څوك دجمره عقبه رمي اوكړي نودهغه دپاره دښځو(يعنى دخپلو بيبيانو)نه ماسوا هرشئ حلال شو. ابوداود وائى داحديث ضعيف دې حجاج زهري لره نه دې ليدلې اونه ئې دهغه نه څه اوريدلي دي.

## په حج كښې دوه تحلل وي تحلل اصغر او اكبر

.په حج كښې دوه تحلل وى اصغر اواكبر په اصغر كښې بعضې محظورات احرام حلال وى او په اكبر كښې ټول محظورات تحلل اصغر په كوم څيز سره حاصليږى په دې كښې اختلاف دې د امام مالک صاحب په نزد صرف رمى د جمره عقبه سره كما فى هذا الحديث، ليكن دا حديث ضعيف دې كما قال المصنف او د شافعيه و حنابله په نزد باى اثنين من الامور الثلاثة الرمى والحلق والطواف، يعنى په دې دريو كښې صرف د دوآؤ په ذريعې سره حاصليدې شى خواه چې په كښې كوم دوه هم وى او چې كله دريم كار اوكړى نو دې سره به تحلل اكبر حاصل شى( د دې دواړو امامانو په نزد نحر ته په تحلل كښې هيڅ دخل نشته دا ټول تفصيل مونږ د ائمه كرامو د كتب فروع نه نقل كړې دې(كتاب الكافى لابن عبدالبر،وروضة المحتاجين ونيل المآرب) او دحنفيه په نزد تحلل اصغر د مفرد په حق كښې رمى او حلق سره حاصليږى او د متمتع او قارن په حق كښې رمى،ذبح او حلق دريو څيزونو سره حاصليږى. اوس دا چې تحلل اصغر كښې حلال كيدو سره څهٔ څيز باقى پاتې كيږى نود حنفيه په نزد صرف ښځې يعنى وطى او دواعى د وطى او د شافعيه و حنابله په نزد وطى و داعى د وطى او عقد نكاح هم او دمالكيه په نزد الاالنساء والطيب والصيد(ليكن طيب صرف مكروه دې په دې كښې فديه نشته او په ښكار كښې فديه ده(كذا فى الكافى لابن عبدالبر)

## دا حديث د مالكيه موافق او د جمهور خلاف دې

د تحلل اصغر باره كښې دا حديث الباب د مالكيه موافق دې او د حنفيه بلكه د جمهورو خلاف دې جواب دا دې چې دا حديث په مسند احمد او بيهقى كښې هم شته په هغې كښې هم حلق مذكوردې اذا رميتم وحلقتم فقدحل لكم كل شئ الاالنساء فزال الاشكال بحمد الله تعالى

## بَابُ الْحَلْقِ وَالتَّقْصِيرِ

**باب:(په حج كښې) د سر خرنيلو يا دكمولو بيان**

## په حج كښې د سر خرئيلو حكم

حلق يا تقصير د شافعيه په نزد د حج په اركانو كښې دى د هغوى په كتابونو كښې ليكلې شوې دى چې ترڅو محرم حلق نهٔ وى كړې نو د احرام د حكم نه به خارج نهٔ وى هميشه دپاره به محرم وى او د باقى ائمه ثلثه په نزد په واجباتو كښې دې

(١): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٧٩٢٦)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٤٣/٦)(صحيح)

## يو بله اختلافي مسئله

دلته يو اختلافي مسئله دا ده چې حلق په مناسکو کښې دې استباحة محظور دې يعنی حلق د يو عبادت او کارِ ثواب کيدو په حيثيت سره کولې شی يا دا چې يو مباح کار کول دی چې د احرام په وجه سره محظور او ممنوع شوې وو (اظهار تحلل) امام بخاری رحمه الله يو باب قائم کړې دې باب الحلق والتقصير عندالاحلال حافظ ابن حجر صاحب فرمائی چې امام بخاري صاحب اشاره اوفرمائيله چې حلق نسک دې صرف د تحلل نوم نهٔ دې په دې وجه ئې عندالاحلال اوفرمائيلو.

[١٩٧٩] (١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "اللَّهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَالْمُقَصِّرِينَ؟ قَالَ: "اللَّهُمَّ ارْحَمِ الْمُحَلِّقِينَ"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَالْمُقَصِّرِينَ؟ قَالَ: "وَالْمُقَصِّرِينَ".

دعبدالله بن عمر رضی الله عنه نه روايت دې چه رسول الله ﷺ اوفرمائيل اې الله په سر خرئيلووالا باندې رحم اوکړې صحابه کرامو اوفرمائيل اې دالله رسوله اودسرکمولو والا دپاره هم (دعا اوفرمائې) نبی عليه السلام اوفرمائيل اې الله په سرخرئيلو والا باندې رحم اوکړې صحابه کرامو اوفرمائيل اې دالله رسوله دسر په کمولو والا باندې هم بياهغه اوفرمائيل اودويښتانو په کمولو والاباندې هم رحم اوکړې.

بله دا چه حلق غوره دې د تقصير نه په دې وجه نبی عليه السلام د محلقين دپاره بار بار دعاء مغفرت اوغوښتله او د مقصرينو دپاره ئې يو ځل هغه هم د صحابه کرامو په درخواست باندې، او د ښځې په حق کښې خو تقصير متعين دې حلق د هغې دپاره حرام او مُثله ده

## د سر د حلق مقدار

يو مسئله دلته دا ده چې د حلقِ راس څومره مقدار واجب دې په دې کښې د مذاهب ائمه خلاصه دا ده چې کوم مذاهب په اودس کښې د مسح راس دی نو هغه دلته هم دی يعنی د حنفيه په نزد د سر څلورمې حصې حلق کولو سره به واجب ادا شی اگرچه داسې کول مکروه تحريمی دی ځکه چې دا قزع ده چې ممنوع ده لکه څنگه چې په کتاب اللباس کښې راروان دی او د شافعيه په نزد به دريو ويختو کټ کولو سره واجب ادا شی او د امام مالک و احمد په نزد استيعاب راس ضروری دې ليکن په دې مسئله کښې ملا علی قاری رحمه الله د حنفيه په مسلک باندې بحث او نقد کړېدې او د مالکيه و حنابله مسلک ته ئې ترجيح ورکړې ده ځکه چې د حضور عليه السلام او د صحابه کرامو نه په حلقِ بعض باندې اکتفا کول ثابت نهٔ دی او نبی عليه السلام فرمائيلې دی خذوا عنی مناسککم وهو مختار الشيخ ابن الهمام، واجاب عنه الشيخ فی البذل فارجع اليه لو شئت

(١): صحيح البخاري/الحج ١٤٧(١٧٢٧)، صحيح مسلم/الحج ٥٥(١٣٠١)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧١(٣٠٤٣)، (تحفة الأشراف: ٧٩٤٧، ١٨٣٥٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٤٧(٩١٣)، موطا امام مالك/الحج ٦٠(١٨٤)، مسند احمد(٢/٣٤، ٧٩، ١٣٨، ١٥١)، سنن الدارمي/المناسك ٦٤(١٩٤٧)(صحيح)

[۱۹۸۰]([1]) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ يَعْنِي الْإِسْكَنْدَرَانِيَّ، عَنْ مُوسَى بْنِ عُقْبَةَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "حَلَقَ رَأْسَهُ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ".

د ابن عمرنه منقول دي چه رسول الله الوداع په موقع باندې خپل سر خرئيلي وو.

[۱۹۸۱]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا حَفْصٌ، عَنْ هِشَامٍ، عَنِ ابْنِ سِيرِينَ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "رَمَى جَمْرَةَ الْعَقَبَةِ يَوْمَ النَّحْرِ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَى مَنْزِلِهِ بِمِنًى فَدَعَا بِذِبْحٍ فَذُبِحَ، ثُمَّ دَعَا بِالْحَلَّاقِ فَأَخَذَ بِشِقِّ رَأْسِهِ الْأَيْمَنِ فَحَلَقَهُ فَجَعَلَ يَقْسِمُ بَيْنَ مَنْ يَلِيهِ الشَّعْرَةَ وَالشَّعْرَتَيْنِ، ثُمَّ أَخَذَ بِشِقِّ رَأْسِهِ الْأَيْسَرِ فَحَلَقَهُ، ثُمَّ قَالَ: هَا هُنَا أَبُو طَلْحَةَ، فَدَفَعَهُ إِلَى أَبِي طَلْحَةَ".

دانس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام دلوي اختر په ورځ باندې جمره عقبه وويشتله اوبيانبي عليه السلام په منى کښې خپل قيامګاه ته واپس راغي اوخپله قرباني ئي را اوغوښتله اوذبحه ئي کړه اوبيائي هغه کسان را اوغوښتل چه سرونه ئي خريلي وو. اوبيائي سرخريلو والا را اوغوښتو اودخپل سر مخکنۍ حصه ئي وربادي او خريله اوبيا موجودوکسانو هغه ويښته په خپل مينځ کښې يويو او دوه دوه وويشل اوبيائي دخپل سر وروستنى حصه وخريله او بيائي اوفرمائيل چه ايادلته ابوطلحه موجود دي؟ اوټول ويخته ئي ابوطلحه رضي الله عنه ته ورکړل.

ثم دعا بالحلاق اسمه معمر بن عبدالله العدوى وقيل خراش بن اميه ليکن حافظ رحمه الله قول اول ته صحيح وئيلي دى او د خراش باره کښې وائى چې دوى په حديبيه کښې حلق کړې وو وراندې په روايت کښې دا دى چې نبي عليه السلام د سر مبارک د يو طرف ويختهٔ حاضرينو کښې تقسيم کړل او دويم طرف ئي حضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته ورکړل او د صحيح مسلم په يو روايت کښې د دوى په ځائې د ام سليم ذکر دي نو کيدې شي چې کله نبي عليه السلام حضرت ابوطلحه طلب کړو نو هغه وخت هغوى هلته حاضر نه وو په دې وجه نبي عليه السلام ام سليم ته ورکړل چې هغوى دا خپل خاوند ته اورسوى بله دا چه د صحيحينو روايات په دې باره کښې هم مختلف دى چې نبي عليه السلام د کوم طرف والا ويختهٔ مبارک تقسيم کړې وو او دکوم طرف هغه ئي حضرت ابوطلحه رضي الله عنه ته ورکړې وو د حافظ ابن قيم صاحب تحقيق دا دې چې د ښى طرف والا ويختهٔ مبارک ئي خو تقسيم کړل چې په هغې کښې د ابوطلحه حصه هم وه او د ګس طرف ويختهٔ ئي خالص ابوطلحه ته ورکړل والله اعلم

## د ويختو د تقسيمولو مصلحت

د ويختو د تقسيمولو باره کښې حضرت شيخ صاحب د علامه زرقانى نه نقل کړې دى انما قسم رسول الله صلى الله عليه وسلم شعره فى اصحابه ليکون برکة باقية بينهم وتذکرة لهم وکانه اشار بذلک الى اقتراب الاجل وخص اباطلحة بالقسمة التفاتاً الى هذا المعنى لانه هوالذى حفر قبره صلى

[1]: صحيح البخاري/المغازي ۷۸(۴۴۱۰)، صحيح مسلم/ الحج ۵۵(۱۳۰۴)، (تحفة الأشراف: ۸۴۵۴)، وقد أخرجه: (۲/۸۸، ۱۲۸)(صحيح)

[2]: صحيح مسلم/الحج ۵۶(۱۳۰۵)، سنن الترمذي/الحج ۷۳(۹۱۲)، سنن النسائي/ الكبرى/ الحج(۴۱۱۶)، (تحفة الأشراف: ۱۴۵۶)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الوضوء ۳۳(۱۷۱)، مسند احمد(۳/۱۱۱، ۲۰۸، ۲۱۴، ۲۵۶)(صحيح)

الله عليه وسلم ولحد له وبنى فيه اللبن يعنى ويخته مبارک نبي ﷺ ځکه تقسيم کړل دې دپاره چې د برکت يو ځيز صحابه کرامو سره وي او دغه شان د نبي ﷺ يو يادګار دوی سره وي نو په دې کښې د وفات د نزديکت طرفته هم اشاره اوشوه ځکه چې د يادګار مسئله خو د مرګ نه پس وي په ژوند کښې خو اصل ځيز مخامخ وي او د ابوطلحه خصوصيت چې يو طرف والا تول په توله دوی ته ورکړې شو په دې وجه کيدې شي چې نبي ﷺ سره متعلق آخري خدمت دوی اوکړو پس دنبي ﷺ دپاره لحد شريف هم دوی جوړ کړې وو[1] نو کيدې شي چې په نبي ﷺ باندې دا خبره د مخکښې نه په څه طريقې سره منکشف شوې وه.

[١٩٨٢] (٢) حَدَّثَنَا عُبَيْدُ بْنُ هِشَامٍ أَبُو نُعَيْمٍ الْحَلَبِيُّ، وَعَمْرُو بْنُ عُثْمَانَ الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ حَسَّانَ، بِإِسْنَادِهِ بِهَذَا، قَالَ فِيهِ: قَالَ لِلْحَالِقِ: "ابْدَأْ بِشِقِّيَ الْأَيْمَنِ فَاحْلِقْهُ".

سفيان دهشام بن حسان نه په خپل سند سره مذکوره روايت په شان روايت بيان کړې دې مګردې اضافي سره چه: سرخربونکی ته ئې ووئيل: چه په خي طرف باندې اول شروع وکړه او اوئې خروه.

[١٩٨٣] (٣) حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، أَخْبَرَنَا يَزِيدُ بْنُ زُرَيْعٍ، أَخْبَرَنَا خَالِدٌ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسْأَلُ يَوْمَ مِنًى، فَيَقُولُ: "لَا حَرَجَ، فَسَأَلَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: إِنِّي حَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ، قَالَ: اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ، قَالَ: إِنِّي أَمْسَيْتُ وَلَمْ أَرْمِ، قَالَ: ارْمِ وَلَا حَرَجَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې، فرمائي چه دنبي ﷺ نه به دمنى په ورځ باندې تپوسونه کيدل اوهغه به فرمائيل چه هيڅ حرج نشته نو په دې وخت کښې ترې يوکس تپوس وکړو ما د قرباني نه مخکښې سرخريلې دی نبي ﷺ ورته اوفرمائيل قرباني وکړه څه باك نشته، بيائې دوباره عرض وکړوچه ماپه داسې حال کښې ورځ تيره کړه چه دجمراتو رى مې نه ده کړې، نبي ﷺ ورته اوفرمائيل اوس رمى وکړه هيڅ باك نشته.

فقال انى حلقت قبل ان اذبح: د يوم النحر په څلورو کارونو کښې د ترتيب مسئله نزدې په يو باب کښې راروانه ده. انى امسيت ولم ارم.

## په رمى کښې تاخير کول جائز دی که نه؟

د يوم النحر په رمى کښې غوره دا ده چې د زوال نه مخکښې اوشي او که د نمر پريوتلو نه مخکښې اوشي نو بيا هم څۀ حرج نشته البته خلاف اولى ده البته که شپه شوه نو بيا

[1]) دحديث په کتابونو کښې راځي چه دحضورپاك ﷺ د قبر شريف په باره کښې د صحابوْ اختلاف شو چه څنګه جوړ کړې شي، شق او که لحد، فيصله دا اوشوه چه دواړو سړو ته قاصد اوليږلې شي کوم چه په هغوی کښې مخکښې راشي هغسې به جوړولې شي، ابوطلحه به لحد جوړولو، هغه لاحد وو، او ابوعبيده ابن الجراح شقاق وو، هغه به شق جوړولو، نو ابوطلحه مخکښې راورسيدلو په دې وجه لحد جوړ کړې شو، اوهميشه دپاره ددې سعادت سهرا دهغوی په سر شوه.

[2]): انظر ما قبله، ( تحفة الأشراف: ١٤٥٦)(صحيح)

[3]): صحيح البخاري/العلم ٢٤(٨٤)، والحج ١٢٥(١٧٢٣)، ١٣٠(١٧٣٥)، والأيمان ١٥(٦٦٦٦)، سنن النسائي/الحج ٢٢٤(٣٠٦٩)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٤(٣٠٥٠)، ( تحفة الأشراف: ٦٠٤٧)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ٥٧(١٣٠٧)، مسند احمد(١/٢١٦، ٢٥٨، ٢٦٩، ٢٩١، ٣٠٠، ٣١١، ٣٢٨)(صحيح)

اختلاف دې د امام مالک يو روايت دا دې چې دم به واجب شي ثوري وائي چې که قصداً ئې داسې اوکړل نو بيا دم واجب دې ورنه نۀ دې زمونږ په نزد صبح صادق پورې کولې شي که د دې نه پس ئې اوکړه نو د امام صاحب په نزد به دم واجب شي د صاحبينو او د شافعيه و حنابله په نزد دم نۀ واجبيږي اصل اختلاف په دې کښې دې د امام صاحب او امام مالک صاحب په نزد د هرې ورځ رمي هغې ورځ سره مؤقت يعنې خاص ده د شافعيه وحنابله او صاحبينو په نزد مؤقت نۀ ده بلکه آخري ورځو پورې رمي کولې شي كما تقدم قريباً

[١٩٨٤]( ) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ الْعَتَكِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَكْرٍ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، قَالَ: بَلَغَنِي عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ بْنِ عُثْمَانَ، قَالَتْ: أَخْبَرَتْنِي أُمُّ عُثْمَانَ بِنْتُ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ حَلْقٌ، إِنَّمَا عَلَى النِّسَاءِ التَّقْصِيرُ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: لازم نه دی په ښځو باندې سرونه خريل ليکن لازم دی په دوی باندې ويخته لنډول.

[١٩٨٥]( ) حَدَّثَنَا أَبُو يَعْقُوبَ الْبَغْدَادِيُّ ثِقَةٌ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عَبْدِ الْحَمِيدِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ شَيْبَةَ، عَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، قَالَتْ: أَخْبَرَتْنِي أُمُّ عُثْمَانَ بِنْتُ أَبِي سُفْيَانَ، أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَيْسَ عَلَى النِّسَاءِ الْحَلْقُ، إِنَّمَا عَلَى النِّسَاءِ التَّقْصِيرُ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي: لازم نه دی په ښځو باندې سرونه خريل ليکن لازم دی په دوی باندې ويخته لنډول.

## بَابُ الْعُمْرَةِ

### بابه د عمرې د احکامو بيان

### عمرې سره متعلق بعضې فقهي مسائل

دا مخکښې تير شو چې عمرې ته حج اصغر وئيلې شي د عمرې لغوی معنی ده زيارت کول او شريعت کښې د بيت الحرام زيارت کول د طواف او سعی دپاره په عمره کښې دوه فرض دی او دوه واجب احرام او طواف د بيت الله شريف فرض دی او سعی او حلق واجب دی وهذا عندنا يعنې دا زمونږ په نزد او د شافعيه په نزد د عمرې ارکان څلور دی نيت کول، طواف کول، سعی او حلق يا تقصير کول او احرام په واجباتو کښې دې عمره د شافعيه و حنابله د مشهور قول مطابق فرض عين ده د حج په شان د شافعيه او حنابله په کتابونو کښې د دې خبرې وضاحت او صراحت شته هسې يو روايت د دوی دواړو په نزد د عدم وجوب هم دې د مالکيه په نزد سنت مؤکد ده د حنفيه په نزد دوه اقوال دی د سنت کيدو اود واجب کيدو بعضې فقهاؤ (کصاحب البحر) سنت کيدو ته ترجيح ورکړې ده وقال هو ظاهر الرواية او بعضو (کصاحب البدائع و قاضي خان) وجوب ته ترجيح ورکړې ده ليکن د فرضيت هيڅ يو قول زمونږ په نزد نشته چې څوک د فرضيت قائل دی نو د هغوی استدلال د اتموالحج والعمرة

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٥٧٦)، وقد أخرجه: سنن الدارمي /المناسك ٦٣ (١٩٤٦) (صحيح)
[2]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٥٧٦) (صحيح)

لله ايت نه دې د دې نه علاوه بعضې ضعيف احاديثو نه چې په هغې کښې د فرضيت تصريح ده حالانکه د ضعيف احاديثو نه د فرضيت ثبوت مشکل دې دغه شان استدلال په آيت سره هم مخدوش دې اذ لا يلزم من وجوب الاتمام وجوب الابتداء د سنت قائلين وائي هغه احاديث مشهوره چې په کوم کښې د اسلام فرائض شمار کړې شوې دی مثل بنی الاسلام علی خمس وغيره کښې د حج سره عمره مذکور نۀ ده (اوجز)

د عمره احرام به د آفاقی دپاره د ميقات د حج نه وی او د حلی دپاره به د حل نه وی او چې کوم کس په مکه مکرمه کښې وی يا په حرم کښې داخل وی نو هغۀ دپاره حل سره نزدې، دې دپاره چې جمع بين الحل والحرم[1] اوموندلې شی لکه څنګه چې نبی عليه السلام بی بی عائشه رضي الله عنها د محصب (چې د حرم شريف په حد کښې دې) نه احرام دپاره تنعيم ته ليږلې وه دغه شان د عمرې دپاره څه وخت هم متعين نۀ دې پوره کال کښې کيدې شی صرف پنځو ورځو کښې کول مکروه دی د نهمی ذی الحجه نه د ايام تشريق آخره پورې (يعنی ديارلسمه ذی الحجه)

[١٩٨٦](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مَخْلَدُ بْنُ يَزِيدَ، وَيَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا، عَنْ ابْنِ جُرَيْجٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ بْنِ خَالِدٍ، عَنْ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: "اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ يَحُجَّ".

ابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام دحج نه مخکښې عمره وکړله.

اعتمر رسول الله صلى الله عليه وسلم قبل ان يحج دا حديث شريف دلته مختصر دې پوره حديث شريف په مسند احمد کښې دې هغه دا چې يو سړی د ابن عمر رضي الله عنه نه سوال اوکړو چې ما اوسه پورې حج نۀ دې کړې نو آيا د حج نه مخکښې عمره کولې شم په دې باندې هغوی دا اوفرمائيل چې کوم څه دلته مذکوردی ياد ساتئ چې د باب الاقران نه وړاندې يو حديث تير شوې دې چې يو سړې د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې اوکړو چې ما د نبی عليه السلام نه په مرض الوفات کښې اوريدلې دی ينهی عن العمرة قبل الحج، چې د حج نه مخکښې عمره کولو نه به ئې منع فرمائيله په دې باندې هلته کلام تير شوې دې

[١٩٨٧](٣) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، عَنْ ابْنِ أَبِي زَائِدَةَ، حَدَّثَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، وَمُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "وَاللَّهِ مَا أَعْمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَائِشَةَ فِي ذِي الْحِجَّةِ إِلَّا لِيَقْطَعَ بِذَلِكَ أَمْرَ أَهْلِ الشِّرْكِ، فَإِنَّ هَذَا الْحَيَّ مِنْ قُرَيْشٍ وَمَنْ دَانَ دِينَهُمْ كَانُوا يَقُولُونَ: إِذَا عَفَا الْوَبَرْ وَبَرَأَ الدَّبَرْ وَدَخَلَ صَفَرْ فَقَدْ حَلَّتِ الْعُمْرَةُ لِمَنِ اعْتَمَرْ، فَكَانُوا يُحَرِّمُونَ الْعُمْرَةَ حَتَّى يَنْسَلِخَ ذُو الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمُ

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه په الله قسم نبی عليه السلام په ذی الحجه کښې په عائشه رضي الله عنها باندې عمره نه وه کړې مګر ددې دپاره چه دمشرکانو رسم مات شی څکه چه

---

[1] اوحج چونکه په عرفات کښې کيږی کوم چه خارج دې دحرم نه او حل دې، په دې وجه مکی دحج احرام دحرم نه تړی چه جمع بين الحل والحرم اوشي.

[2]: صحيح البخاري/العمرة ٢(١٧٧٤)، (تحفة الأشراف: ٧٣٤٥)(صحيح)

[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٥٧٢٢)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ٣٤(١٥٦٤)، ومناقب الأنصار ٢٦(٣٨٣٢)، صحيح مسلم/الحج ٣١(١٢٤٠)، سنن النسائي/الحج ٧٧(٢٨١٦)، ١٠٨(٢٨٧٠)، مسند احمد(٢٥٢/١، ٢٦١)(حسن)

قریشیان او کوم خلق چه ددوی په طریقه روان وو · وئیل به ئي چه عمره کول په هغه وخت کښې درست کوی کله چه داوښ وېښته لوی شي اوداوښ دخیټې و زخم جوړ شي اوصفری میاشت شروع شي (مطلب و دادې چه دحرمت په میاشتو کښې ئي عمره کول ناجائز ګڼړل اوداچه عمره کول ئي حرام ګڼړل ترڅوچه دذی الحجی اومحرم میاشت نه وی تیره شوې)

كانوا يقولون اذا عفا الوبر[1] وبر (دا مضمون زمونږ په نزد د دې نه مخکښې غالباً د فسخ الحج الى العمره په بحث کښې تیر شوې دې) د دې جملو ترجمه دا ده چې کله د اوښانو د شا ویختهٔ غټ شي او د هغوی د شاګانو (ملاګانو) زخمونه صحیح شي (چې د حج په زمانه کښې د سفر د ډیروالي په وجه د هغوی په شاګانو کښې پیدا شوې وو) او د صفر میاشت داخل شي نو اوس د عمره کونکي دپاره عمره کول حلال او جائز کیږي

**تنبیه**: د صحیحینو په روایت کښې د دخل صفر په ځائې انسلخ صفر دې یعني چې کله د صفر میاشت تیره شي او دلته دی دخل صفر جواب دا دې چې په ابوداؤد کښې د صفر نه مراد اصلی صفر دې او د صحیحینو په روایت کښې د صفر نه مراد نسئ والا صفر دې لکه څنګه چې راځي يجعلون المحرم صفراً لهذا هلته د صفر نه مراد محرم دې په دې وجه یوځائ کښې اووئیلې شو انسلاخ محرم او بل ځائې کښې اووئیلې شو دخول صفر نو د یو بل موافق شو اوس وړاندې مصنف د یو صحابیه قصه نقل کوی چې هغې ته ام معقل وئیلې شی چې په هغې کښې د رمضان المبارک د عمرې فضیلت مذکور دې

[١٩٨٨] ([2]) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، أَخْبَرَنِي رَسُولُ مَرْوَانَ الَّذِي أُرْسِلَ إِلَى أُمِّ مَعْقِلٍ، قَالَتْ: كَانَ أَبُو مَعْقِلٍ حَاجًّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا قَدِمَ، قَالَتْ أُمُّ مَعْقِلٍ: قَدْ عَلِمْتَ أَنَّ عَلَيَّ حَجَّةً فَانْطَلَقَا يَمْشِيَانِ حَتَّى دَخَلَا عَلَيْهِ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ عَلَيَّ حَجَّةً وَإِنَّ لِأَبِي مَعْقِلٍ بَكْرًا، قَالَ أَبُو مَعْقِلٍ: صَدَقَتْ جَعَلْتُهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَعْطِهَا فَلْتَحُجَّ عَلَيْهِ فَإِنَّهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ"، فَأَعْطَاهَا الْبَكْرَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي امْرَأَةٌ قَدْ كَبِرْتُ وَسَقِمْتُ، فَهَلْ مِنْ عَمَلٍ يُجْزِئُ عَنِّي مِنْ حَجَّتِي؟ قَالَ: "عُمْرَةٌ فِي رَمَضَانَ تُجْزِئُ حَجَّةً".

د ابوبکر بن عبد الرحمن رحمه الله نه روایت تی دي فرمائی چه ماته دمروان پیغام وړونکی خبر راکړې دې کوم چه دام معقل خواته تلې وو هغه دام معقل نه نقل کړی دی چه ابومعقل دنبی عليه السلام سره دحج کولو اراده وکړه هرکله چه کورته راغې ام معقل ورته ووئیل چه آیا تاته معلومه ده چه په ما باندې حج فرض شوې دې؟ نودواړه نبی عليه السلام ته روان شول تردې چه وررورسیدل ام معقل اووئیل اې دالله رسوله په ما باندې حج فرض شوې به دې اودابومعقل سره صرف یو اوښ دې ابومعقل تو اووئیل دی ریښتیا اووئیل اوهغه اوښ مې دالله په لار کښې وقف کړې دې نبی عليه السلام اوفرمائیل دې ته ئې ورکړه چه داپری حج ته لاړه شي ځکه چه

---

[1]) قال النووي وهذه الالفاظ تقرأ ساكنة الراء لارادة السبجع.اه.

[2]): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف: ١٨٣٥٩)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الحج ٩٥(٩٣٩)، سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤٢٢٧)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤٥(٢٩٩٣)، مسند احمد(٤٠٥/٦، ٤٠٦)(حسن)

هغه فی سبیل الله دي، ابومعقل ورته اوښ ورکړو ام معقل بیا عرض اوکړو اې د الله رسوله زه بوډۍ شوی یم او مریضه هم یم ایا کوم داسې عمل شته زما دپاره دحج بدل جوړ شی؟ نبی ﷺ اوفرمائیل په رمضان کښې عمره کول دحج بدل جوړیدلې شي.

اخبرنی رسول مروان الذی ارسل الی ام معقل قالت مروان چې کوم قاصدام معقل ته لیږلې وو ( د هغوی د حج د قصې د تپوس کولو دپاره) هغهٔ ماته خبر راکړو د هغې مضمون چې وړاندې روایت کښې راځی

**تشریح: قوله:** قالت کان ابومعقلٍ حاجاً مع رسول الله صلی الله علیه وسلم ...الخ:

## د رمضان المبارک د عمرې سره متعلق د ام معقل رضی الله عنها قصه او دغه شان نورې قصې

ام معقل رضی الله عنها خپله قصه داسې بیان کړه چې ماته دا خبره معلومه شوه چې زما د خاوند ابومعقل رضی الله عنه اراده نبی ﷺ سره د حج کولو ده نو کله چې هغوی کور ته راغلل نو ما ورته اووې چې تاسو ته دا خبره معلومه ده چې په ما باندې حج فرض دي (لهذا ما هم ځان سره بوځه) بیا د ا دواړه (ابومعقل او ام معقل) نبی ﷺ ته ورغلل هلته چې لاړل نو ام معقل نبی ﷺ ته عرض اوکړو چې یا رسول الله! په ما باندې حج واجب دي او ابومعقل سره یو ځوان اوښ دې ( چې په هغې باندې زهٔ حج ته تلې شم) په دې باندې ابومعقل اووې بیشکه ام معقل رښتیا وائی لیکن ما خو هغه اوښ د جهاد فی سبیل الله دپاره وقف کړې دې د دې په اوریدلو سره نبی ﷺ اوفرمائیل اې ابومعقل! هغه اوښ تهٔ دې ته ورکړه حج هم فی سبیل الله دې نو هغوی هغه اوښ ام معقل ته ورکړو (لیکن کله چې د سورلۍ انتظام اوشو) نو وې وئیل یا رسول الله ! زهٔ بوډې شوې یم او بیماره هم یم نو آیا یو بل عمل داسې شته چې د حج بدل جوړ شی نبی ﷺ اوفرمائیل عمرة فی رمضان تعدل حجةً یعنی په رمضان المبارک کښې یو عمره کول د حج برابر ده په دې حدیث مبارک کښې په رمضان المبارک کښې د عمرې کولو ډیر لوې فضیلت بیان کړې شوې دې یعنی چې دغه عمره د حج برابر ده او په دویم طریق کښې دا دی چې هغه عمره ماسره د حج کولو برابر ده یعنی د ثواب او فضیلت په لحاظ سره او دا مطلب نهٔ دې چې د رمضان المبارک عمره د فرض حج قائم مقام کیږی په دې وجه د علماؤ په دې باندې اجماع ده چې د رمضان المبارک په عمرې سره حج نهٔ ساقطیږی امام ترمذی صاحب رحمه الله فرمائی دا هم داسې ده لکه څنګه چې په حدیث شریف کښې راځی قل هو الله تعدل ثلث القرآن امام بخاری صاحب په دې حدیث باندې مستقل ترجمة الباب قائم کړیدې باب فی عمرة رمضان لیکن چې کومه قصه ئې ذکر کړې ده هغه د دې نه مختلف ده د بخاری په یو روایت کښې خو داسې دی چې نبی ﷺ یو انصاری ښځې ته اوفرمائیل او په یو روایت کښې دا دی چې نبی ﷺ ام سنان ته اوفرمائیل چې تهٔ مونږ سره حج ته ولې لانهٔ رې هغوی عرض اوکړو چې مونږ سره دوه اوښان وو په یو باندې خو زما خاوند او ځوې حج ته لاړل او دویم اوښ چې وو نو هغه د پټی د اوبهٔ خور دپاره وو په

دې وجه زۀ تاسو سره حج ته لاړنۀ شم په دې باندې نبي ﷺ اوفرمائیل چې کله درمضان المبارک میاشت راشي نو په هغې کښې عمره اوکړه فان عمرة فی رمضان حجة ا ه په صحیح مسلم کښې هم دا روایت دغه شان دې امام بخاري دا قصه او حدیث دوه ځایونو کښې ذکر کړېدې یو ځائې کښې خو ئې په دې باندې باب فی عمرة رمضان او دویم ځائې کښې باب حج النساء قائم کړې دې ګویا په رمضان المبارک کښې عمره کول د ښځو حج کول دی

د دې نه پس ځان پوهول پکار دی چې امام ابوداؤد اول خو دا قصه په خپله د ام معقل په روایت بیان کړې ده د دې نه پس ئې د ابن عباس رضی الله عنهما په روایت بیان کړېده لیکن په هغې کښې د ام معقل د نوم وضاحت نشته مطلق امرأة یعنی ښځه مذکور ده او په صحیحینو کښې هم دا روایت د ابن عباس په روایت سره دې لیکن د صحیحینو او د ابوداؤد په سیاق کښې فرق دې کما تری دغه شان حافظ په فتح الباری جلد ۳ صفحه ۴۸۰ کښې داسې قسم څو قصې ذکر کړې دی د حدیث د نورو کتابونو نه په بعضو کښې د قصې نسبت ام سلیم طرفته کړې شوې دې او په بعضو کښې د ام طلیق طرفته دغه شان هغوی د ابوداؤد او نسائي حواله ورکولو سره د ام معقل دا قصه هم نقل کړې ده حافظ صاحب فرمائي ظاهره دا ده چې دا قصې جدا جدا او مستقل دی والله تعالی اعلم بله دا چې مصنف د ام معقل قصه د نوم په تصریح او وضاحت سره په دواړو طریقو سره ذکر کړې ده لیکن د دواړو طریقو سیاق بظاهر مختلف دې او د توجیه او د تاویل محتاج دی

[۱۹۸۹] (١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ الطَّائِيُّ، حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ خَالِدٍ الْوَهْبِيُّ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ عِيسَى بْنِ مَعْقِلِ بْنِ أُمِّ مَعْقِلٍ الْأَسَدِيِّ أَسَدِ خُزَيْمَةَ، حَدَّثَنِي يُوسُفُ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَلَامٍ، عَنْ جَدَّتِهِ أُمِّ مَعْقِلٍ، قَالَتْ: "لَمَّا حَجَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّةَ الْوَدَاعِ وَكَانَ لَنَا جَمَلٌ فَجَعَلَهُ أَبُو مَعْقِلٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَأَصَابَنَا مَرَضٌ وَهَلَكَ أَبُو مَعْقِلٍ وَخَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا فَرَغَ مِنْ حَجِّهِ جِئْتُهُ، فَقَالَ: يَا أُمَّ مَعْقِلٍ، مَا مَنَعَكِ أَنْ تَخْرُجِي مَعَنَا؟ قَالَتْ: لَقَدْ تَهَيَّأْنَا فَهَلَكَ أَبُو مَعْقِلٍ وَكَانَ لَنَا جَمَلٌ هُوَ الَّذِي نَحُجُّ عَلَيْهِ فَأَوْصَى بِهِ أَبُو مَعْقِلٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَالَ: فَهَلَّا خَرَجْتِ عَلَيْهِ، فَإِنَّ الْحَجَّ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَأَمَّا إِذْ فَاتَتْكِ هَذِهِ الْحَجَّةُ مَعَنَا فَاعْتَمِرِي فِي رَمَضَانَ، فَإِنَّهَا كَحَجَّةٍ، فَكَانَتْ تَقُولُ: الْحَجُّ حَجَّةٌ وَالْعُمْرَةُ عُمْرَةٌ، وَقَدْ قَالَ هَذَا لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، مَا أَدْرِي أَلِيَ خَاصَّةً".

د ام معقل رضی الله عنها نه روایت دې فرمائي هرکله چه نبي ﷺ حجة الوداع وکړو اوزمونږ یو اوښ وو ابومعقل دالله په لارکښې وقف کړې وو او مونږ بیماران شوی وو او مرګ ته نزدې شوی وو په دې وخت کښې ابومعقل وفات شو اونبي ﷺ حج ته لاړو هرکله چه دحج نه واپس راغې ماته ئې اووئیل اې ام معقل زمونږ سره په څه وجه باندې حج ته نه وی تلې؟ ام معقل اووئیل ماخودحج دپاره ځان تیارکړې وو خو ابومعقل مړشو او زمونږ سره صرف یو اوښ وو په کوم باندې چه به مونږه دحج په وخت کښې سورلی کوله ابومعقل دمرکیدو په وخت کښې وصیت اوکړو چه دادی دالله په لارکښې وقف شي نبي ﷺ اوفرمائیل په دغه اوښ باندې سوره حج ته ولې لانړې؟ ځکه چه حج هم فی سبیل الله دې خیر حج خودرنه فوت شو خو دنورو خلقوسره په رمضان کښې عمره وکړه ځکه چه په رمضان کښې عمره دحج

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١١٨٥٧، ١٨٣٦١)(صحیح لغیره)

برابروي، أم معقل به ونيل حج خوحج وي اوعمره، عمره وي(يعني په دواړه کښې فرق دې) ليکن نبي ﷺ چه داحکم کړې وو ماته معلومه نه ده چه داصرف زمادپاره خاص وو اوکه د ټولو مسلمانانو دپاره عام وو.

[١٩٩٠](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَحَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ عَامِرٍ الْأَحْوَلِ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: أَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَجَّ، فَقَالَتِ امْرَأَةٌ لِزَوْجِهَا: أَحِجَّنِي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى جَمَلِكَ، فَقَالَ: مَا عِنْدِي مَا أُحِجُّكِ عَلَيْهِ، قَالَتْ: أَحِجَّنِي عَلَى جَمَلِكَ فُلَانٍ، قَالَ: ذَاكَ حَبِيسٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ، فَأَتَى رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ امْرَأَتِي تَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلَامَ وَرَحْمَةَ اللَّهِ وَإِنَّهَا سَأَلَتْنِي الْحَجَّ مَعَكَ، قَالَتْ: أَحِجَّنِي مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: مَا عِنْدِي مَا أُحِجُّكِ عَلَيْهِ، فَقَالَتْ: أَحِجَّنِي عَلَى جَمَلِكَ فُلَانٍ، فَقُلْتُ: ذَاكَ حَبِيسٌ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، فَقَالَ: أَمَا إِنَّكَ لَوْ أَحْجَجْتَهَا عَلَيْهِ كَانَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَالَ: وَإِنَّهَا أَمَرَتْنِي أَنْ أَسْأَلَكَ مَا يَعْدِلُ حَجَّةً مَعَكَ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَقْرِئْهَا السَّلَامَ وَرَحْمَةَ اللَّهِ وَبَرَكَاتِهِ وَأَخْبِرْهَا أَنَّهَا تَعْدِلُ حَجَّةً مَعِي يَعْنِي عُمْرَةً فِي رَمَضَانَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي کله چه نبي ﷺ دحج اراده اوکړه نويوې ښځې خپل خاوند ته اووئيل ماهم دنبي ﷺ سره حج کولوته پريږده ستاپه هغه اوښ باندې، خاوند ورته اووئيل زماسره دسورلۍ دپاره څه نشته چه ته پرې حج اوکړې هغې اووئيل ستاپه دې اوښ باندې چه فلانې دې، خاوند ئې اووئيل هغه دالله په ليه لارکښې بندکړې شوې دې او په دې وخت کښې به دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شو سول اوعرض ئې اوکړو چه زمابښځه په تاباندې سلام وائي اوهغې زمانه ستاسره دحج کولو اجازت غوښتلې دې دن ماورته اووئيل زماسره دحج دپاره دسورلۍ انتظام نشته هغې راته اووئيل ستاپه دې فلانې اوښ باندې ما ورته اووئيل هغه دالله په لار کښې بنددې، نبي ﷺ ورته په جواب کښې اوفرمائيل که چرې په دې اوښ باندې دې حج کړې وې نودا به هم فی حمة سبيل الله وې ابو معقل اووئيل هغې ماته داحکم کړې دې چه دهغې دپاره ستانه تپوس اوکړم چه آيا کوم بل عمل داسې شته چه دحج برابروي نبي ﷺ اوفرمائيل زماسلام ورته اووايه اودالله تعالى رحمتونه اوبرکتونه دې وي په هغې باندې اوخبر ورته ورکړه چه په رمضان کښې عمره کول زماسره دحج کولو برابر دې.

**تشريح: قوله:** فقلت ما عندي ما احجک عليه قالت احجني على جملک فلان ما اووې ماسره داسې سورلۍ نشته چې په تا باندې پرې حج اوکړم هغوی اووئيل چې په ما باندې په فلانی اوښ باندې حج اوکړه

[١٩٩١](٢) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اعْتَمَرَ عُمْرَتَيْنِ: عُمْرَةً فِي ذِي الْقِعْدَةِ، وَعُمْرَةً فِي شَوَّالٍ".

د ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې يقه فرمائي چه نبي ﷺ دوه عمرې وکړلې يوه عمره

---

[1]: تفرد به أبو داود( تحفة الأشراف: ٥٣٧٤)، وقد أخرجه:(صحيح البخاري/العمرة ٤(١٧٨٢)، صحيح مسلم/الحج ٣٦(٢٢١) بدون ذكر: »أن الحج في سبيل الله«"(حسن صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٦٨٨٩)(صحيح)

په ذي القعدة مياشت کښې اوبله په شوال مياشت کښې.

**تشريح: قوله:** اعتمر عمرتين عمرة في ذي قعده وعمرة في شوال :

په دې روايت کښې دا دي چې نبي ﷺ دوه عمرې اوکړې يو په ذي قعده کښې او دويمه په شوال کښې .

## د نبي عليه السلام د عمرو تعداد او د هغې اجمالي بيان

څان پوهول پکار دي چې په ډيرو او مشهورو روايتونو کښې دا دي چې نبي ﷺ څلور عمرې کړې دي(١) عمرة الحديبيه ٦ هجري کښې(٢) عمرة القضاء په ٧ هجري کښې(٣) عمرة الجعرانه ٨ هجري کښې(٤) هغه عمره چې نبي ﷺ حج سره اوکړه څکه چې د نبي ﷺ حج حج قران وو په دې څلورو کښې اولنۍ يعنې عمرة الحديبيه عمره حکمي ده حقيقي نه ده څکه چې په دې کښې نبي ﷺ ته احصار واقع شوې وو د کفار مکه له طرفه چې په هغې کال باندې نبي ﷺ عمره نه وه کړې شوې ليکن چونکه احرام ئې هم تړلې وو او د هدى قرباني هم په حديبيه کښې ئې کړې وه دويم دا چې د عمرې ئې پخه اراده وه په دې وجه دا هم په عمره کښې شمارلې شي

په دويمه دې خبره بأندې هم څآن پوهه کړئ چې د نبي ﷺ دا ټولې عمرې په ذي قعده کښې شوې دي ليکن په دې حديث کښې حضرت عائشه ﷺ صرف دوه عمرې بيانوي او دې سره دا هم فرمائي چې په دې کښې يو په شوال کښې اوشوه لهذا دلته دوه اشکاله شو يو په تعدا د کښې او دويمه د مياشت باره کښې جواب دا دې چې داسې معلوميږي چې حضرت عائشه ﷺ صرف عمرة القضاء او عمرة الجعرانه اخستلې دي عمرة الحديبيه ئې څکه پريخودله چې هغه عمره حکمي ده او د حج والا عمره ئې څکه پريخودله چې هغه د حج په ضمن کښې شوې وه او د عمره شوال نه مراد عمرة الجعرانه ده څکه چې د دې عمرې صورت دا شوې وو چې د فتح مکه نه پس د شوال په مياشت کښې نبي ﷺ د مکې مکرمې نه روان شو د غزوه حنين دپاره، بيا د دې غزوې نه فراغت نه پس چې کله د جعرانه مقام ته اورسيدل او هلته ئې د حنين غنيمتونه تقسيم کړل

### عمره جعرانه

نو چونکه د هغې څائې نه مکه مکرمه نزدې ده پيغمبر ﷺ مناسب اونۀ ګڼړل چې د عمرې کولو نه بغير د دې څائې نه سيدهه مدينې منورې ته روان شي([1]) په دې وجه د واپسۍ نه يو ورځ مخکښې د شپې نبي ﷺ د جعرانه نه د عمرې احرام اوتړلو او مکې مکرمې ته ئې تشريف راوړو په شپه کښې ئې د عمرې افعال ادا کړل د فراغت نه پس هغه وخت جعرانه ته واپس راغلل د سحر مونځ ئې دلته اوکړو چونکه د شپې په شروع کښې هم دوى په جعرانه کښې وو او بيا د سحر کيدو نه مخکښې جعرانې ته راؤرسيدل په دې وجه راوى وائي لکه

---

[1] يوقول په دې کښې دادې د حضورپاک ﷺ مقصود په اصل کښې عمره کول وو، چونکه اوس نزدې مکه فتح شوې وه په دې وجه هلته رسيدلو سره د فتح نه پس د حالاتو جائزه اخستل وو.

څنگه چې وراندې راغي فاصبح بالجعرانة كبائت (١) (سحر نبي عليه السلام په جعرانه کښې په دې طور سره چې گویا شپه ئې هم دلته تیره کړه، حالانکه پوره شپه ئې دلته نۀ وه تیره کړې بلکه هغه شپه خو په عمره کولو او مکې مکرمې ته په تللو کښې تیره شوه دې تفصیل سره زمونږ غرض دا دې چې د کوم سفر په ضمن کښې دا عمره اوشوه یعنې غزوه حنین د هغه سفر ابتداء د شوال په میاشت کښې شوې وه په دې وجه دې عمرې ته د شوال عمره وئیلې شی ورنه حقیقت کښې دا عمره هم د نبی عليه السلام د نورو عمرو په شان په ذی قعده کښې شوې وه

**فائده** : حضرت شيخ صاحب نورالله مرقده چې څنگه جزء حجة الوداع رساله تصنيف کړه دغه شان ئې د دې تکمله جزء العمرات هم تالیف کړې ده چې په هغې کښې د نبی عليه السلام د ټولو عمرو تفصیل مذکور دې په دغه رساله کښې ئې د عمره جعرانه بیان لیکلې دې چې چونکه دا عمره د شپې په وخت کښې شوې وه په دې وجه بعضې صحابه کرام د دې نه بې خبره پاتې شو لکه صحیح مسلم کښې د نافع نه روایت دې ذکر عند ابن عمر رضی الله تعالی عنه عمرة رسول الله صلى الله عليه وسلم من الجعرانة، فقال لم يعتمرمنها او په صحيح بخاری کښې داسې دی نافع رضي الله عنه فرمائی چې حضور عليه السلام هيڅ يو عمره د جعرانه نه نۀ ده کړې او که دا عمره پیغمبر عليه السلام کړې وې نو ابن عمر به ترینه خبر وو

[١٩٩٢](٢) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا أَبُو إِسْحَاقَ، عَنْ مُجَاهِدٍ، قَالَ: "سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ كَمْ اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ: مَرَّتَيْنِ"، فَقَالَتْ عَائِشَةُ: "لَقَدْ عَلِمَ ابْنُ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ اعْتَمَرَ ثَلَاثًا، سِوَى الَّتِي قَرَنَهَا بِحَجَّةِ الْوَدَاعِ".

د مجاهدنه روایت دې فرمائی چه دعبدالله بن از عمر رضي الله عنهما نه تپوس اوکړې شو چه نبی عليه السلام څو عمری کړی وی هغه اوفرمائیل: درې عمرې علاوه دهغې نه چه په حجة الوداع کښې ئې کړی وه.

[١٩٩٣](٣) حَدَّثَنَا النُّفَيْلِيُّ، وَقُتَيْبَةُ، قَالَا: حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْعَطَّارُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "اعْتَمَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ عُمَرٍ: عُمْرَةَ الْحُدَيْبِيَةِ، وَالثَّانِيَةَ حِينَ تَوَاطَئُوا عَلَى عُمْرَةٍ مِنْ قَابِلٍ، وَالثَّالِثَةَ مِنَ الْجِعْرَانَةِ، وَالرَّابِعَةَ الَّتِي قَرَنَ مَعَ حَجَّتِهِ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دې فرمائی چه نبی عليه السلام څلور عمری کړی وی د یوه عمره دحدیبی دویمه دقضا عمره دریمه دجعرانه و مقام عمره اوڅلورمه هغه وه چه دخپل حج سره ئې کړی وه.

(١) صحيح هم دغه دی، لیکن د ابوداؤد شریف په روایت کښې ددې په ځای: فاصبح بمكة كبائت، دې كما سيأتي التنبيه عليه.

(٢): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٧٣٨٤، ١٧٥٧٤) (ضعيف)

(٣): سنن الترمذي/الحج ٧(٨١٦)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٠(٣٠٠٣)، (تحفة الأشراف: ٦١٦٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٢٤٦، ٣٢١)، سنن الدارمي/المناسك ٣٩(١٩٠٠) (صحيح)

[١٩٩٤]([1]) حَدَّثَنَا أَبُو الْوَلِيدِ الطَّيَالِسِيُّ، وَهُدْبَةُ بْنُ خَالِدٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "اعْتَمَرَ أَرْبَعَ عُمَرٍ: كُلُّهُنَّ فِي ذِي الْقِعْدَةِ إِلَّا الَّتِي مَعَ حَجَّتِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَتْقَنْتُ مِنْ هَاهُنَا مِنْ هُدْبَةَ، وَسَمِعْتُهُ مِنْ أَبِي الْوَلِيدِ، وَلَمْ أَضْبِطْهُ عُمْرَةً زَمَنَ الْحُدَيْبِيَةِ أَوْ مِنَ الْحُدَيْبِيَةِ وَعُمْرَةَ الْقَضَاءِ فِي ذِي الْقِعْدَةِ وَعُمْرَةً مِنَ الْجِعْرَانَةِ حَيْثُ قَسَمَ غَنَائِمَ حُنَيْنٍ فِي ذِي الْقِعْدَةِ وَعُمْرَةً مَعَ حَجَّتِهِ.

انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي - چه نبی عليه السلام څلور عمرې کړې وی ټولې په ذی القعده کی دی مګرعلاوه دهغې نه کومه چه ئې و دخپل حج سره کړې وه، امام ابوداود فرمائی ددې نه پس ماته دابو الوليد الفاظ ياد نه دی ليکن دخطبه الفاظ محفوظ نه دی چه هغه زمن الحديبية يا من الحديبية، دحديبی عمره اودجعرانی عمره دواړه نبی عليه السلام په ذی القعه کښې کړې وی، کله چه نبی عليه السلام دذی القعدة په میاشت کښې دحنين دغنيمت مال تقسيم کړو نو دنبی عليه السلام دحج سره يوه عمره وه.

## بَابُ الْمُهِلَّةِ بِالْعُمْرَةِ تَحِيضُ فَيُدْرِكُهَا الْحَجُّ فَتَنْقُضُ عُمْرَتَهَا وَتُهِلُّ بِالْحَجِّ هَلْ تَقْضِي عُمْرَتَهَا:

**باب: کومه زنانه چه دعمرې دپاره احرام وتړی او بيماری ئې راشی اودحج ورځې شروع شی نوعمره دې پريږدی اودحج دپاره دې احرام وتړی اوبيا دې دعمرې قضا راوړی**

[١٩٩٥]([2]) حَدَّثَنَا عَبْدُ الْأَعْلَى بْنُ حَمَّادٍ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُثْمَانَ بْنِ خُثَيْمٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ حَفْصَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ، عَنْ أَبِيهَا، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ لِعَبْدِ الرَّحْمَنِ: "يَا عَبْدَ الرَّحْمَنِ، أَرْدِفْ أُخْتَكَ عَائِشَةَ فَأَعْمِرْهَا مِنَ التَّنْعِيمِ فَإِذَا هَبَطْتَ بِهَا مِنَ الْأَكَمَةِ فَلْتُحْرِمْ فَإِنَّهَا عُمْرَةٌ مُتَقَبَّلَةٌ".

دحفصة بنت عبد الرحمن رضي الله عنها دخپل پلارنه روايت کوی فرمائی چه نبی عليه السلام ورته ووئيل چه اې عبد الرحمن! ته خپله خور عائشه په ځان پسی سوره کړه اوتنعيم ته ئې دعمرې دپاره بوځه کله چه کوز شئ اوتنعيم ته ورسئ نوورته اووايه چه احرام وتړه انشاء الله دا به قبوله کړې شوی عمره وي.

د حديث الباب تعلق د احرام عائشه رضي الله عنها سره دې چې د هغې تفصيل دلته مونږ سره د کتاب الحج په اوائلو کښې تير شوې دې چې د هغې خلاصه دا ده چې د حنفيه په نزد هغه مفرده وه او د جمهورو په نزد قارنه وه زمونږ په نزد هغوی رفض عمره کړې وه چې د هغې په قضاء کښې هغوی عمره تنعيم اوکړه

[1]: صحيح البخاري/العمرة ٣(١٧٧٨)، صحيح مسلم/الحج ٣٥(١٢٥٣)، سنن الترمذي/الحج ٦(٨١٥)، (تحفة الأشراف: ١٣٩٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٥٦/٣)، سنن الدارمي/المناسك ٣(١٨٢٨)(صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٦٩١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/العمرة ٦(١٧٨٤)، والجهاد ١٢٥(٢٩٨٥)، صحيح مسلم/الحج ١٧(١٢١٢)، سنن الترمذي/الحج ٩١(٩٣٤)، سنن ابن ماجه/المناسك ٤٨(٢٩٩٩)، مسند احمد(١٩٧/١، ١٩٨)، سنن الدارمي/المناسك ٤١(١٩٠٤)(صحيح)

## حضرت عائشي ﷞ په احرام کښې د مصنف رائې

امام ابوداؤد ﷫ چې کوم ترجمة الباب قائم کړو او بيا ئې په دې کښې د حضرت عائشه ﷞ د احرام والا روايت ذکر کړو د دې نه معلومه شوه چې مصنف هم د احرام عائشه باره کښې د حنفيه موافق دې چې هغوی رفض عمره اوکړه او بيا ئې د هغې قضا اوکړه

[۱۹۹۶] (¹) حَدَّثَنَا قُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ، حَدَّثَنَا سَعِيدُ بْنُ مُزَاحِمِ بْنِ أَبِي مُزَاحِمٍ، حَدَّثَنِي أَبِي مُزَاحِمٍ، عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَسِيدٍ، عَنْ مُحَرِّشٍ الْكَعْبِيِّ، قَالَ: دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجِعْرَانَةَ فَجَاءَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَرَكَعَ مَا شَاءَ اللَّهُ ثُمَّ أَحْرَمَ ثُمَّ اسْتَوَى عَلَى رَاحِلَتِهِ فَاسْتَقْبَلَ بَطْنَ سَرِفَ حَتَّى لَقِيَ طَرِيقَ الْمَدِينَةِ فَأَصْبَحَ بِمَكَّةَ كَبَائِتٍ".

د محرش الکعبي ﷜ نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ چه کله جعرانه مقام ته داخل شو نوجومات ته ورغې اومونځ ئې وکړو څومره چه دالله تعالی خوښه وه اوبيائې احرام وتړلو بيا په خپله سورلۍ باندې سور شو اوبطن سرف مقام طرف ته ئې مخ کړو تردې چه دمدينې په لارباندې لاړو بيا په سحرکښې مکې ته روان شو او واپس هم راغې نوپه مکه کښې په شان دشپې تيرونکی شو.

عَنْ مُحَرِّشٍ الْكَعْبِيِّ، ......فَاسْتَقْبَلَ بَطْنَ سَرِفَ حَتَّى لَقِيَ طَرِيقَ الْمَدِينَةِ فَأَصْبَحَ بِمَكَّةَ كَبَائِتٍ".(²) يعنی د جعرانه نه ئې احرام اوتړلو او په سورلۍ باندې سور شو او د بطن سرف طرفته روان شو او مقام سرف ته چې نبي ﷺ اورسيدۀ نو هلته ورته سړک ملاؤ شو چې د مکې مکرمې نه د مدينې منورې لاره ده يعنی په دې سړک باندې د راتلو نه پس د هغۀ ځائې نه مکې مکرمې ته راغلو او د سحر مونځ ئې اوکړو داسې لکه چې ګويا هلته ئې شپه تيره کړې وی.

ياد ساتئ چې سرف مقام هم د سړک په غاړه واقع دې هغه سړک چې د مکې مکرمې نه مدينې منورې ته راغلې دې لهذا اول ئې د جعرانه نه سرف ته تشريف راؤړو (د جعرانه نه براه راست مکې مکرمې طرفته نۀ دې) او د هغې ځائې نه سيدهه مکې مکرمې ته ځی نو نبي ﷺ د هغې ځائې نه مکې مکرمې ته تشريف راؤړو، ددغې لارو نقشه داسې ده.




¹) سنن الترمذي/الحج ۹۲(۹۳۵)، سنن النسائي/الحج ۱۰۴(۲۸۶۶، ۲۸۶۷)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۲۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴۲۶/۳، ۴۲۷، ۶۹/۴، ۳۸۰/۵) سنن الدارمي/المناسك ۴۱(۱۹۰۳)(صحيح) دون ركوعه في المسجد، فإنه منكر

²) د نسائي په يو روايت کښې داسې دی: انه ﷺ خرج من الجعرانة ليلاً كانه ميبكته فقته فاعتمر ثم اصبح بها كبائت، يعنی کوم وخت چه حضور ﷺ دشپې په تياره کښې دجعرانه نه روان شو نو هغوی ﷺ داسې ځليدل لکه چه د چاندۍ (سپينو زرو) بهيدونکې اوبه.

## د ابوداؤد په روایت کښې يو وهم

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چې دا حديث چې د عمره جعرانه سره متعلق دې دلته په ابوداؤد شريف کښې ډير مختصر دې په دې کښې اختصار مخل واقع دې تفصيلي روايت په ترمذي شريف کښې دې د دې عمرې صورت حال مونږ سره دلته اوس نزدې تير شوې دې د ابوداؤد شريف په روايت کښې د اختصار نه علاوه يو وهم دې په دې کښې دی فاصبح بمكة كبائتٍ حالانکه صحيح دا ده فاصبح بالجعرانة كبائتٍ حالانکه په ترمذي او نسائي کښې داسې دی چې د کوم وضاحت او تصريح مونږ سره تيره شوې ده دويمه خبره قابل ذکر دا ده چې دا حديث دلته بې محله دې د باب اولني حديث چې په هغې کښې عمر د تنعيم تذکره ده هغه خو عين د ترجمة الباب مطابق دې ليکن د دې حديث د ترجمة الباب سره هيڅ تعلق نشته بظاهر ناسخينو دلته غلطئ سره نقل کړې دې والله تعالى اعلم سوچ کولو سره يو مناسب سمجهـ ته راغلو هغه دا چې اګرچه د دې عمرې د ترجمة الباب سره څه تعلق نشته ليکن خپل مينځ کښې د دې دواړو عمرو په بعضې وجوهاتو سره مناسبت دې هغه دا چې دا دواړه عمرې د شپې په وخت کښې شوې دی دغه شان دواړه د عجلت په حالت کښې شوې دی دغه شان د يو تعلق په دې کښې دحضور ﷺ سره دې او د دويم تعلق د نبی ﷺ د اهليه محترمه سره دې چې کومه نبي ﷺ ته زياته محبوبه او نزدې وه او د مصنف دا عادت دې چې هغوی بعضې علمي فوائد د باب لاندې څۀ مناسبت سره راوړی والله تعالى اعلم

## بَابُ الْمُقَامِ فِي الْعُمْرَةِ

### د عمرې په ورځو کښې د قيام کولو بيان

[۱۹۹۷](١) حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ رُشَيْدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ زَكَرِيَّا، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ أَبَانَ بْنِ صَالِحٍ، وَعَنِ ابْنِ أَبِي نَجِيحٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَقَامَ فِي عُمْرَةِ الْقَضَاءِ ثَلَاثًا".

دعبدالله بن عباس ﷺ نه روايت دې فرمائي چه نبی ﷺ په مکه کښې دعمره قضا په وخت کښې درې ورځې قيام کړې وو.(داعمره دحديبيه په موقعه په مکه کښې دکفارودطرف نه دايساريدو په وجه قضاء شوې وه).

## بَابُ الْإِفَاضَةِ فِي الْحَجِّ

### باب: د طواف افاضه بيان

يعنې د حج د طواف افاضه بيان، چې ورته طواف زيارت او طواف رکن هم وئيلې شي

[۱۹۹۸](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا عُبَيْدُ اللهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَفَاضَ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ صَلَّى الظُّهْرَ بِمِنًى يَعْنِي رَاجِعًا".

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٦٣٧٦)(صحيح)

(٢): صحيح مسلم/الحج ٥٨(١٣٠٨)، (تحفة الأشراف: ٨٠٢٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبرى/ الحج(٤١٦٨)، مسند احمد(٣٤/٢)(صحيح)

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام دلوي اختر په ورځ باندې طواف افاضه وکړو اوبيا ئې په واپسئ کښې په منې کښې دماسپخين مونځ اوکړو.
ان النبي صلى الله عليه وسلم افاض يوم النحر ثم صلى الظهر بمنى د دې نه دوه خبرې معلومې شوې اول دا چې نبي عليه السلام طواف افاضه په يوم النحر يعنى په لسمه ذى الحجه د ورځې اوکړو د ماسپخين نه مخکښې دويمه خبره دا چې نبي عليه السلام د ماسپخين مونځ په منى کښې رسيدلو سره اوکړو په دې دويمه خبره کښې روايات مختلف دى کما تقدم فى حديث جابرالطويل او په اولنى امر کښې صحيح دا ده چې کوم دلته دى او د دې تائيد د دې نه مخکښې باب رمى الجمار کښې تير شوې دې چې د هغې الفاظ دا دى افاض رسول الله صلى الله عليه وسلم من آخر يومه ليکن په دې باب کښې د دې نه وړاندې حديث کښې دا دى.

[١٩٩٩](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَيَحْيَى بْنُ مَعِينٍ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، قَالَا: حَدَّثَنَا ابْنُ أَبِي عَدِيٍّ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ بْنُ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ زَمْعَةَ، عَنْ أَبِيهِ، وَعَنْ أُمِّهِ زَيْنَبَ بِنْتِ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ يُحَدِّثَانِهِ جَمِيعًا ذَاكَ عَنْهَا، قَالَتْ: كَانَتْ لَيْلَتِي الَّتِي يَصِيرُ إِلَيَّ فِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَسَاءَ يَوْمِ النَّحْرِ، فَصَارَ إِلَيَّ وَدَخَلَ عَلَيَّ وَهْبُ بْنُ زَمْعَةَ وَمَعَهُ رَجُلٌ مِنْ آلِ أَبِي أُمَيَّةَ مُتَقَمِّصَيْنِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِوَهْبٍ: "هَلْ أَفَضْتَ أَبَا عَبْدِ اللَّهِ؟" قَالَ: لَا وَاللَّهِ يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "انْزِعْ عَنْكَ الْقَمِيصَ"، قَالَ: فَنَزَعَهُ مِنْ رَأْسِهِ وَنَزَعَ صَاحِبُهُ قَمِيصَهُ مِنْ رَأْسِهِ، ثُمَّ قَالَ: وَلِمَ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: "إِنَّ هَذَا يَوْمٌ رُخِّصَ لَكُمْ إِذَا أَنْتُمْ رَمَيْتُمُ الْجَمْرَةَ أَنْ تَحِلُّوا، يَعْنِي مِنْ كُلِّ مَا حُرِمْتُمْ مِنْهُ إِلَّا النِّسَاءَ، فَإِذَا أَمْسَيْتُمْ قَبْلَ أَنْ تَطُوفُوا هَذَا الْبَيْتَ صِرْتُمْ حُرُمًا كَهَيْئَتِكُمْ قَبْلَ أَنْ تَرْمُوا الْجَمْرَةَ حَتَّى تَطُوفُوا بِهِ".

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام په هغه شپه باندې په کومه کښې چه زما په کور کښې ئې دشپې تيرولو نمبروو اوداده لوېي اختر ورځ وه، دماښام په وخت کښې نبي عليه السلام زما کور ته راغې او يودوه کسان ورسره وو يو وهب بن زمعه اودهغه سره يوبل ملګرې وو کوم چه دبنو اميه دخاندان نه وو اوقميصونه ئې اغوستلي وو نبي عليه السلام وهب ته اوفرمائيل ايا طواف افاضه دې کړې دې؟ هغه عرض اوکړو نه په الله مې دې قسم وې اې دالله رسوله نبي عليه السلام اوفرمائيل خپل قميص اوباسه چنانچه هغه خپل قميص اوويستلو اودهغه ملګرې هم خپل قميص اوويستلو اوعرض ئې اوکړو په څه وجه باندې اې دالله رسوله نبي عليه السلام اوفرمائيل داهغه ورځ ده په کومه کښې چه تاسو رې کوې اوحلاليږئ اوهغه شيان کوم چه ستاسو دپاره په حالت احرام کښې حرام دي هغه تاسوته حلاليږي خو علاوه د يوځائې والې نه دښځوسره ترڅوچه دطواف نه فارغې شوې نه ئې که چرې تاسوپه داسې حال کښې ماښام کړو چه طواف مونه وې کړې نوپه داسې حالت کښې دګيتو دويشتلو نه دمخکنې حالت په شان اوس هم په احرام کښې ئې ترڅوچه تاسو طواف نه وى کړې.

---

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٨١٨٦، ١٨١٧٥، ١٨٢٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد (٦/٢٩٥، ٣٠٣) (حسن صحيح)

## اخر طواف يوم النحر الى الليل باندې تفصيلي كلام

اخر طواف يوم النحر الى الليل د دې روايت حواله مونږ سره دلته په باب رمى الجمار كښې هم تيره شوې ده په دې روايت كښې دا دى چې نبى عليه السلام طواف زيارت په شپه كښې اوكړو ځكه چې په يوم النحر كښې كوم طواف كيږى هغه هم طواف زيارت دې، حافظ ابن قيم صاحب رحمه الله د دې حديث په سختئ سره تغليط كړې دې چې دا د ټولو روايتونو خلاف دې د دې په غلط كيدو كښې هيڅ يو عالم شك نۀ شى كولې دغه شان ابن القطان هم دې ته غيرصحيح وئيلې دى ځكه چې نبى عليه السلام طواف افاضه بالاتفاق په ورځ كښې كړې وو نۀ چې په شپه كښې

د عائشې اوابن عباس رضي الله عنهما اثر لره حضرت امام بخارى صاحب رحمه الله هم په صحيح بخارى كښې تعليقاً ذكر كړې دې ليكن دهغې الفاظ جدا دى اخر النبى صلى الله عليه وسلم الزيارة الى الليل په دې صورت كښې اشكال ډير سپكيږى يعنى طواف زيارت مراد نۀ دې بلكه نفسِ زيارتِ بيت ځكه چې زيارتِ بيت هم عبادت دې يا نفلى طواف نۀ چې طواف زيارت بعضې علماؤ فرمائيلې دى چې شايد په تسميه د طواف كښې غلطى اوشوه د شپې چې نبى عليه السلام كوم طواف كړې وو يعنى په اخرى شپه كښې هغه طواف وداع دې نۀ چې طواف زيارت يو توجيه دا كړې شوې ده(كما فى الكوكب) مراد عملاً تاخير نۀ دې بلكه تجويز تاخير(تاخير لره جائز ګرځول) او دې سره اشاره طواف النساء طرفته ده چې نبى عليه السلام خپلو بيبيانو ته د تاخير طواف اجازت وركړو[1] نو په دې وجه هغوى طواف زيارت د يوم النحر نه پس راتلونكى شپه كښې اوكړو يو توجيه دا هم كړې شوې ده چې ممكن ده د ليل نه مراد بعدالغروب نۀ وى بلكه وقت العشى يعنى بعدالزوال وى چې مجازاً د دې نه تعبير په ليل سره اوكړې شو بله داچه په دې حديث كښې سنداً كمزورى دا ده چې ابوالزبير دې لره د عائشه او ابن عباس نه بلفظ عن رواية كوى ابوالزبير مدلس دې بله داچه د دې سماع اګرچه د ابن عباس نه ثابته ده لكن فى سماعه عن عائشة نظر كما قال الامام البخارى وحكاه عنه الترمذى فى كتاب العلل(ملخص من جزء الحج) په امام ترمذى باندې تعجب دې هغوى خو په دې حديث باندې مستقل ترجمة الباب باب ما جاء فى طواف الزيارة الى اليل قائم كړې دې او د حديث باره كښې فرمائى هذا حديث حسن ا هـ حالانكه د دې حديث باره كښې اكثر محدثينو كلام كړې دې يا كم از كم تاويل په كښې كړې شوې دې

[1] ) پوهيدل پكار دى چه طواف زيارت دامام اعظم رحمه الله په نزد ايام النحر سره مؤقت دې كه ددې نه پس ئې اوكړو نو دم به واجب وى، دامام شافعى او صاحبينو رحمهم الله په نزد مؤقت نه دى بلكه تاخير عن ايام النحر جائز دې، پس معلومه شوه چه د يوم النحر نه پس والا شپه كښې بالاتفاق جائزدى.

[۲۰۰۰]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَبِي الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَخَّرَ طَوَافَ يَوْمِ النَّحْرِ إِلَى اللَّيْلِ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها او عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام دلوي اختر په ورځ باندې طواف زيارت کول دشپې پورې موخر کړل.

عن ام سلمة قالت كانت ليلتي التي يصير الى فيها رسول الله صلى الله عليه وسلم د دې جملې تشريح او وضاحت د مالهٔ و ماعليهِ سره په باب التعجيل کښې د وكان ذلك اليوم اليوم الذى يكون رسول الله صلى الله عليه وسلم عندها لاندې تير شوې دې فارجع اليه لو شئت، فدخل على وهب بن زمعة ومعه رجل من آل ابى امية متقمصين.،،

## دا حديث بالاتفاق د تاويل محتاج دې:

د دې حديث نه دا فائده حاصليږي چې د رمي وغيره نه پس چې کوم تحلل اصغر حاصليږي هغه په دې شرط سره مشروط دې چې سړې په يوم النحر کښې د نمر پريوتلو نه مخکښې پورې طواف افاضه اوکړي او که د شپې کيدو نه مخکښې ئې طواف افاضه اونکړه نو هغه حاصل شده تحلل ختميږي او بيا دوباره دغه سړې هغه شان شي لکه څنګه چې د رمي کولو نه مخکښې وو يعنى لبس د مخيط وغيره د دهٔ دپاره ناجائز شي ليکن دا د يو فقيه او د امام مسلک نهٔ دې لهذا دا حديث بالاتفاق د توجيه او د تاويل محتاج دې تاويل خو دې يا دا اوکړې شي چې مقصود دا دې چې په طواف زيارت کښې تاخير کول نهٔ دى پکار او تغليظاً ئې دا هم اوفرمائيل چې کهٔ تاخير ئې اوکړو نو بيا چې اول څنګه وو نو بيا هم هغه شان شي دا صرف توبيخ او تغليط دې حقيقتِ د کلام مراد نهٔ دې يا دا داسې اوويلې شي چې ممکن ده د هغوی هغه قيمص چې کوم ئې اغوستې وو هغه خوشبودار وی او خوشبو چونکه د جماع طرفته دعوت ورکوونکې وی نو په دې ويره سره چې دا قميص چرته د جماع دپاره سبب جوړ نهٔ شي داسې اوفرمائيلې شو يعنى دا چې دا قميص اوباسه والله سبحانه وتعالى اعلم

[۲۰۰۱]() حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ، حَدَّثَنِي ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ، عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمْ يَرْمُلْ فِي السَّبْعِ الَّذِي أَفَاضَ فِيهِ".

د عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه يقينانبى عليه السلام تيزرفتاري نه وه کړي د طواف افاضه وم چکرکښې (کيدې شي چه په طواف قدوم کښې ئې تيز رفتاری کړې وی)

[1]): صحيح البخاري/ الحج ١٢٩(قبيل ١٧٣٢) تعليقًا، سنن الترمذي/الحج ٨٠(٩٢٠)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٧(٣٠٥٩)، (تحفة الأشراف: ٦٤٥٢، ١٧٥٩٤)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤١٦٩)، مسند احمد(٢٨٨/١)(ضعيف)

[2]): سنن ابن ماجه/المناسك ٧٧(٣٠٦٠)، ( تحفة الأشراف: ٥٩١٧)، وقد أخرجه: سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤١٧٠)(صحيح)

## د حديث مبارک تشريح:

**قوله**: حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ دَاوُدَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ وَهْبٍ............. عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "لَمْ يَرْمُلْ فِي السَّبْعِ الَّذِي أَفَاضَ فِيهِ". نبی ﷺ چې په دې اوو چکرو کښې کوم طواف افاضه کړې وو رمل ئې نۀ وو کړې ملاعلی قاري رحمه الله د هغې وجه بيان کړې ده لتقدم السعی عليه يعنی چونکه پيغمبر ﷺ طواف قدوم سره په شروع کښې سعی بين الصفا والمروه کړې وه او دغه وخت يعنی د طواف افاضه نه پس سعی کول نه وو (لکه څنګه چې مسئله هم داسې ده) او رمل په هغې طواف کښې وی چې د هغې نه پس سعی وی، په دې وجه نبی ﷺ په دې طواف کښې رمل اونکړو ليکن په دې باندې زمونږ حضرت په بذل المجهود کښې د حنفيه او شافعيه طرفته د اختلاف اشاره کړې ده چې قابل غور ده[1] بيا حضرت خپله رائې دا ليکلې ده چې په ظاهره د رمل نۀ کولو وجه دا ده چې د نبی ﷺ دا طواف راکباً وو او د رکوب په صورت کښې رمل کول ممکن نۀ دی (بذل) زۀ وايم چې په باب الطواف الواجب کښې دا بحث تير شوې دې چې نبی ﷺ کوم طواف راکباً کړې وو نو هغه کوم طواف وو هلته هم تير شوې دی چې ظاهر دا ده چې هغه هم طواف زيارت وو او دا روايت د دې خبرې تائيد کوی قال المنذری واخرجه الترمذی والنسائی وابن ماجه ا هـ

## بَابُ الْوَدَاعِ

### باب: د طواف وداع (رخصتی کولو) بيان

طواف وداع (د رخصتئ طواف) د ائمه ثلثه په نزد واجب دې د امام مالک او داؤد ظاهری صاحب په نزد سنت دې دغه شان دا طواف د حج کوونکی په حق کښې دې په معتمر باندې نشته دغه شان په آفاقی باندې دې په مکی باندې نشته ښځه که حائضه وی نو په هغې باندې هم نشته لکه څنګه چې په آئنده باب کښې راځی خلافاً لعمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه فيجب عنده علی الحائض ايضاً فتقيم حتی تطهر فتطوف

[٢٠٠٢] [2] حَدَّثَنَا نَصْرُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ سُلَيْمَانَ الْأَحْوَلِ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: كَانَ النَّاسُ يَنْصَرِفُونَ فِي كُلِّ وَجْهٍ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْفِرَنَّ أَحَدٌ حَتَّى يَكُونَ آخِرُ عَهْدِهِ الطَّوَافَ بِالْبَيْتِ".

---

[1] د حضرت مقصد دا دې چه د اکثرو په نزد رسول الله ﷺ قارن وو او د احنافو په نزد په قارن باندې دوه طوافونه او دوه سعی دی په خلاف د شوافعو وغيره چه د هغوی په نزد يو طواف او يوه سعی ده، لهذا زمونږ د مسلک تقاضه دا ده چه رسول الله ﷺ د طواف افاضه نه پس سعی اوکړی، دا خو تشريح شوه د حضرت د کلام خو زه وايم چه مسئله د احنافو په نزد هم داسې ده چه که قارن طواف قدوم نه پس سعی اوکړی نو بيا اوس د طواف افاضه نه پس به سعی نه وی، د ملا علی قاری رحمه الله کلام په دې باندې مبنی دې. والله اعلم ..... په بذل المجهود کښې يو مقام باندې خپله حضرت هم دې طرف ته اشاره فرمائيلې ده. ١٢

[2]: صحيح مسلم/الحج ٦٧(١٣٢٧)، سنن ابن ماجه/المناسك ٨٢(٣٠٧٠)، سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤١٨٤)، (تحفة الأشراف: ٥٧٠٣)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ١٤٤(١٧٥٥)، مسند احمد(٢٢٢/١)، سنن الدارمي/المناسك ٨٥(١٩٧٤)(صحيح)

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه دمکي مکري نه به خلق دهرطرف نه بهر ته وتل نبي عليه السلام اوفرمائيل چاچه آخري طواف نه وی کړي دهغه دپاره دمکي نه تلل پکارنه دي.

**تشريح: قوله:** كان الناس ينصرفون فى كل وجه اى جانب وطريق يعني خلق د حج نه چې فارغ شو نو خپلو خپلو کورونو او وطنونو طرفته روان شو څوک په يو لاره روان دي او څوک په بله لاره باندي (ښکاره خبره ده چې کوم کس په کوم طرف بآندې رآغلي وو نو په هغې بآندې به ځي) يعني بغير د طوآف آو بيت الله شريف ته د حاضرئ نه، چې هرکله نبي عليه السلام دا منظر اوليدو نو وې فرمائيل لا ينفرن احد حتى يكون اخر عهده الطواف بالبيت، هيڅکله دې نه واپس کيږي هغه کس خپل وطن طرفته چې ترڅو آخري ملاقات بيت الله سره اونکړي د طواف په طريقې سره، دا حديث مبارک د جمهورو دليل دې د طواف په وجوب کښې قال المنذرى اخرجه مسلم والنسائى وابن ماجه(عون)

## بَابُ الْحَائِضِ تَخْرُجُ بَعْدَ الْإِفَاضَةِ

### په کومه زنانه چه بيماري راغلې وی هغه دطواف افاضه نه پس تللی شی

د ترجمة الباب والا مسئله په تير شوې باب کښې تيره شوې ده

[۲۰۰۳] (¹) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ، فَقِيلَ: إِنَّهَا قَدْ حَاضَتْ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَعَلَّهَا حَابِسَتُنَا"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا قَدْ أَفَاضَتْ، فَقَالَ: "فَلَا إِذًا".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه نبي عليه السلام دصفية بنت حيي ذکر اوکړو نوعرض وکړې شو چه هغې ته بيماري راغلی ده نبي عليه السلام اوفرمائيل شايد هغه مونږ لره ايسارونکی ده، خلقو اووئيل اې دالله رسوله هغه دطواف افاضه نه فارغه شوی ده نبي عليه السلام اوفرمائيل بياخه حرج نشته.

### د حديث تشريح د اشکال او جواب سره

عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ صَفِيَّةَ بِنْتَ حُيَيٍّ...... "لَعَلَّهَا حَابِسَتُنَا"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهَا قَدْ أَفَاضَتْ، فَقَالَ: "فَلَا إِذًا".

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چې حضور صلى الله عليه وسلم د واپسئ په ورځ د حضرت صفيه ذکر اوکړو (او ذکر ئې داسې انداز کښې اوکړو چې په هغې باندې عائشه رضي الله عنها پوهه شوه چې د دوی اراده د وقاع ده) په دې باندې عائشې رضي الله عنها عرض اوکړو چې يا رسول الله! هغه خو حائضه ده د دې په اوريدلو سره نبي عليه السلام اوفرمائيل چې کيدې شي اوس خو به د دې په وجه مونږ هم حصاريږو (نبي عليه السلام دا اوګڼړل چې هرکله حائضه ده نو کيدې شي چې طواف افاضه به ئې هم

¹ ): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۷۱۷۲)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحيض ۲۷(۳۲۸)، والحج ۳۴(۱۵۶۲)، والمغازي ۷۷(۴۴۰۸)، والطلاق ۴۳(۵۳۲۹)، والأدب ۹۳(۶۱۵۷)، صحيح مسلم/الحيض ۶۷(۱۲۱۱)، سنن الترمذي/الحيض ۹۹(۹۴۳)، سنن النسائي/الحيض ۲۳(۳۹۱)، سنن ابن ماجه/المناسك ۸۳(۳۰۱۲)، موطا امام مالك/الحج ۷۵(۲۲۵)، مسند احمد(۶/۳۸، ۳۹، ۸۲، ۹۹، ۱۲۲، ۱۶۴، ۱۷۵، ۱۹۳، ۲۰۲، ۲۰۷)، سنن الدارمي/المناسك ۷۳(۱۹۵۸)(صحيح)

نۀ وی کړې او طواف وداع خو ئې بالکل نۀ دې کړې، حضرت عائشه رضي الله عنها اوفرمائیل یا رسول الله! طواف زیارت خو ئې کړې دی نبی ﷺ اوفرمائیل چې هیڅ خبره نۀ ده، یعنی اوس به مونږ صرف د طواف وداع په وجه نۀ حصاریږو د دې نه معلومه شوه چې د حائضې نه طواف وداع ساقط دی

دلته یو مشهور اشکال او د هغې جواب دې حضرت شیخ په درس بخاری کښې هم ذکر کړې وو هغه دا چې د دې مقام نوعیت د دواړو حالو نه خالی نۀ دې یا خو به نبی ﷺ ته د صفیه طواف افاضه کول معلوم وو یا نۀ؟ که معلوم وو نو نبی ﷺ لعلها حابستنا ولې اوفرمائیل؟ او که معلوم نه وو نو بیا ورسره نبی ﷺ ولې د استمتاع اراده اوفرمائیله؟ د دې جواب ډیر زیات آسان دې هغه دا چې د نبی ﷺ په ذهن کښې د مخکښې نه مجموعی طور دا وو چې ټولو ازواج مطهراتو طواف افاضه کړې دې په دې بنیاد باندې ئې د جماع اراده هم اوکړه لیکن چې کله ورته د صفیه باره کښې دا اووئیلې شو چې هغه فی الحال په حیض کښې ده چې د دې خبرې نبی ﷺ ته د مخکښې نه معلومات نۀ وو نو په دې باندې نبی ﷺ ته دا خیال پیدا شو چې چرته خو داسې نۀ ده چې د مخکښې نه ورته حیض وی او طواف افاضه ئې هم نۀ وی کړې په دې وجه نبی ﷺ اوفرمائیل لعلها حابستنا قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم والنسائی اهـ(عون)

[٢٠٠٤]()حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ يَعْلَى بْنِ عَطَاءٍ، عَنْ الْوَلِيدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ الْحَارِثِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَوْسٍ، قَالَ: "أَتَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْمَرْأَةِ تَطُوفُ بِالْبَيْتِ يَوْمَ النَّحْرِ ثُمَّ تَحِيضُ، قَالَ: لِيَكُنْ آخِرُ عَهْدِهَا بِالْبَيْتِ، قَالَ: فَقَالَ الْحَارِثُ: كَذَلِكَ أَفْتَانِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَقَالَ عُمَرُ: أَرِبْتَ عَنْ يَدَيْكَ، سَأَلْتَنِي عَنْ شَيْءٍ سَأَلْتَ عَنْهُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِكَيْ مَا أُخَالِفَ".

دحارث بن عبد الله بن اوس نه روایت دې فرمائی چه زه د عمربن الخطاب په په خدمت کښې حاضر شوم اودهغه زنانه په باره کښې مې ترې تپوس اوکړو څوك چه دلوی اختر په ورځ باندې دبیت الله طواف اوکړی اوبیائې بیماری راشی(نوهغې لره څه کول پکاردی)؟ عمر رضي الله عنه اوفرمائیل طواف وداع دې وکړی اولاړه دې شی حارث اووئیل چه ماته نبی ﷺ داسې وئیلی ووعمر رضي الله عنه اووئیل لاسونه دې وغورزیږه تا زمانه دهغې تپوس اوکړو کوم چه دې دنبی ﷺ نه کړې وو په دې خیال باندې چه ګنې زه خو دهغه نه خلاف نه کوم

**تشریح: قوله:** اتیت عمر بن الخطاب فاسلته عن المرءة د دې خلاصه دا ده چې د حضرت عمر رضي الله عنه نه سوال اوکړې شو چې که ښځې ته د طواف وداع نه مخکښې حیض راشی نو آیا په دې وجه سره به حصاریږی نو هغوی اوفرمائیل چې او ! حصاریږی به په دې باندې سائل اووې چې تاسو صحیح جواب راکړو ما د دې مسئلې تپوس د نبی ﷺ نه کړې وو نو هغوی هم دا جواب راکړې وو حضرت عمر رضي الله عنه. د دې په اوریدلو سره اوفرمائیل اربت عن یدیك تاته دې خدایې د خپل لاسه مصیبت دراورسوی چې هرکله تا د نبی ﷺ نه معلومه کړې وه

(): سنن الترمذي/الحج ١٠١(٩٤٦)،( تحفة الأشراف: ٣٢٧٨)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/ الحج(٤١٨٥)، مسند احمد(٤١٦٧٣)(صحيح)

نو بیا زما نه د تپوس کولو څه ضرورت وو دې دپاره دې تپوس کړې وو چې ممکن ده چې زۀ د دې خلاف مسئله تاته اووایم[1] يعنى حضور ﷺ خو تاته دا فرمائيلي وو چې حائضه به حصاريږي د دې نه پس تا زما نه تپوس اوکړو چې شايد دا به اووائی چې حائضې ته د حصاريدو ضرورت نشته اې بيوقوفه! آيا زۀ د نبى ﷺ خلاف څۀ وئيلي شم؟

## بَابُ طَوَافِ الْوَدَاعِ

### باب د طواف وداع بيان

دتیر شوې باب نه مقصود د طواف وداع حکم بیانول وو او په دې باب سره غرض او مقصد د نبی ﷺ طواف وداع بیانول دی چې نبی ﷺ هم طواف وداع کړې وو

[۲۰۰۵](۲) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ أَفْلَحَ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: أَحْرَمْتُ مِنَ التَّنْعِيمِ بِعُمْرَةٍ فَدَخَلْتُ فَقَضَيْتُ عُمْرَتِي وَانْتَظَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْأَبْطَحِ حَتَّى فَرَغْتُ وَأَمَرَ النَّاسَ بِالرَّحِيلِ، قَالَتْ: وَأَتَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيْتَ فَطَافَ بِهِ ثُمَّ خَرَجَ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائی چه دتنعيم نه مې دعمرې دپاره احرام اوتړلومی ته لاړم اوعمره مې وکړله او نبی ﷺ دمکی اومدينې په مينځ کښې په ابطح مقام کښې زما انتظار کولو کله چه زه دعمرې کولو نه فارغه شوم نونبی ﷺ خلقوته دتلو حکم وکړو او په خپله ملی ته لاړو بیت الله ته چه ورسيدو نو اول ئې طواف وکړو بيا ددی نه پس ووتلو.

**تشریح: قوله**: وَانْتَظَرَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْأَبْطَحِ حَتَّى فَرَغْتُ..الخ:

په دې حديث مبارک کښې حضرت عائشه رضي الله عنها خپله عمره بيانوی چې د عمرة التنعيم په نوم سره مشهوره ده د دې عمرې بيان مونږ سره د يو حديث لاندې په باب فی افراد الحج کښې تير شوې دې دلته بی بی عائشه رضي الله عنها دا فرمائی چې نبی ﷺ په محصب کښې زما انتظار اوکړو او ترڅو چې زۀ د عمرې کولو نه فارغه شوې نۀ ووم نو هغه وخت پورې نبی ﷺ روان نۀ شو.

## په حديث باندې اشكال او د هغې جواب

په دې باندې اشکال دا دې چې د صحيح بخاری په روايت کښې په دې سلسله کښې داسې دی فلقينى النبى صلى الله عليه وسلم وهو منهبط وانا مصعدة او انا منهبطة وهو مصعد اصل کښې د محصب محل وقوع په بلندئ باندې ده او مکه مکرمه او بيت الله شريف په نشيب کښې دې په دې وجه حضرت عائشې رضي الله عنها د انهباط او صعود لفظ استعمال کړو دلته په روايت کښې اگرچه د راوی شک دې ليکن صحيح په دې کښې شق اول دې يعنى کله چې زۀ د

---

[1] زما په ذهن کښې د دې مطلب دا راځی چه سيدنا عمر رضي الله عنه په دې مسئله کښې د رسول الله ﷺ نه څه اوريدلی وو چه هغه په دې کښې د خپل اجتهاد نه کار اخستلو چه په هغې کښې د خطاء او ثواب دواړو احتمال دې او دلته اگر چه هغه اجتهاد صحيح راوتلو د حديث د موافق کيدو د وجې نه خو فی نفسه د خلاف کيدو احتمال خو ضرور وو او اگر چه د خلاف کيدو د علم نه پس عمر رضي الله عنه د خپل اجتهاد نه رجوع کړې وه خو د لږ ساعته پورې خو مخالفت موندلې شی. والله تعالی اعلم

[2]: صحيح مسلم کالحج ۱۷ (۱۲۱۱)، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۴۳، ۱۷۴۴۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۶/ ۱۲۴) (صحيح)

عمرې نه فارغه شوم او د نبی ﷺ په خدمت کښې راتلم نو هغه وخت نبی ﷺ ما سره په لاره کښې ملاؤ شو نبی ﷺ د محصب نه راکوزیدو (مکې مکرمې ته د راتلو دپاره چې طواف وداع اوکړي) او زۀ محصب ته د نبی ﷺ خوا ته ورتلم لهذا د ابوداؤد شریف دا روایت د بخاری شریف د روایت خلاف شو د بخاری د روایت نه معلومیږی چې نبی ﷺ انتظار اونکړو او د ابوداؤد په روایت کښې انتظار مذکور دې د حدیث شارحینو د دې اشکال او تعارض جواب دا ورکړې دې چې دواړه روایتونه په خپل خپل ځائې باندې صحیح دی او د جمع بین الروایتین صورت دا دې چې نبی ﷺ د عائشې ﷞ د تلو نه پس کافی وخت پورې د هغې انتظار اوکړو بیا چې کله نبی ﷺ ته اندازه اوشوه چې اوس به هغه راځی نو هغه وخت نبی ﷺ د محصب نه روان شو نو په لاره کښې د محصب په حدودو کښې یو بل سره ملاقات اوشو نو په انتظار او لاره کښې د دواړو ملاقات کیدل دواړه خبرې صادق راغلې

واتی رسول الله صلی الله علیه وسلم البیت فطاف به ثم خرج حاصل دا چې کله حضرت عائشه ﷞ د شپې په اخره کښې محصب ته راؤرسیده نو بیا نبی ﷺ خلقو ته د واپسئ اعلان اوکړو چې ټول قافلې والا دې ځی یعنی په بیت الله شریف باندې تیریدلو سره د مدینې منورې طرفته او طواف وداع کولو سره کما هو رای شیخنا خلافاً لاکثر الشراح والبسط فی حاشیة اللامع .([1])

د نبی ﷺ لاره مدینې منورې ته د بیت الله شریف د طرفه وه ځکه چې د نبی ﷺ واپسی د

[1] د عمره تنعیم او د رسول الله ﷺ د طواف چه کوم ترتیب مونږ لیکلې دې هغه هم هغه دې کوم چه زمونږ شیخ په خپل تقریر بخاری او تالیفات لامع الدراری وغیره کښې اختیار کړې دې، او دا رائې په دې باندې مبنی ده چه په حدیث کښې ﴿فلقیني وهو منهبط وانا مصعدة﴾ صحیح دې خو عام شارحین بالخصوص امام نووی ﷫ او د حضرت ګنګوهی ﷫ دا رائې نه ده دا حضرات خو فرمائی چه رسول الله ﷺ عائشه ﷞ د هغې د رور عبدالرحمن ﷜ سره د عمرې د احرام دپاره تنعیم ته اولیږله او خپله د محصب نه مکې مکرمې ته د طواع وداع دپاره لاړو ځکه چه هغه خو احرام نه تړلو. د طواف دپاره خو د احرام ضرورت نشته) بیا چه کوم وخت رسول الله ﷺ د مکې نه واپس محصب طرف ته واپس کیدو نو هغه وخت ورته دوی دواړه (عائشه او عبدالرحمن) په لاره کښې ملاؤ شو. دې دواړو د تنعیم نه احرام تړلې وو مکې ته د عمرې دپاره داخلیدل، بیا نبی علیه السلام محصب ته اورسیدلو نود عائشې ﷞ انتظار ئې کولو لکه څنګه چه ورسره نبی علیه السلام د انتظار وعده کړې وه، بیا کله چه د شپې په آخره کښې سحر ته نزدې عائشه ﷞ د عمرې نه فارغه شوه او محصب ته اورسیده (کما فی روایة ثم جئته بسحر) نو نبی علیه السلام د محصب نه د تلو اعلان اوکړو. فأذن فی اصحابه بالرحیل، خو وریسې په روایت کښې دی چه فمر بالبیت قبل صلوة الصبح فطاف به حین خرج، ددې نه معلومیږی چه کله عائشه ﷞ د عمرې نه فارغه شوه محصب ته اورسیده او بیا ټولو دهغه ځائې نه کوچ اوکړو نو دغه وخت ئې طواف وداع اوکړه دا د نووی وغیره د مذکوره رائې خلاف دی په دې وجه امام نووی په شرح د مسلم کښې فرمائیلی دی چه په دې روایت کښې تقدیم تاخیر دې او قاضی عیاض ددې دا تاویل کړې دې چه ممکن ده نبی علیه السلام دوباره طواف وداع کړې وی، او ددې نه پس قاضی عیاض د مصنف عبدالرزاق د روایت به لحاظ سره یوبل احتمال بیان کړې دې کوم چه حافظ هم خوښ کړې دې، فارجع الی الفتح (ص ۲۸۹ ج ۳) لیکن حضرت شیخ چه کوم ترتیب اختیار کړې دې په دې کښې دا د طواف د تکرار اشکال نه کیږی.۱۲.

مکي مکرمې نه مدينې دپاره کدی يعنی اسفل مکه سره طې شوې وه او محصب د دې مخالف طرف يعنی اعلی مکه کښې دې نونبی ﷺ ته دمکې مکرمې د طرفه تلل وو(بذل)

**تنبیه:** دلته راوی د حضور ﷺ د سحر د مانځه باره کښې څۀ نه دی وئيلې حالانکه د سحر مونځ نبی ﷺ دلته په مکه مکرمه کښې اوکړو د نبی ﷺ د دې مونځ ذکر د ام سلمه په حديث کښې شته طوفی من وراء الناس وانت راکبة قالت فطفت ورسول الله صلی الله عليه وسلم حينئذ يصلی الی جنب البيت وهو يقرأ بالطور وکتاب مسطور مرالحديث فی باب الطواف الواجب تعجب دې چې عام طور سره د حديث د راويانو نه د نبی ﷺ د دې مونځ بيان فوت شو او د ذکر کولو نه پاتې شو

[۲۰۰۶]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ بَشَّارٍ، حَدَّثَنَا أَبُو بَكْرٍ يَعْنِي الْحَنَفِيَّ، حَدَّثَنَا أَفْلَحُ، عَنِ الْقَاسِمِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "خَرَجْتُ مَعَهُ، تَعْنِي مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فِي النَّفْرِ الْآخِرِ، فَنَزَلَ الْمُحَصَّبَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَمْ يَذْكُرِ ابْنُ بَشَّارٍ قِصَّةَ بَعْثِهَا إِلَى التَّنْعِيمِ فِي هَذَا الْحَدِيثِ، قَالَتْ: ثُمَّ جِئْتُهُ بِسَحَرٍ، فَأَذَّنَ فِي أَصْحَابِهِ بِالرَّحِيلِ، فَارْتَحَلَ فَمَرَّ بِالْبَيْتِ قَبْلَ صَلَاةِ الصُّبْحِ فَطَافَ بِهِ حِينَ خَرَجَ ثُمَّ انْصَرَفَ مُتَوَجِّهًا إِلَى الْمَدِينَةِ.

دام المومنين عائشة رضی الله عنها نه روايت دې فرمائی چه کله نبی ﷺ دمنی نه واپس راغی نوزه ورسره يوځای ووتلم او په مقام محصب کښې ئې قيام وکړوبيازه په سحرکښې دنبی ﷺ په خدمت کښې حاضره شوم او نبی ﷺ تمام کسانوته دتلوحکم وکړو اودسحر دمونځ نه مخکښې بيت الله ته لاړواوطواف ئې وکړو اوبيا مدينې ته روان شو.

[۲۰۰۷]([2]) حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ، حَدَّثَنَا هِشَامُ بْنُ يُوسُفَ، عَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي يَزِيدَ، أَنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ طَارِقٍ أَخْبَرَهُ، عَنْ أُمِّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا جَازَ مَكَانًا مِنْ دَارِ يَعْلَى نَسِيَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ اسْتَقْبَلَ الْبَيْتَ فَدَعَا".

عبد الرحمن بن طارق دخپلې مورنه روايت کوی فرمائی چه کله نبی ﷺ ديعلی د کورونونه مخکښې تيرشونوقبلی ته ئې مخ کړو اودعاء ئې اوغوښتله.

**تشريح:** **قوله:** أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ "إِذَا جَازَ مَكَانًا مِنْ دَارِ يَعْلَى نَسِيَهُ عُبَيْدُ اللَّهِ اسْتَقْبَلَ الْبَيْتَ فَدَعَا".

عبدالرحمن بن طارق د خپلې مور نه روايت کوی چې نبی ﷺ د مکې مکرمې نه په واپسئ باندې په لاره کښې چې کله د يعلی په يو خاص حصه باندې تيريدلو نو هلته حصار شو او بيت الله شريف طرفته ئې مخ کولو سره دعا غوښتله عبيدالله د حديث راوی وائی چې هغه ځائې اوس ماته ياد نۀ دې چې کوم ځائې دې؟ نبی ﷺ په لاره کښې دې مقام ته رسيدلو سره حصار شو او دعائې ولې غوښتله؟ دې طرفته امام نسائی صاحب د يو ترجمة الباب ([3]) ذريعې سره اشاره کړې ده هغه دا چې د دې ځائې نه بيت الله شريف په نظر راتلی په دې وجه نبی ﷺ هغې ته کتل اود هغې ځائې نه ئې دعا غوښتله کذا قال السندی فی حاشيته فجزاه الله

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۷۴۳۴، ۱۷۴۴۱)(صحيح)

[2]: سنن النسائي/الحج ۱۲۳(۲۸۹۹)، (تحفة الأشراف: ۱۸۳۷۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۶/۴۳۶، ۴۳۷)(ضعيف)

[3]: هغوی په دې حديث باندې ترجمه قائم کړې ده: الدعاء عند رؤية البيت،،

تعالی چې هغوی خبره صفا کړه په بذل کښې حضرت سهارنپوری رحمه الله د دې سلسلې روایات نقل کړې دی او لیکی چې ظاهر دا ده چې دا لفظ جاز نۀ دې بلکه جاء دې په دې کښې د کاتب نه تصحیف شوې دې اهـ لکه چه په نسائی کښې لفظ د جاء دې باقی که د جاز لفظ هم وی نو هم څۀ اشکال نشته معنی صحیح ده یعنی چې کله نبی علیه السلام هغه مقام سره تیریدلو

## بَابُ التَّحْصِيبِ

### باب: په محصر مقام کښې د دمې کولو دپاره دکوزیدو بیان

تحصیب یعنی نزول فی المحصب،محصَّب،حصبه،ابطح،بطحاء،خیف بنی کنانه دا ټول د یو مقام نومونه دی دا یو وسیع میدان دې د منی او مکه مکرمه په مینځ کښې او منی ته نزدې دې د مکې مکرمې په نسبت،نفرثانی یعنی په دیارلسمه ذی الحجه باندې د زوال نه پس د رمی نه فارغیدو نه پس( چې د منی نه د روانیدو آخری ورځ ده چې په دې کښې حاجی د منی نه مکې مکرمې ته راځی) په دې ورځ باندې نبی علیه السلام په ځائې د سیدهه راتلو د منی نه مکې مکرمې ته په لاره کښې په دې میدان کښې حصار شوې وو او هلته نبی علیه السلام دماسپخین،مازیګر،ماښام او ماسخوتن څلور مونځونه کړې وو او د شپې اکثره حصه ئې هلته تیره کړې وه او هم د دې ځائې نه نبی علیه السلام حضرت عائشه رضی الله عنها د هغې ورور عبدالرحمن بن ابی بکر سره عمره تنعیم دپاره لیږلې وه آو فرمائیلې ئې وو چې ته زر عمره اوکړه او واپس دلته راشه دې دپاره چې مونږه ټوله قافله یوځایئ د دې ځائې نه روان شو او په مکه مکرمه کښې طواف وداع کولو سره مدینه منوره ته روان شو

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چې د محصب د نزول په نوعیت کښې د صحابه کرامو اختلاف دې هغه دا چې د دې نزول شمار په مناسک حج کښې دې یا څۀ خارجی مصلحت سره وو یا په نورو الفاظو کښې داسې چې دا نزول اتفاقی وو یو جماعت[1] دې لره په مناسک حج کښې شماری لیکن واجب نۀ دې بلکه مسنون او مستحب،ابن عمر هم په دې کښې دې ففی الصحیحین عن نافع ان ابن عمر رضی الله عنه کان یری التحصیب سنة، او یو جماعت دا وائی چې دا نزول خارجی مصلحت سره وو ابن عباس و عائشه په دې جماعت کښې دی ففی الصحیحین عن ابن عباس انه قال لیس التحصیب بشئ انما هو منزل نزله رسول الله صلی الله علیه وسلم

[۲۰۰۸]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ، عَنْ هِشَامٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: "إِنَّمَا نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُحَصَّبَ لِيَكُونَ أَسْمَحَ لِخُرُوجِهِ، وَلَيْسَ بِسُنَّةٍ فَمَنْ شَاءَ نَزَلَهُ وَمَنْ شَاءَ لَمْ يَنْزِلْهُ".

دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام په محصب کښې ددې کولو

---

[1] ) ففي الصحيحين عن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله صلي الله عليه وسلم قال حين اراد ان ينفر من مني نحن نازلون غدا ان شاء الله تعالي بخيف بني كنانة حيث تقاسموا علي الكفر. او د دې بالمقابل روایت د ابو رافع رضی الله عنه دې کوم چه د افراد مسلم نه دې او په دې باب کښې هم راروان دې.

[2] ): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ۱۶۷۸۵، ۱۷۳۳۰)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ۱۴۷(۱۷۶۵)، صحيح مسلم/الحج ۵۹(۱۳۱۱)، سنن الترمذي/الحج ۸۲(۹۲۳)، سنن ابن ماجه/المناسك ۸۱(۳۰۶۷)، مسند احمد(۱۹۰/۶)(صحيح)

دپاره کوزشو ددې دپاره چه مدينې ته په تلوکښې سهولت ميسرشي، ليکن په محصب کښې دمه کيدل مسنون عمل نه دې که دچازړه غواړی نوکوزدی شی اوکه دچازړه غواړی نونه دی کوزېږي.

## د اسمح لخروجه شرح

دغه شان د حضرت عائشه رضي الله عنها روايت چې د دې باب اولنې حديث دې انما نزل رسول الله صلى الله عليه وسلم المحصب ليكون اسمح لخروجه. [1]

يعنی نبی عليه السلام دلته په لاره کښې د سفر د سهولت په خاطر حصار شوې وو دې دپاره چې د منی نه د وتلو نه مخکښې ټول حاجيان او ملګري يوځايئ جمع شی او بيا ټول د هغې مقام نه يوځايئ روان شی که څوک سوال اوکړی چې آيا د منی نه ټول ملګری يوځايئ روانيدې نۀ شو؟ نو د دې جواب دا دې چې په مجمع کښې داسې کيدل لږ مشکل دی ډيره لويه مجمع ده ټولو سره د ټولو ضروورياتو سامان هم دې څوک ځوان دې او څوک بوډا دې څوک ضعيف دې ماشومان او ښځې هم په کښې دی د چا سورلی تيزرفتار ده او د چا هغه کمزورې ده او د نزول محصب په صورت کښې دا اوشوه چې نبی عليه السلام په منی کښې د روانيدو اعلان اوکړو بيا نبی عليه السلام د منی نه راووتلو او محصب ته راؤرسيدو نو دلته ئې آرام اوکړو په دې کښې په قلار قلار ټول خلق دلته راؤرسيدل بيا په اخری شپه کښې ټوله قافله د هغې ځائې نه مکې مکرمې ته راغله هلته ټولو طواف وداع اوکړو[2] د سحر مونځ ئې اوکړو د دې نه پس نبی عليه السلام او اهل مدينه مدينې منورې طرفته روان شو او نور خلق خپل خپل وطن طرفته.

اوس پاتې شوه دا خبره چې ائمه فقه د تحصيب باره کښې څۀ فرمائی؟ نو ائمه اربعه د دې په استحباب باندې متفق دی ليکن د امام مالک په نزد د دې استحباب مقيد دې بشرط ان لا يكون متعجلاً وان لا يكون اليوم يوم جمعة چې ورته د تللو جلدی نۀ وی او دويم دا چې د جمعې ورځ نۀ وی

[۲۰۰۹][3] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ الْمَعْنَى. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، حَدَّثَنَا صَالِحُ بْنُ كَيْسَانَ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: قَالَ أَبُو رَافِعٍ: "لَمْ يَأْمُرْنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أُنْزِلَهُ وَلَكِنْ ضَرَبْتُ قُبَّتَهُ فَنَزَلَهُ"، قَالَ مُسَدَّدٌ: وَكَانَ عَلَى ثَقَلِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَقَالَ عُثْمَانُ: يَعْنِي فِي الْأَبْطَحِ.

دسليمان بن يسار نه روايت دې چه ماته ابو رافع په نا اووئيل ماته نبی عليه السلام حکم نه وو کړې چه په محصب مقام کښې کوزشم ليکن ماهلته خيمه وهلی وه نو نبی عليه السلام ورته ورکوزشو، مسدد وئيلی دی ابورافع دنبی عليه السلام دسامان محافظ وو په ابطح مقام کښې.

---

[1] قال المنذري وأخرجه البخاري ومسلم والترمذي والنسائي وابن ماجه ..اه (عون)

[2] په دې ترتيب کښې چه د شارحين حديث کوم اختلاف دې هغه مونږ نزدې ليکلې دې. ۱۲

[3]: صحيح مسلم/الحج ٥٩(١٣١٣)، (تحفة الأشراف: ١٢٠١٦)(صحيح)

تشریح: قوله: وکان علی ثقل النبی صلی الله علیه وسلم ثقل په معنی د سامان او د مسافر سامان قال تعالی وتحمل اثقالکم الی بلد لم تکونوا بالغیه الا بشق الانفس الایة یعنی ابورافع چې د رسول الله مبارک مولی او خادم دې هغه د حج په دې سفر کښې د نبی ﷺ د سامان نګران او محافظ وو

[۲۰۱۰]() حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عَلِيِّ بْنِ حُسَيْنٍ، عَنْ عَمْرِو بْنِ عُثْمَانَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَيْنَ تَنْزِلُ غَدًا فِي حَجَّتِهِ؟ قَالَ: "هَلْ تَرَكَ لَنَا عَقِيلٌ مَنْزِلًا؟" ثُمَّ قَالَ: "نَحْنُ نَازِلُونَ بِخَيْفِ بَنِي كِنَانَةَ حَيْثُ قَاسَمَتْ قُرَيْشٌ عَلَى الْكُفْرِ، يَعْنِي الْمُحَصَّبَ، وَذَلِكَ أَنَّ بَنِي كِنَانَةَ حَالَفَتْ قُرَيْشًا عَلَى بَنِي هَاشِمٍ أَنْ لَا يُنَاكِحُوهُمْ وَلَا يُبَايِعُوهُمْ وَلَا يُؤْوُوهُمْ". قَالَ الزُّهْرِيُّ: وَالْخَيْفُ الْوَادِي.

داسامه بن زید ﷺ نه روایت دې فرمائی چه په حج کښې مې نبی ﷺ ته ووئیل چه سبابه په کوم ځای کښې کوزیږی؟نبی ﷺ اوفرمائیل آیا عقیل په مکه کښې کوم کور زمونږ دپاره پریښودلی دې؟ اوبیافی اوفرمائیل مونږبه ۱ دبنو کنانه په خیف ابطح، بطحاء، محصب) کښې، چرته چه قریشو په کفرباندې قسم کړی وو، یعنی و بنی کنانه داقسم کړی وواودقریشوسره ئې لوظ کړی و ووچه دبنوهاشم سره به نکاح نه کوو اونه به ورته ځای ورکوواونه به ورسره دخریدوفرخت معاملات کوواونه به ورسره بیعت کوو. زهری وئیلی دی چه خیف دځای نوم دې۔

قلت یا رسول الله این تنزل غداً فی حجته دا حدیث مصنف په باب التحصیب کښې راوړلې دې د دې مقتضا دا ده چې د دې سوال وجواب تعلق د نزول محصب نه مخکښې د منی نه روانیدو په موقع باندې وو بلکه د ابوهریره حدیث چې د دې نه پس راځی په هغې کښې د دې تصریح ده او د صحیح مسلم په یو روایت کښې دغه شان دی وذلک فی حجته حین دنونا من مکة د دې روایت تقاضه بظاهر دا ده چې دا سوال اګرچه د حج په موقع باندې وو لیکن د منی نه د روانیدو په وخت نۀ بلکه د دخول مکه نه مخکښې، او هم د مسلم شریف په یو روایت[۲] کښې د فی حجته په ځائې وذلک زمن الفتح دې د دې د اختلاف جواب حافظ په فتح الباری جلد۳صفحه ۳۲۰ کښې د علی بن مدینی نه دا نقل کړې دې چې دا د واقعه په تعدد باندې محمول دې

دغه شان د بخاری په یو روایت کښې دی تنزل فی دارک بمکة او په مسلم کښې دی اتنزل فی ادراک بمکة(همزه استفهام سره)

[۱]): صحیح البخاري/الحج ٤٤(۱۵۸۸)، والجهاد ۱۸۰(۳۰۵۸)، ومناقب الأنصار ۳۹(٤۲۸۲)، والمغازي ٤۸(٤۲۸۲)، والتوحید ۳۱(۷٤۷۹)، صحیح مسلم/الحج ۸۰(۱۳۵۱)، سنن ابن ماجه/الفرائض ٦(۲۷۳۰)، والمناسك ۲٦(۲۹٤۲)، (تحفة الأشراف: ۱۱٤)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/الفرائض ۱۵(۲۱۰۷)، موطا امام مالك/الفرائض ۱۳(۱۰)، مسند احمد(۲/۲۳۷)، سنن الدارمي/الفرائض ۲۹(۳۰۳٦)(صحیح)

[۲]) اوردهما مسلم في باب النزول بمكة للحاج وتوريث دورهما.

## د حديث تشريح او وضاحت

قوله: هل ترک لنا عقيل منزلاً: وفي رواية البخاري هل ترک عقيل من رباع[1] وفي رواية مسلم وهل ترک لنا عقيل من منزل او د غيرصحاح په يو روايت کښې دی کما في الفتح وهل ترک لنا عقيل من رباع، د دې نه پس ځان پوهه کړئ چې د دې دار نه مراد د حديثو شارحين وائی چې د نبی ﷺ هغه جدی مکان دې چې په هغې کښې د نبی ﷺ ولادت شريفه شوې وو دا مکان د هاشم بن عبدمناف وو چې د هغوی نه پس د هغۀ ځوی عبدالمطلب ته په ترکه کښې پاتې شوې وو(اوس وراندې دا خو نۀ شی وئيلې چې د عبدالمطلب نه وروستو د هغۀ ځوی عبدالله ته د هغۀ حصه په ترکه کښې ملاؤ شوه ځکه چې عبدالله خو د عبدالمطلب په ژوند کښې وفات شوې وو بلکه وئيلې شوې دی چې عبدالمطلب په خپل ژوند کښې چې کله بوډا شو نو هغه خپل مکان په زامنو کښې تقسيم کړې وو لهذا د عبدالله هغه حق او حصه نبی ﷺ ته منتقل شوه(حکاه الحافظ عن الفاکهی جلد۳صفحه ٣٦٠)

دويم قول په دې کښې دا دې چې اصل کښې دا مکان د ابوطالب وو ځکه چې د عبدالمطلب د مرګ نه پس په دې ټول مکان باندې د ابوطالب قبضه وه ځکه چې هغه د عبدالمطلب په زامنو کښې د ټولو نه لوې اومشر وو او په زمانه جاهليت کښې به داسې کيدل چې د مړی په اولاد کښې به څوک مشر وو نو هغۀ به ټوله ترکه اخستله نو د دې قول په بناء باندې د دې کور اضافة نبي ﷺ طرفته په حيثيت د سکنی به وی دغه شان د خپل قريب او رشته دار کور هم خصوصاً په سفر کښې هم خپل کور وی

بهرکيف! عقيل چونکه دا کور خرڅ کړې وو که دا ئې نۀ وو خرڅ کړې نو بيا د سياق حديث نه معلوميږی چې بيا به نبی ﷺ په دې کښې قيام کړې وو([2]) اوس دلته دا خبره د وضاحت مطالبه کوی چې د ابوطالب خو څلور زامن وو نو بيا صرف عقيل يواځې په دې کښې څنګه تصرف اوکړو؟ د دې جواب دا دې چې د ابوطالب د مرګ په وخت کښې د هغۀ دوه زامن حضرت جعفر او علی ﷺ خو مسلمانان وو نو هغه دوه خو ځکه د ابوطالب وارثان نۀ شو په باقی دواؤ کښې د ابو طالب باره کښې دا وئيلې شی چې هغه په جنګ بدر کښې ورک شوې وو اوس صرف عقيل پاتې شو چې د دې وخته پورې ئې اسلام نۀ وو قبول کړې نو په دې وجه په ټول مکان باندې د هغۀ قبضه شوه چې کوم هغۀ خرڅ کړې وو دې ته نبی ﷺ فرمائی وهل ترک لنا عقيلاً منزلاً.

---

[1]) بکسر الراء جمع ربع مثل سهم وسهام.

[2]) ځان پوهه کړئ چه يو قول د دې دار په باره کښې دا دې چه دا عقيل نه وو خرڅ کړې بلکه هغه کور د عقيل د اولاد سره د يوې مودې پورې وو او د هغه اولاد دا د حجاج بن يوسف په رور محمد بن يوسف باندې په ګران قيمت باندې خرڅ کړې وو، غالبا هم په دې بنياد باندې شارح حديث خطابی دا خبره کړې ده چه زما رائې دا ده چه که هغه کور د عقيل په ملکيت کښې وو نو بيا رسول الله ﷺ هغې ته نزول په دې وجه اونکړو چه هغه هجرت فرمائيلو سره هغه د الله پاک دپاره پريخودلې وو، خو نورو شارحينو د هغه رائې په دې وينا سره رد کړې ده چه دا د سياق حديث د ظاهر خلاف ده، سياق حديث د دې مقتضی دې چه که عقيل هغه کور خرڅ کړې نه وو نو بيا به پکښې رسول الله ﷺ قيام کولو. اهـ

د دې پوره حدیث مضمون دا دې چې د پیغمبر ﷺ خادم حضرت اسامه د نبی ﷺ نه په منی کښې سوال اوکړو چې صبا ته د دې خائې نه مکې مکرمې ته زمونږ روانګی ده نو مکه مکرمه کښې به په کوم مکان کښې زمونږ قیام وی تاسو به په خپل مکان کښې قیام کوی؟ په دې باندې نبی ﷺ اوفرمائیل چې عقیل زمونږ دپاره د مکان کوم خائې پریخودلې دې(لهذا چې هرکله په مکه مکرمه کښې د قیام خائې نشته) نو مونږ به داسې اوکړو چې دمنی نه به لاړ شو او په لاره کښې به محصب کښې شپه تیره کړو او بیا به سحر وختی په مکه مکرمه کښې طواف وداع اوکړو او مدینې منورې ته به روان شو لهذا نۀ به په مکه مکرمه کښې قیام راشی او نۀ به هلته د قیام کولو ضرورت پیښ شی دا ډیر د عبرت اود موعظت مقام دې چې هغه سرداردوجهان چې دهغوی پلارنیکۀ او ټول خاندان به په مکه مکرمه کښې اوسیدو او مکه مکرمه چې د چا وطن اصلی وو هلته د هغوی دپاره د یو شپې تیرولوځائې نشته دالله تعالی دخپلو مقربینو سره مختلف معاملات دی

**فائده**: دا حدیث امام ابوداؤد په کتاب الفرائض کښې هم ذکر کړې دې د باب هل یرث المسلم الکافر لاندې ځکه چې جعفر او علی رضی الله عنهما دواړه د ابوطالب د وفات نه مخکښې مسلمانان شوې وو په دې وجه دا دواړه د پلار په مکان کښې وارثان نۀ شو ځکه چې د توارث دپاره د مورث دمرګ په وخت کښې د وارث او د مورث درمیان کښې اتحاد د ملت شرط دې

[۲۰۱۱]( ) حَدَّثَنَا مَحْمُودُ بْنُ خَالِدٍ، حَدَّثَنَا عُمَرُ، حَدَّثَنَا أَبُو عَمْرٍو يَعْنِي الْأَوْزَاعِيَّ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حِينَ أَرَادَ أَنْ يَنْفِرَ مِنْ مِنًى: "نَحْنُ نَازِلُونَ غَدًا"، فَذَكَرَ نَحْوَهُ، وَلَمْ يَذْكُرْ أَوَّلَهُ وَلَا ذَكَرَ الْخَيْفَ الْوَادِي.

د ابو هریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ کله دمنی نه دتلواراده وکړه نووئې فرمائیل مونږ به صبا هلته یو اوددې نه پس ئې داسې روایت بیان کړو چه په هغې کښې نه خودمخکښې حدیث په شان الفاظ شته اونه په کښې دوادی خیف ذکر دې.

[۲۰۱۲]( ) حَدَّثَنَا مُوسَى أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ وَأَيُّوبَ، عَنْ نَافِعٍ، أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ "يَهْجَعُ هَجْعَةً بِالْبَطْحَاءِ، ثُمَّ يَدْخُلُ مَكَّةَ، وَيَزْعُمُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذَلِكَ".

د نافع نه روایت دې فرمائی چه عبدالله بن عمر د رضی الله عنهما به په بطحا مقام کښې اوده ته کیدو اوبیابه مې ته داخل شو او وئیل به ئې چه د نبی ﷺ به داسې کول.

[۲۰۱۳]( ) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَفَّانُ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ سَلَمَةَ، أَخْبَرَنَا حُمَيْدٌ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، وَأَيُّوبُ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "صَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَالْمَغْرِبَ وَالْعِشَاءَ

[1]: صحيح البخاري/ الحج ٤٥(١٥٩٠)، صحيح مسلم/الحج ٥٩(١٣١٤)، سنن النسائي/ الكبري/ الحج(٤٢٠٢)،(تحفة الأشراف: ١٥١٩٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/ ٢٣٧، ٥٤٠)(صحيح)

[2]: تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٦٦٥٨، ٧٥٩٠)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ١٤٨(١٧٦٧)، صحيح مسلم/الحج ٥٩(١٢٧٥)، سنن الترمذي/الحج ٨١(٩٢١)، سنن ابن ماجه/المناسك ٨١(٣٠٦٨)، مسند احمد(٢/ ٢٨، ١٣٨)(صحيح)

[3]: انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ٦٦٥٨، ٧٥٩٠)(صحيح)

بِالْبَطْحَاءِ، ثُمَّ هَجَعَ هَجْعَةً، ثُمَّ دَخَلَ مَكَّةَ"، وَكَانَ ابْنُ عُمَرَ يَفْعَلُهُ.

دنافع نه روايت دې فرمائي چه عبدالله بن عمر رضي الله عنهما به فرمائيل يقينانبي عليه السلام دماسپخين مازيګر اومابنام او ماسخوتن مونځ په بطحا مقام کښې کړې وو اوبيائې آرام اوکړو اوبيا مکې ته داخل شو او ابن عمر رضي الله عنهما به هم داسې کول.

## بَابٌ فِيمَنْ قَدَّمَ شَيْئًا قَبْلَ شَيْءٍ فِي حَجِّهِ

### باب: په ارکان حج کښې د تقديم تاخير کولو بيان

په يوم النحر کښې چې کوم څلور افعال کيږي په هغې کښې ترتيب دا دې رمی، ذبح، حلق او بيا طواف نبی عليه السلام په دې ترتيب سره دا افعال اداکړې دی په دې کښې اختلاف دې چې دا ترتيب صرف سنت دې يا واجب دې د شافعيه و حنابله او صاحبينو په نزد سنت دې لهذا د دې خلاف کولو سره به څۀ فديه وغيره نۀ واجبيږي د امام ابوحنيفه صاحب او امام مالک صاحب په نزد په دې کښې په بعضې امورو کښې ترتيب سنت دې او په بعضو کښې واجب دې د امام صاحب په نزد په طواف کښې ترتيب واجب نۀ دې دې لره چې څنګه غواړی نو مؤخر کولې هم او مقدم کولې هم شی باقی د دريو امورو ترتيب دا دې چې که حاجی قارن يا متمتع وی نوپه دريو واړو کښې واجب دې او که حاجی مفرد وی نو چونکه په مفرد بانديې هدی واجب نۀ ده په دې وجه د دۀ دپاره په باقی دواؤ يعنی رمی او حلق کښې ترتيب واجب دې خلاف ترتيب کار کولو سره به دم واجبيږي

د امام مالک صاحب په نزد صرف تقديم الرمی علی الاخيرين[1] يعنی حلق او طواف واجب دې د دې خلاف کولو سره به دم واجبيږي په ذبح کښې د دوی په نزد څۀ ترتيب نشته چې کله ئې خوښه شی نو اودې کړی دغه شان په حلق او طواف کښې هم څه ترتيب نشته يو لره په بل بانديې مقدم کولې او مؤخر کولې شی

[۲۰۱٤](٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عِيسَى بْنِ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ، أَنَّهُ قَالَ: وَقَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ بِمِنًى يَسْأَلُونَهُ، فَجَاءَهُ رَجُلٌ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنِّي لَمْ أَشْعُرْ فَحَلَقْتُ قَبْلَ أَنْ أَذْبَحَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اذْبَحْ وَلَا حَرَجَ"، وَجَاءَ رَجُلٌ آخَرُ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، لَمْ أَشْعُرْ فَنَحَرْتُ قَبْلَ أَنْ أَرْمِيَ، قَالَ: "ارْمِ وَلَا حَرَجَ"، قَالَ: فَمَا سُئِلَ يَوْمَئِذٍ عَنْ شَيْءٍ قُدِّمَ أَوْ أُخِّرَ إِلَّا قَالَ: "اصْنَعْ وَلَا حَرَجَ".

عبدالله بن عمرو بن العاص رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبی عليه السلام په حجة الوداع کښې په منٰی کښې ودريدلې وو خلقو ترې دحج دمسئلو تپوسونه کول شروع کړل يوکس راغې او

[1]) والمشهور عند الشراح في مذهب مالك انه يجب عنده تقديم الرمي علي الثلاثة الباقية والصحيح ما ذكرته كما قال الدردير اعني تقديم الرمي علي الحلق والطواف والترتيب فيما سواه وهو أربعة صور سنة.

[2]): صحيح البخاري/العلم ٢٣،٢ (٨٣)، الحج ١٣١ (١٧٣٦)، الأيمان والنذور ١٥ (٦٦٦٥)، صحيح مسلم/الحج ٥٧ (١٣٠٦)، سنن الترمذي/الحج ٧٦ (٩١٦)، سنن النسائي/ الكبري/ الحج (٤١٠٦)، سنن ابن ماجه/المناسك ٧٤ (٣٠٥١)، ( تحفة الأشراف: ٨٩٠٦)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ٨١ (٢٤٢)، مسند احمد (٢/١٥٩، ١٦٠، ١٩٢، ٢٠٢، ٢١٠، ٢١٧)، سنن الدارمي/المناسك ٦٥ (١٩٤٨) (صحيح)

عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله ماپه ناخبرئ کښې دذبح کولونه مخکښې سر خرولې دې نبي ﷺ اوفرمائيل هيڅ باك نشته، بنابل كس راغې او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله زما نه ګيتي ويشتل هيرشو او مخكښې مې سر وخروو نبي ﷺ ورته وفرمائيل اوس رى وكړه هيڅ باك نشته. امام ابوداود فرمائيل ددې په شان دځومره څيزونوپه باره کښې چه دنبي ﷺ نه تپوس شوې دې کوم چه په حج کښې مخکښې وروسته کړې شوى دى ددې ټولو متعلق نبي ﷺ دا فرمائيلى دى چه په دې کښې هيڅ حرج نشته.

[٢٠١٥]() حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ زِيَادِ بْنِ عِلَاقَةَ، عَنْ أُسَامَةَ بْنِ شَرِيكٍ، قَالَ: خَرَجْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَاجًّا، فَكَانَ النَّاسُ يَأْتُونَهُ، فَمَنْ قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، سَعَيْتُ قَبْلَ أَنْ أَطُوفَ، أَوْ قَدَّمْتُ شَيْئًا أَوْ أَخَّرْتُ شَيْئًا، فَكَانَ يَقُولُ: "لَا حَرَجَ لَا حَرَجَ إِلَّا عَلَى رَجُلٍ اقْتَرَضَ عِرْضَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ وَهُوَ ظَالِمٌ، فَذَلِكَ الَّذِي حَرِجَ وَهَلَكَ".

داسامه بن شريك رضی الله عنه نه روايت دې فرمائي چه د نبي ﷺ سره د حج ادا کولو دپاره لاړم خلق به نبي ﷺ ته راتلل چاچه به ورته اووئيل اې دالله رسوله مادطواف نه مخكښې سعى كړې ده اوفلان فلان عمل مې مقدم اوموخركړې دې نبي ﷺ به ورته فرمائيل هيڅ خرج نشته البته دا ښه خبره نه ده څوك چه دكوم مسلمان جان مال ياعزت په ظلم سره برباد كړې وى او تباه كړې ئې وى او په ظلم كښې واقع شوې وي.

د احاديث الباب نه په ظاهره د شافعيه وحنابله تائيد كيږى جواب دا دې چې په دې احاديثو كښې حرج اخروى يعنى د مؤاخذه او د ګناه نفي مراد ده د حرج دنيوى نفي مراد نه ده ځكه چې د باب په آخرى حديث كښې راځي انما الحرج على من اقرض عرض رجل مسلم له حرج او ګناه خو په هغې سرى باندې ده چې د يو مسلمان پرده درى اوكړى او مسلمان لره رسوا كړى، ښكاره خبره ده چې د مسلمان په بى عزتئ كښې حرج اخروى دې نۀ چې حرج دنيوى كفاره وغيره د دې تقابل نه معلومه شوه چې په جمله اولى كښې د كوم حرج نفى ده نو هغه حرج اخروى دې

دويمه وجه دا ښودلې شى چې د حرج د نفى والا روايت د ابن عباس نه هم منقول دې حالانكه هغوى د كفارې د وجوب قائل دى

## بَابٌ فِي مَكَّةَ

### باب: په مکه کښې د مونځ کولوبيان

### د ترجمة الباب غرض

دا ترجمة الباب مبهم دې مقصود ستره بيانول دى چې په مكه مكرمه كښې د مونځ كوونكى وړاندې سترې ته ضرورت شته كه نه؟ لهذا ترجمة الباب داسې كيدل پكار وو باب السترة بمكة نو مصنف د حديث الباب نه ثابت كړل چې په مسجد حرام كښې د سترې حاجت نشته د حديث شريف مضمون دا دې مطلب بن ابى وداعه فرمائي چې ما نبي ﷺ د باب بنى سهم نزدې په مسجد حرام كښې په مونځ كولو اوليدۀ هغه وخت چې خلق د نبي

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٢٨) (صحيح)

ﷺ مخې ته تیریدل حالانکه هلته ستره قائم نۀ وه حضرت په بذل المجهود کښې لیکلي دي چې نن صبا دا په باب العمره سره مشهور دې په دې دروازې سره خلق تنعیم ته ځی د عمرې احرام تړلو دپاره

## په مکه مکرمه کښې د ستره قائمولو ضرورت شته یا نه؟

د دې نه پس تاسو ځان پوهه کړئ چې امام بخاري باب تړلې دې باب السترة بمكة وغيرها چې دې سره ئې اشاره اوکړه د جمهورو د مسلک طرفته چې د سترې باره کښې مکه او غیرمکه برابر دی[1] البته په دې کښې د امام احمد اختلاف دې د هغوی په نزد علی الراجح په مکه مکرمه کښې د سترې حاجت نشته بل سائر الحرم عنده کذلک د دې باب او حدیث حواله مونږ سره په ابواب السترة کښې تیره شوې ده(الدرالمنضود جلدثانی ص۱۹۶)هلته دې د حنفیه مسلک اوکتلې شی چې د هغې حاصل دا دې چې مسجد حرام چونکه مسجد کبیر دې په دې کښې د موضع سجود نه علاوه د وړاندې نه تیریدې شی یو قول زمونږ په نزد دا دې طواف حکماً مونځ دې لهذا طواف کوونکی د مونځ کوونکو په وړاندې تیریدې شی لکه څنګه چې د مونځګذارو په وړاندې د نورو مونځګذارو صف ولاړ وی صرح به الشامی کذا فی هامش البذل

[۲۰۱۶]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ بْنُ عُيَيْنَةَ، حَدَّثَنِي كَثِيرُ بْنُ كَثِيرِ بْنِ الْمُطَّلِبِ بْنِ أَبِي وَدَاعَةَ، عَنْ بَعْضِ أَهْلِهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "يُصَلِّي مِمَّا يَلِي بَابَ بَنِي سَهْمٍ وَالنَّاسُ يَمُرُّونَ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلَيْسَ بَيْنَهُمَا سُتْرَةٌ". قَالَ سُفْيَانُ: لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْكَعْبَةِ سُتْرَةٌ. قَالَ سُفْيَانُ: كَانَ ابْنُ جُرَيْجٍ أَخْبَرَنَا عَنْهُ، قَالَ: أَخْبَرَنَا كَثِيرٌ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: فَسَأَلْتُهُ، فَقَالَ: لَيْسَ مِنْ أَبِي سَمِعْتُهُ، وَلَكِنْ مِنْ بَعْضِ أَهْلِي، عَنْ جَدِّي.

کثیر بن کثیر دخپلې کورنۍ دیوکس نه اوهغه دده دنیکه نه روایت کوی فرمائی چه نبی ﷺ به په کعبه کښې د بنی سهم ددروازی سره نزدې مونځ کولو اوخلق به ئې په مخکښې تیریدل او دده اودخلقو ترمینځ به ستره نه وه، سفیان وائی چه ابن جریج مونږ ته وئیلی دی چه مونږ ته کثیر دخپل پلار په واسطه باندې روایت بیان کړې دې، چنانچه ما دکثیر نه په دې باره کښې تپوس اوکړو نوهغه اووئیل زه دا روایت دخپل پلارنه نه بلکه پخپله کورنۍ کښې دیوکس نه نقل کوم چه هغه زمانیکه نه اوریدلی دي.

## شرح السند

**تشریح: قوله**: قال سفیان کان ابن جریج اخبرنا عنه ...الخ:

د دې حاصل دا دې چې پورته سند سفیان داسې بیان کړې وو سفیان عن کثیر عن بعض اهله

---

[1]) حافظ وائی شاید امام بخاری رحمه الله دې عدم الفرق سره اشاره اوکړه دهغه حدیث تضعیف طرف ته دکوم تخریج چه اصحاب السنن کړې دې د مطلب بن ابی وداعه رضی الله عنه حدیث،اه، زه وائم امام ابوداؤد هم دهغې په سند باندې کلام کړې دې. کما تری.

[2]): سنن النسائي/القبلة ۹(۷۵۹)، والحج ۱۶۲(۲۹۶۲)، سنن ابن ماجه/المناسك ۳۳(۲۹۵۸)،( تحفة الأشراف: ۱۱۲۸۵)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۹۹/۶)(ضعیف)

عن جده یعنی د کثیر استاذ سفیان د هغوی په کوروالو کښې څوک مبهم کس جوړ کړو او بیا ئې د هغوی استاذ جد کثیر یعنی مطلب بن ابی وداعه جوړ کړو د دې نه پس سفیان[1] دا فرمائی اصل خبره دا ده چې دا حدیث اولاً ماته په واسطه د ابن جریج د کثیر نه رارسیدلې وو نو هغه وخت ابن جریج د کثیر استاذ د هغهٔ پلار ګرځولې وو او سند ئې داسې بیان کړې وو اخبرنا کثیر عن ابیه سفیان وائی چې د دې نه پس زهٔ براه راست کثیر سره ملاؤ شوم نو هغوی ماته دا اوفرمائیل چې دا حدیث ما د خپل پلار نه نهٔ دې اوریدلې بلکه د خپل بعضې اهل نه مې اوریدلې دې لهذا تحقیقی خبره دا ده چې کثیر دې حدیث لره عن ابیه عن جده نهٔ بیانوی بلکه عن بعض اهله عن جده ئې بیانوی اوس دا معلومه نهٔ ده چې د بعضې اهل مصداق څوک دی؟ البته دومره معلومه ده چې د دې مصداق پلار نهٔ دې

## بَابُ تَحْرِيمِ حَرَمِ مَكَّةَ

### باب: په مکه کښې د حرم د حرمت بیان

تحریم په معنی د اثباتِ حرمة وعظمة یعنی د مکې مکرمې دپاره د حرمت او د عظمت اثبات یا تحریم په معنی د جعل الشئ حراماً ممنوعاً نو بعضې هغه افعال چې په غیرمکه کښې حلال دی او په مکه مکرمه کښې هغه حرام دی مثلاً قتال، ښکار، اوښې کټ کول وغیره لیکن منشا دلته د دې تحریم هم هغه تعظیم مکه دې نو تحریم و تعظیم دواړه متقارب المعنی او متلازم دی اصل کښې د تعظیم معنی یوڅیز لره عظیم او لوې ګنړل که من حیث الفضل والثواب او که من حیث الجرم والعقاب نو مصنف په دې کتاب کښې یو باب ترلې دې په ځائې د باب تحریم الزنا باب تعظیم الزنا یعنی زنا لره جرم عظیم ګنړل والله تعالی اعلم

[۲۰۱۷](۲) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا الْوَلِيدُ بْنُ مُسْلِمٍ، حَدَّثَنَا الْأَوْزَاعِيُّ، حَدَّثَنِي يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ أَبِي كَثِيرٍ، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: لَمَّا فَتَحَ اللَّهُ تَعَالَى عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَكَّةَ، قَامَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيهِمْ فَحَمِدَ اللَّهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ اللَّهَ حَبَسَ عَنْ مَكَّةَ الْفِيلَ وَسَلَّطَ عَلَيْهَا رَسُولَهُ وَالْمُؤْمِنِينَ، وَإِنَّمَا أُحِلَّتْ لِي سَاعَةً مِنَ النَّهَارِ ثُمَّ هِيَ حَرَامٌ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا يُعْضَدُ شَجَرُهَا وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا تَحِلُّ لُقَطَتُهَا إِلَّا لِمُنْشِدٍ". فَقَالَ عَبَّاسٌ: أَوْ قَالَ: قَالَ الْعَبَّاسُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِلَّا الْإِذْخِرَ، فَإِنَّهُ لِقُبُورِنَا وَبُيُوتِنَا. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِلَّا الْإِذْخِرَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَزَادَنَا فِيهِ ابْنُ الْمُصَفَّى، عَنِ الْوَلِيدِ، فَقَامَ أَبُو شَاهٍ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْيَمَنِ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، اكْتُبُوا لِي. فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "اكْتُبُوا لِأَبِي شَاهٍ". قُلْتُ لِلْأَوْزَاعِيِّ: مَا قَوْلُهُ اكْتُبُوا لِأَبِي شَاهٍ؟ قَالَ: هَذِهِ الْخُطْبَةُ الَّتِي سَمِعَهَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دابوهریره رضي الله عنه نه روایت دې فرمائی چه کله الله تعالی نبی علیه السلام ته مکه فتح کړه نونبی علیه السلام

---

[1] ابن جريج روي الحديث عن كثير عن ابيه عن جده، واما سفيان بن عيينة فرواه عن كثير عن بعض اهله عن جده وصرح بان المراد بالاهل غير ابيه فالظاهر ان الصحيح رواية سفيان.

[2]: صحيح البخاري/اللقطة ٧(٢٤٣٤)، صحيح مسلم/الحج ٨٢(١٣٥٥)، سنن الترمذي/الديات ١٣(١٤٠٥)، سنن النسائي/القسامة ٢٤(٤٧٨٩، ٤٧٩٠، ٤٧٩١)، سنن ابن ماجه/الديات ٣(٢٦٢٤)،(تحفة الأشراف: ١٥٣٨٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢/٢٣٨)، سنن الدارمي/البيوع ٦٠(٢٦٤٢)، ويأتي هذا الحديث في العلم(٣٦٤٩، ٣٦٥٠) وفي الديات(٤٥٠٥)(صحيح)

خلقو په مینځ ښی ودریدو دالله تعالی حمد اوتعریف ئې بیان کړو اووئې فرمائیل الله تعالی دمکې مکرې نه اصحاب فیل منع کړله او په دې باندې ئې خپل رسول اونور مومنان غالب کړل، اوپه مکه کښې جنګ اوقتل قتال زما دپاره دلږ وخت دپاره حلال شوې وو ددې نه پس به دقیامت دورځې پورې حرام وی ددې ځائې ونه به نشی کټ کولې اونه دی ددې ځائې ځناور دښکار دپاره پاڅولې شی اوددی ځائې لقطه (غورزیدلې څیز) پورته کولې شی مګرهغه څوك چه ددې نښی بیانولې شی خلقوته، په دې وخت کښې عباس رضی الله عنه پاڅیدو او عرض ئې اوکړو اې دالله رسوله لیکن اذخر(ګیا) خو زمونږ په قبرونو او کورونو کښې استعمالیږی نبی ﷺ اوفر مائیل اذخر(په وخت دضرورت ریبل جائزدي) ابوداود وائی چه ابن المصفی دولید نه نقل کړی دی چه ابو شاه یمنی پاڅیدو اوعرض یسې اوکړو اې دالله رسوله ماته کښې ولیکه نبی ﷺ اوفرمائیل ابو شاه ته لیکلی ورکړئ ولید وائی ما اوضاعی ته اووئیل ابوشاه ته لیکلی ورکړئ ددې جملی څه مطلب دې؟ هغه جواب راکړو چه ددې نه مراد هغه خطبه ده کومه چه ئې دنبی ﷺ نه اوریدلی وه.

## د حديث مبارك شرح:

**قوله:** ان الله حبس عن مكة الفيل ..الخ: يعنی کوم ذات چې هاتهيان په مکه مکرمه باندې د حملې کولو نه منع کړې وو هغې ذات خپل رسول ته په مکه مکرمه باندې د ورتللو حکم اوکړو لیکن د اصحاب الفیل مقصد په دې حمله باندې د کعبې مبارک شهید کول او ورانول وو او د رسول الله مبارك ﷺ مقصود د بیت الله شریف تعظیم او مکه معظمه د بتانو او د مشرکانو نه خالی کول او د دین د دشمنانو نه خالی کول وو وانما احلت لی ساعة من نهار فرمائی زما دپاره هم احلال مکه صرف د یو ساعت دپاره وو د دې نه پس همیشه دپاره حرمت واپس راغې اوس دوباره قیامته پورې د چا دپاره هم په دې کښې قتال جائز نهٔ دې.[1]

**لا يعضد شجرها ولا ينفر صيدها** چې کوم امور خاص په حرم کښې ناجائز دی او د حرم د شان خلاف دی دا د هغې بیان دې چې نهٔ دې د حرم د زمکې اونې کټ کړې شی او نهٔ دې د هغه ځائې ښکار اوچیړلې شی(دا د خپل ځائې نه لرې نهٔ کړې شی) چې هرکله صرف تنفیر حرام دې نو اتلاف و اهلاک به بطریق اولی ناجائز وی

[1] سوال: آیا جهاد به هم جائز نه وی؟ جواب: نه، ځکه چه ان شاء الله تعالی دې نه پس آئنده به کله هم کافرانو ته طاقت او غلبه حاصله نه شی، مکه به دارالحرب نه جوړیږی. فقد روی الترمذی (ص ۱۹٤ ج ۱) عن الحارث بن مالك بن برصاء قال سمعت النبي يوم فتح مكة يقول لا تغزي هذه بعد اليوم الي يوم القيامة (قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح) چه بیشکه د نن نه پس به په مکه باندې حمله او ددې د فتح کولو ضرورت نه راځی، باقی دا بله خبره ده چه یو مسلمان بادشاه په مکه مکرمه باندې د بل بادشاه حکومت ختمولو دپاره حمله اوکړی او دا واقع شوی دی. په حدیث کښې ددې نفی نشته. لکه عبدالملك بن مروان په ۳۷هـ کښې حجاج بن یوسف د لښکر امیر جوړ کړو اوپه مکه مکرمه باندې ئې حمله اوکړه، هلته د عبدالله بن الزبیر حکومت وو، هغه ته ئې شکست ورکړو، بهانسی ئې کړو، دا مشهوره قصه ده، دا حمله په اصل کښې په مکه یا بیت الله شریف باندې نه وه بلکه دهغه ځائې په حکومت باندې وه.

## د حرم کوم وابنهٔ او اونه کټ کول منع دی

د حرم کومه اونه او وابنهٔ ممنوع دی په دې کښې تفصیل دې د شافعیه په نزد په دې کښې هیڅ قید نشته هر قسم اونه او وابنهٔ منع دی سواء کان مما ینبة الناس او ینبت بنفسه یعنی خوا داسې وی چې عام طور ئې خلق لګوی او خوا خودرو وی د امام مالک په نزد په دې کښې د جنس اعتبار دې یعنی کوم چې د جنس په لحاظ سره خودرو وی(چې عام طور ئې خلق نهٔ کری بلکه په خپله راخیژی) د هغې کټ کول ممنوع دی اګرچه فی الحال اوس چا کرلې وی د امام احمد په نزد د جنس اعتبار نشته بلکه دا کتل دی چې بالفعل څنګه دې که په خپله راخیژی نو بیا خو ئې کټ کول منع دی او که چا کرلې وی(خواه د جنس په لحاظ سره خودرو وی) نو بیا د هغې کټ کول جائز دی او د حنفیه په نزد د منع کیدو دپاره د جنس او د فعل دواړو اعتبار دې(١) لهذا چې کومه اونه د جنس په لحاظ سره خودرو وی او هسې هم خودرو وی چا کرلې نهٔ وی نو بیا به د هغې کټ کول منع وی هکذا یستفاد من الاوجز

**قوله:** قال العباس یا رسول الله صلی الله علیه وسلم الا الاذخرفانه لقبورنا وبیوتنا : حضرت عباس رضی الله عنه نبی ﷺ ته عرض اوکړو چې یا رسول الله! د اذخر استثناء اوکړئ یعنی د دې د کټ کولو اجازت اوکړئ ځکه چې(دا زمونږ د ضرورت او د کار څیز دې) په کورونو کښې هم په کار راځی او په قبرونو کښې ،کورونو کښې هم په کار راځی ځکه چې په څپر کښې دا لګوو او د قبر لحد چې کله په کچه ښختو سره بند کړو نو د ښختو مینځ کښې سوری په دې سره بندوو نبی ﷺ د دوی په ترغیب او تلقین سره د دې استثناء اوفرمائیله د دې استثناء نوم استثناء تلقین دې چې د بل په کلام کښې اضافه کولې شی اکتبوا لابی شاة د دې تشریح د علم حدیث په مقدمه کښې د کتابت حدیث په بحث کښې تیره شوې ده قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی(عون)

[٢٠١٨](٢) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ مَنْصُورٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ طَاوُسٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، قَالَ: وَلَا يُخْتَلَى خَلَاهَا.

طاوس دابن عباس رضی الله عنهما نه دتیر شوی روایت په شان روایت نقل کړې دې مګر په دې روایت کښې دا اضافه ده ولا یختلی خلاها » یعنی ددې ګیادی نشی ریبلې.

## د مقام مناسب بعضې فقهی جزئیات او د امامانو اختلاف

**قوله:** عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما فی هذه القصة ولا یتخلی خلاها..الخ:

---

(١) او که بالفعل خپله راټوکیدونکې دې او چا کرلې نه دې خو د جنس په لحاظ سره داسې نه دې بلکه عام طور خلق دا کری، او د دې پرې کول د احنافو په نزد ممنوع نه دی بلکه جائز به وی،ځکه چه د منع صرف یو قید موجود دې بل نه. ١٢

(٢): صحیح البخاري/ جزاء الصید ٩(١٨٣٤)، الجهاد ١(٢٧٨٣) صحیح مسلم/الحج ٨٢(١٣٥٣)، سنن الترمذي/ السیر ٣٣(١٥٩٠)، سنن النسائي/ الکبری/ الحج(٣٨٥٧)،( تحفة الأشراف: ٥٧٤٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(٢٢٦/١، ٢٥٩، ٣١٥، ٣٥٥) ویأتي هذا الحدیث في الجهاد(٢٤٨٠)(صحیح)

خلا واڼی لمدې (شنه) وښو ته (النبات الرطب) د شنو وښو کټ کول خو بالاتفاق ممنوع دی واما الیابس فکذلک عندمالک .و د حنفیه و حنابله په نزد د منع تعلق دې سره نهٔ دې د دې دواړو په نزد د دې قطع کول او قلع دواړه جائز دی او د شافعیه په نزد د اوچو وښو کټ کول خو جائز دی لیکن قلع (یعنی د ویخ نه ویستل) جائز نهٔ دی دلته یو مسئله بله ده هغه دا چې دې حدیث نه د وښو کټ کول خو معلوم شو لیکن رعی (څاروی څرول) د دې حکم معلوم نهٔ شو جواب دا دې چې د حنفیه و حنابله په نزد دا هم ناجائز دی بلکه بطریق اولی ناجائز دی فانه اشد من الاحتشاش ځکه چې په دې کښې د حرمت هتک او د رعایت ترک کول زیات موندې شی په نسبت د قطع کولو ،په خلاف د شافعیه ومالکیه چې د هغوی په نزد رعی یعنی څاروی څرول جائز دی (بدل) یاد ساتئ چې د دې منع نه زروع وبقول واذخر مستثنی دی د دې کټ کول بالاتفاق جائز دی بیا دا هم یاد ساتل پکار دی چې په دې کښې د فقهاء کرامو اختلاف دې چې د حرم شریف د اونو د کټ کولو جزا او کفاره څهٔ ده؟ نو د امام مالک په نزد په دې کښې جزا واجب نهٔ ده بس دا کار کول حرام دی او په کښې ګناه ده او د امام شافعی و احمد په نزد په لویه اونه کټ کولو کښې غوا ده او په وړه اونه کټ کولو کښې چیلۍ واجب ده او په ډیره وړه کښې قیمت واجب دې او زمونږ احنافو په نزد مطلقاً قیمت واجب دې او هم دا جزا ده قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم (عون)

[٢٠١٩] ([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، حَدَّثَنَا إِسْرَائِيلُ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ مُهَاجِرٍ، عَنْ يُوسُفَ بْنِ مَاهَكَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَلَا نَبْنِي لَكَ بِمِنًى بَيْتًا أَوْ بِنَاءً يُظِلُّكَ مِنَ الشَّمْسِ؟ فَقَالَ: "لَا، إِنَّمَا هُوَ مُنَاخُ مَنْ سَبَقَ إِلَيْهِ".

دام المومنین عائشة رضي الله عنها نه روایت دې فرمائی چه ما عرض اوکړو اې د الله رسوله آیا ستا د پاره په منی کښې یو کور جوړ نکړو چه ته په کښې دغرمونه محفوظ ئې نبی عليه السلام اوفرمائیل دادهغه چاځائې دې څوک چه هلته مخکښې ورسیږی (یعنی ددې ځائې زمکه دچا دپاره محسوس نه ده بلکه وقف کړې شوی زمکه ده)

الا نبنی لک بمنی بیتاً د نبی عليه السلام نه اجازت طلب کړې شو چې که اجازت وی نو ستاسو دپاره به باقاعده عمارت (یعنی کچه عمارت چې کوم په هغه زمانه کښې عام وو او رواج ئې وو) په منی کښې به جوړکړې شی چې په هغې کښې به تاسوپه ایام منی کښې اوسیږی نو نبی عليه السلام د دې نه منع اوفرمائیله منی مناخ من سبق چې منی د هغې سړی قیام ګاه ده چې هغې ته مخکښې اورسی ګویا نبی عليه السلام اشاره اوفرمآئیله دې خبرې طرفته چې منی مباح زمکه ده د هیچا ملکیت نهٔ دې د ټولو مسلمانانو په دې کښې برابر حق دې که په دې کښې ترجیح کیدې شی نو هغه د تقدم او د سبقت په وجه باندې کیدې شی

[1] ): سنن الترمذي/الحج ٥١(٨٨١)، سنن ابن ماجه/المناسك ٥٢(٣٠٠٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٦٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(١٨٧/٦، ٢٠٦)، سنن الدارمي/المناسك ٨٧(١٩٨٠)(ضعيف)

## د حرم زمکه موقوف ده یا مملوک؟او په دې کښې څلور مذاهب

علامه طیبی د دې په شرح کښې لیکی یعنی منی د نسک د ادا کولو ځائې دې رمی،نحر او حلق وغیره چې په دې کښې ټول خلق برابر شریک دی هیچا ته اختصاص حاصل نۀ دې او که د نبی علیه‌السلام دپاره هلته عمارت او آبادی وی نو بیا به د دوی په اتباع کښې جوړولې شو او ځائې به تنګ شوې وو بیا وړاندې علامه طیبی صاحب لیکی او د حرم شریف زمکه د امام اعظم صاحب په نزد موقوف ده د دې تملک جائز نۀ دې اهـ زۀ وایم ټوله مکه مکرمه او منی و مزدلفه دا ټول د حرم شریف په زمکه کښې داخل دی البته عرفات د حرم شریف د زمکې نه خارج دې کما سبق فی محله دغه شان په دې مسئله کښې هم اختلاف دې چې ارض حرم موقوف دې چې د دې تملک ناجائز دې یا غیرموقوف او مملوک ده؟ په دې سلسله کښې امام بخاری صاحب باب قائم کړې دې باب توریث دور مکة وبیعها وشرائها الخ چې هغې سره هغوی ثابته کړې ده چې د مکې مکرمې کورونه د هغې د مشرانو ملکیت دې چې په هغې کښې به د وراثت امور وغیره جاری کیږی لکه څنګه چې د سړی په ملکیتونو وغیره کښې جاری کیږی دغه شان د هغې بیع و شراء،اصل کښې په دې سلسله کښې دلیلونه متعارض دی بعضو روایتونو کښې تصریح سره د دې تصرفاتو نه منع کړې شوې ده او د دې بالمقابل د بعضو نه جواز ثابتیږی دا ټول دلیلونه د فقه و شروح حدیث په کتابونو کښې موجود دی حضرت شیخ صاحب هم په لامع الدراری صفحه ١٩٧ج٢ کښې کافی تفصیل سره متعدد کتابونو نه نقل کړې دی په هغې کښې ئې لیکلې دی چې امام ابوحنیفه وامام مالک سفیان ثوری،عطاء بن ابی رباح او امام احمد فی روایة د دې خبرې قائل دی چې د حرم شریف زمکه موقوف ده د چا ملک نۀ دې د ټولو دپاره د دې نه فائده او نفع اخستل مباح دی لهذا د دې بیع و شراء واجاره وغیره ناجائز دی او څوک چې کوم ځائې او په کومه بناء باندې مقیم دې نو هغۀ ته هلته د اوسیدو حق حاصل دې هغه په کښې په خپله اوسیږی یا په کښې بل څوک اوسوی نو ورته اختیار حاصل دې او د حضرت امام شافعی و صاحبین او امام احمد فی روایة په نزد ارض حرم و مکه مکرمه موقوف نۀ دې بلکه څوک چې په کومه زمکه او مکان کښې اوسیږی نو هغه د هغۀ ملک دې لهذا په هغې کښې به وراثت هم جاری کیږی او بیع وشراء و اجاره وغیره به هم جائز وی د فریق اول(حنفیه وغیره) دلیل دا دې چې مکه مکرمه عنوة فتح شوې ده او چې کوم ملک او زمکه عنوة فتح شی نو د هغې اصول دا دی چې کۀ دې له د غانمینو چه مینځ کښې تقسیم کړې شی نو بیا خو د هغوی ملک وی او که تقسیم نۀ کړې شی نو بیا هغه وقف کیږی او د مکې مکرمې د زمکې باره کښې ټولو ته معلومه ده چې دا د فتح کولو نه پس تقسیم شوې نۀ ده لهذا د مکې مکرمې زمکه به موقوفه وی د قیامت پورې راتلونکو ټولو مسلمانانو دپاره.

## آیا په ارض حرم او په بناء د حرم کښې فرق شته؟

دا هم یاد ساتئ چې د وقف تعلق د زمکې سره دې آبادئ او کورونو سره نۀ دې د دې بیع و شراء او اجاره هبه وراثت ټول څیزونه به په دې کښې جاری کیږی لیکن که ابادی زائله شی نو

بیا به دا تصرفات په زمکه کښې جائز نۀ وی البته دوباره آبادی کولې شی او حافظ ابن قیم په دې کښې مسلک خو د امام أبوحنیفه صاحب اختیار کړې دې لیکن هغوی په آبادئ او د مکې مکرمې په کورونو کښې د بیع و شراء او اجاره په مینځ کښې فرق اوکړو یعنی د مکې مکرمې د کورونو بیع و شراء وغیره خو ئې جائز اوګرځوله لیکن د دې اجارې ته ناجائز وائی البته د مکې په زمکه کښې دواړو ته ناجائز وائی دویم فریق دا وائی( د امام شافعی نه علاوه) چې اګرچه دا خبره بالکل صحیح ده چې مکه مکرمه عنوةً فتحه شوې ده او دا هم صحیح ده چې دا تقسیم کړې شوې نۀ ده لیکن خبره دا ده چې حضور اقدس ﷺ په اهل مکه باندې احسان اوکړو او هغوی املاک او زمکې ئې هم هغوی ته پریخودلې لکه څنګه چې بنو هوازن ته ئې د هغوی ښځې اولاد او آبادئ پریخودلې وې لهذا اهل مکه د فتح مکه نه پس د خپلو زمکو او کورونو هغه شان مالکان پاتې شو لکه څنګه چې د فتح نه وړاندې وو لهذا د حرم زمکه موقوف نه شوه بلکه مملوک شوه

او په جمهور علماؤ کښې د امام شافعی رائې خو مشهور دا ده چې هغوی دا فرمائی چې مکه مکرمه عنوةً نۀ ده فتح شوې بلکه صلحاً فتح شوې ده په دې صورت کښې د اهل مکه په خپل ملکیت باندې قائم پاتې کیدل او د ارض حرم موقوف نۀ کیدل ظاهر دی والله سبحانه وتعالی اعلم

**تنبیه:** د بنده په خیال کښې په دې مسئله کښې حافظ وغیره د شارحینو نه د امام صاحب په مسلک نقل کولو کښې تسامح شوې ده زمونږ صحیح مسلک هغه دې چې کوم امام طحاوی ابوبکر جصاص رازی او ملاعلی قاری رحمه الله نقل کړېدې مونږ پورته هم هغه نقل کړېدې قال المنذری واخرجه الترمذی وابن ماجه(عون)

[۲۰۲۰](1) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا أَبُو عَاصِمٍ، عَنْ جَعْفَرِ بْنِ يَحْيَى بْنِ ثَوْبَانَ، أَخْبَرَنِي عُمَارَةُ بْنُ ثَوْبَانَ، حَدَّثَنِي مُوسَى بْنُ بَاذَانَ، قَالَ: "أَتَيْتُ يَعْلَى بْنَ أُمَيَّةَ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "احْتِكَارُ الطَّعَامِ فِي الْحَرَمِ إِلْحَادٌ فِيهِ".

دموسی بن باذان نه روایت دې فرمائی چه زه یعلی بن امیه ته ورغلم هغه اوفرمائیل یقینا نبی علیه السلام فرمائیلی دی په حرم باندې غله بندول بی دینی ده.

**قوله:** احتکار الطعام فی الحرم الحاد فیه: (2) احتکار وائی د تاجر غله د ګرانئ او قحط په زمانه کښې بندول او کیخودل د مزید ګرانئ په انتظار کښې چې کله نوره هم ګرانه شی نو بیا به ئې خرڅه کړم د دې مزید تفصیل به په کتاب البیوع کښې راشی په مکه مکرمه کښې کر کیله نۀ کیږی هغه وادی غیرذی زرع ده هلته د غلې فراوانی نشته نو چې هرکله په عامو ځایونو کښې احتکار یعنی غله جمع کول ممنوع او مکروه دی نو په مکه مکرمه کښې به یقیناً سخت مکروه وی چې څنګه په مقدس مقاماتو کښې د نیکو اجر ډیر زیات دې نو دغه شان د هغې ځائې د ګناه وبال هم زیات دې په دې وجه ورته الحاد (ظلم او بددینی) وئیلې شوېده.

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۱۸٤۸)(ضعیف)

(2) الالحاد، الانحراف عن الحق الي الباطل.

# باب في نبيذ السقاية

## باب: (په حاجيانو باندې) د نبيذو د څکولو بيان

د سقاية نه مراد سقاية الحاج دې چې د ډير فضيلت څيز دې چې په قران کريم کښې هم د دې ذکر دې اجعلتم سقاية الحاج وعمارة المسجد الحرام يعنى په حاجيانو باندې نبيذ څکل اودا خدمت کول،لکه آل عباس به دا خدمت کوو كما تقدم فى باب يبيت بمكة ليالى منى استاذن العباس رسول الله صلى الله عليه وسلم ان يبيت بمكة ليالى منى من اجل سقايته

[۲۰۲۱]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، حَدَّثَنَا خَالِدٌ، عَنْ حُمَيْدٍ، عَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَجُلٌ لِابْنِ عَبَّاسٍ: مَا بَالُ أَهْلِ هَذَا الْبَيْتِ يَسْقُونَ النَّبِيذَ وَبَنُو عَمِّهِمْ يَسْقُونَ اللَّبَنَ وَالْعَسَلَ وَالسَّوِيقَ، أَبُخْلٌ بِهِمْ أَمْ حَاجَةٌ؟ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: مَا بِنَا مِنْ بُخْلٍ وَلَا بِنَا مِنْ حَاجَةٍ، وَلَكِنْ دَخَلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى رَاحِلَتِهِ وَخَلْفَهُ أُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ، فَدَعَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرَابٍ، فَأُتِيَ بِنَبِيذٍ، فَشَرِبَ مِنْهُ وَدَفَعَ فَضْلَهُ إِلَى أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ فَشَرِبَ مِنْهُ، ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَحْسَنْتُمْ وَأَجْمَلْتُمْ، كَذَلِكَ فَافْعَلُوا"، فَنَحْنُ هَكَذَا لَا نُرِيدُ أَنْ نُغَيِّرَ مَا قَالَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.

دبکر بن عبد الله نه روايت دې فرمائي چه يو کس عبد الله بن عباس رضي الله عنهما ته اووئيل څه وجه ده چه ستاسو کورنۍ والا خلق په نورو خلقو باندې نبيذ (دکجورو شربت) څکوی، اوستاسو تربوران (قريش) په خلقو باندې شوده اوشهد څکوی آيا تاسو بخيلان ئي اوکه فقيران؟ ابن عباس رضي الله عنهما اووئيل مونږ نه بخيلان يو اونه فقيران يو بلکه نبی عليه السلام يوه ورځ پخپله اوښه سور وو اوراغي او اسامه بن زيد ورپسې شاته ناست وو نبی عليه السلام دڅکلو اوبه اوغوښتلې نو دکجورو شربت ورته پيش کړې شو نبی عليه السلام شربت وڅکلو اوچه کوم باقی پاتې شو هغه ئې اسامه بن زيد ته ورکړو اوهغه هم وڅکلو ددې نه پس نبی عليه السلام اوفرمائيل تاسو ډيرښه کار اوکړو دا کار هر وخت کوئ، ابن عباس رضي الله عنهما اووئيل مونږ نه غواړو چه دا معمول بدل کړو کوم ته چه نبی عليه السلام ښه وئيلی دی (يعنی مونږ دنبی عليه السلام د تابعداری په وجه باندې خلقو ته دکجورو شربت پيش کوو او کنجوسان اوفقيران نه يو).

د حديث الباب مضمون دا دې چې يو سړی د ابن عباس رضي الله عنهما نه سوال اوکړو چې مابال اهل هذا البيت دې سره اشاره په خپله د ابن عباس د کور والو طرفته ده چې په تاسو خلقو څه اوشو چې تاسو خلق خو حاجيانو باندې صرف نبيذ څکی، (چې معمولی څيز دې) او ستاسو خاندان والا نورو خلقو به د نبيذ په ځائې پئ او شهد (لسی) او ستوان څکول (چې ډير غوره او عمده څيز دې) نو آيا د دې وجه ستاسو بخل دې يا تنګدستی نو په دې باندې ابن عباس رضي الله عنهما جواب ورکړو چې نۀ دا خبره ده او نۀ هغه بلکه د دې اصل وجه دا ده چې کوم کال باندې نبی عليه السلام حج اوکړو نو نبی عليه السلام په خپله سورلۍ باندې د سوريدو په حالت کښې زمونږ نزدې تشريف راوړو کوم ځائې چې مونږ د سقاية الحاج خدمت کوو (هغه وخت مونږ اتفاقاً په

[1]: صحيح مسلم/الحج ٦٠(١٣١٦)، (تحفة الأشراف: ٥٣٧٣)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٢٤٥، ٢٩٢، ٣٣٦، ٣٦٩، ٣٧٣)(صحيح)

خلقو باندې نبيذ څکوو) نو نبي ﷺ زمونږ نبيذ اوڅکل او باقي ئې اسامه ته ورکړو او وې فرمائيل احسنتم واجملتم كذلك فافعلوا چې دا تاسو ډير ښۀ کوئ دغه شان دا کار کوئ لهذا د کوم څيز چې نبي ﷺ تحسين فرمائيلي دې مونږ په هغې کښې څۀ تغير کول نۀ غواړو (ورنه زمونږ دپاره پئ او لسی وغيره څکول څه ګران کار نۀ دې) اصل کښې د صحابه كرامو ﷺ به دا کوشش وو چې ترڅو کيدې شي نو چې مونږ په هغې حال باندې يو چې په کوم حال باندې د نبي ﷺ په زمانه کښې وو اللهم ازقنا اتباعهم وسلوک سيرتهم قال النووي وفيه دليل على استحباب الثناء على اصحاب السقاية وكل صانع جميل قال المنذري واخرجه مسلم(عون)

## بَابُ الْإِقَامَةِ بِمَكَّةَ

### باب: په مکه مکرمه کښې د قيام کولو بيان

[۲۰۲۲](1) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ يَعْنِي الدَّرَاوَرْدِيَّ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ حُمَيْدٍ، أَنَّهُ سَمِعَ عُمَرَ بْنَ عَبْدِ الْعَزِيزِ يَسْأَلُ السَّائِبَ بْنَ يَزِيدَ: هَلْ سَمِعْتَ فِي الْإِقَامَةِ بِمَكَّةَ شَيْئًا؟ قَالَ: أَخْبَرَنِي ابْنُ الْحَضْرَمِيِّ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ لِلْمُهَاجِرِينَ: "إِقَامَةٌ بَعْدَ الصَّدَرِ ثَلَاثًا فِي الْكَعْبَةِ".

عمر بن عبد العزيزد سائب بن يزيد ﷺ نه تپوس اوکړو چه ايا تا په مکه کښې دا وسيدو په حقله څه اوريدلی دی؟ هغه اووئيل ماته ابن الحضرى وئيلى وى اوهغه دنبي ﷺ نه اوريدلى دی چه فرمائيل ئې مهاجرين چه دحج دارانو دادا کولونه فارغ شی نوپه مکه مکرمه کښې د درې ورځو پورې قيام کولې شي.

للمهاجرين اقامة بعد الصدر ثلثاً علاء بن الحضرمي ﷺ د نبي ﷺ ارشاد مبارک نقل کوی چې نبي ﷺ اوفرمائيل د طواف صدر يعنی طواف وداع نه پس(چې د حج آخری نسک دې) مهاجرين په مکه مکرمه کښې زيات نه زيات درې ورځې حصاريدې شی د دې نه زيات نۀ د نسائی د روايت الفاظ دا دی يمکث المهاجربعد قضاء نسكه ثلثاً په دې حديث کښې د مهاجرينو نه مراد مطلق مهاجرين نۀ دی بلکه هغه کسان چې د مکې مکرمې نه ئې مدينې منورې ته هجرت کړې وو د جمهور علماؤ مسلک هم دا دی چې د مهاجرين مکه دپاره دوباره په مکه مکرمه کښې سکونت اختيارول جائز نۀ دی چې کوم ښار دوی يو ځل د الله تعالى دپاره پريخودلې دې نو اوس دوباره دا اختيارول پکار نۀ دی په دې کښې د بعضې علماؤ اختلاف دې هغوی دا وائی چې دا حکم د فتح مکه نه قبل وو د فتح مکه نه پس د مهاجرينو دپاره هلته قيام کول جائز شوې وو او د دې حديث باره کښې دا خلق وائی چې د نبي ﷺ دا ارشاد د هغې وخت او د هغې زمانې دې چې کله د مکې مکرمې نه مدينې منورې طرفته هجرت کول واجب وو او دا حکم هجرة بعدالفتح منسوخ شوې وو

**فائده:** په کتاب الصلوة کښې تير شوې دی چې د جمهورو په نزد د اقامت مده څلور ورځې

---

(1): صحيح البخاري/مناقب الأنصار ٤٧(٣٩٣٣)، صحيح مسلم/الحج ٨١(١٣٥٢)، سنن الترمذي/الحج ١٠٣(٩٤٩)، سنن النسائي/تقصير الصلاة ٣(١٤٥٥)، سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ٧٦(١٠٧٣)،(تحفة الأشراف: ١١٠٠٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٣٩/٤، ٥٢/٥)، سنن الدارمي/الصلاة ١٨(١٢٤٧)(صحيح)

دی که مسافر منزل ته اورسي او هلته درې ورځې حصار وی نو بیا به هم مسافر وی او که د څلورو ورځو د قیام نیت اوکړی نو د مقیم په حکم کښې به وی په دې مسئله کښې د جمهورو استدلال هم د دې حدیث نه دې

## بَابُ الصَّلَاةِ فِي الْكَعْبَةِ

### باب: په بیت الله کښې د مونځ کولو بیان

دلته د حدیث الباب پیش نظر یو څو امور او مسائل دی(۱) نبی ﷺ د حجة الوداع په موقع باندې بیت الله شریف ته دننه داخل شوې وو که نه؟(۲) بیت الله شریف ته داخلیدل مستحب ومندوب دی که نه؟(۳) نبی ﷺ د فتح مکه په ورځ په بیت الله شریف کښې د داخلیدو نه پس مونځ کړې وو که نه؟(۴) په بیت الله شریف کښې فرض مونځ ادا کول صحیح دی که نه؟

### اولنۍ بحث:

دا بحث مونږ سره د باب حجة الوداع نه قبل د یو حدیث لاندې مجملاً تیر شوې دې په جزء حجة الوداع او الابواب والتراجم کښې ئې لیکلې دی په دې باندې خو اتفاق دې چې نبی ﷺ د عمرة القضاء په سفر کښې په بیت الله شریف کښې نهٔ وو داخل شوې او په دې باندې هم اجماع ده چې د فتح مکه په موقع باندې نبی ﷺ داخل شوې وو لیکن د حجة الوداع په موقع باندې هم داخل شوې وو که نه؟ نو په دې کښې اختلاف دې ابن قیم، ابن تیمیه او امام نووی صاحب خو ددې نه انکار کړې دې اود ابن سعد، بیهقی او د ابن حبان وغیره رائې دا ده چې داخل شوې وو د سهیلی او ابن الهمام رائې دا ده چې په دې موقع باندې نبی ﷺ بیت الله شریف ته دوه ځله داخل شوې وو یو ځل د داخلیدو نه پس ئې په دې کښې مونځ هم اوکړو او یو ځل ئې مونځ اونکړو اول ځل په یوم النحر کښې داخل شوې وو هغه وخت ئې مونځ اونکړو او دویم ځل په صبا داخل شو او مونځ ئې هم اوکړو

### دویم بحث:

د مذاهب اربعه د کتابونو نه دخول بیت او په دې کښې د مونځ مستحب کیدل ثابت دی لیکن حافظ ابن قیم وغیره بعضې علماء د دې د استحباب قائل نهٔ دی په فتح الباری کښې د دې په استحباب کښې ئې دا حدیث لیکلې دې عن ابن عباس رضی الله تعالی عنه مرفوعاً من دخل البیت دخل فی حسنة وخرج مغفوراً له رواه ابن خزیمة والبیهقی وهو ضعیف باقی دخول بیت د حج په مناسکو کښې نهٔ دې په دې وجه امام بخاری باب تړلې دې باب من لم یدخل الکعبة او په دې کښې هغوی د ابن عمر رضی الله عنهما فعل ذکر کړې دې چې اګرچه هغوی به کثرت سره حجونه کول لیکن بیت الله شریف ته نهٔ وو داخل شوې دغه شان ابن عباس رضی الله عنهما هم د دخول کعبه قائل نهٔ وو لکه د مسلم شریف په روایت کښې دی هغوی به فرمائیل امرتم بالطواف ولم تؤمروا بدخوله

### دریم بحث:

په دې کښې روایات مختلف دی اثباتاً و نفیاً حضرت بلال مثبت دې او حضرت ابن عباس

د دې نفي کوي[1] لیکن حضرت بلال رضي الله عنه خو نبي عليه السلام سره بیت الله شریف کښې داخلیدونکو کښې دې لکه څنګه چې په روایاتو کښې د دې صراحت سره ذکر دې او د ابن عباس شمار په داخلیدونکو کښې نهٔ دې په دې وجه ابن عباس د دې نفي نسبت کله خو د اسامه طرفته کوي (چې په داخلیدونکو کښې دې) او کله د خپل رور فضل بن عباس طرفته کوي (حالانکه د فضل دخول په خپله مشکوک دې په مشهور روایتونو کښې نشته) لهذا ترجیح به د حضرت بلال روایت ته وي.

## څلورم بحث:

امام بخاري هم دا باب تړلې دې باب الصلوة في الكعبة حضرت شیخ صاحب لیکي مسئله اختلافي ده د ابن عباس نه روایت دې چې په بیت الله شریف کښې مطلقاً مونځ کول صحیح نهٔ دي للزوم الاستدبار وبه جزم بعض اهل الظاهر وابن جرير واصبغ المالكي والجمهور على الجواز بیا د امامانو په دې کښې اختلاف دې چې هلته صرف نفل مونځ صحیح دې یا نفل او فرض دواړه جائز دي امام مالک واحمد د اول قائل دي او حنفیه و شافعیه د ثاني یعني د عموم جواز قائل دي

## په جوف کعبه او د کعبې په چهت باندې مونځ کله صحیح دې؟

لیکن شافعیه دا وائي چې په بیت الله شریف کښې اګرچه ټولو طرفونو ته مونځ کولې شي لیکن د باب کعبه طرفته مخ کول او مونځ کول هغه وخت صحیح دي چې کله باب کعبه بند وي کهلاؤ نه وي یا کم از کم د هغې چوکهټ مخامخ وي چې تقریباً یو ګز پورته وي دې دپاره چې د عمارت کعبه استقبال وي صرف فضاء نهٔ وي نوره هم مسئله د هغوی په نزد د کعبې د چهت ده چې په دې باندې به مونځ هغه وخت صحیح وي چې کله د مونځ کوونکي مخامخ د چهت منډیر وي (هغه دیوال چې راوتلې غوندې وي) ورنه نهٔ کیږي.

---

[1] او دواړه روایتونه د صحیحین دي، د ابن عمر رضي الله عنه په روایت کښې خو داسې د چه ما د بلال رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه ﴿هل صلي فيها رسول الله صلي الله عليه وسلم قال نعم﴾، او د ابن عباس رضي الله عنه په یو روایت کښې خو داسې دي ﴿ان رسول الله صلي الله عليه وسلم كبر في نواحيه ولم يصل فيه﴾، یعني هغه داخلیدو سره هلته صرف تکبیر اوکړو مونځ ئې نه دې کړې. (صحیح بخاري) او په یو روایت کښې دي ﴿اخبرني اسامة بن زيد ان النبي صلي الله عليه وسلم لما دخل البيت دعا في نواحيه كلها ولم يصل فيه﴾ (صحیح مسلم) دا ټول روایات د فتح مکه په موقع دي، د رسول الله ﷺ سره په بیت الله شریف کښې، اسامه، بلال، عثمان بن طلحه الجمهي داخل شوې وو، لکه چه په روایاتو کښې د دې تصریح ده، ابن عمر رضي الله عنه خو دا فرمائي چه ما د بلال نه تپوس اوکړو، چه ایا رسول الله ﷺ مونځ اوکړو، هغه اوفرمائیل او مونځ ئې اوکړو، او ابن عباس داسې فرمائي: ماته اسامه اوئیل چه هغه هلته مونځ اونکړو، حافظ فرمائي په دې دواړو کښې امام نووي وغیره داسې جمع فرمائیلې دې چه کله دا حضرات بیت الله ته داخل شو نو په دعا کښې مشغول شو، اسامه رسول الله ﷺ اولیدو چه هغه دعا کوي نو هغه هم په دعا کښې مصروف شو په یو ګوټ کښې، او حضور په بل ګوټ کښې وو، نبی علیه السلام چه د دعاء نه فارغ شو نو مونځ ئې هم اوکړو چه دې مونځ لره بلال رضي الله عنه اولیدل ځکه چه هغه ورته نژدې وو او اسامه رضي الله عنه اونه لیدلو ځکه چه هغه لرې وو او په دعاء کښې مشغول وو، او د دروازې د بندیدلو په وجه هسې هم لږه تیاره وي په دې وجه اسامه رضي الله عنه د مونځ نفي اوکړه.

(كذا في الفتح جلد۳ص ۳۷۱)

د بخاری شریف شارحینو دا مسئله په ترجمة البخاري باب اغلاق البيت لاندې ليکلې ده

[۲۰۲۳]() حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "دَخَلَ الْكَعْبَةَ هُوَ وَأُسَامَةُ بْنُ زَيْدٍ وَعُثْمَانُ بْنُ طَلْحَةَ الْحَجَبِيُّ وَبِلَالٌ فَأَغْلَقَهَا عَلَيْهِ فَمَكَثَ فِيهَا"، قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ: فَسَأَلْتُ بِلَالًا حِينَ خَرَجَ: مَاذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَقَالَ: جَعَلَ عَمُودًا عَنْ يَسَارِهِ وَعَمُودَيْنِ عَنْ يَمِينِهِ وَثَلَاثَةَ أَعْمِدَةٍ وَرَاءَهُ، وَكَانَ الْبَيْتُ يَوْمَئِذٍ عَلَى سِتَّةِ أَعْمِدَةٍ، ثُمَّ صَلَّى.

دعبدالله بن عمر ﷺ نه روايت دې - فرمائي چه رسول الله ﷺ بيت الله شريف ته راغې - اودهغه سره اسامه بن زيد اوبلال بن رباح عثمان بن و طلحه رضى الله عنهم وو هغوى دروازه بنده کړه اوهم دلته اودريدل عبدالله وائي مادبلال ﷺ نه تپوس اوکړو نبي ﷺ چه کله تشريف د يوړو نوايا څه عمل ئې کړې وو؟ هغه اوفرمائيل چه يوه ستن ئې دڅان نه ښئ طرف ته کړه او بله ستن ئې م دڅان نه ګس طرف ته کړه اودرى ستنى ئې دڅان نه شاته کړې او په دغه وخت کښې بيت الله شريفى په شپږو ستنوولاړ وو او دوه رکعته مونځ ئې وکړو.

ان رسول الله صلى الله عليه وسلم دخل الكعبة نبى ﷺ سره کعبې مبارکې ته دا درې حضرات داخل شو اسامه، بلال، عثمان بن طلحه او د مسلم په روايت کښې دى ولم يدخل معهم احد چې د دې دريو نه علاوه بل څوک نه وو ليکن د نسائى په روايت کښې د فضل بن عباس هم اضافه ده دا عثمان به طلحه حجبى دې کليد بردار د خانه کعبې دا نسبت د حجابة البيت طرفته دې (د بيت الله دربانى) دا بندول او کهولاؤل او دوى اهل بيت ته حجبه وئيلې شى د مسلم په روايت کښې دى نبى ﷺ د دوى نه د فتح مکه په ورځ د کعبې مبارکې چابى طلب کړه دوى خپلې مور ته ورغلل د چابئ اخستلو دپاره (چې نوم ئې سلافه وو) هغوى د ورکولو نه انکار اوکړو هغوى اووې چې که خپل خير غواړې نو چابى دې ورکړى ورنه ماسره دا توره ده هغې فوراً چابى ورکړه دوى هغه راوړه او نبى ﷺ ته ئې ورکړه او د کعبې مبارکې دروازه ئې کهولاؤ کړه امام نووى په شرح مسلم کښې ليکى عثمان بن طلحه خالد بن الوليد سره صلح حديبيه په زمانه کښې اسلام راوړو او دوى په فتح مکه کښې شريک شو حضور ﷺ دوى ته او شيبة بن عثمان بن ابى طلحه ([2]) ته د کعبې چابى ورکړه او وې

[1]: صحيح البخاري الصلاة ۳۰(۳۹۷)، ۸۱(۴۸۶)، ۹۶(۵۰۴)، التهجد ۲۵(۱۱۶۷)، الحج ۵۱(۱۵۹۸)، الجهاد ۱۲۷(۲۹۸۸)، المغازي ۴۹(۴۲۸۹)، ۷۷(۴۴۰۰)، صحيح مسلم الحج ۶۸(۱۳۲۹)، سنن النسائي المساجد ۵(۶۹۳)، القبلة ۶(۷۵۰)، الحج ۱۲۶(۲۹۰۸)، ۱۲۷(۲۹۰۹)، سنن ابن ماجه المناسك ۷۹(۳۰۶۳)،( تحفة الأشراف: ۲۰۳۷، ۸۳۳۱)، وقد أخرجه: سنن الترمذي الحج ۴۶(۸۷۴)، موطا امام مالك الحج ۶۳(۱۹۳)، مسند احمد(۲/۳۳، ۵۵، ۱۱۳، ۱۲۰، ۱۳۸، ۶/۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۵)، سنن الدارمي المناسك ۴۳(۱۹۰۸)(صحيح)

[2]) دا شيبه د عثمان بن طلحه ابن العم (د تره خوې) دې، خپل خوى ئې نه دې، يو د يو رور اولاد دې، دويم د بل رور، افاده الحافظ في الفتح، ما په بعضې شروحاتو کښې ليکلې دى چه دا عثمان بن طلحه الحجى لاولد وو (خوې ئې نه وو) په دې وجه ددوى نه پس د کعبې چابيانې د شيبه په حصه کښې راغلې وې، په دې وجه اوس دغه کليد برادران ته شيبين وئيلې شى، والله تعالى أعلم.

ددوى سلسله نسب داسې ده: ددې نقشې نه معلوميږى چه شيبه بن عثمان ........←........

فرمائیل خذوها یا بنی ابی طلحة خالدة تالدة لاینزعها منکم الا ظالم(واخلئ سنبهال کړئ دا چابی اې د ابوطلحه اولاده همیشه دپاره به څوک دا نۀ اخلي ستاسو نه مگر هغه سړې چې څوک ظالم وی) قاضی عیاض رحمه الله صاحب فرمائی چې علماؤ لیکلي دی چې دا چابی د هغوی حق دې او حصه ده دا د هغوی نه اخستل جائز نه دی دا ولایت د بیت الله شریف د حضور ﷺ له طرفه هغوی ته ملاؤ شوې دې[1] د دې نه پس به د هغوی په اولاد کښې باقی وی ترڅو چې په دنیا کښې موجود وی او د دې خدمت صلاحیت په کښې موجود وی والله تعالی اعلم

جعل عموداً عن یساره وعمودین عن یمینه په دې سلسله کښې په روایاتو کښې شدید اختلاف دې د صحیحینو روایات او فتح الباری په کتلو سره سمجهـ ته دا خبره راځی چې زیات تر د صحیحینو په روایاتو کښې بین العمودین الیمانیین یا بین العمودین المقدمین دې او د بخاری په یو روایت کښې عموداً عن یساره و عمودین عن یمینه دې او دغه شان دلته په ابوداؤد کښې دی په دې روایاتو کښې خو څه خاص اشکال نشته په دې وجه مونږ وایو اگرچه ښی طرفته دوه ستنې وې او گس طرفته یوه لیکن د دې باوجود بین العمودین وئیل صحیح دی په دې طور چې ښی طرفته چې یو بله ستن وه د هغې صرف ذکر حذف شوې دې نفی ئې نۀ ده کړې لیکن د مسلم په یو روایت کښې چې داسې دې جعل عمودین عن یساره وعموداً عن یمینه دا قابل اشکال خامخا دې حافظ په فتح الباری جلد ۱ ص۴۷۸ کښې امام دارقطنی نه نقل کړې دی چې اکثرو راویانو د امام مالک نه عموداً عن یمینه وعموداً عن یساره نقل کړې دې او اسماعیل د امام مالک نه عموداً عن یساره وعمودین عن یمینه نقل کړې دې(کما فی روایة البخاری وابی داؤد) او یحیی بن یحیی نیسابوری د هغوی نه د دې عکس نقل کړې دې عمودین عن یساره وعموداً عن یمینه(کما فی روایة المسلم) لیکن د اسماعیل متابعت کوونکی اکثر دی د یحيٰ په مقابله کښې په دې وجه امام بیهقی د اسماعیل روایت ته ترجیح ورکړې ده حاصل دا چې د مسلم دا روایت مرجوح دې والله سبحانه وتعالی اعلم

وکان البیت یومئذ علی ستة اعمدة د یومئذ نه معلومیږی چې روستو بیا د دې په آبادئ کښې

---

نسبه......د عثمان بن طلحه الحجبی د تره څوې دې، دا شیبه هم صحابی دې او دده د پلار عثمان اسلام ثابت نه دې، بلکه هغه په جنگ أحد کښې مړ کړې شو کما في البذل.




[1] یعنی اگرچه دا عهده او ولایت کوم چه حجابة البیت او سدانة البیت سره تعبیر کولې شی هغه خلقو ته دمخکښې نه حاصل وو لیکن حضور ﷺ دا برقرار اوساتلو او مضبوطه ئې کړه.

تغیر واقع شوي وو لکه ملاعلي قاري رحمه الله لیکي چې اوس په بیت الله شریف کښې دننه صرف درې ستنې دي

[۲۰۲۴]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ إِسْحَاقَ الْأَذْرَمِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مَهْدِيٍّ، عَنْ مَالِكٍ، بِهَذَا الْحَدِيثِ، لَمْ يَذْكُرِ السَّوَارِيَ، قَالَ: ثُمَّ صَلَّى وَبَيْنَهُ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ ثَلَاثَةُ أَذْرُعٍ.

دمالك په روایت کښې دستنو ذکرنشته اونبی علیه السلام مونځ اوکړو دبیت الله شریف نه درې لاسه نه وروسته په مونځ ودریدو.

[۲۰۲۵]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا أَبُو أُسَامَةَ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَى حَدِيثِ الْقَعْنَبِيِّ، قَالَ: وَنَسِيتُ أَنْ أَسْأَلَهُ كَمْ صَلَّى.

نافع دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه اوهغه د نبی علیه السلام نه دقعنبی دروایت په شان روایت نقل کښې کړې دې او دا اضافه ئې په کښې کړې ده چه هغه اووئیل زمانه هیرشو چه تپوس ترې اوکړم چه څومره مونځ ئې وکړو

[۲۰۲۶]([3]) حَدَّثَنَا زُهَيْرُ بْنُ حَرْبٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ أَبِي زِيَادٍ، عَنْ مُجَاهِدٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ صَفْوَانَ، قَالَ: قُلْتُ لِعُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ: كَيْفَ صَنَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ دَخَلَ الْكَعْبَةَ؟ قَالَ: "صَلَّى رَكْعَتَيْنِ".

دعبدالرحمن بن صفوان نه روایت دي فرمائی چه عمر بن الخطاب رضي الله عنه ته مې اووئیل نبی علیه السلام چه کله کعبې ته داخل شو نوڅه عمل ئې وکړو؟ هغه اووئیل دوه رکعته مونځ ئې وکړو.

[۲۰۲۷]([4]) حَدَّثَنَا أَبُو مَعْمَرٍ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عَمْرِو بْنِ أَبِي الْحَجَّاجِ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا قَدِمَ مَكَّةَ أَبَى أَنْ يَدْخُلَ الْبَيْتَ وَفِيهِ الْآلِهَةُ، فَأَمَرَ بِهَا فَأُخْرِجَتْ، قَالَ: فَأُخْرِجَ صُورَةُ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَفِي أَيْدِيهِمَا الْأَزْلَامُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "قَاتَلَهُمُ اللَّهُ، وَاللَّهِ لَقَدْ عَلِمُوا مَا اسْتَقْسَمَا بِهَا قَطُّ"، قَالَ: ثُمَّ دَخَلَ الْبَيْتَ فَكَبَّرَ فِي نَوَاحِيهِ وَفِي زَوَايَاهُ، ثُمَّ خَرَجَ وَلَمْ يُصَلِّ فِيهِ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روایت دي کله چه نبی علیه السلام مکې ته راغي نوکعبې ته د داخلیدلونه ئې انکار وکړو ځکه چه په هغې کښې دبتانو تصویرونه موجود وو نبی علیه السلام حکم اوکړو اوهغه تصویرونه بهر اوویستل شول اوبیاد ابراهیم علیه السلام اوداسماعیل علیه السلام تصویرونه هم بهر وویستل شول اوددوی په لاسونوکښې غشې وونبی علیه السلام اوفرمائیل الله دی دوی هلاك کړي په الله قسم دوی ښه پوهیدل چه هغوی کله په غشوباندې تقسیم نه دې کړې راوی وائی بیانبی علیه السلام کعبې ته داخل شو اودکعبې په ګوټونو کښې ئې دالله اکبر اواز وکړو اومونځ ئې وکړو.

---

[1]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۲۰۳۷، ۸۳۳۱)(صحيح)
[2]: انظر حديث رقم(۲۰۲۳)، (تحفة الأشراف: ۲۰۳۷)(صحيح)
[3]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۰۵۹۰)، وقد أخرجه: (حم ۳/۴۳۰، ۴۳۱)(صحيح)
[4]: صحيح البخاري/الصلاة ۳۰(۳۹۷)، وأحاديث الأنبياء ۸(۳۳۵۱)، والحج ۵۴(۱۶۰۱)، والمغازي ۴۸(۴۲۸۸)، (تحفة الأشراف: ۵۹۹۵)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ۶۸(۱۳۲۹)، سنن النسائي/المناسك ۱۳۰(۲۹۱۶)، مسند أحمد(۱/۳۳۴، ۳۶۵)(صحيح)

لما قدم مكة ابى ان يدخل البيت دا د فتح مكه واقعه ده يعنى په دغه ورځ باندې نبى ﷺ هغه وخت پورې بيت الله شريف ته دننه نهٔ وو داخل شوې چې ترڅو د هغې نه بتان نهٔ وو راويستلې شوې پس دغه ټول څيزونه بهر راؤغورزولې شو (دغې خبيثانو په دغې بتانو كښې دوه تصويران د حضرت ابراهيم او حضرت اسماعيل عليهما السلام په نوم سره هم جوړ كړې وو) (ګويا دغه د دې دواړو انبياء كرامو تصويران وو) او د دې دواړو په لاسونو كښې هغوى ازلام (١) (دا د زلم جمع ده د دې تفسير په اقلام سره كوى يا قداح سره يعنى تراشلې شوې لرګى د غشى د لرګو په شان) وركړې وو (ګويا دې دواړو حضراتو هم د دې قلمونو په ذريعې سره خپل قسمت معلومولو د اهل جاهليت په شان) د دې په ليدلو سره نبى ﷺ اوفرمائيل الله تعالى دې دوى هلاک كړى په خپله هم دوى ته د دې خبرې يقين دې چې دې دواړو كله هم په دې غشو سره قسمت آزمائى نهٔ ده كړې (ليكن د دې باوجود هم دې خلقو د دوى په لاسونو كښې دا ازلام او اقلام وركړې دى)

## بَابُ الصَّلَاةِ فِي الْحِجْرِ

### باب: په حطيم (كښې د مونځ كولو) بيان

[٢٠٢٨] (٢) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْعَزِيزِ، عَنْ عَلْقَمَةَ، عَنْ أُمِّهِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: كُنْتُ أُحِبُّ أَنْ أَدْخُلَ الْبَيْتَ فَأُصَلِّيَ فِيهِ، فَأَخَذَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدِي فَأَدْخَلَنِي فِي الْحِجْرِ، فَقَالَ: "صَلِّي فِي الْحِجْرِ إِذَا أَرَدْتِ دُخُولَ الْبَيْتِ، فَإِنَّمَا هُوَ قَطْعَةٌ مِنَ الْبَيْتِ، فَإِنَّ قَوْمَكِ اقْتَصَرُوا حِينَ بَنَوُا الْكَعْبَةَ فَأَخْرَجُوهُ مِنَ الْبَيْتِ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې: فرمائى چه زما دا خواهش وو چه بيت الله ته لاړه شم نه اومونځ په كښې اوكړم نو يوځل نبى ﷺ دلاس نه اونيولم او حطيم ته ئې داخل كړم او راته ئې اوفرمائيل كله چه بيت الله ته داخليدل أوغواړې د نوپه حطيم كښې مونځ اوكړه ځكه چه حطيم دبيت الله يوجزء دې اوستا قوم (قريش) دبيت الله په جوړولو كښې كوتاهى كړې ده ته داكوتاهى دبيت الله نه اوباسه.

---

(١) په هغې كښې په يو باندې ليكلې وو ﴿ افعل ﴾ او په يو باندې ﴿ لا تفعل ﴾ او يو خالى غشى چه په هغې باندې ليكلې شوې نه وو دا ازلام سادن (خادم بيت الله) په لاس كښې وه چه كله به چاته څه حاجت وو سفر وغيره يا واده يا بل څه كار او دا معلومول غوښتل چه ما له دا كار كول ښكار دى يا نه؟ نو هغه به دې كاهن ته راغلو او هغه ته به ئې وئيل چه ته زما قسمت معلوم كه چه آيا ماله دا كار كول ښكار دى يا نه؟ دا كار زما په حق كښې بهتر دې يا نه؟ نو په دې باندې به هغه ټوله ورځ قرعه اندازى كوله، كه په هغې كښې به ﴿ افعل ﴾ راوتلو نو هغه كار به ئې كولو او كه ﴿ لا تفعل ﴾ به راوتلو نو هغه كار به ئې نه كولو، او كه خالى غشى به راوتلو نو بيا به ئې دوباره قرعه اندازى كوله او بيا به ئې هم دغه شان كول، هغه خلقو ډير نامعلوم څيزونو د معرفت ذريعه هم دا طريقه جوړه كړې وه ډير نزاعى مسائل هم دغه شان حل كيدې. لا حول ولا قوة الا بالله العلي العظيم.

(٢): سنن النسائي/الحج ١٢٩ (٢٩١٥)، سنن الترمذي/الحج ٤٨ (٨٧٦)، (تحفة الأشراف: ١٧٩٦١)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الحج ٤٢ (١٥٨٣)، وأحاديث الأنبياء ١٠ (٣٣٦٨)، وتفسير سورة البقرة ١٠ (٤٤٨٤)، والتمني ٩ (٧٢٤٣)، صحيح مسلم/الحج ٦٩ (٣٩٨)، سنن ابن ماجه/المناسك ٣١ (٢٩٥٥)، موطا امام مالك/الحج ٣٣ (١٠٤)، مسند احمد (٦/٦٧، ٩٢، ٩٣)، سنن الدارمي/المناسك ٤٤ (١٩١١) (حسن صحيح)

# بَابٌ فِي دُخُولِ الْكَعْبَةِ

## باب: په كعبه كښې د داخليدو بيان

[۲۰۲۹](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ دَاوُدَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ عَبْدِ الْمَلِكِ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا وَهُوَ مَسْرُورٌ، ثُمَّ رَجَعَ إِلَيَّ وَهُوَ كَئِيبٌ، فَقَالَ: "إِنِّي دَخَلْتُ الْكَعْبَةَ، وَلَوِ اسْتَقْبَلْتُ مِنْ أَمْرِي مَا اسْتَدْبَرْتُ مَا دَخَلْتُهَا، إِنِّي أَخَافُ أَنْ أَكُونَ قَدْ شَقَقْتُ عَلَى أُمَّتِي".

ام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام زما د خوانه روان شو په داسې حال كښې چه خوشحاله وو خو چه كله واپس راغي نو غمژن ښكاره كيدو، نو په دې وخت كښې ئې اوفرمائيل بيت الله ته داخل شوم كه چرې ماته مخكښې د دې خبرې علم وې كوم چه ماته اوس حاصل شو نو زه به ورته نه وم داخل شوې زما سره دا اندېښنه ده چه زما امت ته مشكلات پيښ نشي بيت الله ته په داخليدو كښې.

**تشريح: قوله:** عن عائشة ان النبى صلى الله عليه وسلم خرج من عندها وهو مسرور الخ:

د دې حديث حواله مونږ سره د دې نه قبل چې دا بحث كوم ځائې تير شوې دې چې حضور عليه السلام د حجة الوداع په موقع باندې بيت الله شريف ته داخل شوې وو كه نه؟ د دې حديث مفهوم دا دې حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي نبي عليه السلام زما د خوا نه تشريف يوړو په داسې حال كښې چې نبي عليه السلام خوشحاله او راضي وو د دې نه پس چې كله واپس شو نو بيا خفه او غمژن وو (او د غم وجه ئې دا بيانكړه) چې زۀ بيت الله شريف ته داخل شوې ووم ليكن كومه خبره چې زما ذهن ته د دننه تلو نه پس راغله كه دا خبره د دننه تلو نه مخكښې زما ذهن ته راغلې وې نو زۀ به نۀ ووم داخل شوې او هغه خبره دا ده چې ما په خپلو داخليدو سره خپل امت په مشقت كښې واچوو (ځكه چې اوس به ټول خلق زما په اتباع كښې د داخليدو كوشش كوى او په مشقت كښې به پريوځى)

### آيا نبي عليه السلام د حجة الوداع په موقع باندې بيت الله شريف ته داخل شوې وو؟

چې كوم خلق د دې خبرې قائل دى چې نبي عليه السلام د حجة الوداع په موقع باندې بيت الله شريف ته داخل شوې وو نو هغوى د دې حديث نه استدلال كوى چې په دې باندې خو د ټولو خلقو اتفاق دې چې نبي عليه السلام د هيڅ يو عمرې په سفر كښې بيت الله شريف ته نۀ وو داخل شوې او په دې باندې هم اتفاق دې چې په فتح مكه كښې داخل شوې وو په رواياتو كښې د دې تصريح موجود ده اوس پاتې شو دا روايت په دې كښې څۀ تصريح نشته چې دا د كوم وخت واقعه ده د فتح مكه يا د حجة الوداع ليكن په فتح مكه باندې محمول كول خلاف ظاهر دى ځكه چې په دې سفر كښې عائشه رضي الله عنها د نبي عليه السلام سره نۀ وه او په حجة الوداع كښې ورسره وه باقي دا احتمال كيدې شي چې دا واقعه د فتح مكه وى او مطلب دا دې چې كله نبي عليه السلام د سفر نه مدينې منورې ته واپس تشريف راوړو نو هغه وخت حضور

(۱): سنن الترمذي/الحج ۴۵(۸۷۳)، سنن ابن ماجه/المناسك ۷۹(۳۰۶۴)، (تحفة الأشراف: ۱۶۲۳۰)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱۳۷/۶)(ضعيف)

حضرت عائشه ته دا خبره اوفرمائیله بالکل خلاف ظاهر ده ځکه چې د نبی ﷺ دا سفر مبارک د ډیرو خوشحالو باعث وو په دې کښې دوه عظیم الشانه فتح اوشوې یو فتح مکه او دویمه فتح حنین او تقریباً د نبی ﷺ دوه میاشتې په دې سفر کښې خرچ شوې بیا د دخول کعبه دا غم په دې ټولو خوشحالو باندې څنګه غالب راغې بلکه صحیح دا ده چې نبی ﷺ په مکه مکرمه کښې د عائشې نه پاسیدلو او حرم ته ئې تشریف یوړو او په بیت الله شریف کښې داخل شو بیا چې یو څو ګهنټې پس واپس شو او بی بی عائشې ته راغې نو هغه وخت ئې ورته دا خبره اوکړه په دې صورت کښې دا واقعه د حجة الوداع کیدې شي (جزء حجة الوداع وبذل المجهود)

[٢٠٣٠]() حَدَّثَنَا ابْنُ السَّرْحِ، وَسَعِيدُ بْنُ مَنْصُورٍ، وَمُسَدَّدٌ، قَالُوا: حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ مَنْصُورٍ الْحَجَبِيِّ، حَدَّثَنِي خَالِي، عَنْ أُمِّي صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ، قَالَتْ: سَمِعْتُ الْأَسْلَمِيَّةَ، تَقُولُ: قُلْتُ لِعُثْمَانَ: مَا قَالَ لَكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ دَعَاكَ؟ قَالَ: قَالَ: "إِنِّي نَسِيتُ أَنْ آمُرَكَ أَنْ تُخَمِّرَ الْقَرْنَيْنِ، فَإِنَّهُ لَيْسَ يَنْبَغِي أَنْ يَكُونَ فِي الْبَيْتِ شَيْءٌ يَشْغَلُ الْمُصَلِّيَ"، قَالَ ابْنُ السَّرْحِ: خَالِي مُسَافِعُ بْنُ شَيْبَةَ.

منصوروائی چه ماته زما ماما زما د مورنه روایت بیان کړی دی هغې وئیل چه داسلمیه ﷞ نه مې اوریدلی دی وئیل ئې چه ما عثمان بن عفان ﷜ ته ووئیل نبی ﷺ چه ته غوښتلې وې نوځه ئې درته ووئیل: عثمان ﷜ ووئیل نبی ﷺ راته اوفرمائیل چه ماتاته د داخبره کول هیرکړی ووچه دهغه ګی ښکرونه پټ کړئ( کوم ګډ چه داسماعیل ﷺ د ذبح کیدوپه وخت کښې جبرئیل ﷺ راوړی وو)ددې دپاره چه په کعبه کښې هیڅ یو داسې شی پاتې نشي کوم ته چه دمونځ په وخت کښې توجه ورګرځی ځکه چه په دې سره په خشوع کښې فرق راځي. ابن السرح وئیلی دی چه زما د ماما نوم مسافع بن شیبه وو.

عَنْ مَنْصُورٍ الْحَجَبِيِّ..الخ: دا منصور، شیبة بن عثمان حجبی (کلید بردار) چې د دهٔ ذکر پورته شوې دې نمسې دې( په دې وجه دې هم حجبی شو) وائی چې ماته زما ماما بیان اوکړو زما د مور نه نقل کونکې وو د منصور مور صفیه بنت شیبه ده او وړاندې په روایت کښې راځی چې د دوی د ماما نوم مسافع دې په دې کښې اشکال دې هغه دا چې ماما خو د مور رور ته وائی نو مسافع به ئې هغه وخت مامام وې چې کله دا د منصور د مور رور وو حالانکه داسې نهٔ ده بلکه مسافع د هغهٔ د مور خوریې دې لهذا دهٔ ته ماما وئیل مجاز دې(بذل)

قلت لعثمان ما قال لک رسول الله صلی الله علیه وسلم : اسلمیه داسې وائی ما د عثمان بن طلحه الحجبی نه دا تپوس اوکړو چې حضور ﷺ د بیت الله شریف نه بهر راتللو سره تاسو ته څهٔ خبره کړې وه هغوی جواب راکړو چې نبی ﷺ ماته دا فرمائیلې وو چې کله زهٔ په بیت الله کښې دننه ووم نو دا خیال راته شوې وو چې تاسو به داسې وایم چې دا په بیت الله شریف کښې چې کوم دوه ښکری اویزاند دی نو دا په څهٔ خیز سره پټ کړئ لیکن بیا رانه هیر شو او تاسو ته مې اونهٔ وئیل لهذا اوس وایم چې دا پټ کړئ داسې وئیلې شی چې دا دوه ښکری د هغې ګډ دی چې کوم د جنت نه د حضرت اسماعیل ﷺ په فدیه کښې راوړلې

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٧٦٢)، وقد أخرجه: مسند احمد (٣٨٠/٥) (صحيح)

شوې وو چونکه يو تاريخي څيز وو په دې وجه به دا هغه وخت په بيت الله شريف کښې محفوظ کړې شوې وی والله تعالی اعلم [1]

## باب فِي مَالِ الْكَعْبَةِ

### باب: په کعبه کښې د دفن کړی شوی مال بيان

په بيت الله شريف کښې دننه د صندوق په شکل کښې يو غار وو (بعضو د دې نه تعبير په کوهی سره کړې دی) د اسلام نه مخکښې هميشه چې په بيت الله شريف باندې کوم منختې کړې شوې وې (هدايا) نو هغه به په دې کوهی کښې محفوظ کولې شوې چې د هغې مقدار ښکاره خبره ده چې څومره زيات شوې به وو

[۲۰۳۱] [2] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ مُحَمَّدٍ الْمُحَارِبِيُّ، عَنِ الشَّيْبَانِيِّ، عَنْ وَاصِلٍ الْأَحْدَبِ، عَنْ شَقِيقٍ، عَنْ شَيْبَةَ يَعْنِي ابْنَ عُثْمَانَ، قَالَ: "قَعَدَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ فِي مَقْعَدِكَ الَّذِي أَنْتَ فِيهِ، فَقَالَ: لَا أَخْرُجُ حَتَّى أَقْسِمَ مَالَ الْكَعْبَةِ، قَالَ: قُلْتُ: مَا أَنْتَ بِفَاعِلٍ، قَالَ: بَلَى، لَأَفْعَلَنَّ، قَالَ: قُلْتُ: مَا أَنْتَ بِفَاعِلٍ، قَالَ: لِمَ قُلْتُ؟ لِأَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ رَأَى مَكَانَهُ وَأَبُو بَكْرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَهُمَا أَحْوَجُ مِنْكَ إِلَى الْمَالِ فَلَمْ يُخْرِجَاهُ، فَقَامَ فَخَرَجَ".

شقيق د شيبه يعنی ابن عثمان نه روايت کوی فرمائی چه شيبه راته اووئيل ستادناستی په دې ځای باندې عمر بن الخطاب رضی الله عنه ناست وواو وئی فرمائيل ترهغې پورې به اونه اوځم ترڅوپورې چه مې په کعبه کښې دفن شوی مال تقسيم کړی نه وی راوی وائی ماورته ووئيل چه داسې به ونکړی هغه ووئيل ولې نه خامخابه ئې کوم راوی وائی ماورته بيا ووئيل چه داسې به ونکړی هغه ووئيل ولې؟ ماورته ووئيل چه نبی صلی الله عليه وسلم اوابوبکر رضی الله عنه هم داځای ليدلی وو اوهغوی ستانه زيات محتاج وو مال ته اوهغوی نه دی راويستلې، راوی وائی چه پاڅيدو او را اوتی ويستلو.

قعد عمر بن الخطاب فی مقعدک الذی انت فيه او د صحيح بخاری الفاظ داسې دی قال جلست مع شيبة علی الکرسی فی الکعبة شقيق وائی زهٔ يو ورځ شيبه [3] سره په کعبه شريفه کښې په کرسئ باندې ناست ووم نو شيبه ماته بيان اوکړو چې يوورځ حضرت عمر رضی الله عنه ماسره دلته په کعبه کښې دغه شان ناست وو څنګه چې تهٔ اوس ماسره ناست ئې نو هغوی يعنی عمر رضی الله عنه ماته اوفرمائيل لا اخرج حتی اقسم مال الکعبة [4] چې زهٔ به د دې ځائې نه هغه وخت پورې نهٔ اوځم چې ترڅو زه دا مال کعبه په ضرورتمندو کښې تقسيم نهٔ کړم (څکه چې

---

[1] حضرت شيخ رحمه الله په حاشيه د بذل کښې ليکلی دی په حواله د حيوة الحيوان چه دا ښکرې هغه وخت سوزيدلی وې کوم وخت چه حجاج په عبدالله بن الزبير رضی الله عنه باندې په مکه حمله کړې وه.

[2] : صحيح البخاري/الحج ۴۸(۱۵۹۴)، والاعتصام ۲(۷۲۷۵)، سنن ابن ماجه/المناسک ۱۰۵(۳۱۱۶)، ( تحفة الأشراف: ۴۸۴۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۴۱۰/۳)(صحيح)

[3] دا شيبه، وهي شيبة بن عثمان الحجبي رضی الله عنه دې، دچا ذکر چه اوس نژدې تيرشوې دې.

[4] اود صحيح بخاری الفاظ دادی: فقال لقد هممت ان لا ادع فيهما صفرآء ولا بيضاء، د صفراء او بيضاء نه مراد سره زر اوسپين زردی، دراهم او دنانير.

دا مال د ډير وخت نه دغه شان فضول پروت دې د دې نه ښۀ خبره دا ده چې دا په مسلمانانو کښې تقسيم کړې شی دی دپاره چې په کار راشی) قلت ما انت بفاعل شيبه وائی چې په دې باندې ما حضرت عمر رضی الله عنه ته اووې چې تاسو دا کار هيڅکله هم نۀ شئ کولې هغوی اوفرمائيل چې ولې نه؛ زۀ به ئې خامخا کوم ما بيا دا عرض اوکړو چې تاسو دا کار نه شئ کولې هغوی تپوس اوکړو چې آخر څه وجه ده؟زۀ ئې ولې نۀ شم کولې؟ ماورته عرض اوکړو چې څکه چې ستاسو نه مخکښې نبی علیه السلام او حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ته هم د دې مال معلومات وو ليکن په هغوی دواړو کښې يو کس هم دې مال ته د دې ځائې نه حرکت ورنکړو حالانکه د هغوی په زمانه کښې د دې مال حاجت د دې وخت نه زيات وو

فقام فخرج شيبه وائی چې عمر رضی الله عنه زما د دې خبرې په اوريدو سره فوراً اودريدۀ او لاړلو د دې نه پس په صحيح بخاری کښې دی عمر اوفرمائيل هما المرآن اقتدی بهما چې دا دواړه واقعی داسې شخصيات دی چې ماته د دوی اقتداء کول دی ابن بطال شارح د بخاری فرمائی چې حضور علیه السلام دا مال څکه اونۀ چيړلو چې دغه مال ګويا د بيت الله دپاره وقف وو چې په هغې کښې څۀ تغير او تصرف کول جائز نه وو ليکن حافظ دا تعليل رد کړې دې او وائی چې ظاهره دا ده چې نبی علیه السلام په دې مال کښې تصرف د قريش د دلداریٔ او د رعايت په وجه اونکړو لکه څنګه چې د بيت الله شريف دتعمير و بناء قواعد ابراهيمی باندې د قريشو رعايت نۀ وو کړې لکه څنګه چې په حديث کښې د دې تصريح ده <

قال الحافظ ويؤيده ما وقع عند مسلم فی بعض طرق حديث عائشة فی بناء الكعبة لولا ان قومك حديث عهد بكفر لانفقت كنزالكعبة فی سبيل الله

[۲۰۳۲](1) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ الْحَارِثِ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ إِنْسَانٍ الطَّائِفِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنِ الزُّبَيْرِ، قَالَ: لَمَّا أَقْبَلْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ لِيَّةَ حَتَّى إِذَا كُنَّا عِنْدَ السِّدْرَةِ وَقَفَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي طَرَفِ الْقَرْنِ الْأَسْوَدِ حَذْوَهَا، فَاسْتَقْبَلَ نَخِبًا بِبَصَرِهِ، وَقَالَ مَرَّةً: وَادِيَهُ، وَوَقَفَ حَتَّى اتَّقَفَ النَّاسُ كُلُّهُمْ، ثُمَّ قَالَ: "إِنَّ صَيْدَ وَجٍّ وَعِضَاهَهُ حَرَامٌ مُحَرَّمٌ لِلَّهِ"، وَذَلِكَ قَبْلَ نُزُولِهِ الطَّائِفَ وَحِصَارِهِ لِثَقِيفٍ.

دزبير بن العوام رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه مونږ د نبی علیه السلام سره دليه مقام نه راغلو، کله چه مونږ دبيرى ونې ته راورسيدو نونبی علیه السلام دقرن اسود غرسره اودريدو اوخپل نظر ئې نخب مقام ته ورستون کړواو اودريدو اوخلق هم اودريدل او اوئی فرمائيل چه د وج(يوځناوردې) ښکارکول اودده هډوکی حرام دی اوحرام کړی شوی دی دالله تعالی دپاره اوداد دهغه دطائف ته دتلونه اودبنو ثقيف دمحاصره کولونه مخکښې خبره ده.

**تشريح: قوله**: عن الزبير قال لما اقبلنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم من لية

---

(1): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۶٤۰)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱/۱۶۵) (ضعيف)

## د حديث مبارك شرح:

ليه په طائف كښې يو وادى ده يا غر دې القرن الاسود دا يو غر دې او نخب دا هم په طائف كښې يو وادى ده حضرت زبير فرمائى چې كله مونږ راتلو د نبى ﷺ سره د مقام ليه نه (دا د غزوه حنين نه د راتلو او طائف طرفته د تلو د وخت خبره ده) نو چې مونږ كله د بيرې يو اونې سره نزدې وو نو هلته نبى ﷺ اودريدو د قرن اسود په جانب كښې د هغه بيرې د اونې په څوا كښې نو هلته نبى ﷺ حصار شو او وادى نخب ته ئې د خپل نظر مخامخ كړه او ټول خلق هم دلته اودريدل د نبى ﷺ په اتباع كښې

غرض دا چې نبى ﷺ دلته حصار شو او دا ارشاد ئې اوفرمائيلو ان صيدوج وعضاهه حرام محرم لله تعالى چې د مقام وج ښكار او د هغې خاردار اونې ټول حرام دى د الله تعالى دپاره، يعنى څنګه چې الله تعالى د حرم مكه ښكار وغيره حرام كړې دې نو دغه شان حال د مقام وج هم دې چې د دې ښكار وغيره هم حرام دې

## آيا وج طائف د حرم په حكم كښې دې؟

وج په طائف كښې د يو مقام نوم دې د دې حديث شريف نه معلومه شوه چې د مقام وج هم هغه حكم دې چې كوم د حرم مكه دې لكه د شافعيه مسلک دا دې ليكن په دې كښې او په حرم مكه كښې فرق دا دې چې د حرم په ښكار كښې جزاء او ضمان واجب دې او په دې كښې جزاء او ضمان واجب نۀ دې په جمهور علماؤ كښې حنفيه او حنابله هم داخل دى د دې قائل نۀ دى جمهور دا وائى دا حديث د دومره درجې قوى او مشهور نۀ دې چې په دې باندې د حلت او د حرمت دارومدار اوساتلې شى په دې مسئله كښې عموم بلوى ده (كه داسې وې نو د دې خبر به ټولو خلقو ته وو او دا حديث به مشهور شوې وو حالانكه داسې نۀ ده) او چې په كوم څيز كښې عموم بلوى وى نو هلته خبر مشهور پكار وى په خبر واحد سره كار نۀ چليږى اصولى مسئله ده خطابى مشهور شارح حديث هم د دې قائل نۀ دې ممكن ده چې د نبى ﷺ دا فرمان بطريق حمٰى وى[1] په يو مخصوص وخت كښې نۀ چې د هميشه دپاره والله تعالى اعلم بالصواب د حديث د شارحينو د كلام نه معلومه شوه چې د وج د ښكار د حرمت شافعيه قائل دى لكه د فقه شافعى په كتابونو كښې دا مسئله مذكور ده او د دې صراحت مذكور دې ففى شرح الاقناع ج۲ص۳۸۹ ويحرم اخذ نبات حرم المدينة ولا يضمن ويحرم صيد وج الطائف ونباته، ولا ضمان فيها قطعاً اهـ د حرم مدينه بيان وړاندې په كتاب كښې راروان دې دغه شان د حضرت شيخ په حاشيه د بذل كښې دى وقال ابن قدامة صيدوج وشجره مباح وقال اصحاب الشافعى حرام اهـ بعضې علماؤ د امام مالک هم دا مسلک ليكلې دې چې

---

[1]) او بجيرمى په شرح قناع ص ۳۸۹ په حاشيه كښې د دې يو بل حكمت ليكلې دې هغه دا چه په طائف كښې كفارو رسول الله ﷺ ته سخت تكليف وركړو تردې چه د هغه قدمين په وينو ككړ شو نو د دې مصيبت نه پس رسول الله ﷺ دلته ناست وو او دلته راتلو سره ئې سكون او ارام حاصل كړو، او الله پاک د هغه اكرام فرمائيلې وو نو د رسول الله ﷺ په وجه باندې د هغه مكان هم اكرام اوكړې شو چه د دې ښكار او اونې پرې كول منع كړې شو. ۱۲

کوم د امام شافعی دې لیکن دا خبره صحیح نۀ ده د مالکیه په کتابونو کښې ماته چرته د دې ذکر نۀ دې ملاؤ شوې لا فی الکافی لابن عبدالبر ولا فی الدسوقی وغیره

## بَابٌ فِي إِتْيَانِ الْمَدِينَةِ

### باب: مدینې منورې ته د رسیدو بیان

کتاب الحج ختمیږی په اخره کښې مصنف علیه الرحمة د اتیان مدینه(د مدینې منورې د حاضرۍ) باب قائم کړې دې ځکه چې په حدیث کښې دی من حج البیت ولم یزرنی فقد جفانی(رواه ابن عدی بسند حسن کما فی البذل) نبی ﷺ فرمائی چې کوم کس حج اوکړی او زما د زیارت دپاره مدینې منورې ته رانۀ شی نو دۀ په ما باندې ظلم اوکړو حضرت امام بخاری صاحب هم د کتاب الحج په آخر کښې د حرم مدینه او فضل مدینه په باره کښې متعدد بابونه قائم کړې دی تقریباً یو درځن

[۲۰۳۳](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ: مَسْجِدِ الْحَرَامِ، وَمَسْجِدِي هَذَا، وَالْمَسْجِدِ الْأَقْصَى".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول پاك ﷺ فرمائیلی دي: چه د دری جوماتونونه علاوه نوروجوماتونوته دثواب په نیت باندې بستره ونه تړلی شی(کنایه ده دسفرکولونه) یومسجد حرام اوبل زما داجومات یعنی مسجد نبوی اودریم بیت المقدس ځکه چه باقی جمله مساجد په فضیلت کښې یوبرابردی نو په دې وجه باندې ددې دریونه علاوه بل مسجد ته دسفرکولو څه ضرورت دې؟

### د حدیث شرح علی احسن وجه

قوله: قال لا تشد الرجال الا الی ثلاثة مساجد..الخ: دا حدیث متفق علیه دې امام بخاری و مسلم د دې تخریج کړې دې ([۲]) رحال د رحل جمع ده په معنی د کجاوه او پالان دا صیغه اګرچه د مضارع منفی ده لیکن مراد د دې نه نهی ده یعنی نۀ دی تړلې کجاوه په اوښانو باندې،او دا کنایه ده د سفر نه مطلقاً خواه په سورلئ سره وی یا بغیر یعنی سفر دې نۀ شی کولې ماسوا د دریو مساجدو نه(چې کوم پورته په حدیث کښې مذکور دی) په دې حدیث کښې دا استثناء استثناء مفرغ ده ځکه چې دلته مستثنی منه مذکور نۀ ده چې په دې کښې دوه احتمالات دی خاص مقدر اومنلې شی یا عام،([۳]) په اولنی صورت کښې به هغه لفظ

[۱]): صحیح البخاري/فضائل الصلاة ۱(۱۱۸۹)، صحیح مسلم/الحج ۹۵(۱۳۹۷)، سنن النسائي/المساجد ۱۰(۶۹۹)،( تحفة الأشراف: ۱۳۱۳۰)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/إقامة الصلاة ۱۹۶(۱٤۰۹)، موطا امام مالك/ الجمعة ۷(۱٦)، مسند احمد(۲/۲۳٤، ۲۳۸، ۲۷۸)، سنن الدارمي/الصلاة ۱۳۲(۱٤٦۱)(صحيح)

[۲]) بلکه په صحاح سته کښې دی قال المنذري واخرجه البخاري ومسلم والنسائي وابن ماجة. اهـ دا حدیث په ترمذی ص ۴۴ کښې هم دې خو من حدیث ابي سعید الخدري لا من حدیث ابي هريرة، هم په دې وجه منذری د دې حواله نه ده ورکړې.

[۳]) د استثناء د مفرغ کیدو تقاضه هم دا ده چه مستثنی منه عام او مطلق اومنلې شی خو دا ضروری نه ده چه د عام نه مراد هم عام وی بلکه کله عام مراد کولو سره خاص مراد کولې شی کما قال الحافظ في الفتح ... یعنی د موضع نه مراد هم مسجد کیدې شی. ۱۲

مسجد وی او په دویم صورت کښې به لفظ مکان یا موضع یعنی لا تشدالرحال الی مسجد من المساجد الا الی الخ یا لا تشد الرحال الی موضع من المواضع الا الی ثلاثة مساجد الخ هسې خو به په دواړو صورتونو کښې دا مستثنی متصل وی ځکه چې مستثنی متصل هغه وی چې هلته مستثنی د مستثنی منه د جنس نه وی او په لفظ مسجد او مکان کښې صرف دا فرق دې چې یو په دې کښې جنس قریب دې او یو جنس بعید لیکن چونکه د مسنداحمد په یو روایت کښې د دې وضاحت دې لا تشد الرحال الی مسجد لیصلی فیه الا الی الخ په دې وجه هم احتمال د خصوص راجح دې واختاره الحافظ العراقی هغوی فرمائی د دې حدیث نه مقصود د مساجدو احکامات بیانول دی بهرکیف! که مستثنی منه مسجد اومنلې شی نوبیا خوځۀ اشکال نشته او مطلب دا دې چې د دریو مساجدو نه علاوه یو بل مسجد ته سفر کول هلته تلل د مونځ کولو دپاره بې فائدې دی په دې کښې هیڅ فضیلت نشته ځکه چې د ټولو مساجدو ثواب برابر دې په خلاف د دې دریو مساجدو غرض داچې د فضیلت او فائدې نفی ده د جواز نفی نۀ ده لهذا دا نفی د شفقت دپاره ده د تحریم دپاره نۀ ده كذا قال النووی وغیره من الشراح وهكذا فی الكوكب الدری

او که مستثنی منه عام لفظ یعنی مکان منلې شی[1] نو په دې کښې اشکال ظاهر دې ځکه چې په دې صورت کښې د سفر بالکل سدباب کیږی چې هیڅ یو سفر دې نۀ شی کولې د مساجد ثلاثه نه علاوه خواه هغه سفر د طلب علم دپاره وی خواه د تجارت دپاره وی یا د جهاد دپاره یا دوستانو سره د ملاقات وغیره دپاره وی حالانکه دا سفرونه بالاتفاق مشروع او جائز دی اوس د دې اشکال نه د بچ کیدو دپاره دوه صورتونه دی یو دا چې دا اووئیلې شی چې دا سفرونه د دلیلونو په ذریعې د دې حکم نه مستثنی دی او یا دې دا توجیه[2] اوکړې شی چې په دې حدیث کښې مراد دا دې چې د مساجد ثلثه نه علاوه د یو مکان طرفته او د سفر مقصود دغه مکان جوړول او ذریعه د تقرب ګنړل نو دا سفر دې نشې کولې.

په دې صورت کښې به دا مذکوره سفرونه د نهی نه خارج شی ځکه چې په دې سفرونو کښې ذوات امکنه مقصود نۀ دی بلکه مقصود د هغې اغراضو حصول دې چې د کومو دپاره سفر کیږی یعنی علم وتجارت و زیارت وغیره

[1] ) چه د کوم تائید د دې حدیث نه کیږی کوم چه په نسائی ص ٢١٠ کښې دې، حدیث خو اوږد دې د هغې یو جزء دا دې چه ابوهریره رضی الله عنه فرمائی چه یو کرت زه کوه طور ته (د کور طور د زیارت دپاره) لاړم، په واپسئ مې په بصره کښې د بصره بن ابی بصره الغفاری سره ملاقات اوشو، هغه تپوس اوکړو ته د کوم ځائې نه راروان ئې، قلت من الطور. په دې باندې هغه اووې چه که زما ملاقات تا سره هلته د تلو نه مخکښې شوې وې نو بیا به ته هلته نه تلې (قلت لم قال انی سمعت رسول الله صلي الله عليه وسلم يقول: لا تعمل المطي الا الي ثلاثة مساجد الخ) په دې باندې د ابوهریره رضی الله عنه د سکوت نه معلومه شوه چه هغه هم د دې رائې سره اتفاق اوکړو. ١٢

[2] ) تقی الدین سبکی په دې حدیث باندې تفصیلی کلام کولو نه پس فرمائی، او خلاصه زمونږ د اوږد بحث دا ده چه د مساجد ثلاثه نه علاوه د بل ځائې سفر هغه وخت ممنوع دې چه کله په دې سفر سره مقصود تعظیم بقعه وی او که مقصود د ساکن بقعه تعظیم وی یا بل څه غرض وی نو بیا ممنوع نه دې. اهـ

او بعضې علماؤ دا حدیث په نذر باندې محمول کړې دې که یو سړې دا نذر اومنی چې زهٔ به په فلانی مسجد کښې دوه رکعته مونځ کوم نو د نذر پوره کولو دپاره هغه مسجد ته تلل او مونځ کول ضروری نهٔ دی بلکه چې په کوم مسجد کښې ئې هم اوکړی نو نذر به پوره شی ماسوا د دې دریو مساجدو نه چې که په دې کښې ئې د مونځ کولو نذر منلې وی نو د اکثرو علماؤ په نزد به نذر د دې دریو مساجدو نه علاوه نهٔ پوره کیږی[1] بلکه دې مساجدو طرفته به سفر کول ضروری وی لیکن د حنفیه په نزد په دې دریو مساجدو کښې به مونځ کول خو اولی وی لیکن واجب نهٔ دی (کوکب)

او بعضې علماؤ دا حدیث په اعتکاف باندې محمول کړې دې لکه بعضې صحابه کرام لکه د حضرت حذیفه رضی الله عنه په نزد اعتکاف د دې دریو مساجدو نه علاوه په بل یو مسجد کښې نهٔ صحیح کیږی او دبعضو په نزد اعتکاف صرف په مسجد النبی کښې صحیح کیږی

## د علماؤ صلحاؤ یا د هغوی د قبرونو د زیارت دپاره شد رحل

اوس پاتې شوه مسئله د هغې سفر چې د علماؤ او صلحاؤ په حیات د هغوی د زیارت دپاره یا د وفات نه پس د هغوی د قبرونو د زیارت دپاره کولې شی حافظ ابن الحجر په فتح الباری کښې لیکی ج۳ص۵۳ شیخ ابومحمد جوینی دا ناجائز او حرام ګرځولې دی او قاضی عیاض او یو جماعت هم دا قول اختیار کړې دې[2] لیکن د امام الحرمین وغیره علماء شافعیه په نزد صحیح دا ده چې داسې سفر کول جائز دی او د حدیث دې حضراتو مختلف جوابونه ورکړې دی بیا حافظ هغه په تفصیل سره لیکلې دی(۱) مثلاً یو دا چې په حدیث کښې د فضیلت تامه نفی مراد ده د نفس فضیلت او د جواز نفی مراد نهٔ ده(۲) حدیث په نذر باندې محمول دې که یو سړې د مساجد ثلاثه نه علاوه په یو بل مسجد کښې د مونځ کولو نذر اومنی نو د هغې د پوره کولو دپاره بل مسجد ته د سفر کولو ضرورت نشته په خلاف د دې مساجدو(۳) د دې حدیث تعلق صرف مساجدو سره دې غیرمساجدو سره د دې هیڅ تعلق نشته وغیره وغیره متعدد توجیهات د حضرت ګنګوهی او حضرت شیخ الهند قدس سرهما په تقاریر درسیه کښې دا دی چې د قبرونو د زیارت دپاره سفر کول اګرچه جائز دی په دې حدیث کښې د دې نه منع نهٔ ده کړې شوې لیکن د عوارضو او د بدعاتو د ویرې تقاضه هم دا ده چې دا ممنوع اوګرځولې شی او شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په اشعة اللمعات او لمعات التنقیح کښې په دې باره کښې صرف په اختلاف نقل کولو باندې اکتفاء کړې ده چې په دې کښې د علماؤ دوه جماعتونه دی یو جماعت ورته جائز او دویم ورته ناجائز وائی اهـ زمونږ حضرت اقدس شاه ولی الله رحمه الله دا سفر

---

[1] ، امام مالک، امام احمد او امام شافعی في رواية او بل روایت د امام شافعی نه دا دې کوم چه زیات مشهور دې چه په نذر کښې د مسجد حرام تعیین خو معتبر دې د باقی دوه مسجدونو نه دې. کما في الفتح ص ۵۳ ج ۲)

[2] ، امام نووی رحمه الله هم دا قول نقل کولو سره د دې تغلیط کړې دی حیث کتب (ص ۴۳۳ ج ۱) وهو غلط والصحيح عند اصحابنا وهو الذي اختاره امام الحرمين والمحققون انه لا يحرم ولا يكره قالوا والمراد ان الفضيلة التامة انما هي في شد الرحال الي هذه الثلاثة خاصة. والله اعلم

ناجائز ګرځولې دي لکه چه هغوی په حجة الله البالغه کښې لیکلی چې د اهل جاهلیت دستور وو چې هغوی به په خپل خیال کښې کوم مقامات معظم او مقدس ګڼړل د هغې په اراده به ئې سفر کوو اود خپل خیال مطابق به ئې د هغې نه تبرک حاصلولو چې په دې کښې ښکاره خبره ده چې تحریف او فساد دې په دې وجه نبی علیه السلام د داسې قسم سفرونو سدباب اوفرمائیلو الخ وړاندې فرمائی والحق عندی ان القبر ومحل عبادة ولی من اولیاء الله والطور کل ذلک سواء فی النهی اهـ(عون) مولانا شاه انورشاه کشمیری رحمه الله هم د دې په جواز کښې د تردد اظهار فرمائیلې دې(کما فی العرف) او جمهور شافعیه خو چونکه د جواز قائل دی په دې وجه حضرت امام غزالی رحمه الله په هغې خلقو باندې رد کړې دې چې کوم خلق د دې حدیث(لا تشد الرحال) نه د عدم جواز استدلال نیسی هغوی فرمائی چې د دې حدیث تعلق خو صرف د مساجدو سره دې ځکه چې د دې دریو مساجدو نه علاوه باقی ټول په خپلو کښې برابر دی او په هر کلی او ښار کښې مسجد وی بیا څۀ وجه ده د یو مسجد پریخودلو او بل ته د سفر کولو په خلاف د اولیاؤ د قبرونو او دیدار چې د هغوی د برکاتو انکار نۀ شی کیدې چې په درجه کښې برابر نۀ دی د هر صاحب قبر برکت د هغۀ حسب مرتبه دې نو څنګه چې د علماؤ او صلحاؤ زیارت د هغوی په حیات یعنی ژوند کښې په اعلی مقاصدو کښې دې نو دغه شان د هغوی د وفات نه پس د هغوی د قبرونو زیارت په مقاصد رحله کښې دې کذا فی الاحیاء(التعلیق الصبیح) احقر وائی چې ماته شیخ ومرشد حضرت شیخ الحدیث مولانا محمد زکریا صاحب مهاجر مدنی قدس سره یو ځل فرمائیلې وو چې کله کله د خپلو اکابرینو مزارونو ته ځئ او د حضرت شیخ صاحب خپل معمول هم دا وو چې د موقع په مناسب به په کال کښې یو ځل نیم یا چې به کله موقع ملاؤ شوه نو خواوشا کښې مزارات ګنګوه، دیوبند، راثپور وغیره ته به ئې تشریف اوړلو

## شد رحل د روضه شریفه نبویه په اراده

اوس پاتې شوه مسئله دَ نبی کریم ﷺ د زیارت دپاره شد رحل،نو په دې کښې اګرچه د حدیث الباب پیش نظر بعضې علماؤ اختلاف کړې دې لیکن د جمهور علماؤ او محدثینو په نزد دا عمل من اعظم القربات واجل السعادات دې بلکه بعضې علماؤ لکه تقی الدین سبکی خو د دې په جواز بلکه په استحباب باندې د علماؤ اجماع نقل کړې ده یعنی اجماع عملی(تعامل) لکه هغوی فرمائی د همیشه نه په هره زمانه کښې بې شماره حاجیان د حج په موقع باندې مدینه منوره کښې د روضې مبارکې د دیدار او زیارت دپاره حاضریږی چې په هغې کښې د هر ملک علماء او صلحاء هم وی او ښکاره خبره ده چې کوم کس د علماؤ د دې دومره ګڼړې تخطیه کوی نو هغه به په خپله په خطاء باندې وی اهـ د دې خبرې نه د علامه سبکی صاحب اشاره د ابن تیمیه طرفته ده چې د قبر اطهر د زیارت دپاره شد رحل ته ناجائز وائی د هغوی مسلک دا دې چې سړی ته پکار دی چې هغه د مسجد نبوی او په دې کښې د مونځ کولو په نیت سره د مدینې منورې د سفر نیت اوکړی بیا چې کله هلته حاضر شی نو بیا دې روضه مبارکه باندې حاضرشی دهغې زیارت دې اوکړی او صلوة و سلام دې اوکړی

په عرف الشذی کښې ئې ليکلي دی چې په دې مسئله کښې د متقدمينو نه د ابن تيميه سره
څلورو علماؤ موافقت کړې دې چې په هغې کښې شيخ ابومحمد جوينی والد د امام الحرمين
هم دې او په حاشيه د بذل المجهود کښې حضرت شيخ صاحب قاضی حسين من الشافعيه او
قاضی عياض من المالکيه هم شمار کړې دی.[1] په فتح الباری ص ۵۳ ج ۳ کښې ئې د علامه
کرمانی نه نقل کړې دی هغوی فرمائی چې زمونږ په زمانه کښې د شام په ښارونو کښې په دې
مسئله باندې د علماؤ مينځ کښې لوې لوې مناظرې شوې دی او د دواړو طرفو نه لوې
رسالې ليکلې شوې دی په دې باندې حافظ ابن حجر ليکی د دې نه اشاره هغه بحث او رد
طرفته ده چې کوم تقی الدين سبکی په ابن تيميه باندې کړې دې او بيا د ابن تيميه له طرفه
شمس الدين ابن عبدالهادی وغيره په سبکی باندې کړې دې[2] دغه شان حافظ وغيره
شارحينو ليکلې دی وهی من البشع المسائل المنقولة عن ابن تيمية(ابن تيميه چې په کومو
مسئلو کښې د جمهورو مخالفت کړېدې نو په هغې کښې دامسئله د ټولو نه زياته ترخه او
بدذائقه ده) الحمد لله حديث لا تشدالرحال الا الی ثلثة مساجد باندې چې احقر څه ليکل غوښتل
نو هغه پوره شو د دې مقام مناسب مې يو بل مضمون زړهٔ ليکل غواړی چې د حديث د
طالبانو دپاره خاص ضرورت لری چې هغه د استدراک په عنوان سره ليکم

## استدراک

مصنف رحمه الله د مسجد حرام او مسجد نبوی په فضيلت کښې صرف دا يو حديث ليکلې دې
چې د ترجمة الباب عين مناسب دې حضرت امام بخاری صاحب رحمه الله په کتاب الصلوة کښې
باب فضل الصلوة فی مسجد مکة والمدينة قائم کړې دې او د دې لاندې ئې دوه احاديث مبارکه
ذکر کړې دی يو خو دا حديث چې کوم دلته ذکر دې لا تشدالرحال الخ

## د مسجد حرام او مسجد نبوی په فضيلت کښې احاديث او د هغې توضيح او تشريح

دويم حديث دا دې عن ابی هريرة مرفوعاً صلوة فی مسجدی هذا خير من الف صلوة فيما سواه الا
المسجد الحرام دغه شان صاحب د مشکوة په باب المساجد ومواضع الصلوة کښې دا دواړه
احاديث مبارکه ذکر کړې دی او د دواړو باره کښې ئې ليکلې دی متفق عليه په دې دواړو
کښې په يو باندې خو مونږ کلام اوکړو او يو باقی دې چې د هغې مضمون دا دې نبی عليه السلام
فرمائی يو مونځ زما په دې مسجد کښې د هغې زرو مونځونو نه غوره او افضل دې چې

---

[1]) د دې حضراتو نوم امام نووی رحمه الله د مسلم په شرح کښې او حافظ په فتح الباری کښې هم ليکلې دی خو شدرحال الي غير المساجد الثلاثة د لاندې ئې ليکلې دی د روضه شريفه د تخصيص سره ئې نه دی ليکلې. ۱۲

[2]) د سبکی د دې رسالې نوم "شفاء السقام في زيارة خير الانام؟ دې هغه په شروع کښې د دې نوم "شن الغارة علي من انکر سفر الزيارة؟ کيخودلې وو روستو ئې نوم بدل کړې وو، بيا د دې په ترديد کښې ابن عبدالهادی چه کومه رساله ليکلې وه د هغې نوم هغه کيخودلو : الصارم المنکي علي نحر السبکي، بيا ابن علان د دې رد اوکړو المبرد المبکي علي الصارم المنکي ... او دا سلسله هم دغه شان روانه وه. (عرف الشذی)

کوم په نورو مساجدو کښې اوکړې شی ماسوا د مسجد حرام نه، د دې حدیث په تشریح کښې درې اقوال دی یعنی په دې استثناء کښې چې کومه په دې حدیث کښې ذکر ده(۱) د مسجد نبوی مونځ د باقی ټولو مساجدو نه غوره دې لیکن د مسجد حرام د مونځ نه افضل نهٔ دې بلکه د مسجد حرام مونځ د مسجدنبوی د مونځ نه غوره دې هم دا مطلب جمهور علماؤ اختیار کړې دې او د دې تائید د عبدالله بن الزبیر د حدیث مرفوع نه کیږی چې هغه امام احمد روایت کړې دې چې په هغې کښې د مذکوره حدیث نه پس دا هم زیاتې دې وصلوة فی المسجد الحرام افضل من مائة صلوة فی هذا اوس د پوره حدیث مضمون دا شو چې د مسجد نبوی یو مونځ د باقی مساجدو د زرو مونځونو نه غوره دې او د مسجد حرام یو مونځ د مسجد نبوی د سلو مونځونو نه غوره دې لهذا نتیجه دا شوه چې د مسجد حرام یو مونځ د عامو مساجدو د سلو زرو(یعنی یو لاکھ) مونځونو نه غوره دې وعند البزار وقال اسناده حسن والطبرانی من حدیث ابی الدرداء رفعه الصلوة فی المسجد الحرام بمائة الف صلوة والصلوة فی مسجدی بالف صلوة والصلوة فی بیت المقدس بخمسمائة صلوة یعنی د مسجد حرام یو مونځ د یو لاکھ د مونځونو برابر دې او د مسجد نبوی یو مونځ د زرو مونځونو برابر دې او د بیت المقدس یو مونځ د پنځو سوو مونځونو برابر دې د دې استثناء یو مطلب خو دا شو چونکه د دې مطلب تائید د نورو روایتونو نه هم شوې دې په دې وجه دا راجح او متعین دې.

(۲) دویم قول په دې کښې دا دې چې د مسجد نبوی مونځ افضل خو د مسجد حرام نه هم دا دې لیکن بدونِ الف یعنی زر درجې غوره نهٔ دې بلکه د دې نه کم او کم واحد ته هم شامل دې لهذا چې په زرو کښې صرف یو کم کړې شی یعنی د مسجد نبوی یو مونځ خو د عامو مساجدو نه زر درجې غوره دې او د مسجد حرام د مونځ نه یو کم زر درجې غوره دې. [1] قال ابن عبدالبر.

(۳) دریم قول په دې کښې دا دې چې د دې نه مراد مساواة دې یعنی د مسجد نبوی د مونځ چې کوم فضیلت دې نو هغه د نورو مساجدو په لحاظ سره دې د مسجد حرام په لحاظ سره نهٔ دې د مسجد حرام د مونځ برابر دې[2] دا مطلب ابن بطال المالکی اختیار کړیدې او د ترجیح وجه دا بیانوی چې کهٔ اولنی او دویم مطلب واخستلې شی نو په دې صورت کښې به دویم دلیل طرفته د رجوع ګولو حاجت وی چې هغې سره د دې تفاوت مقدار معلومیږی په خلاف د مساوات چې په دې مطلب کښې خبره پوره معلومیږی په دې باندې حافظ ابن حجر فرمائی چې شاید ابن بطال رحمه الله ته د عبدالله بن الزبیر رضی الله عنه هغه حدیث نهٔ دې رسیدلې

---

[1] لیکن ددې قول په وجه به دا لازمیږی چه د مسجد نبوی او عامو مساجدو په مینځ کښې خود زر مونځونو تفاوت (فرق) دې، اود مسجد حرام او عامو مساجد په مینځ کښې صرف د یو درجې تفاوت وی.وهو کما تری.

[2] د مسجد حرام مونځ څومره افضل دې دمسجد نبوی نه (في المعني الاول) یا د مسجد نبوی مونځ څومره افضل دې د مسجد حرام نه، (في المعني الثاني)

چې کوم په مسند احمد[١] کښې دې څکه چې د هغې پیش نظر یو بل حدیث طرفته د رجوع کولو حاجت نۀ پیښیږی اهـ د دې نه پس خان پوهول پکار دی چې د صحیحینو کوم حدیث پورته تیر شو په هغې کښې خو هم دا دی چې د مسجد نبوی د یو مونځ ثواب د زرو مونځونو د ثواب برابر دې او د ابن ماجه په حدیث کښې خو داسې دی چې د هغې راوی جابر رضی الله عنه دې[٢] او د ابن ماجه په یو بل حدیث کښې دی چې د هغې راوی انس بن مالک دې او صاحب د مشکوة هم ذکر کړېدې چې د مسجد نبوی یو مونځ د پنځوس زره مونځونو برابر دې لیکن د دې حدیث په سند کښې یو راوی ابوالخطاب الدمشقی هم دې چې د هغه باره کښې په بذل المجهود کښې د حافظ ابن حجر نه نقل دی چې وهو مجهول

**فائده:** د حدیث بعضو شارحینو لیکلي دی چې د مسجد حرام د یو مونځ ثواب یولاکهـ د څانله کولو په صورت کښې دې او که جماعت سره اوکړې شی نو بیا اوویشت لاکهه دې[٣] او په دې صورت کښې به د پنځو مونځونو ثواب د یو کروړ پنځه دیرش لاکهه مونځونو برابر وی او چې بیا د یو کس سل کاله عمر وی او هغه په خپل وطن کښې سل کاله څانله مونځ کوی نو د هغې مونځونو تعداد صرف یو لاکهـ اتیا زره وی

**دویمه فائده:** دلته دوه درې خبرې نورې هم داسې پاتې شوې چې د تحقیق احتیاج لری اول دا چې په مسجد نبوی کښې د نبی ﷺ نه پس کومه توسیع اوشوه خلفاء راشدینو کړې وی یا نورو خلفاؤ نو هغه حصه د دې اجر په زیاتوالی کښې شامله ده یا صرف دا دومره اجر هغې قدیم حصې سره خاص دې د امام نووی رائې دا ده چې کومه حصه د نبی ﷺ په زمانه کښې وه نو دا اجر د هغې حصې سره خاص دې څکه چې په حدیث شریف کښې فی مسجدی هذا اسم اشاره سره وئیلې شوې دی نبی ﷺ صرف فی مسجدی نۀ دې فرمائیلې علامه عینی رحمه الله فرمائی چې کله اسم او اشاره دواړه جمع شی نو د کوم یو په مقتضی باندې به عمل کیږی په دې مسئله کښې اختلاف دې د امام نووی هم میلان دې طرفته دې چې اسم اشاره به غالبه وی او ښکاره خبره ده چې اشاره د یو موجود څیز طرفته کولې شی لهذا د دې نه مراد هغه مسجد شو چې کوم د نبی ﷺ په زمانه کښې وو او د حنفیه په نزد لکه څنګه چې د دوی د ظاهر کلام نه معلومیږی خبره دا ده چې اسم ته به غلبه ورکولې شی په اشاره باندې اهـ(تعلیق الصبیح) د اسم نه مراد مسجد نبوی چې د نبی ﷺ په کلام کښې مذکور دې او د مسجد نبوی اطلاق په مزید او مزید علیه دواړو باندې کیږی لهذا تضعیف یعنی د اجر دا زیاتیدل هم عام کیدل پکار دی او شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په لمعات کښې د امام نووی اختلاف ذکر کړې دې او بیا ئې د جمهور علماؤ مسلک د عدم تخصیص

---

[١] دا حدیث په شروع کښې تیر شوې دې.

[٢] قال الحافظ (ص ٥٤ ج ٢) وفی ابن ماجه من حدیث جابر مرفوعا صلوة فی مسجدی افضل من الف صلوة فیما سواه الا المسجد الحرام وصلوة فی المسجد الحرام افضل من مائة الف صلوة فیما سواه، اه، لهذا صرف د واحد داستثناء کولو په ځای معتد به مقدار مثلا یو زرنه د نصف استثناء اوکړې شی نو اشکال به نه وی.

[٣] لیکن په دې کښې بعضې شارحینو ته تأمل دې، قال الحافظ (ص ٥٦ ج ٢) لکن هل یجتمع التضعیفان اولا محل بحث .اه، وهکذا فی القسطلانی.

لیکلې دې هغوی فرمائی لکه چه راغلې دی چې نبی ﷺ اوفرمآئیل لو مد هذا المسجد الی صنعاء الیمن کان مسجدی دغه شان د حضرت عمر او حضرت عثمان رضی الله عنهما قیام په مونځ کښې په هغه حصه کښې چې کومه حصه وروسته زیاته کړې شوې وه دا د دې دلیل دې وړاندې لیکی چې د ابن تیمیه رائې هم دا ده بلکه هغوی په دې باندې د ټولو اتفاق نقل کړې دې ابن تیمیه وائی دا جدا خبره ده چې د نبی ﷺ مُقام(د قیام ځایې) اعظم او افضل دې د ټولو مقاماتو نه اهـ یعنی په دې کښې خو شک نشته چې د مسجد قدیم حصه چې په هغې کښې نبی ﷺ مونځونه کړې دی نو هغه د هغې حصې نه غوره ده چې کومه د هغوی نه روستو زیاته کړې شوې ده لیکن د اجر دا زیاتوالې د هغې اولنۍ او قدیم حصې سره خاص نۀ دې په دې وجه بهتره دا ده چې په هغې کښې د مونځ کولو کوشش اوکړې شی صاحب لمعات فرمائی چې محب طبری په دې مسئله کښې د امام نووی رجوع نقل کړې ده یعنی د جمهورو د مسلک طرفته او د مسجد حرام باره کښې په خپله د امام نووی او تقریباً د ټولو علماؤ رائې دا ده چې هغه عام دې د مونځ د ځائې سره خاص نۀ دې د پوره مکې مکرمې بلکه د ټول حرم هم دا حکم دې لهذا د مکې مکرمې کورونه هم د مسجد حرام په حکم کښې دی ځکه چې په ټولو حرم باندې د مسجد حرام اطلاق کیږی(قسطلانی)

**ثانی**: دویمه خبره دا ده چې د دې اجر د زیاتوالی تعلق صرف د فرض مونځ سره دې یا فرض او نفل دواړو سره دې حافظ ابن حجر د جمهورو مسلک عموم لیکلې دې یعنی فرض او نفل دواړه او د امام طحاوی رائې ئې دا لیکلې ده چې د دې نه مراد صرف فرض مونځ دې ځکه چې نفل کول په کور کښې غوره او افضل دی لحدیث افضل الصلوة المرء فی بیته الا المکتوبة په دې باندې حافظ فرمائی چې د امام طحاوی د رائې پیش نظر ساتلو باوجود هم په دې تضعیف یعنی د اجر په دې زیاتوالی کښې عموم کیدې شی د عموم نه هیڅ څیز مانع نشته په دې طریقه چې داسې اووئیلې شی چې د مکې مکرمې او مدینې منورې نفل مونځ یو لاکهـ یا زر درجې غوره دې د غیر مکه مکرمه او د غیرمدینه منوره نه یعنی نورو مساجدو سره د مسجدمکه مکرمه او مسجدمدینه منوره تقابل اوکړئ او د نورو کورونو د مکې مکرمې او مدینې منورې د کورونو سرهَ تقابل اوکړئ اهـ

**ثالث**: دریمه خبره دلته دا ده چې مسجد حرام او مکه مکرمه افضل دی یا مسجد نبوی او مدینه منوره نو جمهور علماء د مکې مکرمې د فضیلت قائل دی د پورته مذکوره حدیث په وجه سره،( د مکې مکرمې یو مونځ د یو لاکهـ مونځونو برابر دې او د مسجد نبوی د زرو مونځونو برابر دې) ځکه چې د مکاناتو شرف د عبادت د شرف تابع دې چې هرکله د مکې مکرمې عبادت د مدینې منورې د عبادت نه غوره او افضل دې نو په خپله به مکه مکرمه هم د مدینې منورې نه غوره وی د امام مالک یو روایت او د هغوی د بعضې ملګرو مسلک هم دا دې لکه ابن وهب او ابن حبیب مالکی .لیکن د امام مالک مشهور قول او د هغوی د اکثرو ملګرو مسلک د دې برعکس دې یعنی د مدینې منورې د فضیلت قائل دی ځکه چې نبی ﷺ فرمائی مابین قبری ومنبری روضة من ریاض الجنة چې زما د قبر نه د منبر پورې دا ټوله

حصه د جنت یو حصه او د هغې باغ دې او په دویم حدیث کښې دی موضع سوط فی الجنة خیر من الدنیا و مافیها ابن عبدالبر د دې جواب دا ورکړې دې چې دا صرف یو استنباط دې صریح نص نهٔ دې په خلاف د مکه مکرمه چې د هغې په فضیلت باندې صریح نص موجود دې چې د هغې تخریج اصحاب السنن کړې دې وصححه الترمذی[1] وابن خزیمة وابن حبان چې د هغې الفاظ دا دی عن عبدالله بن عدی بن الحمراء قال رایت رسول الله صلی الله علیه وسلم واقفاً علی الحزورة فقال والله انک لخیرارض الله واحب ارض الله الی الله ولولا انی أخرجت منک ما خرجت،، حزوره په مکه مکرمه کښې د یو ځائې نوم دې نبی ﷺ په دې حدیث کښې مکې مکرمې ته خیرارض الله او احب ارض الله فرمائی دغه شان دا چې کهٔ زهٔ د تا نه ویستلې شوې نهٔ وې نو زهٔ به د دې ځائې نه هیڅکله هم نهٔ ووم وتلې حافظ ابن حجر فرمائی اکثر منصفین (<sup>٢</sup>) مالکیه (انصاف پسند) د دې قول نه رجوع کړې ده او د مکې مکرمې د فضیلت قائل شوې دی قاضی عیاض مالکی فرمائی لیکن د دې نه هغه بقعه مستثنی ده چې په کومه کښې نبی ﷺ دفن کړې شوې دې د هغې په خیرالبقاع کیدو باندې د ټولو اتفاق دې (تردې چې هغه حصه د عرش نه هم اعلی او غوره ده) په دې باندې حافظ ابن حجر فرمائی چې دا خبره د بحث نه خارج ده ځکه چې بحث په دې لحاظ سره کیږی چې کوم ځائې د عبادت دپاره غوره دې (ملخصاً من الفتح) بنده وائی چې مالکیه د مدینې منورې د فضیلت د هغه حدیث نه هم استدلال کړې دې چې د هغې مضمون دا دې چې نبی ﷺ یو ځل دا دعا اوفرمائیله چې اې الله! ابراهیم ﷺ ستا نبی وو هغوی د اهل مکه دپاره د برکت دعا کړې وه او زهٔ ستا نه د اهل مدینه دپاره دعا غواړم او دوچند او څلور چنده زیاته دعا غواړم اهـ اخرجه الترمذی ایضاً فی باب فضل المدینة.

## بَابٌ فِي تَحْرِيمِ الْمَدِينَةِ

### باب: د مدینې د حرمت بیان

په صحیح بخاری شریف کښې دی باب حرم المدینة، په دې کښې خو شک نشته چې حرم دوه دی حرم مکه او حرم مدینه په دې وجه وئیلې شی حرمین شریفین، لیکن د دواړو په نوعیت کښې فرق دې د بهر نه راتلونکې سړې حرم مکه ته د احرام نه بغیر داخلیدې نهٔ شی په خلاف دحرم مدینه په دې کښې بالاتفاق د احرام نه بغیر داخلیدل جائز دی او د بعضې فرقو په کښې اختلاف دې په دې وجه د اکثرو او د ائمه ثلثه په نزد د مدینې منورې اونې بوټی او ښکار حرام دې یعنی څنګه چې د حرم مکه اونې کټ کول حرام دی او د هغې ځائې ښکار حرام دې نو دغه شان حکم د حرم مدینه هم دې لیکن دومره خبره ده چې په دې کښې به جزا واجب نهٔ وی وهو مذهب مالک واحمد فی روایة وقول الشافعی فی الجدید او د امام احمد یو روایت او د امام شافعی قدیم قول دا دې چې جزا به هم واجبیږی هغه جزا چې کومه په حرم

---

[1] أخرجه الترمذي في أواخر كتاب المناقب في باب فضل مكة.١٢.

[2] په فتح الباری کښې لفظ مصنفین دې. قسطلانی کښې منصفین دې. وهو الصحیح.

مکه کښې واجبيږی او وئيلې شوې دی چې د دې جزا اخذ السلب دې(د بدن کپړې او ورسره سامان) لکه څنګه چې وړاندې په کتاب کښې د سعد بن ابی وقاص په حديث کښې راځی د تحريم دليل روايات الباب دی

## د حرم مدينه په حکم کښې د جمهورو او د احنافو اختلاف

او د حنفيه په نزد د حرم مدينه حکم دا نۀ دې چې د هغې ځائې اونې او ښکار حرام دې بلکه صرف دا دې چې هغه معظم او محترم مقام دې د هغې د شان خلاف چې د هغې دشان سره مناسب نۀ وی نو داسې کار هلته کول پکار نۀ دی د هغې ځائې خوشنما منظرونه دې باقی اوساتلې شی او بغير دې ضرورت نه په هغې کښې څۀ خرابې نۀ راولی امام طحاوی په دې باندې د حضرت انس ﷺ د هغې حديث نه استدلال کړې دې چې په هغې کښې دی يا ابا عميرمافعل النغير چې که د مدينې منورې ښکار حرام وې نو د هغې نيول به هم جائز نه وو د دې جواب دا ورکړې شوې دې چې ممکن ده هغه مرغۍ(نغير) هغوی د حل(يعنی د حرم نه خارج) څۀ ځائې کښې نيولې وی ليکن حافظ دا په خپله رد کړې ده حيث قال لکن لا يرد ذلک علی الحنفية لان صيد الحل عندهم اذا دخل الحرم کان کحکم الحرم چې د حل ښکار حرم ته راشی نو هغه هم د حرم د ښکار په حکم کښې شمار شی

دغه شان امام طحاوی د تحريم د رواياتو يو جواب دا ورکړې دې چې ممکن ده چې دا حکم د هغه وخت وی چې کله مدينې منورې ته هجرت واجب وو دې دپاره چې د مدينې منورې زينت باقی وی او دا د زينت بقاء د هجرت طرفته د رغبت او د مدينې منورې د الفت و محبت ذريعه وی نو چې هرکله هجرت منسوخ شو نو دا تحريم هم منسوخ شو لکه د دې تائيد د دې نه کيږی چې په بعضې روايتونو کښې راځی ان النبی صلی الله عليه وسلم نهی عن هدم آطام المدينة فانها من زينة المدينة يعنی نبی ﷺ د مدينې منورې د اوچتو او قديم ديوالونو د وړانولو نه منع اوفرمائيله ځکه چې د هغې وجود د زينت باعث دې دغه شان د دې تحريم په روايتونو کښې په خپله استثناء موجود ده الا ان يعلف رجل بعيره چې د ضرورت په اندازه سرې د خپلې سورلۍ دپاره وابښۀ کټ کولې شی د دويم روايت الفاظ دا دی الا ما يساق به الجمل او په يو روايت کښې دی ولکن يهش هشار قيقاً يعنی د هغې ځائې پاڼړې ضرورةً په قلار قلار شوکولې شې غرض دا چې جمهور د کومو روايتونو نه د تحريم استدلال کوی نو په خپله په هغې کښې د عدم تحريم پهلو موجود ده

[۲۰۳٤](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ التَّيْمِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: مَا كَتَبْنَا عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَّا الْقُرْآنَ وَمَا فِي هَذِهِ الصَّحِيفَةِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْمَدِينَةُ حَرَامٌ مَا بَيْنَ عَائِرٍ إِلَى ثَوْرٍ، فَمَنْ أَحْدَثَ حَدَثًا أَوْ آوَى مُحْدِثًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ

[1]: صحيح البخاري/العلم ۳۹(۱۱۱)، وفضائل المدينة ۱(۱۸٦۷)، والجهاد ۱۷۱(۳۰٤۷)، والجزية ۱۰(۳۱۷۲، ۳۱۷۹)، والفرائض ۲۱(٦۷۵۵)، والديات ۲٤(٦۹۰۳)، والاعتصام ۵(۷۳۰۰)، صحيح مسلم/الحج ۸۵(۱۳۷۰)، سنن الترمذي/الديات ۱٦(۱٤۱۲)، والولاء والهبة ۳(۲۱۲۷)، سنن النسائي/القسامة ۹، ۱۰(٤۷٤۹)،(تحفة الأشراف: ۱۰۳۱۷)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الديات ۲۱(۲٦۵۸)، مسند احمد(۱/۸۱، ۱۲۲، ۱۲٦، ۱۵۱، ۲/۳۹۸)، سنن الدارمي/الديات ۵(۲٤۰۱)(صحيح)

وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ عَدْلٌ وَلَا صَرْفٌ، وَذِمَّةُ الْمُسْلِمِينَ وَاحِدَةٌ يَسْعَى بِهَا أَدْنَاهُمْ، فَمَنْ أَخْفَرَ مُسْلِمًا فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ عَدْلٌ وَلَا صَرْفٌ، وَمَنْ وَالَى قَوْمًا بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَعَلَيْهِ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ لَا يُقْبَلُ مِنْهُ عَدْلٌ وَلَا صَرْفٌ".

دعلی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه مونږ دنبی علیه السلام نه د قران کریم اوددی صحیفی (په کومه کښې چه د دیت احکام لیکلی شوی وو) نه علاوه نور څه نه دی لیکلی او وئې وئیل چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی مدینه منوره دعائر غرنه واخله ترثور غره پورې حرامه ده، څوك چه په مدینه کښې څه قسم نوی خبره پیداکړی یا کوم نوی خبری پیداکونکی ته ځائې ورکړی نوپه داسې کس باندې دی دالله تعالی اودملائکو اودتمامو خلقو لعنت وی، ددغه کس به نه فرض عبادت اونه نفل دالله په نزد. قبول وي، دټولو مسلمانانو ذمه یوه ده، که چرې په دوی کښې کوم ادنی کس یو مشرك ته پناه ورکړی اوبل کس دهغه پناه ماته کړه نوپه داسې کس باندې دی هم دالله تعالی اودفرشتو اودتما موخلقو لعنت وی اودداسې کس به هم فرائض اونوافل عندالله مقبول نه وی او څوك چه دکوم قوم نه دخپلو دوستانو سره داجازت نه بغیر دوستی اوکړی نو په داسې کس باندې دی هم دالله تعالی اودفرشتو اودتماموخلقو لعنت وی اودداسې کس به فرائض او نوافل عندالله مقبول نه وي.

## د حدیث تفصیلی تشریح

قوله: المدینة حرم ما بین عائر الی ثور...الخ: په دې حدیث مبارک کښې د حرم مدینه حد مذکور دې او وړاندې په روایت کښې راځی حمی[1] رسول الله صلی الله علیه وسلم کل ناحیة من المدینة بریداً بریداً یعنی نبی علیه السلام د مدینې منورې څلور واړه طرفونه د یو یو برید په قدر محفوظ کړل برید منزل ته وئیلې شی چې د هغې مسافت دولس میله وی او د بخاری په یو روایت کښې دی حرم ما بین لابتی المدینة او په بعضې روایتونو کښې مابین حریتها راغلې دې لابه او حره مترادف دی الحجارة اسود (تور کانړی) مدینه منوره د حرتین (دواړ تورو کانړیزن زمکو به مینځ کښې واقع ده) او په صحیح مسلم کښې په دې سلسله کښې روایات په مختلف الفاظو سره موجود دی ففی روایة ان ابراهیم حرم مكة وانی احرم مابین لابتیها، وفی روایة منه اللهم انی احرم مابین جبلیها مثل ما حرم به ابراهیم مكة وفی روایة وانی حرمت المدینة مابین مازمیها

د دې نه پس تاسو د حدیث الباب باره کښې ځان پوهه کړئ چې په دې کښې دوه الفاظ مذکور دی عائر (چې عیر ورته هم وئیلې شي) او دویم لفظ ثور دا دواړه د دواړ غرونو نومونه دی یعنی د دې مینځنۍ حصه ټوله په ټوله حرم مدینه دې په صحیح بخاری کښې یو ځائې خو داسې دی من کذا الی کذا او یو بل ځائې کښې دی: ما بین عائر الی کذا ،، ګویا یوځائې کښې دواړه مبهم دی او په دویم ځائې کښې اولنې معین او دویم مبهم دې غرض

[1] ) په دې حدیث کښې راوی د حرم په ځائ د حمي لفظ استعمال کړو چه دا زما په خیال کښې د احنافو دمسلک طرف ته راهنمائی کوی یعنی لکه څنګه چه حمي (د مخصوص چراګاه یعنی ورشو) تحریم د یو وقتی او دڅه خاص ضرورت او مصلحت په وجه باندې شوې دې دغسې د حرم مدینه هم دې والله تعالی أعلم.

دا چې امام بخاري د ثور لفظ اختيار نهٔ کړو او د صحيح مسلم په روايت کښې من کذا الی کذا دی او په يو روايت کښې مابين الی عير الی ثور دې حافظ فرمائی د بعضو شارحينو خيال دا دې چې امام بخاری د ثانی تعيين قصداً اونکړو ځکه چې د ثور لفظ د هغوی په نزد صحيح نهٔ وو په دې وجه د الی ثور په ځائې الی کذا نقل کړو ځکه چې د عائر خو په مدينه منوره کښې کيدل معروف او مشهور دی او د ثور هلته کښې کيدل غيرمعروف دی بلکه د دې په مکه مکرمه کښې کيدل مشهور و معروف دی[1] او دا هغه غر دې چې د دې په غار کښې حضور ﷺ د هجرت په وخت د کفارو نه ځان بچ کړې وو په دې وجه بعضې خو دا وائی چې دا لفظ د راوی وهم دې د دې په ځائې به بل څهٔ وی مثلاً الی احد لکه د مسند احمد په يو روايت کښې داسې دی.

او بعضې شارحينو د دې يو بله توجيه کړې ده هغه دا چې کلام په قياس او تشبيه باندې محمول دې هغه په دې طور سره چې څنګه د جبل ثور په مکه مکرمه کښې کيدل معروف دی دغه شان هلته يو غر د عائر په نوم سره هم دې لهذا په دې حديث کښې د جبل عير و ثور نه مراد دمکې مکرمې دا دوه غرونه دی او مطلب دا دې چې څومره مسافت د دې دواؤ غرونو په مينځ کښې دې (په مکه مکرمه کښې) دومره وسيع ځائې په مدينه منوره کښې د هغې حرم دې

او د بعضې علماؤ تحقيق دا دې چې په کښې مجدالدين فيروزآبادی (صاحب قاموس) دې هغه دا چې د بعضې علماؤ نه منقول دی چې مونږ مدينې منورې ته لاړو او مونږ په خپله د دې تحقيق اوکړو نو د بعضې مشرانو نه پته اولګيده چې او د احد غر نه شاته يو غر دې چې د هغې نوم ثور دې والله سبحانه وتعالی اعلم

د صحيح مسلم دبعضې مصری نسخو په حاشيه کښې د تاج العروس نه نقل کړې دی چې د حديث الجبلين او حديث اللابتين د مجموعې نه د حرم مدينه د حدود اربعه تعيين اوشو ځکه چې لابتين په شرق او غرب او عيروثور د مدينې په شمال او جنوب کښې واقع دی. په دې کښې اولنې په جنوب کښې او دويم په شمال کښې دې فمن احدث حدثاً او آوی محدثاً مطلب دا دې چې هرکله معلومه شوه چې د مدينې منورې دپاره حرم شته او د حرم کيدو مطلب دا دې چې دا مقدس ځائې دې نو د دې تقاضه دا ده چې هلته خصوصيت سره انسان د ګناه نه ځان بچ کړی او خاص کر د بدعاتو او احداث فی الدين[2] نه او دغه شان د ايواء محدث نه يعنې د بدعتی د اعانت نه او بدعتی لره په مدينه منوره کښې د ځائې ورکولو نه او دا لفظ محدث هم کيدې شی يعنی امر بدعت چې کوم څيز د بدعت د قبيل نه وی نو د هغې ترويج او اشاعت خو اول په يو ځائې کښې هم پکار نهٔ دې ليکن بيا په مدينه منوره

---

[1] اګرچه مصعب زبيری خو د دواړو انکار کړې دې چه په دې کښې يو غر هم په مدينه کښې نشته، ليکن علماؤ د عير نفی تسليم کړی ده.

[2] مدينه منوره چونکه د دين اسلام مرکز دې په دې وجه دهغه ځائ نه چه څه څيز هم راؤځی هغه به دين ګنړلې کيږی په دې وجه مدينه د بدعت اود اهل بدعت د هلته د قيام نه د بچ کولو ډير سخت ضرورت دې.

کښې خو قطعاً کول نۀ دي پکار ځکه چې په مقدس ځائې کښې څنګه د نيکو اجروثواب زيات وی نو دغه شان هلته د ګناه کولو وبال هم زيات وی لا يقبل منه عدل ولا صرف[١] د دې نه معلوميږی چې بدعت يو داسې منحوس څيز دې چې دې سره نورې نيکئ هم تباه کيږی وذمة المسلمين واحدة کۀ يو مسلمان سړې يو کافر ته پناه او امان ورکړی نو د هغې رعايت په ټولو باندې واجب دې د يو مسلمان پناه ورکول ګويا د ټولو پناه ورکول دی او د دې پناه ورکولو کوشش يو ادنی سړې هم کولې شی او دا ادنی کيدل عام دی خواه د عدد په لحاظ سره وی چې پناه ورکوونکې صرف يو سړې وی يا د مرتبې په لحاظ سره وی مثلاً دا چې ښځه وی يا غلام وی آزاد نۀ وی دغه شان خواه د کمزورې خاندان والا وی يا اوچت او شريف خاندان والا ومن والی قوماً بغير اذن مواليه چې کوم کس څه عقد موالاة اوکړی پردو(اجنبی) خلقو سره د مولی د اجازت نه بغير نو په دۀ باندې لعنت دې د موالاة او د ولاء دوه قسمونه دی ولاء العتاقة او ولاء الموالاة دلته دواړه مراد کيدې شی که اول مراد واخستلې شی نو د دې تشريح دا ده چې په حديث مبارک کښې دی الولاء لمن اعتق ولاء په اصل کښې د هغې خصوصی تعلق نوم دې چې د اعتاق(آزاديدو) په وجه د معتِق او معتَق درميان کښې پيدا کيږی چې د هغې په نتيجه کښې مولی(معتِق) د معتَق وارث جوړيږی په دې وجه بعضې وخت کښې ولاء اووئيلې شی ليکن مجازاً ترينه مال معتَق هم اخستلې شی بهرحال! ولاء د معتِق دپاره وی ځکه چې په معتَق باندې خو د معتِق ډير احسان دې اوس که يو آزاد کړې شوې غلام د خپل آزادولو نسبت د خپل معتِق په ځائې بل يو کس طرفته اوکړی او اووائی چې دا زما معتِق دې نو دا د دۀ ډير زيات رذالت او احسان فراموشی نۀ ده نو څۀ دی؟ په پورته مذکوره حديث شريف کښې په دې حرکت باندې وعيد بيان کړې شوې دې او يقيناً دا کار حرام دې او په دې صورت کښې به د بغير داذن مواليه قيد په حديث کښې احترازی نۀ وی چې که بغير د اجازت نه داسې اوکړی نو حرام او ناجائز به وی ورنه جائز به وی ځکه چې دا فعل خو په هر صورت کښې ناجائز دې بلکه د بيانِ واقع په طور دې ښکاره خبره ده چې غلام به داسې کار د مولی او آقا د اجازت نه بغير کوی

او دا هم ممکن ده چې دلته د موالاة نه عقد موالاة مراد وی چې هغې ته ولاء الموالاة هم وئيلې شی(د دوستئ عقد) چې د جاهليت په زمانه او د اسلام په ابتداء کښې به ډير زيات وو او په دې وجه به استحقاق د ارث هم کيدو يعنی په ميراث کښې به حقدار جوړيدۀ چې بيا روسته د جمهورو په نزد منسوخ شو ليکن د حنفيه په نزد منسوخ خو نۀ شو البته په دې کښې فرق راغې. [٢] کما سياتی فی کتاب الفرائض په دې دويم صورت کښې به د بغيراذن

---

[١] د صرف او عدل په تعريف او تفسير کښې مختلف اقوال دی چه د بذل المجهود اود کتاب په حواشی ليکلی دی.

[٢] هغه داچه په ابتداء کښې خو مولی الموالاة په ذوی الارحامو باندې مقدم وو، روسته چه کله دا آيت: و اولو الأرحام بعضهم اولی ببعض، نازل شو نو مولی الموالاة د ذوی الارحام نه مؤخر کړې شو، يعنی د ذوی الأرحام د نه موجود کيدو په صورت کښې به مولی الموالاة وارث وی، دهغوی په موجودګئ کښې به نه وی.

مواليه قيد احترازي وی څکه چې سړی د خپل مولی الموالاة نه په اجازت اخستلو سره بل سړی سره عقد موالاة کولی شی البته د اجازت نه بغير حرام دی

[۲۰۳۵](١) حَدَّثَنَا ابْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنَا عَبْدُ الصَّمَدِ، حَدَّثَنَا هَمَّامٌ، حَدَّثَنَا قَتَادَةُ، عَنْ أَبِي حَسَّانَ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، فِي هَذِهِ الْقِصَّةِ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُخْتَلَى خَلَاهَا وَلَا يُنَفَّرُ صَيْدُهَا وَلَا تُلْتَقَطُ لُقَطَتُهَا إِلَّا لِمَنْ أَشَادَ بِهَا، وَلَا يَصْلُحُ لِرَجُلٍ أَنْ يَحْمِلَ فِيهَا السِّلَاحَ لِقِتَالٍ وَلَا يَصْلُحُ أَنْ يُقْطَعَ مِنْهَا شَجَرَةٌ إِلَّا أَنْ يَعْلِفَ رَجُلٌ بَعِيرَهُ".

دعلی رضی الله عنه نه روايت دی چه ددی قصی په باره کښې نبی ﷺ فرمائيلی دی چه دمدينې منوری گيابه نشی کټ کولی اونه به دښکار کولو دپاره ددی ځائی ځاروی زغلولی شی اونه به ددی ځائی پريوتلی څيز اوچتولی شی ليکن پريوتلی څيز به هغه څوک اوچتوی څوک چه ددی مالک ته اطلاع ورکوی او د هيچا دپاره جائزنه دی چه په مدينه باندی دجنګ دپاره أصلحه اوچته کړی او دهيچا دپاره جائزنه دی چه ددی ځائی ونه پری کړی مګردخپل اوښ د انتظام دپاره.

رايت سعد بن ابی وقاص اخذ رجلاً سعد بن ابی وقاص رضی الله عنه يو سړی اوليدهٔ چې په حرم مدينه کښې ئې ښکار کوو نو هغوی هغه اونيوهٔ او کپړی او سامان ئې ترينه واخستهٔ په دی حديث باندی د ابن حزم ظاهری عمل دی دغه شان د امام شافعی قديم قول او د امام احمد په يو روايت کښې هم دغه شان دی امام ابوبکر بزار وائی چې دا حديث د سعد بن ابی وقاص نه علاوه د بل يو صحابی نه مروی نهٔ دی اه بنده وائی چې په دی حديث باندی د جمهورو عمل نشته څکه چې دا په اخبار آحاد کښې دی او د دی طرق هم متعدد نهٔ دی او د بل چا د مال اخستلو مسئله خو ډيره سخته ده د دی دپاره چې څنګه د مشهور او قوی حديث ضرورت دی نو دا هغه شان نهٔ دی والله اعلم

[۲۰۳٦](٢) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، أَنَّ زَيْدَ بْنَ الْحُبَابِ حَدَّثَهُمْ، حَدَّثَنَا سُلَيْمَانُ بْنُ كِنَانَةَ مَوْلَى عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ أَبِي سُفْيَانَ، عَنْ عَدِيِّ بْنِ زَيْدٍ، قَالَ: "حَمَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّ نَاحِيَةٍ مِنَ الْمَدِينَةِ بَرِيدًا بَرِيدًا، لَا يُخْبَطُ شَجَرُهُ وَلَا يُعْضَدُ إِلَّا مَا يُسَاقُ بِهِ الْجَمَلُ".

د عدی بن زيد نه روايت دی فرمائی چه نبی ﷺ مدينه منوره ديويو بريد دفاصلی پورې محفوظه کړی ده چه نه دی ددی ځائی ونې کټ کولی شی اونه دی پاڼړی ماتولی شی مګرداوښ دشړلودپاره.

[۲۰۳۷](٣) حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ يَعْنِي ابْنَ حَازِمٍ، حَدَّثَنِي يَعْلَى بْنُ حَكِيمٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ أَبِي عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: رَأَيْتُ سَعْدَ بْنَ أَبِي وَقَّاصٍ أَخَذَ رَجُلًا يَصِيدُ فِي حَرَمِ الْمَدِينَةِ الَّذِي حَرَّمَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَسَلَبَهُ ثِيَابَهُ، فَجَاءَ مَوَالِيهِ فَكَلَّمُوهُ فِيهِ، فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَرَّمَ هَذَا الْحَرَمَ، وَقَالَ: "مَنْ وَجَدَ أَحَدًا يَصِيدُ فِيهِ فَلْيَسْلُبْهُ ثِيَابَهُ"، فَلَا أَرُدُّ عَلَيْكُمْ طُعْمَةً أَطْعَمَنِيهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَكِنْ إِنْ شِئْتُمْ دَفَعْتُ إِلَيْكُمْ ثَمَنَهُ.

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ١٠٢٧٨)، وقد أخرجه: مسند احمد (١/١١٩) (صحيح)

(٢): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٩٨٧٩) (حسن)

(٣): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ٣٨٦٣)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/الحج ٨٥ (٤٠٦٠)، مسند احمد (١/١٦٨، ١٧٠) (صحيح)

دسليمان بن ابوعبدالله نه روايت دې فرمائي چه سعد بن أبي وقاص د مې اوليدل چه يوکس ئي ونيور چه ښکارئې کولو په حرم دمدينه کښې دهغه حدودو په احاطه کښې کوم چه نبي ﷺ حرام کړې دی سعد رضي الله عنه دهغه نه جامې واغستلې، خلق سعد ته دهغه سره دخبرو کولو دپاره راغلل سعد رضي الله عنه اوفرمائيل چه نبي ﷺ دا حرم حرام ګرځولی دې اوفرمائيلی ئې دی څوك چه کوم ښکاری اونيسي نودهغه نه دی دهغه سامان واخلی اوزه تاسوته دده سامان بالکل نه درکوم کوم سامان چه ماته نبي ﷺ راکړې دې ليکن که چرې تاسو خامخا غواړئ نوزه به تاسوته ددې سامان قيمت درکړم دسعد هند د آزاد کړې شوی غلام نه روايت دې فرمائي چه سعد نه په مدينه منوره کښې يوغلام دوني په کټ کولو وليدو نو سعد دهغه سامان واغستو اودهغه مالکانوته ئې اوونيل چه مادنبي ﷺ نه اوريدلی دی چه دمدينې دونو دکټ کولونه سې منع فرمائيلی وه، اودائې هم فرمائيل څوك چه ددې ځائې ونې وغيره پريکوی اوبيائې څوك ونيسي نوځه سامان چه ورسره وی هغه دی ترې واخلی.

[۲۰۳۸]([1]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ صَالِحٍ مَوْلَى التَّوْءَمَةِ، عَنْ مَوْلًى لِسَعْدٍ، أَنَّ سَعْدًا وَجَدَ عَبِيدًا مِنْ عَبِيدِ الْمَدِينَةِ يَقْطَعُونَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ، فَأَخَذَ مَتَاعَهُمْ، وَقَالَ يَعْنِي لِمَوَالِيهِمْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْهَى أَنْ يُقْطَعَ مِنْ شَجَرِ الْمَدِينَةِ شَيْءٌ، وَقَالَ: "مَنْ قَطَعَ مِنْهُ شَيْئًا فَلِمَنْ أَخَذَهُ سَلَبُهُ".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه دمدينې دحرم نه به نه پاڼړی ماتولې شی اونه به ونه وهلې شی البته پاڼړی په مزه مزه څندلې شئ په دې کښې څه حرج نشته.

[۲۰۳۹]([2]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ حَفْصٍ أَبُو عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْقَطَّانُ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ خَالِدٍ، أَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ الْحَارِثِ الْجُهَنِيُّ، أَخْبَرَنِي أَبِي، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا يُخْبَطُ وَلَا يُعْضَدُ حِمَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَلَكِنْ يُهَشُّ هَشًّا رَفِيقًا".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی چه دمدينې دحرم نه به نه پاڼړی ماتولې شی اونه به ونه وهلې شی البته پاڼړی په مزه مزه څندلې شئ په دې کښې څه حرج نشته.

[۲۰۴۰]([3]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى. ح حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، عَنِ ابْنِ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "كَانَ يَأْتِي قُبَاءَ مَاشِيًا وَرَاكِبًا"، زَادَ ابْنُ نُمَيْرٍ، وَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ".

دعبدالله بن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائي چه نبي ﷺ به مسجد قبا ته پيدل او کله په سورلی هم راتلو ابن نمير دا اضافه کړې ده چه هلته به لاړو نودوه رکعته نفل به ئې وکړل.

[1]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۳۹۵۱)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۲۱۸)(صحيح)

[3]): صحيح البخاري/الصلاة في مسجد مكة والمدينة ۳(۱۱۹۴)تعليقًا، والاعتصام ۱۶(۷۳۲۳)، صحيح مسلم/الحج ۹۷(۱۳۹۹)، سنن النسائي/المساجد ۹(۶۹۹)، (تحفة الأشراف: ۷۹۴۱، ۸۱۴۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/ قصر الصلاة ۲۳(۷۱)، مسند احمد(۲/۵، ۳۰، ۵۷، ۵۸، ۶۵)(صحيح)

كان ياتى قباء ماشياً وراكباً مضمون خو روان دې د حرم مدينه او فضيلت مدينه او چونكه د قباء كلې هم د مدينې منورې په اطرافو كښې واقع دې په دې وجه ئې تبعاً د دې فضيلت هم دلته په دې حديث كښې ذكر كړو

## بَابُ زِيَارَةِ الْقُبُورِ

### باب د قبرونو د زيارت بيان

د دې نه يو باب وړاندې باب اتيان المدينة تير شوې دې چې په هغې كښې مصنف د شد رحال والا حديث ذكر كړې دې چې د هغې نه په ظاهره اشاره دې طرفته شوې ده چې د مدينې په حاضرئ سره مقصود د مسجد نبوی زيارت كول او په هغې كښې مونځ كول دی او په دې سره غالباً دويم مقصد طرفته اشاره كول غواړې يعنى د نبى ﷺ د قبر شريف زيارت او په هغې باندې حاضرى، بلكه زمونږ بعضې فقهاء چې ابن الهمام په كښې هم دې هغوی خو دا فرمائى چې غوره او اولى دا ده چې د مدينې منورې د حاضرئ نه مقصود د روضې مباركې زيارت وی ځكه چې د قبر شريف د زيارت باره كښې په صراحت او وضاحت سره بيشماره احاديث راغلې دی ففى رواية من جاءنى زائراً لم تنزعه حاجة الا زيارتى كان حقا على ان اكون له شفيعاً يوم القيامة(شفاء السقام) يعنى چې كوم سړې زما د قبر زيارت دپاره راشى او د دې نه سوا ئې بل څه غرض نۀ وی نو په ما باندې د دۀ سفارش كول حق دی

[٢٠٤١]() حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَوْفٍ، حَدَّثَنَا الْمُقْرِءُ، حَدَّثَنَا حَيْوَةُ، عَنْ أَبِي صَخْرٍ حُمَيْدِ بْنِ زِيَادٍ، عَنْ يَزِيدَ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ قُسَيْطٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "مَا مِنْ أَحَدٍ يُسَلِّمُ عَلَيَّ، إِلَّا رَدَّ اللَّهُ عَلَيَّ رُوحِي حَتَّى أَرُدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى ﷺ فرمائيلى دی څوك چه په ما باندې سلام وائى، اوراليږی ئې الله تعالى ماته زما روح راواپس كوی و او زه دهغه كس دسلام جواب وركوم.

ما من احد يسلم على الا ردالله على روحى چې كوم كس په ما باندې سلام وائى( د قبر شريف په خوآ كښې) كما يشير اليه ترجمة الباب) نو الله تعالى ماته زما روح واپس كوی تردې چې زۀ د هغۀ د سلام جواب په خپله وركوم څومره لويه خوش قسمتى او سعادت دې نبى ﷺ د سلام كوونكى سلام اورى او بيا د هغې جواب وركوی(گويا يو لحاظ سره هم كلامى شوه) كه دا نعمت په ټوله دنيا خرچ كولو او خرڅولو باندې هم واخستلې شی نو د نبى ﷺ د امتى په حق كښې ارزان دې

### د حديث مبارك تشريح د ماله و ماعليه سره

دلته يو علمى اشكال و جواب دې او اشكال په هغې مطلب او ترجمه باندې دې چې كوم پورته مونږ ذكر كړل اشكال دا دې چې جسم ته روح واپس كيدل دا مستلزم دی مفارقة الروح عن

(): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٤٨٣٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٥٢٧/٢)(حسن)

الجسد ته چې دحياة الانبياء[1] دمسئلې خلاف دی ددې متعدد توجيهات بيان کړې شوې دی.

## د علامه سندي رحمه الله توجيه

علامه سندي رحمه الله د دې يو توجيه دا کړې ده چې په کلام عرب کښې دا څيز ډير شائع دې چې اکثر وختونو کښې دا خلق د شرط جزا حذف کړی او د هغې علت د هغې قائم مقام جوړ وی کما في قوله تعالى فان كذبوك فقد كذب رسل من قبلك په دې آيت کريمه کښې اصل جزا حذف کړې شوه يعني فلا تحزن او د دې علت د دې په ځائې ذکر کړې شوې دې تاسو غم مۀ کوئ ځکه چې د تيرو شوو انبياء کرامو خو هم دا تکذيب کړې شوې دې والبلية اذا عمت طابت دغه شان په دې آيت کريمه کښې ان الذين آمنوا وعملوا الصالحات انا لا نضيع اجر من احسن عملاً د دې اصل جزا فلا نضيع عملهم وه هغه حذف کړې شوې او د هغې علت د هغې قائم مقام اوګرځولې شو د کلام تقدير داسې دې ان الذين آمنوا وعملوالصالحات لا نضيع عملهم لانا لانضيع اجر من احسن عملاً دغه شان په دې حديث شريف کښې تقدير د عبارت داسې دې ما من احد يسلم على الا أرد عليه السلام لان الله تعالى قد رد على روحى يعني يو کس داسې نشته چې هغه په ما باندې سلام اولولی مګر دا چې زۀ د هغۀ د سلام جواب ورکوم ځکه چې الله تعالى زما روح ماته واپس کړې دې(په عالم برزخ کښې) بيا چې وړاندې په حديث دی حتى ارد عليه السلام د دې مطلب دا دې پس د دې په سبب زۀ د هغۀ د سلام جواب ورکوم او د حديث ترجمه او مطلب دا نۀ دې چې کوم د ظاهر نه په سمجهـ کښې راځی چې نشته يو کس چې په ما باندې سلام لولی مګردا چې د هغۀ د سلام نه پس الله تعالى ماته زما روح واپس کوی دې دپاره چې زۀ د هغۀ د سلام جواب ورکړم بلکه د حديث ترجمه او مطلب هغه دې چې کوم مونږ پورته بيان کړو.[2]

## د علامه سيوطي رحمه الله توجيه

دغه شان علامه سيوطي صاحب رحمه الله په دې حديث باندې د مذکوره اشکال نه پس فرمائی چې ما د دې اشکال د جواب دپاره يومستقل رساله ليکلې ده چې د هغې نوم ما (انباء الاذکياء بحياة الانبياء) کيخودلې دې[3] او په دې کښې ما پنځلس جوابات ليکلې دی چې

---

[1] علامه سيوطي رحمه الله ددې حديث توجيه او تاويل ضروری ګڼړی اوفرمائی: ومنها مخالفة الاحاديث المتواترة الدالة علي حياة الانبياء وما خالف القرآن والسنة المتواترة يجب تاويله ..اه، صاحب د عون المعبود هم دا د دوی نه نقل کړې دې.

[2] يعني نشته دې څوک سړې چه هغه په ما باندې سلام وائی ليکن زه دهغه دسلام جواب ورکوم ځکه چه الله تعالى ماته زما روح (په عالم برزخ) کښې راواپس کړې دی.

[3] دا رساله په، الحادي للسيوطي، کښې شامل ده چه ددې نوم: انباء الاذکياء بحياة الانبياء، دې ددې رسالې ابتداء داسې ده: بسم الله الرحمن الرحيم الحمد لله وسلام علي عباده الذين اصطفي وقع السوال، قد اشتهران الذي في قبره، وورد انها حال مامن احد يسلم علي الا ردالله علي روي حق ارد عليه السلام، فظاهره مفارقة الروح له في بعض الاوقات نكيف الجمع؟ وهو سوال حسن يحتاج إلي النظر والتأمل، فأقول حياة النبي في قبره هو وسائر الانبياء معلومة عندنا علما قطعيا لما قام عندنا من الأدلة في ذلك وتوارت به الأخبار، وكن الف البيهق جزء في حياة الانبياء في قبورهم .........۲۵۶

په هغې تولو کښې مضبوط جواب دا دې چې رد الله علی روحی جمله حالیه ده او د جمله حالیه قاعده دا ده چې کله هغه مصدر بفعل ماضی وی نو د هغې په شروع کښې لفظ د قد کیدل ضروری دی خواه لفظاً مذکور وی یا مقدر کما فی قوله تعالی(او جاؤکم حصرت صدورهم) ای وقد حَصِرَتْ دغه شان دلته هم لفظ د قد مقدر دې. (۱) الا وقد ردالله علی روحی ترجمه به داسې وی چې نشته یو کس چې په ما باندې سلام لولی مگر حال دا دې چې ماته روح واپس کړې شوې وی(د هغهٔ د سلام نه مخکښې) او زهٔ د هغهٔ د سلام جواب ورکوم هغوی فرمائی دا حتّٰی د تعلیل دپاره نهٔ ده بلکه عاطفه ده د واؤ په معنی کښې دلته چې کوم اشکال پیدا کیږی هغه په دې بناء باندې چې الا ردالله علی روحی لره د شرط مذکور(ما من احد یسلم علی) جزا او په حتی ارد کښې حتّٰی تعلیلیه گرځوی والامر لیس کذلک ځکه چې الا ردالله علی روحی لره جزا گرځولو سره خو دا لازم راځی چې دا د روح ردکول په سلام باندې مرتب وی د مخکښې نه په جسم کښې نهٔ وی(او هم دا څیز موجب د اشکال او د حیات انبیاء خلاف دې) او چې هرکله دا اووئیلې شو چې الا ردالله علی روحی جمله حالیه ماضیه ده چې په جزا باندې دلالت کوی یعنی ارد علیه السلام بیا اشکال ختمیږی(۲) ځکه چې په دې صورت کښې د دې حدیث حاصل مطلب دا راوځی چې د سلام کونکی سلام ما باندې په داسې حال کښې پیش کولې شی چې ماته روح واپس کړې شوې وی او زهٔ هغهٔ ته د هغهٔ د سلام جواب ورکوم یعنی دلته په دنیا کښې خو د وفات په وخت کښې د نبی ﷺ روح قبض کړې شوې وو بیا عالم برزخ ته د تشریف اوړلو نه پس نبی ﷺ ته روح واپس کړې شو چې د هغې په وجه سره د سلام کوونکی سلام نبی ﷺ اوری هم او د هغې جواب هم ورکوی دغه شان دا حدیث کهٔ په خپل ظاهر باندې کیخودلې شی د څهٔ توجیه او تاویل نه بغیر او هم دا اووئیلې شی چې په نبی ﷺ باندې د روح واپسی د سلام په وخت کښې کیږی د مخکښې نه روح په جسد اطهر کښې موجود نهٔ وی نو قطع نظر د دې نه چې دا د مسلماتو خلاف ده یو لویه خرابی په دې کښې دا ده چې بار بار د روح واپسی او د روح قبض کول راځی ځکه چې په روضه مبارکه باندې د صلوٰة و سلام پیش کولو سلسله خو مختصر شان وقفو سره قائمیږی او بنکاره خبره ده چې په دې بار بار روح قبض کولو کښې د جسمانی تکلیف او

---

ـــه......فمن الاخبار الدالة علي ذلك مااخرجه مسلم عن انس ان النبي ﷺ ليلة اسري به مربموسي عليه السلام وهو يصلي في قبره، په دې تالیف کښې سیوطی د احادیث مرفوعه نه علاوه د ډیرو کتابونو په حوالو سره دا روایت هم نقل کړې دې چې سعید بن المسیب فرمائی د وقعة الحره په زمانه کښې چې کله په مسجد نبوی شریف کښې تر ډیرو ورځو پورې اذان او اقامت بند شوې وو، (چې کله به هم د فرض مونځ وخت راغی) ما به د قبر شریف نه د اذان او اقامت آواز په خپلو غوږونو باندې اوریدلو آه، دچا چې زړه غواړی اصل تصنیف طرف ته دې رجوع اوکړی.

(۱) سیوطی لیکلی دی بلکه د بیهقی په روایت کښې لفظ قد موجود دې یعنی اصل حدیث کښې، فلله الحمد والمنة.

(۲) دحدیث حل کولو اود اشکال دفع کولو دپاره مونږ دلته څه قدرې اوږدوالې اختیار کړو، انشاء الله تعالی مفید به وی.

اذيت نه علاوه تعدد د مرګ او ژوند هم دې چې د عقل و نقل خلاف دې(سیوطی)

## د علامه خفاجي رحمه الله جواب:

علامه خفاجي په نسيم الرياض (ص ۵۰۰ ج۳) شرح شفاء للقاضي عياض کښې فرمائي د حديث مطلب چې کوم بلا تکلف په ذهن کښې راځي هغه دا دې چې نبي عليه السلام او نور انبياء کرام عليهم السلام په خپلوخپلو قبرونو کښې ژوندي دي او د هغوی حيات د شهيدانو د حيات نه مضبوط او قوي دې دا حضرات په قبرونو کښې ارام فرمائي په منزله د نائمينو دي او ښکاره خبره ده چې اوده کس د متکلم سلام او د هغهٔ کلام د بيداريدو نه پس اوري هم دغه شان نبي عليه السلام د سلام کوونکي سلام اوريدلو نه پس بيداريږي او د هغهٔ د سلام جواب ورکوي اهـنو ګويا د روح واپس کيدل دا کنايه ده د بيداريدو نه.

او د دې قسم يو جواب هغه دې چې کوم حضرت سهارنپوري رحمه الله په بذل المجهود کښې نقل کړې دې چې د روح د واپس کيدو نه مطلب دادې چې حضور اقدس ﷺ په عالم برزخ کښې د نبي عليه السلام روح د تجليات ربانيه او معارف الهيه طرفته متوجه وي چې کله يو امتي په نبي عليه السلام باندې درود و سلام پيش کړي نو الله تعالى د نبي عليه السلام روح د دې سلام کوونکي طرفته متوجه کړي دې دپاره چې نبي عليه السلام ورته جواب ورکړي اهـ زهٔ وايم چې علامه سيوطي هم په اخره کښې دا توجيه زياته خوښه کړې ده[1] (کما فی رسالته انباء الاذکياء ص۱۵۱ ج۲) چې د هغې حاصل دا دې چې د روح د واپسئ نه مراد افاقة عن الاستغراق والمشاهده ده د دوی اولنئ توجيه چې مونږ سره په شروع کښې نقل کړې شوې ده هغه من حيث العربيه والقواعد النحويه ده او دا توجيه روحاني او معنوي ده لا تجعلوا بيوتکم قبوراً د حديث دا ټکړه په کتآب الصلوة کښې باب صلوة الرجل التطوع فی بيته کښې تيره شوې ده ولا تجعلوا قبري عيداً زما قبر د عيد(اختر) مظهر مهٔ جوړوئ يعني د سرور او جشن مناوولو ځائې ئې مهٔ جوړوئ هلته زينت او سرور سره مهٔ جمع کيږئ قبر خو د عبرت ځيز دې او بعضو د دې مطلب دا اخستلې دې چې زما د قبر زيارت زر زر او ډير ډير کوئ دا نهٔ چې د اختر په شان کله راځئ يعنی اختر په کال کښې يو ځل راځي(خصوصاً هغه حضرات چې مدينې منورې سره نزدې اوسيږي) او وئيلې شوې دي چې عيد په معنی د اعتياد(د يو کار عادت جوړول) يعنی زما قبر ته د راتلو بار بار عادت مهٔ جوړوئ ځکه چې په دې کښې د بې ادبئ ويره ده دغه شان دې سره دا شبه هم کيدې شي چې د دې سرې په نزد په نبي عليه السلام

[1]) په دې توجيه باندې بعضې خلق دا اعتراض کوي چه د حضور ﷺ په روضه شريفه باندې خو تقريبا هر وخت د سلام ونيلو سلسله قائمه وي نو آيا بار بار دا د استغراق کيفيت او ددې نه افاقه کيږي؟ جواب دادې چه ترڅو پورې د صلوة اوسلام سلسله جاري وي توجه هم دغه طرف ته وي اوکله چه په دې کښې انقطاع کيږي نو په توجه کښې هم انقطاع کيږي په دې څه اشکال دې، روح خو ډير لطيف او سريع السير دی. دويمه خبره داده چه سلام ويونکي په دې عالم کښې دي او په چا چه سلام ونيلې شي هغه ذات په بل عالم کښې دې، په دې دنيا کښې نه دې هرکله چه په مکان کښې اختلاف دې نو په ژبه کښې هم اختلاف کيدې شي، ممکن ده چه دهغه ځائې په ژبه کښې طول او امتداد زيات وي په نسبت ددې ځائې (دنيا) د ژبې نه، کما يظهر بالتامل في قصة الاسراء المعراج. والله أعلم.

باندې درود او سلام نهٔ پیش کیږی په دې وجه وړاندې فرمائی وصلوا علی فان صلوتکم تبلغنی حیث کنتم تاسو چې د کوم ځائې نه هم په ما باندې صلوة و سلام لولئ او رالیږئ نو د هغې ځائې نه به رارسی اللهم صل علی سیدنا ومولانا محمد وعلی آل سیدنا ومولانا محمد وبارک وسلم تسلیماً اللهم وآته الوسیلة والفضیلة والمقام المحمود الذی وعدته واجزه عنا ما هو اهله واجزه عنا افضل ماجزیت نبیاً عن امته وصل علی جمیع اخوانه من النبیین والصالحین

[۲۰۴۲]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، قَرَأْتُ عَلَى عَبْدِ اللَّهِ بْنِ نَافِعٍ، أَخْبَرَنِي ابْنُ أَبِي ذِئْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ قُبُورًا، وَلَا تَجْعَلُوا قَبْرِي عِيدًا، وَصَلُّوا عَلَيَّ، فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ تَبْلُغُنِي حَيْثُ كُنْتُمْ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی دخپلو کورونونه قبرونه مه در جوړوئ (یعنی لکه څنګه چه په قبرونو کښې څوک و مونځ نه کوی نو داسې تاسو هم په خپلو کورونو کښې مونځ نه کوئ) اوزماد قبرنه عیدګاه مه جوړوئ البته په ما باندې درود وائی تاسو چه هر چرته ئې ستاسو درود ماته رارسیږی.

[۲۰۴۳]([2]) حَدَّثَنَا حَامِدُ بْنُ يَحْيَى، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ مَعْنٍ الْمَدَنِيُّ، أَخْبَرَنِي دَاوُدُ بْنُ خَالِدٍ، عَنْ رَبِيعَةَ بْنِ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ رَبِيعَةَ يَعْنِي ابْنَ الْهُدَيْرِ، قَالَ: مَا سَمِعْتُ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ يُحَدِّثُ، عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، حَدِيثًا قَطُّ غَيْرَ حَدِيثٍ وَاحِدٍ، قَالَ: قُلْتُ: وَمَا هُوَ؟ قَالَ: خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدُ قُبُورَ الشُّهَدَاءِ، حَتَّى إِذَا أَشْرَفْنَا عَلَى حَرَّةِ وَاقِمٍ، فَلَمَّا تَدَلَّيْنَا مِنْهَا وَإِذَا قُبُورٌ بِمَحْنِيَّةٍ، قَالَ: قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَقُبُورُ إِخْوَانِنَا هَذِهِ؟ قَالَ: "قُبُورُ أَصْحَابِنَا" فَلَمَّا جِئْنَا قُبُورَ الشُّهَدَاءِ، قَالَ: "هَذِهِ قُبُورُ إِخْوَانِنَا".

ربیعه بن الحدیر وئیلی دی چه ما دطلحه بن عبید الله نه دیو حدیث نه علاوه بل حدیث نه دې اوریدلی چه هغه دنبی علیه السلام نه روایت کړې وی ربیعه بن عبد الرحمن اووئیل هغه حدیث کوم یو دې ربیعه بن حدیر اووئیل هغه دادې چه طلحه نه وئیلی دی چه صحابه کرام دنبی علیه السلام په ملګرتیا کښې دشهیدانو د قبرونو طرف ته لاړل مونږ چه کله په حرة واقم غونډئ باندې اوختو اوبیاکوز شو نوهلته یوڅو قبرونه وو مونږ عرض اوکړوای دالله رسوله ایادا زمونږ دورونو قبرونه نه دي. نبی علیه السلام اوفرمائیل داقبرونه زمونږه د ملګرودی کله چه مونږ د شهیدانو قبرونوته اورسیدو نبی علیه السلام اوفرمائیل داقبرونه زمونږ د ورونو دي.

خرجنا مع رسول الله صلی الله علیه وسلم یرید قبورالشهدا مونږ د مدینې منورې نه نبی علیه السلام سره راؤوتو د شهداؤ د قبرونو د زیارت دپاره (بنده ته په هیڅ یو شرح کښې دا ملاؤ نهٔ شو چې د دې نه کوم شهیدان مراد دی والله تعالی اعلم)

حتی اذا اشرفنا علی حرة واقم فلما تدلینا منها فاذا قبور بمحنیة تردې چې کله مونږ په حره واقم باندې اوختو (مدینه منوره د حرتینو درمیان کښې واقع ده لکه څنګه چې مشهوره ده بذل المجهود کښې ئې د معجم البلدان نه نقل کړې دی چې د دې نه حره شرقیه مراد ده او د واقم باره کښې ئې دواړه قوله نقل کړې دی اسم رجل، او دویم قول دا چې واقم د مدینې

---

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۱۳۰۳۲)، وقد أخرجه: مسند احمد (۳۶۷/۲) (صحیح)
[2]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۴۹۹۷)، وقد أخرجه: مسند احمد (۱۶۱/۱) (صحیح)

منورې په أطام کښې د يو أطم نوم دې (أطم قلعه ته وائی شايد دې حره سره به يو قديمه قلعه وی والله تعالی اعلم) بيا چې مونږ کله دغه حره نه ښکته کوزيدو نو اچانک مونږ ته د دې وادئ په موړ باندې يو څو قبرونه په نظر راغلل محنيه او محنوه دواړه لغته دی د وادئ موړ ته وئيلې شی قلنا يا رسول الله اقبور اخواننا هذه قال قبور اصحابنا صحابه کرامو د نبی عليه السلام نه تپوس اوکړو چې دا زمونږ د رونړو قبرونه دی نو نبی عليه السلام اوفرمائيل چې داخو زمونږ دملګرو او اصحابو قبرونه دی بيا چې کله مونږ دشهيدانو قبرونو ته اورسيدو کوم ځائې ته چې تلل مقصود وو نو نبی عليه السلام اوفرمائيل دادی زمونږ د رونړو قبرونه

## په دواړو احاديثو کښې د تعارض دفع کول

په بذل المجهود کښې د حضرت ګنګوهی صاحب د تقرير نه دلته يو اشکال و جواب نقل کولې شی چې مونږ ئې دلته خپلې تشريح سره ليکو هغه دا چې تاسو به په مشکوة شريف کښې وئيلې وی چې يو ځل نبی عليه السلام اوفرمائيل وددت انی[1] رايت اخوانی،قالوا السنا اخوانک يا رسول الله! قال بل انتم اصحابی واخوانی الذين لم ياتوا بعد يعنی يو ځل نبی عليه السلام اوفرمائيل چې کاش ما خپل رونړه ليدلې وې نو په دې خبره باندې صحابه کرامو عرض اوکړو چې يا رسول الله ! آيا مونږ ستاسو رونړه نۀ يو نو نبی عليه السلام اوفرمائيل چې تاسو خو زما اصحاب(ملګری) ئې او زما رونړه خو هغه خلق دی چې اوسه پورې پيدا شوې نۀ دی روستو به بيا راځی دلته سوال دا کيږی چې نبی عليه السلام د ابوداؤد شريف په دې حديث کښې بعضې صحابه کرامو ته خپل اصحاب او بعضو ته خپل رونړه اوفرمائيل د دې نه معلوميږی چې وصف د اخوة او د صحبت دواړه جمع کيدې شی حالانکه د مشکوة والا حديث مبارک کښې ئې ټولو صحابو ته صرف خپل اصحاب او روسته راتلونکو خلقو ته خپل رونړه اوفرمائيل(چې د هغې نه معلوميږی چې په اصحاب او اخوان يعنی ملګرو او رونړو کښې فرق دې) د دې جواب حضرت دا ليکلې دې چې د ابوداؤد په حديث شريف کښې د اخوة نه مراد اخوة نسبی دې چې صحبت سره جمع کيدې شی او د مشکوة شريف په حديث مبارک کښې د اخوة نه مراد اخوة دينيه محضه دې فلا تعارض بينهما

[۲۰۴۴](۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِیُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ نَافِعٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَنَاخَ بِالْبَطْحَاءِ الَّتِي بِذِي الْحُلَيْفَةِ، فَصَلَّى بِهَا"، فَكَانَ عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُمَرَ يَفْعَلُ ذَلِكَ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ خپله اوښه په بطحاء مقام کښې کښينوله کوم چه په ذو الخليفه کښې دې ددې نه پس بيا نبی عليه السلام هلته مونځ اوکړو اوعبدالله بن عمر رضی الله عنه به هميشه داسې کول

---

[1] ) دا حديث شريف ډير دعبرت قابل دې، اوګورئ! دحضور پاک ﷺ دخپل امت سره څومره محبت دې هغوی ﷺ ددې خبرې تمنا (آرزو) ښکاره کوی چه په څه طريقه ما خپل امت ليدلې وې (هم په دنيا کښې) کوم چه به زما نه پس پيدا کيږی.

[2] ): صحيح البخاري/الصلاة ۸۹(۴۸۴)، والحج ۱۴(۱۵۳۲)، ۱۵(۱۵۳۳)، ۱۶(۱۵۳۵)، والعمرة ۱۴(۱۷۹۹)، والمزارعة ۱۶(۲۳۳۶)، صحيح مسلم/الحج ۶(۱۱۸۸)، ۷۷(۱۲۷۵)، سنن النسائي/المناسك ۲۴(۲۶۶۰)،( تحفة الأشراف: ۸۳۳۸)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الحج ۶۹(۲۰۶)، مسند احمد(۲/۲۸، ۸۷، ۱۱۲، ۱۳۸)(صحيح)

## د حديث وضاحت او تشريح

قوله: عن عبدالله بن عمر ان رسول الله صلى الله عليه وسلم اناخ بالبطحاء التي بذي الحليفة فصلى بها..الخ: حضرت امام بخاري رحمه الله د كتاب الحج په آخر كښې باب ترلې دې باب النزول بذى طوى قبل ان يدخل مكة والنزول بالبطحاء التي بذي الحليفة او بيا د دې لاندې هغوى د ابن عمر رضي الله عنهما حديث ذكر كړې دې چې د هغې مضمون دا دې چې هغوى په مكه مكرمه كښې د داخليدو نه مخکښې به يو شپه په ذى طوى كښې تيروله او بيا به سحر د هغې ځائې نه په مكه مكرمه كښې داخليدو او د مكې مكرمې نه په واپسئ باندې مدينه منوره كښې د داخليدو نه مخکښې بطحاء ذى الحليفه كښې به ئې قيام فرمائيلو د دې نه پس به مدينه منوره كښې داخليدو. (١)بطحاء او ابطح وسيع ميدان ته وائى بطحاء دوه دى يو هغه چې د منى او مكه مكرمه درميان كښې ده چې ورته محصب وائى او يو هغه چې په ذى الحليفه كښې ده چې كومه دلته په حديث كښې مذكور ده ذوالحليفه خو يو كلې دې په هغې كښې دا ميدان دې كوم ځائې به ئې چې خپله اوښه كينوله او هلته يو جمات هم دې چې هغې ته مسجد ذى الحليفه او مسجد المعرس وئيلې شى

د دې نه پس ځان پوهول پكار دى چې يو معمول خو د نبي عليه السلام دا وو چې كوم اوس تير شو( په مكه مكرمه كښې د داخليدو نه مخکښې په ذى طوى كښې يو شپه تيرول او په مدينه منوره كښې د داخليدو نه مخکښې په ذوالحليفه كښې ايساريدل)

### د ذوالحليفه نه مدينې منورې ته دوه لارې او د نبي عليه السلام معمول

د دې نه علاوه د نبي عليه السلام يو معمول په احاديثو كښې بل راځى چې په سنن ابوداؤد كښې په باب دخول مكه كښې تير شوې دې عن ابن عمر رضى الله عنهما ان النبى صلى الله عليه وسلم كان يخرج من طريق الشجرة ويدخل من طريق المعرس د نبي عليه السلام معمول وو چې كله به د مدينې منورې نه وتلو نو په طريق الشجرة به وتلو او د سفر نه په واپسئ كښې به چې كله په مدينه منوره كښې داخليدو نو په طريق المعرس سره به داخليدو د ذوالحليفه نه د مدينې منورې طرفته دوه لارې راځى يو ته طريق الشجرة وائى او دويمه طريق المعرس حضرت امام بخارى صاحب رحمه الله په دې باندې مستقل باب قائم كړې دې باب خروج النبى صلى الله عليه وسلم على طريق الشجرة .

دغه شان د نبي عليه السلام معمول په دخول مكه كښې دا وو چې مكې مكرمې ته به پورته والا لارې سره داخليدو او خروج به ئې په سفل يعنى لاندينى طرف سره كولو فقد تقدم فى باب دخول مكة من حديث ابن عمر مرفوعاً كان يدخل من الثنية العليا ويخرج من ثنية السفلى ثنيه عليا ته كداء او ثنيه سفلى ته كُدى وئيلې شى لكه څنګه چې په رواياتو كښې مشهوره ده د لارې

---

(١) دامام بخارى رحمه الله په ترجمة الباب او ددې لاندې چه كوم حديث هغوى ذكركړې دې دهغې نه واضحه شوه چه د ابوداؤد په دې حديث كښې چه دا ذكردى چه (اناخ بالبطحاء) دا دمكې نه واپسئ او مدينې ته دداخليدو د وخت خبره ده، هم دغسې ددې نه پس چه دامام مالك رحمه الله كوم قول مصنف نقل كړې دې هغه هم هغې طرف ته اشاره كوى، كما في بذل المجهود، باقى فى نفسه دا خبره هم په خپل ځائ صحيح ده چه هغوى عليه السلام به د مدينې نه د مكې په طرف د روانيدو په وخت هم ذوالحليفه كښې قيام كولو لكه چه دحجة الوداع په سفر كښې د حضور عليه السلام هلته ايساريدل په رواياتو كښې مشهوردي.

په دې بدلولو کښې علماؤ څۀ مصلحتونه هم ليکلې دی لکه څنګه چې به نبی ﷺ په اخترونوکښې لاره بدلوله چې دهغې مصلحتونه هم بعضې شارحينو شلو (۲۰) پورې رسولې دی چې په هغې کښې درې څلور په درالمنضود کښې تير شوې دی. (۱)

[۲۰۴۵](۲) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، قَالَ: قَالَ مَالِكٌ: "لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ أَنْ يُجَاوِزَ الْمُعَرَّسِ إِذَا قَفَلَ رَاجِعًا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يُصَلِّيَ فِيهَا مَا بَدَا لَهُ، لِأَنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَّسَ بِهِ". قَالَ أَبُو دَاوُد: سَمِعْتُ مُحَمَّدَ بْنَ إِسْحَاقَ الْمَدَنِيَّ، قَالَ: الْمُعَرَّسُ عَلَى سِتَّةِ أَمْيَالٍ مِنَ الْمَدِينَةِ.

امام مالک رحمه الله وئيلی دی چه کله يوکس مدينې ته واپس راشی نودهغه دپاره مناسب نه دی چه دمعرس مقام نه مخکښې تيرشی ترڅوچه ئې هلته دخپلې مرضئ مطابق مونځ نه وی کړې ځکه چه ماته معلومه شوی ده چه نبی ﷺ په دغه ځائې کښې تعريس(لږ ارام اوخوب) کړې وو. امام ابوداود وائی چه ماد محمد بن اسحق مدنی نه اوريدلی دی چه معرس دمدينی نه شپږ ميله لری دې.

قال قال مالک لا ينبغی لاحد ان يجاوز المعرس حضرت امام مالک امام دارالهجرة رحمه الله فرمائی چې کوم کس په مدينه منوره کښې داخليږی نو هغۀ ته پکار دی چې کله په مسجد ذوالحليفه باندې تيريږی نو هلته د کوزيدلو او مونځ کولو نه بغير دې نۀ تيريږی ځکه چې د حضور ﷺ معمول شريف ماته هم رارسيدلې دې، د معرس لغوی معنی د نزول ځائې او منزل دې تعريس په معنی د نزول دې په ذوالحليفه کښې چونکه نبی ﷺ(او بيا د دوی په اتباع کښې تولو) د مدينې منورې نه په روانيدو او واپسئ کښې به دلته ايساريدل په دې وجه ورته معرس وئيلې شی او چونکه د نبی ﷺ نزول به په مسجد ذوالحليفه کښې وو په دې وجه معرس وئيلو سره مسجد ذوالحليفه هم مراد اخستلې شی

د کتاب الحج په آخر کښې دا يو څو ابواب د مدينې منورې د فضائلو سره متعلق دی د حضرت امام مالک رحمه الله چونکه مدينې طيبې سره خصوصيت هميشه دپاره پاتې شوې دې د دې نه هرڅوک باخبر دی د دې بابونو په آخر کښې د امام موصوف د رائې او نصيحت راتلل شايد هم دې خصوصيت ثمره ده د الله تعالی نه دعا ده چې الله تعالی دې ناکاره او د کتاب لوستونکو ته هم په خپل فضل وکرم سره د مدينې منورې او صاحب مدينه منوره(حضرت محمد مصطفی و مجتبی ﷺ) سره خصوصې تعلق و محبت نصيب کړی آمين

وهذا آخر کتاب المناسک فالحمد لله اولاً واخراً والصلوة والسلام علی نبيه سرمداً ودائماً وبه قد تم الجزء الثالث(۳) من الدرالمنضود علی سنن ابی داؤد فالحمد لله الذی بنعمته تتم الصالحات محمد عاقل عفاالله عنه ۲۳ ربيع الاول ۱۴۱۹هجری(۴)

---

[1] دهغې خلاصه داده: (۱) شهادة الطريقين وسكانها من الثقلين. (۲) د اسلام د شان اوشوکت اظهار. (۳) حصول البركة للطريقين.

[2]: تفرد به أبو داود، موطا امام مالك/الحج/عقب حديث(۲۰٦)(صحيح)

[3] د الدر المنضود په دې جزء کښې د بذل المجهود دريم جلد نصف حصه راغله، حضرت سهارنپوری رحمه الله په طبع اول کښې د بذل دريم جلد دوه حصې فرمائيلې وې، رومبئ حصه د کتاب الحج پورې، او د دويمې حصې ابتداء د کتاب النکاح نه وه، د طبع ثانی په وخت حضرت شيخ دواړه حصې يوځائ کړې او صفحات ئې مسلسل کړې وو.

[4] قد شرعت في جمعه وتاليفه رمضان المبارك ۱۴۱۷هـ

بسم الله الرحمن الرحيم

# كتاب النكاح

## باب: د نكاح د متعلق احكامو بيان

## مباحثه اربعه علميه مفيده

د كتاب په شروع كښې څو اهم امور قابل ذكر دي:

۱: ترتيب الكتب، ۲: د نكاح لغوى او اصطلاحى معنى.

۳: د نكاح په حكم شرعى كښې مذاهب ائمه، ۴: د نكاح فوائد او مصالح.

### البحث الاول: (د كتاب ترتيب)

د كتاب الحج په شروع كښې تير شوې دى چه اكثر محدثين صوم لره په حج باندې مقدم كوى او بعض د دې برعكس حج لره په صوم باندې مقدم كوى، مصنف هم د هغوى نه دې، خو مصنف صوم د حج نه روستو هم متصلا نه دې ذكر كړې بلكه د صوم نه مخكښې ئې نكاح ذكر كړې ده، د سنن ابى داود په اكثر نسخو كښې هم دغه شان ده، البته د خطابى په نسخه كښې صوم دنكاح نه مخكښې دې لكه چه كيدل هم پكار دى، په كومو نسخو كښې چه نكاح دصوم نه مخكښې دې هغې ته خلاف قياس دترتيب دپاره څه نكته كيدل پكار دى.

ممكنه ده چه هغه نكته دا وى چه مصنف په دې سره اشاره فرمائيلې وى دې طرف ته چه د نكاح شمار هم په عباداتو كښې دې او دا چه هغه د عام معاملاتو او مباحات د قبيل نه دې، لكه چه د اكثر علماء كرامو رائې هم دا ده، په خلاف د امام شافعى رحمه الله چه هغه نكاح په مباحات او معاملاتو كښې شمار كړې ده، پس هم په دې مناسبت سره مصنف صوم د نكاح نه روستو ذكر فرمائيلې ده.

د دې نه پس ځان پوهه كړه چه په عباداتو كښې د اسلام د اركان اربعه نه روستو دوه نور واضح او ښكاره سرخيانې باقى پاتې كيږى، يو جهاد او بله نكاح، كيدل دا پكار وو چه د دې اركان اربعه نه پس د معاملاتو نه مخكښې هغه دوه ذكر كړې شى، پس امام ابوداود او امام نسائى هم دغه شان كړې دى، خو مصنف اول نكاح او بيا جهاد، او امام نسائى اول جهاد او بيا نكاح ذكر كړې ده، او صحيح مسلم، سنن ترمذى او موطاء امام محمد كښې د كتاب النكاح نه پس خو حج متصلا ذكر دې خو كتاب الجهاد په دې كتابونو كښې د بيوع او حدود نه روستو دې، الحاصل اكثر د صحاح مصنفين كتاب النكاح د عباداتو نه روستو متصلا د معاملاتو نه مخكښې ذكر فرمائيلې ده، خو امام بخارى رحمه الله د دې ټولو حضراتو خلاف كتاب النكاح لره بيوع وغيره معاملات بلكه مغازى او تفسير نه هم مؤخر فرمائيلې دې.

په دې كښې عام طور سره فقهاء كرام هم هغه ترتيب اختيار فرمائيلې دې كوم چه اكثر محدثين اختيار كړې دې، البته فقهاء شافعيه د امام بخارى په شان نكاح د بيوع وغيره نه مؤخر كړې ده، د دې اختلاف فى الترتيب اصل كښې وجه دا ده چه د اكثرو په نزد نكاح اقرب الى العبادات او د معاملات نه افضل دى په خلاف د اكثر شوافعو چه هغه

نکاح د بیع په مثل د معاملاتو نه منی. کما سیاتی فی البحث الثالث.

## البحث الثانی: (د نکاح لغوی او اصطلاحی معنی)

امام نووی رحمه الله فرمائی النکاح فی اللغة الضم...([1]). بیا وړاندې فرمائی چه د دې اطلاق په عقد او وطی باندې راځی. (بیا وړاندې فرمائی) او ازهری وائی اصل معنی د دې وطی ده.([2]) او عقد یعنی تزوج ته چه نکاح وئیلې شی هغه هم په دې وجه باندې چه نکاح سبب د وطی دې او ابو القاسم زجاجی وائی، النکاح فی کلام العرب الوطی والعقد جمیعا، یعنی دا لفظ په دواړو معنو کښې مشترک دې، لهذا دواړه معنې حقیقی شوې. اهـ حافظ ابن حجر رحمه الله وغیره بعض اهل لغت نه نقل کړې دی چه په اصل کښې ﴿نکح﴾([3]) (د نون په ضمې او د کاف په سکون سره) وئیلې شی فرج (شرمگاه) ته. بیا د دې استعمال د وطی په معنی کښې شروع شو.

د دې نه پس ځان پوهه کړه چه د نکاح په حقیقت شرعیه کښې د احنافو او شوافعو اختلاف دې، احناف وائی د دې معنی حقیقی "وطی" دې او عقد د دې معنی مجازی دی، او د شوافعو په نزد مسئله د دې برعکس ده، لهذا د احنافو په نزد چه په قران او حدیث کښې په کوم ځائې کښې لفظ نکاح مجردا عن القرائن استعمال شوې دې د هغه ځائې نه مراد به وطی وی، او د شوافعو په نزد به هلته عقد مراد وی.

### د زنا نه د حرمة مصاهرة ثبوت:

په دې اختلاف باندې یوه اهم مسئله هم متفرع کیږی کومه چه احناف او شوافعو دواړو ذکر کړې ده هغه دا ده چه ﴿لا تنکحوا ما نکح اباءکم﴾ کښې چونکه د احنافو په نزد د نکاح نه مراد وطی ده عقد مراد نه دې، لهذا وطی به د خپل عموم په وجه باندې حلال او حرام دواړو ته شاملیدو د وجې نه به هغه زنانه هم په دې کښې داخله شی چه پلار ورسره زنا کړې وی، لهذا څنګه چه د پلار دپاره منکوحة الاب حرام ده هم دغه شان به مزنیة الاب هم حرامه وی، په خلاف د شوافعو چه د هغوی په نزد به حرامه نه وی.

پس مسئله مشهوره ده چه د احنافو په نزد زنا سره حرمت مصاهرة ثابتیږی او د شوافعو په نزد به نه وی، دا خبرې خو وې د نکاح په حقیقت شرعیه باندې، او د دې اصطلاحی معنی د فقهاء کرامو په عرف کښې دا ده ﴿هو عقد یفید ملک المتعة قصدا﴾ یعنی نکاح د هغه خاص عقد نوم دې چه د هغې فائده دا ده چه د سړی دپاره د زنانه د فرج او جمله اعضاء نه د تمتع جواز حاصل شی بالقصد نه تبعا، په دې اخری قید سره شراء الامة خارج شو ځکه چه اګرچه

---

[1] ) کما فی قوله: ضمت الی صدری معطر صدرها :: کما نکحت ام العلاء صبیها).

[2] ) ومنه قول الفرزدق: اذا سقی الله قوتا صوب غادیة :: فلا سقی الله ارض الکوفة المطرا ::: التارکین علی طهر نسائهم ::: والناکحین یشطی دجلة البقرا. (من القسطلانی) ترجمه: چه کله الله پاک خروب کوی یو قوم لره د سحر په باران سره، پس خروب دې نه کړی د کوفې زمکه. هغه اهل کوفه چه خپلو بیبیانو لره سره د هغوی د طهر نه د دجله په غاړه باندې د حیواناتو سره وطی کوی)

[3] ) او علامه عینی د ﴿یحکم﴾ نه د نکاح او نکح دواړو هم دا معنی لیکلې ده)

هلته هم بعینه دا فائده حاصليږی خو تبعا ځکه چه اصل مقصود خو هلته د ملک رقبه حصول دي بيا هم د دې په ضمن کښې ملک متعه هم حاصليږی.

## البحث الثالث : (د نکاح شرعی حکم)

د نکاح په حکم کښې درې مذاهب دی. ظاهریه، ائمه ثلاثه، شافعیه.

۱: د ظاهریه په نزد نکاح فرض عین ده، عند القدرة علی الوطی والمهر والنفقة.

۲: د ائمه ثلاثه په نزد سنت ده فی حال الاعتدال وواجب فی حال التوقان ای شدة الاحتیاج والاشتیاق ان خاف علی نفسه الزنا.

۳: د امام شافعی رحمه الله په نزد فی حال الاعتدال مباح دې او عند التوقان مندوب دې. هم په دې وجه د هغوی په نزد په اول صورت کښې تخلی للنوافل اولی دې د اشتغال بالنکاح نه، خو واضحه دې وی چه فقهاء احناف وغیر احناف ټول د دې خبرې تصریح کړې ده چه د ظلم د ویرې په صورت کښې نکاح کول مکروه او د تیقن جور په صورت کښې حرام دې یعنی د حقوق زوجیة ضیاع وهذا اجمال المذاهب[1].د نکاح په حکم کښې راجح او مشهور قول زمونږ په نزد هم دا دې..... چه سنت مؤکده دې یاثم بترکه کما فی الدر المختار وغیره. علامه شامی په دې کښې نور هم اقوال لیکلې دی، فرض کفایه، واجب علی الکفایه، واجب لعینه، قال الشامی هو افضل من الاشتغال بتعلم وتعلیم وافضل من التخلی للنوافل. اه

په دې سلسله کښې د شوافعو یو دلیل د الله پاک قول ﴿سیدا وحصورا﴾ هم دې چه الله پاک سیدنا یحیی علیه السلام مدح فرمائیلې دې په ترک وطی باندې، جمهور وائی کیدې شی چه د

---

[1]) د مذاهب ائمه تفصیل : د احنافو مسلک دا دې چه دنکاح اعتدال په حالت کښې چه کله د زنا ویره نه وی سنت مؤکده دې په دې شرط چه د نفقې او مهر په ورکولو باندې ئې قدرت وی، او هغه ته د زنا ویره وی نو واجب دې او تیقن د زنا په صورت کښې کښې فرض دې بالشرط المذکور. (شامی) امام نووی رحمه الله د شوافعو د مسلک دا تفصیل لیکلې دې چه په دې کښې څلور قسم سړی دی.
۱: تائق واجد: یعنی چاته چه د نکاح سخت حاجت وی د غلبه شهوت د وجې نه او هغه مؤن نکاح (مهر او نفقه وغیره) باندې قادر وی.
۲: غیر تائق غیر واجد چه دواړه څیزونه نه وی.
۳: تائق غیر واجد، د توقان کیفیت دې خو وسعت نه.
٤: واجد غیر تائق وسعت دې خو غلبه شهوت نشته. د قسم اول دپاره نکاح مستحب ده، د قسم ثانی دپاره مکروه ده، د ثالث دپاره هم مکروه دی خو دا سړې مامور بالصوم دې، د قسم رابع دپاره د اکثر شوافعو په نزد د نکاح ترک اولی دې او تخلی للعبادة افضل دې، او د بعض په نزد نکاح اولی ده اهـ امام نووی خو هم دا لیکلې دی چه د نکاح وجوب د چا په حق کښې هم نه دې، خو په شرح اقناع کښې تائق واجد په حق کښې یو روایت دا لیکلې دې که هغه ته د زنا ویره وی او او تسری وغیره باندې هم قادر نه وی نو بیا په دې باندې نکاح واجب دې او په نیل المارب(فی فقه الحنابله)کښې دا تفصیل لیکلې دې چه د غیر ذی شهوت په حق کښې مباح دې، او ذی شهوت که داسې وی چه هغه سره د زنا ویره ده نو په دې باندې نکاح واجب ده اگر چه فقیر وی او که د زنا ویره نه وی نو بیا سنت ده. اهـ او دردیر مالکی په شرح کبیر کښې دا لیکلې دی چه کوم سړې راغب نکاح وی او د هغه د زنا ویره وی نو د هغه په حق کښې نکاح واجب ده. والا فمندوب او د غیر راغب په حق کښې مکروه یا مباح دې. اهـ

هغوی په شریعت کښې هم دغه شان وی زمونږ په شریعت کښې خو د نکاح ترغیب او د هغې امر راغلې دې په آیتونو او احادیث کښ.
د صحیحین په حدیث طویل کښې دې ﴿ولکنی اصوم وافطر واتزوج النساء فمن رغب عن سنتی فلیس منی﴾ امام ترمذی رحمه الله د کتاب النکاح په شروع کښې دا حدیث مرفوع ذکر کړې دې چه د هغې راوی سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه دې : ﴿اربع من سنن المرسلین، الحیاء والتعطر والسواک والنکاح. وقال حدیث حسن غریب اه ﴾او بعض نور احادیث خپله په کتاب کښې راروان دی.

## البحث الرابع : (دنکاح فوائد اوفضائل)

د نکاح فوائد او فضائل ډیر زیات دی، د ټولو نه لوئې فضیلت خو دا دې چه نکاح نه صرف د سید المرسلین بلکه د ټولو انبیاء او مرسلین سنت او د هغوی طریق دې، قال الله سبحانه وتعالی : ﴿وَلَقَدْ أَرْسَلْنَا رُسُلًا مِنْ قَبْلِكَ وَجَعَلْنَا لَهُمْ أَزْوَاجًا وَذُرِّيَّةً﴾په التعلیق الصبیح کښې د احیاء العلوم نه نقل کړې دی چه وئیلې شوې دی چه الله پاک په خپل کتاب کښې صرف دهغه انبیاء علیهم السلام ذکر فرمائیلې دې کوم چه متاهل او متزوج وو تردې چه یحیی علیه السلام هم اگر چه مجامعت نه دې فرمائیلې خو نکاح ئې کړې وه د فضل د حصول او د سنت د قائمولو دپاره او وئیلې شوې دی چه د غض بصر دپاره هم دغه شان عیسی علیه السلام هم چه کله نزول فرمائی نو هغه وخت به نکاح کوی او د هغه به اولاد هم کیږی. اه

امام ترمذی رحمه الله د کتاب النکاح په شروع کښې د سیدنا ابو ایوب انصاری رضی الله عنه حدیث ذکر فرمائیلې دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل : ﴿اربع من سنن المرسلین الحیاء، والتعطر، والسواک، والنکاح، وقال حدیث غریب﴾

او د فوائد د لاندې دلته څو فوائد د کتب حدیث او کتب فقه نه لیکلې شی.

۱ : تحصین فرجه وفرج زوجته... د خپل ځان او د خپلې ښځې د شرمگاه حفاظت، د عفت او پاکدامنی حصول فانه اعض للبصر واحصن للفرج.

وفی المشکاة عن انس قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا تزوج العبد فقد استکمل نصف الدین فلیتق الله فی النصف الباقی. رواه البیهقی فی شعب الایمان. امام غزالی رحمه الله فرمائی چه عام طور سره د انسان دین لره خرابونکی دوه څیزونه وی یو فرج او دویم خیټه. نکاح په دې دواړو کښې د یو نه کافی کیږی. په دې وجه دې ته نصف دین وئیلې شوې دې. اه

۲ : قضاء الوطر بنیل اللذة والتمتع بالنعمة، د حاجت طبعیه پوره کیدل د حصول لذت سره، او شهوت او زنانه کوم چه د الله پاک نعمتونه دی د هغې نه جائز او مناسب طریقې سره فائده اوچتول. علماء کرامو لیکلې دی چه د نکاح په منافع کښې دغه یو منفعت داسې دې کوم چه به په جنت کښې هم موندلې کیږی ځکه چه په جنت کښې به اگر چه نکاح وی خو توالد او تناسل به هلته نه وی بلکه صرف د لذت او ارام د حصول دپاره به وی. زه وائم چه د نکاح د دې فائدې حصول اول خو محسوس او مشاهد دې، دویم دا چه په احادیثو کښې هم

دې طرف ته اشاره کړې شوې ده.[1]

۳: القيام بمصالح المراءة : د زنانه د ضروریاتو تکفل او ذمه داری کوم چه یو ډیر لوئې خدمت دې بلکه د ژوند تیرولو یو زبردست نظام دې څکه چه د ښځې د تکفل سره د ورو بچو تکفل هم دې، هم دغه شان د هغوی تعليم او تربيت او د دې نظم دې په خلاف د اولاد زنا چه نه د هغوی څوک پلار شته او نه مور او نه مربی او معلم.

۴: تحصيل النسل على الوجه الاكمل : یعنی د بنی نوع انسان تحصیل او بقاء په طریق اکمل د نسب د حفاظت سره بغیر په چا باندې د ظلم کولو او د هغه د عزت اخستلو نه بلکه په کمال محبت او انس سره، قال الله تعالی:﴿وَمِنْ آيَاتِهِ أَنْ خَلَقَلَكُمْ مِنْ أَنْفُسِكُمْ أَزْوَاجًا لِتَسْكُنُوا إِلَيْهَا وَجَعَلَ بَيْنَكُمْ مَوَدَّةً وَرَحْمَةً﴾

۵: تكثير الاسلام والمسلمين وتحقيق مباهاة النبى صلى الله عليه وسلم، امت مسلمه لره زیاتولو سره د رسول اللهﷺ دپاره د تفاخر علي الامم زیات نه زیاته موقع ورکول، تناكحوا تكاثروا فاني اباهي بكم الامم يوم القيامة.(شرح اقناع)وفي رواية فاني مكاثر بكم الامم(ابوداود)

په بهشتی زیور(جنتی کالې) کښې ئې د کتاب النکاح په شروع کښې ليکلې دی چه نکاح هم د الله پاک یو لوئې نعمت دې، د دین او دنیا دواړو کارونو په دې سره صحیح کیږی او په دې کښې ډیرې فائدې او بې انتهاء مصلحتونه دی، انسان د ګناه نه بچ وی زړه ئې په ځائې وی، نیت ئې نه خرابیږی او لویه خبره دا ده چه د فائدې فائده ده او د ثواب نه ثوابو څکه چه د ښځې او خاوند یوځائې کیناستلو سره د مینې او محبت خبرې کول، خندا او د یو بل سره ملاعبه د نفل مونځ نه غوره ده. اهـ

**فائده** : په در مختار کښې ليکلې دی چه الله پاک د انسان دپاره داسې یو عبادت هم نه دې مشروع کړې چه د هغې تسلسل د ادمؑ د زمانې نه تر قیامته پورې او بیا د هغې نه هم وراندې په جنت کښې پاتې شی سوا د نکاح او ایمان نه، صرف دا دوه عبادتونه دی کوم چه داسې دی. اهـ خو په دې باندې علامه شامیؒ نقد کړې دې، هغه دې ا. کتلې شی.[2]الحمد لله ابتدائی مباحث پوره شو.

---

[1] پس ارشاد دې ﴿فانه احصن للفرج﴾ چه نکاح شرمګاه لره د حرام کارئ نه بچ کوی، ويضعة اهله صدقة قالوا يا رسول الله احدنا يقضي شهوته ويكون له صدقة؟ قال ارايت لو وضعها في غير محلها الحديث. هم دغه شان هغه قصه کومه چه د حدیث په ډیرو کتابونو کښې ده،(صحیح مسلم، ابوداود، ترمذی) ان النبي صلي الله عليه وسلم راي امراءة الحديث... وفي اخره انه عليه السلام قال اذا راي احدكم امراءة فاعجبته فليات اهله، فان معها مثل الذي معها. هم دغه شانې آیت کریمه ﴿فلما قضي زيد منها وطرا﴾په تفسیر کښې ابن عباس نه نقل دی چه د وطر نه مراد جماع ده، والمراد لم يبق له بها حاجة الجماع وطلقها. اهـ(روح المعاني) معلومه شوه چه د نکاح یوه لویه فائده د لذت حصول او حاجت طبعیه لره په جائز او حلال طریقې سره پوره کول دی.

[2] نقد خو ئې اولا په دې وجه کړې دې چه د نکاح عبادت کیدل په دنیا کښې په دې حیثیت باندې دی چه هغه د اسلام او د مسلمانانو په وجود کښې د راتلو سبب دې او هم دغه شان سبب عفت دې او دا حیثیت به ئې په جنت کښې نه وی. دویم په دې وجه چه ذکر او شکر دا دوه عبادتونه داسې دی کوم چه به په دنیا او اخرت دواړو کښې موندلې شی بلکه جنت کښې به د دنیا نه هم زیات وی، بیا حصر څنګه صحیح شو.(شامي)

# بَابُ التَّحْرِيضِ عَلَى النِّكَاحِ

## باب د نكاح د ترغيب بيان

[٢٠٤٦](١) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا جَرِيرٌ، عَنِ الْأَعْمَشِ، عَنْ إِبْرَاهِيمَ، عَنْ عَلْقَمَةَ، قَالَ: إِنِّي لَأَمْشِي مَعَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ بِمِنًى، إِذْ لَقِيَهُ عُثْمَانُ فَاسْتَخْلَاهُ، فَلَمَّا رَأَى عَبْدُ اللَّهِ أَنْ لَيْسَتْ لَهُ حَاجَةٌ، قَالَ لِي: تَعَالَ يَا عَلْقَمَةُ، فَجِئْتُ، فَقَالَ لَهُ عُثْمَانُ: أَلَا نُزَوِّجُكَ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمَنِ بِجَارِيَةٍ بِكْرٍ، لَعَلَّهُ يَرْجِعُ إِلَيْكَ مِنْ نَفْسِكَ مَا كُنْتَ تَعْهَدُ؟ فَقَالَ عَبْدُ اللَّهِ: لَئِنْ قُلْتَ ذَاكَ، لَقَدْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، يَقُولُ: "مَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمُ الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ، فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ، وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ".

علقمه نه روايت دي فرمائي چه زه دعبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره روان وم په لاره ورسره و عثمان ملاوشو نوهغه. ورسره جدا شو (يعنى په پرده كښې ئې خبرى كولي) كله چه عبدالله وليدل چه نكاح ته مې ضرورت نشته نوماته ئې اواز وكړوچه راشه اې علقمه په دې وخت كښې عثمان ووئيل اې ت ابوعبدالرحمن ديوى پيغلى جينئ سره درله نكاح د ونكړو؟ چه تيره شوى ځوانى دى درباندې بيا دوباره دل راشى ته ابن مسعود اووئيل هركله چه خبره داسې ده د نومادنبى عليه السلام نه اوريدلى دى چه فرمائيل ئې و څوك چه دنكاح طاقت لرى (خرچ خوراك مهر، اونور حقوق زوجيت ادا كولى شى هغه دى نكاح وكړى ځكه چه نكاح دنظرخكته كونكى ده اوشرمگاه لره دزنا نه بچ كونكى ده او په تاسوكښې چه څوك دنكاح طاقت نه لرى نوهغه دى روژى ونيسى ځكه روژى نيول دده دپاره خصى كونكى دي. روژى دانسان شهوت نفسانى كموي).

### مضمون حديث :

دا د كتاب النكاح اولنې باب او ړومبې حديث دې. د حديث مضمون دا دې چه علقمه كوم چه د ابن مسعود رضي الله عنه مشهور شاګرد دې هغه فرمائي چه يو ځل زه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره په منى كښې روان اوم، په لاره كښې سيدنا عثمان رضي الله عنه ملاؤ شو، سيدنا عثمان رضي الله عنه د ابن مسعود رضي الله عنه نه تخليه طلب كړه او په تخليه كښې ئې د هغه مخكښې د نكاح خبره كيخودله. شارحينو ليكلي دى چه په ظاهره عثمان رضي الله عنه د ابن مسعود رضي الله عنه د ظاهرى هيئت او بد حالئ نه دا اندازه اولګوله چه كيدې شى د هغه به ښځه نه وى چه د هغه هيئت برابر كړى په دې وجه ئې هغه ته اوفرمائيل چه كه ته غواړې نو ستا واده به د يوې پيغلې جينئ سره اوكړو.

﴿فلما راى ابن مسعود ان ليست له حاجة﴾ يعنى عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته چونكه د نكاح حاجت نه وو او بل واده ئې كولو نه.(٢) نو بيا د تخليه حاجت څه پاتې شو لهذا هغه علقمه

(١): صحيح البخاري/الصوم ١٠(١٩٠٥)، النكاح ٢(٥٠٦٥)، ٣(٥٠٦٦)، صحيح مسلم/النكاح ١(١٤٠٠)، سنن الترمذي/النكاح ١(١٠٨١ تعليقًا)، سنن النسائي/الصيام ٤٣(٢٢٤١)، والنكاح ٣(٣٢٠٩)، سنن ابن ماجه/النكاح ١(١٨٤٥)، (تحفة الأشراف: ٩٤١٧)، وقد أخرجه: مسند احمد(١/٣٧٨، ٤٢٤، ٤٢٥، ٤٣٢، ٤٤٧)، سنن الدارمي/النكاح ٢(٢٢١٢)(صحيح)

(٢) فائده: په الحل المفهم ٢/٨٦ كښې د ﴿جارية بكراء﴾ د لاندې ليكلي دى چه د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه اګر چه زوجه وه خو ځوانه نه وه چه د هغې نوم زينب دې اهـ زه وايم چه دهغه د زوجې ذكر په ابوداود كښې د باب احياء الموات په يو روايت كښې راغلې دى فليراجع اليه، او هم دغه شان په صحيح بخارى كښې په باب الزكاة على الزوج والايتام په روايت كښې عن زينب امراءة عبدالله صراحة موجود دي.

ته اواز ورکړو چه راشه

دا د حدیث مضمون چه مونږ لیکلي دي دا د بخاري د سیاق او سباق مطابق دي، دلته د سنن ابی داود سیاق د دې نه مختلف دې چه د هغې نه په ظاهره کښې دا معلومیږي چه د نکاح خبره سیدنا عثمان رضی الله عنه دابن مسعود رضی الله عنه په وړاندې علقمه لره رابللو سره اوفرمائیلو او په صحیح مسلم کښې هم د ابوداود په شان دی، کیدل داسې پکار وو څنګه چه دبخاري په روایت کښې دی.[1] نبه علیه الحافظ فی الفتح وحکاه عنه فی بذل المجهود.

## شرح حدیث:

قوله :یرجع الیک من نفسک : کیدې شی چه په دې سره ستا سابقه حالت راواپس شی او قوت او نشاط پیدا کیدو سره حالت برابر شي.

قوله : فقال عبدالله لئن قلت ذاک الخ... سیدنا عثمان رضی الله عنه چه عبدالله بن مسعود رضی الله عنه چه د نکاح چه کوم مصلحت او فائده بیان کړه په دې باندې عبدالله بن مسعود رضی الله عنه هغه ته فرمائی چه د نکاح چه کوم مصلحت تاسو بیانوئ د دې نه چرته لوئې مصلحت او فائده خو ما خپله د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلې ده (غض بصر وتحصین فرج)

قوله : من استطاع منکم الباءة فلیتزوج : ﴿ باءة ﴾کښې دویم لغت ﴿باه ﴾هم دې کوم چه په پښتو کښې هم استعمالیږی[2] د دې اصل معنی خو د جماع ده او د نکاح په معنی کښې هم مستعمل دې، په حدیث کښې څه مراد دې په دې کښې د شارحینو دواړه اقوال دی یعنی جماع او نکاح، خو بهر صورت د جماع او نکاح نه د هغې لوازم او مؤن[3] مراد دې (د نکاح نه نه روستو ذمه دارئ او نفقه وغیره) یعنی د هغوی استطاعت او نفس جماع مراد نه ده څکه چه وړاندې راځی.

قوله : ومن لم یستطع فعلیه بالصوم: څکه چه په کوم کښې د جماع طاقت نه وی د دې دپاره د دې تدبیر حاجت نشته کوم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم په حدیث کښې بیان فرمائیلې دې.

## وجاء او اخصاء کښې فرق:

قوله : فانه له وجاء... د وجاء معنی رض الخصیتین لیکلې دی یعنی خصیتین تکول، لاندې کول چه د هغې حاصل د شهوت زور کم کول نه استیصال او بالکلیه قطع کول.[4] لکه چه په

---

[1] وهو طریق حفص بن غیاث عن الاعمش واما طریق ابي داود ومسلم فهو جریر عن الاعمش)

[2] لکه وئیلې شی چه فلانی دوائی مقوی باه ده)

[3] جمع مؤنة په معنی د مشقت)

[4] پس په یو روایت کښې هم د ﴿اخصاء ﴾لفظ چه په هغې کښې استیصال شهوت وی نه دې راغلې، او د ابن حبان په کوم روایت کښې چه د ﴿اخصاء ﴾ لفظ راغلې دې، دې ته علامه عینی مدرج منلې دې پس هغه وړاندې لیکی واستدل به الخطابي علي جواز المعالجة لقطع شهوة النکاح بالادویة، وینبغي ان یحمل علي دواء یسکن الشهوة دون ما یسقطها اضالة لانه قد یقدر بعد فینهدم لفوات ذلک في حقه وقد صرح الشافعية بانه لا یکسرها بالکافور ونحوه، واستدل به بعض المالکية علي تحریم الاستمناء وقد ذکر اصحابنا الحنفية انه مباح عند العجز لاجل تسکین الشهوة اهـ)

اخصاء کښې وی.

**فائده**: دلته دا اشکال راځي چه په روژې سره خو ډیر کرته د انسان په شهوت کښې نور هم حرکت پیدا شی، د دې جواب دا ورکړې شوې دې چه دا خبره په شروع کښې او صرف یو یا دوه روژې نیولې شی، خو د روژو که تسلسل وی نو بیا په دې سره شهوت کمیږی، هم دغه شان په حدیث کښې ﴿فعلیه بالصوم﴾ فرمائیلې شوې دې چه داسې سړې دې د روژو التزام اوکړی او ﴿فلیصم﴾ ئې نه دې فرمائیلې.

دا حدیث د سنن ابی داود نه علاوه صحیح بخاری او صحیح مسلم او په نسائی کښې هم دی. قاله المنذری.

## بَابُ مَا يُؤْمَرُ بِهِ مِنْ تَزْوِيجِ ذَاتِ الدِّينِ (١)

### باب: د دینداری په وجه د نکاح کولو بیان

[٢٠٤٧](٢) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا يَحْيَى يَعْنِي ابْنَ سَعِيدٍ، حَدَّثَنِي عُبَيْدُ اللَّهِ، حَدَّثَنِي سَعِيدُ بْنُ أَبِي سَعِيدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "تُنْكَحُ النِّسَاءُ لِأَرْبَعٍ: لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَلِجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا، فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی چه د ښځو سره نکاح کول د څلورو صفاتو په وجه کیدی شی یو ددی د مال په وجه دویم ددې د حسب اونسب په وجه دریم د حسن وجمال په وجه څلورم د دینداریٔ په وجه اوتاسو په نکاح کولو کښې دینداریٔ ته ترجیح ورکړئ، لاسونه دی په خاورو ککړ شه.

یعنی عام طور سره د خلقو عادت دا دې چه هغه په نکاح کښې د دې څلورو صفاتو لحاظ ساتی، اول مال، دویم حسب یعنی د زنانه خاندانی شرافت، دریم حسن او جمال او څلورم د هغې دینداری. وړاندې هغه فرمائی چه انسان له پکار دی چه د نکاح په وخت په دې صفات اربعه کښې صفت دین لره مقدم کړو، یعنی اګر چه نور صفتونه هم فی الجمله قابل لحاظ دی خو ترجیح وصف دین لره کیدل پکار دی، قال تعالی: "ان اکرمکم عند الله اتقاکم"

د دې حدیث تعلق د مسئله کفاءت سره دې چه د هغې باب وړاندې مستقل راروان دې. د باب فی الاکفاء د مسئلې تفصیل خو به هلته راشی ان شاء الله... دلته دومره ځان پوهه کړئ چه دا حدیث په دې سلسله کښې د مالکیانو مستدل دې چه د هغوی په نزد کفاءت کښې صرف د دین اعتبار دې د نورو صفاتو نه. والله تعالی اعلم

قال المنذری: والحديث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة.

---

(١) وترجمه عليه الامام البخاري، باب قول النبي من استطاع منكم الباءة فليتزوج ..الخ، والنسائي، باب الحث على النكاح.

(٢): صحيح البخاري/النكاح ١٥(٥٠٩٠)، صحيح مسلم/الرضاع ١٥(١٤٦٦)، سنن النسائي/النكاح ١٣(٣٢٣٢)، سنن ابن ماجه/النكاح ٦(١٨٥٨)، مسند احمد(٤٢٨/٢)، سنن الدارمي/النكاح ٤(٢٢١٦)،( تحفة الأشراف: ١٤٣٠٥)(صحيح)

## بَاب فِي تَزْوِيجِ الأَبْكَارِ

### باب: د پيغلو جينکو سره د نکاح کولو بيان

[۲۰۴۸] [1] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ، أَخْبَرَنَا الأَعْمَشُ، عَنْ سَالِمِ بْنِ أَبِي الْجَعْدِ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَتَزَوَّجْتَ؟" قُلْتُ: نَعَمْ، قَالَ: "بِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا"، فَقُلْتُ: "ثَيِّبًا"، قَالَ: "أَفَلَا بِكْرٌ تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ؟".

دجابر بن عبدالله رضي الله عنهما نه روايت دى ان فرمائى نبى عليه السلام راته اوفرمائيل: ايا واده دى کړى دي؟ ماووئيل هو، نوتپوس ئي وکړو چه کونډه ده اوکه پيغله ما ورته ووئيل کونډه ده نوراته ئي اوفرمائيل د پيغلى سره دى ولى واده نه کولوچه لوبى به دى ورسره کولى اوهغې به ستاسره لوبى کولي.

### شرح حديث:

رسول الله صلى الله عليه وسلم د سيدنا جابر رضي الله عنه نه تپوس اوکړو چه تا واده کړې دې؟ هغه عرض اوکړو چه او کړې مې دې، تپوس ئي اوکړو چه د باکرې سره يا د ثيبه سره؟

په دې باندې رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل چه ﴿افلا بكرا تلاعبها وتلاعبک ﴾ چه د باکرې سره دې ولې اوکړو چه د واده پوره فائده درته حاصله شوې وې. او تا به د هغې سره لوبې کولې او هغې به تا سره کولې.

د بخارى شريف په يو روايت کښې داسې دى ﴿مالک وللعذارى ولعابها ﴾په دې کښې لعاب په کسرې د لام او په ضمې د لام دواړو طريقو سره لوستلې شوې دې، د بالکسر په صورت کښې ظاهر دې چه هغه مصدر دې په معنى د ملاعبت او د بالضم په صورت کښې لعاب په معنى د ريق ده، قال الحافظ : وفيه اشارة الى مص لسانها ورشف شفتيها وذلک يقع عند الملاعبة والتقبيل وليس هو ببعيد کما قال القرطبى، په دې حديث کښې د تزويج ابکار ترغيب دې لکه چه مصنف ترجمه هم قائم کړې ده.

د دې نه پس څان پوهه کړئ چه په دې طريق کښې خو د سيدنا جابر رضي الله عنه جواب صرف دومره ذکر دې او په بعض نورو طرق کښې کما فى الصحيحين په دې کښې زيادت دې.

﴿ قلت کن لى اخوات فاصبت ان اتزوج امراءة تجمعهن وتمشطهن، وتقووم عليهن ﴾او په يو روايت کښې دى ﴿هلک ابى وترک سبع بنات او تسع بنات فتزوجت ثيبا ﴾.... فقال بارک الله لک... چه د هغې حاصل دا دې چه هغه د ثيبه نکاح ته د ترجيح ورکولو وجه بيان کړه چه د هغه اووه يا نهه خويندې وې او پلار ئې په غزوه احد کښې شهيد شوې وو نو د هغه خويندو د خبر ساتلو ضرورت وو چه د هغې دپاره ظاهره ده چه ثيبه به مناسب وى نه باکره،

[1]: تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۲۲٤۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ۳٤(۲۰۹۷)، الوكالة ۸(۲۳۰۹)، الجهاد ۱۱۳(۲۹٦۷)، المغازي ۱۸(٤۰۵۲)، النكاح ۱۰(۵۰۷۹)، ۱۲۱(۵۲٤۵)، ۱۲۲(۵۲٤۷)، النفقات ۱۲(۵۳٦۷)، الدعوات ۵۳(٦۳۸۷)، صحيح مسلم/الرضاع ۱٦(۷۱۵)، سنن الترمذي/النكاح ۱۳(۱۱۰۰)، سنن النسائي/النكاح ٦(۳۲۲۱)، ۱۰(۳۲۳٦)، سنن ابن ماجه/النكاح ۷(۱۸٦۰)، مسند احمد (۳/ ۲۹٤، ۳۰۲، ۳۰۸، ۳۱٤، ۳٦۲، ۳٦۹، ۳۷٤، ۳۷٦)، سنن الدارمي/النكاح ۳۲(۲۲٦۲)(صحيح)

د سیدنا جابر رضی الله عنه د هغه خویندو ذکر د ابوداود په یو روایت کښې هم دې کوم چه په کتاب الفرائض کښې راروان دې.

"عن جابر قال اشتکیت وعندی سبع اخوات" الحدیث . قال المنذری : والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی من حدیث عمرو بن دینار عن جابر، واخرجه ابن ماجة من حدیث عطاء بن ابی رباح عن جابر.

## بَابُ النَّهْيِ عَنْ تَزْوِيجِ مَنْ لَمْ يَلِدْ مِنَ النِّسَاءِ

### باب: شنډې ښځې سره د واده کولو د مما نعت بیان

[٢٠٤٩] ([1]) قَالَ أَبُو دَاوُد: كَتَبَ إِلَيَّ حُسَيْنُ بْنُ حُرَيْثٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا الْفَضْلُ بْنُ مُوسَى، عَنِ الْحُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ عُمَارَةَ بْنِ أَبِي حَفْصَةَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنَّ امْرَأَتِي لَا تَمْنَعُ يَدَ لَامِسٍ، قَالَ: "غَرِّبْهَا"، قَالَ: أَخَافُ أَنْ تَتْبَعَهَا نَفْسِي، قَالَ: "فَاسْتَمْتِعْ بِهَا".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی بن یوکس دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضر شو. او شکایت ئې وکړوچه زمانښځه دپالاس دخپل ځان نه نۀ منع کوی (یعنی په خوشحالی سره زناته اماده کیږی) نبی علیه السلام اوفرمائیل: طلاق ورته ورکړه هغه ووئیل زه ویریږم چه زما زړه ورپسی لارنشی نبی علیه السلام ورته اوفرمائیل نوبیاتری فائده اخله.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته یو سړې راغلو او هغه خبره ئې عرض کړه کومه چه دلته په حدیث کښې ذکر شوې ده.

### شرح حدیث :

﴿لا تمنع ید لامس﴾ د دې جملې په شرح کښې شارحینو ډیر اقوال لیکلې دی اول دا چه د دې نه مراد فاحشه ده یعنی زنا، یعنی چه څوک غواړی هغه د لاسه اونیسی او ځان ته ئې راکاږی او د هغې نه خپل حاجت پوره کوی، هغه ئې بالکل منع کوی نه، دویم قول دا دې چه د دې نه مراد د هغې بې ځایه سخاوت دې چه د خاوند په مال کښې صرف کولو سره صدقه وغیره کوی، او هر ورکونکی ته ورکوی او انکار نه کوی ګویا لامس نه مراد سائل دې، په دې معنی باندې دا اشکال کړې شوې دې چه که سائل مراد وې نو په دې صورت کښې د لامس په ځائې ملتمس کیدل پکار وو، لهذا دا مطلب صحیح نه دی، دریم قول دا دې چه د لمس نه مراد صرف د خوند دپاره مس کول دی، او حافظ ابن کثیر رحمه الله اول معنی لره بعید منلې ده لهذا اخری معنی راجح ده.

بهرحال رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه سړی ته د شکایت په وجه باندې د طلاق مشوره ورکړه، په دې باندې هغه سړی عرض اوکړو چه ما کښې د دې طاقت نشته ځکه چه زما هغې سره ډیره مینه ده، که ما هغې ته طلاق ورکړو نو زما نفس به هم د هغې سره لاړ شی، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه که هم دا خبره وی نو بیا د هغې نه هم د دې موجوده حالت سره فائده اوچتوه.

[1]: سنن النسائي/النكاح ١٢ (٣٢٣١)، والطلاق ٣٤ (٣٤٩٤، ٣٤٩٥)، (تحفة الأشراف: ٦١٦١) (صحيح)

دلته دا شبه راځي چه رسول اللهﷺ دې مذکوره سړي ته فوري د طلاق مشوره ولې ورکړه حال دا چه هغه شرعا ناخوښه خيز دې، شارحينو خو دا ليکلي دی چه رسول اللهﷺ هغه ته دا مشوره احتياطا ورکړې وه، خو زما په ذهن کښې دا خبره راځي چه دا ﴿خذه بالموت حتى يرضى بالحمى﴾ د قبيل نه دې او دا چه د نعمت قدر هغه وخت ډير زيات وی کله چه هغه په تلو شی، نو ګويا رسول اللهﷺ په حکمت عملئ او حسن تدبير سره د خاوند شکايت او غصه ئې يخه کړه ګينې د رسول اللهﷺ اراده هم د تعجيل بالطلاق نه وه. هذا ما عندى والله اعلم بالصواب.

**تنبيه** : د دې حديث په سند کښې د مصنف استاذ حسين بن حريث المروزی دې او مصنف ته دا حديث د هغه نه په طريق د مکاتبت رارسيدلې دې نه مشافهة، په دې وجه مصنف دا طرز اختيار فرمائيلې دې: کتب الى حسين بن حريث... لهذا د سند ابتداء هم د دې ځائې نه ده چه د هغې مقتضى دا ده چه لفظ "کتب" په جلى قلم سره کيدل پکار دى او د هغې نه روستو چه کوم ﴿حدثنا الفضل بن موسى﴾راځي هغه جلى نه دى کيدل پکار ځکه چه هغه وسط سند دې، داسې معلوميږى چه د مصنف د حسين بن حريث نه روايت صرف مکاتبة دې ځکه چه وړاندې يو بل ځائې کښې په باب الظهار کښې هم مصنف د حسين بن حريث نه د ﴿کتب﴾ لفظ سره روايت کړې دې، او هلته لفظ ﴿کتب ﴾په جلى قلم سره دې، فتدبر وتشکر.

**فائده** : دا حديث د سنن ابى داود په هغه روايات تسعه کښې دې کوم چه ابن الجوزی په موضوعات کښې شمار کړې دې کما تقدمفى المقدمة... اوس پاتې شوه دا خبره چه دا حديث د کومې درجې دې نو دا جدا خبره ده، علماء کرامو د دې موضوع کيدل نه دی تسليم کړی پس سيوطی په "لآلی مصنوعة" کښې د حافظ ابن حجررحمه الله نه د دې حديث صحيح کيدل نقل کړې دی، تفصيلى کلام دې هم په دې کښې اوکتلې شی.

دا حديث د ابوداود نه علاوه په سنن نسائی کښې هم دې.

## مطابقة الحديث للترجمة :

د دې حديث د ترجمة الباب سره په ظاهره کښې څه مناسبت نشته البته حضرت په بذل کښې د حضرت ګنګوهى د تقرير نه نقل فرمائيلې دی لعل الوجه فى ايراد الحديث فى هذا الباب ان الابكار قلما يكن مبتليات بامثال تلك المعاصى لكثرة حيائهن فالتزوج بهن اولى. اهـ

[۲۰۵۰](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا مُسْتَلِمُ بْنُ سَعِيدٍ ابْنَ أُخْتِ مَنْصُورِ بْنِ زَاذَانَ، عَنْ مَنْصُورٍ يَعْنِي ابْنَ زَاذَانَ، عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ قُرَّةَ، عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: إِنِّي أَصَبْتُ امْرَأَةً ذَاتَ حَسَبٍ وَجَمَالٍ وَإِنَّهَا لَا تَلِدُ، أَفَأَتَزَوَّجُهَا؟ قَالَ: "لَا"، ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ، فَنَهَاهُ، ثُمَّ أَتَاهُ الثَّالِثَةَ، فَقَالَ: "تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ، فَإِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْأُمَمَ".

د معقل بن يسار رضي الله عنه نه روايت دې ر فرمائى يو کس د نبى عليه السلام په خدمت کښې حاضر شو او عرض ئې وکړو چه اې د الله رسوله يوه داسې ښځه مې پيدا کړې ده چه انتهائى شريفه

[۱]: سنن النسائي/النكاح ۱۱(۳۲۲۹)،(تحفة الأشراف: ۱۱۴۷۷)(حسن صحيح)

اوښکلې ده او بچي نه راوړي ايانکاح ورسره ونکړم؟نبي ﷺ اوفرمائيل نه نودي دوباره ورغې اوبيائي هم منع کړه، کله چه په دريم ځل ورغې نوورته ئې اوفرمائيل د داسې ښځې سره نکاح کوئ کومه چه محبت کونکې اوډيربچي راوړونکې وي يقينازه به په تاسوکښې دکثرت په لحاظ سره په نورو امتونوباندې فخرکوم.(يعنې په قيامت کښې)

﴿ عن معقل بن يسار رضي الله عنه قال جاء رجل الى النبي صلى الله عليه وسلم الخ ﴾د حديث مضمون دا دې چه يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کښې حاضر شو چه ماته يوه داسې زنانه ملاؤ شوې ده کومه چه ذي جمال او ذي حسب ده خو بچي نه راوړي نو ايا زه ورسره واده اوکړم؟ رسول الله ﷺ منع کړو، اوس دا خبره چه دا څنګه معلومه شوه چه هغه بچي نه راوړي نو کيدې شي چه هغه د مخکښې نه واده شوې وي او د زوج اول نه ئې بچي نه وي راوړي، يا د دې نه علاوه بل يو علامت موندلې شي، مثلا انها لا تحيض او بانها لم تنهد ثدياها.(بذل)

قوله : ﴿تزوجوا الودوود الولود فاني مكاثر بکم الامم ﴾يعنې د داسې زنانه سره واده کول پکار دي چه په کثرت سره بچي راوړي او د خاوند سره مينه کونکې وي، څکه چه زه به ستاسو په کثرت باندې د نورو امتونو په مقابله کښې فخر کوم.

د دې حديث مناسبت هم د ترجمه سره زيات واضح نه دې، پس دا وئيلې کيدې شي چه په باکره کښې د مودت ماده د ثيبه په نسبت زياته وي. **كذا في البذل.**

قال المنذري : واخرجه النسائي.

## بَابٌ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى {الزَّانِي لَا يَنْكِحُ إِلَّا زَانِيَةً}

### باب د آيت کريمه «الزاني لا ينکح الا زانية» تفسير

[٢٠٥١]([1]) حَدَّثَنَا إِبْرَاهِيمُ بْنُ مُحَمَّدٍ التَّيْمِيُّ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ الْأَخْنَسِ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، أَنَّ مَرْثَدَ بْنَ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيَّ كَانَ يَحْمِلُ الْأَسَارَى بِمَكَّةَ، وَكَانَ بِمَكَّةَ بَغِيٌّ يُقَالُ لَهَا: عَنَاقُ، وَكَانَتْ صَدِيقَتَهُ، قَالَ: جِئْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، أَنْكِحُ عَنَاقَ؟ قَالَ: فَسَكَتَ عَنِّي، فَنَزَلَتْ: وَالزَّانِيَةُ لَا يَنْكِحُهَا إِلَّا زَانٍ أَوْ مُشْرِكٌ سورة النور آية ٣، فَدَعَانِي، فَقَرَأَهَا عَلَيَّ، وَقَالَ: "لَا تَنْكِحْهَا".

عمرو بن شعيب دخپل پلار اوهغه دده دنيکه عمروبن العاص رضي الله عنه نه روايت کوي فرمائي تا مرثد بن أبي مرثد غنوي به په مکه کښې قيديان وړل و هلته په مکه کښې يوه زناکاره ښځه اوسيدله دچاچه عناق نوم وواوهغه دجاهليت دده محبوبه وه مرثد وائي چه زه دنبي ﷺ په خدمت کښې حاضر شوم ت اوعرض مې ورته وکړوچه اې دالله رسوله دعناق سره د نکاح وکړم؟نبي ﷺ چه دا واوريدل نوخاموش شو په دې وخت کښې دا آيت کريمه نازل شو:«والزانية لا ينکحها إلا زان أو مشرك» زه ئې راوغوښتلم اودا آيت کريمه ئې راته واورولو اودهغې سره دنکاح کولو نه ئې منع کړم.

---

[1]: سنن الترمذي/تفسير سورة النور(٣١٧٧)، سنن النسائي/النكاح ١٢(٣٢٣٠)،( تحفة الأشراف: ٨٧٥٣)(حسن صحيح)

## مضمون حدیث :

دا روایت دلته مختصرا دي او په ترمذی شریف کښې مطولا دا روایت طویل په بذل کښې ذکر شوې دې چه د هغې مفهوم دا دې چه په مکه مکرمه کښې چه کوم مسلمانان د مشرکانو په قید کښې وو دا مرثد بن ابی مرثد صحابی داسې صحابه کرامو ته ډیر همت او حسن تدبیر سره. د مدینې نه مکه مکرمه د شپې په وخت رسیدو سره، اوچتولو سره راوړې دې او صحابی دا خدمت پوره کوی، کیدله به داسې چه د کوم مسلمان قیدی راوستل به منظور وو د هغه نه به ئې وعده اخستله چه زه به په فلانی وخت په فلانۍ ورځ باندې د اخستلو دپاره راځم، هغه قیدی به هم د دې دپاره تیار وو او هغه به په موعود وخت باندې رسیدلو سره په خپله اوږه باندې هغه خو راوړلو، یو ځل داسې اوشو چه هغه د یو قیدی سره وعده اوکړه او دا په دې وعده باندې د شپې په وخت کښې مکې مکرمې ته اورسیدو او د یو دیوال نه پناه کیناستلو، د سپوږمۍ رڼړا وه، اتفاق ته ګوره چه داسې اوشو چه عناق نومې زنانه کومه چه د هغه زمانې د ډمو نه وه او د هغه صحابی د هغې سره د جاهلیت د زمانې یارانه وه هغې دا صحابی اولیدو او په لیدو سره ئې اوپیژندلو، او د خپل عادت مطابق د بد نیتئ اظهار ئې ورته اوکړو، او هغې سره د شپې تیریولو فرمائش ئې اوکړو، دې اویریدو او وې وئیل یا عناق! حرم الله الزنا... چه کله هغې اولیدل چه دې خو زما خواهش نه پوره کوی نو شور ئې جوړ کړو چه ټول خلق رابیدار شی او دې په خپل کوشش کښې ناکام شي‌و پس په روایت کښې دی چه ﴿قالت یا اهل الخیام هذا الرجل یحمل اسراءکم﴾ الغرض دا راز ښکاره شو نو چه کله خلق بیدار شو نو په هغوی کښې اته کسان په مرثد پسې شو، دې وائی چه زه تختیلو سره د یو غر په غار کښې پټ شوم. هغه کفار دې غار ته راورسیدل تردې چه په هغوی کښې یو تن چه هغه ته د اودس ماتی حاجت راغلو هغه هم دې غار خولې ته کیناستلو سره متیازې اوکړې کومې چه د هغه صحابی په سر باندې راپریوتلې خو دا د الله پاک فضل اوشو چه هغه دې غار ته ښکته کیدو سره او نه کتل او واپس شو،مرثد په خپل کار کښې ډیر مضبوط ووو هغه چه د لږ شان توقف نه پس چه کله دا خیال اوکړو چه دا خلق واپس اوده شو دوباره مکې ته راغلو اوخپل قیدی ئې کوم چه په بیړوکښې اینختلې وو په خپله اوږه باندې کینولو سره مکې نه راوستلو، مرثد مدینې ته رارسیدو سره رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو یا رسول الله ﷺ ایا زه د عناق سره واده کولې شم؟ رسول الله ﷺ خاموش شو تردې چه دا آیت کریمه نازل شو : ﴿الزانی لا ینکح الا زانیة او مشرکة والزانیة لا ینکحها الا زان او مشرک﴾ په دې باندې رسول الله ﷺ هغه د نکاح نه منع کړو.

## مسئله ثابته من الحدیث:

اوس دلته د یوې مسئلې خبره پیدا شوه چه ایا د زانی نکاح صرف د زانیه سره کیدې شی د پاک دامنې سره نه شی کیدې، او هم دغه شان د زانیه نکاح صرف د زانی سره کیدې شی د پاکدامن سره نه شی کیدې. د آیت کریمه د ظاهر نه خو عدم جواز معلومیږی، پس د بعض علماء کرامو مسلک هم دا دې چه د عفیف نکاح ند زانیه سره صحیح نه ده، خو جمهور

علماء کرام چه په هغوی کښې ائمه اربعه هم دی د هغوی په نزد د زانی نکاح د زانیه سره هم دغه شان د عفیفه سره صحیح دي او هم دغه شان د عفیف نکاح د زانیه سره جائز دي، د جمهورو د طرف نه د دي آیت څو ابواب منقول دی. ۱: قیل الایة منسوخة لقوله تعالی وانکحوا الایامی منکم، په دې آیت کریمه کښې ایامی مطلقا ذکر دي برابره خبره ده که عفیفه وی یا غیر عفیفه. ۲: الایة محمولة علی الذم لا التحریم، یعنی مقصود د دې نکاح مذمت دې نه تحریم او عدم جواز. ۳: بعض مفسرینو دا جواب کړې دې چه مقصود په آیت کریمه سره مقصود د میلان طبعی بیان دې نه جواز او عدم جواز، یعنی د زانیه د نکاح طرف ته د یو عفیف سړی طبیعت نه مائل کیږی هغه صرف زانی لره مائل کولې شی. والله تعالی اعلم

قال المنذری : واخرجه الترمذی والنسائی من حدیث عبدالله بن عمرو بن العاص رضی الله عنه.

[٢٠٥٢]([1]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، وَأَبُو مَعْمَرٍ، قَالَا: حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ حَبِيبٍ، حَدَّثَنِي عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ، عَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَنْكِحُ الزَّانِي الْمَجْلُودُ إِلَّا مِثْلَهُ". وَقَالَ أَبُو مَعْمَرٍ: حَدَّثَنِي حَبِيبٌ الْمُعَلِّمُ، عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ.

دابوهریره نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چاچه دزناکارو سره کوړې - خوړلی وی هغوی نکاح نه کوی مګر دخپل ځان په شان خلقوسره. ابومعمروئیلی دی دا روایت حبیب معلم دعمرو بن شعیب نه نقل کړې دې.

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَعْتِقُ أَمَتَهُ ثُمَّ يَتَزَوَّجُهَا

### باب: خپله وینزه آزادولو نه پس هغې سره د واده کولو د ثواب بیان

[٢٠٥٣]([2]) حَدَّثَنَا هَنَّادُ بْنُ السَّرِيِّ، حَدَّثَنَا عَبْثَرٌ، عَنْ مُطَرِّفٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "مَنْ أَعْتَقَ جَارِيَتَهُ وَتَزَوَّجَهَا كَانَ لَهُ أَجْرَانِ".

دابوموسی رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی ﷺ فرمائیلی دی چاچه خپله وینځه ازاده کړه اوبیائې ورسره نکاح وکړه نودده دپاره دوچند اجردي.

﴿عن ابی موسی رضی الله عنه... قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من اعتق جاریة وتزوجها کان له اجران﴾ دا حدیث دلته مختصر دي، په صحیحین کښې دا حدیث مطولا دې،

ولفظه ﴿ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهِ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ صلی الله علیه وسلم وَالْعَبْدُ الْمَمْلُوكُ إِذَا أَدَّى حَقَّ اللَّهِ وَحَقَّ مَوَالِيهِ وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهُ أَمَةٌ { يَطَؤُهَا } فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيبَهَا وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيمَهَا ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا فَلَهُ أَجْرَانِ﴾ د دې باب سره متعلق د حدیث دا اخری جزء دې په دې وجه مصنف په دې باندې اکتفاء اوکړه

[1]): تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف: ١٣٠٠٠)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٢٤/٢)(صحيح)

[2]): صحيح البخاري/العلم ٣١(٩٧)، العتق ١٤(٢٥٤٤)، ١٦(٢٥٤٧)، الجهاد ١٥٤(٣٠١١)، أحاديث الأنبياء ٤٧(٣٤٤٦)، النكاح ١٣(٥٠٨٣)، صحيح مسلم/النكاح ١٤(١٥٤)، سنن النسائي/النكاح ٦٥(٣٣٤٧)،( تحفة الأشراف: ٩١٠٨، ٩١٧٠)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/النكاح ٢٤(١١١٦)، سنن ابن ماجه/النكاح ٤٢(١٩٥٦)، مسند احمد(٣٩٥/٤، ٣٩٨، ٤١٤، ٤١٥)، سنن الدارمي/النكاح ٤٦(٢٢٩٠)،(صحيح)

## شرح حديث :

د حديث مضمون دا دي چه كوم سړي خپلې وينځې ته تعليم او تاديب ورکړى بيا هغه ازاده كړي او د ازادیدو نه پس ورسره نكاح اوكړي نو د هغه دپاره دوه اجرونه دى. په دې حديث باندې چه كوم طالب علمانه اشكال راځى هغه ظاهر دې هغه دا چه په دې حديث كښې دتعدد عمل سره تعدد اجرمذکوردې يعنى څنګه چه عملونه دوه دى په هغې باندې مرتب کيدونکې اجرونههم دوه دى بيا وجه د تخصيص څه ده؟ يو عمل تعليم او تربيت دې، دويم عمل اعتاق په دې باندې دوه اجرونه کيدل پكار دى، د دې توجيه په ډيرو طريقو كړې شوې ده.

١: اول دا چه مراد دا دى چه دې دړې واړو كسانو ته به د دوى په عمل باندې دوچند اجر ملاويږى، په دې صورت كښې به هيڅ اشكال نه واقع کيږى.

٢: مراد خو دا دې چه عملين مذكورين باندې دوه ثوابونه ملاويږى او د تخصيص د اشكال جواب دا دې چه چونكه دلته په دې دواړو عملونو كښې تزاحم وو. څكه چه د حقوق مولى د ادا کولو دپاره خو ګويا د دې عملين فاعل، فاعل ضدين شو چه په هغې كښې كمال پيدا كيدل ظاهره ده چه مشكل دى چه د هغې تقاضه دا وه چه كامل دوه اجرونه ورته ملاؤ نه شى خوالله پاک ئې په خپل فضل سره ورکوى. دا دويم جواب د علامه كرمانى نه منقول دې زمونږ حضرت شيخ رحمه الله به هم دا په سبق كښې بيانولو. دا توجيه ثانى په درې واړه اشخاص مذكوره فى الحديث باندې غور کولو نه پس منطبق كيدلې شى. قال المنذرى : واخرجه البخارى ومسلم والنسائى مختصرا ومطولا.

[٢٠٥٤]([1]) حَدَّثَنَا عَمْرُو بْنُ عَوْنٍ، أَخْبَرَنَا أَبُو عَوَانَةَ، عَنْ قَتَادَةَ، وَعَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ صُهَيْبٍ، عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا".

د انس بن مالك رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه نبى عليه السلام ام المومنين صفيه رضي الله عنها ازاده کړه تل اودهغې دازادول ئې دهغې دپاره مهر وګرځوو.

**قوله:** (عن انس رضى الله تعالى عنه ان النبى صلى الله عليه وسلم اعتق صفية وجعل عتقها صداقها)

دا روايت دلته مختصر دې پوره حديث په كتاب الخراجباب ما جاء فى سهم الصفى(بذل ١٣٨/۴) كښې متعدد طرق سره راغلې دې چه د هغې حاصل دا دې چه سيده صفيه رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د غنائم خيبر نه حاصله شوې وه، رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه مخكښې ازاد کړو، د ازادولو نه روستو ئې هغې سره نكاح اوكړه.

---

[1]): صحيح مسلم/الحج ٧٦(١٣٤٥)، النكاح ١٤(١٣٦٥)، سنن الترمذي/النكاح ٢٣(١١١٥)، والسير ٣(١٥٥٠)، سنن النسائي/النكاح ٦٤(٣٣٤٤، ٤٢٠٠)،( تحفة الأشراف: ١٠٦٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الصلاة ١٢(٣٧١)، صلاة الخوف ٦(٩٤٧)، البيوع ١٠٨(٢٢٢٨)، الجهاد ٧٤(٢٨٩٣)، المغازي ٣٨(٤٢٠٠)، النكاح ١٣(٥٠٨٦)، الأطعمة ٨(٥٣٨٧)، ٢٨(٥٤٢٥)، الدعوات ٣٦(٦٣٦٣)، سنن ابن ماجه/النكاح ٤٢(١٩٥٧)، مسند احمد(٩٩/٣، ١٣٨، ١٦٥، ١٧٠، ١٨١، ١٨٦، ٢٠٣، ٢٣٩، ٢٤٢)، سنن الدارمي/النكاح ٤٥(٢٢٨٨)(صحيح)

## مسئله ثانیه بالحدیث کښې اختلاف ائمه :

په حدیث الباب راوی وائی چه رسول الله ﷺ عتق صفیه لره د هغه مهر مقرر کړو، د دې نه علاوه یو بل مستقل مهر رسول الله ﷺ هغې ته ورنکړو، دلته د مصنف مقصد هم دا خبره بیانول دی چه ایا عتق امة لره د هغې مهر مقرر کولې شی یا نه، مسئله مختلف فیه ده، د ائمه ثلاث او امام محمد په نزد عتق لره مهر مقرر کول جائز نه دی، او امام احمد، ابویوسف او بعض نورو علماء کرام لکه اسحاق بن راهویه، حسن بصری، سفیان ثوری په نزد داسې کول جائز نه دی لهذا حدیث الباب په ظاهره کښې د جمهورو خلاف دې چه مهر مال کیدل پکار دی او عتق مال نه دې. قال تعالی ﴿ان تبتغوا باموالکم الایة ﴾د جمهورو د طرف نه د دې حدیث مختلف توجیهات کړې شوې دی، اول دا چه دا په تطییب قلب باندې محمول دې، یعنی د صفیه د خوشحالولو دپاره اوئیلې شو چه ستا عتق ستا مهر دې ګینې د رسول الله ﷺ دپاره خو نکاح بغیر د مهر نه هم کول جائز دی او دا د هغه د خصوصیاتو نه ده. ۲: دا روایت د راوی په ظن باندې محمول دې یعنی چونکه په دې نکاح کښې د مهر هیڅ قسم تذکره نه وه نو راوی دا خیال اوکړو چه کیدې شی عتق مهر مقرر کړې شوې وی حال دا چه واقعه داسې نه ده چه د هغې تائید د بیهقی د هغه روایت نه کیږی کوم چه د رزینه نه روایت دې چه د هغې په اخر کښې دی ﴿فاعتقها وخطبها وتزوجها وامهرها رزینة ﴾چه د هغې نه معلومه شوه چه رسول الله ﷺ خپله خادمه رزینه په طور د مهر صفیه ﷺ ته ورکړې وه، **کذا فی البذل عن العینی**،خو حافظ د بیهقی په دې روایت باندې نقد کړې دې. فارجع الیه ان شئت. ۳: که دا تسلیم کړې شی چه دلته عتق مهر مقرر کړې شوې وو نو بیا به دا وئیلې شی چه دا د رسول الله ﷺ د خصائصو نه ده.

د دې نه پس په دې باندې ځان پوهه کړئ چه صورت مسئله او د هغې تفصیل داسې دې چه که یو سړې خپله وینزه په دې شرط باندې ازاده کړی چه د ازادیدو نه پس به ورسره نکاح کوی پس هغه ازاده کړه نو اوس په دې کښې تفصیل دې چه دا د دوه حالو نه خالی نه ده یا خو به د ازادیدو نه پس هغه د دې سړی سره نکاح کوی یا نه کوی، پس که نکاح کوی نو په هغې کښې د شوافعو مسلک دا دې چه هغوی دواړه خپل مینځ کښې مهر مقرر کړی او مهر مسمی به واجب وی او هم دا مذهب د احنافو دې، فرق دا دې چه د شوافعو په نزد دلته مهر مسمی او د احنافو په نزد به دلته مهر مثل وی او که د ازادیدو نه روستو هغه زنانه په تزوج باندې راضی نه شی نو په دې صورت کښې خو د مهر ظاهره ده چه سوال نه پیدا کیږی، البته په زنانه باندې به واجب وی چه هغه خپل قیمت مولی ته ادا کړی ځکه چه مولی ئې په مفت ازادولو باندې راضی نه وو، دا دې هم واضحه وی چه په زنانه باندې د قیمت ادا کول د احنافو په نزد خو صرف د عدم تزوج په صورت کښې دی او د شوافعو په نزد تزوج او عدم تزوج هر دواړو صورتونو کښې په زنانه باندې دومره قیمت ادا کول واجب دی او د مالکیانو په نزد د قیمت د ادا کولو په صورت کښې نه دې او د عتق امة به بهر حال د ټولو ائمه کرامو په نزد صحیح شی.

**تنبیه** : امام ترمذی رحمه الله په دې حدیث باندې کلام کولو سره د امام شافعی او امام احمد دواړو مذهب د دې حدیث موافق لیکلې دې حال دا چه داسې نه ده پس حافظ فرمائی ﴿ومن المستغربات قول الترمذی وبه قال الشافعی واحمد﴾ اهـ

د دې نه علاوه هم یو دوه ځایونو کښې د امام ترمذی رحمه الله نه په مذهب شافعی نقل کولو کښې تسامح شوې ده او حافظ وغیره په هغې باندې تنبیه کړې ده. والله تعالی اعلم

قال المنذری : واخرجه مسلم والترمذی والنسائی.

## بَابٌ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ النَّسَبِ

### د پیو څکلو په وجه داسې حرمت پیدا کیږی لکه د نسب په وجه چه پیدا کیږی

د دې ځائې نه ابواب الرضاع شروع کیږی پس په بعض نسخو کښې دلته د ابواب الرضاع سرخی قائم کړې شوې ده.

[٢٠٥٥](١) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ دِينَارٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ".

د ام المومنین عائشة رضی الله عنها نه روایت دې و فرمائی چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی حرمته تی پیدا کیږی د رضاع (دتی ورکولو) په وجه کوم حرمت و چه د نسب په وجه پیدا کیږی.

### متن حدیث

د حدیث مفهوم واضح دې چه کومې رشتې د نسب د وجې نه حرامې وی هغه تولې د رضاعت د وجې نه هم حرامیږی.(٢) ځکه چه پئ ورکولو والا د رضیع رضاعی مور وی او زوج مرضعه د رضیع دپاره په منزله د پلار وی چه هغې سره د رضیع او مرضعه ترمینځه او هم دغه شان رضیع او زوج مرضعه ترمینځه حرمت نکاح ثابتیږی، نو ګویا حرمت والا نو په طرفین کښې موندلې شی د هغې نه روستو کوم چه د هر یو خپلوان دی چه د هغې نه د نسب د وجې نه حرمت وی د دې تعلق رضیع او رضاعی مور او پلار او د هغې نه اقارب سره وی، د رضیع چه کوم نسبی مور او پلار دی او د هغوی خپلوان د هغوی سره تعلق نه وی، پس رضاعی مورد رضیع نسبی رورباندې به حرام نه وی، وعلی هذا القیاس.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه د رضاعت د وجې نه چه کوم حرمت ثابتیږی د دې تعلق د نکاح سره دې د تولو څیزونو سره نه دې، لهذا د رضاعت د وجې نه توارث او وجوب نفقه او هم دغه شان شهادت وغیره مسئله دا څیزونه د رضاعت نه نه ثابتیږی.

---

(١): سنن الترمذي/الرضاع ٢(١١٤٧)، سنن النسائي/النكاح ٤٩(٣٣٠٢)،( تحفة الأشراف: ١٦٣٤٤)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الشهادات ٧(٢٦٤٦)، فرض الخمس ٤(٣١٠٥)، تفسير سورة السجدة ٩(٤٧٩٢)، النكاح ٢٢(٥١٠٣)، ١١٧(٥٢٣٩)، الأدب ٩٣(٦١٥٦)، صحيح مسلم/الرضاع ٢(١٤٤٤)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٤(١٩٣٧)، موطا امام مالك/الرضاع ٣(١٥)، مسند احمد(٦/٤٤، ٥١، ٦٦، ٧٢، ١٠٢)، سنن الدارمي/النكاح ٤٨(٢٢٩٥)(صحيح)

(٢) قال القاري واستثني منه بعض المسائل اهـ قلت وهي مذكورة في كتب الفقه فارجع اليه وفي شرح السنة ولا تحرم المرضعة علي اب الرضيع ولا علي اخيه، ولا يحرم عليك ام اختك من الرضاع اذا لم تكن اما لك ولا زوجة ابيك ويتصور هذا في الرضاع ولا يتصور في النسب ام اخت الاولهي ام لك او زجة لابيك الي اخر ما في البذل)

## لبن الفحل :

د پورته ذکر شوی بیان نه معلومه شوه چه حرمت رضاعت د رضاعی مور سره خاص نه دي بلکه رضاعی مور او زوج مرضعه یعنی رضاعی پلار دواړو طرف ته خوریږی لکه چه د جمهور علماء کرامو مسلک دي، په دي کښي د يو جماعت اختلاف دي کوم چه دا حرمت د رضاعی مور سره خاص کوی او هم دا هغه مسئله ده کوم نه چه فقهاء په "لبن الفحل" سره تعبير کوی کومه چه وړاندي په کتاب کښي هم مستقل راروان دي.

دلته د دي خبري هم ضرورت دي چه کوم رضاعت موجب تحريم دي د هغي تعريف معلوم کړئ لکه چه فقهاء کرامو ليکلي دي پس په فتح القدير کښي دی :

وهوفی اللغة مص اللبن من الثدی... وفی الشرع مص الرضیع اللبن من ثدی الادمیة فی وقت مخصوص ای مدة الرضاع المختلف فی تقدیرها اھ لهذا چه کوم رضاعت چه د رضاعت په موده کښي دننه وی، دا مسئله وړاندي په مستقل کتاب کښي "باب رضاعة الکبير" د لاندي راروان دي.

﴿عن عائشة رضی الله عنها ان النبی صلی الله علیه وسلم قال : یحرم من الرضاعة ما یحرم من الولادة﴾ په دي باندي کلام پورته راغلي دي، قال المنذری : اخرجه الترمذی والنسائی بمعناه واخرجه البخاری ومسلم والنسائی من حدیث عمرة عن عائشة رضی الله تعالی عنها.

[۲۰۵٦](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ أُمِّ سَلَمَةَ، عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ أُمَّ حَبِيبَةَ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، هَلْ لَكَ فِي أُخْتِي؟ قَالَ: "فَأَفْعَلُ مَاذَا؟" قَالَتْ: فَتَنْكِحُهَا، قَالَ: "أُخْتَكِ؟" قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: "أَوَتُحِبِّينَ ذَلِكِ؟" قَالَتْ: لَسْتُ بِمُخْلِيَةٍ بِكَ، وَأَحَبُّ مَنْ شَرِكَنِي فِي خَيْرٍ أُخْتِي، قَالَ: "فَإِنَّهَا لَا تَحِلُّ لِي"، قَالَتْ: فَوَاللَّهِ لَقَدْ أُخْبِرْتُ أَنَّكَ تَخْطُبُ دُرَّةَ أَوْ ذَرَّةَ شَكَّ زُهَيْرٌ بِنْتَ أَبِي سَلَمَةَ، قَالَ: "بِنْتَ أُمِّ سَلَمَةَ"، قَالَتْ: نَعَمْ، قَالَ: "أَمَا وَاللَّهِ لَوْ لَمْ تَكُنْ رَبِيبَتِي فِي حِجْرِي مَا حَلَّتْ لِي، إِنَّهَا ابْنَةُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ، أَرْضَعَتْنِي وَأَبَاهَا ثُوَيْبَةُ، فَلَا تَعْرِضْنَ عَلَيَّ بَنَاتِكُنَّ وَلَا أَخَوَاتِكُنَّ".

دام سلمه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه ام بی حبيبه رضي الله عنها نبی عليه السلام ته عبرض،اوکړو چه ایا زما خور ته دی رغبت شته دي؟ نبی عليه السلام اوفرمائيل څنګه اوخبره څه ده؟ ام حبيبه او فرمائيل چه نکاح ورسره وکړئ نبی عليه السلام اوفرمائيل آيا ستادخورسره؟ ام حبيبه اووئيل : هو، نبی عليه السلام اوفرمائيل که داسي وشي و نوستاخوښه ده ام حبيبه رضي الله عنها اووئيل چه يواځي زه خو ستا په نکاح کښي نه يم(يعنی نوری ښځي هم دی اوهغه دی هم وي، داسي نه ده چه زه په راتلوباندي خفه کيږم) زماسره چه خومره زيات لا خلق شريك وی او په هغوی کښي زماسره زما خورهم وی نوزه دادير خوښوم نبی عليه السلام اوفرمائيل ته. چه ترڅو پوري زماپه نکاح کښي بی نوهغه زما دپاره حلاله نه ده ام حبيه چه دا واوريدل نوئي وئيل ماته معلومه ده چه تا دره ياذره څوك چه دابوسلمه لورده دنکاح پيغام دی ورته ليږلي دي نبی عليه السلام په تعجب سره تپوس اوکړه چه دام سلمه لور دره يادوی؟ ام حبيبه اووئيل هو، نبی عليه السلام

(1): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٨٢٦٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/النكاح ٢٠(٥١٠١)، ٢٥(٥١٠٦)، ٢٦(٥١٠٧)، ٣٥(٥١٢٣)، النفقات ١٦(٥٣٧٢)، صحيح مسلم/الرضاع ٤(١٤٤٩)، سنن النسائي/النكاح ٤٤(٣٣٨٦)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٤(١٩٣٩)، مسند احمد(٦/٢٩١، ٣٠٩، ٤٢٨)(صحيح)

اوفرمائیل هغه خو زما پرکتئ ده که چرې پرکتئ هم نه وی نوهغه زما د رضاعی ورور لورده، ما او ابوسلمه ته ثوبیه بی بی تې راکړې وو نو په دې وجه باندې ماته دخپلو خویندو اولونړو ذکرمه کوه.

**مضمون حدیث:**

سیده ام سلمه ﷞ یو ځل ام المومنین ام حبیبه بنت ابی سفیان ﷞ رسول الله ﷺ ته عرض اوکړو چه ایا ته زما په خور کښې رغبت لرې؟ هغه ترې تپوس اوکړو ستا څه مراد دې؟ هغې عرض اوکړو ته د هغې سره نکاح اوکړه. رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ستا د خور سره؟ هغې عرض اوکړو او جی! رسول الله ﷺ اوفرمائیل ایا ستا دا خبره خوښه ده او برداشت کوی ئې؟ په دې باندې هغې اووې چه زه کومه ستاسو په نکاح کښې یواځې یم؟ (بلکه نورې هم ازواج او بنې دی نو هر کله چه دا صورت حال دې) نو په دې خیر کښې ما سره شریکیدونکې زما په نزد خپله زما خور زیاته غوره ده، مطلب دا دې چه ستا په نکاح کښې که زه یواځې وې نو بیا خو ظاهره ده چه ما په د بل چا په نکاح کښې راتلل نه خوښول، خو چه هر کله زما نه علاوه نورې هم دی نو بیا دې پکښې زما خور هم وی، نو په دې باندې ورته رسول الله ﷺ اوفرمائیل: ﴿فانها لا تحل لی﴾ چه زما دپاره هغې سره نکاح جائز نه ده ځکه چه جمع بین الاختین ناجائز ده. ﴿قالت: فوالله لقد اخبرت انک تخطب درة او ذرة شک زهیر بنت ابی سلمة﴾ یعنی ماته دا خبره رارسیدلې ده چه هغه دره بنت ابی سلمه ته د نکاح پیغام لیږل غواړې، په دې باندې رسول الله ﷺ اوفرمائیل ﴿بنت ام سلمة؟﴾ ایا د دره بنت ام سلمه په باره کښې فرمائې؟ ﴿قالت نعم! قال: اما والله لو لم تکن ربیبتی فی حجری ما حلت لی﴾ رسول الله ﷺ اوفرمائیل چه اول خو هغه زما ربیبه ده چه هغې سره نکاح زما دپاره ناجائز ده، خو که هغه زما ربیبه هم نه وې نو بیا هم زما دپاره جائز نه وې ځکه چه هغه زما د رضاعی رور لور ده، ځکه چه ماته او د هغې پلار یعنی ابو سلمه ته یوې زنانه پئ ورکړې دی چه د هغې نوم ثویبه ده، په بذل المجهود کښې د فتح الباری نه دا واقعه نقل کړې ده چه سیدنا عباس ﷜ فرمائی چه د ابو لهب د مرګ نه یو کال پس ما هغه په خوب کښې اولیدو چه هغه ډیر په بد حال کښې دې او هغه مزید اووې چه ما د دنیا نه جدا کیدو نه پس څه راحت دلته نه دې لیدلې، البته دا ده چه د ګل په ورځ باندې زما نه عذاب کښې تخفیف کولې شی، چه د هغې وجه دا بیانولې شی چه رسول الله ﷺ چه کله د ګل په ورځ باندې پیدا شو نو هم دې ثویبه خپل مولی ابو لهب ته د هغه د پیدائش زیرې ورکړې وو، او د دې زیرې په خوشحالئ کښې ئې هغه ازاده کړې وه. اه د دې نه پس هغې اوفرمائیل: ﴿لا تعرضن علی بناتکن ولا اخواتکن﴾[1] چه داسې مه کوئ او په ما باندې زما لونړه او اخوات مه پیش کوئ، دلته لفظ "ثویبه" په ترکیب کښې فاعل واقع شوې دې، ﴿ارضعتنی﴾ فعل دپاره.

[1]، ظاهره ده چه ﴿لا تعرضن﴾ جمع مؤنث حاضر صیغه ده، بل احتمال دا هم دې چه د واحد مونث حاضر صیغه وی بانون ثقیله په دې صورت کښې ضاد مکسوره دې)

د دې حديث نه معلوميږي چه رسول الله ﷺ او ابوسلمه دواړه رضاعی رونړه دی، لهذا دره بنت ابی سلمه د رسول الله ﷺ رضاعی وريره شوه، پس يوه وجه د حرمت نکاح خو دا شوه، او دويمه دا چه هغه د رسول الله ﷺ د زوجه محترمې لور ده کومې ته چه ربيبه وئيلې شی چه د هغې حرمت د قران کريم نه ثابت دې. ﴿وربائبكم اللاتی فی حجوركم ﴾د ام حبيبه رضی الله عنها د کومې خور ذکر چه په دې حديث کښې راغلې دې د هغې په نوم کښې اختلاف دې، قيل اسمها عزة بنت ابی سفيان،(كما فی رواية مسلم والنسائی) وقيل حمنة بنت ابی سفيان وقيل درة.(عون)

د دې حديث د ترجمة الباب سره مناسبت ظاهر دې ځکه چه د دې نه معلوميږي چه رضاعی وريره سره نکاح ناجائز ده.

قال المنذری واخرجه البخاری ومسلم والنسائی وابن ماجة.

# بَابٌ فِي لَبَنِ الْفَحْلِ

**باب د سړی سره د پليو رشته**

دا ترجمه هم په دې الفاظو سره په ټولو کتب صحاح کښې واقع شوې ده.

## د لبن الفحل تشريح:

ای اللبن الذی نزل فی ثدی المراة بسبب الفحل وهو الزوج... د پيو نسبت چه څنګه د زنانه طرف ته کولې شی او کيدل پکار دی، هم دغه شان د دې نسبت د سړی طرفته هم وی د سبب کيدو په حيثيت سره، ځکه چه د زنانه په سينه کښې د پيو تحقق د الله پاک په قدرت سره د ولادت ولد نه پس وی چه په هغې کښې ظاهره ده د سړی دخل دې، او دا هم هغه مسئله ده چه د هغې طرف ته اشاره زمونږ په نزد د باب الرضاع په شروع کښې راغلې دې، جمهور علماء کرام چه په هغوی کښې ائمه اربعه هم شامل دی د لبن الفحل قائل دی پس څنګه چه د رضاعی خوئی واده د رضاعی مور سره ناجائز دې هم دغه شان د رضاعی لور واده د رضاعی مور د خاوند سره ناجائز دې. ګويا پئ ورکونکې زنانه چه څنګه رضاعی مور اومنلې شوه هم دغه شان د هغې خاوند د رضيع دپاره پلار منلې شوې دې. وهذا هو معنی لبن الفحل عند الفقهاء. اصل کښې په بادی الرای کښې دا خبره ذهن ته راځی چه د رضيع نکاح د مرضعه سره خو ناجائز کيدل پکار دی خو د هغې د خاوند سره جائز کيدل پکار دی ځکه چه د پيو تعلق په ظاهره باندې صرف د زنانه سره دې پس سيده عائشه رضی الله عنها هم دا اشکال اوفرمائيلو لکه په حديث الباب کښې راځی.

په دې مسئله کښې اختلاف بعض صحابه لکه ابن عمر وغيره او بعض تابعين لکه نخعی،شعبی وسعيد بن المسيب او داودظاهری اختلاف دې،ددې حضراتو په نزد حرمت رضاعت صرف د مور طرف ته منتشر کيږی، رضاعی پلار سره د دې هيڅ تعلق نشته د لبن الفحل ډير صريح او واضح مثال هغه دې کوم چه امام ترمذی رحمه الله د ابن عباس رضی الله عنهما نقل فرمائيلې دې هغه دا چه د هغوی نه تپوس اوکړې شو چه يو سړې دې چه د هغې دوه وينزې

دی په هغې کښې يوې پردئ ماشوم ته پئ ورکړل او دويمې وينځې يو پردی ماشوم ته پئ ورکړل نو اوس د هغه نه تپوس اوکړې شو چه ايا د دې جينئ واده د هغه هلک سره جائز دې، هغه اوفرمائيل ﴿لا اللقاح واحد﴾ اوګورئ په دې مثال کښې دې دواړو ماشومانو دپاره پئ ورکولو والا مرضعه هم يوه نه ده د دې باوجود هغوی رضاعی رور خور منلې شوې دی ځکه چه سرې د دواړو يو دې چه د هغې په سبب پئ راکوزيږی، امام ترمذی رحمه الله فرمائی : وهذا التفسير لبن الفحل، وهذا الاصل فی هذا الباب، وهو قول احمد واسحاق. اه

## د اختلاف وجه :

کوم حضرات چه د لبن الفحل قائل نه دی د هغه استدلال د آيت کريمه نه دې، ﴿وامهاتکم اللاتی ارضعنکم﴾ او طريق استدلال دا دې چه په آيت کريمه کښې په حرمت نسبيه کښې خو دواړه قسم محارم مذکور دی يعنی من قبل الام ومن قبل الاب، پس ارشاد دې ﴿وعماتکم وخالاتکم﴾ عمه د پلار د طرف رشته ده او خاله د مور د طرف، او د حرمت رضاعيه د لاندې په قران کريم کښې صرف محرمات من قبل الام ذکر دې، حيث قال ﴿وامهاتکم اللاتی ارضعنکم﴾ دلته عمه رضاعيه نه ده ذکر کړې شوې، د جمهورو د طرف نه جواب ورکړې شوې دې، تخصيص الشئ بالذکر لا يدل علی نفی الحکم عما عداه، او خصوصا هر کله چه پکښې احاديث صحيحه ثابت دی.

[۲۰۵۷](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ الْعَبْدِيُّ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: دَخَلَ عَلَيَّ أَفْلَحُ بْنُ أَبِي الْقُعَيْسِ فَاسْتَتَرْتُ مِنْهُ، قَالَ: تَسْتَتِرِينَ مِنِّي وَأَنَا عَمُّكِ؟ قَالَتْ: قُلْتُ: مِنْ أَيْنَ؟ قَالَ: أَرْضَعَتْكِ امْرَأَةُ أَخِي قَالَتْ: إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ وَلَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ، فَدَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَحَدَّثْتُهُ، فَقَالَ: "إِنَّهُ عَمُّكِ فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ".

د ام المومنين عائشه رضی الله عنها نه وايت دې فرمائی چه افلح بن ابو القعيس زماخواته راغې اوهغه دعائشې رضی الله عنها رضاعی تره وو ام المومنين وائی ما ترې پرده اوکړه هغه اووئيل اياته زمانه پرده کوې زه خوستاتره يم ما ووئيل هغه څنګه؟ نوهغه اووئيل زما ورندار و تاته تې درکړې دې ماورته اووئيل چه ماته خو د ښځې تې راکړې دې سړی خوندې راکړې په دې په وخت کښې نبی صلی الله عليه وسلم راغې اوددی واقعی ذکر. ورته اوشو نبی صلی الله عليه وسلم اوفرمائيل يقينا افلح ستاتره دې په بې تکلفی سره ستاخواته راتلې شي.

## مضمون حديث :

دا دې چه سيده عائشه رضی الله عنها فرمائی چه يوه ورځ ماته افلح بن القيس راغلو او ما د هغه نه پرده کوله، هغه اووې چه ته زما نه پرده کوې؟ زه خو ستا تره يم، ما اووې ته زما تره څنګه ئې؟ هغه اووې تاته زما د رور ښځې پئ درکړې دی، په دې باندې هغې اووې : ﴿انما ارضعتنی

(1): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٦٣٧٣، ١٦٩١٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/الشهادات ٧(٢٦٤٤)، صحيح مسلم/الرضاع ٢(١٤٤٥)، سنن النسائي/النكاح ٤٩(٣٣٠٣)، موطا امام مالك/ الرضاع ١(٣)، مسند احمد(٦/١٩٤، ٢٧١)(صحيح)

امراءة ولم يرضعني الرجل ﴾د دې نه پس سيده عائشه ﷺ فرمائي چه کله رسول الله ﷺ زما خواته راغلو نو هغه اوفرمائيل چه او! هغه ستا تره دې ته بغير د پردې نه هغه ته تلې راتلې شي، ځان پوهه کړئ چه د افلح د عائشې ﷺ د تره کيدو درې صورتونه دی. ۱: افلح د سيده عائشه ﷺ د نسبي پلار رضاعی رور وی،
۲: افلح د عائشې ﷺ د پلار نسبي رور وی.
۳: افلح د سيده عائشه ﷺ د رضاعی پلار رضاعی رور خو دلته دوه صورتونه متحقق وی چه د هغې په روايت کښې تصريح ده ﴿ارضعتک امرة اخی﴾
تنبيه: د ابوداود په دې روايت کښې افلح بن ابی القيس واقع شوې دې او دا صحيح نه دې، صحيح په دې کښې افلح بن القيس اخو ابی القيس دې کما فی رواية الصحيحين والحديث اخرجه مالک والشافعی وباقی الستة.(المنهل)

## بَاب فِي رَضَاعَةِ الْكَبِيرِ

### باب: د لوئی کس د رضاعت بيان

د ابواب رضاع په شروع کښې دا تير شوې دی چه رضاعت هغه معتبر دې او مؤثر دې کوم چه د رضاعت په موده کښې وی چه په هغې کښې فی الجمله اختلاف دې، د دې مودې د تيريدو نه پس چه کوم رضاعت وی هغه معتبر نه دې په دې سره به حرمت نه ثابتيږی. امام بخاری رحمه الله باب قائم کړې دې ﴿من قال لارضاع بعد حولين﴾ د دې د لاندې شارحينو اختلاف نقل کړې دې چه ائمه ثلاثه او صاحبين مسلک هم دا دې په خلاف د امام اعظم ابوحنيفه رحمه الله چه د هغه په نزد د رضاعت موده ديرش مياشتې دې.(دوه نيم کاله) د دلائلو دپاره دې د کتب فقه طرف ته رجوع اوکړې شی.

[۲۰۵۸](1) حَدَّثَنَا حَفْصُ بْنُ عُمَرَ، حَدَّثَنَا شُعْبَةُ. ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، عَنْ أَشْعَثَ بْنِ سُلَيْمٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ مَسْرُوقٍ، عَنْ عَائِشَةَ الْمَعْنَى وَاحِدٌ، أن رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ، قَالَ حَفْصٌ: فَشَقَّ ذَلِكَ عَلَيْهِ وَتَغَيَّرَ وَجْهُهُ ثُمَّ اتَّفَقَا، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّهُ أَخِي مِنَ الرَّضَاعَةِ، فَقَالَ: "انْظُرْنَ مَنْ إِخْوَانُكُنَّ، فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ".

مسروق دام المومنين عائشة ﷺ نه روايت ان کوی فرمائي چه نبی ﷺ زماخواته راغې اويوسړې زماخواته ناست وو حفص وئيلی دی چه دا کار نبی ﷺ بدوګڼلو اودغصی په وجه ئې دمخ رنګ بدل شو، عائشه ﷺ عرض اوکړو اې د الله رسوله داخوزمارضاعی ورور دې نبی ﷺ اوفرمائيل اوګورئ اوسوچ وکړئ ستاسو اوورونه څوک دی؟ دپيورشته صرف دولړی په ورځو کښې وی(يعنی اوس تړې پرده کول پکاردې).

[1]: صحيح البخاري/الشهادات ۷(۲۶۴۷)، والنكاح ۲۲(۵۱۰۲)، صحيح مسلم/الرضاع ۸(۱۴۵۵)، سنن النسائي/النكاح ۵۱(۳۳۱۴)، سنن ابن ماجه/النكاح ۳۷(۱۹۴۵)،(تحفة الأشراف: ۱۷۶۵۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۶/ ۹۴، ۱۳۸، ۱۷۴، ۲۴۱)، سنن الدارمي/النكاح ۵۲(۲۳۰۲)(صحيح)

## شرح حدیث :

واضح دي، د حدیث په اخر کښې دی چه رسول اللهﷺ ارشاد اوفرمائیل: انما الرضاعة من المجامعة... وفي القاموس الجوع ضد الشبع... وبالفتح مصدر جاع جوعا ومجاعة، یعنی جوع بالضم اسم مصدر دې او جوع بالفتح او مجاعة دا دواړه مصدرونه دی.

د دې مطلب دا دې چه رضاعت هغه معتبر دې کوم چه د لوږې د وجې نه وی، یعنی په کومه زمانه کښې د لوږې حل د پیو نه علاوه بل څیز نه وی شرعا هغه معتبر دې او ظاهره ده چه دا هم هغه رضاعت دې کوم چه د ماشومتوب په مخصوص موده کښې وی، پس ظاهره ده چه د ماشوم د پیدائش نه واخله تر دوه کالو پورې دا داسې زمانه ده چه په دې کښې د ماشوم خوراک فطرة او عادة د پیو نه علاوه بل هیڅ هم نه شی کیدې.

خان پوهه کړه چه د حدیث الباب نه دا خبره مستفاد کیږی چه په رضاعت کښې اصل څیز ازاله جوع ده او د دې ازالې تعلق وصول اللبن الی المعده دې لهذا ثبوت رضاعت دپاره براه راست په سینه باندې خوله لګولو سره شکل ضروری نه وی بلکه څنګه چه هم د زنانه پئ د ماشوم خیټې ته اورسیږی اکلا وشربا تردې چه په طریق د وجود او سعوط ټول صورتونه په دې کښې داخل دی، البته په دې کښې لیث بن سعد او اهل ظاهر اختلاف دې حیث قالوا ان الرضاعة انما تکون بالتقام الثدی ومص اللبن منه(بذل)

[۲۰۵۹]() حَدَّثَنَا عَبْدُ السَّلَامِ بْنُ مُطَهَّرٍ، أَنَّ سُلَيْمَانَ بْنَ الْمُغِيرَةِ حَدَّثَهُمْ، عَنْ أَبِي مُوسَى، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنٍ لِعَبْدِ اللَّهِ بْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، قَالَ: "لَا رِضَاعَ إِلَّا مَا شَدَّ الْعَظْمَ وَأَنْبَتَ اللَّحْمَ". فَقَالَ أَبُو مُوسَى: لَا تَسْأَلُونَا وَهَذَا الْحَبْرُ فِيكُمْ.

د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه تې ورکول هغه معتبردی(درضاع په احکامو کښې کوم چه هډوکی له طاقت ورکوی او غوښه زیاتوی، په دې وخت کښې ابوموسی اشعری اووئیل ترڅوپوری چه دا عالم(عبد الله بن مسعود) په تاسو کښې موجود وی نوزمانه دمسائلوتپوس مه کوئ.

﴿عن ابن مسعود... الخ﴾ یعنی رضاعت هغه معتبر دې چه په هغې سره د ماشوم هډوکی سخت او مضبوط وی او انبات لحم وی.

## دا حدیث مختصر دې :

دا حدیث دلته مختصر دې، اصل واقعه هم هغه ده کومه چه حضرت په بذل کښې د بدائع الصنائع نه نقل کړې ده هغه دا دې چه د یو باندچی په کور کښې پیدائش اوشو، د پیدائش نه څو ورځې پس ماشوم وفات شو، د ماشوم د مور په سینه کښې پئ راجمع شو او سینه اوپړسیده، نو د هغه زنانه خاوند د خپلې ښځې تکلیف ته کتلو سره داسې اوکړل چه د هغې د سینې نه پئ خوله کښې واچول او د تیرولو په ځائې ئې بهر اوغورځول، یو ځل ئې اتفاق سره څو قطرې د حلق نه لاندې تیرې شوې، هغه د دې په باره کښې د ابو موسی اشعری رضی الله عنه

(): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۹۶۳۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۱/۴۳۲)(ضعیف)

نه تپوس اوکړو ، هغه ورته اوفرمائیل چه ستا ښځه په تا باندې حرامه شوه ، هغه سړې د دې نه روستو عبدالله بن مسعود رضی الله عنه ته راغلو ، هغه تپوس اوکړو چه ایا تا دا مسئله د بل چا نه هم تپوسلې ده؟ هغه جواب ورکړو چه نه! او د ابو موسی اشعری رضی الله عنه نه مې تپوسلې ده او هغه راته اوفرمائیل چه ستا ښځه په تا باندې حرامه شوه (د رضاعی مور کیدو د وجې نه) په دې باندې هغه ابو موسی اشعری رضی الله عنه ته لاړو او هغه ته ئې اوفرمائیل ﴿لا رضاع الا ما شد العظم ﴾، په دې باندې ابو موسی اشعری رضی الله عنه هغه خبره اوکړه کومه چه دلته په کتاب کښې مذکور ده چه ترڅو پورې دا عالم یعنی عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په تاسو کښې موجود دې تر هغه وخته پورې دې زما نه د مسئلې تپوس اونکړې شي.

دا اثر ابن مسعود رضی الله عنه په صحاح سته کښې صرف دلته ابوداود کښې دې، صاحب منهل لیکی واخرجه البیهقی من طریق المصنف، هم دغه شان اصل روایت مختصرا موطاء مالک کښې هم دی.

[٢٠٦٠](١) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ سُلَيْمَانَ الْأَنْبَارِيُّ، حَدَّثَنَا وَكِيعٌ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ الْمُغِيرَةِ، عَنْ أَبِي مُوسَى الْهِلَالِيِّ، عَنْ أَبِيهِ، عَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ، وَقَالَ: أَنْشَزَ الْعَظْمَ.

دابن مسعود نه دتیر شوی روایت په شان روایت نقل شوې دې مګرپه دی روایت کښې ددې الفاظو اظافه ده : أنشزَ العظمَ.

## بَابٌ فِيمَنْ حَرَّمَ بِهِ

### باب: د بالغ سړی د حرمت احکام

تیر باب کښې او د هغې احادیث خو د جمهورو په تائید کښې وو یعنی د رضاعت کبیر نه عدم تحریم او دا باب د هغې مقابل دې چه په دې کښې د قائلین تحریم دلیل بیان کړې شوې دې یعنی ظاهریه، عائشه، عروه، لیث بن سعد ، عطاء او ابن تیمیه وغیره.

[٢٠٦١](٢) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، حَدَّثَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، حَدَّثَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمِّ سَلَمَةَ، أَنَّ أَبَا حُذَيْفَةَ بْنَ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ بْنِ عَبْدِ شَمْسٍ كَانَ تَبَنَّى سَالِمًا وَأَنْكَحَهُ ابْنَةَ أَخِيهِ هِنْدَ بِنْتَ الْوَلِيدِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ رَبِيعَةَ، وَهُوَ مَوْلًى لِامْرَأَةٍ مِنَ الْأَنْصَارِ، كَمَا تَبَنَّى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زَيْدًا، وَكَانَ مَنْ تَبَنَّى رَجُلًا فِي الْجَاهِلِيَّةِ دَعَاهُ النَّاسُ إِلَيْهِ وَوُرِّثَ مِيرَاثَهُ، حَتَّى أَنْزَلَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَى فِي ذَلِكَ: ادْعُوهُمْ لِآبَائِهِمْ إِلَى قَوْلِهِ: فَإِخْوَانُكُمْ فِي الدِّينِ وَمَوَالِيكُمْ سورة الأحزاب آية ٥، فَرُدُّوا إِلَى آبَائِهِمْ، فَمَنْ لَمْ يُعْلَمْ لَهُ أَبٌ كَانَ مَوْلًى وَأَخًا فِي الدِّينِ، فَجَاءَتْ سَهْلَةُ بِنْتُ سُهَيْلِ بْنِ عَمْرٍو الْقُرَشِيِّ، ثُمَّ الْعَامِرِيِّ، وَهِيَ امْرَأَةُ أَبِي حُذَيْفَةَ، فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّا كُنَّا نَرَى سَالِمًا وَلَدًا، وَكَانَ يَأْوِي مَعِي وَمَعَ أَبِي حُذَيْفَةَ فِي بَيْتٍ وَاحِدٍ، وَيَرَانِي فُضْلًا، وَقَدْ أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ فِيهِمْ مَا قَدْ عَلِمْتَ، فَكَيْفَ تَرَى فِيهِ؟ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَرْضِعِيهِ"، فَأَرْضَعَتْهُ خَمْسَ رَضَعَاتٍ، فَكَانَ بِمَنْزِلَةِ وَلَدِهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ، فَبِذَلِكَ كَانَتْ عَائِشَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا تَأْمُرُ

---

(١): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٩٦٣٨) (ضعيف) (روستنې روایت اوګورئ.)

(٢): سنن النسائي/النكاح ٥٣ (٣٣٢١)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٦ (١٩٤٣)، (تحفة الأشراف: ١٦٧٤٠، ١٨١٩٧، ١٨٣٧٧)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/المغازي ١٢ (٢٩٦٠)، والنكاح ١٥ (٥٠٨٨)، صحيح مسلم/الرضاع ٧ (١٤٥٣)، موطا امام مالك/الرضاع ٢ (١٢)، مسند احمد (٦/٢٥٥، ٢٧١)، سنن الدارمي/النكاح ٥٢ (٢٣٠٣) (صحيح)

بَنَاتِ أَخَوَاتِهَا وَبَنَاتِ إِخْوَتِهَا أَنْ يُرْضِعْنَ مَنْ أَحَبَّتْ عَائِشَةُ أَنْ يَرَاهَا وَيَدْخُلَ عَلَيْهَا وَإِنْ كَانَ كَبِيرًا خَمْسَ رَضَعَاتٍ، ثُمَّ يَدْخُلُ عَلَيْهَا، وَأَبَتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَسَائِرُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُدْخِلْنَ عَلَيْهِنَّ بِتِلْكَ الرَّضَاعَةِ أَحَدًا مِنَ النَّاسِ حَتَّى يَرْضَعَ فِي الْمَهْدِ، وَقُلْنَ لِعَائِشَةَ: وَاللهِ مَا نَدْرِي؟ لَعَلَّهَا كَانَتْ رُخْصَةً مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِسَالِمٍ دُونَ النَّاسِ.

د ام المومنين عائشه او ام سلمه رضی الله عنهما نه روايت دي فرمائی چه ابو حذيفه بن عتبة بن ربيعه سالم لره خپل متبنی جوړ کړې وو، اوسالم ديوی انصاری زنانه آزاد کړې شوې غلام وو لکه څنګه چه زيده دنبی علیه السلام تش په نوم څوی وو اودجاهليت په زمانه کښې دارواج وو چه چابه چاته څوی اووئيل نوهغه به ئې دهغه په نوم سره، يادولو اوهغه به دمری وارث جوړيدو تردې پورې چه دا آيت کريمه «ادعوهم لآبائهم» نازل شو.تر «فإخوانكم في الدين ومواليكم» نو ددې ورځې نه خلقو به ددوی نسبت ددوی خپلو پلا رانوته کولو أودچاچه به پلار معلوم نه وو نوهغه به ددوی آزاد کړې شوې غلام يادينی ورور حسابيدو، نوسهله بنت سهيل دابوحذيفه په ښځه دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض ئې اوکړو اې دالله رسوله مونږ خوبه سالم خپل څوی ګڼړلو اوهغه به، زما او د ابوحذيفه رضی الله عنه سره يوځائې اوسيدلو اوزه به ئې دکور په لباس او يواځې والی کښې ليدلم اوس چه الله پاك ددوی په باره کوم حکم نازل کړې دې ته ددينه خبر ئې اوس زمادپاره څه حکم دې؟ نبی علیه السلام اوفرمائيل خپل پئ ورته ورکړه، نوهغې ورته پنځه ځل خپل پئ ورکړل ددې نه پس بياهغه به ددوی څوی ګڼړلې شو ددې حديث په وجه به عائشې رضی الله عنها خپلو وريرو او خورزوته حکم کولو چه هغه کس ته پئ ورکړئ دچاچه عائشه رضی الله عنها ليدل غواړی اودهغې خواته راتلل اوغواړی اګرچه هغه لوی هلك وی ليکن پنځه ځل پئ به ورکوئ ددې نه پس به بياهغه کس عائشې رضی الله عنها ته راتلو او ام سلمه اونورو ازواج مطهراتو به ددې نه انکارکولو چه دوی ته دی داسې څوك راشی چه هغه ته ئې پئ ورکړی وی ترڅوچه هغه په ماشوم والی کښې پئ نه وی خوړلې، اوعائشې رضی الله عنها به وئيل کيدی شی چه نبی علیه السلام صرف سالم ته اجازت ورکړې وی نه چه نورو خلقوته.

## مضمون حديث:

روايت خو اوږد دې د دې حاصل دا دې چه يو هلک چه د هغه نوم سالم بن عبيد بن ربيعه دې هغه ته ابوحذيفه بن عتبه خپل متبنی جوړ کړې وو پس هغه د هغه سره اوسيدو تردې چه هغه لوئې شو او د نکاح قابل شو، حذيفه د هغه واده اوکړو او دا د هغه وخت خبره ده چه کله به د متبنی حکم د حقيقی څوئی وو، پس د ابوحذيفه کور والا به د سالم مخې ته راتله او پرده وغيره هيڅ نه وه تردې چه آيت کريمه ﴿ادعوهم لابائهم هو اقسط عند الله﴾ نازل شو او حکم سابق منسوخ کيدو سره د متبنی نه د پردې کولو حکم اوکړې شو، په دې باندې د ابوحذيفه رضی الله عنه ښځه سهله بنت سهيل رضی الله عنها د رسول الله ﷺ په خدمت کښې تلو سره خپل حال عرض کړو او د خپلې پريشانئ اظهار ئې اوکړو چه دا څه اوشو مونږ خو درې واړه په يوځائې کښې اوسيدو هيڅ قسم پرده نه وه. ﴿ويرانی فضلا﴾ (فضل) (بضم الفاء

والضاد) په لغت کښې هغه سړی یا زنانه ته وئیلې شي چه کومه په معمی او خراب لباس کښې وی یاهغه سړې کوم چه په پوره جامه کښې نه وی او د بدن بعض حصه ښکاره وی، دسهلة مقصد دا ووچه که د دې پریشانۍ څه حل وی نوهغه راته بیان کړئ.

﴿فقال لها النبی صلی الله علیه وسلم ارضعیه ﴾یعنی رسول الله ﷺ هغه ته دا حال بیان کړو چه ته هغه ته خپل پئ ورکړه د دې دپاره چه د رضاعت حرمت ثابتیدو سره د پردې حاجت باقي پاتې نه شي پس هغوی داسې اوکړل، وړاندې روایت کښې دی.

﴿فبذلک کانت عائشة تامر بنات اخواتها وبنات اخوتها ان یرضعن من احبت عائشة ان یراها ویدخل علیها ﴾یعنی چونکه د سیده عائشه رضی الله عنها په علم کښې دا د سهله بنت سهیل والا قصه وه چه هغې سره رضاعت کبیر ثابتیږی نو د کوم سړی په باره کښې چه به عائشې رضی الله عنها ته منظوره وې چه هغه به هغوی ته بغیر د پردې نه تلې راتلې شو نو خپلو وریرونو یا خورزو ته به ئې دا وئیلې شو چه هغوی ته پئ ورکړئ نو د دې نه صفا معلومیږی چه عائشه رضی الله عنها د رضاعت کبیر قائله وه خو نور ازواج مطهرات د هغوی د رائې سره اتفاق نه وو پس وړاندې په روایت کښې دی.

﴿وابت ام سلمة وسائر ازواج النبی صلی الله علیه وسلم ان یدخلن علیهن بتلک الرضاعة احدا من الناس حتی یرضع فی المهد الخ﴾

## د جمهورو دلیل :

هم د دې روایت نه د جمهورو دلیل هم معلومیږی چه بقیه ازواج د سیده عائشه رضی الله عنها دا خبره نه وه تسلیم کړې. کما فی حدیث الباب.

## بَاب هَلْ يُحَرِّمُ مَا دُونَ خَمْسِ رَضَعَاتٍ

### باب: آیا د پنځه څلو نه په کمو پیو خوړلو رضاعت ثابتیږی؟

د رضاعت په مسائلو کښې دا مسئله هم مختلف فیه ده چه ایا د حرمت رضاعت د ثبوت دپاره مطلق رضاعت کافي دې یا د دې څه خاص مقدار متعین دې، د جمهور علماء کرامو چه په هغوی کښې ائمه ثلاثه هم دی د هغوی په نزد صرف یو ځل څکل کافي دی او امام شافعي رحمه الله په نزد پنځه کرته، وهو روایة عن احمد. ومذهب لابن حزم، او د داود ظاهری په نزد ثلاث مرات، وهو روایة عن احمد، د سیده عائشه رضی الله عنها په مسلک کښې مختلف روایات وارد دی په یو روایت کښې په دې کښې د هغه نه عشر مرات منقول دې او یو د سبع او یو خمس.

[٢٠٦٢](1) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ، عَنْ عَمْرَةَ بِنْتِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ عَائِشَةَ، أَنَّهَا قَالَتْ: "كَانَ فِيمَا أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ مِنَ الْقُرْآنِ عَشْرُ رَضَعَاتٍ يُحَرِّمْنَ، ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُومَاتٍ يُحَرِّمْنَ، فَتُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُنَّ مِمَّا يُقْرَأُ مِنَ الْقُرْآنِ".

[1]): صحیح مسلم/الرضاع ٦(١٤٥٢)، سنن الترمذي/الرضاع ٣(١١٥٠)، سنن النسائي/النكاح ٥١(٣٣٠٩)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٥(١٩٤٤، ١٩٤٢)، (تحفة الأشراف: ١٧٨٩٧، ١٧٩١١)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/الرضاع ٣(١٧)، مسند احمد(٦/٢٦٩)، سنن الدارمي/النكاح ٤٩(٢٢٩٩)(صحيح)

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه اول په قرآن كريم كښې دا حكم نازل شوی وو چه د سينې نه لس پيرې پئ څکل حرمت راولې بيا دا حكم منسوخ شو او صرف پنځه خله پئ رول درضاعت دثبوت دپاره باقي پاتې شول بيا نبي عليه السلام وفات شو او هغه حكم په قرآن كريم كښې لوستلې كيږې.

**قوله: ﴿عن عائشة رضى الله تعالى عنها انها قالت الخ﴾**

په دې مسئله كښې د جمهورو استدلال خو د آيت كريمه د اطلاق نه دې، **وامهاتكم اللاتى ارضعنكم...** او سيده عائشه رضي الله عنها روايات اول خو اخبار احاد دی، دويم دا چه هغه د عدد رضعات په باره كښې مختلف او مضطرب دی لكه چه دا روايات مختلفه په بذل المجهود كښې مذكور دی، پاتې شوه دا خبره چه سيده عائشه رضي الله عنها خو خپله د قران كريم د قراءت حواله وركوی. پس د دې جواب دا دې چه عائشه رضي الله عنها دا روايت د قران كريم په حيثيت نقل كوی او د قران كريم ثبوت بغير د تواتر نه نه شي كيدې، او كه هغې دا روايت د حديث په حيثيت باندې پيش كولې نو معتبر كيدې شو. والله تعالى اعلم

[۲۰٦۳](١) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا إِسْمَاعِيلُ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَلَا الْمَصَّتَانِ".

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی يو ځل يا دوه ځله پئ رول درضاعت حرمت نه واقع كوي.

﴿ عن عائشة رضى الله عنها قالت : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا تحرم المصة والمصتان﴾

مص په معنى د راښكلو او په دې كښې ﴿ة ﴾د مرة دپاره ده يعنى يو ځل راښكل، يعنى د ماشوم يو ځل د خپل مور سينه راښكل د حرمت سبب نه دې، پس د بعض علماء كرامو مذهب هم دا دې، زيد بن ثابت، ابوثور، ابن المنذر، داود ظاهري او احمد في رواية. د دې جواب خو مخكښې راغلو چه د عدد رضعات والا رواياتو كښې اختلاف او اضطراب دې او يو جواب خاص د دې روايت دا وركړې شوې دې چه ﴿انه محمول على ما اذا لم يتحقق وصول اللبن الى جوف الصبى ﴾لكه چه دا خبره په مشاهده كښې راغلې ده چه بعض وخت مور ماشوم ته پئ وركوی او سينه د هغه خوله كښې داخله هم كړې خو هغه ئې خوړل نه غواړی پس د مسلم په روايت كښې دی ﴿لا تحرم الاملاجة والاملاجتان ﴾

---

(١): صحيح مسلم/الرضاع ٥(١٤٥٠)، سنن الترمذي/الرضاع ٣(١١٥٠)، سنن النسائي/النكاح ٥١(٣٣١٢)، سنن ابن ماجه/النكاح ٣٥(١٩٤١)،(تحفة الأشراف: ١٦١٨٩)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣١/٦، ٩٦، ٢١٦، ٢٤٧)، سنن الدارمي/النكاح ٤٩(٢٢٩٧)(صحيح)

## بَابٌ فِي الرَّضْخِ عِنْدَ الْفِصَالِ

**باب: د تې خورلو نه د بس کولو په وخت کښې ورته دا نعام ورکولو بیان**

رضخ معنی معمولی شان ورکړه او عطیه.

[۲۰۶۴]() حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا أَبُو مُعَاوِيَةَ. ح وحَدَّثَنَا ابْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ هِشَامِ بْنِ عُرْوَةَ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ، عَنْ أَبِيهِ، قَالَ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرَّضَاعَةِ؟ قَالَ: "الْغُرَّةُ الْعَبْدُ أَوِ الْأَمَةُ". قَالَ النُّفَيْلِيُّ: حَجَّاجُ بْنُ حَجَّاجٍ الْأَسْلَمِيُّ، وَهَذَا لَفْظُهُ.

دحجاج رضی الله عنه نه روایت دې فرمائي چه ما عرض وکړو اې دالله رسوله کوم داسې عمل وکړم چه دتې ورکونکې داحسان نه آزاد شم؟نبی ﷺ اوفرمائیل غلام یاوینځه یعنی رضاعی مورته غلام یاوینځه خدمت دپاره ورکړه، نفیلی وئیلی دی حجاج بن حجاج اسلمی دی او دا دهغه دروایت الفاظ دي.

**قوله:** ﴿عن حجاج بن حجاج عن ابیه قال قلت یا رسول الله ﷺ ما یذهب عن مذمة الرضاعة؟ قال المغرة العبد او الامة ﴾

### شرح حدیث :

د مذمت معنی د حق راځی، په ظاهره کښې د دې وجې نه چه په دې اضاعت سره انسان د مذمت مستحق کیږی، او دلته د دې نه هغه حق مراد دې کوم چه مرضعه ته حاصل وی د رضاعت د وجې نه، دلته دوه څیزونه دی یو اجرت رضاعت، کوم چه په تراضی طرفین سره متعین کولې شی، او دویم څیز هغه دې کوم چه مرضعه ته د فصال یعنی د تکمیل رضاعت نه پس په طور د ورکړې او انعام ورکولې شی هم د دې نه په مذمه سره تعبیر کولې شی، پس د هغه خلقو عادت وو چه هغوی به عند الفطام مرضعه ته د انعام په طور څه ورکول، په دې حدیث کښې هغه صحابی د رسول الله ﷺ نه هم دا تپوس اوکړو چه هغه ورکړه څه کیدل پکار دی، رسول الله ﷺ اوفرمائیل یو غلام یا یوه وینزه.

څان پوهه کړه چه د اعطاء رضخ حکم ایجابی نه دې، واجب خو د اصل اجرت ورکول دی، دا حکم استحبابی دې.

امام ترمذی رحمه الله چه په دې حدیث باندې کومه ترجمه قائم کړې ده هغه بلفظ الحدیث دې: ﴿باب ما یذهب مذمة الرضاع ﴾د مصنف په ترجمه کښې د استنباط کولو شان دې پس په شروع کښې د دې کتاب په مقدمه کښې تیر شو چه د سنن ابی داود تراجم د سنن ترمذی د تراجم نه اوچت دی، او داهم په ذهن کښې ساتي چه د لفظ ﴿رضخ ﴾ذکر په کتاب الجهاد کښې د مغانم په بیان کښې په کثرت سره راځی، د دې بحث د لاندې چه د غلام او زنانه دپاره باقاعده د غنیمت حصه نه وی البته هغوی ته رضخ ورکولې شی.

**والحدیث اخرجه ایضا احمد والنسائی والترمذی وقال هذا حدیث حسن صحیح(المنهل)**

---

[1]: سنن الترمذي/الرضاع ٦(١١٥٣)، سنن النسائي/النكاح ٥٦(٣٣٣١)،(تحفة الأشراف: ٣٢٩٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٥٠/٣)، سنن الدارمي/النكاح ٥٠(٢٣٠٠)(ضعيف)

## بَابُ مَا يُكْرَهُ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَهُنَّ مِنَ النِّسَاءِ

### باب: کومې کومې محرمې زنانه په نکاح کښې نشي جمع کيدې؟

يعنی هغه زنانه چه هغې سره فی نفسه نکاح خو جائز ده خو په هغوی کښې دوه په نکاح کښې جمع کول جائز نه دی، لکه چه په قران کريم کښې په بيان محرمات کښې دی. ﴿وان تجمعوا بين الاختين ﴾په دې آيت کريمه کښې خو تصريح صرف د جمع بين الاختين ده خو احاديث الباب او د صحابه کرام او تابعين او ائمه اربعه په اتفاق سره په دې کښې غير اختين هم شامل کړې شوې دی چه د هغې ضابطه دا بيان کړې شوې ده چه داسې دوه زنانه چه که په هغوی کښې يو سړې فرض کړې شی نو د هغې نکاح به د بل سره جائز نه وی، ففی تفسير الجلالين تحت قوله : وان تجمعوا بين الاختين ويلحق بهما بالسنة الجمع بينها وبين عمتها او خالتها. اهـ

[۲۰٦۵]([1]) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنَا دَاوُدُ بْنُ أَبِي هِنْدٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا، وَلَا الْعَمَّةُ عَلَى بِنْتِ أَخِيهَا، وَلَا الْمَرْأَةُ عَلَى خَالَتِهَا، وَلَا الْخَالَةُ عَلَى بِنْتِ أُخْتِهَا، وَلَا تُنْكَحُ الْكُبْرَى عَلَى الصُّغْرَى، وَلَا الصُّغْرَى عَلَى الْكُبْرَى".

دابوهريره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی په نکاح سره نشی اخستلی يوه ښځه په ترور (چه دمور د طرفه وی او که دپلار) دهغې، اونه يوه ښځه دهغې په وريرې باندې څکه چه ددې په سبب دصلحه خمتيدو او په دوارو کورونو کښې د دشمنئ پيښيدو انديښنه ده) از اونه په خورزی باندې اونه دوروی خاندان والاښځه په لوی خاندان والاښځه باندې اونه دلوی خاندان واله ښځه دوروی خاندان والا په ښځه باندې.

**قوله:** ﴿ عن ابی هريرة رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم الخ ﴾

يعنی که د يو سړی په نکاح کښې د يوې زنانه وريره ده نو اوس دا سړې د هغې د ترور سره نکاح نه شی کولې، وکذا العکس يعنی که د هغه په نکاح کښې د مخکښې نه ترور وی نو اوس هغه د هغې د وريرې سره نکاح نه شی کولې او هم دا حال د خاله او خورزې دې (چه د مور د طرف نه وی) امام ترمذی رحمه الله په دې حديث کښې فرمائی ﴿والامر علی هذا عند عامة اهل العلم لا نعلم بينهم اختلافا انه لا يحل للرجل ان يجمع بين المراءة وعمتها او خالتها اهـ ﴾خو په دې مسئله کښې د خوارجو اختلاف دې چه هغوی جمع بين المراءة وعمتها وبين المراءة وخالتها ته جائز وئيلې دی.

ځان پوهه کړه چه د جمع دوه صورتونه دی. ۱: فی النکاح، ۲: وفی الوطی. پس د جمهور علماء کرامو په نزد څنګه چه جمع بين المحارم بالنکاح ناجائز ده هم دغه شان جمع فی الوطی بملک اليمين هم ناجائز دې، او په دې دويم صورت کښې د شيعه ګانو اختلاف دې د هغوی په نزد جمع فی الوطی بملک اليمين جائز دې.

[1]: صحيح البخاري/النكاح ۲۷(۵۱۰۹)، سنن الترمذي/النكاح ۳۱(۱۱۲٦)، سنن النسائي/النكاح ۴۸(۳۲۹۸)، (تحفة الأشراف: ۱۳۵۳۹)، وقد أخرجه: صحيح مسلم/النكاح ٤(۱٤۰۸)، سنن ابن ماجه/النكاح ۳۱(۱۹۳۰)، ۳۰(۱۱۲٦) موطا امام مالك/النكاح ۸(۲۰)، مسند احمد(۲/۲۲۹، ۲۵۵، ۳۹٤، ٤۰۱، ٤۲۳، ٤۲٦، ٤۳۲، ٤۵۲، ٤٦۲، ٤٦۵، ٤۷٤، ٤۸۹، ۵۰۸، ۵۱٦، ۵۱۸، ۵۲۹، ۵۳۲)، سنن الدارمي/النكاح ۸(۲۲۲٤)(صحيح)

**قوله:** ﴿ ولا تنكح الكبرى على الصغرى ولا الصغرى على الكبرى ﴾ دا د ماقبل تاكيد دې، د كبرى نه مراد عمه او خاله او د صغرى نه مراد وريره او خورزه ده.

[۲۰۶۶](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَنْبَسَةُ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، أَخْبَرَنِي قَبِيصَةُ بْنُ ذُؤَيْبٍ، أَنَّهُ سَمِعَ أَبَا هُرَيْرَةَ، يَقُولُ: "نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَخَالَتِهَا، وَبَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه : نبي كريم ﷺ منع فرمائيلي ده چه ‑ يوښځه دې دترورياڼو(چه دموردطرفه وی اوكه د پلار سره په نكاح كښې جمع كړې شي.

[۲۰۶۷](۲) حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ مُحَمَّدٍ النُّفَيْلِيُّ، حَدَّثَنَا خَطَّابُ بْنُ الْقَاسِمِ، عَنْ خُصَيْفٍ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ "كَرِهَ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الْعَمَّةِ وَالْخَالَةِ، وَبَيْنَ الْخَالَتَيْنِ وَالْعَمَّتَيْنِ".

دابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دې چه نبي عليه السلام منع فرمائيلي ده چه يوښځه دې ن دترور(چه دموردطرفه وی اوكه دپلار سره په نكاح كښې جمع كړې شي اوددی نه ئې هم منع فرمائيلي ده چه دوه تروریانی(چه دموردطرفه وی اوكه دپلارادی په يووخت كښې ديوكس په نكاح كښې جمع كړې شي.

**قوله:** ﴿ وبين الخالتين والعمتين ﴾په دې كښې دوه احتمالات دی اول دا چه خاله او خورزې لره او هم دغه شان عمه او خورزې لره تغليبا په خالتين او عمتين سره تعبير كړې شوې دې، او بل احتمال ئې دا دې چه دا په خپل ظاهر باندې دې يعنی د خالتين نه مراد داسې دوه زنانه چه خپل مينځ كښې د يو بل ترورياني وی او على هذا القياس عمتين، يعنی هغه دوه زنانه چه په دې كښې هر يو د بلې ترور وی، او داسې هم كيدې شی په دې كښې هيڅ اشكال نشته، پس د عمتين صورت دا كيدې شی چه دوه پردی سړی دی چه د هغوی پلار وفات شواو د هر يو مور موجود دهو اوس په هغوی كښې هر يو د بلې د مور سره نكاح اوكړه(پس هر يو په هغوی كښې د بل پلار شو) د هغې نه روستو د هر يو يوه يوه لور پيدا شوه، پس د هر يو لور په هغوی كښې د بلې جينئ ترور سره(۳) ځكه چه هر يو په هغوی كښې د بل د پاره خور ده او د پلار خور ته عمه وئيلې شی.

او د خالتين مثال داسې دې چه دوه سړی دی چه په هغوی كښې هر يو د بل د لور سره نكاح اوكړه مثلا زيد د عمرو د لور سره او عمرو د زيد د لور سره نكاح اوكړه او بيا د هر يو نه يوه يوه جينئ پيدا شوه، پس دا دواړه جينكئ داسې دی چه هره يوه په دوی كښې د يو بل ترور ده.

---

[1]): صحيح البخاري/ النكاح ۲۷(۵۱۱۰، ۵۱۱۱)، صحيح مسلم/النكاح ٤(۱٤۰۸)، سنن النسائي/ النكاح ٤۷(۳۲۹۱)،( تحفة الأشراف: ۱٤۲۸۸)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲/٤۰۱، ٤٥۲، ٥۱۸)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٦۰۷۰)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/النكاح ۳۰(۱۱۲٥)، مسند احمد (۱/۲۱۷)(ضعيف)

[3]) ......






[۲۰۶۸](١) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ الْمِصْرِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ وَهْبٍ، أَخْبَرَنِي يُونُسُ، عَنِ ابْنِ شِهَابٍ، قَالَ: أَخْبَرَنِي عُرْوَةُ بْنُ الزُّبَيْرِ، أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ زَوْجَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ قَوْلِ اللَّهِ تَعَالَى: وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ سورة النساء آية ٣، قَالَتْ: "يَا ابْنَ أُخْتِي، هِيَ الْيَتِيمَةُ تَكُونُ فِي حِجْرِ وَلِيِّهَا، فَتُشَارِكُهُ فِي مَالِهِ فَيُعْجِبُهُ مَالُهَا وَجَمَالُهَا فَيُرِيدُ وَلِيُّهَا أَنْ يَتَزَوَّجَهَا بِغَيْرِ أَنْ يُقْسِطَ فِي صَدَاقِهَا، فَيُعْطِيَهَا مِثْلَ مَا يُعْطِيهَا غَيْرُهُ، فَنُهُوا أَنْ يَنْكِحُوهُنَّ إِلَّا أَنْ يُقْسِطُوا لَهُنَّ وَيَبْلُغُوا بِهِنَّ أَعْلَى سُنَّتِهِنَّ مِنَ الصَّدَاقِ، وَأُمِرُوا أَنْ يَنْكِحُوا مَا طَابَ لَهُمْ مِنَ النِّسَاءِ سِوَاهُنَّ"، قَالَ عُرْوَةُ: قَالَتْ عَائِشَةُ: "ثُمَّ إِنَّ النَّاسَ اسْتَفْتَوْا رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ هَذِهِ الْآيَةِ فِيهِنَّ، فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ: وَيَسْتَفْتُونَكَ فِي النِّسَاءِ قُلِ اللَّهُ يُفْتِيكُمْ فِيهِنَّ وَمَا يُتْلَى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ فِي يَتَامَى النِّسَاءِ اللَّاتِي لَا تُؤْتُونَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ سورة النساء آية ١٢٧، قَالَتْ: وَالَّذِي ذَكَرَ اللَّهُ أَنَّهُ يُتْلَى عَلَيْهِمْ فِي الْكِتَابِ الْآيَةُ الْأُولَى الَّتِي قَالَ اللَّهُ سُبْحَانَهُ فِيهَا وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ سورة النساء آية ٣، قَالَتْ عَائِشَةُ: وَقَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ فِي الْآيَةِ الْآخِرَةِ: وَتَرْغَبُونَ أَنْ تَنْكِحُوهُنَّ سورة النساء آية ١٢٧ هِيَ رَغْبَةُ أَحَدِكُمْ عَنْ يَتِيمَتِهِ الَّتِي تَكُونُ فِي حِجْرِهِ حِينَ تَكُونُ قَلِيلَةَ الْمَالِ وَالْجَمَالِ، فَنُهُوا أَنْ يَنْكِحُوا مَا رَغِبُوا فِي مَالِهَا وَجَمَالِهَا مِنْ يَتَامَى النِّسَاءِ إِلَّا بِالْقِسْطِ مِنْ أَجْلِ رَغْبَتِهِمْ عَنْهُنَّ". قَالَ يُونُسُ: وَقَالَ رَبِيعَةُ فِي قَوْلِ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا فِي الْيَتَامَى سورة النساء آية ٣، قَالَ: يَقُولُ: اتْرُكُوهُنَّ إِنْ خِفْتُمْ، فَقَدْ أَحْلَلْتُ لَكُمْ أَرْبَعًا.

دعروة بن الزبیر رضی الله عنه نه روایت دي فرمائی چه دام المومنین عائشة رضی الله عنها نه مي دالله تعالی ددي قول: «وإن خفتم ألا تقسطوا في اليتامى فانكحواء ما طاب لكم من النساء سورة النساء» په باره کښې تپوس وکړوداحکم دهغه یتیمې دپاره دي کومه دخپل وارث زیر پرورش وی اودهغې مال دخپل مال سره شریکوی اودهغې دمال اودجمال نه متاثره وی اوغواړی چه نکاح ورسره وکړی بغیر دانصاف کولونه دهغې سره په مهردهغې کښې اودی ته دومره څه ورکوی څومره چه دې بل چاته ورکوی نومومنان دداسې نکاح کولونه منع کړی شول مګر داچه ددوی سره انصاف وکړی او پوره مهر. ورته ورکړی دڅومره مهرچه دا لائق وی اوکه چرې داسې نشی کولی نوالله تعالی حکم کړی دی چه دبلې زنانه سره دی نکاح وکړی کومه چه دده خوښه وی اودیتیمې دنکاح کولونه دی تیرشی، عروه وائی چه بیا عائشې رضی الله عنها ووئیل: چه ددې ایت دنازلیدونه پس خلقود نبی علیه السلام دیتیمانانوجینکو په باره کښې تپوس وکړونو په دې وخت کښې دا آیت کریمه «ویستفتونك في النساء قل الله یفتیکم فیهن وما یتلی علیکم في الکتاب في یتامی النساء اللاتي لا تؤتونهن ما کتب لهن وترغبون أن تنکحوهن» نازل شو، عروه وائی چه بیا عائشې رضی الله عنها ووئیل اوکوم آیت چه په قرآن کریم کښې لوستلی شی دهغې نه مراد اولنی آیت دې یعنی «وإن خفتم أن لا تقسطوا في الیتامی فانکحواء ما طاب لکم من النساء» ددې جزاء محذوف ده یعنی که چرې. انصاف نشئ کولی د یتیمانانو جینکوسره نوددوی نه م تیرشئ اودبل چاسره نکاح وکړئ څکه چه: دڅلوروښځو پورې تاسونکاح کولی شئ.

(١): صحيح البخاري/الشركة ٧(٢٤٩٤)، الوصايا ٢١(٢٧٦٣)، تفسير سورة النساء ١(٤٥٧٦)، النكاح ١(٥٠٦٤)، ١٦(٥٠٩٢)، ١٩(٥٠٩٨)، ٣٦(٥١٢٨)، ٣٧(٥١٣١)، ٤٣(٥١٤٠)، الحيل ٨(٦٩٦٥)، صحيح مسلم/التفسير ١(٣٠١٨)، سنن النسائي/النكاح ٦٦(٣٣٤٨)، (تحفة الأشراف: ١٦٦٩٣)(صحيح)

دا حدیث ډیر مشهور دی په صحیحین کښې هم موجود دې چه په هغې کښې حضرت عروه رحمه الله د سیده عائشه رضي الله عنها نه یو علمی تپوس کړې وو.

## شرح حدیث:

د سوال حاصل دا دې چه دلته صرف د یو مضمون متعلق دوه آیتونه موندلې شوې دی دواړه د سورة النساء آیتونه دی، یو د سورة په ابتداء کښې واقع دې او دویم وړاندې تلو سره د هغې په اخر کښې، رومبې آیت دې ﴿وان خفتم ان لا تقسطوا فی الیتامی الایة﴾، او د دویم آیت کریمه مصداق ﴿ویستفتونک فی النساء الی اخر الایة﴾دې، عروه رحمه الله د خپلې ترور عائشې رضي الله عنها نه د دې مقام تشریح طلب کوی چه د هغې نه د دواړو آیتونو فرق فهم ته راځی، ځکه چه دواړه آیتونه د یو مضمون سره متعلق دی، سیده عائشه رضي الله عنها چه د دې کوم تفسیر او تشریح بیان فرمائیلې ده مونږ هغه دلته په خپلو الفاظو باندې لیکی هغه دا چه یتیمې بچئ کوم چه د خپلې ولی ما تحتئ او سرپرستئ کښې شوې دی نو په بعض صورتونو کښې دا جینئ خپله د ولی نکاح هم نکاح جائز وی لکه د تره د ځوئی نکاح د تره د لور سره، نو د جاهلیت په زمانه کښې به داسې وه چه که هغه یتیمه ذومال او ذوجمال وی نو هغه ولی په به خپله د هغې سره نکاح اوکړه خو مهر وغیره حقوق پوره نه ادا کول نو په دې باندې قران کریم کښې تنبیه اوکړې شوه او د سورة نساء اول آیت په دې سلسله کښې نازل شوې دې، ﴿وان خفتم ان لا تقسطوا فی الیتامی فانکحوا ما طاب لکم من النساء الایة﴾که تاسو هغه جینئ ته پوره حق نه شئ ورکولې نو په دنیا کښې او د نورو جینکو کمې نشته د هغه نه سوا بل چا سره ودونه اوکړه.

بیا څه موده پس بعض صحابه کرامو د رسول الله ﷺ نه په دې سلسله کښې دوباره تپوس اوکړو په دې باندې د سورة نساء بل آیت نازل شو، ﴿ویستفتونک فی النساء قل الله یفتیکم فیهن وما یتلی علیکم فی الکتاب الخ﴾

په دې آیت کریمه د عائشې رضي الله عنها د تفسیر مطابق دا فرمائیلې شوې دی چه کوم وخت هغه یتیمه قلیل المال والجمال وه نو تاسو(اې اولیاء) د هغې سره نکاح کول نه خوښوئ او چه کله هغه کثیر المال والجمال وی نو په دې صورت کښې ورسره نکاح کول غواړئ هغه هم داسې چه هغې ته پوره مهرنه ورکوئ، یعنی دا ډیره دخودغرضئ اوبې انصافئ خبره ده. والله اعلم

د پورته ذکر شوی تفسیر نه معلومه شوه چه د اول آیت تعلق د یتیمې سره دې کوم چه مرغوب فیها وی، لکثرة المال والجمال او د آیت ثانیه تعلق د هغه یتیمې سره دې کومه چه د قلة المال والجمال د وجې نه مرغوب عنها ده[1]، هم دغه شان په آیت ثانیه کښې د آیت اولی هم حواله ده، قل الله یفتیکم فیهن وما یتعلی علیکم، د دې ما یتلی نه آیت اولی مراد دې، یعنی آیة اولی تاته فتوی بیانوی، اوس لوستلو والا طالبانو لا پکار دی چه زمونږ دې تقریر لره په دې روایت باندې منطبق کړی ان شاء الله تعالی... د غور کولو نه پس په سهولت

[1] د رغبت صله چه کله فی وی نو ددې معنی دطلب وی اوکله چه عن وی نو بیا ئې معنی اعراض وی.

انطباق کیدې شی خو دا ټول هر څه هم د هغه دپاره دی کوم چه د کتاب د حل طالب وی. د سهولت خوښونکو طبیعتونو دپاره خو به د دې څه خاص ضرورت نه وی. والله الموفق

د دې حدیث د ترجمة الباب سره په ظاهره څه مناسبت نشته، اللهم الا ان یقال که د یو سړی نګرانی او ولایت کښې څو یتیمان وی چه هغه سره د هغه نکاح جائز وی نو هغه که د هغوی سره نکاح اوکړی نو په داسې طریقه دې نه کوی نو په داسې طریقه دې نه کوی چه هغې سره هغه جمع لازم شی کوم چه جائز نه دې.

والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والنسائی، قاله المنذری

[۲۰۶۹]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ بْنِ سَعْدٍ، حَدَّثَنِي أَبِي، عَنِ الْوَلِيدِ بْنِ كَثِيرٍ، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ حَلْحَلَةَ الدِّيلِيُّ، أَنَّ ابْنَ شِهَابٍ حَدَّثَهُ، أَنَّ عَلِيَّ بْنَ الْحُسَيْنِ حَدَّثَهُ، أَنَّهُمْ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ مِنْ عِنْدِ يَزِيدَ بْنِ مُعَاوِيَةَ مَقْتَلَ الْحُسَيْنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، لَقِيَهُ الْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ فَقَالَ لَهُ: هَلْ لَكَ إِلَيَّ مِنْ حَاجَةٍ تَأْمُرُنِي بِهَا؟ قَالَ: فَقُلْتُ لَهُ: لَا، قَالَ: هَلْ أَنْتَ مُعْطِيَّ سَيْفَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ فَإِنِّي أَخَافُ أَنْ يَغْلِبَكَ الْقَوْمُ عَلَيْهِ، وَايْمُ اللَّهِ لَئِنْ أَعْطَيْتَنِيهِ لَا يُخْلَصُ إِلَيْهِ أَبَدًا حَتَّى يُبْلَغَ إِلَى نَفْسِي، إِنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خَطَبَ بِنْتَ أَبِي جَهْلٍ عَلَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، فَسَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَخْطُبُ النَّاسَ فِي ذَلِكَ عَلَى مِنْبَرِهِ هَذَا وَأَنَا يَوْمَئِذٍ مُحْتَلِمٌ، فَقَالَ: "إِنَّ فَاطِمَةَ مِنِّي، وَأَنَا أَتَخَوَّفُ أَنْ تُفْتَنَ فِي دِينِهَا"، قَالَ: ثُمَّ ذَكَرَ صِهْرًا لَهُ مِنْ بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ فَأَثْنَى عَلَيْهِ فِي مُصَاهَرَتِهِ إِيَّاهُ فَأَحْسَنَ، قَالَ: "حَدَّثَنِي فَصَدَقَنِي، وَوَعَدَنِي فَوَفَّى لِي، وَإِنِّي لَسْتُ أُحَرِّمُ حَلَالًا وَلَا أُحِلُّ حَرَامًا، وَلَكِنْ وَاللَّهِ لَا تَجْتَمِعُ بِنْتُ رَسُولِ اللَّهِ وَبِنْتُ عَدُوِّ اللَّهِ مَكَانًا وَاحِدًا أَبَدًا".

دعلی بن حسین نه روایت دې فرمائی کله چه هغه خلق دیزیدنه واپس مدینی ته راغلل په کوم وخت کښې چه سیدنا حسین خانه شهید شوې وو نوددوی سره مسور بن مخرمة ملاقات اوکړو او وئې وئیل اکه چرې زماسره دی څه کاروی نو اووایه ماورته: اووئیل څه کارخونشته مسور داخبره دوباره بیا اوکړه ماهغه ته اووئیل دنبی علیه السلام توره به رانکړې زماسره دا ویره ده چه چرته خلق ئې درنه وانخلي، په و پله مې دی قسم وی که چرې دغه توره ته ماته راکړې نوزمانه ئې هیڅوک نشته آخستل ترڅوچه زه ژوندې یم، اوعلی نه دفاعنه رضی الله عنها په موجودګئ کښې دابوجهل لور ته دنکاح پیغام لیږلې وو اومادنبی علیه السلام نه په دې باره کښې واوریدل کله چه په ممبرئې خلقوته خطبه ورکوله فاطمه زمادجګرټوکړه ده اوزماسره دا ویره ده هسې نه چه ددې په دین کښې فساد راشی ددې نه پس نبی علیه السلام دخپل بل زوم کوم چه دبنی عبدشمس قبیلې والاوو دهغه حال ئې بیان کړو(یعنی عثمان بن عفان نه) اودهغه ئې ډیر اعلی تعریف اوتوصیف بیان کړو او وې وئیل کله چه هغه ماته څه خبره کړیده نوریښتیائې وئیلی دی اوچه کله ئې راسره وعده کړی ده نوهغه ئې پوره کړی ده اوزه حلال نه حراموم اونه حرام حلالوم(یعنی ددویمی نکاح نه منع نه کوم ځکه چه شرعا دڅلورو

[1]): صحیح البخاري/الجمعة ۲۹(۹۲۶)، فرض الخمس ۵(۳۱۱۰)، المناقب ۱۲(۳۷۱۴)، ۱۶(۳۷۲۹)، النکاح ۱۰۹(۵۲۳۰)، الطلاق ۱۳(۵۲۷۸)، صحیح مسلم/فضائل الصحابة ۱۴(۲٤٤۹)، سنن ابن ماجه/النکاح ۵٦(۱۹۹۹)، سنن النسائي/ الکبری/ المناقب(۸۳۷۲)، ( تحفة الأشراف: ۱۱۲۷۸)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/المناقب ٦۱(۳۸٦۷)، مسند احمد(۳۲٦/٤)(صحیح)

ښځوپوري نکاح درست ده، لیکن په الله مې دې قسم وي داسې هم نشي کیدې چه دالله درسول لور اودالله دشمن لور په یوځائې کښې جمع شي (یعني دابوجهل لور اود نبي ﷺ لوردعلي فله په نکاح کښې جمع کیدل).

## د حدیث تشریح :

د دې حدیث راوي علي بن الحسین بن علي یعني امام زین العابدین دی کوم چه د سیدنا علي ؓ نمسې وي هغه روایت کوي چه کله مونږ د یزید د خوا یعني د شام نه مدینې منورې ته راروان وو، د سیدنا حسین ؓ د قصې نه پس (کوم چه په یوم عاشورا ۶۱ هـ کښې راپیښ شوې وو) نو په لاره کښې د هغه د مسور بن مخرمه سره او د هغوی سیدنا علي بن الحسین نه د دلدارئ په طور عرض اوکړو، هل لک الی من حاجة؟ حضرت که څه خدمت وي نو زه حاضر یم، حکم اوفرمایئ. علي وائي چه ما اووې چه نه هیڅ حاجت نشته.[1] (قال هل انت معطی سیف رسول الله صلی الله علیه وسلم فانی اخاف ان یغلبک القوم علیه) سیدنا مسور بن مخرمه ؓ ئې د مزید زړه ساتلو دپاره اوفرمائیل : چه تا سره چه د رسول الله ﷺ کومه مشوره توره ده (چه د هغې نوم ذوالفقار دې) ایا تاسو هغه ماته حواله کولې شئ (د حفاظت دپاره) څکه چه ماته خطره ده چه چرته دا بنو امیه دا ستاسو نه وانخلي، او قسم په الله زما دا حال دې چه که دا تاسو ماته راکړه نو بیا هغې ته د چا رسیدل ممکن نه دی مګر دا چه زه قتل کړې شم. تر اوسه پورې دا مکالمه او خبرې ظاهره ده چه د اهل بیت خدمت او خوا خاطر کښې ده چه دې وخت کښې دا حضرات انتهائي مظلوم او بې وسئ حالت کښې وو، خصوصا چه هر کله دا ملاقات هم په واپسئ باندې په لاره کښې کیدلو، وړاندې حضرت مسور ؓ یوه زړه واقعه بیانوي.

هغه دا چه سیدنا علي ؓ چه کله د سیده فاطمه ؓ د هغه په نکاح کښې د کیدو باوجود د ابو جهل لور[2] ته د نکاح پیغام اولیږلو (چه هغې سره ظاهره ده رسول الله ﷺ ته تکلیف اورسیدلو) نو ما د رسول الله ﷺ نه په دې منبر شریف باندې خطاب کولو سره واوریدل چه فاطمه زما نه ده او د دې نکاح ثاني نه (چه د هغې علي اراده فرمائیلې ده) زما ویره ده چه هغه د خپل دین په باره کښې په فتنه کښې اخته نه شي (په ضرتین کښې چه کوم یو غیرت وي او بعض نا مناسب خبرې راپیښیږي د هغې طرف ته اشاره ده) هم دغه شان په دې موقع باندې رسول الله ﷺ خپل زوم ابو العاص بن الربیع ؓ هم ذکر فرمائیلې دې او رسول الله ﷺ ئې تعریف اوکړو، د رشته دارئ د لحاظ نه، او فرمائي (حدثني فصدقني ووعدني

[1]) زه وایم چه په دې باندې ما هغه قصه رایاده شوه چه کله ابراهیم ؑ اور ته د غورځولو دپاره بوتلې شو نو هغه وخت د هغه په خدمت کښې سیدنا جبرائیل ؑ راغلو او هم دا عرض نې اوکړو چه زه ستا د خدمت دپاره حاضر یم که څه حاجت وي نو هغه راته بیان کړئ نو په دې باندې ورته هغه اوفرمائیل : اما الیك فلا، چه ستا نه مې هیڅ حاجت نشته، الله اکبر څه عجیب شان دی د انبیاء علیهم الصلاة والسلام)

[2]) د هغې په نوم کښې اختلاف دې په بذل کښې مختلف نومونه لیکلې شوې دی. قیل اسمها جویریه، وهو الاشهر، وقیل العوراء، وقیل الحیفاء وقیل جمیلة)

فوفانی ﴾د دې یوې خاص واقعې طرف ته هغه اشاره اوفرمائیله، وړاندې راځی ﴿وانی لست احرم حلالا ولا احل حراما ولکن والله لا تجمع بنت رسول الله صلی الله علیه وسلم وبنت عدو الله مکانا واحدا ابدا ﴾رسول الله ﷺ سیدنا علی رضي الله عنه په دې پیغام نکاح باندې نکیر اوفرمائیلو، دې باره کښې مزید وضاحت فرمائی، او د دې جملې تشریح کښې د شارحینو دوه اقوال دی، اول دا چه د دې نکاح ثانی تحریم زما د طرف نه نه دې بلکه د الله پاک د طرف نه دې او دا چه د تحریم او تحلیل مدار په ما باندې نه دې، دویم مطلب دا دې چه اگر چه نکاح ثانی فی حد ذاته جائز او حلال ده خو ځونکه زما د تکلیف سبب دې نو د دې عارض د وجې نه د هغه په حق کښې حلال نه دې ځکه چه نبی ته تکلیف ورکول حرام دی، هم دغه شان فرمائی چه دا څنگه کیدې شی چه د رسول الله ﷺ لور او د عدوالله دواړو لونړه دې جمع شی.

## هغه قصه چه د هغې طرف ته په حدیث کښې اشاره ده:

هغه واقعه چه د هغې حواله پورته ورکړې شوې ده لکه چه په کتب حدیث وسیر کښې مشهوره ده چه د رسول الله ﷺ مشره لور سیده زینب رضي الله عنها د ابو العاص بن الربیع رضي الله عنه د اسلام قبلولو نه مخکښې هم د هغه په نکاح کښې وه او دا ابو العاص بن الربیع رضي الله عنه د اسلام قبلولو نه مخکښې د هغه په نکاح کښې وه، او دا ابو العاص د مشرکین مکه سره چونکه په جنگ بدر کښې شریک وو او نور د بدر قیدیان ورسره قید شوې وو، د بدر د قیدیانو په باره کښې فیصله اوشوه چه هغوی کښې به د هر یو نه د هغه د حیثیت مطابق فدیه وصول کولې شی او هغه به پریخودلې شی، په دې فیصله باندې ابو العاص رضي الله عنه خپله فدیه پیش کړې وه او هغه هغه امیل وو کوم چه خدیجة الکبری رضي الله عنها سیده زینب رضي الله عنها ته په جهیز کښې ورکړې وو، چه کله پرې د رسول الله ﷺ نظر پریوتلو نو هغه ډیر زیات خفه شو نو رسول الله ﷺ د خپلو ملگرو سره مشوره کولو نه پس هغه امیل هغه ته واپس کړو او د هغه نه ئې دا وعده واخستله چه هغه به مکې ته تلو سره زینب رضي الله عنها لره مدینې ته لیږی، د بل طرف نه ورپسې رسول الله ﷺ خپل دوه ملگری اولیږل چه هغوی مکې ته نژدې لاړ شی او زینب د خپل ځان سره راولی، پس هم دغه شان اوشوه په دې کښې نورې هم څه خبرې راپیښې شوې وې کوم چه د حدیث او سیرت په کتابونو کښې مذکور دی، په دې خطبه کښې رسول الله ﷺ د ابو العاص رضي الله عنه د وعدې وفا کولو تعریف کړې وو هغه هم دا دې.

د دې نه پس ځان پوهه کړئ چه سیدنا مسور بن مخرمه رضي الله عنه په دې موقع باندې د سیدنا علی بن الحسین رضي الله عنه په وړاندې دا د پیغام نکاح والا واقعه ولې او په څه مناسبت سره بیان اوفرمائیلو په دې کښې د بخاری د شارحینو رائې مختلف منقول دی کومه چه حضرت په بذل المجهود کښې ذکر فرمائیلې ده، د مناسبت یوه وجه چه هغه ډیره ظاهره ده دا بیان کړې شوې ده چه سیدنا مسور بن مخرمه رضي الله عنه دې طرف ته اشاره کول غوښتل چه څنگه د رسول الله ﷺ مقصود د فاطمې رضي الله عنها زړه ساتل او د هغې خاطر کول وو هم دغه شان زه هم دې وخت کښې ستاسو یعنی اهل بیت په خاطر کښې دا هر څه عرض کوم.

والحدیث اخرجه احمد والبخاری ومسلم(المنهل)

[۲۰۷۰](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ وَ أَيُّوبَ، عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ بِهَذَا الْخَبَرِ، قَالَ: فَسَكَتَ عَلِيٌّ عَنْ ذَلِكَ النِّكَاحِ.

ايوب دابن ابی مليکه نه مذکوره روايت نقل کړې دې مګردا اضافه ئې کړيده، راوی وائی چه علی نه ددې نکاح کولونه تيرشو (يعنی منع شو.)

## شرح السند:

﴿وعن ايوب﴾ ددې عطف په زهری باندې دې لهذا دحديث دوه طريق شو، معمر عن الزهری عن عمرو، او معمر عن ابن ابی مليکه) اوس دا چه د دې نه وړاندې سند څنګه دې نو ظاهره ده چه دا دواړه (عروه او ابن ابی مليکة) د مسوربن مخرمه نه روايت کوی، **كذا في البذل والمنهل**

[۲۰۷۱](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، وَقُتَيْبَةُ بْنُ سَعِيدٍ الْمَعْنَى، قَالَ أَحْمَدُ: حَدَّثَنَا اللَّيْثُ، حَدَّثَنِي عَبْدُ اللَّهِ بْنُ عُبَيْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ الْقُرَشِيُّ التَّيْمِيُّ، أَنَّ الْمِسْوَرَ بْنَ مَخْرَمَةَ حَدَّثَهُ، أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ، يَقُولُ: "إِنَّ بَنِي هِشَامِ بْنِ الْمُغِيرَةِ اسْتَأْذَنُونِي أَنْ يُنْكِحُوا ابْنَتَهُمْ مِنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ، فَلَا آذَنُ، ثُمَّ لَا آذَنُ، ثُمَّ لَا آذَنُ، إِلَّا أَنْ يُرِيدَ ابْنُ أَبِي طَالِبٍ أَنْ يُطَلِّقَ ابْنَتِي وَيَنْكِحَ ابْنَتَهُمْ، فَإِنَّمَا ابْنَتِي بَضْعَةٌ مِنِّي يُرِيبُنِي مَا أَرَابَهَا وَيُؤْذِينِي مَا آذَاهَا". وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ أَحْمَدَ.

دمسور بن مخرمه نه روايت دې فرمائی چه ماد نبی عليه السلام نه اوريدلی وو چه پخپل محمبرئې فرمائيل بن هشام بن مغيره زمانه اجازت وغوښتو چه دخپل لورنکاح دعلی نه سره وکړی او زه هغوی ته هيڅ کله ددې اجازت نه ورکوم، ددې اجازت نه ورکوم، ددې اجازت نه ورکوم، مګرداکيدې شی چه علی ماه مالورته طلاق ورکړی اوددوی دلورسره نکاح وکړی زمالور فاطمه زمادجګرتوکړه ده کومه خبره چه فاطمی ته تکليف ورکوی هغه ماته هم تکليف راکوي، اوداالفاظ داحمد بن يونس دروايت دي.

**قوله:** ﴿ان بنی هشام بن المغيرة استاذنوا ان ينکحوا ابنتهم﴾ دا بنو هشام د ابو جهل رور دې او د ابوجهل د کومې لور د نکاح ذکر چه دلته شروع دې دا د هغې تره دې، هشام د ابوجهل د پلار نوم دې، حافظ ليکلې دی چه د ابوجهل دوه رونړه حارث بن هشام او سلمه بن هشام د فتح مکه په کال باندې اسلام راوړې دې، هم دغه شان حافظ فرمائی چه د دې بنو هشام په مصداق کښې عکرمه بن ابی جهل هم داخل دې، او اګر چه خپله ابو جهل هم په بنو هشام کښې دې خو هغه په دوی کښې داخل په دې وجه نه دې چه هغه د دې واقعې نه مخکښې جنګ بدر کښې هلاک شوې وو.

---

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۱۲۷۸)(صحيح)

(2): صحيح البخاري/المناقب ۱۲(۳۷۱٤)، صحيح مسلم/فضائل الصحابة ١٤(٢٤٤٩)، سنن الترمذي/المناقب ٦١(٣٨٦٧)، سنن النسائي/الكبرى/ المناقب(۸۳۷۰، ۸۳۷۱)، (تحفة الأشراف: ۱۱۲٦۷)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۲۸/٤)(صحيح)

## بَابٌ فِي نِكَاحِ الْمُتْعَةِ

### باب: د متعې بيان

ځان پوهه کړه چه د نکاح بنا او وضع په دوام او بقاء باندې ده، يعنی نکاح او ازدواجی رشته د څه عارضی تعلق نوم نه دې بلکه د ژوند مضبوط تعلق او رشته ده، دا جدا خبره ده چه د ضرورت او مجبورئ په وخت انسان دا منقطع کولې شی د طلاق په ذريعې سره، لهذا که د يو نکاح بنياد په دوام او استقرار باندې نه وی نو دا به شرعی نکاح نه وی او نه د داسې نکاح شريعت مطهره اجازت ورکړې دې هم په دې وجه په شريعت اسلاميه کښې متعه نکاح موقت دواړو ته حرام او ناجائز کړې شوې دې.

### په متعه او نکاح موقت کښې فرق:

د دې نه پس چه فقهاء کرامو د متعه او نکاح موقت کوم تعريف بيان فرمائيلې دې هغه واورئ! په هدايه کښې ئې تعريف دا دې: ﴿وهو ان يقول لامراءة اتمتع بک کذا مدة بکذا من المال﴾(زه به ستا نه د دومره مال په عوض کښې دومره موده فائده اوچتوم) او د نکاح موقت تعريف داسې دې ﴿مثل ان يتزوج امراءة بشهادة شاهدين الى عشرة ايام﴾په دې باندې شارح هدايه بابرتی ليکی چه د مصنف د عبارت نه معلوميږی چه په متعه او نکاح موقت کښې دوه فرقونه دی اول دا چه نکاح متعه لفظ تمتع يا استمتاع سره خاص دې او نکاح موقت لفظ نکاح يا تزوج سره وی، او بل فرق دا چه په نکاح موقت کښې شهود د شاهدين وی په متعه کښې نه، بله دا چه په نکاح موقت کښې موده معين وی په خلاف د متعه چه په هغې کښې عام دې که معين وی لکه ﴿عشرة ايام﴾يا غير معين لکه اياما، خو په دې ذکر شوی فرق باندې شيخ ابن الهمام رحمه الله بحث کړې دې هغه داسې فرمائی چه متعه عام ده د ماده تمتع کيدل په دې کښې ضروری نه دی، لهذا نکاح موقت د افراد متعه نه دې، پس حاصل دا چه د نکاح متعه مصداق هغه نکاح دې چه په هغې کښې تابيد مقصود نه وی، که په لفظ د تمتع سره وی يا تزوج او نکاح سره يا بغير د دې الفاظو نه وی، که احضار شهود وی يا نه وی.

### متعه په باره کښې په روايات مختلفه کښې توجيه:

ځان پوهه کړه چه نکاح متعه د هغه احکاماتو نه ده چه په هې کښې تعدد نسخ واقع شوې دې، د اسلام په اوله زمانه کښې دا جائز کړې شوې وه، د مضطر دپاره د اکل ميتة په شان بيا دا حرام کړې شوه، او د دې په حرمت باندې اجماع منعقد شوه سواء د يوې طائفې مبتدعې شيعه نه، حضرت په بذل المجهود کښې ليکی چه د اسلام په ابتداء کښې دا جائز کړې شوې وه او بيا د خيبر په زمانه کښې او د هغې نه روستو منسوخ کړې شو، د دې نه روستو بيا دوباره دا مباح کړې شو، په غزوه فتح مکه کښې، بيا دوباره نسخ واقع شوه د هميش هميش دپاره، په شروع کښې بعض صحابه کرام د دې د اباحت قائل وو د عدم بلوغ د وجې نه بيا چه کله هغه ته نسخ اورسيده نو هغه د اباحت نه رجوع اوکړه او د دې په حرمت باندې اجماع منعقد شوه، البته روافض د دې د اباحت قائل پاتې شوې دی، حضرت ليکی

تعجب دې په دې روافضو باندې چه دوی د دې د اباحت څنګه قائل دی حال دا چه هغوی خان منسوب کوی د سیدنا علی رضی الله عنه طرف ته او د علی رضی الله عنه نه د دې حرمت مؤبده ثابت دې، پس دا د نفسانی خواهش او شیطانی دهوکې نه علاوه هیڅ هم نه دی، او دهغوی خو اکثر مذهبی مسائل هم دغه شان دی او د متعه بحث او مسئله اوږده ده کومه چه په مطولات کښې ذکر شوې ده. اهـ او حافظ صاحب فرمائی چه د امام شافعی رحمه الله نه منقول دی چه په اسلام کښې یو څیز هم داسې نه دې چه په هغې کښې دوه کرته تحلیل او تحریم واقع شوې وی سوا د متعې نه،([1]) او بعض خو داسې وئیلې دی چه په دې کښې درې کرته نسخ واقع شوې ده او د دې نه زیات هم وئیلې شوې دی او ددې تائید د اختلاف روایات نه کیږی کوم چه د تحریم دوخت په باره کښې راغلې دی، بیا وړاندې حافظ رحمه الله فرمائی چه د ټول نه غوره خبره هغه ده کوم چه بعض محققینو اختیار کړې ده چه د متعه علت چه کله هم راغلې دې د سفر په حالت کښې راغلې دې. د حضر په حالت کښې کله هم د دې اباحت نه دې راغلې، پس د ابن مسعود رضی الله عنه حدیث دې چه ﴿کنا نغزو ولیس لنا نساء فرخص لنا ان ننکح﴾ الی اخر ما فی الحل المفهم.

(ولا یخفی علیک ما تقدم فی الجزء الاول من الدر المنضود فی باب ترک الوضوء مما مست النار ما نقل عن بعضهم من تعدد النسخ فی احکام عدیدة. ۱۲)

د دې قسم احکام چه په هغې کښې تعدد نسخ دې هغه څلور دی. قبله، متعه، لحوم حمر اهلیه، الوضوء مما مست النار.

## مسلک ابن عباس :

هم دغه شان په صحابه کرامو کښې د ابن عباس رضی الله عنه په باره کښې مشهوره ده چه هغه د دې د اباحت قائل وو، امام نووی رحمه الله فرمائی ﴿وروی عنه انه رجع عنه﴾ او په الحل المفهم کښې دې باره کښې لیکلې دی چه بعض علماء کرام د هغه رجوع نه منی بلکه هغوی د هغه مسلک اباحت لیکلې دې، نور تفصیل دې هم هلته اوکتلې شی.

دا دې هم په ذهن کښې وی لکه چه مخکښې تیر شو چه دلته دوه څیزونه دی یو نکاح متعه دویم نکاح موقت کښې وی هغې ته کالعدم منلو سره اصل نکاح جائز کړې ده او دا شرط فاسد ئې لغو کړو څکه چه نکاح په هغه عقود کښې دې کوم چه د شرط فاسد د وجې نه فاسد نه وی بلکه شرط فاسد لغو کیږی.

[۲۰۷۲]([2]) حَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَارِثِ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، قَالَ: "كُنَّا عِنْدَ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَتَذَاكَرْنَا مُتْعَةَ النِّسَاءِ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ: رَبِيعُ بْنُ سَبْرَةَ: أَشْهَدُ عَلَى أَبِي أَنَّهُ حَدَّثَ،

---

[1]) ولا یخفي علیکم ما تقدم في الجزء الاول من الدر المنضود في باب ترک الوضوء مما مست النار ما نقل عن بعضهم من تعدد النسخ في احکام عدیدة،۱۲، داسې قسم احکام چه په هغې کښې تعدد د نسخ وی هغه څلور دی: قبله، متعه، لحوم حمر اهلیه، الوضوء مما مست النار.

[2]): صحیح مسلم/النکاح ۳(۱۴۰۶)، سنن النسائي/النکاح ۷۱(۳۳۷۰)، سنن ابن ماجه/النکاح ٤٤(۱۹٦۲)،( تحفة الأشراف: ۳۸۰۹)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳/٤۰٤، ٤۰٥)، سنن الدارمي/النکاح ۱٦(۲۲٤۲)

أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهَا فِي حَجَّةِ الْوَدَاعِ".

امام زهری رحمه الله نه روایت دي فرمائی چه مونږ دعمربن عبدالعزیزسره وو په دي وخت کښي دهغه په وړاندي دمتعی ذکروشو هلته ربیع بن سبره موجود وو هغه اووئیل مادخپل پلار نه اوریدلی دی چه نبی علیه السلام په حجة الوداع کښي دمتی نه منع فرمائیلی ده.

﴿فقال رجل يقال له ربيع بن سبرة اشهد على ابى انه حدث ان رسول الله صلى الله عليه وسلم نهى عنها فى حجة الوداع﴾

ځان پوهه کړه چه سبره بن معبد الجهنی چه دا حدیث په صحیح مسلم کښي هم دي او په هغي کښي په ځائي د حجة الوداع، غزوة الفتح دي لهذا صحیح هم هغه ده او د ابوداود دا روایت مرجوح دي او که بالفرض حدیث صحیح اومنلي شی نو بیا به د هغي تاویل داسي کولي شی چه د ت حریم نه مراد اعلان تحریم دي نه نفس تحریم څنګه رسول الله علیه السلام د حجة الوداع په خطبو کښي د نورو احکام شرعیه اعلان او اظهار فرمائیلي وو، هم دغه شان د دي متعه حرمت هم اعلان فرمائیلي دي.

والحديث اخرجه مسلم والنسائى وابن ماجة بنحوه اتم منه.

[۲۰۷۳](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ رَبِيعِ بْنِ سَبْرَةَ، عَنْ أَبِيهِ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "حَرَّمَ مُتْعَةَ النِّسَاءِ".

ربیع بن سبره دخپل پلار نه روایت کوی فرمائی چه رسول پاک ق متعه بالکل حرامه ګرځولي ده.

## بَابٌ فِي الشِّغَارِ
### باب د شغار نکاح بیان

[۲۰۷۴](2) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ. ح وحَدَّثَنَا مُسَدَّدُ بْنُ مُسَرْهَدٍ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، كِلَاهُمَا عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ "نَهَى عَنِ الشِّغَارِ". زَادَ مُسَدَّدٌ فِي حَدِيثِهِ: قُلْتُ لِنَافِعٍ: مَا الشِّغَارُ؟ قَالَ: يَنْكِحُ ابْنَةَ الرَّجُلِ وَيُنْكِحُهُ ابْنَتَهُ بِغَيْرِ صَدَاقٍ، وَيَنْكِحُ أُخْتَ الرَّجُلِ وَيُنْكِحُهُ أُخْتَهُ بِغَيْرِ صَدَاقٍ.

دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما نه روایت دي فرمائی چه نبی علیه السلام دشغار دنکاح نه منع فرمائیلی ده، دمسدد په روایت کښي دا اضافه ده چه مادنافع نه تپوس اوکړو شغارڅه شي وی هغه اووئیل شغار دادي چه یوکس بل کس ته خپله لور په دي شرط ورکړی چه هغه بل کس به هم خپله لور ده ته به طور دعوض سره ورکوی یا په دي طریقي سره دخور ورکول او بیا د دواړوپه مینځ کښي مهر مقرر نکړي شي

شغار د هغه نکاحونو نه دي کومه چه د جاهلیت په زمانه کښي رواج وه او د شغار

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۳۸۰۹) (صحيح)

(2): صحيح البخاري/النكاح ۲۸ (۵۱۰۹)، والحيل ٤ (٦٩٦٠)، صحيح مسلم/النكاح ۷ (۱٤۱۵)، سنن الترمذي/النكاح ۳۰ (۱۱۲٤)، سنن النسائي/النكاح ٦۰ (۳۳۳٦)، ٦۱ (۳۳۳۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٦ (۱۸۸۳)، (تحفة الأشراف: ۸۱٤۱، ۸۳۲۳)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النكاح ۱۱ (۲٤)، مسند احمد (۲/۷، ۱۹، ٦۲)، سنن الدارمي/النكاح ۹ (۲۲۲٦) (صحيح)

صورت به دا وو چه يو سړی به اوئيل چه زه د خپلې لور نکاح تاسره کوم په دې شرط چه ته به د خپلې لور نکاح ما سره کوې په داسې طريقه چه دا خپل مينځ کښې لين دين به د نکاح عوض او مهر شي او د دې نه علاوه به بل مستقل مهر نه وي.
د شغار لغوي معنی د رفع ده، وئيلې شي شغر الکلب چه کله هغه د متيازو دپاره خپله خپه اوچته کړي. نو ګويا په نکاح شغار کښې د متعاقدين نه هر سړی بل ته وئيل چه ته زما د لور خپه نه شي اوچتولې، تردې چه زه ستا د لور خپه اوچته نه کړم، او وئيلې شوې دی چه دا ماخوذ دې د ﴿شغر البلد﴾ نه چه کله هغه خالي او خراب شي. د مناسبت وجه ئې ظاهره ده چه دا نکاح هم د مهر نه خالي وي.

## د شغار په باره کښې مذاهب ائمه:

د دې نکاح په احاديثو کښې نهي راغلې ده خو په دې کښې اختلاف دې چه که يو سړي نکاح شغار اوکړي نو د هغې د برابريدو څه شکل دې يا نه؟ د امام شافعي رحمه الله په نزد دا نکاح باطل دې او د احنافو په نزد خو به نکاح صحيح شي خو مهر مثل به واجب وي. وعن احمد روايتان مثل الشافعية والحنفية، او د امام مالک رحمه الله نه په دې کښې دوه روايتونه دی يو دا چه مطلقا واجب الفسخ ده او دويم روايت دا چه صرف قبل الدخول واجب الفسخ دې.

[۲۰۷۵](¹) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا يَعْقُوبُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبِي، عَنْ ابْنِ إِسْحَاقَ، حَدَّثَنِي عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ هُرْمُزَ الْأَعْرَجُ، أَنَّ الْعَبَّاسَ بْنَ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْعَبَّاسِ أَنْكَحَ عَبْدَ الرَّحْمَنِ بْنَ الْحَكَمِ ابْنَتَهُ وَأَنْكَحَهُ عَبْدُ الرَّحْمَنِ ابْنَتَهُ وَكَانَا جَعَلَا صَدَاقًا، فَكَتَبَ مُعَاوِيَةُ إِلَى مَرْوَانَ يَأْمُرُهُ بِالتَّفْرِيقِ بَيْنَهُمَا، وَقَالَ فِي كِتَابِهِ: "هَذَا الشِّغَارُ الَّذِي نَهَى عَنْهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دعبدالرحمن بن هرمز اعرج نه روايت دې فرمائي چه عباس بن عبدالله بن عباس رضي الله عنهما خپله لور عبدالرحمن بن حکم ته په نکاح ورکړه او عبدالرحمن خپله لور عباس ته په نکاح ورکړه اوهمدغه نکاح ورکول مهر وګنړلې شول، معاويه چه مروان ته اوليکل چه ددې دواړو نکاح ختم کړه او ورته ئې اوليکل دا هغه شغاردې دکوم نه چه نبي عليه السلام ممانعت فرمائيلې دې.
يعني عباس بن عبدالله د عبدالرحمن بن الحکم نکاح اوکړه د خپلې لور سره او عبدالرحمن خپله نکاح اوکړه د عباس بن عبدالله سره او حال دا چه هغه مهر هم مقرر کړې دې، چه کله د دې خبر سيدنا معاويه رضي الله عنه ته اوشو نو هغه مروان ته خط اوليکلو چه د دې دواړو ترمينځه جدائي راوله ځکه چه هم دا شغار دې د کوم نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم منع فرمائيلې ده.
**تنبيه**: دا خو د هغه حديث تشريح ده خو خبره ظاهره ده چه پورته ذکر شوې د شغار صورت اصطلاحي نه دې کوم چه ممنوع دې، ممنوع هغه وخت وي چه کله په دې کښې صداق نه شي متعين کولې حال دا چه دلته تصريح ده ﴿وکانا جعلا صداقا واذ ليس فليس﴾ لهذا دا به وئيلې شي چه دا د معاويه رضي الله عنه خپل اجتهاد دې، والله تعالی اعلم(منهل)
او صاحب منهل په مضمون سابق باندې دا اضافه کړې ده او ممکنه ده چه داسې اوئيلې

¹): تفرد به أبو داود، مسند احمد(۹۴/۴)،( تحفة الأشراف: ۱۱۴۲۹)(حسن)

شي چه د ﴿جعلا﴾ مفعول اول محذوف دې او ﴿صداقا﴾ مفعول ثانی دې تقدير کلام داسې دې، ای کانا جعلا انکاح کل واحد منهما الاخرابنته صداقا. په دې صورت کښې د صداق مصداق نفس نکاح دې لکه چه په شغار کښې وی. والاثر اخرجه ایضا احمد والبیهقی، کذا فی المنهل.

## بَابٌ فِي التَّحْلِيلِ

### باب: د حلالې بيان

يعنی کوم سړې چه د مطلقه ثلاث سره په دې وجه نکاح کوی د دې دپاره چه هغه ته طلاق ورکړی او هغه زنانه د زوج اول دپاره حلاله شي.

[۲۰۷۶](۱) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، حَدَّثَنَا زُهَيْرٌ، حَدَّثَنِي إِسْمَاعِيلُ، عَنْ عَامِرٍ، عَنِ الْحَارِثِ، عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ إِسْمَاعِيلُ: وَأُرَاهُ قَدْ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَعَنَ اللَّهُ الْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ".

دعلی رضی الله عنه نه روایت دې (اسماعيل وئيلی دی زما خيال دې چه شابی دا حديث مرفوع بيان کړې دې) فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی الله تعالی په حلاله کونکی کس او دچا دپاره چه حلاله کيږی په دواړو باندې لعنت وئيلې دې.

په دې حديث کښې په محلل او محلل له باندې لعنت کړې شوې دې، د تحليل معنی مونږ پورته ليکلې ده.

ځان پوهه کړه چه د نکاح محلل دوه صورتونه دی، يو نکاح بنية التحليل، دويم نکاح بشرط التحليل، د دې نه پس پوهه شئ، د لعنت مقتضی په ظاهره کښې حرمت او عدم جواز دې لهذا داسې نه دی کول پکار، اوس دا چه که چا باوجود د نهی نه اوکړل نو دا نکاح به معتبر وی يا نه؟

### په مسئلة الباب کښې مذاهب ائمه:

په دې کښې مذاهب ائمه مختلف دی، د امام مالک او احمد په نزد نکاح محلل مطلقا باطل ده يعنی د دې دواړه صورتونه، او د امام شافعی رحمه الله په نزد بنية التحليل جائز او بشرط التحليل فاسد ده، او د امام ابوحنيفه رحمه الله نه په دې کښې درې روايات دی يو د امام مالک او احمد په شان مطلقا باطل او هم دا مسلک دې د صاحبينو، او دويم روايت هغه دې کوم چه د امام شافعی رحمه الله د مسلک مطابق دې او دريم دا دې چه مطلقا جائز دې البته شرط باطل دې لهذا د هغه دپاره جائز ده چه هغه په خپله نکاح کښې باقی اوساتی، او که طلاق ئې ورکړو نو د اول دپاره به حلاله شی (کذا فی هامش الکوکب عن العينی)

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة (المنذری)

(۱): سنن الترمذي/النكاح ۲۷(۱۱۱۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ۳۳(۱۹۳۵)، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۳٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(۸۷/۱، ۱۰۷، ۱۲۱، ۱۵۰، ۱۵۸)(صحيح)

[۲۰۷۷](1) حَدَّثَنَا وَهْبُ بْنُ بَقِيَّةَ، عَنْ خَالِدٍ، عَنْ حُصَيْنٍ، عَنْ عَامِرٍ، عَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ، عَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: فَرَأَيْنَا أَنَّهُ عَلِيٌّ عَلَيْهِ السَّلَام، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ.

حارث بن اعورهم ديوصحابي نه ددې روايت په شان روايت نقل کوي امام شابي اوفرمائيل ددې صحابي نه مراد علي رضي الله عنه دې.

**تنبيه:** د امام ترمذي رحمه الله د کلام نه معلوميږي چه په دې مسئله کښې امام شافعي د امام احمد سره دې، حال دا چه داسې نه ده لکه چه د مخکښې مذاهبو نه معلوميږي، د دې نه پس ځان پوهه کړه چه صاحب هدايه د دې حديث نه د نکاح بشرط التحليل په کراهت باندې استدلال کړې دې، په دې باندې علامه زيلعي رحمه الله فرمائي خو د ظاهر حديث مقتضي تحريم دې کما هو مذهب احمد. بيا هغه وړاندې دا خبره بيان فرمائيلې ده چه د صاحب هدايه خبره هم صحيح کيدې شي ځکه چه په حديث کښې دغه شان نکاح کونکي ته محلل وئيلې شوې دې او ظاهره ده چه محلل به هغه داسې وخت کښې وي چه کله نکاح صحيح اومنلې شي او هم دا خبره حضرت ګنګوهي په **الكوكب الدري** کښې ليکلې ده، خو فريق مخالف دا حديث د خپل مذهب موافق ګڼړلو سره دا وائي چه په حديث شريف کښې محلل هغه سړي ته د ګمان په لحاظ سره وئيلې شوې دې ځکه چه هغه دا نکاح صحيح ګڼړي. والله تعالى اعلم. خو دا دې هم واضح وي چه دا حديث په خپل عموم باندې بالکل هم نه شي کيدې او نه هر يو محلل مستحق د لعنت دې لکه چه علامه شوکاني هم دا مضمون واضح کړې دې کوم چه حضرت شيخ په هامش کوکب کښې نقل کړې دې لهذا مستحق د لعن به هم هغه محلل وي چه د هغه مقصود په دې نکاح سره صرف قضاء شهوت وي د څو ورځو دپاره، او کوم سړی چه دا نکاح د الله پاک د رضا دپاره د خپل مسلمان رور د اعانت په طور اوکړه نو د هغه په باره کښې حضرت ګنګوهي فرمائي چه موږ د الله پاک نه اميد لرو چه هغه به په دې وعيد کښې داخل نه وي اهـ بلکه صاحب لمعات خو د بعض علماء نه د هغه د ماجور کيدو امکان ليکلې دې د خلوص نيت په وخت باندې لاجل اعانة المسلم.

## بَابٌ فِي نِكَاحِ الْعَبْدِ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ

### باب: بغير د رضا د مالک نه د غلام د نکاح کولو بيان

[۲۰۷۸](2) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، وَعُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ وَهَذَا لَفْظُ إِسْنَادِهِ، وَكِلَاهُمَا عَنْ وَكِيعٍ، حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ صَالِحٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَقِيلٍ، عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهِ فَهُوَ عَاهِرٌ".

دجابر رضي الله عنه نه روايت دې فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دي هريوغلام چه دخپل مالك داجازت نه بغير نکاح وکړی نودې زناکاردې(يعنی دمالك داجازت نه بغير دغلامانو دپاره

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۱۰۰۳٤)(صحيح)

(2): سنن الترمذي/النكاح ۲۰(۱۱۱۱)، (تحفة الأشراف: ۲۳٦٦)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/النكاح ٤۳(۱۹۵۹)، مسند احمد(۳/۳۰۱، ۳۷۷، ۳۸۲)، سنن الدارمي/النكاح ٤۰(۲۲۷۹)(حسن)

نکاح کول درست نه دي او همدا حکم دوينځی د پاره هم دي.

﴿وهذا لفظ اسناده وكلامه﴾ دا جمله تشريح ته محتاج ده د مصنف په دي سند کښي دوه استاذان دی احمد بن حنبل او عثمان بن ابی شيبة، نو د دي په باره کښي مصنف رحمه الله فرمائی چه دا حديث ماته رارسيدلي خو دي د دي دواړو استاذانو په ذريعه خو دلته چه ما کوم د سند اومتن الفاظ راوړي دی هغه د عثمان دی د احمد نه دی، ډير کرته مضمون متحد وی خو په الفاظو کښي فرق کمي زياتي وی په دي وجه مصنف ته د دي تصريح ضرورت راپيښ شو. او په بعض نسخو کښي په ځائي د ﴿وكلامه﴾، ﴿وكلامهما﴾ دي په دي صورت کښي مطلب ظاهر دي هغه دا چه احمد او عثمان دواړه روايت کوی د وکيع نه.

﴿ايما ا تزوج بغير اذن مواليه فهو عاهر﴾... عاهر په معنی د زانی، دا خو ظاهره ده چه غلام له بغير د نکاح د اذن نه دی کول پکار خو که هغه اوکړی نو بيا مسئله اختلافی ده، د امام شافعي او احمد په نزد نکاح فاسد ده او زمونږ په نزد موقوفا علی اجازة المولی صحيح ده، اودامام مالک په نزد يجوز لكن للمولی فسخه، اودداود ظاهری په نزد جائز او صحيح دي.

اذا النكاح عنده من الفروض، هغه وائی چه کوم څيز فرض عين وی هغه محتاج اذن نه وی.

[۲۰۷۹](١) حَدَّثَنَا عُقْبَةُ بْنُ مُكْرَمٍ، حَدَّثَنَا أَبُو قُتَيْبَةَ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "إِذَا نَكَحَ الْعَبْدُ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوْلَاهُ فَنِكَاحُهُ بَاطِلٌ" قَالَ أَبُو دَاوُد: هَذَا الْحَدِيثُ ضَعِيفٌ، وَهُوَ مَوْقُوفٌ، وَهُوَ قَوْلُ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا.

عبدالله بن عمر فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چه کله يوغلام دخپل مالک داجازت نه بغيرنکاح وکړی نوداسي نکاح جائزنه ده. امام ابوداود فرمائی داروايت ضعيف دي البته موقوفا درست دي اودادابن عمر رضی الله عنهما فرمان دي.

﴿اذا نكح العبد بغير اذن مولاه فنكاحه باطل﴾دا د شوافعو او حنابله په نزد خو په خپل ظاهر باندي دي او د احنافو په نزد مؤول دي يعنی فی الحال غير معتبر او غير نافذ ده بلکه د مولی په اجازت باندي موقوف دي، او دويم جواب دا دي چه دا حديث ضعيف دي، كما قال المصنف، والحديث اخرجه احمد وكذا الترمذی والبيهقي وابن حبان والحاكم(المنهل)

## بَابٌ فِي كَرَاهِيَةِ أَنْ يَخْطُبَ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ

### باب: د يوكس د بل كس په رشته باندي د رشتي ليږلو د كراهيت بيان

د خطبه علی الخطبة ممانعت دي خو دا منع هغه وخت ده چه کله د ولی رضامندی او رکون الی الخاطب الاول معلوم وی او د رکون او ميلان علم نه وی يا ئي رد کول معلوم وی نو بيا په دي صورت کښي خطبه جائز ده، خو په کوم صورت کښي چه منع راغلي ده او بيا هم د دويم د پاره عقد واقع شی نو بيا به نکاح صحيح وی يا نه په دي کښي اختلاف دي، د جمهورو په نزد خو به اوشي او د داود ظاهری په نزد ناجائز او واجب الفسخ ده مطلقا قبل الدخول وبعده، او د امام مالک نه هم يو روايت د فسخ دي، دا چه مونږ پورته بيان کړه چه

(١): تفرد به أبو داود، (تحفة الأشراف: ۷۷۲۸)(ضعيف)

منع مطلقا نه ده بلکه رکون او عدم رکون باندې د دې مدار دې د دې دلیل او ثبوت کښې امام ترمذی رحمه الله د فاطمه بنت قیس واقعه لیکلې ده، لهذا د امام ترمذی رحمه الله کلام په جامع ترمذی کښې په دې محل کښې اوکتلې شي.

[٢٠٨٠] [1] حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ عَمْرِو بْنِ السَّرْحِ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ".

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی هیڅ یو مسلمان دی دخپل ورور په رشته باندې څوك رشتې ته نه ورلیږی.

﴿قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : لا يخطب الرجل على خطبة اخيه ﴾ لا يخطب کښې دواړه احتمالات دی که ماضی منفی وی نو په ﴿با ﴾باندې به رفع لوستلې شی او که د نهی صیغه اومنلې شی نو ﴿ب﴾باندې کسره اولوستلې شی، په قاعده ده﴿الساكن اذاحرك حرك بالكسر﴾

[٢٠٨١] [2] حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ نُمَيْرٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللَّهِ، عَنْ نَافِعٍ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضی الله عنهما، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "لَا يَخْطُبُ أَحَدُكُمْ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ، وَلَا يَبِيعُ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ، إِلَّا بِإِذْنِهِ". قَالَ سُفْيَانُ: لَا يَبِيعُ عَلَى بَيْعِ صَاحِبِهِ يَقُولُ عِنْدِي خَيْرٌ مِنْهَا.

دابن عمر نه روایت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائیلی دی هیڅ یو مسلمان دی دخپل ورور په رشته باندې څوك رشتې ته نه ورلیږی، اونه دی څوك دیو مسلمان په سودا باندې سوداکوی مګردهغه په اجازت باندې(یعنی دکوم څیز خریدار چه کله مقرر شی نوهغه وزغلوی اوخپل سامان ورباندې خرڅ کړي).

## شرح الحديث على اتم وجه

﴿قوله : ولا بيع على بيع اخيه الا باذنه ﴾ د حدیث دا دویم جزء د کتاب البیوع سره متعلق دې چه د هغې بیان به هلته مستقلا راځي.

د بیع علی بیع اخیه صورت دا دې چه یو سړی یو څیز واخستلو د یو خیار سره نو اوس دویم سړې په زمن خیار کښې مشتری ته دا وائی چه ته دا بیع فسخ کړه او زه به تاته هم دا څیز د دې نه په کم قیمت باندې درکوم او هم دا حکم د شراء علی الشراء هم دې هغه هم ممنوع دې چه د هغې صورت به دا وی چه یو سړی خپله یو څیز د بل چا په لاس باندې خرڅ کړو علی الخیار(حاشیه: د دې نه معلومه شوه چه د بیع علی بیع اخیه تحقق وی، شراء بشرط

[1]): صحيح البخاري/البيوع ٥٨(٢١٤٠)، الشروط ٨(٢٧٢٣)، النكاح ٤٥(٥١٤٤)، صحيح مسلم/النكاح ٦(١٤١٢)، سنن الترمذي/النكاح ٣٨(١١٣٤)، سنن النسائي/النكاح ٢٠(٣٢٤١)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٠(١٨٦٧)،( تحفة الأشراف: ١٣١٢٣)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النكاح ١(١)، مسند احمد(٢٣٨/٢، ٢٧٤، ٣١١، ٣١٨، ٣٩٤، ٤١١، ٤٢٧، ٤٥٧، ٤٦٢، ٤٦٣، ٤٨٧، ٤٨٩، ٥٥٨)، سنن الدارمي/النكاح ٧(٢٢٢١)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٨٠٠٩، ٨١٨٥)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/البيوع ٥٨(٢١٤٠)، النكاح ٤٥(٥١٤٢)، صحيح مسلم/النكاح ٦(١٤١٢)، البيوع ٨(١٤١٢)، سنن الترمذي/البيوع ٥٧(١١٣٤)، سنن النسائي/النكاح ٢٠(٣٢٤٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٠(١٨٦٨)، موطا امام مالك/النكاح ١(٢)، والبيوع ٤٥(٩٥)، مسند احمد(١٢٢/٢، ١٢٤، ١٢٦، ١٣٠، ١٤٢، ١٥٣)، سنن الدارمي/النكاح ٧(٢٢٢٢)، البيوع ٣٣(٢٦٠٩)(صحيح)

الخيار کښې او شراء على شراء اخيه تحقق به وی، په بيع بشرط الخيار کښې) يعنی داسې چه بائع ته به اختيار وی د بيع د باقی ساتلو او نه ساتلو، اوس يو دريم سړې اودريږی او بائع ته د فسخ بيع ترغيب ورکوی او وائی چه دا څيز به زه ستا نه د ثمن سابق نه په زائد سمن باندې واخلم، دلته يو دريم څيز هم دې يعنی سوم على سوم اخيه په دې باندې هم نهی راغلې ده کما سياتی فی البيوع، چه د هغې صورت دا دې چه يو سړې د بل نه څه څيز واخلی د دې دپاره چه په خوښيدو باندې ئې واخلی نو اوس يو بل سړې هغه ته دا وائی چه ته ئې هغه ته واپس کړه چه زه ستا په لاس باندې د دې نه غوره څيز هم په دې قيمت باندې خرڅ کړم يا ددې په شان څيز خو په کم قيمت باندې، يا دا چه بل يو سړې بائع ته دا وائی چه ته دا څيز د هغه نه واپس واخله د دې دپاره چه زه ئې ستا نه د دې نه په زائد قيمت باندې واخلم، په دې ټولو صورتونو باندې ښه ځان پوهه کړه د دې دپاره چه کتاب البيوع ته رسيدو سره دې په کار راشی. والحديث اخرجه ايضا باقی الجماعة(المنهل)

## بَابٌ فِي الرَّجُلِ يَنْظُرُ إِلَى الْمَرْأَةِ وَهُوَ يُرِيدُ تَزْوِيجَهَا

### باب: د چا چې د کومې ښځې سره د نکاح اراده وی دهغې د ليدلو بيان

هم دې ته نزدې ترجمه د امام بخاری رحمه الله ترجمه ده او د ترمذی ترجمه ده، باب ما جاء فی النظر الی المخطوبة، يعنی د کومې زنانه چه انسان رشته غواړی نو هغه له پکار دی چه د پيغام نه مخکښې په هغې باندې نظر واچوی چه د هغې حکمت او مصلحت ظاهر دې، پټ نه دې، ځکه چه کتلې کيدونکې څيز غوره وی چه په هغې کښې د حسن معاشرت او بقاء زوجيت زياته توقع ده، او د واده رشته د ټول ژوند ملګرې وی.

[۲۰۸۲](۱) حَدَّثَنَا مُسَدَّدٌ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ زِيَادٍ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ إِسْحَاقَ، عَنْ دَاوُدَ بْنِ حُصَيْنٍ، عَنْ وَاقِدِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ يَعْنِي ابْنَ سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ، عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ، فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ"، قَالَ: فَخَطَبْتُ جَارِيَةً، فَكُنْتُ أَتَخَبَّأُ لَهَا حَتَّى رَأَيْتُ مِنْهَا مَا دَعَانِي إِلَى نِكَاحِهَا وَتَزَوُّجِهَا فَتَزَوَّجْتُهَا.

دجابر بن عبدالله رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی کله چه يو کس دخپلې نکاح پيغام يکومی زنانه ته ليږل غواړی نوهغه دی ووينی اوبيادی ورسره نکاح وکړی جابره وئيلی دی مايوی جينئ ته دنکاح پيغام ليږلې وو ماهغه په خفيه طريقې اوليدله ترډې، پورې چه ما په هغه جينئ کښې هغه خبره کوم چه دښې ښځې صفات وی وليدل اودهغې په وجه مې ورسره نکاح کولو ته رغبت پيداشو اوبيامې ورسره نکاح وکړه

قوله : فکنت اتخبا لها ) يعنی ما د هغې په پټه پټه باندې د ليدو کوشش کولو.

د نظر الی المخطوبه امر په ډيرو احاديثو کښې راغلې دې، په دې وجه جمهور علماء کرام د دې د جواز قائل دی، امام نووی رحمه الله هم دې ته د ائمه اربعه مذهب وئيلې دې، بيا وړاندې هغه ليکی چه قاضی عياض په دې کښې د يو جماعت نه کراهة النظر لره نقل

(۱): تفرد به أبو داود؛( تحفة الأشراف: ۳۱۲۴)، وقد أخرجه: مسند احمد(۳۳۴/۳)(حسن)

کړې دي کوم چه د احادیثو صراحة خلاف دي، اوس دا خبره چه د مخطوبه د بدن په کومه حصه باندې نظر جائز دې؟ دا د علماء کرامو ترمینځه مختلف فیه مسئله ده، د جمهورو په نزد د هغه مخ او لاسونو ته، او د داود ظاهری په نزد د ټول بدن حکم هم دا دې، بله دا چه دا کتل د جمهورو په نزد مطلقا دی وعند مالک بشرط الاذان.

قال ابن قدامه ولا یجوز له الخلوة بها لانها محرمة ولم یرد الشرع بغیر النظر فبقیت علی التحریم، ولا ینظر الیها نظر تلذذ وشهوة وله ان یردد النظر الیها ویتامل محاسنها لان المقصود لا یحصل الا بذلک اه

## بَاب فِي الْوَلِيِّ

### باب: د ولی بیان

ولی په لغت کښې د عدو ضد دې یعنی دوست، او د ولی تعریف چه کوم فقهاء کرامو لیکلې دي ﴿هو العاقل البالغ الوارث﴾ دغه شان د ولایت اسباب څلور دی، قرابت، ملک، ولاء، امامت. بیا پوهه شه چه د ولایت فی النکاح دوه قسمونه دی، ولایت ندب او استحباب، د دې تحقق په عاقله او بالغه کښې وی، یعنی اګر چه هغه خپله نکاح زمونږ په نزد خپله هم کولې شی خو د ولی په ذریعې سره که وی نو ډیره غوره ده، او قسم ثانی ولایت اجبار، د دې تحقق په صغیره کښې وی او هم دغه شان کبیره معتوهه کښې، ځکه چه نابالغه او معتوهه اجازت خو غیر معتبر دې. اوس چه کله ولی د هغې نکاح کوی نو بغیر د اجازت نه ئې کوی هم دا معنی ده د ولایت اجبار.

## د دې مقام پوره وضاحت

د دې نه پس د الله پاک په توفیق سره ځان پوهه کول پکار دی چه دلته دوه مسئلې دی یوه مسئله د ولایت النکاح یعنی زنانه ته په خپل نفس باندې ولایت حاصل دې یا نه، هغه به خپله نکاح په څه صورتونو کښې خپله کولې شی یا نه، وبعبارة اخری عبارة النساء سره نکاح منعقد کیږی یا نه؟ او بله مسئله د مسئلة الاستیمار دې او یا داسې اوایئ مسئلة ولایة الاجبار، په دې باب سره د مصنف غرض مسئله اولی بیانول دی، او په مسئله ثانیه باندې مصنف وړاندې تلو سره باب قائم کړې دې، باب فی الاستیمار او دا دواړه مسئلې اختلافی دی، د اولې مسئلې بیان دا دې چه د امام شافعی او امام احمد په نزد زنانه په هیڅ حال کښې هم په خپل ځان باندې ولایت نکاح حاصل نه دې، د هغوی په نزد دا مسئله مقرر ده چه په عبارة النساء سره نکاح مطلقا نه منعقد کیږی. ثیبه او باکره یا صغیره وکبیره هیڅ فرق په دې کښې نشته، او د امام مالک په نزد دا دې چه زنانه که شریفه وی نو هغه خپله نکاح خپله نه شی کولې او که دنیئة وی نو کولې شی، هغه په شریفه کښې د اشتراط ولی قائل دې په وضیعه کښې نه دې، او د ظاهریه مسلک دا دې د ولی اعتبار فی حق البکر دې په ثیب کښې نشته لحدیث الایم احق بنفسها من ولیها... او ابو ثور دا فرمائی چه زنانه خپله نکاح خپله کولې شی د ولی په اجازت باندې د ولی د اجازت نه بغیر ئې نه شی کولې، او

احناف دا وائي چه حره بالغهه خپله د ځان ولي ده هغه خپله نکاح کولې شي او مملوکه او صغيره دې دواړو ته په خپل نفس باندې ولايت حاصل نه دې دا دواړه په خپله نکاح کښې د ولي محتاج دي، او مسئله ثانيه يعني د ولايت اجبار تشريح دا ده ايا ولي ته دا اختيار شته چه هغه د زنانه د اجازت نه بغير د هغې نکاح اوکړي که وي نو په کوم صورت کښې پس په دې کښې هم اختلاف دې هغه دا چه د امام شافعي رحمه الله په نزد د اجبار مدار په بکارت باندې دې يعني د باکره نکاح د دې د ولي د اجازت نه بغير کولې شي، د ثيب نکاح د هغه د اجازت نه بغير نه شي کولې، او د احنافو په نزد د دې علت صغر او عدم بلوغ دې چه د صغيره نکاح د هغې ولي د هغې د اجازت نه بغير کولې شي او د بالغې بغير د هغې د اجازت نه نه شي کولې، او د امام مالک رحمه الله په نزد د اجبار علت په بکارت او صغر هر دواړو باندې دې.[1]

## وجوه اربعه وفاقيه خلافيه

د دې اختلاف د وجې نه دلته څلور صورتونه پيدا کيږي دوه اتفاقي او دوه اختلافي. ۱: صغيره باکره، ۲: بالغه ثيبه، دا دواړه صورتونه اتفاقي دي په اول صورت کښې د حق اجبار په سبب نزدې وي، او په دويم صورت کښې به د چا په نزد هم نه وي. ۳: صغيره ثيبه، ۴: بالغه باکره، دا دواړه صورتونه اختلافي دي، په اول صورت کښې به ولايت اجبار د احنافو په نزد وي هم دغه شان د مالکيانو په نزد به هم وي، او د شوافعو او حنابله په نزد نه وي،[2] او په دويم صورت کښې د احنافو په نزد ولايت اجبار نه وي د ائمه ثلاث په نزد به وي د دې مسئله ثانيه ضرورت به په راروان باب کښې راپيښ شي. باب في الاستيمار، يوه دريمه مسئله دلته دا ده چه ولايت اجبار د امام مالک او احمد په نزد صرف د اب او وصي الاب دپاره دې، د امام شافعي رحمه الله په نزد جد في حکم الاب دې، د نورو اولياء دپاره حق اجبار نه دې، هم دغه شان د ائمه ثلاثه په نزد تزويج اليتيمه يعني صغيره چه د هغې پلار نه وي صحيح نه دې ترڅو چه بالغه شوې نه وي او د احنافو په نزد حق اجبار د ټولو اولياء نه دې، فرق دا دې چه د اب او جد په صورت کښې بعد البلوغ جينئ ته خيار حاصل نه وي او د نورو اولياء په صورت کښې خيار حاصل وي. والله تعالى اعلم بالصواب. د دې تفصيل د پيژندلو نه پس تاسو حديث الباب ته اوګورئ.

[۲۰۸۳] ([3]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا سُفْيَانُ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ مُوسَى، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ مَوَالِيهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، فَإِنْ دَخَلَ بِهَا، فَالْمَهْرُ لَهَا بِمَا أَصَابَ مِنْهَا، فَإِنْ تَشَاجَرُوا فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ".

---

[1]) ابن رشد په بداية المجتهد کښې د دې تصريح کړې ده، هغه په دې کښې د امام احمد مسلک نه دې ليکلې، زه وايم، د امام احمد مسلک په دې کښې د مالکيانو مسلک ته نزدې دې لکه چه ثيبه صغيره کښې د هغه د مسلک نه ظاهر ده. اهـ

[2]) د حنابله ؤ په نزد دې کښې روايات مختلف دي چه د دې تفصيل په باب تزوج الصغار کښې راروان دې.

[3]): سنن الترمذي/النكاح ١٤(١١٠٢)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٥(١٨٧٩)،(تحفة الأشراف: ١٦٤٦٢)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/ النكاح(٥٣٩٤)، مسند احمد(٦/٦٦، ١٦٦، ٢٦٠)، سنن الدارمي/النكاح ١١(٢٢٣٠)(صحيح)

دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه روايت دي : فرمائي چه نبي عليه السلام فرمائيلي دی هره يوه و زنانه چه بغيردخپل ولی داجازت نه نکاح وکړی نوددی نکاح باطل ده اودا الفاظ ئي دری ځل اوفرمائيل که چرې کوروالی ئې ورسره کړی وی نومهربه ورته ورکوی په وجه دهغې فائدی کومه چه ده ترې اخستلی ده که چرې په دواړوکښې جګړه پيښه شی نوبادشاه اوحاکم ولی دی دهغه دچاچه ولی نه وي.

د اخری جملې مطلب دا دی چه د اولياء مراءة کښې د نکاح په باره کښې اختلاف شی نو په دې صورت کښې ولايت نکاح د وخت بادشاه وی ځکه چه هغه د اولياء د اختلاف د وجې نه ساقط او کالعدم شی او قاعده دا ده چه د کومې زنانه يو ولی نه وی نو د وخت بادشاه د هغه ولی وی، دا حديث په ظاهره د جمهورو صريح دليل دې چه کومه زنانه خپل نکاح په خپله کوی هغه باطل دې، معلومه شوه چه زنانه ته په خپل نفس باندې ولايت نه دې حاصل او په عبارت النساء سره نکاح نه منعقد کيږی.

[۲۰۸۴](١) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، حَدَّثَنَا ابْنُ لَهِيعَةَ، عَنْ جَعْفَرٍ يَعْنِي ابْنَ رَبِيعَةَ، عَنْ ابْنِ شِهَابٍ، عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِمَعْنَاهُ. قَالَ أَبُو دَاوُدَ: جَعْفَرٌ لَمْ يَسْمَعْ مِنَ الزُّهْرِيِّ، كَتَبَ إِلَيْهِ.

عروه دام المومنين عائشة رضي الله عنها نه اوهغه : دنبی عليه السلام نه ددې روايت په شان روايت ئي بيان کړې دې، ابوداود وئيلی دی دجعفر اوريدل دزهری نه ثابت نه دی بلکه زهری داروايت جعفر ته ليکلې وو.

ځان پوهه کړه چه په دې باب کښې مصنف دوه احاديث راوړې دی دواړه د سنن په رواياتو کښې دی اولا حديث عائشه، دويم حديث ابی موسی اشعری چه د هغې الفاظ دا دی ﴿لا نکاح الا بولی ﴾د دواړو احاديثو مضمون يو دې او دواړه د جمهورو دليل دې، امام ترمذی رحمه الله هم په دې سلسله کښې هم دا دواړه احاديث ذکر فرمائيلې دی خو اولا حديث ابی موسی او دويم حديث عائشه رضي الله عنها د احنافو دليل په باب فی الثيب کښې راروان دې چه د هغې په صحت باندې د محدثينو اتفاق دې يعنی حديث ابن عباس ﴿الايم احق بنفسها من وليها الخ ﴾دا حديث د افراد مسلم نه دې يعنی صرف په صحيح مسلم کښې دې په صحيح بخاری کښې نشته، په دې باندې تفصيلی کلام په باب مذکور کښې راروان دې اوس تاسو د حديث الباب جوابات واورئ.

## د حديث عائشه د احنافو د طرف نه جواب

د حديث عائشه رضي الله عنها زمونږ د طرف نه ډير جوابات ورکړې شوې دی.

١: دا حديث ضعيف دې د دې په سند کښې سليمان بن موسی دې او هغه ضعيف دې ﴿ضعفه البخاری وقال النسائی فی حديثه شئ ﴾دويمه وجه د ضعف هغه ده کومه چه امام ترمذی رحمه الله هم ذکر فرمائيلې ده هغه دا چه اولا دا حديث ابن جريج د زهری نه په واسطه د سليمان راغلې وو، ابن جريج فرمائی چه زه روستو براه راست د زهری سره ملاؤ شوم او د

(١): انظر ما قبله، ( تحفة الأشراف: ١٦٤٦٢)(صحيح)

هغه په وړاندې مې ددې حديث ذكر اوكړو، فانكره.[1]

۲: د حديث راوى يعنى سيده عائشه ﵂ خپل عمل د دې حديث خلاف دې، چه د هغې دليل دا دې چه په روايت كښې راځى چه عائشې ﵂ د خپلې وريرې حفصه بنت عبدالرحمن نكاح د منذر بن الزبير سره كړې وه او حال دا چه عبدالرحمن موجود نه وو د ملك شام په سفر باندې وو. معلومه شوه چه د هغې په نزد زنانه ته د نكاح په باب كښې حق ولايت حاصل دې.

۳: دا حديث په ﴿امة﴾ باندې محمول دې ځكه چه د ﴿حرة﴾ دپاره د ولايت ثبوت د بل صحيح حديث نه ثابت دې، كوم چه نزدې راړان دې ﴿الايم احق بنفسها من وليها﴾ او د دې من وجه تائيد د دې نه هم كيږى چه په حديث كښې ﴿مولى﴾ لفظ دې، د ﴿ولى﴾ لفظ نشته، ﴿بغير اذن مواليها﴾.

۴: يا به دا محمول كړې شى په غير كفو باندې، او د باطل نه على شرف البطلان مراد واخستلې شى ځكه چه بالغه اګر چه خپله نكاح كولې شى خو كه په غير كفو كښې اوكړى نو ولى ته به حق اعتراض حاصل وى.

۵: دا چه دا په صغيره باندې محمول كړې شى ځكه چه هم دا نكاح بلا ولى ده، كبيره خو د خپل نفس ولى خپله ده، دا جواب القول بموجب العلة د قبيل نه دې[2] چه مونږ هم منو چه د زنانه نكاح بغير د ولى نه صحيح نه ده، ځكه چه نكاح په صغيره باندې صادقه راځى نكاح بلا ولى، او نكاح كبيره نكاح بلا ولى نه ده.

۶: دا حديث ستاسو هم خلاف دې ځكه چه د دې مفهوم مخالف دا دې چه كومه زنانه د خپل مولى په اجازت سره نكاح اوكړى هغه صحيح ده لكه چه د ابو ثور مسلك دې چه كه زنانه د ولى د اجازت نه بغير خپله نكاح په خپله اوكړى نو هغه صحيح ده. والحديث اخرجه الترمذى وابن ماجة (قاله المنذرى)

[۲۰۸۵] ([4]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ قُدَامَةَ بْنِ أَعْيَنَ، حَدَّثَنَا أَبُو عُبَيْدَةَ الْحَدَّادُ، عَنْ يُونُسَ، وَإِسْرَائِيلَ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، عَنْ أَبِي مُوسَى، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ". قَالَ أَبُو دَاوُد: وَهُوَ يُونُسُ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ، وَإِسْرَائِيلُ، عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ، عَنْ أَبِي بُرْدَةَ.

دابوموسى ﵁ نه روايت دې فرمائى چه اق نبى ﷺ اوفرمائيل چه دولى داجازت نه بغير

[1] د دې تنقيد جواب امام ترمذى د يحيى بن معين نه دا نقل كړې دې چه دې جرح لره د ابن جريج نه نقل كونكې د هغه په شاګردانو كښې صرف اسماعيل بن ابراهيم دې (المعروف بابن علية) د اسماعيل نه علاوه دا خبره د ابن جريج نه چا هم نه ده نقل كړې حال دا چه د اسماعيل سماع د ابن جريج نه زياته قوى نه ده، امام ترمذى ﵀ چونكه د دې حديث د معتبر كيدو قايا دې په دې وجه هغه د دې دا توجيه كړې ده، خو مونږ خو د دې حديث نور هم ډير جوابونه كړې دى.

[2] د القول بموجب العلة مطلب دا وى چه خصم داسې اوائى چه مونږ د استدلال كونكى دليل منو ځكه چه هغه زمونږ خلاف نه دې.

[4]: سنن الترمذي/النكاح ۱۴ (۱۱۰۱)، سنن ابن ماجه/النكاح ۱۵ (۱۸۸۱)، (تحفة الأشراف: ۹۱۱۵)، وقد أخرجه: مسند احمد (۴/۳۹۴، ۴۱۳، ۴۱۸)، سنن الدارمي/النكاح ۱۱ (۲۲۲۹) (صحيح)

به نکاح کول درست نه دي. امام ابوداود فرمائي چه دحديث سند داسې دی يونس دابوبرده نه اوهغه داسرائيل نه اوهغه دابو اسحاق نه اوهغه دابی برده نه.

## شرح السند:

مصنف د سند تشريح فرمائي، د سند د ظاهر سياق نه معلوميږي چه ابو عبيده چه څنګه د يونس او اسرائيل دواړو نه روايت کوی هم دغه شان دا دواړه هم د اسحاق نه روايت کوی، مصنف فرمائي چه داسې نه ده (عن ابی اسحاق) تعلق صرف د اسرائيل سره دې د يونس سره نه دی، بلکه يونس براه راست د ابو برده نه روايت کوی، لهذا د سند ترجمه داسې اوکړئ: "ابو عبيده روايت کوی د يونس نه او اسرائيل د ابو اسحاق نه، او دا دواړه يعنی يونس او اسرائيل د ابو اسحاق نه روايت کوی د ابو برده نه.

## د حديث ابو موسیٰ جواب

په دې حديث کښې بعض جوابات خو هم هغه دی کوم چه په حديث عائشه رضي الله عنها کښې اوليکلې شو، او خاص جواب د دې حديث دا دې چه امام ترمذی رحمه الله سره د دې چه دا حديث د هغوی مستدل دې خو هغوی خپله په دې باندې کلام کړې دې او د دې حديث په ارسال او اسناد کښې د راويانو اختلاف او اضطراب بيان کړې دې. اګر چه روستو هغه د دې اضطراب دفيعه هم فرمائيلې ده او طريق مسند ته ئې ترجيح ورکړې ده، چه د هغې خلاصه مونږ په حاشيه کښې ذکر کړې ده. (1)

والحديث اخرجه الترمذی وابن ماجة قاله المنذری.

[۲۰۸۶](2) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ يَحْيَى بْنِ فَارِسٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، عَنْ مَعْمَرٍ، عَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ، عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ، أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ ابْنِ جَحْشٍ فَهَلَكَ عَنْهَا وَكَانَ فِيمَنْ هَاجَرَ إِلَى أَرْضِ الْحَبَشَةِ، فَزَوَّجَهَا النَّجَاشِيُّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ عِنْدَهُمْ".

---

(1) د امام ترمذی د کلام تشريح: چه د هغې خلاصه دا ده چه دا حديث يو لوئې جماعت د ابو اسحاق نه مسندا ذکر کړې دې، او شعبه او سفيان ثوری دا د ابو اسحاق نه مرسلا ذکر کړې دې، او دفيعه د دې امام ترمذی داسې کړې ده هغه فرمائي چه زما په نزد په دې کښې طريق سند اصح دې د طريق مرسل نه اګر چه مرسلا نقل کونکې (شعبه او سفيان ثوری) اثبت او احفظ دی خو د دې باوجود اولاخو په دې وجه چه مسندا روايت کولو والا کثير دی، په نسبت د مرسلا روايت کونکو او بل دا چه د ابو اسحاق نه مسندا نقل کونکو د هغوی نه په مختلف اوقات او مختلف مجالس کښې نقل کړې دې، په خلاف د ثوری او شعبه چه هغوی په يو مجلس کښې دا حديث د ابو اسحاق نه اوريدلې دې نو ګويا د اتحاد مجلس د وجې نه دا دوه هم دوه پاتې نه شو صرف يو راوی پاتې شو او! که شعبه او ثوری د هغه نه په جدا جدا مجلس کښې اوريدلې وې نو جدا خبره وه، دريم دا چه په دې جماعت کښې (چه کوم سندا روايت کونکې دې) يو راوی اسرائيل هم دې چه د هغه په باره کښې دا مسلم ده چه اسرائيل د ابو اسحاق نه په روايت کولو کښې اثبت دې (اګر چه شعبه او ثوری في نفسه د اسرائيل نه اقوی دې، ګويا د دری وجو نه د دې مسند کيدل راجح شو د مرسل کيدو نه، واخلئ د ترمذی دا مقام هم الحمد لله حل شو کوم چه د يو اوښيار طالب علم دپاره کوم چه واقعی کتاب حل کول غواړی د هغه په حق کښې ډير قيمتی څيز دې) والله الموفق.

(2): سنن النسائي /النکاح ٦٦(٣٣٥٢)، (تحفة الأشراف: ١٥٨٥٤)، وقد أخرجه: مسند احمد(٦/٤٢٧)(صحيح)

دام حبيبه رضي الله عنها نه روايت دي فرمائي چه بيرزه دا بن جحش په نکاح کښې وم اوهغه وفات شو بي اودى په هغه کسانوکښې وو چا چه حبشي ته هجرت د کړى وو نودابيا نجاشى(دحبشې بادشاه نبى عليه السلام ته په نکاح ورکړه اوحالانکه په دې وخت کښې ام حبيبه په حبشوکښې اوسيدله.

## د ام حبيبه رضي الله عنها سره د رسول الله ﷺ د نکاح قصه :

دا ام حبيبه بنت ابى سفيان رضي الله عنها ده چه اول د عبيدالله بن جحش په نکاح کښې وه، چه په شروع کښې په مکه مکرمه کښې اسلام قبول کړو او بيا دواړه هجرت کولو سره حبشې ته لاړل او هلته تلو سره دا عبيدالله مرتد شو او د نصارى دين ئې اختيار کړو لکه چه شارحينو ليکلي دى چه ﴿ثم ارتد عن الاسلام وتنصر﴾او هم په دې حال کښې هغه هلته وفات شو، دا ام حبيبه رضي الله عنها په خپل اسلام باندې قائمه وه،هغه فرمائى چه ما يوه ورځ په خوب کښې اوليدل چه يو ويونکې وائى : يا ام المومنين! چه په هغې باندې زه فورى متوجه شوم، ما د دې دا تعبير واخستلو چه زه به د رسول الله ﷺ په بيبيانو کښې شامليږم، پس د عدت د تيريدو نه روستو د نجاشى د طرف نه د قاصد په حيثيت سره د هغه يوه وينزه ماته راغله او هغې ماته دا اووې چه شاه حبشه فرمائى چه د رسول الله ﷺ د طرف نه ماته يو خط راغلې دې ﴿كتب الى ان ازوجک منه ﴾بيا وړاندې دا چه د نکاح وکيل څوک جوړ شو په دې کښې روايات مختلف دى د بعض نه معلوميږى چه خپله نجاشى جوړ شو او وئيلې شوې دى چه سيدنا عثمان بن عفان رضي الله عنه ، وقيل خالد بن سعيد بن العاص وكان وليا لها، په دې اقوالو کښې د يو قول مطابق د نجاشى خطبه داسې منقول ده : الحمد لله الملک القدوس السلام المومن المهيمن العزيز الجبار واشهد ان لا اله الا الله وحده وان محمدا عبده ورسوله وانه الذى بشر به عيسى بن مريم، اما بعد الى اخر ما فى البذل. دا واقعه د ٧ هجرى ده، په دې نکاح کښې د ام حبيبه مهر خپله شاه حبشه هم په دې مجلس کښې پيش کړو چه د هغې مقدار څلور سوه ديناره او په يو روايت کښې څلور زره درهم راغلي دي، د نکاح نه پس نجاشى ام حبيبه مدينې منورې ته د رسول الله ﷺ په خدمت کښې اوليږله د شرحبيل بن حسنه رضي الله عنه سره لکه چه وړاندې په کتاب کښې په باب الصداق کښې دا روايت راروان دى، دا نکاح دا احنافو دليل کيدې شى د ولايت فى النکاح په باره کښې چه حره بالغه خپله نکاح خپله کولې شى، ځکه چه د ام حبيبه رضي الله عنها هلته يو ولى هم نه وو، او د روايت الفاظ اګر چه دا دى ﴿زوجها النجاشى﴾ چه د هغې نه په ظاهره کښې معلوميږى چه متولى ئې خپله نجاشى وو، په بذل کښې ليکى چه : والنجاشى ليس بولى لها فلا يثبت اشتراط الولى فى النکاح او يقال ان النجاشى كان سلطانا والسلطان ولى من لا ولى له فعقده عقد الولى(خو په دې دويم صورت کښې به دا واقعه د احنافو دليل نه وى) بيا وړاندې په بذل کښې دا دى چه بعض خلق چه دا وائى چه خالد بن سعيد بن العاص د نکاح متولى جوړ شوې وو او هغه فى الواقع د ام حبيبه ولى وو نو فلم يثبت بطريق صحيح. والحديث اخرجه النسائى بنحوه قاله المنذرى.

# بَاب فِي الْعَضْلِ

## باب: ښځې د نكاح نه د منع كولو بيان

العضل المنع والمراد منع اولياء المراءة اياها عن التزوج... چونكه د مخكښې نه د ولى بيان شروع دې په دې وجه اوس مصنف په قران كريم كښې چه د اولياء متعلق كوم بعض هدايات او ارشادات راغلې دى هغه بيان فرمائى پس په دې باب كښې ئې دا بيان كړې ده چه كه د مطلقه خاوند د طلاق وركولو نه پس د انقضاء عدت نه پس دوباره نكاح كول غواړى او هغه زنانه هم راضى وى نو د زنانه اولياء لره جائز نه دى چه هغه د نكاح نه منع كړى.

[٢٠٨٧](1) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى، حَدَّثَنِي أَبُو عَامِرٍ، حَدَّثَنَا عَبَّادُ بْنُ رَاشِدٍ، عَنِ الْحَسَنِ، حَدَّثَنِي مَعْقِلُ بْنُ يَسَارٍ، قَالَ: "كَانَتْ لِي أُخْتٌ تُخْطَبُ إِلَيَّ، فَأَتَانِي ابْنُ عَمٍّ لِي فَأَنْكَحْتُهَا إِيَّاهُ، ثُمَّ طَلَّقَهَا طَلَاقًا لَهُ رَجْعَةٌ، ثُمَّ تَرَكَهَا حَتَّى انْقَضَتْ عِدَّتُهَا، فَلَمَّا خُطِبَتْ إِلَيَّ أَتَانِي يَخْطُبُهَا، فَقُلْتُ: لَا وَاللَّهِ لَا أُنْكِحُهَا أَبَدًا، قَالَ: فَفِيَّ نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ: وَإِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَاءَ فَبَلَغْنَ أَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوهُنَّ أَنْ يَنْكِحْنَ أَزْوَاجَهُنَّ سورة البقرة آية ٢٣٢ الْآيَةَ، قَالَ: فَكَفَّرْتُ عَنْ يَمِينِي، فَأَنْكَحْتُهَا إِيَّاهُ".

دمعقل بن يسار ﷺ نه روايت دې فرمائى چه زما يوه خوروه اورشتى به ورپسى تلى اوراتى يوځل زمادتره دځوى رشته راغله ما داخپله خورهغه ته په نكاح وركړه هغه ورته يورجعى طلاق وركړواو دا ئې پرېښودله(دنكاح نه ئې خارج كړه) تردې پورې چه عدت ئې پوره شو نوپه هغې پسى بيا رشتى راتلل شروع شول نودې بيا دوباره راغى اودرشتى مطالبه ئې وكړله ماورته ووئيل په الله قسم چه زه به دخپلې خورنكاح هيڅكله دوباره دده سره ونكرم نوددى متعلق دا آيت:(«وإذا طلقتم النساء فبلغن أجلهن فلا تعضلوهن أن ينكحن أزواجهن») الآية. نازل شومعقل وائى چه مادخپل قسم كفاره وركړله اوهغه ته مې په نكاح وركړله

﴿عن الحسن حدثنى معقل بن يسار قال كانت لى اخت تخطب الى فاتانى ابن عم لى فانكحتها اياه ثم طلقها الخ ﴾ د حديث مضمون دا دې چه سيدنا معقل بن يسار ﷺ فرمائى چه زما يوه خور وه د نكاح قابله، پس ماته د هغې په باره كښې د نكاح پيغامات راغلل هم په دې وخت كښې ماته زما د تره ځوئې راغلو يعنى د نكاح په ارادې سره، پس ما د خپلې خور نكاح د هغه سره اوكړه، بيا داسې اوشو چه څو ورځې پس هغه هغې ته طلاق رجعى وركړو خو رجعت ئې اونكړو تردې چه عدت تير شو، معقل فرمائى چه د عدت تيريدو نه پس ماته بيا د نكاح پيغامونه راتلل شروع شو او هغه زما د تره ځوئې هم راغلو،(زه چونكه هغه ته د مخكښې نه غصه اوم) په دې وجه ورته ما اووې چه والله تا سره خو ئې نكاح نه كوم نو په دې باندې دا آيت كريمه نازل شو ﴿واذا طلقتم النساء فبلغن اجلهن فلا تعضلوهن ان ينكحن ازواجهن ﴾

(1): صحيح البخاري/التفسير ٤٠(٤٥٢٩)، النكاح ٦٠(٥١٣٠)، الطلاق ٤٤(٥٣٣٠، ٥٣٣١)، سنن الترمذي/التفسير ٣(٢٩٨١)،( تحفة الأشراف: ١١٤٦٥)، وقد أخرجه: سنن النسائي/الكبري/النكاح(١١٠٤١)(صحيح)

## د آيت كريمه نه په ولاية النكاح کښې د فريقينو استدلال

**فائده** : د دې آيت کريمه نه شوافعو په دې خبره استدلال کړې دې چه د زنانه د نکاح کښې د ولی کیدل ضروری دی بغیر د ولی نه زنانه خپله نکاح نه شی کولې ځکه چه که هغه پخپله باندې په نکاح کولو قادره وې نو بيا د چا په منع کولو باندې څه کيږی، او احناف هم د دې آيت کريمه نه په خپل مسلک باندې استدلال کوی چه بالغه خپله نکاح خپله کولې شی ځکه چه په دې آيت کريمه کښې د نکاح نسبت د زنانه طرف ته کړې شوې دې، ﴿ان ينكحن ازواجهن ﴾چه د هغې نه معلومیږی چه زنانه خپله نکاح خپله کولې شی او ولی چه د عضل نه منع کړې شوې دې د هغې نه دا نه لازميږی چه زنانه په نکاح باندې قادره نه ده بلکه مطلب ئې دا دې چه تاسو هم په خوشحالئ سره د دې اجازت ورکړئ او په دې باندې د خفگان اظهار مه کوئ، يعنی شرعی او قانونی رکاوټ مراد نه دې بلکه اخلاقی او معاشرتی دباؤ مراد دې. والله تعالى اعلم، والحديث اخرجه البخاری والترمذی والنسائی قاله المنذری.

## بَابٌ إِذَا أَنْكَحَ الْوَلِيَّانِ

### باب: کله چه دوه وليان د يوې ښځې نکاح اوکړی نو ددې د حکم بيان

[۲۰۸۸] (1) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا هِشَامٌ ح وحَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ كَثِيرٍ، أَخْبَرَنَا هَمَّامٌ ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ الْمَعْنَى، عَنْ قَتَادَةَ، عَنْ الْحَسَنِ، عَنْ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ زَوَّجَهَا وَلِيَّانِ فَهِيَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا، وَأَيُّمَا رَجُلٍ بَاعَ بَيْعًا مِنْ رَجُلَيْنِ فَهُوَ لِلْأَوَّلِ مِنْهُمَا".

د سمره رضی الله عنه نه روايت دې فرمائی چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی چه يوه ښځه دوه وليان چاته په نکاح ورکړی(يو ولی يوته په نکاح ورکړی اوبل ولی ئې بل چاته په نکاح ورکړی نوددی ښځې حقدار به هغه کس وی د کوم نضاج چه ددې سره مخکښې شوی وی او څوک چه يو شې په دوه کسانو خرڅ کړی نوچه اول ئې په چاخرڅ کړې وی ددې حقدار هم هغه دې.

**قوله**: ﴿عن الحسن عن سمرة رضى الله عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم قال ايما امراءة زوجها وليان فهى للاول منهما ﴾

يعنی که د يوې زنانه د يوې درجې دوه وليان وی مثلا عمين يا اخوين او پرلپسې دواړه وليان د هغه زنانه جدا جدا ځايونو کښې واده اوکړی نو په دې دواړو کښې به اوله نکاح صحيح وی او دويمه نکاح به فاسد وی، او که دواړه ولی يوځائې مختلف ځايونو کښې نکاح اوکړی نو دواړه نکاحونه به مفسوخ وی، د احنافو او د جمهورو هم دا مسلک دې په دې کښې د امام مالک اختلاف دې هغه فرمائی چه د نکاح د صحت دپاره د اولياء اتفاق ضروری دې لهذا په دې صورت کښې به يوه نکاح هم صحيح نه وی. **كذا فى البذل عن البدائع**، خو د منهل نه چه د هغې مصنف مالکی دې د مالکيانو مسلک دا نه معلوميږی بلکه د هغوی په مسلک کښې په دې مسئله کښې تفصيل دې په بعض صورتونو کښې اوله

1 ): سنن الترمذي/النكاح ٢٠(١١١٠)، سنن النسائي/البيوع ٩٤(٤٦٨٦)، سنن ابن ماجه/التجارات ٢١(٢١٩٠)،( تحفة الأشراف: ٤٥٨٢)، وقد أخرجه: مسند احمد(٥/٨، ١١، ١٢، ١٨، ٢٢)، سنن الدارمي/النكاح ١٥(٢٢٣٩)(ضعيف)

نکاح صحیح کیږي او په بعض صورتونو کښي دويمه. فارجع اليه لوشئت.

## باب قَوْلِهِ تَعَالَى:
## {لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ}

**باب: د آيت كريمه «لا يحل لكم أن ترثوا النساء كرها ولا تعضلوهن» تفسير**

د دي نه مخکښې چه کوم باب تير شو په هغي کښي هم اګر چه عضل ذکر وو خو په دواړو بابونو کښي فرق دې، د دې باب تعلق د متوفى عنها زوجها سره دې، او د تير باب تعلق د مطلقه سره وو، په اول باب کښي د عضل مخاطب د زنانه اولياء وو او په دې باب کښي د عضل مخاطب اولياء الزوج دى، د جاهليت په زمانه کښي داسي شوي وه چه د زنانه د خاوند د وفات نه پس به اولياء زوج ته دا اختيار وو چه که غواړي نو خپله دې د هغه زنانه سره نکاح اوکړي او که غواړي نو د بل سره دې اوکړي او که نه غواړي نو د چا سره دې هم نه کوي پوره اختيار به هم هغه ته حاصل وو نو په دې باندې په قران کريم کښي تنبيه راغله ﴿لا يحل لكم ان ترثوا النساء كرها ﴾يعني د کومو زنانو چه خاوندان وفات شي نو اوس د خاوند د اولياء په هغي هيڅ اختيار نشته بلکه خپله هغه زنانه ته او د هغي اولياء ته اختيار دې چه هغه چرته غواړي واده کولې شي، هم دغه شان دا اختيار چه کوي يا نه کوي.

[٢٠٨٩]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مَنِيعٍ، حَدَّثَنَا أَسْبَاطُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا الشَّيْبَانِيُّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ الشَّيْبَانِيُّ وَذَكَرَهُ عَطَاءٌ أَبُو الْحَسَنِ السُّوَائِيُّ، وَلَا أَظُنُّهُ إِلَّا عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، فِي هَذِهِ الْآيَةِ: لَا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلَا تَعْضُلُوهُنَّ سورة النساء آية «، قَالَ: "كَانَ الرَّجُلُ إِذَا مَاتَ كَانَ أَوْلِيَاؤُهُ أَحَقَّ بِامْرَأَتِهِ مِنْ وَلِيِّ نَفْسِهَا، إِنْ شَاءَ بَعْضُهُمْ زَوَّجَهَا أَوْ زَوَّجُوهَا، وَإِنْ شَاءُوا لَمْ يُزَوِّجُوهَا، فَنَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ فِي ذَلِكَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه هغه ددې آيت كريمه«لا يحل لكم أن ترثوا النساء كرها ولا تعضلوهن») متعلق وئيلي وى كله چه به خاوند وفات کيدو نودده وارثانو به دده دښځې ډيرخيال ساتلو په نسبت دنورو ښځو دوارثانو بعضى وارثانو به دا زنانه پخپله نکاح کولى اويابه ئي بل چاته په نکاح ورکړې او که زړه به ئي وغوښتل نودغه کونډه به ئي هيچاته په نکاح نه ورکوله خوپه دى وخت کښي دا آيت كريمه نازل شو.

[٢٠٩٠]([2]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدِ بْنِ ثَابِتٍ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنِي عَلِيُّ بْنُ حُسَيْنِ بْنِ وَاقِدٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ يَزِيدَ النَّحْوِيِّ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: "لا يَحِلُّ لَكُمْ أَنْ تَرِثُوا النِّسَاءَ كَرْهًا وَلا تَعْضُلُوهُنَّ لِتَذْهَبُوا بِبَعْضِ مَا آتَيْتُمُوهُنَّ إِلا أَنْ يَأْتِينَ بِفَاحِشَةٍ مُبَيِّنَةٍ سورة النساء آية «، وَذَلِكَ أَنَّ الرَّجُلَ كَانَ يَرِثُ امْرَأَةَ ذِي قَرَابَتِهِ فَيَعْضُلُهَا حَتَّى تَمُوتَ، أَوْ تَرُدَّ إِلَيْهِ صَدَاقَهَا، فَأَحْكَمَ اللَّهُ عَنْ ذَلِكَ، وَنَهَى عَنْ ذَلِكَ".

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چه دايت :«لا يحل لكم أن ترثوا النساء كرها ولا تعضلوهن لتذهبوا ببعض ما آتيتموهن إلا أن يأتين بفاحشة مبينة») شان نزول دادئ چه يوکس

---

[1]): صحيح البخاري/تفسير النساء ٦(٤٥٧٩)، الإكراه ٦(٦٩٤٨)، سنن النسائي/ الكبري/ التفسير(١١٠٩٤)،( تحفة الأشراف: ٦١٠٠،٦٢٥٦)

[2]): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ٦٢٥٦)(حسن صحيح)

به دخپل رشته دار دښځې وارث شونودبل چاسره به ئې دنکاح نه منع کوله تردې چه هغه زنانه به په دې حال کښې وفات شوه پاداچه کوم مهر به ئې وصول کړو نوده ته به ئې ورکولو الله تعالى ددې نه منع اوفرمائيله.

[۲۰۹۱]([1]) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ شَبُّوَيْهِ الْمَرْوَزِيُّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ عُثْمَانَ، عَنْ عِيسَى بْنِ عُبَيْدٍ، عَنْ عُبَيْدِ اللهِ مَوْلَى عُمَرَ، عَنِ الضَّحَّاكِ بِمَعْنَاهُ، قَالَ: فَوَعَظَ اللهُ ذَلِكَ.

دعبيدالله څوك چه دعمر رضي الله عنه ازاد کړې شوې غلام دې، نه روايت دې اوضحاك نه هم داسې روايت نقل شوې دې البته په دې روايت کښې دالفظ فوق الله ذلك. زيات دې (يعنى الله تعالى ددې نه منع اوفرمائيله).

## بَابٌ فِي الِاسْتِئْمَارِ

### باب د نکاح په وخت د جينۍ نه د اجازت اخستلو بيان

په باب في الولى کښې مونږ دا خبره بيان کړې وه چه دلته دوه مسئلې دى ولايت النكاح، ولايت الاجبار، په دې باب کښې دا دويمه مسئله ذکر شوې ده چه په هغې کښې اختلاف او د هغې متعلق تشريح هلته ذکر شوې دې.

[۲۰۹۲]([2]) حَدَّثَنَا مُسْلِمُ بْنُ إِبْرَاهِيمَ، حَدَّثَنَا أَبَانُ، حَدَّثَنَا يَحْيَى، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُنْكَحُ الثَّيِّبُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ، وَلَا الْبِكْرُ إِلَّا بِإِذْنِهَا"، قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ، وَمَا إِذْنُهَا؟ قَالَ: "أَنْ تَسْكُتَ".

دابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې فرمائى چه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلى دي: دكونډې سره به دهغه وخته پورې نکاح نشى کولې ترڅوچه دهغې نه منظوری وانخستل شى او د پيغلو جينکو سره دهغه وخته پورې نکاح نشى کيدې ترڅوچه ترې اجازت وانخستلى شى په دې وخت کښې خلقو عرض اوکړو چه دجينکو نه به څرنګه اجازت اخستلى شى (يعنى دحياء په وجه هغوى داجازت اظهار نشى کولې نواجازت به څنګه ورکوي) نبى عليه السلام اوفرمائيل ددې خاموش کيدل اجازت دې۔

### د حديث نه د جمهورو استدلال او د احنافو د طرف نه د هغې جواب

**تشريح: قوله:** عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَا تُنْكَحُ الثَّيِّبُ([3]) حَتَّى تُسْتَأْمَرَ، وَلَا الْبِكْرُ إِلَّا بِإِذْنِهَا": د دې حديث تعلق لکه چه ظاهره ده د ولاية الاجبار سره دې چه د هغې مدار د جمهورو په نزد په ثيوبة او بكارة باندې دې او دلته په حديث کښې هم دا دواړه

---

[1]): تفرد به أبو داود(صحيح)

[2]): تفرد به ابوداود،( تحفة الأشراف: ۱۵۳۵۸)، وقد أخرجه: صحيح البخاري/النكاح ٤۱(۵۱۳٦)، والحيل ۱۱(٦۹۷۰)، صحيح مسلم/النكاح ۹(۱٤۱۹)، سنن الترمذي/النكاح ۱۸(۱۱۰۷، ۱۱۰۸)، سنن النسائي/النكاح ۳٤(۳۲٦۹)، سنن ابن ماجه/النكاح ۱۱(۱۸۷۱)، مسند احمد(۲/۲۲۹، ۲۵۰، ٤۲۵، ٤۳٤)، سنن الدارمي/النكاح ۱۳(۲۲۳۲)(صحيح)

[3])، وهي من زالت بكارتها بوطي بعقد صحيح او فاسد او وطئ شبهة(المنهل) قلت وما في البذل في تفسير الثيب وهي التي فارقت زوجها بموت او طلاق اهـ ففيه نظر، بل هو تفسير الايم كما سياتي في حديث "الايم احق بنفسها من وليها" والله تعالي اعلم)

وصفونه ذکر شوي دی، لهذا دا حدیث د جمهورو دلیل او د احنافو خلاف شو.

احناف وائی چه په حدیث کښې ثیب او بکر دواړو نه ظاهره ده چه ثیبه بالغه او باکره بالغه مراد ده ځکه چه د صغیره اجازت خو د چا په نزد هم معتبر نه دې پس صغیره د مصداق حدیث نه عقلا خارج ده، لهذا د حدیث مطلب دا شو چه د بالغې نکاح که هغه ثیبه وی یا باکره وی د هغې د اجازت نه بغیر جائز نه ده کما هو مسلک الحنفیة... پاتې شوه دا خبره چه بیا وصف ثیوبة او بکارة ولې ذکر کړې شوې دې، د دې جواب دا دې چه طریق اجازت چونکه د دواړو مختلف دې په ثیب کښې اذن صریح ضروری دې او په بکر کښې سکوت هم کافی دې د هغې د بیان دپاره دا تعبیر اختیار کړې شوې دې البته په جمهور باندې به دا اشکال راځی[1] چه ستاسو په نزد خو باکره باندې ولی ته ولایت اجبار حاصل وی او دلته حدیث کښې دواړو په باره کښې نفی راغلې ده چه نه په ثیب باندې ولایة اجبار حاصل دې او نه په بکر باندې بیا دا حدیث ستاسو موافق څنګه شو؟ هغه حضرات د دې جواب دا کوی چه دا حکم په ثیبه کښې وجوبا دې او په باکره کښې استحبابا، یعنی اګر چه باکره باندې ولی ته ولایت اجبار حاصل دې چه د هغې د رضامندئ نه بغیر هغه د هغې نکاح کولې شی خو اولی هم دا ده چه د هغې نکاح هم بغیر د اجازت نه اونکړی خو دا توجیه کمزورې او د سیاق خلاف ده. والله سبحانه وتعالی اعلم. والحدیث اخرجه البخاری ومسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[٢٠٩٣]([2]) حَدَّثَنَا أَبُو كَامِلٍ، حَدَّثَنَا يَزِيدُ يَعْنِي ابْنَ زُرَيْعٍ. ح وحَدَّثَنَا مُوسَى بْنُ إِسْمَاعِيلَ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ الْمَعْنَى، حَدَّثَنِي مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، حَدَّثَنَا أَبُو سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "تُسْتَأْمَرُ الْيَتِيمَةُ فِي نَفْسِهَا، فَإِنْ سَكَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا، وَإِنْ أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا". وَالْإِخْبَارُ فِي حَدِيثِ يَزِيدَ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَكَذَلِكَ رَوَاهُ أَبُو خَالِدٍ سُلَيْمَانُ بْنُ حَيَّانَ وَمُعَاذُ بْنُ مُعَاذٍ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو.

دابوهریره رضی الله عنه نه روایت دې فرمائی چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی چه دپیغلو جینکونه دنکاح په وخت کښې اجازت واخستلې شی که چرې اجازت غوښتلوپه د وخت کښې خاموشی اختیارکړی نوهمدا ددوی اجازت دې اوکه چرې انکار وکړی نوپه دوی باندې زبردستی کول نه دی پکار، دا الفاظ دیزید دروایت دي. امام ابوداود فرمائی چه همدارنګی روایت ابوخالد سلیمان بن حیان نه هغه دمعاذ بن معاذ نه اوهغه دمحمدبن عمرونه نقل کړې دې.

**تشریح: قوله:** ﴿تستامر الیتیمة فی نفسها فان سکتت فهو اذنها﴾ دې حدیث کښې یتیمه بالاتفاق په خپل ظاهر باندې محمول نه ده ځکه چه یتیمه خو په ظاهره کښې هغه وړه جینئ ده چه د هغې پلار نه وی پاتې شوې، او ظاهره ده چه د صغیره اجازت د یو فقیه په نزد هم معتبر نه

---

[1] په اصل کښې دجمهورو استدلال (لا تنکح الثیب حتی تستأمر) د مفهوم مخالف نه دې ځکه چه ددې مفهوم مخالف دا راوځی چه د باکره نکاح دهغې داجازت نه بغیر کولې شی، احناف وائی دا مفهوم د حدیث دجزء ثانی د منطوق نه خلاف دې لهذا معتبر نه دې.

[2] ): تفرد به أبو داود(تحفة الأشراف: ١٥٠١٤، ١٥١١٣)، وقد أخرجه: سنن الترمذي/النكاح ١٩(١١٠٩)، سنن النسائي/النكاح ٣٦(٣٢٧٢)، مسند احمد(٢/٢٥٩، ٣٨٤)(حسن صحيح)

دي، لهذا د دې نه بکر بالغ مراد دي چه هغې ته د ما کان په اعتبار سره شفقة يتيمه وئيلې شوې ده کما فی قوله تعالی ﴿ واتوا اليتامى اموالهم ﴾او په دې باندې قرينه چه مراد ترې باکره ده دا ده چه وړاندې په حديث کښې فرمائی ﴿فان سكتت فهو اذنها﴾ يعنی د هغې سکوت ته اذن وئيلې شوې دې او د نورو احاديثو نه صراحة ثابته ده چه د سکوت اذن کيدل د باکره په حق کښې دی. فثبت بالامرين ان المراد باليتيمة البكر البالغ.

والحديث اخرجه الترمذی والنسائی قاله المنذری.

[٢٠٩٤]([1]) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ الْعَلَاءِ، حَدَّثَنَا ابْنُ إِدْرِيسَ، عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرٍو بِهَذَا الْحَدِيثِ بِإِسْنَادِهِ، زَادَ فِيهِ: قَالَ: "فَإِنْ بَكَتْ أَوْ سَكَتَتْ"، زَادَ: بَكَتْ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَلَيْسَ بَكَتْ بِمَحْفُوظٍ، وَهُوَ وَهْمٌ فِي الْحَدِيثِ، الْوَهْمُ مِنَ ابْنِ إِدْرِيسَ أَوْ مِنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْعَلَاءِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: وَرَوَاهُ أَبُو عَمْرٍو ذَكْوَانُ، عَنْ عَائِشَةَ، قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ الْبِكْرَ تَسْتَحِي أَنْ تَتَكَلَّمَ قَالَ: "سُكَاتُهَا إِقْرَارُهَا".

محمد بن عمرو نه هم داسې روايت نقل شوې دې مګر په دې روايت کښې دا اضافه ده چه که چرې ښځه خاموشه پاتې شی يا وژاړی نو داهم دهغې دطرف نه اجازت دې امام ابوداود فرمائی په دې روايت کښې ,, بکت،، لفظ دابن ادريس وهم دې اودا اضافه محفوظ نه ده.

﴿ زاد فيه : فان بكت او سكتت ﴾د باکره په حق کښې سکوت اذن کيدل خو اتفاقی مسئله ده خو د بکاء اذن کيدل مختلف فيه دی، د احنافو او شوافعو په نزد خو بکاء هم د اذن په حکم کښې دې او په دې کښې د مالکيانو اختلاف دې د هغوی په نزد بکاء اذن نه دې، او د شوافعو په نزد نفس بکاء خو اذن دې خو که بکاء په چغو او اوچت اواز سره وی نو اذن نه دې، او د بعض علماء کرامو رائې دا ده چه په بکاء کښې تفصيل دې چه که اوښکې ګرمې وی نو اجازت نشته او که يخې وی نو بيا اجازت شته، وقد اخرجه البخاری ومسلم والنسائی مسندا بمعناه قاله المنذری.

[٢٠٩٥]([2]) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا مُعَاوِيَةُ بْنُ هِشَامٍ، عَنْ سُفْيَانَ، عَنْ إِسْمَاعِيلَ بْنِ أُمَيَّةَ، حَدَّثَنِي الثِّقَةُ، عَنِ ابْنِ عُمَرَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "آمِرُوا النِّسَاءَ فِي بَنَاتِهِنَّ".

دابن عمر رضي الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه د نبی ﷺ فرمائيلی دی: دښځو سره ددوی و دلونړو دنکاح په معامله کښې مشوری کوئ اوددوی نه مشورې اخلئ.

اولياء ته حکم دې چه د جينکو سره د نکاح وغيره معاملاتو کښې د هغوی د مياندو سره مشوره کوئ ځکه چه د جينکو د حالاتو نه د پلارانو په نسبت مياندې زياتې خبر وی، وفی المنهل، والامر للاستحباب، قال الشافعی : لا خلاف انه ليس للام امر لكنه على معنى استطابة النفس. اهـ

---

[1]): حديث محمد بن العلاء قد تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ١٥٠٣٥)، وحديث أبو عمر وذكوان عن عائشة، قد رواه صحيح البخاري/النكاح ٤١(٥١٣٧)، صحيح مسلم/النكاح ٩(١٤٢٠)، سنن النسائي/ النكاح ٣٤(٣٢٦٨)،(تحفة الأشراف: ١٦٧٥)، وقد أخرجه: مسند احمد(٤٥/٦، ١٦٥، ٢٠٣)(صحيح)

[2]): تفرد به أبو داود،( تحفة الأشراف: ٨٥٩٨)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٤/٢)(ضعيف)

# بَابٌ فِي الْبِكْرِ يُزَوِّجُهَا أَبُوهَا وَلَا يَسْتَأْمِرُهَا

**باب: پیغله جینئ چه خپل پلارلی په نکاح چاته ورکړی او اجازت ترې وانخلی دهغې بیان**

دا مسئله مخکښې تیره شوه چه ولایة اجبار د امام شافعی رحمه الله په نزد صرف د پلار او نیکه دپاره دې، په خلاف د احنافو چه د هغوی په نزد د ټولو اولیاء دپاره دې خو فرق دا دې چه جینئ ته بعد البلوغ د پلار او نیکه په صورت کښې خیار حاصل نه وی او د نورو اولیاء په صورت کښې حاصل وی.

[۲۰۹۶](۱) حَدَّثَنَا عُثْمَانُ بْنُ أَبِي شَيْبَةَ، حَدَّثَنَا حُسَيْنُ بْنُ مُحَمَّدٍ، حَدَّثَنَا جَرِيرُ بْنُ حَازِمٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، "أَنَّ جَارِيَةً بِكْرًا أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَذَكَرَتْ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ، فَخَيَّرَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ".

دابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دې فرمائی : چه یوه پیغله جینئ دنبی علیه السلام په خدمت کښې حاضره شوه اوعرض ئې وکړوچه پلارچاته په نکاح ورکړی یم او زه ددې نکاح نه انکار کوم نونبی علیه السلام هغې ته اختیار ورکړو.

یعنی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې یوه باکره بالغه راغله او هغې شکایت اوکړو چه د هغې پلار د هغې نکاح د هغې د اجازت نه بغیر کړې ده، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه زنانه ته اختیار ورکړو دا حدیث د مسلک احناف عین مطابق دې چه په بالغې باندې چاته هم حق اجبار نشته اګر چه هغه باکره ولې نه وی. لهذا دا حدیث د جمهورو خلاف شو خو مصنف د دې حدیث په سند باندې کلام کړې دې او په دې کښې ئې د ارسال او اسناد په اعتبار سره د راویانو اختلاف بیان کړې دې او دا چه اکثر راویانو دا مرسلا روایت کړې دې بغیر د ابن عباس د ذکر نه، په بذل المجهود کښې ئې د علامه عینی نه نقل کړې دی: ولاصحابنا هذا الحدیث الذی اخرجه ابوداود والنسائی وابن ماجه واحمد، او بیا وړاندې حضرت په دې باندې تفصیلی کلام فرمائیلې دې، فلیراجع... والحدیث اخرجه ابن ماجة قاله المنذری.

[۲۰۹۷](۲) حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عُبَيْدٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادُ بْنُ زَيْدٍ، عَنْ أَيُّوبَ، عَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، بِهَذَا الْحَدِيثِ. قَالَ أَبُو دَاوُد: لَمْ يَذْكُرِ ابْنَ عَبَّاسٍ، وَكَذَلِكَ رَوَاهُ النَّاسُ مُرْسَلًا مَعْرُوفٌ.

عکرمه هم دنبی علیه السلام نه داسې روایت نقل به کړې دې، ابوداود فرمائی چه ابن عباس ئې پکښې نه دی ذکرکړی اوهمدارنګی دا روایت ډیر وخلقو داسې نقل کړی دی او مرسل مشهوردې.

---

[۱]: سنن ابن ماجه/النکاح ۱۲(۱۸۷۵)، (تحفة الأشراف: ۶۰۰۱، ۱۹۱۰۳)، وقد أخرجه: مسند احمد(۲۷۳/۱)(صحیح)

[۲]: انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ۶۰۰۱، ۱۹۱۰۳)(صحیح)

# بَابٌ فِي الثَّيِّبِ

## باب: د کونډې نه د اجازت اخستلو بیان

[٢٠٩٨]()حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ يُونُسَ، وَعَبْدُ اللَّهِ بْنُ مَسْلَمَةَ، قَالَا: أَخْبَرَنَا مَالِكٌ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "الْأَيِّمُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا، وَالْبِكْرُ تُسْتَأْذَنُ فِي نَفْسِهَا، وَإِذْنُهَا صُمَاتُهَا". وَهَذَا لَفْظُ الْقَعْنَبِيِّ.

دعبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي فرمائي چه نبی عليه السلام فرمائيلی دی: چه کونډه يا مطلقه ښځه دکومې سره چه يوځل خلوت شوي وي په خپله معامله دولي په نسبت باندې خود مختاره ده اوپيغلې نه به دهغې دنفس باره کښې اجازت اخستلې شي، او ددې خاموشه کيدل اجازت دې. او دا دقعنبی درو ايت الفاظ دي.

### د حديث په تشريح کښې د احنافو او شوافعو اختلاف

دا حديث د احنافو صريح او صحيح دليل دې د ولاية النکاح په مسئله کښې چه حره عاقله بالغه ته په خپله نکاح باندې ولايت حاصل دې د دې حديث حواله په باب فی الولی کښې تيره شوې ده، په فتح القدير کښې په دې مسئله باندې تفصيلی کلام دې کوم چه په بذل المجهود کښې هم نقل کړې شوې دې، ځکه چه ﴿احق﴾ د اسم تفضيل صيغه ده کومه چه شرکت لره مقتضی ده مع شئ زائد للمفضل... نو چه کله ولی ته ولايت نکاح حاصل دې نو خپله به زنانه ته په طريق اولی حاصل وی، لهذا د دې حديث نه دوه خبرې معلومې شوې، بالغه زنانه خپله نکاح کښې خود مختاره ده او دويم دا چه ولی د هغې نکاح بغير د هغې د رائې نه نه شی کولې. وبعبارة اخرى د بالغې ولی د هغې په تزويج کښې د هغې د اذن محتاج دې او بالغه په خپل تزويج کښې د ولی اذن ته محتاجه نه ده، حضرات شوافع فرمائی چه د زنانه د احق کيدو مطلب دا دې چه ولی د هغې نکاح د هغې د اجازت او رضامندئ نه بغير نه شی کولې نه دا چه هغه خپله نکاح کولې شی، پس امام ترمذی په جامع ترمذی کښې د دې حديث د تخريج نه پس فرمائی: ﴿هذا حديث حسن صحيح واحتج بعض الناس فی اجازة النکاح بغير ولی بهذا الحديث وليس فی هذا الحديث ما احتجوا به وانما معنی قول النبی صلی الله عليه وسلم الايم احق بنفسها من وليها عند اکثر اهل العلم ان الولی لا يزوجها الا برضاها مختصرا﴾ ګويا د شوافعو په نزد د دې حديث تعلق صرف د ولاية الاجبار سره دې د ولاية النکاح سره نه دې او چونکه د ولاية الاجبار مدار د هغوی په نزد په ثيوبة او بکارة باندې دې ځکه چه هغه فرمائی چه د ﴿الايم﴾ نه مراد ثيب دې (وقد اشار اليه المصنف ايضا بترجمة الباب) لهذا دا حديث ابن عباس د هغوی په نزد د دې حديث ابوهريره رضي الله عنه په معنی دې کوم چه په باب الاستيمار کښې تير شوې دې ﴿لا تنکح الثيب حتی تستامر﴾ بلکه بعض رواياتو کښې ﴿الايم﴾

[1]): صحيح مسلم/النکاح ٩(١٤٢١)، سنن الترمذي/النکاح ١٧(١١٠٨)، سنن النسائي/النکاح ٣١(٣٢٦٢)، سنن ابن ماجه/النکاح ١١(١٨٧٠)،(تحفة الأشراف: ٦٥١٧)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النکاح ٢(٤)، مسند احمد(١/٢١٩، ٢٤٣، ٢٧٤، ٣٥٤، ٣٥٥، ٣٦٢)، سنن الدارمي/النکاح ١٣(٢٢٣٤)(صحيح)

په ځائې ﴿الثيب﴾ راغلې دې لهذا د ﴿الايم﴾ نه مراد ثيب دې او حافظ ابن حجر خو دا هم وئيلې دی چه ايم په اصل لغت کښې ثيب ته وئيلې شی اګر چه د دې اطلاق مطلقا په هغه زنانه باندې هم کيږی چه خاوند ئې نه وی که ثيب وی يا بکر وی.

خو د حافظ صاحب دا خبره د تحقيق خلاف ده حمله علی ذلک نصرة مذهبه، حضرت په بذل کښې د قاموس عبارت نقل کړې دې ﴿الايم ککيس منن لا زوج لها بکرا کانت او ثيبا﴾ علامه تورپشتی (چا چه په دې حديث ښه وضاحت کړې دې) هم دا ثابته کړې ده چه ﴿الايم﴾ عام دې د ثيب سره خاص نه دې، هغه فرمائی دا ټول حضرات ليکی چه د ﴿ايم﴾ معنی د ثيب ده ځکه چه په حديث کښې د هغې مد مقابل مذکور دې. هغه فرمائی ﴿واراهم انما ذهبوا الی ذلک فرارا من القول بولاية المراءة علی نفسها﴾، بيا وړاندې تلو سره فرمائی چه په دې حديث کښې چه دا بکر جدا ذکر کړې شوې دې. د استيذان په باره کښې پس د دې وجه دا ده چه اګر چه ثيب او بکر په مسئلة ولاية النکاح کښې متفق دی خو په حکم استيذان کښې مختلف دی. اه مختصرا من التعليق الصبيح ١٦/٤ هم دغه شان تورپشتی فرمائی چه په کوم روايت په ځائې د ﴿الايم﴾﴿الثيب﴾ راغلې دې، په ظاهره کښې هغه روايت بالمعنی ده، راوی دا خيال اوکړو چه دا دواړه الفاظ د معنی په لحاظ يو شان دی د يو بل قائم مقام کيدې شی. (قلت) که دا هم تسليم کړې شی چه د ايم معنی ثيب ده نو بيا هم زمونږ د مطلوب منافی نه دې ځکه چه زمونږ استدلال خو د لفظ احق نه دې، هغه په حديث کښې په هر صورت کښې مذکور دې، باقی د ثيب د تخصيص په بناء عادت کيدې شی چه په خپله د نکاح اقدام هم د هغې نه متوقع دې د بکر نه دې، دا مقام کافی دقيق دې دا ئې په غور اوګنړلو او اولوستلې شی. والحديث اخرجه مسلم والترمذی والنسائی وابن ماجة قاله المنذری.

[٢٠٩٩](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ حَنْبَلٍ، حَدَّثَنَا سُفْيَانُ، عَنْ زِيَادِ بْنِ سَعْدٍ، عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ الْفَضْلِ، بِإِسْنَادِهِ وَمَعْنَاهُ، قَالَ: "الثَّيِّبُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا، وَالْبِكْرُ يَسْتَأْمِرُهَا أَبُوهَا". قَالَ أَبُو دَاوُد: أَبُوهَا لَيْسَ بِمَحْفُوظٍ.

عبدالله بن الفضل په خپل سندسره دنافع بن جبير دروايت په شان روايت نقل کړې دې مګردې اضافی سره چه کونده يا مطلقه ښځه دکومې سره چه يوځل خلوت شوې وې په خپله معامله دولی په نسبت باندې خود مختاره ده اوديپغلی نه به دهغې دنفس باره کښې ددې پلار اجازت اخلی.

[٢١٠٠](2) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا مَعْمَرٌ، عَنْ صَالِحِ بْنِ كَيْسَانَ، عَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ: "لَيْسَ لِلْوَلِيِّ مَعَ الثَّيِّبِ أَمْرٌ، وَالْيَتِيمَةُ تُسْتَأْمَرُ، وَصَمْتُهَا إِقْرَارُهَا".

دعبدالله بن عباس رضی الله عنهما نه روايت دې فرمائی چه نبی علیه السلام فرمائيلی دی: چه دکونډې سره دولی څه کارنشته اوديتيمې نه به اجازت غوښتلې شي او ددې خاموش کيدل داقرار قائم مقام دې.

(1): انظر ما قبله، (تحفة الأشراف: ٦٥١٧) (صحيح)
(2): انظر حديث رقم (٢٠٩٨)، (تحفة الأشراف: ٦٥١٧) (صحيح)

[۲۱۰۱](۱) حَدَّثَنَا الْقَعْنَبِيُّ، عَنْ مَالِكٍ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ الْقَاسِمِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، وَمُجَمِّعِ ابْنَيْ يَزِيدَ الْأَنْصَارِيَّيْنِ، عَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِذَامٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذَلِكَ، فَجَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ "فَرَدَّ نِكَاحَهَا".

دخنساء بنت خدام انصاریه ﷞ نه روایت دې فرمائی چه زه خپل پلاژبه نکاح ورکړم اوزه ثیبه(خلوت شده)وم نوما دارشته بده وګڼله اونبی ﷺ ته ورغلم او دا واقعه مې ورته ذکرکړه نونبی ﷺ نکاح واپس ماته کړه.

عَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ (۲) خِذَامٍ الْأَنْصَارِيَّةِ، أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذَلِكَ، فَجَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ "فَرَدَّ نِكَاحَهَا".

دا حدیث په احنافواو شوافعو کښې د چا خلاف هم نه ده ځکه چه په صورت مذکوره في الحديث کښې دواړو په نزد دا نکاح منسوخ ده خو په تعلیل کښې اختلاف دې، د شوافعو په نزد د رد نکاح علت د دې ثیب کیدل دی او د احنافو په نزد بالغ کیدل دی، په منهل کښې د دې حدیث د لاندې د دې مسئلې تفصیلات ذکر کړې دی، په دې کښې لیکلې دی چه په کوم صورت کښې د ولي دپاره د زنانه نکاح بغیر د هغې د اجازت نه جائز نه ده که ولي د هغې نکاح بغیر د اجازت او اطلاع نه اوکړی بیا هغه زنانه د دې په خبر کیدو باندې دا نکاح جائز کړی په دې صورت کښې احناف خو دا وائی چه هغه نکاح به صحیح وی او که هغه ئې جائز نه ګڼړی نو نکاح به صحیح نه وی باطله به وی، او د امام احمد او امام شافعی مسلک دا دې چه په دې صورت هغه نکاح به هر صورت کښې باطله ده، په خبر کیدو باندې که هغه زنانه راضی وی یا نه وی، او د مالکیانو په نزد په دې کښې تفصیل دې کما ذکر فی المنهل. والحديث اخرجه البخاری والنسائی وابن ماجة قاله المنذری. وفی المنهل والحديث اخرجه ايضا الشافعی واحمد والبخاری وباقی الاربعة والبيهقی والدارقطنی. اهـ

## بَابٌ فِي الْأَكْفَاءِ

### باب: د کفو د احکامو بیان

### د کفاءة متعلق مباحث اربعه

دلته څو خبرونه د تپوسلو قابل دی اول د کفاءة معنی، دویم د هغې شرعي حکم، دریم هغه اوصاف چه په هغې کښې کفاءة معتبر دې، څلورم کفاءت د چا حق دې؟... ایا د سړی یا د زنانه یا د دواړو.

### بحث اول : ( کفوء معنی )

لفظ الاكفاء کوم چه په ترجمة الباب کښې مذکور دې دا د کفو بضم اوله وسكون الفاء بعدها همزة جمع ده، د کفاءة معنی ده برابری، کفو په معنی د المثل والنظير، والمراد بالكفاءة ههنا الزوج نظير الزوجة فی النسب ونحوه كما فی المنهل یعنی د سړی د زنانه سره برابریدل د هغې نه په درجه کښې ښکته نه کیدل.

---

(۱): صحيح البخاري/النكاح ٤٢(٥١٣٨)، الإكراه ٣(٦٩٤٥)، الحيل ١١(٦٩٦٩)، سنن النسائي/النكاح ٣٥(٣٢٧٠)، سنن ابن ماجه/النكاح ١٢(١٨٧٣)،( تحفة الأشراف: ١٥٨٢٤)، وقد أخرجه: موطا امام مالك/النكاح ١٤(٢٥)، مسند احمد(٦/٣٢٨)، سنن الدارمي/النكاح ١٤(٢٢٣٨)(صحيح)

(۲) خنساء بنت خذام علي وزن حمراء وخذام بكسر الخاء المعجمة بعدها دال مهملة وفي بعض النسخ بنت خذام بالذال المعجمة، ورجح الحافظ الاول وهي صحابية مشهورة. المنهل)

**بحث ثاني : (د کفوء حکم)**

د جمهورو او ائمه ثلاثه په نزد د زوجین ترمینځه کفاءة موندلې کیدل د نکاح د صحت دپاره شرط نه دې، د امام احمد رحمه الله نه په دې کښې دوه روایتونه دی، ابن قدامه فرمائی ﴿روی عنه انها شرط له، والرواية الثانية عن احمد انها ليست بشرط وهذا قول اكثر اهل العلم، كذا في الاوجز ۴/۴۱۵﴾.

بهرحال د جمهورو په نزد کفاءت شرط صحت خو نه دې خو شرعا معتبر ضرور دې پس په هدایه کښې دی چه کفاءت په نکاح کښې معتبر دې پس که یوه زنانه خپله نکاح د غیر کفو سره اوکړی نو په دې صورت کښې اولیاء لره د زوجین ترمینځه د تفریق کولو حق دې دفعا لضرر العار عن انفسهم، ابن قدامه رحمه الله فرمائي چه د روایاتو نه د کفاءت فی الجمله معتبر کیدل ثابت دی خو د دې نه د دې اشتراط نه لازمیږی.

**بحث ثالث : کفاءت په کومو کومو اوصافو کښې معتبر دې؟**

مسئله مختلف فیه ده، د احنافو په نزد په دری څیزونو کښې بالاتفاق معتبر ده، نسب، حریت، مال، د دې درې وارو نه علاوه دوه وصفونه مختلف فیه دی یعنی دین، صنعت او کسب، د شیخین په نزد کفاءت فی الدین معتبر دې، د امام محمد په نزد معتبر نه دې، هغه فرمائی دین د امور اخرت نه دې، او د کار کسب اعتبار د امام ابویوسف په نزد دې خلافا لابی حنیفة علی عادة العرب، ځکه چه د اهل عرب په نزد کار کسب د عار یا افتخار باعث نه دې، او د امام ابویوسف رحمه الله په نزد دې لره اعتبار دې علی عادة العجم لان العجم یعیرون بالدنی من الحرفة... چه د عجمیانو په نزد کمزوری کسب د شرم باعث دې. د حضرت گنگوهی د تقریر نه معلومیږی چه امام صاحب په دې کښې د عربو د حال لحاظ فرمائیلی دې چه چونکه هغوی سره خپل نسبونه محفوظ دی په دې وجه هغوی د کار کسب پرواه نه کوی، او امام ابویوسف رحمه الله د عجمیانو حالت ته کتلو سره حرفة لره اعتبار ورکړې دې ځکه چه عجمیانو خپل نسب محفوظ نه دې ساتلې. پس د هغوی نظر په ظاهری حرفة او کسب باندې وی. بهرحال دا کل پنځه اوصاف شو، د امام احمد رحمه الله په نزد هم کفاءت هم په دې اوصاف خمسه کښې معتبر دې او بل روایت د هغوی نه دا دې چه د کفاءت اعتبار صرف په دین او نسب کښې دې او هم دغه شان د شوافعو په نزد فی المشهور عنهم کفاءت په دې اوصاف خمسه کښې معتبر دې. التقوی، الحرية، النسب، الحرفة، السلامة من العیوب المنفرة مثل الجنون والجذام والبرص. د دې نه علاوه شپږم څیز مال دې یعنی ﴿یسار﴾ چه په هغې کښې روایات مختلف دی، او د امام مالک رحمه الله مسلک دا دې چه کفاءت صرف په دین کښې معتبر دې، لقوله تعالی ان اکرمکم عند الله اتقاکم ولقوله علیه الصلاة والسلام فاظفر بذات الدین.

**بحث رابع : کفاءت دا د زنانه حق دې د سړی حق نه دې:**

ففي المنهل : وتعتبر فی جانب الرجال للنساء ولا تعتبر فی جانب النساء للرجال لان النصوص وردت بهذا. لهذا د کفاءت حاصل دا دې چه په څو مخصوص اوصاف حسنه کښې د سړی د زنانه سره برابر کیدل (۱) او د زنانه د سړی برابر کیدل دا کفاءت نه دې ځکه چه د عدم کفاءت په صورت کښې چه کوم عار لاحق کیږی هغه زنانه ته لاحق کیږی سړی ته په هیڅ صورت کښې

(۱) یعنی که هغه اوصاف په ښځه کښې بیا موندلې شی نو په سړی کښې هم کیدل پکار دی او د دې عکس معتبر نه دې (چه که هغه اوصاف په سړی کښې وی نو په زنانه کښې دې هم وی).

نه لاحق کیږي ځکه زنانه د خاوند ماتحت وي او د اعلی د ادنی ماتحت کیدل دا موجب عار دی نه دديّ عکس، لهذا د زنانه د سري نه کم درجه کیدل مضر نه دي.

[٢١٠٢]() حَدَّثَنَا عَبْدُ الْوَاحِدِ بْنُ غِيَاثٍ، حَدَّثَنَا حَمَّادٌ، حَدَّثَنَا مُحَمَّدُ بْنُ عَمْرٍو، عَنْ أَبِي سَلَمَةَ، عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ أَبَا هِنْدٍ حَجَمَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْيَافُوخِ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "يَا بَنِي بَيَاضَةَ، أَنْكِحُوا أَبَا هِنْدٍ وَأَنْكِحُوا إِلَيْهِ"، وَقَالَ: "وَإِنْ كَانَ فِي شَيْءٍ مِمَّا تَدَاوُونَ بِهِ خَيْرٌ، فَالْحِجَامَةُ".

دابوهريرة رضی الله عنه نه روایت دي فرمائي چه ابوهند نبی علیه السلام ته ښکرولګولو، په دې وخت کښې نبی علیه السلام اوفرمائیل اې بنی بیاضه قبیلي والا ابوهند ته څوك زنانه په نکاح ورکړئ اودنکاح پیغام ورته ولیږئ ځکه چه ستاسو دپاره چه په دوا ګانو کښې کومه بهتره دوا ده هغه حجامت دې یعنی ښکرلګول.

د حدیث مضمون دا دي چه ابو هند حجام رضی الله عنه (ښکر لګولو والا) د رسول الله صلی الله علیه وسلم د سر مبارك په کپره باندې ښکر اولګولو، په دې باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغه د خاندان خلقو ته خطاب کولو سره اوفرمائیل چه اې بنو بیاضه! د خپلو جینکو هغه کره ودونه اوکړئ او د هغه د لونړو رشتې اوغواړئ، یعنی خپل مینځ کښې د ابوهند سره ودونه اوکړئ، شارحینو لیکلي دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا خبره یا خو په دې وجه اوفرمائیله چه ابو هند د موالی نه وو یا د هغه د کسب حجامت د وجي نه. والحديث اخرجه مختصرا البيهقي والحاكم وقال هذا حديث صحيح على شرط مسلم اهـ قاله في المنهل.

**فائده** : امام بخاری د کفاءت په سلسله کښې دوه بابونه قائم کړي دی، باب الاكفاء في الدين، د دې نه روستو ئې باب الاكفاء في المالوتزويج المقل المثرية، حافظ فرمائی چه د کفاءت په معتبر کیدلو کښې د ټولو علماء کرامو اتفاق دې (فلا تحل المسلمة للكافر اصلا)[٢]، د دې نه روستو لیکی چه د امام مالك رائې بالجزم دا ده چه کفاءت د دین سره مختص دې ونقل عن ابن عمرو وابن مسعود، ومن التابعين عن ابن سيرين وعمرو بن عبدالعزيز.

## ایا په کفاءت بالنسب کښې یو حدیث شته؟

د دې نه روستو حافظ فرمائی چه جمهور علماء کرامو د کفاءت في النسب اعتبار کړې دې، بیا لیکی چه : ولم يثبت في اعتبار الكفاءة بالنسب حديث... او د بخاری د دویم باب د لاندې حافظ لیکی چه کفاءت بالمال معتبر کیدو کښې اختلاف دې والاشهر عند الشافعية انه لا يعتبر ونقل عن الشافعي انه قال الكفاءة في الدين والمال والنسب الى اخر ما قال الحافظ، زه وایم چه غالبا امام بخاری په دویم باب کښې وتزويج المقل المثرية نه د کفاءت في المال عدم اعتبار طرف ته اشاره کړې ده لکه چه د شوافعو مشهور مذهب دې.

---

[١]: تفرد به أبو داود، ( تحفة الأشراف: ١٥٠١٩)، وقد أخرجه: سنن ابن ماجه/الطب ٢٠(٣٤٧٦)، مسند احمد(٣٤٢/٢، ٤٢٣)(حسن)

[٢] ، تنبيه : او هغه چه په شروع کښې مونږ سره د مذاهبو د اختلاف د لاندې تیر شو چه د امام محمد په نزد د کفاءت في الدين اعتبار نشته نو د هغه تعارض دفیعه دا ده چه د حافظ مراد د دین نه دین اسلام دی او هلته د دین نه مراد دین اسلام نه دې بلکه دیانت او تقوی مراد ده.

# بَابٌ فِي تَزْوِيجِ مَنْ لَمْ يُولَدْ

## باب: د پیدائش نه مخکښې په نکاح ورکول

يعنى د جينئ د پيدائش نه مخکښې د هغې نکاح کول لکه چه د جاهليت په زمانه کښې به داسې کيدل. كما في حديث الباب... خو په مذهب اسلام کښې دا تزويج باطل او غير معتبر دې. او دخطابى په نسخه کښې باب في تزويج من لم تولد د مؤنث په صيغې سره واقع دې، صاحب منهل ليکى چه بيهقى ترجمه قائم کړې ده: لا نكاح لمن لم يولد.

[٢١٠٣](١) حَدَّثَنَا الْحَسَنُ بْنُ عَلِيٍّ، وَمُحَمَّدُ بْنُ الْمُثَنَّى الْمَعْنَى، قَالَا: حَدَّثَنَا يَزِيدُ بْنُ هَارُونَ، أَخْبَرَنَا عَبْدُ اللَّهِ بْنُ يَزِيدَ بْنِ مِقْسَمٍ الثَّقَفِيُّ مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ، حَدَّثَتْنِي سَارَةُ بِنْتُ مِقْسَمٍ، أَنَّهَا سَمِعَتْ مَيْمُونَةَ بِنْتَ كَرْدَمٍ، قَالَتْ: خَرَجْتُ مَعَ أَبِي فِي حَجَّةِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَرَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَدَنَا إِلَيْهِ أَبِي وَهُوَ عَلَى نَاقَةٍ لَهُ، فَوَقَفَ لَهُ وَاسْتَمَعَ مِنْهُ وَمَعَهُ دِرَّةٌ كَدِرَّةِ الْكُتَّابِ، فَسَمِعْتُ الْأَعْرَابَ وَالنَّاسَ وَهُمْ يَقُولُونَ: الطَّبْطَبِيَّةَ الطَّبْطَبِيَّةَ الطَّبْطَبِيَّةَ، فَدَنَا إِلَيْهِ أَبِي فَأَخَذَ بِقَدَمِهِ فَأَقَرَّ لَهُ وَوَقَفَ عَلَيْهِ وَاسْتَمَعَ مِنْهُ، فَقَالَ: إِنِّي حَضَرْتُ جَيْشَ عِثْرَانَ، قَالَ ابْنُ الْمُثَنَّى: جَيْشَ غِثْرَانَ، فَقَالَ طَارِقُ بْنُ الْمُرَقَّعِ: مَنْ يُعْطِينِي رُمْحًا بِثَوَابِهِ؟ قُلْتُ: وَمَا ثَوَابُهُ؟ قَالَ: أُزَوِّجُهُ أَوَّلَ بِنْتٍ تَكُونُ لِي، فَأَعْطَيْتُهُ رُمْحِي، ثُمَّ غِبْتُ عَنْهُ حَتَّى عَلِمْتُ أَنَّهُ قَدْ وُلِدَ لَهُ جَارِيَةٌ وَبَلَغَتْ، ثُمَّ جِئْتُهُ، فَقُلْتُ لَهُ: أَهْلِي جَهِّزْهُنَّ إِلَيَّ، فَحَلَفَ أَنْ لَا يَفْعَلَ حَتَّى أُصْدِقَهُ صَدَاقًا جَدِيدًا غَيْرَ الَّذِي كَانَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ، وَحَلَفْتُ لَا أُصْدِقُ غَيْرَ الَّذِي أَعْطَيْتُهُ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "وَبِقَرْنِ أَيِّ النِّسَاءِ هِيَ الْيَوْمَ؟" قَالَ: قَدْ رَأَتِ الْقَتِيرَ، قَالَ: أَرَى أَنْ تَتْرُكَهَا، قَالَ: فَرَاعَنِي ذَلِكَ وَنَظَرْتُ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَلَمَّا رَأَى ذَلِكَ مِنِّي، قَالَ: "لَا تَأْثَمُ وَلَا يَأْثَمُ صَاحِبُكَ". قَالَ أَبُو دَاوُد: الْقَتِيرُ الشَّيْبُ.

دميمونه بنت كردم رضي الله عنها نه روايت دې فرمائى چه زه دخپل پلار سره د رسول الله دحجة الوداع په سفر کښې روانه شوم زما پلار نبى عليه السلام ته نزدې ورغې او هغه په دې وخت کښې په يو اوښ باندې سور وو او په لاس کښې ئې يو داسې لخته (چوکه) وه لکه څنګه چه د مکتب د معلمينو سره وي (په کومې سره چه ماشومانو ته تعليم اوادب ورکوي ما واوريدل چه هغه او نورو کسانو الطبية الطبطبة الطبطبة وئيل په دې وخت کښې زما پلار نبى عليه السلام ته ورنزدې شو اوهغه لاس ئې ونيوو اودهغه دپيغمبرکيد واقرارئې وکړو او په هم هغه ځائې ولاړ وو اودنبى عليه السلام نه ئې ډير فائده مند نصيحتونه واوريدل اوددې نه پس ئې ورته عرض اوکړو چه زه دحبشو په عثران لښکر کښې شريك وم داد جاهليت دزمانى لښکروو) طارق بن مرقع رانه تپوس اوکړو داسې به څوك وى چه ماته يو نيزه راکړى ددې په عوض کښې ماورته اووئيل دکوم شى په عوض کښې؟ طارق اووئيل ددې په عوض کښې چه کله زما اولنئ لور پيداشى هغه به ورته زه په سنتتاح ورکوم چنانچه ما ورته خپله نيزه ورکړه اولاړم تردې چه يوه ورځ ما واوريدل چه دطارق لور پيداشوى ده اوهغه اوس پيغله شوى ده زه ورته ورغلم چه اوس ماته زما ښخه راوسپاره هغه قسم وکړو چه زه به هيڅ کله تاته خپله لوردرنکرم يعنى. په نکاح ترڅوچه تاماته ددې نه علاوه نوې مهرنه وى راکړې اوماهم داقسم وکړو چه زه به ورته ددې نه علاوه هيڅ يوشې ورنکړم، په دې وخت کښې نبى عليه السلام اوفرمائيل اوس جينئ دڅومره عمرده؟ زما پلار اووئيل هغه اوس بوډئ شوى ده نبى عليه السلام اوفرمائيل هغه پرېږده چه لاړه شى زه ددې خبرې نه اوويريدم اوما نبى عليه السلام وليدو. هغه و چه کله زما حالت اوليدونو وئې فرمائيل نه ته ګنهګار کيږې اونه ستا ملګرت (طارق) ګنهګاريږي. ابوداود فرمائى چه قتير

---

١) تفرد به أبو داود،(تحفة الأشراف: ١٨٠٩١)، وقد أخرجه: مسند احمد(٣٦٦٧٦)، ويأتي هذا الحديث في الأيمان(٣٣١٤)(ضعيف)

بوډا والی ته وئیلې شي.

## شرح الحديث بتمامه:

د حدیث مضمون دا دې چه میمونه بنت کردم رضی الله عنها فرمائی چه زه د خپل والد محترم سره د حجة الوداع دپاره لاړم نو رسول الله ﷺ مې اولیدو هم په دې وخت کښې زما والد صاحب ورورانډې شو په داسې حال کښې چه رسول الله ﷺ په خپله اوښه باندې سور وو هغه سره یوه دره وه څنګه چه د ماشومانو د معلمینو سره وی(وړاندې میمونه د هغه وخت یو خاص منظر بیان فرمائی چه) ما د خلقو نه واوریدل(د خلقو نه مراد هغه صحابه دی کوم چه هغوی نه چاپیره راجمع وو) چه هغوی داسې وئیل ﴿الطبطبية الطبطبية﴾ د دې جملې په شرح کښې د شارحینو دوه اقوال دی یو دا چه طبطبیه کنایه ده د(دره نه څکه چه کله هغه وهلې شي نو د طب طب په شان اواز پیدا کیږی او دا منصوب دې په تحذیر باندې یعنی ځان بچ کړئ د کوړې نه. په ظاهره کښې ئې مطلب دا دې چه خلقو به د رسول الله ﷺ د ډیر زیارت کولو په شوق کښې د هغه خواته راجمع کیدل چه د هغې په وجه باندې به د سورلئ په وړاندې تلو کښې رکاوټ پیدا کیدو نو په دې وجه باندې ورته وئیلې شی چه رش مه جوړوئ ګینې کوړه باندې به اولګئ. او دویم احتمال دا دې چه المراد به حكاية وقع الاقدام،(١) ای الناس يسعون ولاقدامهم صوت طب طب، یعنی خلق په تیزئ سره روان وو او د هغوی د تلو اواز طب طب اوریدلې کیدو. د دې معنی ثانی نه دا خبره معلومیږی چه د صحابه کرام باوجود د کثرت نه دومره خاموش وو او دوی ډیر په خاموشئ سره روان وو بالکل څه شور نه وو. څکه چه راوی وائی چه دې وخت کښې په زمکه باندې صرف د قدمونو د پریوتلو اواز اوریدلې کیدو. زه وائم چه هم دا حال د صحابه کرامو د رسول الله ﷺ په مجلس کښې هم وو. كان على رؤسهم الطير، صلى الله على سيدنا محمد واله واصحابه وسلم.

﴿فدنا اليه ابى فاخذ بقدم فاقر له ووقف عليه واستمع منه﴾ میمونه رضی الله عنها فرمائی چه کله زما والد صاحب رسول الله ﷺ ته نزدې شو نو هغه د رسول الله ﷺ قدم مبارک اونیولو، رسول الله ﷺ د هغه دا فعل برقرار اوساتلو یعنی هغه ئې د خپې نیولو نه منع نه کړو(٢) او هغه ایسار شو او د هغه خبره ئې اوریدله، وړاندې په روایت کښې دی چه هغه سړی رسول الله ﷺ ته دا عرض اوکړو چه په تیره زمانه کښې په جیش عثران کښې موجود وو، نو یو سړې چه د هغه نوم طارق بن المرقع دې دا اعلان اوکړو چه ﴿من يعطيني ومحابئوا به﴾ چه څوک دې چه خپله نیزه د دې په بدله کښې راکړی، هغه سړې وائی ما تپوس اوکړو چه هغه بدله به څه وی نو هغه جواب ورکړو چه ما کره چه کومه جینئ پیدا کیږی زه به د هغې سره د هغه واده کوم، د بنت کردم والد فرمائی چه په دې باندې ما خپله نیزه هغه ته ورکړه بیا زه د هغه نه غائب شوم څه موده پس زما په علم کښې دا خبره راغله چه د هغه سړی کره لور پیدا شوې ده کومه چه بالغه شوې هم ده. په دې خبر اوریدلو سره زه طارق بن المرقع ته لاړم او هغه ته مې اووې چه هغه

---

(١) وفي هذا المعنى الثاني دلالة على سكوتهم وسكونهم بين يدي رسول الله صلى الله عليه وسلم مع كثرة الازدحام تعظيما لرسول الله صلى الله عليه وسلم حيث يقول الراوي لا يسمع منهم الا صوت وقع الاقدام)

(٢) په بذل المجهود کښې لیکلی دی چه بعضو شارحینو د فاقر له تشریح په اعتراف رسالت سره کړې ده یعنی دغه سړی د نبی علیه السلام خپې اونیولې اودهغوی ﷺ د رسالت اقرار ئې اوکړو، حضرت دا مطلب رد کړې دې څکه چه د مسند احمد په روایت کښې د فاقر له رسول الله صلى الله عليه وسلم لفظ دې، ددې نه معلومه شوه چه د فاقر فاعل رسول الله ﷺ دې او ددې دویمې معنی تقاضا داده چه د اقر فاعل دغه سړې وی.

ستا لور زما زوجه ده لهذا هغه ماته حواله کړه په دې باندې طارق حلقة دا خبره اوکړه چه ترڅو پورې ته ماته نوې مهر رانکړې زه به هغه تاته نه حواله کوم، کردم وائی چه ما په دې قسم اوکړو چه د هغه څیز نه علاوه چه کوم مې تاته درکړې دې زه به تاته نور هیڅ هم درنکړم، رسول اللهﷺ د کردم نه په دې پوره قصه اوریدلو سره اوفرمائیل : ﴿وبقرن ای النساء هی الیوم﴾ چه د هغه جینئ عمر اوس څومره دې؟ هغه جواب ورکړو چه ﴿قد رات القیر ﴾چه اوس خو هغه بوډئ کیدو والا ده، وړاندې په کتاب کښې راغی ﴿القیر الشیب ﴾

## مطابقة الحديث للترجمة :

په دې باندې رسول اللهﷺ کردم ته اوفرمائیل ﴿اری ان تترکها ﴾زما رائې دا ده چه ته هغه پریږده. هم د دې نه د ترجمة الباب حکم لفظ معلوم شو چه دا نکاح صحیح نه وه، ځکه چه نکاح که صحیح وه نو رسول اللهﷺ به هغه ته د طلاق حکم فرمائیلې وې او داسې نه ده بلکه رسول اللهﷺ ورته د ترک حکم اوکړو، وړاندې په روایت کښې دی چه کردم فرمائی چه د رسول اللهﷺ په دې ارشاد سره زما فکر پیدا شو او ما په ویره باندې هغه ته کتل(اصل کښې د کردم دا خیال راغلو چه اوس به زه حانث شم چه د هغې په وجه باندې فکرمند شو) رسول اللهﷺ د کردم په دې فکر باندې پوهه شو نو هغه اوفرمائیل چه نه هیڅ باک نشته، په دې صورت کښې به نه ته حانث کیږې او نه ستا ملګرې، د عدم حنث وجه ظاهره ده په دې وجه د خپل حلف خلاف نه هغه څه اوکړل او نه دې بل.

[٢١٠٤](1) حَدَّثَنَا أَحْمَدُ بْنُ صَالِحٍ، حَدَّثَنَا عَبْدُ الرَّزَّاقِ، أَخْبَرَنَا ابْنُ جُرَيْجٍ، أَخْبَرَنِي إِبْرَاهِيمُ بْنُ مَيْسَرَةَ، أَنَّ خَالَتَهُ أَخْبَرَتْهُ، عَنِ امْرَأَةٍ، قَالَتْ: هِيَ مُصَدَّقَةٌ امْرَأَةُ صِدْقٍ، قَالَتْ: بَيْنَا أَبِي فِي غَزَاةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ إِذْ رَمِضُوا، فَقَالَ رَجُلٌ: مَنْ يُعْطِينِي نَعْلَيْهِ وَأُنْكِحُهُ أَوَّلَ بِنْتٍ تُولَدُ لِي؟ فَخَلَعَ أَبِي نَعْلَيْهِ، فَأَلْقَاهُمَا إِلَيْهِ، فَوُلِدَتْ لَهُ جَارِيَةٌ فَبَلَغَتْ، وَذَكَرَ نَحْوَهُ، لَمْ يَذْكُرْ قِصَّةَ الْقَتِيرِ.

ابراهیم بن میسره ته خپلې ترور د داسې ښځې نه روایت بیان کړې دې د چاچه د رښتیاوالی هر څوک تصدیق کوی فرمائیل ئې چه دجاهلیت په زمانه کښې زما پلار په یوه غزوه کښې شریک وو نو یکدم دګرمې دشدت په وجه باندې دخلقوخپې سوزیدلی په دې وخت کښې یوکس ووئیل چه داسې به څوک وی چه ماته خپل پیزار راکړی اوزه به ورته خپله اولنئ پیدا کیدونکې لور په نکاح ورکړم، چنانچه زما والد خپل پیزار وخکل اوده ته ئې ورکړل بیا دده لور پیدا شوه اوهغه اوس پیغلبه شوی ده اوباقی روایت ئې دتیر روایت په شان بیان کړو، لیکن په دې روایت کښې دبوډاوالی دحال بیان نشته

مصنف دا واقعه د دې نه روستو په یو بل طریق سره هم ذکر کړې ده چه په هغې کښې لږ شان فرق دې په هغې کښې دا دی، میمونه فرمائی چه د جاهلیت په زمانه کښې یو جنګ شوې وو(هم هغه جیش عثران) کوم چه د ډیرې سختې ګرمئ په زمانه کښې وو نو یو سړې چه دهغه سره پیزار نه وو هغه دا اعلان اوکړو چه ﴿من یعطینی نعلیه ﴾باقی حصه ئې د مخکښې په شان ده. دا حدیث لږ شان اوږد هم دې او تشریح ته هم محتاج دې په دې وجه مونږ د دې تشریح اوکړه، زمونږ په کلیزې امتحان کښې هم دا حدیث راغلې وو، حضرت مولانا امیر احمد صاحب صدر مدرس مظاهر العلوم وو. رحمه الله تعالی.

والحدیث اخرجه احمد والبیهقی قاله فی المنهل.

(الحمد لله ! څلورم جلد ختم شو.)

1): انظر ما قبله،( تحفة الأشراف: ١٨٠٩١)(ضعيف)